


Maktaba Tul Ishaat .com



تمام فنون کے کتب کے پی-ڈی-ایف ہمارے ویب سائٹ سے اور پلے سٹور سے فری ڈاون لوڈ کریں۔ ہم روزانہ کی بنیاد پر اس میں مزید کتب شامل کر رہے ہیں اس لیے آپ ہفتے میں ایک بار ضرور ہمارے پلے سٹور اور ویب سائٹ کو چیک کیا کریں۔

## ابھی مطلوبہ پی-ڈی-ایف مفت ڈاون لوڈ کریں

| | | |
|---|---|---|
| تفاسیر | خطبات | منطق |
| احادیث | سیرت | معانی |
| فقہ | تاریخ | تصوف |
| سوانح حیات | صرف | تقابل ادیان |
| درس نظامی | نحو | تجوید |
| لغت | فلسفہ | نعت |
| فتاوی | حکمت | تراجم |
| اصلاحی | بلاغت | تبلیغ ودعوت |
| تمام فنون | | |

# كشف البارى

عما فى

# صحيح البخارى

## كتاب المغازى

**تاليف** ← صدر وفاق المدارس مولانا سليم الله خان مدظله العالى
شيخ الحديث جامعه فاروقيه كراچي

**ترتيب وتحقيق** ← مولانا ابن الحسن عباسى (مؤلف درس مقامات)

**ترجمه** ← مولانا شاه فيصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم

**خصوصيات**

**جلد ۱۰**

① داحاديثو تخريج
② د تعليقات بخارى تخريج كول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ د گرانو لغاتو لغوى صرفي او نحوى حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره كښې پوره تحقيق.
⑥ د شرحي د هري خبري په حاشيه كښې حواله وركول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بيانولو كښې پوره تحقيق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقيقي بيان او بيا د مذهب حنفي ترجيح
⑨ د حديث اطراف بيانول چه په بخارى كښې دا حديث په كوم كوم ځائې كښې دې.

**خورونكى** فيصل كتب خانه محله جنگى پيښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

دکتاب نوم:- کشف الباری عما فی صحیح البخاری

جلد: کتاب المغازی

شارح: صدر وفاق المدارس شیخ الحدیث مولانا سلیم اللہ خان مدظلہ العالی

ترتیب وتحقیق: مولانا ابن الحسن عباسی استاذ جامعہ فاروقیہ کراچی

پښتو مترجم: مولانا شاہ فیصل فاضل امداد العلوم و وفاق المدارس
ایم اے اسلامیات وعربی پېښور یونیورسټي



د ملاويدو پتې: د فيصل کتب خانه پېښور څخه علاوه

- رشیدیہ کتب خانہ اکوړہ خټک
- علمیہ کتب خانہ اکوړہ خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴
- مکتبہ رشیدیہ کوئټہ ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳
- مکتبہ عثمانیہ کانسی روډ کوئټہ ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰
- مکتبہ یوسفیہ کانسی روډ کوئټہ ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰
- راشد کتب خانہ چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳
- مکتبہ عمریہ تاج میر روډ چمن بلوچستان
- مکتبہ علوم اسلامیہ تاج میر روډ چمن بلوچستان ۰۳۳۳۷۹۵۸۶۹۶
- مکتبہ حقانیہ چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹
- صداقت کتب خانہ قندھار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۲۱
- مکتبۂ رحمانیہ قندھار افغانستان ۰۷۹۷۷۳۵۲۸۱
- مکتبہ عبدالحي قندھار افغانستان ۰۷۰۰۸۲٤۳۳٤
- اسد اللہ کتب خانہ قندھار افغانستان ۰۷۰۷٤۷۷٦۲۷
- مکتبۂ غفاریہ قندھار افغانستان ۰۷۰۰۳٤۱۷٤۹
- مکتبۂ رشیدیہ قندھار افغانستان ۰۷۷۲۲۱۰۷۰۹
- مکتبۂ حبیبیہ قندھار افغانستان ۰۷۹۹٤٤۷٤۱۳
- مکتبۃ القدس قندھار افغانستان ۰۷۰۷۹٤۸۵۵۹
- قدرت کتب خانہ کابل افغانستان ۰۷۹۹۲۱۹۲۰۳
- عبدالمجید کتب خانہ جلال آباد ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹
- شاھین کتب خانہ خوست افغانستان
- بلال کتب خانہ خوست افغانستان
- اسلامی کتب خانہ خوسٹ افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷

# فهرست مضامین



## کتاب المغازی

### بَابُ غَزْوَةِ الْعُشَيْرَةِ أَوِ الْعُسَيْرَةِ

## بَابُ ذِكْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُقْتَلُ بِبَدْرٍ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## بَابُ تَسْمِيَةِ مَنْ سُمِّيَ مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ فِي الْجَامِعِ الَّذِي وَضَعَهُ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ عَلَى حُرُوفِ الْمُعْجَمِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## بَابُ مَرْجِعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْأَحْزَابِ وَمَخْرَجِهِ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ وَمُحَاصَرَتِهِ إِيَّاهُمْ (غزوة بنی قريظة)



## غَزْوَةُ ذَاتِ الرِّقَاعِ

## بَاب - غَزْوَةِ الْحُدَيْبِيَةِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## بَابُ غَزْوَةِ الْفَتْحِ وَمَا بَعَثَ بِهِ حَاطِبُ بْنُ أَبِي بَلْتَعَةَ وَإِلَى أَهْلِ مَكَّةَ يُخْبِرُهُمْ بِغَزْوِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ



## بَاب - غَزْوَةِ الْفَتْحِ فِي رَمَضَانَ

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## بَاب آخِرِ مَا تَكَلَّمَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ



## بَاب كَمْ غَزَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## غزاګانې لنډې لنډې......(د مرتب دقلم نه)



## یو وضاحت

په دې تقریر کښې چه موږ د صحیح بخاری کومه نُسخه د متن په طور استعمال کړې ده.په هغې باندې ډاکټرمصطفٰی دیب البغا تحقیقی کار کړې دې.ډاکټردیب په احادیثو باندې د نمبرو لګولو سره سره داحادیثو د مواضع متکرّره په ګوته کولو اِلتزام هم کړې دې.که یَو حدیث روستو راتلونکې وی.نو دحدیث په آخر کښې په نمبرو سره هغه په ګوته کوی.یعنی چه په دې نمبر باندې حدیث راځی.اوکه حدیث تیرشوی وی. نو د نمبر نه وړاندې [ر:] لګوی. یعنی چه دې نمبر ته دې رجوع اوکړې شی.

بسم الله الرحمن الرحيم

# څه د خپل ځان په باره کښې

**حامداً ومصلياً وبعد:**
دیوبندسره نزدې اود تهانه بهون سره تقريباً متصل قصبه حسن پور لوهاری ضلع مظفرنګر یوپی انډیا د احقر مولد او مسکن قدیم دې.دا قصبه د افریدو پښتنو کلې دې. دې بستۍ ته دا شرف حاصل دې.چه حاجی امداد الله مهاجر مکی،حافظ ضامن شهید ،او دمولانا شیخ محمد تهانوی پیراومرشد اود حضرت سید احمد شهید رحمهم الله معتمد خاص میانجی نور محمد جهنجهانوی قیام هم په دې بستۍ کښې پاتې شوې دې.اود تهانه بهون مذکور الصدر عارفین ثلاثه حسن پور لوهاری ته راغلی وو.اود میانجی صاحب موصوف نه ئې استفاده کړې وه.او په مستفیدینوکښې بیا د حاجی صاحب فیض خوپه ځلورکنجه دنیا کښې نن هم جاری اوساری دې.او انشاء الله تعالی ترقیامته پورې به جاری وی.
د احقر تعلق هم د دغه آفریدی پښتنود یومتوسط خاندان سره دې.چه پیشه ئې طبابت راروانه وه.زما والد محترم جناب عبدالعلیم خانصاحب مرحوم لا ماشوم وو.چه د نیکه د وفات سره دوی یتیم پاتې شو.ددې وجې د دوی د تعلیم معقول بندوبست اونشو.اوهغوی د طب تعلیم حاصل نکړې شو.د دوی د یونانی دوایانو دوکان وو.او دوی عطار وو.
**اولنې تعلیم:** زما اولنې استاذ منشی بنده حسن رحمه الله دچا نه چه ما د اردو او فارسۍ تعلیم حاصل کړې وو. پرهیزګاراومتقی انسان وو.ما په خپل ژوند کښې د هغوی پشان ذاکر اود نوافلو په کثرت سره ادا کونکې چرته نه دې لیدلې.زما دویم استاذ منشی الله بنده رحمه الله وو.دچا نه چه ما د اردود او فارسۍ تعلیم په دوران کښې قرآن کریم په ناظره وئیلې وو. هغوی به د ماښام نه پس کورکښې د اورولو دپاره تشریف راوړلو.په قناعت او د دنیا نه په بې رغبتۍ کښې بې نظیره وو.د هغوی معمول وو،چه روزانه به ئې یو قرآن کریم ختمولو. حال دا چه هغوی حافظ هم نه وو.
**دعربۍ د تعلیم شروع:** د قرآن کریم او اردو او فارسۍ د تعلیم نه د فراغت نه پس زه مدرسه مفتاح العلوم جلال آباد ضلع مظفرنګر کښې د حضرت مولانا مسیح الله خانصاحب رحمه الله په خدمت کښې حاضرکړې شوم.دلته مې د دوو کالو او شپږو میاشتو په موده کښې درجه رابعه پورې کتابونه اووئیل.بیا احقر دیوبند ته اولیږلې شو، هلته مې پنځه کاله تیر کړل.د دارالعلوم رائج نصاب مې پوره کړل.جمله فنون منطق،فلسفه،ادب، اصول ،ریاضی،فقه ،کلام او د حدیث په نصاب کښې شامل ټول کتابونه مې ختم کړل.د دارالعلوم نه د فراغت په وخت کښې مې ۲۰ کاله عمر وو،او پاکستان نه وو جوړ شوې.
بیا مې تدریس شروع کړو،او پاکستان ته د هجرت نه وړاندې په جلال آباد مدرسه مفتاح العلوم کښې مې د درس نظامی پوره سره د جمله فنونو اودوره حدیث اته کاله تدریس اوکړو.پاکستان ته د راتلو نه پس درې کاله په دارالعلوم الاسلامیه اشرف آباد ټنډوالله یار

كښې مدرس پاتې شوې ووم .بيا لس كاله په دارالعلوم كراچۍ كښې او دارالعلوم سره سره يوكال په جامعة العلوم بنوری ټاؤ ن كښې هم د تدريس خدمات كول.په هره مدرسه كښې د حديثو د مركزی سبقونو نه علاوه په نورو فنونوكښې هم لوئې كتابونه زيردرس پاتې شوی وو.په ۱۹۶۷ء كښې مې د جامعه فاروقيه كراچۍ بنياد كيښودو.اود ۲۸ كالونه تراوسه پورې هم دلته كار كوم.

زما دوړوكوالی او د طالب علمۍ زمانه په لوبو او د هلكوانۍ په زمانه كښې تيره شوې ده. خو معلومه نه ده.چه وجه وه هم په دغه زمانه كښې داول نه واخله تر آخره پورې د استاذانو شفقت اوحسن ظن هميشه دپاره پاتې شوی دی.په دوی كښې د څه حضراتو د شفقت او د هغوی حسن ظن په وجه كله كله هغوی په دې نالائق شاګرد باندې ډير اعتماد اوفخر هم كړې دې.كوم چه په هغه وخت كښې هميشه دپاره زه شرمنده كړې يم.(۱)

د ابتداء نه د څه درجه كښې دطالب علمۍ استعداد كښې استحكام پيدا شوی وو.ددې وجې نې د هلكوانې لاپرواهی څه زياته نقصانی ثابته نشوه.دا بيله خبره ده.كه پوره توجه ئې سبقونو،مطالعې اوتكرارته وركړې وه. نو يقيناً ډيربنه صورت حال به وو.بهرحال هغه نقصان خو اوشو.بيا مې دتدريس په زمانه كښې ډيرمحنت اوكړو.اوپه څه ناڅه طريقه د تدريس دا زمانه هم تيره كړه. (۲)

---

(۱) ① حقيقت دا دې.چه الله تعالی مولانا ته غير معمولی صلاحيتونه وركړی دی.ددوی د حافظې واقعات چه واورې.نود قرون اولی د محدثينو د حافظې ياد تازه كيږی.دا واقعه به د ډيرو دپاره د تعجب باعث وی.چه په دې زمانه كښې هم داسې حضرات موجود دی.چاچه د يوې مياشتې نه په كمه مودۀ كښې پوره قرآن پاك نه يوائې دا چه ياد كړې دې.بلكه د يادولو سره سره نې په تراويحو كښې هم اوورولې دې،،

هم د طالب علمۍ په زمانه كښې دوی د دارالعلوم ديوبند نه د رمضان په تعطيلاتوكښې كور ته راغلو. خيال ورته راغلو.چه د چھټيانوپه دې وقفه كښې د قرآن شريف څه حصه ياده كړم.رمضان رانزدې وو.مشوره دا اوشوه.چه روزانه به ربع پاره يادوی.او په تراويحوكښې به ئې اوروی.دغه شان به د رمضان تراويح هم كيږی.او دوی به اووه اته پارې هم يادې كړی وی.مولانا ته كيدې شي.پخپله هم د خپلې حافظې دقوت اندازه په هغه وخت كښې نه وه.نودوی روزانه د يو پۀ يادولو اراده اوكړه.دحفظ قرآن شروع ئې اوكه.خوچه كله د يادولو دپاره كيناستلو.نو روزانه به ئې د ربع پارې په ځاې يود نيمه پاره يادوله.اود شپې به ئې هغه په تراويحوكښې هم اوروله. يو طرف ته اووېشتمه شپه راغله.او بل طرف ته دوی ټول قرآن كريم حفظ كړواوپه تراويحوكښې نې واورول.دعلاقې حافظانوته چه كله ددې خبر اوشو.نوډيرو ته يقين نه راتلو.خويوه واقعه كومه چه په وجود كښې راغلې ود.دهغې نه انكارڅنګه ممكن وو.

(۲) مولانا د فن تدريس شهسوار دې.دوی چه چرته هم پاتې شوی دی.د دينی علومو د تګو شمع به لګيدلې وه.ددې بوراګانود رونق نه دوی كله هم بې رونقه شوی نه دی.د دوی د ځوانۍ په زمانه كښې هم به د طالبانو يوه ډله هميشه دپاره دوی سره د لوستلو په غرض ډيره وو.په هغه وخت كښې د حديث وئيلو خو استاذان داسې هم وو.چاچه د درس نظامې د ابتدائی درجې سبقونو نه واخله تر صحاح سته پورې ټول كتابونه د بل چا د شركت نه بغيرصرف د دوی نه وئيلې وو.په درس نظامی كښې په هغه وخت كښې داسې معياری كتاب نه وو.دكوم چه دوی درس نه وركړی.په درس او تدريس كښې د دوی د محنت او شغف اندازه ددې نه لګولې شی.[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

**دمولانا مسيح الله خان صاحب صحبت:** زما په ژوند كښې د ټولونه زيات بدلون،د دينى جذباتو پرورش، داخلاقو او اعمالودحسن اوقبح احساس،د دې اصلاح ته توجه اوهميشه دپاره خپل خان په رجال الدين كښې د شاملولو شوق اوجذبه،دحضرت مولانا مسيح الله خان صاحب په صحبت كښې چه پاتې شوم،نوپيدا شوه.دا بيله خبره ده.چه زه د نفس او شيطان د اغوا په وجه جوړ څه نه شوم.خوپه دې باندې شكرګذار يم.چه داهل حق علماؤ او اهل اصلاح په لمن كښې يم.او اميد وار يم.چه هم ددې تعلق په وجه به راسره الله تعالى د عفو او درګزر معامله اوكړى.اومغفرت به مې اوكړى.«وما ذلك على الله بعزيز».

**شيخ الاسلام مولانا حسين احمد مدنى رحمه الله :** داحقيت دې چه ماته زماد فن حديث سره تعلق د شيخ الاسلام حضرت مولانا حسين احمد مدنى نورالله مرقده د شاګردئ په وجه نصيب شوې دې.دحضرت د ترمذى درس روزانه به دوه دوه نيمې ګهنټې په داسې عجيبه انداز كښې وو.چه سترګوته هغه ښه منظرچرته بيا نه دې نصيب شوې.هغه شيخ د زمانې چه

---

...دتيرمخ بقيه] چه په كلونو ،به دوى د صحيح بخارى، صحيح مسلم ،صحيح ترمذى،سنن ابى داود او مشكواة شريف ټول جلدونه دوى مكمل په خپله وښيل.اودې سره سره به ئې لا زياتى هم د څه كتابونو سبقونه وښيل.،،

د ښه او مقبول استاذ په تعريف كښې دا خبره هم داخله ده.چه هغه دګرانې نه ګرانه مسئله په لطيفو كښې ښائى.اوطالبان دهغوى په درس كښې سترې والې نه محسوسوى.يواستاذ چه په تفهيم و پوهولوكښې دغيرمعمولى صلاحيت او مهارت ولې نه وى.خوكه دهغه په انداز اوطرز تقريرنه په طالبانوباندې ذهنى بوج غورځيږى.نوهغه ته د فن تدريس د ټولوښه صفاتو حامل مدرس نشى وئيلې.الله تعالى مولانا ته د تفهيم د غيرمعمولى صلاحيت سره سره د انداز بيان او اسلوب تقرير داسې زړه راښكونكې او خوښونكې صفت وركړې دې.چه په ګهنټوبه ته ددوى په درس كښې ناست ې.خوته به سترې والې بيخې نه محسوسوې.داول نه آخره پورې به په درس كښې تازګى اوخوند خور وى.د دوى تدريسى ژوند تقريباً په نيمه صدئ باندې مشتمل دې.او اوس هم حالانكه دوى د قيمتى عمر ۶۸ منزلونه تيركړى دى.د دارالحديث معموره فضاء د دوى د درس بخارى نه ګونج كوى. (يعنى آواز ئې په كښې راتمبيږى.،،

دشاګردانو وسيعه او مفيده حلقه،،

الله تعالى مولانا صاحب د شاګردانو په وسيع او مفيدې حلقې سره كامياب كړې دې.په دې وخت كښې د دنيا په مختلفو ملكونوكښې د مولانا صاحب شاګردان كوم اهم دينى خدمتونه كوى.هغه د شلو نه زيات ملكونه دى.په كوموكښې چه د پاكستان نه علاوه ناروې، جرمنى، ساوته افريقه، سعودى عرب،كويت،قطر،عرب امارات،عمان ،انګليند، استريليا، كوريا، افريقه، فرانس، ملاوئشيا، رنګون،هندوستان،بنګله ديش،ايران او افغانستان وغيره ملكونه دى.ددوى د شاګردانو په دې وسيع حلقه كښې مصنفين هم دى.اومدرسين هم،مفتيان هم دى او عالمى سكالران هم،په جنګى محاذونوكښې دكافرانوسره مقابله كونكى هم،اوپه عالمى سطح باندې دينى فريضه پوره كونكى مبلغين هم،لوې لوې دينى ادارې قائمونكى اوچلونكى مهتممين هم،اود شيخ الحديث په منصب باندې ناست محدثين هم.،،

د دارالعلوم كراچئ صدر مدرس مفتى محمد رفيع عثمانى صاحب،جستس مولانا محمد تقى عثمانى صاحب،دجامعه بنورى اسلاميه ټاؤن مهتمم مولانا حبيب الله مختار صاحب،د درس نظامى د بعضې كتابونواردو شارح مولانا حنيف ګنګوهى او مولانا مفتى نظام الدين شامزئ غوندى د علم ستنې ددوى د شاګردانوپه حلقه كښې داخل دى) ـ

دهغوی د دینی،ملی، سیاسی،سماجی،اصلاحی، اوانتظامی خدماتوځه حد نه وو.هغوی د استقامت او ثبات جبل اعظم وو.په مسند درس چه به کله هغوی کیناستل.نوپه مخ باندې به ئې د خوشحالئ آثاربنکاره ښکاریدل.شخصیت ئې دومره زړه راښکونکې اوزړه ته پریوتونکې وو.چه زړونه به هغوی طرف ته راښکلې شو.کوم طالبان چه په ټول کال په درس کښې شریك وو.دهغوی دپاره به د حضرت په ذات گرامی کښې د اولنئ ورځ پشان نوې والې او جاذبیت وو.خیال راځی.چه د نبی ﷺ د عاشقانوکله دا شان دې .نود نبی ﷺ به څه شان وو.

دحضرت په درس ترمذی کښې به د حدیثو په فنی مباحثوښه تفصیل کولې شو. د اسناد،جرح وتعدیل،تطبیق او ترجیح بحثونه،فقهی،کلامی،تاریخی مسائل،او اخلاقی اواصلاحی خبرې به ئې ښه په تفصیل سره کولې.دصحاح سته اونورو کتابونو سیټ به ورسره برابر پروت وو.دحوالې هره خبره به ئې په کتاب پرانستلو اودهغې د عبارت په وئیله او بیانوله.اوپه دې تفصیلی سبق کښې به دومره اطمینان وو.چه کله به هم دا نه محسوسیدله. چه د دوی ددې کارنه علاوه بل څه کار هم شته.دطالبانودهرقسم تپوسونو به ئې ډیره په ورِوند.تندی سره تفصیلی جواب ورکول،کله به ئې په مخ باندې انقباض نه ښکاره کیدو،بلکه ډیرد انبساط او نشاط په کیفیت کښې به وو.

په دغه کال د حضرت شیخ الاسلام نورالله مرقده درس بخاری د زیاتو سفرونو په وجه متاثرشو.دغه شان د حضرت شیخ په نیز د جامع ترمذی د درس اهتمام زیات وو.ددې وجې د درس بخاری درس به د درایت په انداز کم کیدې شو.ټول کتاب خو خیر نه خو ۲۴ و ۲۵ پارې شلم ۲۰ شعبان باندې چه به امتحان ختمیدل.نوتردغه وخته پورې به ئې قراءةً اودرایةً درس کولو او په ۲۸ شعبان به ئې کتاب پوره کول.

شیخ الادب والفقه مولانا اعزاز علی رحمه الله د ابوداود درس هم معاون وو.دهغوی د درس نه هم احقرډیرڅه زده کړی دی.ترمذی شریف دکتاب السیرآخره پورې اوشمائل ترمذی هم احقرد حضرت شیخ الادب نه وئیلی دی.

احقر په زمانه د تدریس کښې دحضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله د تصنیفاتو اوحواشو نه ډیره استفاده کړې ده.بلکه د تدریس دا ټوله زمانه د ،،الکوکب الدری ،بذل المجهود، اوجزالمسالك، او لامع الدراری، نه په استفاده کښې تیره شوې ده.د نورو تصانیفونه مې هم بغیردڅه شك نه استفاده کړې ده.اوبار بار مې کړې ده. خو د تعلق کوم کیفیت چه د حضرت شیخ د کتابونو سره پاتې شوې دې.هغه د نورو سره نه دې.ددې وجې د حضرت شیخ الاسلام نورالله مرقده نه پس که په ما باندې دعلم حدیث په باره کښې دچا د ټولونه زیات احسان وی.نوهغه د شیخ الحدیث رحمه الله دې.

## څه د کتاب په باره کښې

دصحیح بخاری کتاب المغازی دا درسی تقریر دترتیب وتحقیق د مراحلونه تیر شو.اواوس ستاسوپه لاسونوکښې دې.لکه څنګه چه د کشف الباری جلد اول په ابتداء کښې عرض کړې وو.چه دا په اصل کښې د صحیح بخاری زما درسی تقریر دې.دا تقریرمولوی رشید

احمد شريف کراچوی ټیپ کړې وو.دخپل څه درسی تقریر د ضبط کولوما چرته څه اهتمام نه دې کړې.اونه مې چرته ددې اراده وه.خود مولوی صاحب اصرارغالب شو.اود دغه کال د تقریر ټیپ کولواجازت مې ورکړو.هغوی ډیرپه اهتمام سره د پوره صحیح بخاری درس ډیرې پیسې خرچ کړې اوټیپ ئې کړو.دا درسی تقریر دکیسټونه منتقل کیږی.کاپیانوته، او بیا دهغه ځاې نه د ترتیب اوتحقیق د مراحلونه تیریږی. اوکتابی شکل کښې راتلل ئې شروع شوی دی.

ددې درس آغاز په ۲۱ شوال ۱۴۰۲ھ کښې شوې وو.اوپه ۱۰ رجب ۱۴۰۷ھ ته ختم شو.چه د لوې اختر،سه ماهی،شش ماهی امتحانونواودجمعې د ورځې چهټیانې ترې اوباسې. نو ددې درس ټوله موده شپږ نیمې میاشتې جوړیږی.روزانه تقریباً دوه ګهنټې جاری د صحیح بخاری دا درس په ۴۰۰ کیسټوکښې محفوظ شو.

ددې درس نه وړاندې احقرته څلیریش خله دبخاری شریف اوددې نه زیات د ترمذی شریف لوستلونوبت راغلې دې.اونورکتب صحاح هم باربار لوستلی دی.یوخودا د څلیریشت کالونو محنت وو.اوبیا مطبوعه اوغیرمطبوعه څومره مواد چه راسره وو. د هغې نه یوځل بیا د نوی سر نه د استفادې کوشش شوې دې.

د کرمانی،عسقلانی،عینی،قسطلانی،مهلب بن ابی صفر،ابن منیر،ابن بطال، ابن التین، حضرت شاه ولی الله اومولانا انورشاه کشمیری رحمہ اللہ دشروحو نه،د شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمہ اللہ د لامع الدراری اومولانا محمد ادریس کاندهلوی رحمہ اللہ د تراجمو نه مې ښه استفاده کړې ده.په غیرمطبوعه موادوکښې د خیرمولانا محمد جالندهری رحمہ اللہ د شرح بخاری، اود مظاهرالعلوم سهارنپور شیخ الحدیث مولانا محمد یونس صاحب د درسی افاداتونه مې ښه استفاده اخستې ده.

امام بخاری رحمہ اللہ غزوات ډیرپه اهتمام اوتفصیل سره بیان کړې دی. خو د احادیثو په تخریج، د بابونوپه ترتیب، اود تراجم ابواب او واقعاتوپه ترتیب کښې دوی خپل خان ته جدا یو اسلوب لری.اوهم هغه احادیث ذکرکوی.کوم چه د دوی مخصوصو شرطونو سره برابر وی.ددې په وجه په بعضې ځایونوکښې ابهام پاتې کیږی.اوترکومې پورې چه د پوره ذکرشوې غزوې پس منظر وړاندې نه وی..نوخبره په پوهه کښې راتلل ګران وی.د بعضې غزواتو په تاریخ وقوع کښې دعام اهل سیرنه جدا دوی خان ته یومستقله رائې لری.ددې وجې دصحیح بخاری کتاب المغازی په درس کښې ددې خبرې ضرورت پیښیږی.چه د متعلقه غزوه تاریخی پس منظر،په تاریخ وقوع کښې د اصحاب سیر اختلاف،اوقول راجح، دامام بخاری رجحان،اوچه ددوی رائې مربوطه بیان کړې شی.ددې نه پس به دبابونواود بخاری د احادیثو متعلق مباحثو بیان وی.نوپه دې تقریر کښې هم اول پوره تاریخی تفصیل سره متعلقه غزوه بیان شوې ده.په تاریخ وقوع وغیره کښې د اهل سیراختلاف، قول راجح،او د امام بخاری رحمہ اللہ د رائې وضاحت شوې دې.ددې نه پس په ابواب اواحادیث بخاری باندې تفصیلی خبرې شوی دی.د غزواتو دبیانولونه وړاندې د مقدمې په توګه د جهاد مقصد ،ددې ضرورت،ددې قسمونه اود غلامۍ په مسئله باندې رڼا اچولې شوې ده.

دکتاب المغازی په دې جلد باندې د ترتیب اوتحقیق کارد جامعه فاروقیه استاذ د شعبهٔ تصنیف وتالیف ملګرې زما ګران مولوی ابن الحسن عباسی سلمه کړې دې.دوی ډیر په محنت او شوق سره اصل مراجع طرف ته مراجعت کړې دې.اوحوالې ئې راویستې دی. مفیدې حاشې ئې پرې لیکلې دی.په بعضې ځایونوکښې ئې اضافې هم کړې دی.اوددې تقریر په محقق جوړولوکښې ئې ډیرکوشش کړې دې.الله تعالی دې د بخاری دې درس ته قبولیت ورکړی.اودا دې زما دپاره اود مرتب دپاره صدقه جاریه اوګرځوی .آمین.

## درخواست د مرتب

هغه ورځې زما د ژوند ښکلې ورځې وې.اوهغه شپې زما د ژوند ښائسته شپې وې.کله چه ما د سیرت نبوی یوځلنده باب پرانستل.اودغزواتو په تازه باغ کښې ورداخل شوم.هغه باغ چه دهغې د هریو ګل نه د وفا بوې ځی.کوم ځاې کښې چه د الفت د شهادتګاه بلبلان چغیږی.د خوشبواو نور هواګانې دهرطرف نه چلیږی.دشهادت د سیلاب موجونه لیواله وی. چرته چه نظرد جلوو په طوفان کښې ډوبیږی.اود کفر او سرکشئ طغیانی هم په نظر راځی. دحق اوباطل کشمکش دا تاریخی واقعات امیرالمؤمنین فی الحدیث سیدنا امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې د «کتاب المغازی»په نوم باندې مرتب کړی دی. استاذ المحدثین شیخ الحدیث حضرت مولانا سلیم الله خان صاحب په اردوکښې بیان کړې دې.اوپه دې باندې د تحقیق اوتعلیق سعادت زما په حصه کښې راغلو.بیشکه په یوارخ مطالعه ،اوپه هغې باندې کارکول چه دالله تعالی د طرفه چاته ددې توفیق ملاؤ شی.نوډیرلوې سعادت دې.مبارك اوقابل رشك دې.د ژوند هغه ګهړئ چه د دواړو جهانو د سردار،غاښلې نبی کریم ﷺ دحیات طیبه د خوشحالی ورکونکی چینو نه په سیراب کیدوکښې تیرې شی.په دې سعادت باندې دخپل رب شکر څنګه اد کړم.هغه الفاظ دکوم ځاې نه راوړم.کوم چه زما د جذباتوعکاس او ترجمان جوړ شی.

*نه ګلم نه برګ سبزم،نه درخت سایه دارم در خیتم که دهقان بچه کار کشت مارا*

دصحیح بخاری په دې تقریرپه ترتیب،تحقیق اوتعلیق کښې مې خپل کوشش کړې دې.اود لاندینی اموراهتمام مې کړې دې.

① د تقریرژبه کافی حده پورې د تقریرد اسلوب نه مختلفه وی.د ترتیب ورکولوپه وخت کښې زبانی تقریرپه تحریری قالب کښې داچولوځه حده پورې کوشش شوې دې.خوخیال ددې خبرې هم ساتلې شوې دې.چه د درسی ژبې نوعیت بیخی ختم نشی.او لوستونکی ددې اصل درسی فضا تصویر او جهلك محسوس کړې.ځکه چه هغه ددې یو پرتاثیر اړخ دې.یودرسی تقریرچه د سلسیس نه سلیس کړې شی.اوهغه بیخی ختم کړې شی.دا د ترتیب په محاسنوکښې نشی شمارلې.په دې کښې دکمال پیمانه او معیار دا دې.که قاری ته د صاحب تقریرنه د براه راست استفادې موقع حاصله شوې وی.یا ورسره بالمشافه خبرې شوې وی.نوچه په مطالعې سره اوپه ذهن کښې دهغه طرز ادا ،اسلوب القاء اود صوت او صدا سره نقش شوې تصویرتازه شی.

② په تقرير كښې چه كوم واقعات،توجيهات،اواحاديثو دتشريح سره متعلقه ټول مباحث د موجوده مراجع اومصادرو نه د جلد اوصفحې ذكركولوسره دنقل كولو اهتمام شوې دې.په ترتيب اوتحقيق كښې دا هم يوه مشكله مرحله وى.چه ډيرې خبرې مشهورې اود عوام او خواصو ژبه باندې وى.خوكله چه په اصل مراجعوكښې دهغې د معلومولو مرحله راشى. نو بعضې وخت كښې ګهنټې څه په ورځو پسې ورځې لګى.بيا چرته حواله ملاؤ شى.اويا بيا هم ملاؤ نشى.

③ كه د يوصحابى يا تابعى ذكر په تقرير كښې مختصر راغلى وى.نوپه حاشيه كښې په عربئ يا اردوكښې په اختصار سره دهغه د ژوند حالات بيانولې شى.

④ كه د مطالعې په دوران كښې د بحث سره متعلق څه نكته راته ملاؤ شوې ده. نو د لوستونكو د فائدې دپاره هغې ته هم په حاشيه كښې ځاې وركړې شوې دې.

⑤ كله كله د څه اشكال په جواب كښې يا د څه مسئلې په وضاحت كښې د ضرورت او اهميت په بناء باندې لږ اوږدې حواشى هم ليكلې شوى دى.داصل كتاب شروع كيدونه وړاندې د دعوت اوجهاد په خپل مينځ كښې په ربط باندې په حاشيه كښې يومضمون هم ددې سلسلې يوه كړئ ده.په دې وخت كښې په عالم اسلام كښې يوطرف ته د دعوت اوتبليغ د خاموش انقلاب خاموشه قافله روانه ده.بل طرف ته دمجاهدينوقافله هم د جهاد اسلامى ايمان تازه كونكې تاريخ تازه كوى.په ذكرشوى مضمون كښې د دعوت اوجهاد په خپل مينځ كښې ربط،د امت مسلمه دپاره دهريواهميت اوضرورت، او غلو اومبالغې په خارداره حصه كښې د داخليدونه بغير،په حدودوكښې دننه دانهماك د حده پورې د دواړو شعبوسره تعلق ساتلوباندې رڼا اچولې شوې ده.(١)

⑥ په تقريركښې كه د بخارى يا د حديث په بل كتاب كښې كه چرې د روايت د تخريج د حوالې ذكر راغلې دې.نودمحوله كتاب اومقام نه ددغه روايت تخريج په ګوته كړې شوې دې.

⑦ دطالبانو د نكته نظرنه يوه اهم كاردا هم شوې دې.چه دكتاب په آخره كښې د ټولو لويو غزاګانوخلاصه ما په خپلو الفاظوكښې ليكلې ده.چونكه تفصيلا داكثرو طالب علمانو په علم كښې وى.البته د حافظې سره تعلق ساتونكى بعضې خبرې مثلاً د غزوه تاريخ وقوع، دشركاؤ او شهداؤ شمار،غوندې څيزونه د ذهن نه اوځى.ددې وجې په مختصرو الفاظو كښې د غزواتو خلاصه ،دمتعلقې غزوې اجمالى نقشه پيش كول .اود اهمو واقعاتو تصوير كشى كولو سره سره په مختصر وخت كښې مطالعه اوداهمو خبرو يادولو كښې به انشاءالله ممد اومعاون ثابت شى.

ددې امورو‌په اهتمام كښې دخپل طاقته پورې دتقرير‌په محقق جوړولوكښې پوره كوشش اومحنت كړې شوې دې.خودعصمت دعوى دهرظلوم اوجهول انسان دپاره دلوې نه لويه

(١) دا مضمون په ١٤١٢هـ كښې ليكلې شوې وو.د ماهنامه الفاروق كراچئ (شماره شوال ١٤١٢هـ) نه علاوه ماهنامه الحسن لاهور(شوال ١٤١٢هـ) هم دا شائع كړې دې.

غلطي ده.په دې كتاب كښې به يقيناً غلطيانې وى.ددې كتابت د كمپيوټر دې.په كوم كښې چه د كتابت دغلطيانو احتمال نسبتاً زيات وى.عالمانو ته درخواست دې.چه قابل اصلاح څيز ورته په نظرراشي.نومونږ دې ضرور دهغه نه خبر كړى.

دشيخ الحديث حضرت مولانا سليم الله خان صاحب مدظلهم شفقت،توجه ،نګرانى، اوهمت اوحوصله اوچتولو سره د ترتيب اوتحقيق مراحل په آسانتيا سره پوره كيږى.دلوستونكى نه د حضرت شيخ مدظلهم د صحت،عافيت او عمردازئ دخصوصى دعاګانودرخواست دې.

اودا چه الله تعالى د صحيح بخارى د دې ټول تقريرد ترتيب، تحقيق اوتعليق كارآسانواو پوره كولو لوتوفيق راكړى.چه دا كاردحضرت شيخ د افاداتو امين،اودهغوى علمى يادګار شي. اودمرتب د توري عملنامې په توره شپه كښې روښانه سپوږمئ خو چه شي.انشاء الله دصحيح بخارى به په اردو ژبه كښې هم يوه ښه شرح وى.

د اسلامى تاريخ د غزواتودا څنلده باب په حق اوباطل كښې يو مركزى سبق وركوى.بيشكه قومونه په اوچتواخلاقو،دتهذيب اوتمدن په اعلى اوصالح قدرونو،اود ژوند په مختلفو شعبوكښې همه ګير،جامع ضابطه حيات،او اصولوسره اوچتيږى.ترقى كوى. او كاميابيږى. دقومونو، سلطنتونو،اوملكونود روښانه تهذيب ته د ژوند په جنګ كښې شكست وركونكې داسلامى تاريخ تيرشوې عظمت هم دا بنيادى راز دې.خودا خبره هم هيڅ كله مونږ لره هيرول نه دى پكار،چه داسلام تيرشوې عظمت،اومخكنې هيبت،اود دوباره پيدا كيدو راز د عزواتوتاريخ لوستلوكښې پټ دې.ددې دپاره د عزم اوايقان،جراءت اوايمان، دجذبه جهاد سره سره د مادى قوتونود حاصلولو ضرورت او اهميت په خپل ځاې منلې شوې دې.څكه چه دجرم ضعيفى بهرحال سزا مرګ مفاجات دې.خوجغرافيائى نقطه نظرسره د دنيا په نقشه باندې د زنځيرد كړو پشان مربوط عالم اسلام المبه په دې وخت كښې د قوتونو كمې يا د افرادو عددى قلت نه دې.د ايمان او يقين كمزورى،د فانى دنيا سره محبت،دجهاد د جذبې نشتوالې،اودالله په لاره كښې مرګ ته په ژوند باندې ترجيح وركول هم دمسلمانانو دموجوده ذلت او ښكته والى اصلى سبب دې.دكوم څيز پيشنګوئى په صدو وراندې د نبى ﷺ ژبې د «حب الدنيا وكراهية الموت» غوندې بليغو الفاظوكښې بيان كړې وه.

كه دبدرفضا پيدا كړې شى.نو نن هم يقيناً فرشتې د نصرت دپاره دآسمان نه راكوزيدې شى. خودا په هغه وخت كښې ممكن ده.چه د غزواتود ايمان تازه كونكى تاريخ نه د مسلمانانو بچې بچې خبر وى.يوطرف ته دمسلمانانو د عام تعليمى ادارو د نظام تعليم دا المبه څه كمه نه ده.چه د مسلمانانو بچو ته په فرانس ،روس ،تركى، امريكې وغيره كښې واقع شوې انقلاباتو،اودهغې داسبابواو عواملو او پس منظرنه ښه خبر وركولې شى.خوبل طرف ته داسلامى تاريخ او غزواتو نه دوى ته سرسرى معلومات وركولى شى.د مسلمانانو په نوى نسل كښې د جهاد د جذبې نشونما ،دشهاد شوق، او داسلام د اوچتوالى په لاره كښې د ځان قربانولو عزم دغزواتو او اسلامى جهاد كښې دځان قربانولو جنګونود واقفيت پيدا كولونه بغيرڅنګه ممكن كيدې شى؟ په ګركسونو (يو قسم مارغان دى،چه مردارې خورى) كښې چه ا وسيږى هغه دهوكه وركړې شوى باز ته څه خبر دې.چه څه دې كارد باز،

حقيقت دا دي.چه د غزواتو عبرتناك تاريخ د مسلمانانو دپاره په نوي زمانه كښې په توره شپه كښې ايماني لالتين دې.په دې سره به دا حقيقت د دوی په ذهنونوكښې كينې.چه

برتر اندیشہ سود وزیاں ہے زندگی ہے کبھی جاں اور کبھی تسلیم جاں ہے زندگی

چرته خان ژی اوچرته د خان سپارل وی ژوند ،هم په دې سره به دمسلمانانو اوده شوې د جهاد جذبه متحركه شي.اود اسلامي تاريخ ترتيب به د نوې سر نه ممكن شي.

ہاں دکھا دے اے تصور پھر وہ صبح وشام تو دوڑ پیچھے کی طرف اے گردش ایام تو

ابن الحسن عباسی

رفيق شعبه تصنيف واستاذ جامعه فاروقيه كراچی

۲۲ شعبان ۱۴۱۵ھ

•••••••••••••••••••••••••••••••••

بسم الله الرحمن الرحيم

**د پيغمبرانوعليهم السلام بعثت انعام خداوندی دې:** دانبياء عليهم السلام بعثت دالله تعالى ډيرلوې انعام او احسان دې.كه پيغمبران عليهم السلام مبعوث شوی نه وو.اوهغوی تشريف نه وې راوړې.نودالله تعالى د ذات او صفاتو په باره كښې به مونږ ته څه علم نه ووحاصل شوې.دالله تعالى د مرضياتو اونامرضياتوعلم به راته نه وو.دالله تعالى د بندګئ اوعبادت طريقه به راته معلومه نه وه.دهدايت او ضلالت سعادت او شقاوت فرق به راته معلوم نه وو.دمعاش او معاد دين او دنيا،د غلامئ او حكمرانئ لارې به راته معلومې نه وې.دا دحضرات انبياء عليهم السلام د تشريف راوړو و دهغوی د بعثت صدقه اووجه ده.چه الله تعالى دهغوی په ذريعه ټول كارونه منكشف او ښكاره كړل.

**دګمراهئ په تياره كښې صرف دعقل نور كافی نه دې:** انسان ته عقل وركړې شوې دې.د علم حاصلولو ذرائع هم وركړې شوی دی.اوپه تجربې سره په عقل كښې زياتوالې هم كيږی. خود انسان عقل او علم نابالغ دې.د انبياء عليهم السلام د راهنمائې نه بغيردعقل اوانسانی علم دپاره صحيح لاره معلومول ګرانه بلكه ناممكنه ده.لكه ګوره ستا په سترګو كښې بينائی موجود ده.رڼا موجود ده.خوددې بينائې او رڼا باوجود په توره تياره كښې په سترګو باندې تاته څه په نظر نه راځی.ترڅو پورې چه خارجی رڼا مدد اونكړی.په ورځ كښې د نمر رڼا مدد ګاره وی.اود شپې د ډيوې اوبجلئ رڼا په كښې د سترګونه كار اخستې شی. دغه شان د ضلالت په تياره كښې اود ګمراهئ په ظلمت كښې دعقل نور اوددې رڼا د راهنمائئ نه قاصره اوعاجزه وی. ترڅو پورې چه د وحی نور د دې د امداد دپاره موجود نه وی.

**انبياء عليهم السلام د انسانی اعلیٰ صفاتو حامل او د امتونو د هدايت په لاره راوستلو بې مثاله جذبه لری:** الله سبحانه وتعالى انبياء عليهم السلام مبعوث كړی دی.اوهغوی ته ئې خاندانی

شرافت ورکړې دې.په انساني صفاتوکښې ئې هغوی ته اوچته درجه ورکړې ده.ددې وجې دهغوی شرافت،خوش اخلاقي،دهغوی صبر اوتحمل،اودهغوی دحسن سلوك جذبه بې مثاله وی .
ددې صفاتو سره سره الله تعالی هغوی ته د نبوت ثابتولودپاره خارق عادات يعنی معجزات هم ورکړې دی.هغوی راغلل.اودخپل قوم دهدايت فريضه ئې ادا کړه.او ددې دپاره هغوی د شپې او ورځې مسلسل محنت کولو.قرآن د حضرت نوح عليه السلام ذکرکړې دې.اوفرمائي.
﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي دَعَوْتُ قَوْمِي لَيْلًا وَنَهَارًا ۝ فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَائِي إِلَّا فِرَارًا ۝ وَإِنِّي كُلَّمَا دَعَوْتُهُمْ لِتَغْفِرَ لَهُمْ جَعَلُوا أَصَابِعَهُمْ فِي آذَانِهِمْ وَاسْتَغْشَوْا ثِيَابَهُمْ وَأَصَرُّوا وَاسْتَكْبَرُوا اسْتِكْبَارًا ۝ ثُمَّ إِنِّي دَعَوْتُهُمْ جِهَارًا ۝ ثُمَّ إِنِّي أَعْلَنْتُ لَهُمْ وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ إِسْرَارًا ۝﴾ (١)
نوح عليه السلام عرض اوکړو.اې پروردګاره ما خپل قوم د شپې او د ورځې مسلسل حق دين طرف ته راوبلل.نو زما په رابللو هغوی نور تختی.اوما چه کله هغوی ته دحق دعوت ورکړې دې. دې دپاره چه تاسو د ايمان په سبب دهغوی ګناهونه معاف کړئ.نودغه خلقو په غوږونو کښې ګوتې ورکړې.اوپه جاموکښې ئې ځان اونغښتل.اوپه کفرباندې کلك پاتې شول.اوډيره سرکشی ئې اوکړه.بيا هم ما هغوی ته په اوچت آواز باندې دعوت ورکړو.او په ښکاره مې پوهه کړو.او په پټه مې پوهه کړو.
قرآن کريم دا ارشاد د حضرت نوح عليه السلام په باره کښې فرمائيلې دې.خو د ټولو پيغمبرانو عليهم السلام هم دا کيفيت وو.هغوی به په پوره دلسوزئ بلکه په بې غرضئ سره مسلسل اوپرله پسې محنت کولو.اودامت نيغې لارې ته راوستو دپاره به ئې خپل پوره طاقت خرچ کولو. بيا به څه کسانو د انبياء عليهم السلام په دعوت باندې لبيك وئيل.او،،مرده به دست زنده،، پشان به ئې خپل ځانونه پيغمبرانوعليهم السلام ته حواله کړل.اودهغوی د تعليماتو مطابق به ئې خپل ژوند تيرول.هغه خوش قسمه خلق وو.اوڅه خلقو د انحراف او استکبار طريقه اختيارکړه.اودې سره سره ئې د انبياء عليهم السلام په تعليماتو پورې ټوقې کولې. هغوی دا سوچ نه کول.چه الله تعالی مونږ ته دا عزت راکړو.چه دخپلو اوامرو او نواهی ئې مونږ مخاطبين جوړ کړو.بلکه هغوی برابر د نفس اماره بالسوء او شيطان لعين تابعدرائ ته ملا اوتړله.اوالله اودهغه د رسول ﷺ نه بې ويزاره کيدل.
**د انبياء نافرمانی دالله تعالی د عذاب موجب ده:** انبياء عليهم السلام چونکه دالله تعالی نائبين وی. اودهغه د طرفه مبعوث شوی وی.اوددې دنيا خالق الله تعالی دې.نودانسانانو دپاره ضروری ده.چه هغوی د الله تعالی اودهغه د نائبينو پيغمبرانوعليهم السلام اطاعت او تابعداری اوکړی.خوکله چه هغوی بغاوت اختيار کړی.اودالله تعالی د تابعدارئ نه تختی.نوبيا دهغوی دپاره د الله تعالی د طرفه دعذاب بندوبست کيږی.اود هغوی د بغاوت په جرم کښې دهغوی دپاره دسزا فيصله کيږی.کله خوالله تعالی هغوی په عذاب کښې داسې اخته کړی.چه په زمکه کښې ئې ښخ کړی.کله هغوی په اوبوکښې غرق کوی.اوکله په

(١) نوح:٥تا٩۔

هغوی باندې د اسمان نه د کاڼو باران کوی.کله سخت اوتنده سیلئ دهغوی خاتمه کوی.
کله هغوی د خنزیرانو اوشادوګانوپه شکلونوکښې مسخ کړی.اودا عذاب د فرشتو په ذریعه سره ورکوی.اودا د عذاب ډیرسخت قسم دې.په دې کښې مهلت نه وی.په دې کښې د رجوع موقع لاس ته نه ورځی.اودغه شان هغه قومونه په چا باندې چه دا عذاب راشی.هغوی تهس نهس اوتباه او برباد کړې شی.
دویم قسم د عذاب دا وی.چه الله تعالی خپل بندګان دهغوی د قتال اوجنګ او جهاد دپاره اودروی.اودا صورت آسان دې.ځکه چه کله د قتال دپاره خلق مخامخ راشی. اوجنګ اوشی. نوځه کسان یقینا مړه شی.خوځه خلق ژوندی پاتې شی.اوچه کوم کسان ژوندی پاتې شی.نو بهرحال هغوی ته موقع ملاویږی.چه هغه په خپل عمل باندې نظرثانی اوکړی.اوخپل عمل بدل کړی.اوهغه خلق کوم چه د مقابلې دپاره راځی.اوقتلولې شی. نو هغوی ته هم موقعه ملاؤ شی.چه هغوی د جنګ د تیارئ په دوران کښې سوچ اوکړی.که غواړی نواسلام قبول کړی.اودالله تعالی اطاعت اوتابعداری منظوره کړی.دعذاب دا دواړه طریقې دی.کله اولنئ طریقه وی،یعنی د فرشتو په ذریعه عذاب ورکولې شی.اوپه دې کښې مهلت نه وی.اوکله بله طریقه وی.په هغې کښې مهلت وی.اودالله تعالی نابنین اونیکان بندګان په میدان جنګ کښې دکافرانو مقابله کوی.اوکله د عذاب دواړه طریقې جمع کولې شی.لکه څنګه چه د جنګ بدر په موقع باندې الله تعالی فرشتې هم راولیږلې.اوهغوی په جنګ کښې حصه هم واخستله.اومشرکان ئې جهنم ته اورسول. او نبی ﷺ هم د ځان سره خپل درې سوه او دیارلس صحابهؓ راوستل.اودکافرانو سره ئې قتال اوکړو.

**جهاد کافرانو دپاره دالله تعالی چابک دې:** دا قتال په اصل کښې دالله تعالی د باغیانودپاره اودالله تعالی په احکاماتو پورې توقې کونکو لره د منع کولودپاره اودالله تعالی نیکانو بندګانوته په آرام اواطمینان سره د عبادت موقع ورکولو دپاره وی.ددې جهاد اوقتال مقصد دا وی.چه د الله تعالی باغیان خپل انجام ته اورسولی شی.دالله تعالی په احکامو پورې استهزاء اوټوقونه دوی منع کړې شی.په حقیقت کښې خو د دوی قتل کونکې الله تعای دې.اودا دالله تعالی نابنین خو یوه واسطه او آله ده.لکه څنګه چه د صدر مملکت دطرفه د یومجرم د پهانسئ کولوحکم اوشی.اوجلاد هغه ته پهانسی ورکوی.نوهلته دا نشی وئیلې. چه قتل کونکې جلاد دې.بلکه دغه صدر مملکت طرف ته د دې حکم نسبت کولې شی. اولکه څنګه چه یوکس غشې اولیندۀ راواخلی.اوڅا نښه واخلی.اوپه خپل غشی سره هغه هلاك کړی.نوپه حقیقت کښې هلاکونکې هم هغه تیرویشتونکې دې. غشې اولیندۀ خو په مینځ کښې یوه واسطه ده. په قرآن مجید کښې فرمائیلې شوی دی.چه ﴿قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ﴾ (١) ددې وجې په حقیقت کښې په جهاد کښې د کافرانود قتل نسبت الله تعالی طرف ته شوې دې.اوپه دې باندې د څه اعتراض ګنجائش نشته.ځکه چه په دنیا کښې دا خبره منلې شوې ده.چه کوم کس د حکومت باغی وی. دهغه جرم دمعافئ قابل نه وی.ددنیا

---

(١) سورة التوبة: ١٤۔

دخو ورخو حکومت وی.او هغه باغی دغه حکومت نه وی پیدا کړې.هغه باغی دخپل ژوند تیرولو ددغه حکومت ذره برمحتاج نه وی.ددې باوجود عاقلان په دې باندې متفق دی.که یوکس دحکومت باغی وی.نودهغه دغه جرم د معافئ قابل نه دې.اودهغه سزا مرګ دې.اوالله تعالی خوددې دنیا خالق هم دې اومالك هم دې.الله تعالی دغه باغی هم پیدا کړې دې.هغه په خپل مستعار ژوند کښې هره لمحه هره لحظه دالله تعالی محتاج هم وی.ددې باوجود که هغه د الله تعالی نه بغاوت اوکړی.د الله تعالی د نائبینو انبیاؤ نه بغاوت اوکړی، نوددې جرم د معافئ قابل کیدې شی؟ هرګز نه،دده سزا یقیناً هم مرګ پکار دې.ددې وجې که اسلام جهاد مشروع کړې دې.اود دغې باغیانود ختمولودپاره اود الله تعالی په احکامو پورې دټوقوکولونه د هغوی منع کولودپاره،ئې دهغوی دا سزا مقرر کړې وی.چه دوی دې قتل کړې شی.اوددوی مالونه دې په اهل طاعت کښې تقسیم کړې شی.اوقیدیان دې غلامان جوړ کړې شی.نودا خبره پکارده چه قابل اعتراض نه وی.

**ایا دشمنی اوعداوت په دې دورکښې دتهذیب اوتمدن مدعی قومونه برداشت کولې شی؟**: نن په دې دور کښې کوم قومونه چه د متمدن کیدو دعویدار دی.آیا هغوی دخپلو دشمنانوخلاف لښکری حمله نه کوی؟ آیا هغوی دخپلو دشمنانوخلاف اعلان جنګ نه کوی؟ آیا دوی دهغوی په مالونو باندې قبضه نه کوی.اوبیا دغه مالونه په خپلوکسانو کښې نه تقسیموی؟ آیا هغوی خلق غلامان نه جوړوی؟په جنوبی افریقه کښې حکومت د سپینودې. ددوی ټوله آبادی څلور ملین ده.اوملك په حقیقت کښې د تورو دې.اودهغوی آبادی څلیرشت ملین ده.دا څلور ملین اقلیت په دې څلیرشت ملین خلقو باندې حکومت کوی. اوهغوی ئې غلامان جوړ کړی دی.هغوی ته حقوق ملکیت حاصل نه دی.په کومو کورونو کښې چه هغوی اوسیږی.هغه کچه دی.اوهغوی د هغې مالکان نه دی.اوپه کومو شنو او ګڼړو وېټو کښې چه هغوی کار کوی.دغه کارکونکی دهغې مالکان نه دی.کوم پیداوار چه په دغه پټو کښې کیږی.نودوی دهغې د خوراك نه محرومه ساتلی شی.هغوی صرف جوار خوری. امریکه ددغه حکومت حمایت کوی.برطانیه ددغه حکومت حمایت کوی.ولې دغه شان فلسطینیان امریکې،برطانې اوروس په شریکه د اسرائیلو د سازش په ذریعه دغلام جوړولو کوشش نه دې کړې.نوبیا په اسلام باندې کوم اعتراض دې.حالانکه داسلام عدل انصاف رواداری او رعایت دومره دې.چه بل څوك ددې تصور هم نشی کولې.جهاد که په اسلام کښې مشروع ګرځولې شوې دې.نودا ددې دپاره چه دالله باغیان خپل انجام ته اورسوی. اودهغوی په مالونوکه د مال غنیمت په صورت کښې قبضه اوکړې شی.نودا ددې دپاره چه د هغوی طاقت ختم کړې شی. او هغوی ته د فساد پیدا کولوموقع ملاؤ نشی.اوکه هغوی غلامان جوړ کړې شی.نو ددې دپاره چه دوی د اسلام په لارکښې رکاوټ جوړ نشی. خوپه اسلام کښې دغلام کیدو په صورت کښې دوی سره د ښه سلوك کولو ډیرتاکید شوې دې. د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.

((اخوانکم جعلهم الله فتیة تحت أیدیکم فمن کان أخوه تحت یده فلیطعمه من طعامه ویلبسه من لباسه ولایکلفه مایغلبه فإن کلفه مایغلبه فلیعنه)) ([1])
دا غلامان ستاسو ورونړه دی.الله تعالی دوی ستاسود لاندې د غلامانوپه حیثیت سره مقرر کړي دی. نودکوم کس لاندې چه دده ورور وي.نوهغه ته دې دخپل خوراك نه خوراك ورکوی. اود خپلو جامو نه دې ورته جامې اغوندوی.اوپه هغه دې دهغه د طاقت نه زیات بوج نه اچوی.که یوکس دهغه د طاقت نه زیاته ذمه واری هغه ته حواله کړی. نو په خپله دې ورسره شامل شی.اودهغه دې په دغه کار کښې مدد کوی.
بهرحال دلته په مغازی کښې د جهاد بحث راخی.اورسول اللهﷺ چه کوم جهادونه کړی دی.دهغې تفصیلات راخی.ددې وجې ما په اول کښې تاسو ته اوخودل.چه دا جهاد په عقلی توګه باندې هم او په تاریخی اعتبارسره هم اوپه شرعی نقطه نظرسره هم ټیك اوبیخی صحیح دي.اوددې په نتیجه کښې چه کوم قتل،سلب د مالونو،اودغلام جوړولو کوم صورت حال پیدا کیږی.هغه هم بیخی صحیح دې.اوپه اقوام عالم کښې ددې نظیرونه مسلم اوپه موجوده وخت کښې هم رائج دی.نود دې وجې د اسلام په نظریه جهاد باندې د اعتراض کولو ګنجائش نشته.
**دجهاد اوقتال د مشروعیت په باره کښې د ټولونه اولنې نازل شوې ایت:** دجهاد په باره کښې یوه خبره دا هم یاد ساتل پکار دی.چه نبیﷺ ترکومې پورې په مکه معظمه کښې وو.نود کافرانواومشرکانو زور ظلم زیاتی باوجود د ﴿فَاعْفُوا وَاصْفَحُوا حَتّٰى يَأْتِيَ اللّٰهُ بِأَمْرِهٖ﴾ حکم وو. دقتال اوجهاد اجازت نه وو ورکړې شوې.کله چه نبیﷺ مدینې منورې ته تشریف یوړو.نو د حضرت ابن عباسؓ د روایت مطابق کوم چه نسائی، ترمذی او احمد نقل کړې دې.([2])
اودغه شان د حضرت ابوهریرهؓ د روایت مطابق کوم چه منصف عبدالرزاق نقل کړې دې.دا آیت نازل شو.﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا ۚ وَإِنَّ اللّٰهَ عَلٰى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ۙ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِنْ

---

[1] ) الحدیث أخرجه الترمذی فی کتاب البر والصلة باب ما جاء فی الإحسان إلی الخدم رقم الحدیث ١٩٤٥ وقال هذا حدیث حسن صحیح وأیضا أخرجه البخاری فی کتاب الأدب باب ما ینهی عن السباب واللعن رقم الحدیث (٦٠٥٠) وفی کتاب الإیمان باب المعاصی من أمرالجاهلیة رقم ٣٠ وفی کتاب العتق باب قول النبیﷺ العبید إخوانکم فأطعموهم مما تأکلون رقم الحدیث (٢٥٤٥) وأخرجه ابن ماجه فی کتاب الأدب باب الإحسان إلی الممالیک رقم الحدیث (٣٦٩٠) وأبوداود فی کتاب الأدب باب فی حق المملوک رقم ٥١٥٨)

[2] )الحدیث أخرجه الترمذی فی کتاب التفسیر عن ابن عباس أنه قال لما أخرج النبیﷺ من مکة قال أبوبکر أخروا ا نبیهم لیهلکن فأنزل الله﴿ أذن للذین یقاتلون بأنهم ظلموا وإن الله علی نصرهم لقدیر﴾ الآیة فقال ابوبکرلقد علمت أنه سیکون قتال قال الترمذی هذا حدیث حسن (الجامع للإمام الترمذی (٣٢٥\٥) رقم الحدیث (٣١٧١) وأخرجه النسائی فی کتاب الجهاد(٥\٦\٢) وزاد قال ابن عباس فهو أول آیة نزلت فی القتال وأحمد فی مسند عبدالله بن عباسرضی الله عنهما (٢١٦\١) وأخرجه الحاکم فی المستدرک (٢٤٦\٢) فی کتاب التفسیر وأقره الذهبی)_

دِيَارِهِمْ بِغَيْرِ حَقٍّ اِلَّآ اَنْ يَّقُوْلُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ۭ وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَّصَلَوٰتٌ وَّمَسٰجِدُ يُذْكَرُ فِيْهَا اسْمُ اللّٰهِ كَثِيْرًا ۭ وَلَيَنْصُرَنَّ اللّٰهُ مَنْ يَّنْصُرُهٗ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ عَزِيْزٌ ۝ اَلَّذِيْنَ اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ وَاَمَرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ ۭ وَلِلّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ ۝ (١)

اوس دجنګیدو هغه خلقو ته اجازت ورکړې شو.چا سره چه کافران جنګيږی.ځکه چه په دوی باندې ډير ظلم شوې دې.اوبيشکه الله تعالى د دوی په مدد باندې قادر دې.دا هغه خلق دی.چه دخپلو کورونو نه بغير ځه وجې نه ويستلې شوی دی.صرف په دې خبره چه دوی وائی. زمونږ رب الله تعالى دې.اوکه الله تعالى خلق بعضې په بعضې نورو باندې نه دفع کول.نوپه پخوانئ زمانه کښې به د راهبانو خلوتخانې اود نصارو او يهوديانو عبادتخانې اوپه دې زمانه کښې د مسلمانانو جماتونه په کوموکښې چه په کثرت سره دالله تعالى نوم يادولې شی.ټول به نوړولې شوی وو.اوځوك چه د الله تعالى د دين مدد کوی.يقيناً الله تعالى به د هغه مدد اوکړی.اوبيشکه الله تعالى دقوت اوغلبې خاوند دې.دا خلق داسې دی.که مونږ دوی ته په دنيا کښې حکومت ورکړو.نو مونځ به قائموی.زکاة به ورکوی.اود نيکئ حکم به کوی.اود بدئ نه به منع کوی. او د ټولو کارونوپوره کول خو دالله تعالى په لاس کښې دی.

د ذکرشوو رواياتومطابق دا اولنې آيت دې.کوم چه د جهاد دپاره نازل شوې دې. او د بعضې حضراتو رائې دا ده.چه د جهاد دپاره اولنې آيت په دويمه پاره کښې د سورة بقره آيت ﴿وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ۝﴾ (٢)اوجنګ کوئ هغه کسانو سرد چه تاسو سره جنګ کوی.اوزياتې مه کوئ.بيشکه الله تعالى زياتى کونکی نه خوښوی.نازل شوې دې.

د نورو حضراتو رائې دا ده.چه د جهاد دپاره اولنې آيت ﴿اِنَّ اللّٰهَ اشْتَرٰى مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنْفُسَهُمْ وَاَمْوَالَهُمْ بِاَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ ۭ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيَقْتُلُوْنَ وَيُقْتَلُوْنَ﴾ الآية، (٣) بيشکه الله تعالى د مسلمانانو نه ددوی نفسونه او ددوی مالونه ددې خبرې په بدله کښې اخستی دی.چه دوی ته به جنت ملاويږی.اودوی به دالله تعالى په لارکښې جنګيږی.نور به هم قتلوی.اوپه خپله به هم قتليږی.نازل شوې دې.

ددې درې واړه آياتونو په باره کښې ونيلې شوی دی.چه دا د جهاد په باره کښې د ټولونه اول نازل شوی دی.(٤) خوراجح قول د اولنى آيت متعلق دې.(٥)

---

(١) سورة الحج:٣٩ تا ٤١)_

(٢) سورة البقرة :١٩٠)_

(٣) سورة التوبة :١١١)_

(٤) علامه آلوسى په روح المعانى کښې د ذکرشوی آيت په باره کښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما د روايت ذکرکولونه پس د باقی دوو آيتونو په باره کښې ليکی.،،

وأخرج ابن جرير عن أبي العالية إن أول آية نزلت فى القتال ﴿ وقاتلوا فى سبيل الله الذين يقاتلونكم ﴾ وفى الإكليل للحاكم إن أول آية نزلت فى ذلك ﴿ إن الله اشترى من المؤمنين ﴾ روح المعانى (١٤١٩) دغه شان اوګورئ (فتح البارى١٣/٨٠/٢)_

(٥) ځکه چه ددې متعلق روايات د عدد په اعتبار سره زيات اود سند په اعتبار سره اقوی دی)-

**دجهاد دوه قسمونه دفاعي اواقدامي:** په دې باره کښې يوه خبره دا هم ياد ساتل پکاردي.چه يو جهاد دفاعي دې.اوبل جهاد اقدامي دې.هغه جهاد دکوم چه په آيت ﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ﴾ کښې ذکر دې. دفاعي جهاد دې.او ﴿وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ کښې هم د دفاعي جهاد ذکردې.علامه شبلي نعماني رحمه الله د اقدامي جهاد نه انکار کړې دې.([1]) خودا سراسرغلط دې.ځکه چه په قرآن مجيد کښې د اقدامي جهاد په باره کښې ذکرشوې آياتونه هم موجود دي.

① ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ﴾ ([2])

② ﴿أَيْنَمَا ثُقِفُوا أُخِذُوا وَقُتِّلُوا تَقْتِيلًا﴾ ([3])

③ ﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ﴾ ([4])

دا درې واړه آيتونه په اقدامي جهاد باندې دلالت کوي.([5])

---

[1] ) نو شبلي نعماني مرحوم په خپل سيرت کښې غزوه بدر وغيره د اقدامي جهاد په ځاې دفاعي ګرځولې دي.اوپه دې باره کښې هغوی د جمهورو عالمانو مخالفت کړې دې.اوګورئ سيرة النبی (۱/۳۰۲)

[2] ) سورة التوبة :۵)_

[3] ) الأحزاب:۶۱)_

[4] )سورة الأنفال:۳۸)_

[5] ) په حقيقت کښې انګريزانودخپل استعمار په دور کښې په مسلمانانوکښې دجهاد جذبې سړولو دپاره د يومنظم شازش لاندې دا پروپيګنډه کړې وه.چه اسلام يو وينه تويونکې مذهب دې.اود خپل مطلق العنان حکمرانۍ په وجه په دنيا باندې خور شوې وو.ددې دپاره ئې د غلام احمد قادياني اودهغه د ملګروضميرنې واخستل.هغوی دجهاد د منسوخ کيدو ښه کوشش اوکړو.انګريزانوته ددې خبرې ويره وه.چه جهاد هميشه دپاره په مسلمانانوکښې د ايماني جوش اود تحريک اسلامي سبب دی.که ددې خلاف پروپيګنډه اونشوه.اوپه کوم وخت کښې هم په مسلمانانوکښې دا مذهبي جوش رابيدار شو.نوبيا ددې طوفان مخه نيول به دهغوی دپاره ګران شي.هم دا وجه ده.چه ډير مغرب زده مسلمانان بلکه بعضې اهل علم هم دهغوی د پروپيګنډې نه متاثره شول.اوداسلام ددفاع دپاره ئې معذرت خوانه لهجه اختيارکړه.اووې وئيل.چه اسلام د جهاد په صورت کښې چه دقتل او وينې تويولوکوم حکم ورکړې دې.نوهغه صرف دخپلې دفاع دحده پورې محدود دې.اوښکاره ده.چه د دنيا هرمذهب دخپل ضرورت دپاره د وينې تويولو فتوی ورکوي،،

خودا خبره د حقيقت نه خلاف ده.ځکه چه د اسلام پوره تاريخ د اقدامي جهاد د عنواناتونه ډک دې.اکثر هم اسلامي لښکراقدام کوي.نودغيرمسلمو ښارونوته دروازه ټکوي.د ټولونه وړاندې کافرانو ته د اسلام دعوت ورکوي.که هغوی اسلام قبول کړي.اودمسلمانانو ورونړه شي.اوکوم حقوق چه مسلمانانوته حاصل وي.په هغې کښې ورسره شريک شي.که هغوی اسلام قبول نکړي . نوبيا به هغوی په جزيه ورکولوباندې آماده کولې شي.اوکه د جزيه ورکولونه هم انکار اوکړي . نو بيا دريم او آخري صورت دجهاد او قتال دې.دا هم ددې اقدام نتيجه ده.چه په ځوکالونوکښې دننه دننه د قيصر اوکسری په محلاتو باندې داسلام بيرغ رپيدل.اود دنيا د مضبوط طاقتونه داسلامي حکومت لاندې شول،،

پخپله نبي صلی الله عليه وسلم د غزوه خندق نه پس ارشاد فرمائيلې وو.((نغزوهم ولايغزونا)) د نن نه پس به مونږ دې کافراتوته د جنګ دپاره ورځو.اوهغوی به راسره جنګ نه کوي.هغوی به حمله کولوکښې په مونږ باندې وړاندې والی زړه نشي کولې.(صحيح بخاری کتاب المغازي[بقيه حاشيه په راروان مخ....

اواقدامی جهاد بیخی دعقل مطابق دي.ځکه چه د جان او مال ډاکوان موجود وی.نو ددې نه وړاندې چه هغوی حمله اوکړی.دهغوی ختمول د عقل او هوښیارتیا عین مطابق دي.دغه شان که د ایمان ډاکوان اوپه ایمان باندې حمله کونکی موجود وی.نووړاندې ددې نه چه هغوی حمله اوکړی.اقدام کول اودهغوی ختمول عین عقلمندی ده.اولکه څنګه چه ډاکوان، ماتونکی ښناور،اوزهریله ښناور،مار،لړم،که چرته موجود وی.نود هغې دحملې کولونه وړاندې دهغې خاتمه کول ضروری دی.اوکه انتظاربه کولې شی.چه هغوی په مونږ باندې حمله اوکړی.نوبیا به مونږ خپله دفاع کوو.اودهغې نه وړاندې به په هغې باندې اقدام نه کوو.نودا انتظارنشی کولې.بلکه د ((قتل الموذی قبل الإیذاء)) په اصولوبه عمل کول ضروری وی.ځکه دفاعی جهاد هم مشروع او ثابت دې.اواقدامی جهاد هم.

**دجهاد اداب:** ددې نه پس په دې پوهه شئ.چه د جهاد آداب څه دی؟ په دې باره کښې د قرآن شریف دا آیت زمونږ پوره راهنمائی کوی.

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۝ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ ۝ وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ خَرَجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ بَطَرًا وَرِئَاءَ النَّاسِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَاللَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ۝﴾ (١)

---

.....دتیرمخ بقیه] باب غزوة الخندق (ص.۵۹۰)،،

د دې نه پس د الله تعالی پیغمبر علیه السلام اقدام اوکړو.اومکه ئې فتح کړه.دغه شان غزوه بدراود نبی صلی الله علیه وسلم آخری غزا تبوك هم په اقدامی زمره کښې راځی،،

دا خبره په خپل ځاې باندې صحیح ده.چه اسلام د امن او صلحې مذهب دې.خوددې امن اوصلحې د ثابتولودپاره د اسلام د یوبدیهی حکم نه انکار ته ضرورت نشته.اودا خبره هم یوحقیقت دې.چه اسلام د تورې په زور باندې نه دې خور شوې.د ده دا ښکاره اعلان دې.چه ﴿لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَدْ تَبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ﴾ دې دخپل ښکلې ضابطه حیات،اود ژوند په ټولوشعبوباندې جامع اصولوپه وجه عام شو.نورو قومونو هم په دې وجه دا قبول کړو.(د دارالعلوم دیوبند مهتمم حضرت مولانا حبیب الرحمن عثمانی په دې موضوع باندې یومستقل کتاب ،،کیا اسلام تلوار کے زور سے پھیلا؟،، په نوم باندې کتاب لیکلې دې.په کوم کښې چه ئې دا خبره په تاریخی اومضبوط دلائلو سره ثابته کړې ده.چه په قومونواوملکونوکښې د اسلام خوریدل د تورې د زور نتیجه نه ده.بلکه دا ددغه ذاتی کشش اوخوبی ده) خوپه دې کښې هم څه شك نشته.چه کله د اسلام داشاعت په لاره کښې دکفر قوتونه رکاوټ کیږی.نوبیا د دې ((خاشا ک غیرالله)) ته پوهکې ورکول او د اسلام د تبلیغ په لار کښې د رکاوټ ختمولودپاره اسلام هم د اقدام حکم کړې دې.اوچونکه د کفر اواسلام جنګ به همیشه دپاره وی.ددې وجې ،،اقدام،، د پوره امت په ذمه د فرض کفایه په حیثیت سره فرض کړې شوې دې.نوپه مسلمانانوکښې یوه ډله داسې پکار ده.چه کومه د امت مسلمه د طرفه دا فریضه ادا کوی.اوهم دې طرف ته نبی صلی الله علیه وسلم اشاره کوی.اوفرمائی.چه ،،

الجهاد ما ض منذ بعثني الله إلى أن يقاتل آخر أمتي الدجال لايبطله جور جائرولا عدل عادل،(رواه ابوداود في كتاب الجهاد باب في الغزو مع أئمة الجور رقم الحديث (٢٥٣٢)،،

اوفرمائیلی ئې دی،((لا تزال طائفة من أمتي يقاتلون على الحق الظاهرين على من ناواهم حتى يقاتل آخرهم المسيح الدجال (رواه أبوداود في كتاب الجهاد باب في دوام الجهاد رقم الحديث ٢٤٨٤)_

١) سورة الأنفال :٤٥تا ٤٧)_

اې دايمان خاوندانو! كله چه ستاسود يوې ډلې سره د مقابلې موقع راشي.نو(ددې آدابو خيال ساتئ.چه) په جهاد كښې ثابت قدم اوسيږئ.اود الله تعالى ډير ذكر كوئ. دې دپاره چه تاسوكامياب شئ.اوالله اودهغه د رسول د اطاعت خيال ساتئ.اوپه خپل مينځ كښې جهګړه مكوئ.ځكه چه په دې سره به تاسو بزدله شئ. اوستاسو باد به لاړ شي. او صبر كوئ.بيشكه الله تعالى د صبر كونكو سره دې.اودهغه كافرانو پشان مه كيږئ.(كوم چه هم په دې واقعه د بدركښې) دخپلو كورنونه په تكبر سره راوځي.اوخلقوته دښودنې دپاره راوځي.اوخلق دالله تعالى د لارې نه منع كول غواړي.اوالله تعالى ته د هغوى د ټولواعمالو علم دې.

دا آيت په دې خبره باندې دلالت كوى.چه مجاهدينوته پكار دى.چه دالله تعالى د ذكر ډيراهتمام كوى.دا آيت په دې خبره هم دلالت كوى.چه مجاهدينو لره د صبراوتحمل نه كار اخستل پكار دى.دغه شان دا آيت دلالت كوى.چه مجاهدين دې غرور،فخر اوتكبرنه اختياروى.اودا آياتونه مونږ ته ښائى.چه مجاهدينوته پكار دى.چه الله اودالله د رسول د اطاعت لمن اونيسى.په دې صفاتو سره جهاد كول پكار دى.اوهم دا د جهاد آداب دى.([1])

**دجهاد غرض او مقصد:** اوس ددې نه پس دا خبره په ذهن كښې اوساتئ.چه د جهاد غرض او غايت او مقصد څه دې؟ دجهاد غرض اوغايت صرف اعلاء كلمة الله دې.د نبى ﷺ نه تپوس اوشو.چه يوكس د خپلې مړانې اوبهادرئ ښودلو دپاره قتال كوى.اويوكس د خپل وطن او قوم اوقبيلې په تعصب كښې (چه د اعلاء كلمة الله د جذبې نه خالى وى) قتال كوى.

په دوى كښې مجاهد فى سبيل الله كوم دې؟ نبى ﷺ اوفرمائيل.((من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا فهو فى سبيل الله)) ([2])اوكه يوكس دخپل قوم او وطن د حفاظت دپاره جهاد په دې غرض باندې كوى.چه دا د قوم مسلمانانو قوم دې.اودا وطن دمسلمانانو وطن دې.نو دا به جهاد فى سبيل الله وى.ځوكه داسلام د خيال ساتلونه بغير صرف د قوميت او وطنيت په بناء باندې جنګيږى.نودا به جهاد فى سبيل الله نه وى.

---

[1] ) نبى ﷺ فرمائيلى دى.(الغزو غزوان:، فأما من ابتغى وجه الله وأطاع الإمام وأنفق الكريمة وياسرالشريک واجتنب الفساد فإن نومه ونبهه أجركله وأما من غزا فخراً ورياءً وسمعة وعصى الإمام وأفسد الأرض فإنه لم يرجع بالكفاف ) رواه ابوداود فى كتاب الجهاد، باب فيمن يغزو ويلتمس الدنيا رقم الحديث ۲۵۱۵)_

[2] )الحديث أخرجه البخارى فى الجهاد باب من قاتل لتكون كلمة الله هي العليا رقم ۲۸۱ وفى الخمس باب من قاتل للمغنم هل ينقص ممن أجره رقم ۳۱۲۶ وفى العلم باب من سأل وهو قائم عالماً جالساً رقم ۱۲۳ وفى التوحيد باب قوله تعالى ﴿ ولقد سبقت كلمتنا لعبادنا المرسلين ﴾ رقم ۷۴۵۸ وأخرجه مسلم فى كتاب الإمارة باب من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا رقم ۴۸۸۲ و۴۸۸۳ و ۴۸۸۴ و۴۸۸۵ وأخرجه أبوداود فى كتاب الجهاد باب من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا رقم ۲۵۱۷ والترمذى فى فضائل الجهاد باب ما جاء فيمن يقاتل رياءً وللدنيا رقم ۱۶۴۶ وابن ماجه فى الجهاد باب النية فى القتال رقم ۲۷۸۳ والنسائى فى الجهاد باب من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا (۲/۵۷)_

امام بخاری ﷫ یو باب قائم کړې دې.((باب لا یقول فلان شهید)) (۱)اوپه هغې کښې ئې یوه واقعه نقل کړې ده.چه یوکس کوم چه په پټه منافق وو.اودهغه نوم ،،قزمان ،، وو.(۲) هغه دمسلمانانو سره ملګرې شو.ښه جهاد ئې اوکړو.اوکافرانوته ئې ښه نقصان اورسولو. مسلمانانو ددغه کس په باره وئیل شروع کړل.چه ((ما أجزء منا الیوم أحد کما أجزأ فلان)) یعنی قزمان چه کومه کارنامه اوکړه.داسې کارنامه نن چا نه ده کړې.کله چه نبی ﷺ دغه خبره واوریده.نو وې فرمائیل.((أما أنه من أهل النار)) خودا کس جهنمی دې.دا کس په جنګیدو جنګیدو کښې ډیرزخمی شو.اومرګ ته نزدې شو.نوحضرت قتاده بن نعمان ﷜ دمرګ په وخت کښې ده ته ورغلو.اووې وئیل.((هنیألك الشهادة)) نوهغه اووئیل. ((والله إنی ما قاتلت علی دین وإنما قاتلت علی حسب قومی)) زه خو د ددین اسلام دپاره نه جنګیدم.بلکه زه د خپل قوم په حمیت کښې جنګیدم.په دې سره.د رسول الله ﷺ پیشنګوئی صحیح ثابته شوه.(۳)

---

۱)جامع بخاری کتاب الجهاد باب نمبر:۷۷ (۴۰۶\۱)_

۲)ددغه کس نوم ،،قزمان ظفری (بضم القاف والظاء) اوکنیت ،،ابوالغیداق،، وو.(فتح الباری (۴۷۳\۷)

۳)د صحیح بخاری ذکر شوو بابونو کښې دغه شان په نورو کومو کومو خایونوکښې چه امام بخاری ددې حدیث تخریج کړې دې.هلته واقعه څه داسې ده.چه کله نبی ﷺ ددغه کس په باره کښې اوفرمائیل.((أما أنه من أهل النار)) نو په صحابو﷡ کښې یوکس دده دعمل کتلو دپاره په دې غرض دقزمان سره سره اوسیدو.په جنګ کښې چه قزمان به چرته تلو.نو هغه به ورسره هم وو.کله چه قزمان سخت زخمی شو.اود زخمونو تاب ئې نشو راوړې.نوخپله توره ئې په زمکه کښې ښخه کړه.اود توری په سوکه ئې خپله سینه کیخوده.اوپه هغې ئې خپل وزن ورواچولو.توره دهغه د بدن نه اخوا ته اووتله.اودغه شان خودکشی ئې اوکړه.اوختم شو.ورسره چه کوم صحابی وو(چه دهغه نوم علامه ابن حجر اکثم بن ابی الجون ﷜ لیکلې دې.فتح الباری(۴۷۳\۷) دنبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو. او د هغه د خودکشۍ خبرئې ورکړو،،
په تقریر کښې ذکرشوې د قتاده بن نعمان ﷜ واقعه حافظ ابن حجر د علامه ابن الجوزی ﷫ په حوالې سره نقل کړې ده.خو په آخر کښې ئې دا هم لیکلی دی.((وهذا الذی نقله أخذه من مغازی الواقدی وهو لا یحتج به إذا إنفرد فکیف إذا خالف (فتح الباری(۴۷۶\۷)).
د ابن جوزی ﷫ خیال دې.چه ذکرشوې واقعه د جنګ احد ده.اوپه صحیح بخاری کښې د ابوهریره﷜ هغه روایت په کوم کښې چه د زهری نه شعیب روایت کړې دې.اودکوم متابعت چه معمرهم کړې دې.په هغې کښې د ((شهدنا:خیبر)) تصریح ده.البته د زهری نه د یونس په روایت کښې د خیبر په ځاې د ،،حنین،، تصریح ده.(اوګورئ صحیح بخاری (۷۲۱\۱) کتاب المغازی باب غزوة خیبر رقم الحدیث (۴۲۰۳و ۴۲۰۴) اوپه صحیح مسلم کښې د ،،معمرعن الزهری،، په روایت کښې هم د ،،حنین،، ذکردې.(صحیح مسلم (۷۲\۱ کتاب الإیمان) خوشارح د مسلم امام نووی ﷫ د قاضی عیاض﷫ قول نقل کړې دې.چه ،،حنین،،غلط دې.((قال القاضی عیاض صوابه خیبر)) اوګورئ شرح نووی (۷۳\۱) بهرحال واقعه د واقدی او ابن جوزی رحمهما الله په قول که د ،،احد،، وی.یا د شعیب اومعمر رحمهما الله د روایت مطابق که د ،،خیبر،، وی.یا د یونس[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

سردار كائنات ﷺ ته چه كله دهغه حال اوخودلې شو.چه هغه داسې وائى.اوهغه خودكشى اوكړه. نو نبى ﷺ اوفرمائيل.((إن الله ليؤيد هذا الدين بالرجل الفاجر)) [1]امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې هم ددې خودلو دپاره نقل كړې ده.چه ترڅوپورې دالله تعالى په لار كښې كلمې اوچتولو دپاره جهاد اونكړې شى.نوترهغه وخته پورې هغې ته جهاد فى سبيل الله نشى وئيلې.

غرض دا چه جهاد صرف هغه دې.چه په هغې كښې ټول قوت او طاقت دې دپاره خرچ كولې شى.چه دالله تعالى نوم اوچت شى.اود الله تعالى په دين باندې عمل كونكى خلق په آرام او سكون سره په دې باندې عمل اوكړى .چه نه څوك په دې پورې استهزاء كوى.اونه څوك ټوقې كوى.اونه څوك ددوئ په عبادت كښې دخل اندازكيدې شى.د جهاد دا مقصد دې.

**اسلام په زور او توره نه بلكه په خپل صداقت او خوبيانو سره خور شوې دې:** اوس دلته دوه مسئلې دى.يوه دا چه د اسلام دشمنانود جهاد په حوالې سره دا خبره مشهوره كړې ده.چه اسلام د تورې په زور سره خور شوې دې.لكه چه د اسلام خپل صداقت ددې د خوريدو سبب نه دې.

دا اعتراض بيخى غلط دې.اويه دې كښې هيڅ حقيقت نشته.ځكه چه نبى ﷺ كله د اسلام دعوت شروع كړو.نو دوى يواځې وو.نه د نبى ﷺ سره اقتدار وو.اونه ددوى په لاس كښې توره وه.

رسول الله ﷺ چه كله داسلام دعوت شروع كړو.نو هغه كسان چه دوى به ئې ،،صادق اوامين،، ګڼړل.هم هغوى ئې دشمنان شول.اودخاندان هغه كسان چه عام طور دخاندانى تعلق په وجه مدد كوى.هغوى هم په دشمنئ او بغض كښې وړاندې وړاندې وو.په هغه وخت كښې رسول الله ﷺ دعوت وركړو.اوقسم قسم تكليفونه ئې برداشت كړل.د ظلم او ستم څه قسم داسې پاتې نشو.كوم چه كافرانو د دوى خلاف نه وى كړې.خوددې باوجود حضرت ابوبكر رضى الله عنه ايمان راوړو.حضرت عمربن الخطاب رضى الله عنه ايمان راوړو.حضرت عثمان بن عفان،

---

...دتيرمخ بقيه حاشيه] د روايت مطابق كه د ،،حنين،، وى.خويه دې كښې دڅا هم اختلاف نشته.چه دغه خودكشى كونكې كس د جهاد اوشهادت په تمنا باندې نه جنګيدل.بلكه د قوم د حميت په وجه په جنګ كښې شريك وو.هم ددې نقطه نظر په بنياد امام بخارى رحمه الله د دې حديث ،ترجمة الباب،، ((لايقول فلان شهد)) په عنوان قائم كړو.حافظ ابن حجر رحمه الله دترجمة الباب اوحديث مناسبت بيانوى اوليكى.،،

ووجه أخذ الترجمة منه أنهم شهدوا برجحانه فى أمرالجهاد فلوكان قتل لم يمتنع أن يشهدوا له بالشهادة وقد ظهر منه أنه لم يقاتل لله وإنما قاتل غضباً لقومه.فلا يطلق على كل مقتول فى الجهاد أنه شهيد.لإحتمال أن يكون مثل هذا (فتح البارى(٦/٩٠) كتاب الجهاد)_~

[1] )الحديث أخرجه البخارى فى كتاب الجهاد باب لايقول فلان شهيد رقم الحديث (٢٨٩٨) وفى المغازى باب غزوة خيبر رقم الحديث (٤٢٠٢و ٤٢٠٣) من حديث سهل بن سعد الساعدى و أبى هريرة وفى كتاب الرقاق باب الأعمال بالخواتيم وما يخاف منها رقم الحديث (٦٤٩٣) وفى كتاب القدرباب العمل بالخواتيم رقم الحديث (٦٦٠٦و ٦٦٠٧) وأخرجه مسلم فى كتاب الإيمان باب بيان غلظ تحريم قتل الإنسان نفسه وإن من قتل نفسه بشئ عذب به فى النار (٢١١/ ٧)_

حضرت علي بن ابي طالب،حضرت طلحه بن عبيدالله، حضرت عبدالرحمن بن عوف، حضرت زبيربن العوامﷺ او نورو ډيروحضراتو ايمان راوړل.کوم چه د اسلام پرقيدونکی ستوری دی.کوم زور وو په هغه وخت کښې چه خلق ئې د اسلام په قبلولو باندې مجبوره کول؟ کومه توره وه.چه هغوی ئې د اسلام په قبلولو باندې مجبوره کول. دوی اسلام راوړو. نودمصيبتونو ښکار شول.په امتحان کښې پريوتل.خو ددې مصيبتونو او امتحاناتو باوجود هغوی اسلام پرې نخودل.نودا ونيل چه اسلام د تورې په زور باندې خور شوې دې.غلطه ده.

دويمه خبره دا ده.چه دا خلق چه کوم اعتراض کوی.نو دې جاهلانوته دا معلومه نه ده.چه په زور اوزياتي په ذريعه چه کوم اسلام قبول کړې شي.هغه معتبر نه وی.که ته دا واې.چه اسلام د تورې په زور سره خور شوې دې.نو ددې مطلب به دا وی.چه په زور باندې خلق مسلمانان ګرخولی شوی دی.د زړه په خوشحالئ سره هغوی اسلام نه دې قبول کړې.نوتاته دې دا خبره معلومه وی.چه کوم سړې صرف د ويرې د وجې د اسلام کلمه وائی.يا د څه طمعې او لالچ دپاره اسلام قبول کړی.نوهغه عندالله مسلمان نه دې.په قرآن مجيد کښې فرمانيلی شوی دی.﴿ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَاٰمَنَ مَنْ فِي الْاَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيْعًا ۭ اَفَاَنْتَ تُكْرِهُ النَّاسَ حَتّٰى يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ۝﴾ (۱)اوکه ستا رب غوستل نو په مخ د زمکې به چه څومره خلق دی.ټولو به ايمان راوړې وې.آيا ته په خلقو باندې زور کولې شې.چه دوی ټول مسلمانان شي.

ايمان هغه معتبر دې.کوم چه په شوق او رغبت سره وی.په کوم کښې چه څه طمع څه لالچ او څه ويره نه وی.څه مجبوری نه وی.ددې وجې په زورسره د اسلام د خوريدو څه امکان نشته.

دريمه خبره دا ده.چه مونږ ته دې اوخودلې شي.چه آيا کوم کسان چه په زور او ظلم سره مسلمانان کړې شی.آيا هغوی داسلام دپاره داسې قربانئ ورکولې شی.څنګه چه صحابه کراموﷺ ورکړې وې.په زور او زياتی سره اسلام قبلونکو ته چه کله موقع ملاويږی.نو هغوی د اسلام نه خارجيږی.دهغوی نه خو د اسلام دپاره د قربانئ ورکول هيڅ تصور نشی کيدې.هغوی هميشه دپاره د تيختې لار لټوی.اوصحابه کرامﷺ چا چه اسلام قبول کړې دې.هغوی د اسلام دپاره خپل کورونه پريخودی دی.خپل عزت او آبرو ئې لوټ کړې ده.د خپلو ځانونو قربانئ ئې پيش کړی دی.هغوی د اسلام دپاره هرقسم تکليفونه برداشت کړی دی.نو چه کوم خلق د اسلام دپاره هرقسم تکليفونه برداشت کوی .دهغوی په باره کښې يو دعقل خاوند دا څنګه ونيلی شی.چه هغوی په زور او زياتی سره اسلام قبول کړو.

ددې نه علاوه نبی ﷺ په مکه مکرمه کښې ديارلس کاله تيرکړی وو.د مکې مکرمې د قيام په زمانه کښې ۸۳ سړو او ۱۷ ښځو حبشې طرف ته دخپل حفاظت دپاره هجرت کړې وو.(۲) نو که هغوی په زوره باندې مسلمانان جوړولی شو.نو اول خو په مکه کښې په زور د

---

(۱)يونس:۹۹)_

(۲)په دې هجرت کښې د عربو دځو قبيلو کسان شامل وو.د بنوهاشم نه يو د بنو اميه اود دوی حليف قبيلو نه اووه،د بنو عبدالشمس نه دوه،د بنو نوفل نه يو،د بنو اسد نه څلورو، د عبدبن قصی نه يو ،د بنو عبدالديارنه پنځه،د بنو زهره او ددوی د حلفاؤ نه[بقيه حاشيه په راروان مخ....

مسلمانولو موقع كوم ځاې وه.په هغه وخت كښې د اسلام په لاس كښې نه اقتدار وو.او نه توره،دويمه خبره دا ده.چه هغوى د خپل اسلام دحفاظت دپاره حبشې ته هجرت ولې كړې وو.اوبيا چه حبشه ته اورسيدل.نوچه دحضرت جعفرطيار رضي الله عنه تقريرنې[2] واوريدو.اصحمه[1] كوم چه د حبشې بادشاه وو.مسلمان شو.په هغه باندې كوم زور وو.

---

....دتيرمخ بقيه حاشيه] شپږ د بنو تميم نه دوه، د بنومخزوم او دهغوى د حلفاؤ نه اته،د بنوجمح نه يوولس،د بنو تميم نه څوارلس،د بنو عدى نه پنځو،اود بنو عامر اوبنو حارث نه اته اته سړي شامل وو.دغه شان چه حضرت عمار رضي الله عنه په كښې شامل كړې شي.نودا درې اتيا كسان جوړيږي.ګنى بيا دوه اتيا،دوى كښې اوولس ښځې هم شاملې وې.ابن هشام په خپل سرت كښې د هجرت كونكو سړو او ښځو تفصيلي ذكرنه پس ليكى.((فكان جميع من لحق بأرض الحبشة وهاجر إليها من المسلمين سوى أبنائهم الذين خرجوا بهم صغاراً أو ولدوا بها ثلاثة وثمانين رجلاً إن كان عماربن ياسر رضي الله عنه فيهم وهو يشک فيه (السيرة النبوية لإبن هشام (١\٣٣٠)-~

[1] )أصفحة بن أبجر النجاشي ملک الحبشة وإسمه بالعربية عطية،والنجاشي لقب له ،أسلم على عهد النبى صلى الله عليه وسلم ولم يهاجر إليها وكان ردا للمسلمين نافعاً (الإصابة فى تمييزالصحابة (١\١٠٩)_

[2] )حضرت جعفر رضي الله عنه په دې تقريركښې دجاهليت د زمانې وحشت او داسلامى اقدارو داسې ښكلې تصوركشي كړې ده.چه دغه تقرير د جامعيت بيان نمونه ده.د عربى ادب ښكلې ګلدسته،اود تاريخ اسلام يو قيمتى شهادت جوړ شوې دې.د هغې ابتدائى څه حصه دا ده،،

((أيها الملک كنا قوماً أهل جاهلية نعبدالإصنام، ونأكل الميتة ونأى الفواحش ونقطع الأرحام، نسئ الجوار،ويأكل القوى منا الضعيف.فكنا على ذلک حتى بعث الله إلينا رسولاً منا،نعرف نسبه،وصدقه وأمانته وعفافه. فدعانا إلى الله لتوحده،ونعبده،ونخلع ما كنا نعبد نحن وأباؤنا من دونه من الحجارة والأوثان وأمرنا بصدق الحديث وأداء الأمانة وصلة الرحم، وحسن الجوار، و الكف عن المحارم والدماء . ونهانا عن الفواحش وقول الزور وأكل مال اليتيم وقذف المحصنات وأمرنا أن نعبدالله وحده لا نشرک به شيأ وأمرنا بالصلاة والزكاة والصيام . فصدقناه وآمنا به واتبعناه على ما جاء به من الله .فعبدنا الله وحده، فلم نشرک به شيأ وحرمنا ما حرم علينا وأحللنا ما أحل لنا. فعدا علينا قومنا فعذبونا وفتنونا عن ديننا ليردونا إلى عبادة الأوثان من عبادة الله تعالى وأن نستحل ما كنا نستحل من الخبائث فلما قهرونا وظلمونا وضيقوا علينا ،وحالوا بيننا و بين ديننا،خرجنا إلى بلادک وأخترناک على من سواک ورغبنا فى جوارک ورجونا أن لا نظلم عندک أيها الملک (السيرة النبوية لإبن هشام (١\٣٣٦)،،

په پښتو كښې ددې مفهوم دا دې،،اې بادشاه مونږ جاهلان وو.دبتانوعبادت به مو كولو.مردارې به مو خوړلې.دبې حياې كارونه به مو كول.خپلولۍ به مو كټ كولې.ګاونډيانو سره به مو بد سلوك كولو.مضبوط به كمزورې خوړل.نو دجاهليت هم دغه وحشت ښكار وو.چه الله تعالى هم په مونږ كښې يو پيغمبر راوليږلو. داسې پيغمبرچه دهغه حسب اونسب،د هغه صدق اوديانت، دهغه امانت او عفت دټولونه مونږ ښه خبر وو.هغه مونږ ته د توحيد ربانى او عبادت الهى دعوت راكړو.مونږ او زمونږ پلار نيكونو چه د كومو بې روحه ګاڼرو او بتانوعبادت كولو.د هغې ټولو دپريخودو خودنه نې راته اوكړه.دخبرې د رښتيا كولو اوخپلوانو سره خپلولۍ ساتلو،اودګاونډيانو سره د حسن سلوك كولو.اد حرامو نه د بچ كيدو، اود فساد او وينې توېولو نه د منع كيدو حكم نې راته اوكړو.د بې حيائي نه نې مونږ منع كړو.د ناجائزه وينا كولو ممانعت نې اوكړو.ديتيم د مال خوړلو نه نې منع كړو.په پاكدامنو ښځوباندې دتهمت لګولونه د بچ كيدو تاكيد نې[باقى حاشيه په راروانه صفحه...

حضرت ابوذره غفاري رضي الله عنه په ابتداء.داسلام کښې په مکه مکرمه کښې د نبي ﷺ په خدمت کښې حاضرشو.اواسلام ئې قبول کړو.اوواپس لاړو.خپلې قبيلې غفار ته ئې تبليغ اوکړو.نو نيمه قبيله دده په دعوت باندې مسلمانه شوه.(١)

دغه شان حضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه مدينې منورې ته تشريف اوړې وو.اود دوی په دعوت سره د بنو عبدالاشهل پوره قبيله مسلمانه شوه.(٢) هلته کوم يو زور وو؟

په انصاروکښې اويا کسان د حج په موقع د نبي ﷺ په لاس باندې مسلمانان شوی وو.(٣) هلته کوم زور وو.نودا وئيل چه اسلام په جبر او زور باندې خور شوې دې.بيخي غلطه ده.

ددې نه علاوه تاسو دا هم وئيلې شئ.که اسلام په زور باندې خور شوې وی.نوموږ ته دا اوښائې.چه عيسايانواو يهوديانو په څوځاپونو کښې حکومت کړې کړې.اوهغوی د عيسائيت اويهوديت د خورولو دپاره ښه پوره کوشش کړې دې.دوېرې حربه ئې استعمال کړې ده.دطمعې او لالچ جال ئې خور کړې دې.خوددې باوجود عيسائيت او يهوديت ته دومره ترقي نه وه حاصله شوې.څومره چه اسلام ته حاصله شوې ده.که چرته دا خبره وی. نو بيا خو پکارده.چه يهوديت او عيسائيت هم دومره خور شوې وو.څومره چه اسلام خور شوې دې.نن تاسو يورپ ته لاړ شئ اوګورئ نوحيران به شئ.چه انګريزان چا چه د برصغير نه داسلام او دمسلمانانو نوم ختمول غوستل.د هغوی په خپل ملك کښې نن په سوونو جماتونه

---

.....دتيرمخ بقيه حاشيه] راته اوکړو.او موږ ته ئې حکم اوکړو.چه موږ دالله تعالی سره څوك نه شريك نکړو.صرف دهغه عبادت کوو.اومونځ کوو.او زکاة ورکوو.او روژې نيسو،،

نوموږ دهغه تصديق اوکړو.په هغه باندې مو ايمان راوړو.اودالله تعالی د طرفه چه هغوی څه راوړل.دهغې تابعداری مو اوکړه.نو اوس موږ صرف دالله تعالی عبادت کوو.اود شرك نه بچ کيږو.حلال ،حلال ګنړو.اودحرامو نه منع کيږو.هم ددې وجې زموږ قوم زموږ دشمنان جوړ شول.موږ ته ئې تکليفونه رارسول.اوموږ ئې دخپل دين په باره کښې په قسم قسم امتحانانو کښې اچولو.هغوی غواړی چه موږ بيا د بتانو عبادت شروع کړو.بيا خبائث حلال ګنړل شروع کړو،.اويوخل بيا په دې کښې آخته شو.کله چه هغوی په موږ باندې د زور زياتی انتهاء اوکړه.او په موږ باندې ئې زمکه تنګه کړه.او زموږ د دين په مينځ کښې حائل شول.نو موږ ستا ملك طرف ته راوُوتو.اوستا په ګاوندتوب کښې مو رغبت اوکړو.او ټول موپريخودل.ته مو خوښ کړې.زموږ اميد دې.چه تاسو سره يو.نوپه موږ به ظلم نه کيږی،،

ددې جوش پيدا کونکی تقرير نه پس حضرت جعفر رضي الله عنه د سورة مريم ابتدائی آياتونه اولوستل.د نجاشي سترګې داوښکو نه ډکې شوې.دهغه شاهانه سترګو د اسلام رڼرا اوليده،دهغه زړه د اسلام د حقانيت ګواه جوړ شو.اودهغه ژبې د ((أشهد أن لا إله إلا الله وأن محمداً عبده ورسوله)) اووئيل. اود خپل خان دپاره ئې د سعادت ابدی اعلان اوکړو.په رجب نهمه هجری کښې کله چه نجاشي وفات شو.نو نبي ﷺ صحابه کرام رضي الله عنهم په بقيع کښې جمع کړل.اودهغه د جنازې مونځ ئې اوکړو.(دتفصيل دپاره اوګورئ سيرت ابن هشام (١\٣٣٤تا ٣٤٣)_~

(١) صحيح مسلم (٢\٢٩٦)_

(٢) اوګورئ سيرت ابن هشام (١\٣٤٧)_~

(٣) سيرة ابن هشام (١\٤٤٣)_

موجود دی.چرچ خرخيږی.اومسلمانان هغه اخلی.او جماتونه ترې جوړوی .يواځې په لندن ښار کښې څلور سوه جماتونه دی.
دا صورت حال ښکاره ده چه د زور،ويرې،او تورې نه دې.خلق په خپل شوق سره په اسلام کښې داخليږی.حالانکه نن صبا مسلمانان د اسلام پوره نمائندگان هم نه دی. د صحابه کرامو رضی الله عنهم په دور کښې خود اسلام ښکاره داسې شخصيات موجود وو.چه خلقو به دهغوی اعمال او اخلاق کتل.نو مسلمانيدل به،ددې وجې د جبر اواکراه څه احتمال او سوال نشته.
ددې نه علاوه يوه بله خبره هم په دې باره کښې کولې شی.هغه دا چه داسلام دا حکم دې.که په يوکافرباندې توره کيخودې شی.اوهغه کلمه اووئيله.نوبيا دهغه قتلول جائز نه دی.اګرچه هغه دغه کلمه صرف دخپل ځان د بچ کولو دپاره وئيلې وی.اوپه حقيقت کښې هغه ايمان نه وی راوړې.يا په اصل کښې هغه اسلام کښې نه وی داخل شوې.په دواړو صورتونوکښې د هغه قتل جائز نه دې.انسان ته خپل ځان خوښ وی.هغه دخپل ځان د بچ کولو دپاره ډير دروغ وائی.دلته هم که صرف د ځان بچ کولودپاره ئې کلمه وئيلې وی.اود زړه نه ئې اسلام نه وی قبول کړې.اوروسته د کفرپه دين باندې قائم پاتې شی.نودلته څه زور نشته.چه دې په زور سره مسلمان کړی.
حضرت خالدبن وليد رضی الله عنه داسې کسان قتل کړی وو.چا چه دمسلمانيدو اقرار کړې وو.(١)
کله چه نبی ﷺ ته ددې علم اوشو.نو ډير خفه شو.اووې فرمائيل.((اللهم إنی أبرأ إليك مما صنع

---

١ )په شوال اتمه هجری تح مکې نه پس او د غزوه حنين نه وړاندې نبی ﷺ دحضرت خالدبن وليد رضی الله عنه په قيادت کښې دانصارو او مهاجرينو درې سوه اوښخوسو کسانويو لښکرېنوجذيمه طرف ته د دوعوت اسلام په غرض اوليږل.هغه خلقو د اسلام اقرار په صحيح طريقه سره نشو کولې.د ((أسلمنا)) مونږ اسلام قبول کړو.په ځاې ((صبأنا)) (مونږ خپل دين بدل کړو) اووئيل.ځکه چه د قريشو کافرانوبه د اسلام قبلونکی دپاره د ((أسلم فلان)) په ځاې ((صبأ فلان)) لفظ استعمالولو .
د دې وجې بنو جذيمه د اسلام اقرار په ((صبأنا.. صبأنا)) لفظ ونيلو سره اوکړو.د((صبأ)) معنی د يو دين نه بل دين ته وتلو ته وائی.چونکه په دې لفظ کښې د اسلام داقرار مفهوم ښه واضح نه دې.ددې وجې خالد بن وليد په هغوی کښې بعضې قتل کړل.کله چه نبی ﷺ ته ددې خبر اوشو.نو ډير خفه شو.او وې فرمائيل. ((اللهم إنی أبرأ إليک مما صنع خالد)) اوبيا نبی ﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته مال ورکړو.او بنوجذيمه ته ئې اوليږل.اودغه ټولو مقتولينو ديت ئې د مسلمانانو دطرفه ورکړو.(اوګورئ فتح البارى(٥٧١٨و ٥٨) وعمدة القارى(٣١٣١١٧))..
نسائی او بيهقی دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه په صحيح سند سره يوه واقعه ذکر کړې ده.په دغه واقعه کښې د انسانی عشق اوچه کوم کسان مړه کيدل.په هغوی باندې د مړه کيدو يوه عجيبه واقعه نقل کړې ده.چه د بنو جذيمه په دغه قيديانوکښې يوقيدی مسلمانانو ته اووئيل.چه زه د بنو جذيمه نه يم.زما په دوی کښې د يوښځې سره عشق دې.تاسودغه ښځو ته ما بوځئ.زما تمنا ده.چه دمرګ نه وړاندې يو نظر هغه اووينم.دغه قيدی ښځوطرف ته بوتلې شو. هلته کښې ئې څو اشعار ا ووئيل.نوچه څنګه دغه قيدی قتل کړې شو.نوخپل ځاې نه يوه ښځه راووته.اودهغه په لاش باندې پريوته.اود دوو دريو چغو نه پس د هغې د ژوند شمع هم مړه شوه.نبی ﷺ ته چه کله دا واقعه بيان شوه.نو وې فرمائيل((أما کان فيکم رجل رحيم)) فتح البارى (٥٨١٨)_

خالد» اې الله زه د خالد د کړو نه برې یم.[۱] نودهغوی په اسلام باندې د اقرار کولونه پس دهغوی قتل جائز نه وو.که به هرنیت سره هغوی دغه اقرار کړې وو. د دې وجې دا وئیل چه په زور،زیاتی باندې خلق مسلمانان جوړ شوي دي.دا صحیح او ټیک نه ده.

**په اسلام کښې دغلامۍ مسئله:** دویمه مسئله د غلامۍ سره متعلق ده.حریت او آزادي دهر انساني پیدائشي حق دې.اوانسان د پیدائش د وخت نه فطرةً آزاد وي.دې غلام جوړول څنګه صحیح کیدې شي؟ددې په باره کښې دا خبره پیژندل پکار دی.چه دانسان حریت او آزادي دده د. صفت ملکوتي تابع دې.که په ده کښې دغه صفات حمیده اوصفات حسنه موجود وي.کوم چه الله تعالی بیان کړي دي.نو هغه به د حریت مستحق وي.ګنی بیا به هغه د آزادۍ مستحق نه وي.بلکه بیا هغه د بهائمو اوحیواناتو نه هم لاندې دې.دداسې خلقو په باره کښې الله تعالی فرمائیلي دي.﴿إِنْ هُمْ إِلَّا كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ﴾ (دا خلق دخناورو ړشان دي. بلکه ددوی نه هم زیات ګمراه دي)[۲] اوفرمائیلي ئې دي﴿إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِنْدَ اللَّهِ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [۳] (بیشکه دالله په نیز کافران بدترین خناور دي) اوښکاره ده چه خناورو او څاروو ته د حریت حق حاصل نه وي.نوپه دې لحاظ سره کافرانو ته هم دحریت اوآزادۍ حق حاصل نه دې. الله تعالی انسان ته دعلم او قدرت،سمع اوبصر،ارادې او تکلم قوت ورکړې دې.

اودې ئې د خپلو صفاتو مظهر جوړ کړې دې.دده فرض وو.چه په خپل ځان کښې ئې ملکوتي صفات پیدا کړي وو.اوصفات حمیده ئې روښانه کړي وو.خوکله چه ده د الله تعالی بغاوت ته ملاو اوتړله.او دالله تعالی نافرماني ئې خپل شعار جوړ کړو.نوبیا دې د مقام تکریم نه اوغورځیدو اسفل السافلین ته لاړلو.اوددې په نتیجه کښې په ده کښې د حریت استحقاق باقي پاتې نشو.اوس دې د دې خبرې مستحق دې.چه د ده سرقلم کړې شي.اودې د مخ د زمکې نه ورك کړې شي.خو الله تعالی دده سزا دا مقرر کړه.چه ده ته دې د غلامۍ طوق واچولې شي.ځکه چه هرکله ده خپل ځان د نافرمانۍ په جرم کښې بندیوان کړو.اوپه کفر او شرك سره ئې ګنده کړو.نو آزادي اوحریت کوم چه دالله تعالی انعام وو.هغه دده نه سلب کړې شو.اوغلامي دده په مقدر کښې شوه.

**دغلامۍ دمسئلې ثبوت په قران او حدیث دواړو کښې شته:** دویمه خبره دا پیژندل پکار دي.چه کوم خلق مسلمانان وي.اود غلامۍ په مسئله باندې اعتراض کوي.هغوی ته لږ دا سوچ پکار دې.چه د «ما ملکت أیمانکم» لفظ په قرآن پاك کښې پځلس ځله راغلې دې.[۴] که په

---

[۱]الحدیث أخرجه البخاري في کتاب المغازي باب بعث النبي ﷺ خالدبن ولید إلی بني جذیمة رقم الحدیث (۴۳۳۹) وفي کتاب الأحکام باب إذا قضی الحاکم بجور أو خلاف أهل العلم فهو رد رقم الحدیث (۷۱۸۹)

[۲]) سورة الأعراف:۱۷۹)_

[۳]) سورة الأنفال:۵۵)_

[۴]) دا لفظ په سورة نساء کښې څلورځله،په آیت نمر(۳ او ۳۶) په سورة نحل کښې یوځاې (آیت نمر ۷۱) په سورة مومنون کښې یو ځل (آیت نمبر ۶) په سورة نو ر(بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

اسلام کښې. د غلامۍ مسئله نه وه.نو قرآن مجيد پنځلس ځله د «ماملکت أيمانکم» ذکرپنځلس ځله ولې کړې دې. قرآن مجيد په کفاره، ظهار،کفاره يمين اوکفاره قتل خطا کښې د غلام آزادولو هدايت کړې دې.(١) که په اسلام کښې د غلامۍ مسئله نه وه.نوبيا دا هدايات به ولې وو.دغه شان قرآن پاک د ،،مکاتب،، ذکرکړې دې.(٢) اوبښکاره ده غلام نه مکاتب جوړولې شي.اوپخپله مکاتب د بدل کتابت ادا کولو پورې غلام وي.
د رسول الله ﷺ خوي حضرت ابراهيم صاحب د ماريه قبطيه ﷞ د بطن نه پيدا شوې وو. ماريه قبطيه د وينځې په حيثيت دنبی ﷺ سره وه.(٣) که دا قبيح اوناجائز وو.نوآيانبی ﷺ ته به ددې علم نه وو.
غرض دا چه دغلامۍ ثبوت د قرآن او حديث دواړو نه دې.اوپه دې کښې څه قباحت نشته. دا په مثال سره داسې زده کړئ.چه په يوکس باندې دانۀ راختلې وي.په داسې صورت کښې خو اول داسې کولې شي.چه په هغې باندې مرهم پټۍ اوکړې.په دې سره خوبه هغه ماده يا تحليل شي.اويا به بهرته راوځي.که مرهم فائده اونکړې.نوبيا نشتر لګولې شي.(زخم څيرلې شي) اود اپريشن په ذريعه هغه خرابه ماده راويستې شي.اوکه هغه ماده دومره زياته شوې وي.چه اوس په نشتر باندې دهغې اخراج کافي نه وي.اوهغه پوره اندام خرابوي.نوبيا په دې صورت کښې ټول اندام کټ کولې شي.اوبنه په رضا سره ئې خلق کټ کوي.ځکه که دغه اندام کټ نکړې شي.نو ټول بدن ته دهغې د خوريدو ويره وي.اودانسان د ختميدو خطره وي. دغه شان د پيغمبران عليهم السلام مواعظ او نصيحتونه د مرهم او پټيو پشان دي.اود کافرانونه د کفرد مرض په لرې کولوکښې پيغمبران عليهم السلام ډير په دلسوزۍ او محنت سره پرله پسې ددې د زائله کولو کوشش کوي.اوکله چه مواعظ اونصيحتونه کار ورنکړې. نوبيا غلامی د نشترپه طورسره استعمالولې شي.په کومې سره چه ددوی آزادی ختمه کړې

...دتيرمخ بقيه حاشيه] کښې درې ځاې (آيت نمبر ٣١و ٣٣و ٥٧، کښې په سورة روم کښې يو ځاې (آيت نمر٢) سورة احزاب کښې څلور ځله (آيت نمبر ٥٠،کښې دوه ځله او آيت نمبر،٥٢ و ٥٥) په سورة معارج کښې يو ځاې (آيت نمبر، ٣٠) راغلی دی.دا ټول پنځلس مقامات دی)۔

(١) په کفاره ظهارکښې د غلام آزادولو حکم الله تعالی په سورة مجادله کښې په آيت نمبر ٣ کښې او په کفاره يمين کښې ئې دغلام آزادولو هدايت په سورة مائده آيت نمبر ٨٩ کښې اود کفاره قتل خطاء کښې د غلام آزادولو حکم ئې د سورة نساء په آيت نمبر ٩٢ کښې کړې دې)۔

(٢) سورة نور آيت نمر (٣٣) کښې دی.((وَالَّذِينَ يَبْتَغُونَ الْكِتٰبَ مِمَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا))

(٣) فی الإصابة (١١٤٠٤) مارية القبطية أم ولد رسول الله ﷺ ماتت فی المحرم سنة ست عشرة .. فی خلافة عمر ﷛ فكان عمر ﷛ يحشرالناس لشهودها وصلى عليها ودفنها بالبقيع وفی تهذيب الكمال (١٩٢١١) وأول من ولد له ﷺ القاسم ثم زينب ثم رقية ثم فاطمة ثم أم كلثوم ثم فی الإسلام عبدالله ثم إبراهيم بالمدينة وأولاده كلهم من خديجة إلا إبراهيم فإنه من مارية القبطية وكلهم ماتوا قبله إلا فاطمة فإنها عاشت بعده ستة أشهر على الصحيح)۔

شي.او ددوى د فساد بندولو دپاره اود عالم دامن دپاره لار همواره كولې شي. اوكه دا نسخه هم كارورنكړى .نوبيا دوى قتلوې شي.دې دپاره چه دكفر زور ختم شي.اوپه دنيا كښې امن اوامان قائم شي.لكه څنګه چه ټول بدن ته دنقصان رسيدو ويرې د وجې يو اندام كټ كولې شي.دغه شان د كفر اوشرك په مرض كښې اخته كسان اودالله تعالى نه د بغاوت په وجه چه د دنيا امن خرابيږى.ددې ويرې د وجې هغوى ختمولى شي.

بهرحال د وئيلو مقصد دا وو.چه د غلامئ دا مسئله د عام امن قائم ساتلو دپاره داسې ده.لكه څنګه چه په بدن كښې دننه فاسده ماده چه د نشتر په ذريعه د لرې كولو كوشش كولې شي.

دا داسلام ډير لوې احسان دې.چه ده دغلامانو سره د حسن سلوك ډيرتاكيد كړې دې.او د غلامانو د آزادئ ترغيب ئې وركړې دې.نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى.«من أعتق رقبة أعتق الله بكل عضو منه عضوا من النار» (١)كه څوك يو غلام آزاد كړى.نودهغه د هر اندام په آزادئ كښې به د آزادونكى اندام دجهنم نه الله تعالى آزاد كړى.اونبى ﷺ چه څه وخت وفات كيدو.نو په هغه وخت كښې هغوى وصيت كړې وو.«الصلاة وماملكت أيمانكم» (٢) (دمونځ اود غلامانو زيات خيال ساتئ)

غرض دا چه د غلامئ په مسئله كښې داسلام په غلامانو باندې ډيرلوې احسان دې.اسلام چه ددوى په باره كښې كوم اصلاحات كړى دى.اودوى ته ئې چه كوم رعايتونه وركړى دى.د هغې خو عشرعشير هم موجود نه دى.په اسلام باندې دظلم الزام لګول غلط دې.دغلامئ مسئله خو د وړاندې نه راروانه وه.(٣) اسلام دا نه ده شروع كړې.

---

(١) الحديث أخرجه البخارى فى كتاب الإيمان باب قول الله تعالى ﴿ أو تحرير رقبة وأى الرقاب أزكى رقم الحديث (٦٧١٥) وأخرجه مسلم فى كتاب العتق باب فضل العتق رقم الحديث (٣٧٦٩)_

(٢) الحديث أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب باب فى حق المملوك رقم الحديث (٥١٥٦) وابن ماجه فى أبواب الوصايا رقم الحديث (٢٦٩٨)_

(٣) دمسئلې حاصل دا دې.چه غلامى اسلام نه ده پيدا كړې.د اسلام نه وړاندې د تهذيب اوتمدن د چمك دمك دعويدار،د روم او ايران حكومتونو اود دنيا په نورو قومونو اومذاهبو كښې دا عامه وه.په معمولى معمولى غلطو باندې به دانسانانو نه غلامان جوړولى شول.د وينځو اولاد به غلامان ګڼرلى شول.اودجنګ قيدانو نه غلامان جوړول خومعلومه وه،،
بيا د يوكس دغلام جوړولو مطلب به دا وو.كه دې ژوندې وى.نودځناورو پشان ژوند به تيروى. نه به هغه ته د ژوند په خوشحالو كښې دحصې اخستلو څه حق وو.اونه به د قدرت د نعمتونونه د خپلې مرضئ مطابق د فائدې اخستلو ورته اختيار وو.ددنيادهر راحت نه د محروم غلام حيثيت د يوبې روحه كانړى پشان وو.چه دهغې اوچتونكې كه هغه كوم خوا اوپه كومه طريقه ويشتل غواړى. اولى ئې.د غلام حيثيت د يو بوجه اوړونكى ځناور نه زيات نه وو.په كوم باندې چه مالك څومره بوجه اوچول غوښتل.آچول به ئې برې.اوچه څنګه به ئې شړل غوښتل.شړل به ئې،،
اسلام چه راغلو.نودغلام جوړولو نور ټول صورتونه ئې ختم كړل.صرف يو صورت ئې باقى پريخودل.اوهغه دا چه كله كافران دمسلمانانو د مقابلې دپاره ميدان جنګ ته راشى.اود الله تعالى

دا باغیان قیدیان شی.نودغه بندیان غلامان جوړولی شی.خوبه دې صورت کښې هم غلام جوړول متعین نه دی.بلکه مسلمانانوته اختیار ورکړې شوې دې.چه دغه قیدیان قتل کړی.یا هغوی بغیرد فدیۀ نه آزاد کړی.اوکه مناسب گڼری.فدیه دې واخلی.اوهغوی دې پرېږدی.اوکه غواړی نوغلامان دې ترې جوړ کړی.

بیا دغلامۍ په مسئله کښې د اسلام تصور هغه نه دی.کوم چه د جاهلیت د زمانې یا نن د یورپ د غلامۍ تصور دې.اسلام چه څنګه انسان دپاره په دنیا کښې د ټولو نه زیات قابل احترام هستیانو والدینو سره د حسن سلوك حکم کړې دی.هلته ئې ورسره د ((وما ملکت أیمانکم)) زیادت هم کړې دې.فرمائی. ﴿وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ سورة النساء (٣٦) ،،او نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. ((فأکرموهم کرامة أولادکم وأطعموهم مما تأکلون( ابن ماجه کتاب الأدب رقم الحدیث (٣٦٩١) دخپل اولاد پشان د دوی خیال ساتئ.اوڅه چه په خپله خورئ.دوی باندې هم خوروئ.،،

غرض دا چه اسلام ټول نظام د سختۍ نه نرمۍ ته راوېستل،د دشمنۍ نه دوستۍ ته راوېستل، دحاکمیت نه راووېستل په ورورولئ کښې ئې بدله کړه،،

بیا دا نه چه دا ټول څیزونه داسلام د عالمګیراو صالح قانون صرف د پاڼو د حده پورې بنانست دې.بلکه اسلام د دې نظام اوچته اخلاقی عملی نمونه خلقو ته پیش کړې ده.داسلام په تاریخ کښې د علم اومعرفت اوچتو درجو ته رسیدونکی څومره غلامان دی.چه د هغوی ژوند په سوونو آزادو کسانو دپاره د پسخیدو قابل دی.اوڅوك چه د علمی مهارت په وجه د زرګونو احرارو دپاره مرجع ګرځیدلې دی.که دمکې عطاء بن ابن رباح رحمه الله وی.اوکه د یمن طاوس بن کیسان رحمه الله ، که د مصریزیدبن حبیب وی.اوکه د شام او حجاز مکحول او ضحاك رحمهما الله وی.دحدیث اوفقه دا ټول روښانه ستوری هم غلامان وو.دغلامانوسره داسلام دې عادلانه نظام دعملی نمونې اقرار د مغرب خلقو هم کړې دی.انګریزې ښځې ،،بلنټ،، د عربود ښارونودسیل نه پس په دې عادلانه نظام باندې اقرارکوی اولیکی: ،،دعربو دخپلو غلامانو سره د بدسلوکۍ یوه واقعه هم مونږ پیش نکړې شود.اوحقیقت دا دی.چه غلام دعربوسره دهغوی خادم نه وی.بلکه یوخوښ خوې ګڼرلې شی،،

بیا اسلام د غلام دآزادۍ دپارد څو مواقع ورکړې دې.تاسو به په قرآن کښې په کفاره یمین، کفاره ظهاراوکفاره قتل خطا کښې د غلام آزادولو حکم اومومئ.د نبی ﷺ په احادیثو کښې به تاسو ته په دې باندې نورد اضافه هم ملاؤ شی.نبی ﷺ فرمائیلی دی.((من لطم مملوکه او ضربه فکفارته أن یعتقه ((سنن أبی داود کتاب الأدب حدیث نمبر٥١٦٨)) پخپله نبی ﷺ شپږ شپیته غلامان آزاد کړی وو.حضرت عائشې (٦٩) حضرت ابن عباس اویا حضرت عثمان دخپلې محاصرې په دوران کښې شل حضرت حکیم بن حزام سل حضرت عبدالله بن عمر یوزر،حضرت عبدالرحمن بن عوف دیرش زره،اوذوالکلاع حمیری په یو ورځ کښې اته زره غلامان آزاد کړی وو(رضی الله عنهم) د ذکرشوی اته حضراتو د آزاد کړو غلامانو تعداد یوکم څلویښت زره درې سوه دویشت (٣٩٣٢٢) جوړیږی... باقی،،

"قیاس کن زگلستان من بهار مرا،،

ددې ټولو اوصافو باوجود هم خلق په اسلام کښې دغلامۍ په مسئله باندې اعتراض کوی.نو ددوی په باره کښې ددې نه سوا بل څه ونیلی شی.چه دوی ته د بغض اودشمنۍ په وجه داسلام هریو څیزالټه په نظر راځی.

ان عقل کے اندھوں کو الٹی نظر آتی ہے ~~~ لیلیٰ نظر آتا ہے مجنوں نظر آتی ہے

(دپورتنی تفصیل اوزیاتی تحقیق دپاره اوګورئ تکمله فتح الملهم کتاب العتق (٢٦٣\١١ و ٢٧٢) ،،

**دعوت اوجهاد:** داصل كتاب شروع كيدو نه وړاندې د دعوت اوجهاد اهميت په خپل مينځ كښې ربط باندې مونږ دلته لږ په تفصيل خبرې كوو،،
اسلام د پوره ژوند د پوره نظام او د انساني ژوند د كاملې ضابطې نوم دې.اولكه څنګه چه د انسان ژوند په مختلفو شعبو كښې تقسيميږي.دغه شان د ژوند د نظام كلي په مختلفو شعبو باندې مشتمل كيدل هم يو بديهي امر دې.هم دا وجه ده.چه په اسلام كښې شعبه معاشرت هم ده.او معيشت هم.شعبه سياست هم ده.اوحكومت هم.شعبه تصوف هم ده او خدمت خلق هم،شعبه تفسير هم ده اوحديث هم،شعبه فقه هم ده او افتاء هم،شعبه تاريخ هم ده او تحقيق هم،شعبه تبليغ هم ده او شعبه جهاد هم،داسلام روښانه تاريخ د زندګئ په هره شعبه كښې داسې داسې نامورې هستئ پيدا كړې دي.په كومو كښې چه د هريو وجود د اسلام د حقانيت دليل دې.داسلام په دې مختلفو شعبو كښې دوه شعبې د دعوت او دجهاد دي.ددعوت مطلب دا دې.چه د الله تعالى بندګان اسلام طرف ته او الله اودهغه د رسول پيغام طرف ته رابلل دي.بې خبره خبرول،اوباخبره منونكو منل ،منونكو ته د عمل ترغيب وركول،د بدو نه منع كول اوبه نيكو باندې اماده كول،دا ټول په دعوت اوتبليغ كښې داخل دي.اوهم دا د امت مسلمه مقصد اود دوى د پيدائش مقصد دې.دالله تعالى ارشاد دې((كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ)) ال عمران: ١١٠) اې مسلمانانو! تاسوغوره امت ئې.چه دخلقو دپاره رويستې شوې ئې.دښه كارونو حكم به كوئ.اود بدو كارونو نه به منع كوئ.،،
ددې آيت نه څو آياتونه وړاندې دا تصريح موجود ده.چه په هر دور كښې په امت مسلمه باندې فرض كفايه ده.چه د دوى يوه ډله په دې كاركښې لګيا وي.اوكه د دعوت كار ټول امت پريږدي. نو ټول امت به ګناهګار وي.ارشاد دې((وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ)) (آل عمران:١١) اوبكارده چه په تاسو كښې يوه ډله داسې وي.چه خلقوته د دنيكئ دعوت وركوي.اودنيكئ د كارونو تعليم وركوي.اودګناه دخبرو نه ئې منع كوي.اودا هم هغه خلق دي.چه فلاح موندونكې دي.،،
ددې علمي ثبوت نه يواځې د نبي ﷺ د مكې ژوند نه نه، بلكه د ټول ژوند نه ملاويږي.كله به نبي ﷺ د صفا په غرباندې اوختل.اودعوت به ئې وركولو.اوبه(( فاصدع بما تؤمر)) (اې محمد! تاته چه دخه حكم كيږي.هغه په ښكاره باندې واوروه) عمل كولو.كله به دطائف سردارانو ته ورتلل. اوهغوى ته به ئې د اسلام دعوت وركولو.اوكله به د عربو مختلفو سردارانو ته كوم چه به منى ته راغلي وو.ورتلل.اودحق دين دعوت به ئې وركولو.كله به ئې قيصر اوقصري ته دعوتي خطونه ليږل. اوكله به ئې د قاريانواومبلغين جماعتونه جوړول او روانول.دې دپاره چه هغوى نوى مسلمانانوته د قرآن او اسلام احكام اوښائي.اوغيرمسلموته د اسلام دعوت وركړي.اوبه آخر كښې د خپلې تاريخي خطبې حجة الوداع په موقع باندې اوفرمائيل.((هل بلغت)) آيا ما د الله تعالى پيغام اورسول.خلقو په يوآواز سره اوونيل.((نعم))او جي.اوچونكه نبي ﷺ آخرى پيغمبر دې.د دوى نه پس ترقيامته پورې بل نبي نه راځي.ددې وجې د دعوت دا ذمه دارى ددوى نه پس د دوى په امت باندې پريوځي.د نبي ﷺ ارشاد دې((بلغوا عني ولو آية)) زما يوه يوه خبره وړاندې اورسوئ.د دوى نه پس د دوى ځان قربانونكي صحابه او مخلصان ملګري ﷺ د دنيا ګوټ ګوټ ته د پيغام رسولو دپاره اووتل.كه ايران وي يا هندوستان،چين وي كه يونان،كه عرب وي اوكه شام،غرض دا چه د دخپل راحت اوتكليف،دخلقو د سختئ اونرمئ اود موسم د يخنئ اوګرمئ پرواه ئې نه كوله.او مخلوق ته ئې د الله تعالى پيغام اورسولو.،،

ہاں گردش ایام کی زنجیر سے کہدو خوشبو کا سفر وقت کا پابند نہیں ہے

د صحابو ﷺ ددې مباركې قافلې دمحبت او درد . فكراو كوشش ،اود امت سره ددوى د درد او

هغوی د زړه د خیګرد سوزیدو نتیجه ده.چه نن پیغام محمدی ﷺ

دشت میں دامن کہسار میں میدان میں ہے | بحر میں موج کی آغوش میں طوفان میں ہے
چین کے شہر مراقش کے بیاباں میں ہے | اور پوشیدہ مسلمان کے ایمان میں ہے
چشم اقوام یہ نظارہ ابد تک دیکھے | رفعت شان رفعنا لک ذکرک دیکھے

په مزه مزه د دعوت دا حلقه غټه شوه.اوپه مختلفو طبقو کښې تقسیم شوه.واعظانو او مقررینود تقریر په صورت کښې،مفسرینواو محدثینو ﷺ د درس قرآن او درس حدیث په شکل کښې، مصنفینواو مؤلفینو د تصنیف اوتالیف په صورت کښې دعوت جاری اوساتل.
اوپه دې کښې هم څه شك نشته.که تقریروی اوکه وعظ،که درس قرآن وی اوکه درس حدیث،که تصنیف اوتالیف وی اوکه د تصوف د اصلاح نفس تعلیم،په شرعی حیثیت سره دا ټول د دعوت اوتبلیغ زمره کښې راځی.
خو د دعوت هغه خاص طریقه په کومه باندې چه ددې نقشې عکس په نظر راشی.کومه چه د پیغمبرانوعلیهم السلام اوبیا خاص کرد نبی ﷺ په مکې دور کښې وه.هغه پریخودې شوې وه.په کومه کښې چه صرف طلب کونکو ته نه بلکه بې طلبوته تلل او د دې دعوت ورکول دی.مولانا سید سلیمان ندوی رحمه الله د پیغمبرانوعلیهم السلام د دعوت اصول بیانوی.اولیکی.،،
د دعوت اوتبلیغ په هغه اصولوکښې کوم چه د نبی ﷺ په سیرت کښې ښکاره معلومیږی.یو عرض دی.یعنې نبی ﷺ به ددې انتظار نه کولو.چه خلق دې د دوی په خدمت کښې حاضر شی. بلکه دوی به په خپله او د دوی داعیان به خلقو ته په خپله ورتلل.او د حق دعوت به ئې ورکولو.تردې چه کله کله به د خلقو کورونو ته پخپله اورسیدل.اودحق کلمې دعوت به ئې ورته پیش کولو.دمکې معظمې نه طائف ته لاړلو.اوهلته ئې د عبد یالیل د سردارانو په کورونو کښې د تبلیغ فرض ادا کړو.دحج په موسم کښې به یوې یوې قبیلې ته ورتلل.او هغوی ته به ئې دحق پیغام رسولو.او دهغوی د سختو جوابونو پرواه به ئې نه کوله.آخر هم په دې لټون کښې د یثرب هغه بختور ملاؤ شول.دچا په لاسونوچه د ایمان او اسلام دولت د مکې نه مدینې منورې ته منتقل شو.(مقدمه مولانا محمد الیاس او ان کی دینی دعوت از سید سلیمان ندوی صفحه ۲۵)،،
ددعوت دا خاص طریقه چه په دې کښې د طالبانو تخصیص نه وی.بلکه دټول امت فکر وی.د ډیر وخت نه یا خو هډو ود نه،او یا که وه خو په هغه عمومیت او اهمیت سره نه وه.دکوم چه ضرورت وو.اودکومې چه امت د ډیر وخت نه انتظار کولو.په کروړاؤ رحمتونه دې نازل شی په حضرت مولانا محمد الیاس رحمه الله باندې کوم چه الله تعالی عزوجل په اجتماعی توګه د دې کارد ژوندې کولودپاره منتخب کړو.یخ دې وی قبرونه دهغه چا چه ورسره ئې مرسته کړې وه.،،
د اسلام دویمه اهمه شعبه جهاد فی سبیل الله دې.جهاد دخپل شرعی معنی په اعتبار سره اګرچه عام دې.اوهرهغه محنت ته جهاد ونیلی شی.کوم چه د دین اسلام دپاره کیږی.خو په اصطلاحی اعتبار سره په عامه توګه د جهاد اطلاق په قتال فی سبیل الله باندې کیږی.د شریعت په اصطلاح کښې د جهاد تعریف دا دې.،،

((بذل المجهود فی قتال الکفار مباشرة أو معاونة بالمال أو بالرأی أو بتکثیر السواد أو غیر ذلك ثم غلب فی الإسلام علی قتال الکفار قال ابن الهمام: هو دعوتهم إلی الدین الحق وقتالهم إن لم یقبلوا (مرقاة شرح مشکاة ۲۶۴/۷)،،

د کافرانو سره جنګیدلو،یا د جنګ کونکو مدد کولو ته جهاد وائی.برابره ده که دغه مدد په مال یا په رائې او مشورې په صورت کښې وی.یا د مجاهدینو د تعداد زیاتولوپه شکل کښې وی.ددې نه علاوه په هره طریقه چه د مجاهدینو سره مدد کول کولی شی.هغه په جهادکښې داخل دې.خوپه اسلامی اصطلاح کښې دکافرانو سره قتال کولوته جهاد وائی.علامه ابن الهمام رحمه الله د جهاد تعریف کړې دې چه ،،جهاد خلقو ته د الله تعالی دحق دین دعوت ورکول، اود دعوت نه قبلولو په صورت کښې دهغوی سره جنګ کولوته ونیلې شی.

په شرعي اعتبارسره د جهاد مفهوم عام کيدو نتيجه دا ده.چه دجهاد څو قسمونه دي.جهاد بالقلم،جهاد باللسان،جهاد بالسيف،دغه شان نبی ﷺ د يوې غزوې نه د واپسۍ په موقع د نفس خلاف مجاهدې کولوته جهاد اکبر ونيلې وو.خو په دې کښې څه شک نشته.چه د جهاد د ټولو نه اهمه او لويه شعبه قتال دې.او چه جهاد فی سبيل الله اووئيلې شي.نو هم دا معنی ترې اخستې شي.اوهم ددې ذکر الله تعالی کړې دې.اوفرمائی.﴿ وقاتلوهم حتی لا تکون فتنة ويکون الدين کله لله﴾ (سورة انفال :٣٩) اوتاسودغه کافرانو سره ترهغه وخته پورې جنګيږئ.چه په دوی کښې فساد (د شرك عقيده) پاتې نشي.اودين خالص شي.دغه شان په سورة بقره کښې ئې فرمائيلي دي.﴿ کتب عليکم القتال وهو کره لکم وعسی أن تکرهوا شيأ وهو خير لکم وعسی أن تحبوا شيأ وهو شرلکم والله يعلم وأنتم لا تعلمون﴾ (البقرة:٢١٦) جهاد کول په تاسو باندې فرض کړې شو.اودا به طبعاً تاسوته ګران بنکاری.اودا کيدې شي.چه تاسو يو څيز بد ګنړئ.اوهغه ستاسو دپاره بهتر وی.اودا هم (ممکن ده) چه تاسو به يو څيز خوښ ګنړئ.اوپه هغې کښې به ستاسو دپاره شر وی.اوالله تعالی ښه پوهيږی.اوتاسو نه پوهيږئ،،

ددې آيت کريمه نه د جهاد فرضيت ثابتيږی.مولانا اشرف علي تهانوی رحمه الله ددې آيت په تفسير کښې ليکی.،، جهاد فرض دې.کله چه ددې شرطونو موجود شی.کوم چه د فقه په کتابونوکښې مذکور دی.او فرض په دوه قسمه دی.فرض عين او فرض کفايه.. کله چه د دين دشمنانان په مسلمانانو باندې حمله اوکړی.نوبيا جهاد فرض عين دې.ګنی فرض کفايه دې.(حاشيه برقرآن از مولانا اشرف علي تهانوی رحمه الله )،،

يعنی جهاد دفرضيت په اعتبار سره په دوه قسمه دې.يوجهاد اقدامی او بل جهاد دفاعی،جهاد دفاعی(کله چه کافران په مسلمانانو باندې حمله اوکړی) نودا فرض عين دې.اوجهاد اقدامی (کله چه مسلمانان په کافرانوباندې حمله اوکړی) دا فرض کفايه دې.دامت مسلمه نه يوه ډله داسې پکار ده.چه هغه د ټول امت د طرفه دا فرض ادا کوی.ګنی ټول امت به ګناهګار وی.د جهاد د مشروعيت نه پس د نبی ﷺ زيات عمرهم په جهاد کښې تيرشوې دې.ددې اندازه ددې نه لګی.چه دهجرت نه پس په لس کاله کښې نبی ﷺ په خپله په ٢٦ يا ٢٧ غزواتوکښې شرکت کړې دې.اودصحابو رضي الله عنهم هغه لښکرې کومې چه نبی ﷺ ليږلې وې.دهغې شمار پنځه ديرش دی. کومې ته چه په اصطلاح کښې ،سريه،، وائی.،،

د نبی ﷺ دوفات نه پس صحابه کرام رضي الله عنهم د جهاد دپاره اووتل.د ګرمو علاقو اوسيدونکی دې مجاهدينوپه يخو شيوکښې اود طوفانونو نه ډکو ورځوکښې دالله تعالی د کلمې اوچتولو دپاره اود دين حق په ټولو باطلو دينونو باندې د اوچتولودپاره چه خپله وينه ئې د اسلامی ونې د لويولو دپاره تويه کړې ده.د دنيا د قومونو په تاريخ کښې ددې مثال نه ملاويږی.د قرون اولی هم دا مسلمانان وو.چه هغوی ته د دنيا وسعتونه راټول شول.د قيصر اوکسرئ قوتونه ټکړې ټکړې شول.که تياره وه اوکه رڼرا، که هوا وه او که اوبه،که د شمنانو کثرت به وويا طاقت،که صحراء به وه اوکه درياب،که ځنګل به وو اوکه غر،که وچه به وه که لونده،هيڅ يو څيزددې مجاهدينو په لار کښې رکاوټ نشو جوړيدې.کومو چه خپل سر په تلی کښې کيخودې وو.دشهادت د شوق نه ډك،د جهاد په جذبه مست،ددې مجاهدينو يو آواز،يوعزم،يو مقصد وو.،،اعلاء کلمة الله،، هم په دې اميد کښې به هغوی خپل ځانونه قربانول. چه

شب گریزاں ہوگی آخر جلوۂ خورشید سے ۔ یہ چمن معمور ہوگا نغمۂ توحید سے

د اسلام د ونې هغه ګورې ځانګې دکوم د آرام ورکونکی او پرسکون سيوری د لاندې چه نن د دنيا مسلمانان آرام کوی.چاته معلومه ده چه ددې ښاخونو جړرو ته اوبه ورکولو او ددې د مضبوطولو دپاره دحجاز قافلې څومره وينه ورکړې ده.داقبال اشعارو ددې ډيرښکلې عکس اخستې دې.

تھے وہی ایک ترے معرکہ آراؤں میں — خشکیوں میں کبھی لڑتے کبھی دریاؤں میں
دیں آذانیں کبھی یورپ کے کلیساؤں میں — کبھی افریقہ کے تپتے ہوئے صحراؤں میں
شان آنکھوں میں نہ جچتی تھی جہانداروں میں — کلمہ پڑھتے تھے وہ چھاؤں میں تلواروں میں
وہ جو جیتے تھے تو جنگوں کی مصیبت کیلئے — اور مرتے تھے تیری نام کی عظمت کیلئے
تھی نہ کچھ تیغ زنی اپنی حکومت کیلئے — سربکف پھرتے تھے کیا دہر میں دولت کیلئے؟
جس کی ہیبت سے صنم سہمے ہوئے رہتے تھے — منہ کے بل گرکے ھو اللہ احد کہتے تھے

په غیرمسلموکښې ددغه مجاهدینو د دعوت طریقه دا وه.چه عام طور به دمسلمانانو فوځ دهغوی ښاروته خبر کړل.اود ټولو نه وړاندې به ئې کافرانو ته د اسلام دعوت ورکړو.که هغوی به اسلام قبول کړو.نو دمسلمانانو وروڼړه به شول.اوچه کوم حقوق به مسلمانانو ته حاصل وو.په هغې کښې به هغوی هم شریك شو.اوپه بل صورت کښې به هغوی د جزیه ورکولو ته تیارولې شول.اوکه د جزیه نه به ئې هم انکار اوکړو.نو دریم صورت د توری او قتال وو.دغه شان په څو کلونوکښې د قیصر او کسری په شاهی محلاتو باندې داسلام بیرغ اولګولې شو.اودهغه وخت د دنیا سپرطاقتونه داسلامی حکومت لاندې راغلل.د جهاد د تاریخ کړۍ چه د هغې ابتداء د بدر راو احد نه شوې وه.د څورلس سوه کالو په موده باندې خوره ده.که په مینځ کښې چرته څه انقطاع راغلې دد.نوهغه ډیره موده نه ده پاتې شوې.خود جنګ بلقان او طرابلس نه پس د جهاد جذبه په عالم اسلام کښې لږ غوندې یخه شوې دد.،،

مرحبا صد مرحبا دافغانستان په هغه مجاهدینو،چا چه بغیرد سروسامان نه په الله تعالی باندې داډګیرد اوکړد.اود جهاد بیرغ ئې پورته کړو.اومسلمانانو ته ئې د ذلت نه د وتلو لاره اوخودله.هم د دغه مجاهدینو د قربانۍ نتیجه ده.چه د روس طاقت دړې وړې شو.په دخپل واك په ریاستونو کښې تقسیم شو.هم ددې جهاد نتیجه ده.چه کشمیری مسلمانان راویخ شول.د برما او فلسطین مسلمانان رابیدار شول.اوټول عالم اسلام متحرك شو،

عروق مردہ مسلم میں خون زندگی دوڑا — سمجھ سکتے نہیں اس راز کو سینا وفارابی

**د دعوت او جهاد په خپل مینځ کښې یوځاى والى :** جهاد او دعوت دواړه په خپل مینځ کښې مربوطې شعبې دی.هره یوه د بل نه بغیرناقصه اوناتمامه ده.جهاد که د فاسدې مادې اخراج،سکون قلب.انسداد د فتنې اوفساد زیرې دې.نو دعوت د نیکۍ په لاره روانونکې،د بدۍ نه منع کونکې، دصحت معاشرې آسمانی نسخه هدایت دې.جهاد ربانی که مسلمانان د ذلت دکندې نه راوباسی.په کافرانو باندې د اسلام رعب اچول اود دین فطرت باغیانواوسرکشانودپاره دالله تعالی تازیانه ده.نو دعوت مسلمانانوته د دوی د ژوند مقصد خودلو.ددې مقصد د مقام تعین کولو،د تعیش په وادیانو کښې ګرځیدونکو ته د لار خودلو الهی پیغام دې.جهاد که واسطه ده.ددې چه د کافرانو غلبه ختمه شی.اودهغوی حکومتونه د مسلمانانو ماتحت شی.اودین حق غالب شی.نو دعوت ذریعه ده د دې چه د نور ایمان نه ظلمت د کفر لرې شی.اوپه زړونو باندې داسلام غلبه اوحکومت پاتې شی.اولکه څنګه که دجهاد مقصد ،،اعلاء کلمة الله،، نه شی.نودا قتل اوفساد نه سوا بل څه نه دی.دغه شان دعوت که داشاعت اسلام د نیت او روح نه خالی وی.نود شګوګل د ښکاریدو نه سوا بل څه نه.دې.جهاد او دعوت د یوغشی دوه ښکاره دی.یا داسې اووایه.چه د یو ښکار دوه غشی دی.که صرف دعوت وی اوجهاد نه وی.نود کفر بربریت او ظلم به د اسلام په لار کښې رکاوټونه اچوی.اود تبلیغ اسلام لارې به بندیږی.وکه جهاد وی او دعوت نه وی.نوبیا هم اسلام ته د ډیرو خطرو پیښیدو ویره ده.په اسلامی تاریخ کښې دا واقعات موجود دی.چه د دعوت د اهمې فریضې په پریخودلو مسلمانانوته ډیرې خطرې پیدا شوی دی.د تاتاریانود فتنې اصلی وجه هم دا د دوعت الی الله پریخودل وو.مولانا ابوالحسن ندوی رحمه الله د تاتاریانود فتنې اسباب بیانوی اولیکی.

دخوارزم شاهي بادشاهانو نه په دې موقع هم هغه غلطي شوې وه..کومه چه په سپين کښې د عربو حاکمانو کړې وه.اوهغوی قانون مکافات معاف نکړل.يعني دا چه هغوی خپل ټول طاقت د سلطنت په ډيرولو او استحکام،اود دشمنانو په مخالفت کښې صرف کړې دې.اوهغه انساني آبادي کومه چه دهغوی د سرحد سره متصله وه.اوپخپله يوه دنيا وه.د تبليغ اسلام او هغوی ته دالله تعالى آخري پيغام رسولو فکر نه وو.د ديني جذبې نه قطع نظر... د سياسي فراست او دوربينئ هم دا تقاضا وه.چه هغوی دا وسيعه آبادي خپل هم خياله جوړه کړې.اود يوې عقيدې جوړولو کوشش اوکړې.اودغه شان د هميشه دپاره د دې خطرې نه به محفوظ شوې وې.کومه چه نه صرف دوی ته بلکه پوره عالم اسلام ته پيښ شوه.(تاريخ دعوت وعزيمت جلد اول صفحه ۳۱۲)،،

اوحقيقت دا دې.که د دعوت اهمه فريضه ئې پريخودې نه وې.اوپه اخلاص او داعيانه طريقه باندې ئې دخپل ګاونډ دغه انساني آبادئ ته د اسلام دعوت ورکړې وو.نو د تاتاريانو دا حادثه چه د هغې دبربريت په عالم اسلام کښې څه چه په تاريخ عالم کښې هم نه ملاويږي.اونه به پيش شي.اګرچه په ظاهره د هغې سبب د خوارزم شاه د قراقرم نه د راتلونکي سوداګرو اود بيا د چنګيزخان د سفير قتلول وو.خوپه اصل کښې ترک دعوت ددې سبب وو.هم دا وجه وه.چه کله روسته تاتاريانو ته د اسلام دعوت اورسيدو.نوپه يوکال کښې دننه دننه ټول تاتار قوم مسلمان شو..،

حرم رسوا ہوا پیر حرم کی کم نگاہی سے جوانان تتاری کس قدر صاحب نظر نکلے

مولانا ابوالحسن علي ندوي رحمه الله ليکلي دي،،

نزدې وه چه ټول عالم اسلام د دې مصيبت په سيلاب کښې بهيدلې وو.اولکه څنګه چه دهغه وخت اهل نظراو درمندو مسلمانانو مصنفين ويره ظاهره کړې وه.چه د اسلام نوم او نښان به هم ختم شوې وو.خوپه دې کښې په تاتاريانو کښې اشاعت اسلام شروع شو.اوکوم کار چه د مسلمانانو تورو او د مسلمانانو بادشاهانو نشو کولې.هغه د اسلام داعيانو او دالله تعالى مخلص بندګانو اوکړو..(تاريخ دعوت وعزيمت (۱/۳۲۲)،،

اوبيا هغه قوم چه عالم اسلام ډير لوې نقصان رسولې وو.داسلام محافظين جوړ شول.اوپه هغوی کښې بيا لوې لوې مجاهدين ،عالمانو او فقهاء پيدا شول

ہے عیاں فتنہ تاتار کے افسانے سے پاسباں مل گئے کعبے کو صنم خانے سے

**نن عالم اسلام ته د دعوت او جهاد دواړو ضرورت دې:**

نن چه عالم اسلام د تاريخ اسلام د نازک دور نه تيريږي.غيرمسلم قومونه دخپل ټولواسبابواو وسائلو د مسلمانانو خلاف متحد دي.هر صبا او هر بيګاه د اسلامي اتحاد ختمولو دپاره نوې حمله د کفر سره ښکاره کيږي.د کشمير په مسلمانانو باندې هغه تاريخ دوباره راوستې شي. کوم چه هندوانو په ۱۹۴۷ء کښې دپاکستان دمهاجرينو خلاف په هغه وخت کښې تيار کړې وو.په هندوستان کښې برهمنې سماج مذهبي سادهو د جماتونو نه مندرونه جوړولو باندې ګلک ولاړ دي.د برما او دفلسطين مسلمانان خالي لاس د جلا وطنئ ژوند تيرولو باندې مجبور دي.داندلس هغه زمکه چه هغې اته سوه کاله د اسلام بيرغ پورته کتلې وه.نن د مسلمانانو په دې زمکه داسلام نوم او نښان هم نشته.د دې اندس هغه جمات چه د خلور سوه کالو نه د رسول الله ﷺ د اذان په آوازونو باندې آباد وو.نن هغه د دنيا د سيلانو دپاره تفريح ګاه جوړه شوې ده.په بيت المقدس باندې د يهوديانو تسلط دې.اود الله تعالى دا مقدس کور د مسلمانانو د لاس نه بهر دې..،

دیدۂ انجم میں ہے تیری زمیں آسماں آہ! کہ صدیوں سے ہے تیری فضا بے اذاں

په داسې حالاتو کښې ددې فرصت چرته شته.چه ددعوت او جهاد په فرضيت يا عدم فرضيت اويا په ضرورت او عدم ضرورت باندې دمناظرو مجلسونه ښانسته کولې شي.يا د يوې شعبې سره د تعلق په وجه د بلې شعبې په عدم اهميت باندې د دلائلو بازار ګرم ساتلې شي.

چمن بچاؤ کہ آشیاں کا وقت نہیں ہے [بقیہ حاشیہ پر ملاحظہ فرمائیں.....

# ٦٧ = كتاب المغازي

## باب غَزْوَةِ الْعُشَيْرَةِ أَوِ الْعُسَيْرَةِ

## قَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ أَوَّلُ مَا غَزَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْأَبْوَاءَ ثُمَّ بُوَاطَ ثُمَّ الْعُشَيْرَةَ

[٣٧٣٣] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا وَهْبٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ كُنْتُ إِلَى جَنْبِ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ فَقِيلَ لَهُ كَمْ غَزَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَةٍ قَالَ تِسْعَ عَشْرَةَ قِيلَ كَمْ غَزَوْتَ أَنْتَ مَعَهُ قَالَ سَبْعَ عَشْرَةَ قُلْتُ فَأَيُّهُمْ كَانَتْ أَوَّلَ قَالَ الْعُسَيْرَةُ أَوِ الْعُشَيْرُ فَذَكَرْتُ لِقَتَادَةَ فَقَالَ الْعُشَيْرُ [ر: ٤١٤٢، ٣٧٠١]

**په غزوه اوسريه كښې فرق:** په كوم قتال اوجهاد كښې نبى ﷺ په خپله باندې شركت كړې وى.هغې ته د سيردعالمانوپه اصطلاح كښې ،،غزوه،، وائى.اوپه كوم قتال اوجهاد كښې نبى ﷺ په خپله شركت نه وى كړې.بلكه څوك ئې امير مقرر كړې وى.اودصحابوﷺ ډله ئې د قتال اوجهاد دپاره ليږلې وى.هغه ته ،،سريه،، او ،،بعث،، وائى.

**دجهاد دسلسلې شروع د غزواتو نه شوې وه كه د سرايا نه؟:** خبره په دې كښې اوشوه.چه د جهاد دمشروعيت نه پس د جهاد ابتداء د سرايا نه شوې وه كه د غزواتو نه.داكثرو اهل سير دا رائې ده.چه ابتداء د سرايا نه شوې وه.د محمد بن سعد او واقدى هم دا رائې ده.(١) او ابن قيم رحمه الله په زاد المعاد كښې هم دا ليكلى دى.(٢) اوهم دا د حافظ ابن حجر رحمه الله او نورو محققينو رائې ده.(٣)

اولنۍ سريه دحمزه بن عبدالمطلب رضي الله عنه وه.دويمه سريه د عبيده بن الحارث رضي الله عنه وه. دريمه سريه د سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه وه.(٤) او بيا ددې نه پس غزوه ابواء چه ،،غزوه ودان،، ورته هم وئيلى شى.پيښه شوې وه.

---

.....دتيرمخ بقيه حاشيه] د ګيرچاپيره ماحول تقاضا دا ده.چه هرمسلمان د دعوت اوجهاد آوازجوړ شى.اوپه دوارو شعبو كښې د هرې شعبې سره يا كم ازكم د يوې سره منسلك وى.بلكه په حدودو كښې دننه دننه دې فكرمند شى اوكار دې كوى.څكه چه عالم اسلام ته نن د دې ځومره ضرورت دې.ګيدې شى چه چرته نه وو.

عالم ہمہ ویرانہ زچنگیزی افرنگ　　معمار حرم باز بہ تعمیر جہاں خیز
از خواب گراں، خواب گراں خواب گراں خیز

(١) اوګورئ طبقات ابن سعد (٢/٦) اوالكامل لابن الأثير (٢/٧٨)_
(٢) زاد المعاد (١/١٢٩)_
(٣) فتح البارى (١٦/٢٨٠)_
(٤) البته ابن اسحاق رحمه الله وغيره سريه عبيده بن الحارث ته اولنۍ سريه وائى.((قال ابن اسحاق فكانت راية عبيدة بن الحارث .. فيما بلغنى .. أول راية عقدها رسول الله ﷺ ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

**سريه حمزه بن عبدالمطلب:** سريه حمزه بن عبدالمطلب رضي الله عنه په باره کښې دا حضرات وائي. چه په رمضان کال يو هجرى کښې حضرت حمزه بن عبدالمطلب رضي الله عنه لره نبى ﷺ د ديرشو مهاجرينو د ډلې امير مقرر کړو.او ،،سيف البحر،، طرف ته ئې ورته د روانيدو حکم اوکړو. او وې فرمائيل چه د قريشو په درې سوو کسانو باندې مشتمله يوه قافله ددې تعاقب دې اوکړې شي.کومه چه د ابوجهل په قيادت کښې د شام نه راروانه وه.دا حضرات لاړل.اود قريشو د قافلې تعاقب ئې اوکړو.اودواړه مخامخ شو.خودقتال نوبت رانغلو.(١)

**سريه عبيده بن حارث رضى الله عنه:** ددې نه پس د شوال په مياشت کښې کال يو هجرى کښې نبى ﷺ حضرت عبيده بن الحارث رضي الله عنه د شپيتو يا اتيا مهاجرينويوه ډله ،،رابغ،، ته اوليږله.اود قريشو د قافلې د تعاقب حکم ئې ورته ورکړو.دا حضرات اورسيدل.دلته هم مخامخ په مخامخ شول. حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه يوغشې دکافرانو طرف ته ګزار کړو.دا دمسلمانانو د طرفه نه د ټولو نه اولنې غشې وو.کوم چه د کافرانو سره په جهاد کښې ويشتلې شوې وو.خودلته هم د قتال نوبت رانغلو.(٢)

**دکافرانو پنځې نه د مقداد او عتبه بن غزوان ازادى:** يوه واقعه دا اوشوه.چه حضرت مقداد بن عمرو او عتبه بن غزوان رضي الله عنهما دواړه صحابه وو.ايمان ئې راوړې وو.خود کافرانو په پنجه کښې بنديوان وو.د هجرت موقع ورته نه ملاويده.دا دواړه د قريشو د قافلې سره شول.په دې خيال که چرته موقع ملاؤ شوه.نو اوبه تختي.او مدينې ته به اورسى.کله چه د دې شپيتو يا اتيا مهاجرينو سريه د قريشو د قافلې په تعاقب کښې دوى ته اورسيده.نو هغوى ته ډيره ښکلې موقع ملاؤ شوه، او د کافرانو نه اووتل.د مسلمانانو سره شامل شول.او مدينې طيبې ته راغلل .د قريشو د قافلې سردار عکرمه بن ابى جهل يا مکرزبن حفص وو.(٣)

**سريه د سعد بن ابى وقاص رضى الله عنه:** دې نه پس په ذى قعده يو هجرى کښې نبى ﷺ د حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه سره د شلومهاجرينو يوې ډله کښې اوليږل.وادى ،،حرار،،(٤) کومه چه جحفة سره نزدې ده.هلته ئې ﷺ دوى ته د رسيدوحکم کړې وو.اود قريشو دقافلې دتعاقب دپاره ئې ورته وئيلى وو.دلته هم د قتال نوبت رانغلو.اودا حضرات واپس راغلل.(٥)

......دتيرمخ بقيه حاشيه....]فى الإسلام لأحد من المسلمين (السيرة النبوية لإبن هشام (٥٩٥\١) او نورو د سيرت عالمانو سريه د حمزة بن عبد المطلب رضي الله عنه ته اولنۍ وائي.حافظ ابن حجر رحمه الله ليکى.((وعند الأموى يقال أن حمزة بن عبد المطلب أول من عقد له رسول الله ﷺ فى الإسلام راية وكذا جزم به موسى بن عقبة وابو معشر والواقدى (فتح البارى (٢٨٠\٧)_~

(١) طبقات ابن سعد(٦\٢)_

(٢) تاريخ الطبرى (١٢١\٢)_

(٣) أيضاً دغه شان سيرة ابن هشام (ص.٥٩٢)_~

(٤) خرار .. موضع بالحجاز يقال هوقرب الجحفة وقيل واد من أودية المدينة وقيل ما ء بالمدينة وقيل موضع بالخيبر (معجم البلدان (٣٥٠\٢)_

(٥) طبقات ابن سعد (٨\٢) وسيرة ابن هشام (٢٠٠\١)_

**غزوه ابواء**: بيا په صفر دويمه هجرى كښې د غزوه ابواء واقعه پيښه شوه.په دې كښې رسول الله ﷺ په خپله تشريف اوړې وو.اود مهاجرينو يوه لويه ډله دوى سره شوه.حضرت سعدبن عباده ؓ لره نبى ﷺ د مدينې منورې حاكم جوړ كړو.د نبى ﷺ مقصد په بنو ضمره باندې حمله كول وو.اود قريشو د قافلې تعاقب،كول وو([1]) دقريشو قافله خو وتلې وه.البته د بنوضمره سره نبى ﷺ صلح اوكړه.په دې شرط چه هغوى به دمسلمانانو خلاف څه اقدام نه كوى.اود ضرورت په وخت به د مسلمانانو مدد كوى.اومسلمانان به د هغوى مدد كوى.([2]) دلته هم قتال اونشو.،،ودان،، او ،،ابواء،، چونكه نزدې نزدې دى.ددې وجې دې ته ،،غزوه ابواء،، هم وائى.او ،،غزوه ودان،، هم.([3])

**غزوه بواط**: ددې نه پس په ربيع الاول كښې د ،،غزوه بواط،، واقعه پيښه شوه.بواط (بفتح الباء وبضم الباء) دواړه شان وئيلى شى.دا د يو غر نوم دې.كوم چه د ،،ينبع،، سره نزدې دې.([4]) رسول الله ﷺ دې دپاره روان شو.او د دوى سره دلته هم يوه لويه ډله وه.صحابه كرام ؓ ته په دې غزوه كښې هم د قتال نوبت رانغلو.د قريشو قافله د كومې په تعاقب كښې چه نبى ﷺ روان شوې وو.اوپه لر څه كښې اووتله.او نبى ﷺ واپس تشريف راوړو په دې غزوه كښې نبى ﷺ سائب بن عثمان بن مظعون ؓ د مدينې حاكم جوړ كړې وو.([5])

**غزوه عشيره**: دې نه پس په جمادى الاولى دويمه هجرى كښې د ،،غزوه عشيره ،، واقعه پيښه شوه.دا عشيره مقام هم د ،،ينبع،، سره نزدې وو.([6]) دلته نبى ﷺ د مهاجرينو په دوو سوو يا دوه نيمو سووكسانو باندې مشتمل لښكر واخستل اولاړلو.دلته هم د قتال نوبت رانغلو. د قريشو قافله وتلې وه.نبى ﷺ په دې سفر كښې د بنى مدلج سره صلح اوكړه.([7])

---

[1] ) طبقات ابن سعد (٧١٢) وسيرة ابن هشام (٥٩١١١) وفتح البارى (٢٧٩١٧)_

[2] )وفى هذه الغزوة وداع مخشى بن عمروالضمرى وكان سيدهم فى زمانه على أن لا يغزو بنى ضمرة ولايكثروا عليه جمعاً ولايعينو عدواً وكتب بينه وبينهم كتاباً (طبقات ابن سعد (٨١٢)_

[3] )الأبواء قرية ممن عمل الفرع بينها وبين الجحفة من جهة المدينة ثلاثة وعشرون ميلاً والأبواء (بفتح الهمزة وسكون الموحدة) و ،،ودان،، مكانان متقاربان بينهما ستة أميال أو ثمانية (انظر فتح البارى(٢٧٩١٧) وطبقات ابن سعد (٨١٢) قال موسى ابن عقبة أول غزوة غزاها النبى ﷺ يعنى بنفسه ،،الأبواء،، (فتح البارى(٢٧٩١٧)_

[4] )ينبع مدينة بين مكة والمدينة .. وهى قريبة من طريق الحاج الشامى أخذ أسمه من الفعل المضارع لكثرة ينابيعها (معجم البلدان (٤٥٠١٥) وفى طبقات ابن سعد وبين ينبع والمدينة تسعة برد (طبقات ابن سعد (١٠١٢)

[5] ) سيرة ابن هشام (٥٩٨) د ابن سعد د بيان مطابق حضرت سعد بن معاذ ؓ د مدينې حاكم جوړ كړې شوې وو.اوګورئ (طبقات ابن سعد (٨١٢) والله اعلم_~

[6] )قال الحافظ فى الفتح (٢٨٠١٧) وأما العشيرة فلم يختلف على أهل المغازى أنها بالمعجمة والتصغيروآخرها هاء قال ابن اسحاق هى ببطن ينبع)_

[7] )طبقات ابن سعد(٩١٢و ١٠)_

په دې غزوه کښې ابوسلمه بن عبدالاسد مخزومي رضي الله عنه دمدينې حاکم مقرر کړې شوې وو.[1]
دا درې غزوات دی.د محمد بن اسحاق رائې دا ده.چه د ټولو نه وړاندې د ابواء واقعه پيښه شوې وه.اودا درې واړه سرايا کوم چه اکثر حضرات د اولنۍ هجرئ واقعات ښائی.دا د غزوه ابواء نه پس شوی دی.او دا د دويمې هجرئ واقعات دی.[2]

بهرحال امام بخاری رحمه الله د سرايا ذکر نه دې کړې.هغوی ذکر کړی دی.«أبواء ثم بواط ثم العشيرة» دا ترتيب د بخاری دی.او د جمهور هم دا رائې ده.اګرچه د بعضې خلقو رائې دا هم ده.چه په غزوات کښې ،،عشيره،، د ټولو نه وړاندې ده.[3]

**غزوه بدر اولی:** د غزوه عشيرة نه نبی صلی الله علیه وسلم په جمادی الاولی دويمه هجری کښې واپس راغلو. اس تقريبا لس ورځې د دوی شوې وې.چه کرزبن جابر فهری د مدينے طيبې په چراګاه باندې دشپې حمله اوکړه.نبی صلی الله علیه وسلم ته چه کله خبر ملاؤ شو.نو نبی صلی الله علیه وسلم د مهاجرينو يو جماعت سره دهغوی په تعاقب کښې روان شو.او مقام ،،سفوان،، ته اورسيدل.کوم چه د بدر سره نزدې دې.او هغه د نيولو او حملې نه بچ شو.نبی صلی الله علیه وسلم واپس راغلو.دې ته غزوه بدر اولی او غزوه سفوان هم وائی.په دې غزوه کښې هم قتال نه وو شوې.[4] په دې غزوه کښې نبی صلی الله علیه وسلم حضرت زيدبن حارثه رضي الله عنه د مدينې حاکم مقرر کړې وو.[5]
کرزبن جابر فهری ته روستو الله تعالی د اسلام توفيق نصيب کړو.دعرنيين واقعه چه کله پيښه شوه.[6] هم ددوی په قيادت کښې د صحابو رضي الله عنهم يوه ډله نبی صلی الله علیه وسلم د عرنيينو په تعاقب کښې اوليږله.

**سريه د عبدالله بن جحش رضي الله عنه:** ددې نه پس کله چه په رجب دويمه هجری کښې د عبدالله بن جحش دسريهٔ واقعه پيښه شوه.دا سريه په دولسو کسانو باندې مشتمله وه.او

---

[1] )طبقات ابن سعد(٩\٢)_
[2] ) قال ابن اسحاق فی أمر کل هذه السرايا .. أن ذلک کله کان فی السنة الثانية من وقت التاريخ (تاريخ الطبری (١٢٠\٢)_
[3] )دبخاری شريف د کتاب المغازی په اولنی حديث کښې زيد بن ارقم رضي الله عنه ،،غزوه عشيره،، ته اولنۍ غزا وئيلې ده.ددې تفصيل په دې حديث کښې راځی)_~
[4] ) سيرة ابن هشام (٦٠٨) البته د سعد په نيز باندې دغزوه بدر اولی د غزوه عشيرة نه وړاندې ده.دهغوی په نيز غزوه بدر اولی په ربيع الاول دويمه هجرئ کښې او غزوه عشيره په جمادی الاخری دويمه هجرئ کښې پيښه شوې وه.(طبقات بن سعد (٩\٢)_~
[5] )طبقات ابن سعد(٩\٢) وسيرة ابن هشام (٦٠١)_
[6] )وفی الإصابة (٢٩٠\٣) کرزبن جابر رضي الله عنه القريشی الفهری کان من رؤساء المشرکين قبل أن يسلم .. ثم أسلم .. بعث النبی صلی الله علیه وسلم فی آثارهم (أی العرنيين) خيلاً من المسلمين أميرهم کرزبن جابر .. وأمر النبی صلی الله علیه وسلم خالدبن الوليد أن يدخل من أعلی مکة فقتل من خيل خالد يمئذ رجلان وهما حبيش بن الأشعر الخزاعی وکرزبن جابر الفهری)_

حضرت عبدالله بن جحش رضی الله عنه د دوی امیر مقرر کړې شوي وو.حضرت عبدالله بن جحش رضی الله عنه ته نبی صلی الله علیه وسلم یو خط ورکړو او دا ئې ورته اوونیل. چه دوه ورځې مزل کولونه پس به دا خط پرانیځې.اوکوم مضمون چه په دې کښې لیکلی شوې دې.دهغې مطابق به عمل اوکړې. نودا دولس کسان روان شول.دوه ورځې د مزل کولونه پس چه ئې کله خط پرانستلو .نو په هغې کښې لیکلی وو.چه تاسو د مکې او طائف په مینځ کښې ،،مقام نخله،، ته تاسو اورسئ.نود قریشو خبرمونږ ته راولیږئ.اوملګرو ته اختیار ورکړئ.چه د چا زړه غواړی. تاسو سره دې لاړ شی.اوچه د چا زړه غواړی.نو واپس دې راشی.حضرت عبدالله بن جحش رضی الله عنه هغه خط پرانستلو.او خپلې ملګرو ته ئې واورولو.ټول ملګری حضرت عبدالله بن جحش رضی الله عنه په تلو باندې تیار شول.([1])

په دوی کښې حضرت سعدبن ابی وقاص،حضرت عتبه بن غزوان،حضرت واقد بن عبدالله، حضرت مقداد بن عمرو،حضرت ابوحذیفه بن عتبه،حضرت عامر بن ربیعه، حضرت خالدبن بکیر،حضرت عامربن ایاس،حضرت عکاشه بن محصن.حضرت سهیل بن بیضاء،حضرت صفوان بن بیضاء رضی الله عنهم دا یوولس کسان وو.اودولسم حضرت عبدالله بن جحش رضی الله عنه امیر وو. ([2])

---

[1] ) نبی صلی الله علیه وسلم په اول کښې د تلو یا ایساریدو اختیار نه وو ورکړې.بلکه فرمائیلې ئې وو.چه دوه ورځې د مزل کولو نه پس اختیار دې.چه دچا خوښه وی.لاړ دې شی.اوچه دچا خوښه وی واپس دې شی.په دې کښې مصلحت دا وو.که په اول کښې نبی صلی الله علیه وسلم اختیار ورکړې وو.نو ممکن وه.چه ټول په تلوباندې آماده شوی وو.خکه چه سړی ته د سفرد مشقت اندازه د اول نه نه کیږی.او چه روسته د سفر تکلیف اووینی.کیدې شی.چه څوک پښیمانه شوې وو.چه نبی صلی الله علیه وسلم راته اختیار راکړې دې.نو بیا مونږ ولې نه پاتې کیږو.ددې وجې نبی صلی الله علیه وسلم د دوو ورځو سفر کولو نه پس د وړاندې تلو او واپس کیدو اختیار ورکړو.خکه چه د دوو ورځو د سفر دمشقت اندازه به ټولو ته شوې وی.دوه ورځې مزل کولونه پس چه کله ورته خط واورولې شو.نو د ابن اسحاق او ابن هشام د روایت مطابق ټول ښه په رضا باندې لاړل.اوڅوک هم واپس نشو.البته په معجم طبرانی کښې د جندب بجلی رضی الله عنه په روایت کښې دی.چه ((فرجع رجلان ومضی الباقون)) دوه کسان واپس شول.او نور ټول لاړل.والله اعلم. (اوګورئ سیرة ابن هشام (۶۰۱) وفتح الباری (۱۵۵\۱۱)دغه شان ابن کثیر رحمه الله د جندب بن عبدالله په روایت کښې هم د دوو کسانود واپس کیدو ذکرشته. اوګورئ تفسیرابن کثیر(۲۵۲\۱)_~

[2] )حضرت عبدالله بن جحش رضی الله عنه جلیل القدر صحابی دې.په سابقین اولینو کښې دې.جنګ بدر کښې دهجرت او حبشه طرف ته د هجرت کولو سعادت دوی ته حاصل دې.نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه کله دوی ددې سریه امیر جوړولو.نو وې فرمائیل.((لأبعثن علیکم رجلاً أصبر کم علی الجوع والعطش))زه په تاسو باندې داسې کس امیر جوړوم.چه هغه به په تاسو کښې د لوږې زیات صبر کونکې وی.په جنګ احد کښې د دوی توره ماته شوه.نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم دوی ته د ځجورې لختې ورکړه.هغه لختې ددوی په لاس کښې توره شوه.روسته دا توره په دوه سوه دیناره باندې خرڅ کړې شوه .هم په جنګ احد کښې دوی دځپل ځان دپاره د شهادت دعا کړې وه.اودشهادت لویه درجه ئې بیا موندله.دسید الشهداء حضرت امیرحمزه رضی الله عنه سره په یو قبر کښې دفن کړې شو.رضی الله عنه ورضی عنه (اوګورئ الاصابة فی تمیزالصحابة (۲۸۶\۲و ۲۸۷)_~

دا حضرات چه کله مقام نخله ته اورسيدل.نو عمروبن الحضرمی د قریشو قافله اخستې وه.اودوی سره ملاؤ شو.حضرت واقدبن عبدالله په غشی باندې ګزاراوکړو.په هغې باندې عمروبن الحضرمی اولګیدلو.اوهغه مړ شو.(۱) دهغه ملګری اوتختیدل.د هغوی په مالونوباندې مسلمانانو قبضه اوکړه.دااولنې غنیمت وو په اسلام کښې چه مسلمانانو ته په لاس راغلو.او عمروبن الحضرمی په تاریخ اسلام کښې دکافرانو اولنې مقتول وو.کوم چه د مسلمانانو دطرفه مړ کړې شو.

حضرت عبدالله بن جحش رضی الله عنه په خپل اجتهاد سره مال غنیمت تقسیم کړو.یوخمس ئې د بیت المال دپاره او ،،اربعة اخماس،، (څلورحصې) ئې په غانمینوکښې تقسیم کړو .بیا ددې نه پس مدینې منورې ته راغلل.او نبی صلی الله علیه وسلم ته ئې ټول حالات بیان کړل.هغه مال غنیمت ټولوسره محفوظ وو.

چونکه د رجب میاشت وه.او رجب په اشهرالحرم کښې وه.صحابه کرامو رضی الله عنهم دا ګمان اوکړو.چه دا د جمادی الثانی آخرې تاریخ دې.او په اصل کښې هغه د رجب تاریخ وو.نوځکه مشرکانو دا وئیل شروع کړل.چه دوی په اشهرالحرم کښې هم قتال جائز اوګرځولو.د حضرت ابراهیم علیه السلام په ملت کښې په اشهرالحرم کښې د قتال اجازت نه وو. اشهرحرم ،ذی قعده،ذی الحجه،محرم او رجب څلور میاشتې دی.چونکه په ذی الحجه کښې حج کیدو.نو یوه میاشت ددې نه وړاندې کوم چه حج ته د راتلو دپاره ده.اویوه میاشت روسته کومه چه د حج نه دواپسئ دپاره ده.اویوه میاشت دحج،په دې درې واړو کښې قتال حرام کړې شوې وو.دې دپاره چه خلق په آرام او اطمینان سره حج اوکړی.د رجب میاشت به د عمرې دپاره وه.ېنخلس ورځې بیت الله ته د راتګ دپاره اوپنځلس ورځې د واپس تلو دپاره،دا میاشت هم د قتال دپاره ممنوع وه.

په دې میاشتوکښې یوخود حج او عمرې د احترام د وجې قتال ممنوع شوې وو.او دویمه خبره دا وه.چه هم هغه زمانه وه.چه په دې کښې به غلة یوځاې نه بل ځاې ته منتقل کیده.دې دپاره چه دا محفوظ پاتې شی.په دې څلورو میاشتوکښې دحضرت ابراهیم علیه السلام د زمانې راسې قتال ممنوع وو.(۲) اود ملت ابراهیمی په بقایا کښې دا خبره په مشرکانو کښې

---

(۱) وقالت الیهود تفاول بذلک علی رسول الله صلی الله علیه وسلم عمروبن الحضرمی قتله واقدبن عبدالله ،عمرو،عمرت الحرب، والحضرمی، حضرت الحرب،وواقدبن عبدالله وقدت الحرب، فجعل الله ذلک علیهم لا لهم (سیرة ابن هشام (۱۱/۶۰٤)_

(۲) وفی الروض الأنف للسهیلی: ثم جعل الله الأشهر الحرم أربعة، ثلاثة سرداً وواحداً فرداً وهو رجب،أما الثلاثة فلیأمن الحجاج واردین إلی مکة وصادرین عنها شهراً قبل شهر الحج وشهراً بعده قدر ما یصل الراکب من أقصی بلاد العرب ثم یرجع حکمة من الله وأما رجب فللعمار یأمنون مقبلین وراجعین نصف الشهر للإقبال ونصفه للإیاب .. فکانت الأقوات تأتیهم فی المواسم وفی سائر العام تنقطع عنهم ذوبان العرب وقطاع السبل فکان فی رجب أمان للسالکین إلیها مصلحة لأهلها ونظراً من الله لهم دبره وإبقاءه من ملة إبراهیم لم یغیر ،،حتی جاء الإسلام (الروض الأنف (۲/۶۰۱)_

مشهوره او رائجه وه.دا واقعه په ديرشم رجب باندې پېښه شوې وه.چه مشركانو ډير شور جوړ كړو.نو الله تعالى دا آيات نازل كړو. ﴿يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ ۭ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ ۭ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌۢ بِهٖ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۤ وَاِخْرَاجُ اَهْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ۭ وَلَا يَزَالُوْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ حَتّٰى يَرُدُّوْكُمْ عَنْ دِيْنِكُمْ اِنِ اسْتَطَاعُوْا ۭ﴾ [1]

خلق تاسونه په شهرحرام كښې دقتال په باره كښې تپوس كوى.تاسو ورته اوفرمائى .چه په دې كښې (په قصد سره) قتال كول ډيره لويه ګناه ده.خودالله تعالى د لارې نه څوك منع كول او دالله تعالى سره شرك كول اود مسجد حرام نه منع كول اواهل حرم دحرم نه ويستل دالله تعالى په نيزلوې جرمونه دى.او فتنه پيدا كول د قتل نه په څوچنده لويه ګناه ده.اودا كافران به هميشه دپاره تاسو سره جنګ كوى.دې دپاره چه تاسو د دين نه واړوى.كه طاقت ئې كيږى.

مطلب دا دې.چه په كومه طريقه په اشهرالحرم كښې قتال كول حرام اوګناه ده.هم په دغه طريقه دمسجد حرام نه منع كول د دې نه لويه ګناه ده.اودغه شان د الله تعالى سره كفر كول ددې نه لوې جرم دې.

كله چه دا آيت نازل شو.نو دغه مجاهدينو ته خيال راغلو.چه په دې قتال به مونږ ته اجر او ثواب هم ملاويږى كه نه؟ نو آيت نازل شو. ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۙ اُولٰۗىِٕكَ يَرْجُوْنَ رَحْمَتَ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ [2]

كومو كسانو چه ايمان راوړې دې.اوهجرت ئې كړې دې.اودالله په لار كښې ئې جهاد كړې دې.هم داسې خلق د الله تعالى د رحمت اميد ساتى.الله بښونكې او مهربانه دې.

په دې آيت كښې دوى ته بشارت وركړې شو.چه دوى دپاره اجر شته.نبى كريم ﷺ ددې آيت د نزول نه پس هغه مال غنيمت د كوم تقسيم چه عبدالله بن جحش رضي الله عنه په خپل اجتهاد سرد كړې وو.د هغوى دغه تقسيم باقې اوساتلو.يو خمس ئې د بيت المال دپاره او څلور اخماس ئې د غانمينو دپاره مقرر كړو.[3]

او يوه واقعه دا پېښه شوه.چه د حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه او حضرت عتبه بن غزوان رضي الله عنه اوښ په لاره كښې ورك شو.دا دواړه د دغه اوښ په لټون كښې اووتل.اود دولسو صحابه كرامو رضي الله عنهم كومه ډله چه وه.[4] هغوى سره مدينې ته اونه رسيدل.هلته دغه صحابو رضي الله عنهم د كافرانو دوه كسان حكم بن كيسان او عثمان بن عبدالله اونيول.

---

[1] )سورة البقرة:۲۱۷)_

[2] )سورة البقرة:۲۱۸)_

[3] )تفسير ابن كثير (۲۵۴/۱)_

[4] )دلته دې دا خبره ياده وى.چه د واقدى اوابن سعدد روايت مطابق دولس تعداد دې.او په ابن اسحاق،ابن هشام او طبرى كښې دعروه په روايت د جماعت د امير نه بغيرد دوى تعداد اته وو.او د اميرسره ئې نهه ذكر كړى دى.اود سدى په روايت كښې د اوو كسانو ذكردې.(اوګورئ سيرة ابن هشام(۶۰۱) وتاريخ طبرى (۱۲/۲)و ۱۲۶) وطبقات ابن سعد(۱۰/۲) دغه شان فتح البارى (۱۵۵/۱) باب ما يذكرفى المناولة كتاب أهل العلم بالعلم إلى البلدان وتفسير ابن كثير (۲۵۲/۱)_

قریشو د دغه دووکسانو فدیه راولیږله.نبی ﷺ اوفرمائیل.چه زمونږدوه ملګری سعد بن ابی وقاس اوعتبه بن غزوان رضی الله عنهما چه ترڅو پورې صحیح سالم نه وی راغلی.مونږ دا قیدیان نه پرېږدو.که تاسو هغوی قتل کړل.نو مونږ به ستاسوکسان قتل کوو .
روسته حضرت سعداوعتبه رضی الله عنهما راورسیدل.نو نبی ﷺ د دغه قیدیانو،فدیه واخستله.او پرې ئې خودل.حکم بن کیسان رضی الله عنه خو مسلمان شو.او مکې ته واپس لانړلو.او دویم قیدی عثمان بن عبدالله واپس لاړو.اودکفر په حالت کښې مړ شو.
دغزواتو او سرایا په دې تاریخی منظرباندې د پوهیدو نه پس اوس لږکتاب طرف ته راشئ:
امام بخاری رحمه الله ددې کتاب عنوان قائم کړې دې.«کتاب المغازی» مغازی د ،،مغزی،، جمع ده.مغزی مصدر میمی هم کیدې شی.او ظرف مکان هم.دلته مصدری معنی متعین ده.د «غزایغزوغزواًومغزی»په معنی د قصد او ارادې راځی. (مغزی الکلام مقصده»
دلته دمغازی نه مراد «ماوقع من قصد النبی ﷺ الکفار بنفسه أولجیش من قبله» هغه قصد کوم چه نبی ﷺ کافرانو طرف ته کړې وی.برابره ده که په هغې کښې نبی ﷺ په خپله شریك شوې وی.اوکه دخپل طرف نه ئې د یو لښکر په لیږلو باندې اکتفاء کړې وی.
امام بخاری رحمه الله په کتاب المغازی کښې د ټولو نه وړاندې د حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه روایت ذکرکړې دې.چه د هغوی نه کله تپوس اوشو.چه د نبی ﷺ د غزواتو شمار څومره دې؟ نو هغوی اوفرمائیل.نورلس،تپوس کونکی تپوس اوکړوچه تاسو د نبی ﷺ سره په څومره غزاګانو کښې شرکت کړې وو؟ نو وې فرمائیل.په اوولس غزاګانو کښې ،راوی تپوس اوکړو.چه د ټولونه وړاندې کومه غزا واقع شوې وه.حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه جواب ورکړو.غزوه عشیره یا عسیره،د حدیث راوی شعبه وائی.«فذکرت ذلك لقتادة رحمه الله فقال العشیر»
ترکومې پورې چه د غزوه عسیرة تعلق دې.نوهغه خو غزوه تبوك ده.دا د نبی ﷺ د ټولو نه آخری غزوه وه.او په دې کښې مسلمانان د عسر او مشقت سره مخامخ شوی وو. هم ددې په باره کښې قرآن پاك وئیلی دی.﴿ الَّذِينَ اتَّبَعُوْهُ فِيْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ ﴾ اوهم ددې وجې دې ته ،،عسیره،، وائی.
په حدیث باب کښې دی.«قلت فأیهم کانت أول؟» دعربئ قواعدو په رڼا کښې «فأیها» یا «فأیتهن» پکار وه.ځکه چه د ضمیر مرجع غزوة یا غزوات دی.هم دا وجه ده.چه د ترمذی په روایت کښې «فأیتهن» دی.بعضې تاویل کړې دې.چه «فأیهم» کښې مضاف محذوف دې. تقدیر د عبارت دا دې.«فأی غزوتهم».
په دې حدیث مبارك کښې حضرت زیدبن ارقم رضی الله عنه غزوه عشیره اولنئ غزوه ګرځولې ده. حالانکه ددې نه وړاندې غزوه ابواء اوغزوه بواط دوه غزاګانې واقع شوې وې.په دې لحاظ سره غزوه عشیره اولنئ نه دریمه غزوه ده.(دکومې تفصیل چه تیرشوې دې) علامه عینی رحمه الله په عمدة القاری کښې ددې په جواب کښې دا تاویلونه کړی دی.
① «إما أن یکون زید بن ارقم لم یکن یومئذ أسلم»

(٢) ((أو كانت ثلاث غزوات صغيرة فإن من عد من الصحابة ﷺ ذكر أعظمها)) يعني په صحابو ﷺ كښې به څنې حضراتو لوې لوې غزاګانې شمارلې.او ورې غزاګانې ئې نه شمارلې.اود غزود عشيره نه وراندې چه کوم درې غزاګانې شوې وې.هغه ورې ورې.ددې وجې زيد بن ارقم ﷺ د هغې ذکر اونکړو.اوغزوه عشيرې ته ئې اولنۍ غزا اووئيله.[1]

(٣) ((أو كانت ..بالنسبة إلى علمه))

علامه عينى رحمه الله دا درې واړه توجيهات کړى دى.په فتح البارى کښې حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باره کښې ليکى.

(١) ((فقات زيد بن ارقم ﷺ ذكر ثنتين منها ولعلهما الأبواء وبواط وكان ذلك خفي عليه لصغره))

(٢) ((ويحمل قول زيد بن ارقم على أن العشيرة أول ما غزا هو أى زيد بن ارقم والتقدير فقلت ما أول غزوة غزاها أى وأنت معه؟ قال العشير))

(٣) ((اوعد الغزوتين وتهين واحدة.))

(الف) ددې توجيهاتو خلاصه دا شوه.چه حضرت زيدبن ارقم ﷺ غزوه عشيره ته اولنۍ غزا د خپل علم مطابق وئيلى دى.اود اولنو دوو غزاګانو دوى ته علم نه وو.ددې وجې چه په هغه وخت کښې دوى اسلام نه وو قبول کړې.اويا دخپلې کم عمرۍ د وجې هغوى ته علم نه وو.

(ب) حضرت زيدبن ارقم ﷺ دخپل شرکت په اعتبار سره دې ته اولنۍ غزا وئيلې ده. چه دا د دوى اولنۍ غزا وه.چه دوى په کښې شرکت کړې وو.د ټولوغزاګانو په اعتبارسره اولنۍ غزا وئيل دهغوى مقصود نه وو.

(ج) چونکه ابواء،بواط او عشيره درې واړه غزاګانې په نزدې نزدې زمانه کښې شوې وې.ددې وجې حضرت زيدبن ارقم ﷺ اولنۍ دوه غزاګانې مستقل شمار نکړې.لکه څنګه چه څنې اصحاب سيرد غزوه احزاب نه پس غزوه قريظه مستقله نه ده شمار کړې. ځکه چه هغه د غزوه احزاب سره بيخى متصل وه.اودغه شان څنى حضراتو غزوه حنين او طائف دوه غزاګانې د قرب د وجې يو شمار کړى دى.

دعلامه عينى رحمه الله په دويمه توجيه باندې دا اشکال کيږى.چه که د ورو او معمولى کيدو په وجه ئې د دوو غزاګانو ذکرنه وى کړې.نوبيا د عشيره د غزا ذکرهم نه ووېکار.ځکه چه هغه هم څه لويه غزوه نه وه.اود ابواء اوبواط پشان په دې کښې هم قتال نه ووشوې.[2] والله اعلم.

---

[1] )دغزوه عشيره‌نه وراندې اکثر اهل سير د دوو غزواتو (ابواء او بواط) ذکر کړې دې.البته ابن سعد د درې غزواتو ذکرکړې دې.د هغوى په نيز غزوه بدر اولى (غزوه د کرزبن جابر) هم دغزوه عشيره نه وراندې ده.علامه عينى رحمه الله په دې دويمه توجيه کښې ((أوكانت ثلاث غزوات)) دابن سعد د روايت په وجه وئيلى دى.اوګورئ طبقات ابن سعد (٩٠٨\٢)_~

[2] )اوګورئ عمدة القارى (٧٤\١٧) وفتح البارى (٢٨٠\٧و ٢٨١)_~

**دغزواتو تعداد:** په حدیث باب کښې دحضرت زیدبن ارقم رضی الله عنه نه د غزواتو په باره کښې تپوس شوې دې.دغزواتو په تعداد کښې د اصحاب سیرمختلف اقوال دی.
① د ابن سعد ،ابن اسحاق او واقدی رحمهم الله وغیره په نیز د غزواتو تعداد اوو ویش دی.
② په عبدالرزاق کښې په صحیح سند سره د حضرت سعیدبن المسیب رحمه الله نه د غزواتو تعداد څلورویش منقول دې.
③ دحضرت جابربن عبدالله نه یوویش غزوات منقول دی.(١)
④ دحضرت بریده رضی الله عنه نه په یو روایت کښې د شپاړسو تعداد مروی دې.(٢)
⑤ دبخاری په ذکرشوی حدیث کښې حضرت زیدبن ارقم رضی الله عنه د نورلس تعداد خودلې دې.
⑥ محمدبن جریرطبری رحمه الله په خپل تاریخ کښې د غزواتو تعداد شپږ ویش خودلې دې.(٣)
مشهوره او صحیح خبره هم دا ده،چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د غزاګانو تعداد اوویش دې. (٤)
په دې اوویش غزواتو کښې نبی صلی الله علیه وسلم په نهه کښې قتال کړې وو. بدر، احد، خندق، قریظه ،مصطلق،خیبر ،فتح مکه،حنین او طائف (٥)
**د سرایا شمار:** دغزواتو په شمار کښې د اختلاف پشان د سرایا په تعداد کښې هم اختلاف دې.① په اصحاب سیر کښې د ا بن اسحاق اوابن هاشم په نیز باندې د سرایا شمار اته دیرش دې.(٦) ② ابن سعد رحمه الله په طبقات کبری کښې د سرایا تعداد اووه څلویښ لیکلی دی.(٧) ③ د واقدی په نیزاته څلویښت دې.④ ابن جوزی رحمه الله په تلقیح کښې د ۵۲ خودلې دې.⑤ د مسعودی په نیز د سرایا تعداد شپیته (۶۰) دې.(٨) ⑥ محمدبن جریرطبری رحمه الله په خپل سند سره د محمد بن اسحاق نه د ۳۵ سرایا تعداد نقل کړې دې.(٩)
دغزواتو او سرایا په تعداد کښې دا اختلاف څه حقیقی اختلاف نه دې.یوخو ددې وجې چه

---

(١)طبقات ابن سعد(۲\۵) سیرة ابن هشام مع الروض الأنف (۲\۳۵٤) وفتح الباری (۷\۲۸۱)_
(٢)عمدة القاری (۱۷\۳۳)_
(٣)علامه طبری رحمه الله لیکی، ((وکانت غزواته بنفسه ستا وعشرین غزوة ویقول بعضهم هن سبع وعشرون غزوة فمن قال هی ست وعشرون جعل غزوة النبی صلی الله علیه وسلم خیبر وغزوته من خیبر إلی وادی القری غزوة واحدة .. ومن قال هی سبع وعشرون غزوة جعل غزوة خیبر وغزوة وادی القری غزة أخری فیجعل العدد سبعاً وعشرین (تاریخ الطبری (۲\٤۰٤)
(٤) وراندې ابن جریر لیکی،((قال محمد بن عمر: مغازی رسول الله صلی الله علیه وسلم لیس فیها إختلاف بین أحد فی عددها وهی سبع وعشرون غزوة تاریخ الطبری (۲\٤۰۵)_
(٥)اوګورئ الکمال لابن الاثیر (۲\۲۰۷) سیرة ابن هشام مع الروض الأنف (۲\۳۵٤)_
(٦)سیرة ابن هشام مع الروض ا لأنف (۲\۳۵٤)_
(٧)طبقات کبری (۲\۶)_
(٨) فتح الباری (۷\۲۸۱)_
(٩)تاریخ طبری (۲\٤۰۵)_

عدد اقل د عدد اکثر نفی نه کوی.ممکن ده.چه ځنو ته د څه غزواتو علم نه وو.ددې وجې هرکس دخپل علم مطابق تعداد خودلې دې.
دویمه دا چه ځنی اصحاب سیر قریب الوقوع یا په یو سفر کښې واقع کیدونکې غزوات یو شماری.ددې وجې د هغوی خودلې شوې تعداد کم دې.اونورو اصحاب سیر غزوات اوسرایا جدا جدا شماری.نودهغوی په نیزتعداد زیات شوې دې.لکه امام مغازی موسی بن عقبه غزوه احزاب اوغزوه خندق د قریب الوقوع په وجه یو شمار کړې ده.دغه شان بعضې اهل سیرو حنین او طائف دواړه غزاګانې یوشمارلی دی.([1])
دغه شان ځنو غزوه خیبر او غزوه وادی قری په یوسفر کښې د واقع کیدو په وجه یوه شمارلې ده.اوبعضې اهل سیرجدا جدا شمارلی وی.([2])

① بَاب غَزْوَةِ الْعُشَيْرَةِ ② بَاب ذِكْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُقْتَلُ بِبَدْرٍ ③ بَاب قِصَّةِ غَزْوَةِ بَدْرٍ ④ بَاب قَوْلِ اللهِ تَعَالَى إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ ⑤ باب بلا ترجمة ⑥ بَاب عِدَّةِ أَصْحَابِ بَدْرٍ ⑦ بَاب دُعَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى كُفَّارِ قُرَيْشٍ ⑧ بَاب قَتْلِ أَبِي جَهْلٍ ⑨ بَاب فَضْلُ مَنْ شَهِدَ بَدْرًا ⑩ باب بلا ترجمة ⑪ بَاب شُهُودِ الْمَلَائِكَةِ بَدْرًا ⑫ باب بلا ترجمة ⑬ بَاب تَسْمِيَةُ مَنْ سُمِّيَ مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ

امام بخاری په دې بابونو کښې دغزوه بدر سره متعلق هغه احادیث ذکر کړی دی.کوم چه ددوی د مخصوص شرطونو د دائرې لاندې راځی.اودخپل عادت مطابق ئې داسې احادیث هم راوړی دی.کوم چه غزوه بدر سره متعلق نه دی.خود څه خاص مناسبت په وجه ئې هغه ذکر کړی دی.
په تقریرکښې حضرت شیخ الحدیث مد ظلهم غزوه بدر اول ښه پوره په تاریخی تفصیل سره مربوط کړې ده.اوبیان کړې ده.اوددې نه پس ئې د ابواب بخاری سره متعلقه لفظی او نور ضروری بحثونه کړی دی.تاسو اول دا تفصیلی قصه واورئ.وړاندې به د بابونو په تشریح کښې صرف دهغه مباحثو ذکر کیږی.کوم چه دحدیث لفظی تشریح ،او ترجمة الباب سره متعلق وی.یا هغه واقعات کوم چه په ماقبل کښې نه وی ذکر شوی.(ازمرتب)

## ٢=بَاب ذِكْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُقْتَلُ بِبَدْرٍ

**غزوه بدر کبری:** نبی کریم ﷺ په غزوه عشیره کښې د قریشو کومې قافلې په تعاقب کښې وتلې وو. هغه قافله شام ته دتجارت په غرض باندې روانه وه.په هغه وخت کښې دغه قافله بچ شوه او په وتلو کښې کامیابه شوه.اوس هم هغه قافله د سامان تجارت سره د شام نه مکې ته واپس راتلله.نبی کریم ﷺ ته معلومه شوه.چه قافله واپس راځی.نبی ﷺ صحابو ﷺ ته اوفرمائیل.اود دغه قافلې په تعاقب کښې د وتلو ذکرئې اوکړو.
په مسند احمد کښې دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ د روایت مطابق درې سوه دیارلس او

---

[1] )تاریخ طبری (٢\٤٠٤)_
[2] )تاریخ طبری (٢\٤٠٤)_

په معجم طبراني كښې د حضرت ابو ايوب انصاري ﷺ د روايت مطابق درې سوه څوارلس اوپه بيهقي كښې دحضرت عبدالله بن عمروبن العاص ﷺ د روايت مطابق درې سوه پنځلس صحابه كرام ﷺ د نبي ﷺ سره د قريشو د قافلې د تعاقب دپاره روان شول.(١) د رمضان دولسم تاريخ وو.(٢) چونكه د څه مسلح فوځ او مسلح لښكرسره د مقابلې موقع نه وه. په صحابه كرامو ﷺ كښې چه څوك جمع وو.او څوك په تلوباندې آماده شول.هغوى لاړل.اوهغوى د جنګ څه تيارې نه ووكړې.(٣) دوه اسونه وو،يو دحضرت مقداد بن اسود او بل د حضرت زبيربن العوام ﷺ وه.او اويا اوبنان وو.(٤) دا حضرات په دې اوبنانو باندې وار په وار سوريدل.د دوو دوو او دريو دريو په حصه كښې يو يو اوبښ راغلې وو.د رسول الله ﷺ سره حضرت علي او حضرت ابولبابه بن عبدالمنذر ﷺ وو.كله چه به د نبي ﷺ وار راغلو.نو نبي ﷺ به په اوبښ باندې سور شو.اودا حضرات به پيدل روان وو.اوكله چه به دهغوى وار راغلو.نو يوبل پسې به سوريدل.او نبي ﷺ به پيدل تلل.حضرت علي ﷺ په خپل وار باندې دوى ته درخواست اوكړو.چه حضرت تاسو په اوبښ تشريف كيږدئ.زه به پيدل ځم.او حضرت ابولبابه ﷺ هم دا درخواست كړې وو.خو نبي ﷺ اوفرمائيل.په تګ كښې تاسو زما نه زيات تكړه نه ئې.او زه په اجر كښې ستاسو نه زيات مستغني نه يم.ماته هم د ثواب ضرورت دې.(٥)

بيرابي عنبه كوم چه د مدينې طيبې سره بيخي نزدې د يوميل په فاصله باندې دې.چه هلته اوسيدل.نو نبي ﷺ دلښكرمعائنه اوكړه.اوپه دوى كښې چه كوم د كم عمر وو.هغوى ئې واپس كړل.د هغه ځاې نه روان شو.او مقام روحاء ته اورسيدل.هلته نبي ﷺ حضرت ابولبابه بن عبدالمنذر ﷺ دخپل قائم مقام په حيثيت د مدينې حاكم جوړ كړو.او مدينې منورې ته ئې اوليږلو.(٦) بيا د روحاء نه نبي ﷺ روان شو.او په لاره كښې ئې بسبس بن عمروجهني

---

(١) په جنګ بدر كښې د شريكو صحابو ﷺ په شمار كښې اختلاف د رواياتو او په هغې كښې تطبيق د پوره تفصيل سره په ((باب عدة أصحاب البدر)) لاندې راځي.)_

(٢)طبقات ابن سعد(١٢\٢)_

(٣)سيرة ابن هشام (٦٠٧) وطبقات ابن سعد (١٢\٢) وفتح البارى (٢٨٥\٧)_

(٤)دحضرت مقداد ﷺ داس نوم ،،سبحه،، وو.اود حضرت زبير ﷺ د اس نوم ،،سيل،، وو.په ځنې رواياتو كښې دى.چه دويم اس دحضرت مرثد بن ابى مرثد غنوى ﷺ وو.اوګورئ (الكامل لابن الأثير (٨٣\٢)

(٥)عن عبدالله قال كنا يوم بدر كل ثلاثة على بعير،وكان على وأبو لبابة رضى الله عنهما زميلى رسول الله ﷺ وكان إذا كانت عقبته قلنا إركب حتى غشى فيقول (ﷺ) ما أنتما بأقوى منى وما أنا بأغنى عن الأجر منكم الحديث أخرجه الحاكم فى المستدرك (٢٠١٣) وأقره الذهبى،،

په حضرت علي ﷺ باندې خو ټول روايات متفق دى.البته د بل صحابي ﷺ په نوم كښې اختلاف دې.دحاكم د ذكرشوى روايت مطابق حضرت ابولبابه ﷺ دي.دابن اسحاق په نيز مرثدبن ابى مرثد غنوى ﷺ دي.اوابونعيم د زيد بن حارثه ﷺ نوم ليكلې دې.اوګورئ سيرت ابن هشام (٦١٣\١) وكامل ابن اثير (٨٣\٢) كه په مختلفو وختونو او مراحلوباندې محمول كړې شى.نو مطابقت راتلې شى.

(٦)طبقات ابن سعد(١٢\٢)_

اوعدى بن ابى الرغباء جهنى ﷺ ته حکم اوکړو.چه هغوی د قریشو حالات معلوم کړی.اود قافلې په باره کښې دې هم معلومه کړی.ددې نه پس نبی ﷺ مقام صفراء ته اورسیدل.[1] نونبی ﷺ ته معلومه شوه.چه قریش د تجارتی قافلې د حفاظت په غرض یو لوې لښکر راروان کړې دې.دا خبر بسبس بن عمرو ﷺ او عدی بن ابی الرغباء ﷺ ورکړو.

تراوسه پورې څلور سرایا او یو غزوه بدر اولی پیښنه شوې وه.اوپه یوه کښې هم انصارو شرکت نه وو کړې.دبیعت عقبه په موقع باندې هم دا معاهده شوې وه.[2] چه انصار به په مدینه کښې دننه د نبی ﷺ امداد کوی.دمدینې نه بهر وتل اوپه دشمن باندې حملې کولو دپاره دانصارو سره څه معاهده نه وه شوې.اوس دلته نبی ﷺ د تجارتی قافلې په تعاقب کښې راوتلې وو.اودا ویره پیدا شوه.چه چرته لښکر ته مخامخ نشو.اود جنګ اوقتال نوبت رانشی.ددې وجې نبی ﷺ صحابوﷺ ته اوونیل.«أشيروا على أيها الناس» خلقو ماته مشوره راکړئ.د نبی ﷺ په دې ارشاد باندې حضرت ابوبکر ﷺ اودریدل.او وې ونیل.اوپه ډیر مناسب انداز کښې ئې د وفادارئ او د خپل تعاون یقین ورکړو.نبی ﷺ بیا اوفرمائیل.

«أشيروا على أيها الناس» نوحضرت عمر ﷺ اودریدل.اوهغوی هم په غوره عنوان سره دخپلې وفادارئ اود ډلې د وفادارئ اظهار اوکړو.

**دحضرت مقداد بن اسود رضی الله عنه تقریر:** خو نبی ﷺ بیا اوفرمائیل.«أشيروا على أيها الناس» نوحضرت مقداد بن اسود ﷺ اودریدلو.او وې فرمائیل.

«أمض لما أمرك الله فنحن معك والله لا نقول كما قالت بنو اسرائيل لموسى إذهب أنت وربك فقاتلا إنا ههنا قاعدون،، ولكن إذهب أنت وربك فقاتلا إنا معكما مقاتلون»

دا الفاظ محمد بن اسحاق نقل کړی دی.[3] د بخاری په روایت کښې دی.«ولكن نقاتل عن يمينك وعن شمالك وبين يديك وخلفك»[4]

نبی اکرم ﷺ چه کله دحضرت مقداد بن اسود ﷺ خبره واوریده.نو دخوشحالئ نه ئې مخ اوپرقیدو.اوټنی صحابه ﷺ فرمائی.چه مونږ ته خیال اوشو.چه کاش دا الفاظ مونږ ونیلی وو. اګرچه حضرت مقداد بن اسود ﷺ [5] دټولو د زړه خبره کړې وه.خوا ظهار دهغوی په ژبه

---

[1] )وفى معجم البلدان (٤١٢\٣) وادى الصفراء من ناحية المدينة .. وبينه وبين بدر مرحلة)_

[2] )وفى تاريخ الطبرى (١٤٠\١٢) وذلك أنهم حين بايعوه بالعقبة قالوا: يا رسول الله إنا براء من ذمامك حتى تصل إلى دارنا وصلت إلينا فأنت فى ذمامنا نمنعك مما نمنع منه أبناءنا ونساءنا)_

[3] )سيرة ابن هشام (٦١٥\١)_

[4] )بخارى كتاب المغازى باب نمبر ٤ حديث نمبر(٣٩٥٢)_

[5] )حضرت مقداد ﷺ دحقیقی پلار نوم عمرو دې.اسودبن عبدیغوث دې متنبی (په خوې توب سره نولې) جوړ کړې وو.ددې وجې دوی ته مقداد بن اسود ﷺ هم ونیلی شی.اوهم په دې نسبت باندې دوی مشهور دی.ددوی د وفات په باره کښې حافظ لیکی....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

باندې اوشو.ددې وجې د نورو تمنا پيدا شوه.چه نبي ﷺ په دې خبره دومره خوشحاله شو. كاش چه مونږ ددې خوشحالئ سبب جوړ شوى وو.

**دحضرت سعد بن معاذرضى الله عنه جانثارانه تقرير:** ددې باوجود نبي ﷺ بيا اوفرمائيل.

«أشيروا على أيها الناس» نو صديق الانصار حضرت سعدبن معاذ رضی اللہ عنہ اودريدلو.اوهغوى عرض اوكړو.يارسول الله داسې معلوميږى. چه تاسو د انصارو رائې معلومول غواړئ.ابوبكر رضی اللہ عنہ د ټولو ترجمانى اوكړه.خوهغه مهاجر وو.عمر رضی اللہ عنہ دټولو ترجمانى اوكړه.خوهغه مهاجر وو. مقداد بن اسود رضی اللہ عنہ هم د زړه خبره اوكړه .خوهغه هم مهاجر وو.خبره هم هغه ده.چه نن د مدينې نه بهر د قتال كولو موقع راغله. او د انصارو سره د مدينې منورې نه بهر د كافرانو سره دمقابلې معاهده نه وه شوې.نو دوى ددې دپاره نن په خوشحالئ سره تيارهم دى كه نه دى؟ نددې وجى نبي ﷺ دانصارو رائې معلومول غوښتل. دحضرت سعد بن معاذ رضی اللہ عنہ په تپوس كولو سره نبي ﷺ اوفرمائيل .آو،زه د انصارو رائې معلومول غواړم.په دې باندې حضرت سعد بن معاذ رضی اللہ عنہ يوځان قربانونكې تقرير اوكړو.

«يارسول الله قد آمنا بك وصدقناك وشهدنا أن ما جئت به هو الحق، وأعطيناك على ذلك عهوداً ومواثيقاً، على السمع والطاعة ولعلك يارسول الله خرجت لأمر فأحدث الله غيره.. فامض ..لما شئت وصل حبال من شئت،واقطع حبال من شئت،وسالم من شئت،وعاد من شئت،وخذ من أموالنا ما شئت،وأعطنا ما شئت،وما أخذت منا كان أحب إلينا مما تركت ،وما أمرت به من أمرنا فأمرنا تبع لأمرك،لئن سرت حتى تأتي برك الغماد لنسيرن معنك فوالذى بعثك بالحق لو استعرضت بنا هذا البحر لخضناه ،وما تخلف منا رجل واحد،وماكره أن نلقى عدونا إنا لصبر عند الحرب، صدق عند اللقاء،ولعل الله يريك منا ما تقربه عينك فسربنا على بركة الله»[1]

اې دالله رسوله مونږ په تا باندې ايمان راوړې دې.اوستاسو تصديق مو كړې دې. اوددې خبرې ګواهي مو وركړې ده.چه تاسو څه راوړى دى.هم هغه حق دى.اوتاسو ته مونږ په دې پخې وعدې اوميثاقونه هم دركړى دى.اې دالله رسوله تاسو د مدينې نه په يوه اراده راوتلې وئ.او الله تعالى بل صورت پيدا كړو.چرته چه غواړئ. لاړ شئ. چاسره چه غواړئ.تعلقات قائم كړئ.اوچا سره چه غواړئ تعلقات ختم كړئ.چا سره چه غواړئ.نو صلح اوكړئ.اوچا سره چه غواړئ.دشمنى اوكړئ.(او اې دالله رسوله) تاسو زمونږ په مالونوكښې چه څومره غواړئ.نو واخلئ.اوچه څومره غواړئ.مونږ ته ئې پريږدئ.اوتاسو چه زمونږ په مالونوكښې څه واخلئ.هغه به مونږ ته زيات خوښ وى.په مقابله دهغې چه تاسو ئې مونږ ته پريږدئ.

---

....دتيرمخ بقيه]((كان المقداد عظيم البطن وكان له غلام رومى فقال له أشق بطنك فأخرج من شحمه حتى تلطف فشق بطنه ثم خالطه فمات المقداد وهرب الغلام .. واتفقوا على أنه مات سنة ثلاث وثلاثين فى خلافة عثمان رضی اللہ عنہ (الإصابة (٤٥٥\٣)_

[1] )شرح مواهب لدنيه (٤١٣\١)_

اوتاسو چه څه حکم راکوئ.مونږ به د هغې تابعداری کوی.که تاسو مونږ برك الغماد پورې بوتلل غواړئ.نو مونږ به تاسو سره خامخا ځو.مونږ دالله په قسم سره وایو.چه تاسو ته چا دا حق دین درکړې دې.که تاسو مونږ ته دپه سمندر باندې د ورګډیدو حکم اوکړئ.نو مونږ به سمندر ته ورګډ شو.اوپه مونږ کښې به یو کس هم پاتې نشی.د دشمن سره مقابله کول په مونږ باندې بوجهه نه دې.مونږ دشمن سره د جنګیدو په وخت کښې ثابت قدم یو.اې دالله رسوله امید دې چه الله تعالی زمونږ نه تاسوته هغه عمل اوښائی.چه په هغې سره به ستاسو سترګې یخې شی. بس دالله په ډاډ باندې ځئ.

کله چه حضرت سعدبن معاذ رضي الله عنه (۱) داسې په موثر انداز کښې دانصارو ترجمانی اوکړه.نو نبی ﷺ خوشحاله شو.او وې فرمائیل.الله تعالی ما سره وعده کړې ده.چه په تجارتی قافله اود قریشو په لښکر کښې به په یو باندې مونږ ته فتح راکوی.چونکه د فقر اومال د قلت زمانه وه.نو خواهش خو هم دا وو.چه د تجارتی قافلې سره مخامخ شی.خو دالله تعالی اراده بل څه وه.

﴿وَاِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ اِحْدَى الطَّآىِٕفَتَيْنِ اَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّوْنَ اَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُوْنُ لَكُمْ وَيُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكٰفِرِيْنَ ۙ لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ﴾ (۲)

اویاد کړئ. هغه وخت کله چه الله تعالی په دوو ډلو کښې دیوې تاسو سره وعده کړې وه.چه هغه به ستاسو دپاره وی.اوتاسو خوښول.چه د قوت نه خالی ډلې سره تاسو مخامخ شئ. اوالله تعالی دا غوښتل.چه حق په خپل حکم سره ثابت کړی.اوباطل ختم کړی.اګرچه مجرمان په دې باندې خفه کیږی.

الله تعالی دا فیصله کړې وه.چه نن دکفر طاقت ختمول دی.اود کفرملا ماتول دی. د دې وجې یوم بدر الله تعالی ،،یوم الفرقان،، اوګرځولو.(۳) ځکه چه په دې کښې د خیراوشر په مینځ کښې فرق ښکاره شو.په دې کښې د نور اوظلمت په مینځ کښې فرق ښکاره شو. او ددې یوم الفرقان دپاره الله تعالی د رمضان د میاشت انتخاب کړې وو.په کومه کښې چه د فرقان حمید نزول شوې وو.دغه شان د رمضان روژې هم فرق کونکی وی.په مینځ دحق اود باطل کښې،چه څوك دالله تعالی غلامی کوی.اودهغه د حکم مطابق لوږه تنده زغمی.او څوك دخپلې خیټې غلام جوړیږی.اودالله تعالی حکم شا ته غورځوی.نوالله تعالی ددې دپاره د رمضان میاشت منتخب کړه.اودا یوم البدر ئې یوم الفرقان کړه.

**مقام بدر**: بدر د مدینې منورې نه د ۸۰ میله په فاصله باندې دیو کلی نوم دې.وئیلی شی. چه بدر بن یخلد بن نضر بن کنانه دا آباد کړې وو.د څنی خلقو خیال دې.چه بدر بن الحارث

---

(۱) دمسلم شریف په روایت کښې دحضرت سعد بن عباده رضي الله عنه نوم دې. خو د اصحاب سیر په ټولو روایاتو کښې د سعد بن معاذ رضي الله عنه نوم دې.ددې وجې د مسلم په روایت کښې د حضرت سعدبن عباده رضي الله عنه نوم د راوی وهم ګرځولې شوې دې.اوګورئ ((تکملة فتح الملهم ،باب غزوة بدر حدیث نمبر ۴۳۸۵)

(۲) سورة الأنفال :۷)_

(۳) قال الله تعالی ﴿ وما أنزلنا علی عبدنا یوم الفرقان یوم التقی الجمعان ﴾ سورة الأنفال:۴۱)_

دا اباد كړې وو.اودځنو خيال دې.چه هلته يو كوهې وو.دهغې نوم بدر وو.ددې په بنياد ددې كلي نوم ،،بدر،، كيخودې شو.(١)

**دابوسفيان ويره اود مكې خلقوته خبر وركولو دپاره د سړي ليږل:** بل طرف ته ابوسفيان چه تجارتى قافله ئې د شام نه رانه راروانه كړې وه.او مكې ته تلو. هغه سره فكر شو.چه چرته محمد (ﷺ) او دهغه ملګرى زمونږ د قافلې تعاقب اونكړى. ددې وجې هغوى په تاكيد سره ددې په لټون اوتحقيق پسې شو.كله چه حجاز ته نزدې شو.نو هغه ته پته اولګيده.چه د نبى ﷺ د قافلې د تعاقب دپاره روان شوې دې.ابو سفيان ضمضم بن عمرو غفارى ته اجرت وركړو.او وې ليږلو.چه مكې ته زرترزره اورسه.اود خپلې تجارتى قافلې خبر وركړه.چه هغه په خطره كښې ده.نو ضمضم غفارى مكې مكرمې ته روان شو(٢)

**دعاتكه بنت عبدالمطلب خوب:** اوس لا هغه رسيدلې هم نه وو.چه عاتكه بنت عبدالمطلب (٣)يو خوب اوليدو.چه يو په اوښ سور كس په ،،ابطح،، كښې اوښ كينولې دې اواعلان كوى. «ألا انفروا يا آل غدر لمصارعكم في ثلاث» اې غدارانو! دخپل قتل ځايونو ته روان شئ. په درې ورځو كښې دننه دننه،

ددې نه پس دا كس مسجد حرام ته راځى.او هم دا اعلان كوى.او جبل ابى قبيس باندې خيژى.اودكاڼى يوه ګټه ښكته راغورځوى.هغه ګټه ريزه ريزه كيږى.دمكې داسې يو كور پاتې نشى.چه دهغې ګټ ټوټې هغې كور كښې نه وې غورځيدلې(٤)

عاتكة دا خوب خپل ورور عباس بن عبدالمطلب ته بيان كړو.اووې وئيل.داسې معلوميږى. چه ستا په قوم باندې څه مصيبت راتلونكې دې.او دا ئې ورته هم اووئيل.چه دا خوب چاته مه بيانوه.حضرت عباس داخوب خپل دوست وليدبن عتبه ته بيان كړو.اوهغه ته ئې اووئيل. چه دا مه بيانوه.وليد خپل پلار عتبه ته ددې ذكر اوكړو.اوخبره په ټول ښار كښې خوره شوه. حضرت عباس مسجد حرام ته لاړلو.نو ابوجهل پرې آواز راويستلو.او پيغور ئې وركړو. چه اوس خو ستاسو په خاندان كښې ښځې هم پيغمبرانې جوړيږى.(٥) په دې دوران كښې ضمضم بن عمروغفارى راورسيدلو.ګريوان ئې شلولې وو.اود اوښ پوزه ئې پريكړې وه.او اعلان ئې كولو.«يا آل قريش أدركوا عيركم»(٦)اې قريشو دخپلې قافلې خبر مو واخلئ.د ضمضم

---

(١)معجم البلدان (٣٥٨/١)_

(٢)ثقات ابن سعد(١٣/٢) دغه شان سيرة ابن هشام (٢٠٧/١)_~

(٣)عاتكه بنت عبدالمطلب د نبى ﷺ ترور او د ابوطالب سكه خور وه.اودام المومنين ام سلمه رضى الله عنها د پلار ابو اميه بن المغيره ښځه وه.ددوى په اسلام راوړو كښې اختلاف وو.د اكثرو رائې دا ده.چه دې اسلام قبول كړې وو(الإصابة (٣٥٨/٤)_~

(٤)سيرة ابن هشام (٦٠٨/١)_

(٥)سيرة ابن هشام (٦٠٨/١)_

(٦)البداية والنهاية (٢٥٨/٣)_

بن غفاري د پيغام رسيدو نه پس اوس د عاتكه بن عبدالمطلب دخوب حقيقت ذهنونوكښې راغلو.اوس خلق فكر مند شول[1]اوځه خلقو سره دا فكرهم پيدا شو.چه ځان بچ كړئ. خو دمكې يو كور هم داسې نه وو.چه دهغوى څه نا څه سرمايه په دې تجارتى قافله كښې نه وه لګيدلې.ځكه چه حالات بدل وو.قافلې د مسلمانان په ګيراؤ كښې وې.ددې وجې تجارت آزا نه وو.خودا لويه قافله وه.دابوسفيان غوندې مدبر ددې امير وو.ددې وجې ټولو خلقو خپله سرمايه راټوله كړې وه.اودې قافلې ته ئې حواله كړې وه.([2])

په دې خبر سره په ټوله مكه كښې يوه غوغا شوه.او ابوجهل خلق تيارول شروع كړل.ټول خلق تلو ته تيار شو.خو ابولهب لانړلو.دهغه په عاص بن هشام باندې څلور زره درهم قرض وو.او دا مقروض دخپلې غريبئ په وجه د قرض په ادا كولوقادر نه وو.نو ابولهب پرې دباؤ واچولو.چه يا زما قرض ادا كړه.اويا زما په ځاې ته لاړشه.هغه د قرض د وجې د ابو لهب په ځاې باندې په لښكر كښې شامل شو.([3])

**دجهيم بن الصلت خوب:** كله چه دا خلق روان شو.او مقام جحفة ([4]) ته اورسيدل.هلته جهيم بن الصلت خوب اوليدو.چه يوسړې په اس باندې سور دې.اوهغه سره يو اوښ دې.هغه سړې وائي.«قتل أمية بن خلف، قتل ابوالحكم بن هشام،قتل عتبة بن ربيع، قتل شيبة بن ربيعة» ددې اعلان نه پس هغه سړې اوښ په يوه نيزه باندې وهي.اود نيزې په لګيدو د اوښ د بدن نه وينه راوځي.اوهغه وينه داسې ده.چه څومره خيمې د قريشو په دغه ځاې كښې وې.هغه ټولو ته دهغې دارې ورغلې.هغه دا خوب بيان كړو.ابوجهل ته چه كله ددې خوب خبر اوشو.نو وې وئيل چه په بنو مطلب كښې دا دويم پيغمبر پيدا شو.كله چه صبا ته د بدر په مقام كښې مقابله اوشي،نو مونږ به دا اوښايو.چه څوك به قتليږي.([5])

**دابوسفيان ويره او لټون:** ابوسفيان برابرپه دې لټون كښې وو.چه محمد (ﷺ) چه زمونږد قافلې په تعاقب كښې دې.دهغوى حال معلوم كړى.د بدر په مقام باندې يوه ډيرئ وه.او هغې ډيرئ سره يوه چينه وه.دهغه چينې سره مجدى بن عمروجهنى او دوه ښځې وې.په هغې كښې د يوې ښځې په بله باندې قرض وو.اوهغې ترې دخپل قرض مطالبه كوله.اوقرض دارې ښځې دهغې نه مهلت غوستلو.اوهغې ورته وئيل.چه د قريشو تجارتى قافله راروانه ده. هغه به دلته قيام كوى.ماته به د هغې دخدمت موقع ملاؤ شي.نو زه به مزدورى اوكړم .اوچه څه اوګټم.په هغې سره به ستا قرض خلاص كړم.د هغوى جګړه چه ئې

---

[1] )البداية والنهاية (۲۵۸\۳)_

[2] )طبقات ابن سعد (۱۳\۲)_

[3] )سيرة ابن هشام (۶۱۰\۱)_

[4] ) الجحفة بالضم ثم السكون كانت قرية كبيرة .. على طريق المدينة من مكة على أربع مراحل وهي ميقات أهل مصر والشام إن لم يمروا على المدينة فإن مروا بالمدينة فميقاتهم ذو الحليفة (معجم البلدان (۱۱۱\۲)_

[5] )البداية والنهاية (۲۶۵\۳و ۲۶۶)_

اوليده.نو مجدی بن عمرودهغوی په مينځ كښې بچ بچاؤ اوكړو.اووې وئيل.او د قريشو قافله راروانه ده.په هغه وخت كښې به دا ستا قرض ادا كړی.(۱)

بسبس او عدی كوم چه نبی ﷺ د ابو سفيان د قافلې په جاسوسئ كښې ليږلی وو.دا دواړه حضرات مقام بدر ته رارسيدلی وو.چه ددې دواړو ښځو او مجدی بن عمرو خبرې ئې واوريدې.نو د نبی ﷺ په خدمت كښې حاضر شول.او د حقيقت حال نه ئې خبر كړو(۲)اوس چه ابو سفيان بن حرب دلته راورسيدلو.نو مجدی بن عمرو ته ئې اووئيل.چه تا دلته د څه كسانو اوړيدل راوړيدل او ګرځيدل كتلی دی.مجدی ورته اووئيل.ما څوك نه دی ليدلی. البته يو دوه سوارۀ راغلی وو.هغوی اوښانوته اوبه وركړې.اومشك ئې ډك كړلو.اوبيا لاړل. ابوسفيان چه اخوا ديخوا اوكتل.نود اوښ پچې هغه ته په نظر شوې.يوه پچه هغه راوچته كړه.اوهغه ئې ماته كړه.په هغې كښې دننه د قجورې هډوكې وو.چه دغه هډوكې ئې اوليدل.نوهغه سمدستی پوهه شو.چه داديثرب(مدينې) دقجورو هډوكې دی.اودا د محمد (ﷺ) سړی وو.مونږ لره پكاردی.چه خپله لاره بدله كړو.نوهغه لاره بدله كړه.اود سمندر غاړې لار باندې روان شو.(۳) اودغه شان د خپلې قافلې په بچ كولو كښې كامياب شو.

**د قريشو د واپسئ دپاره د ابوسفيان پيغام:** كله چه دا اطمينان ورته اوشو.چه قافله اوس محفوظ ده.نو هغه قريشو ته پيغام اوليږلو.«إنكم إنما خرجتم لتمنعوا عيركم ورجالكم وأموالكم وقد نجاها الله فارجعوا»(۴)تاسو ددې دپاره راوتلې وئ.چه د خپلې قافلې سړو او مالونوحفاظت اوكړئ.الله تعالی ټول بچ كړو.نو تاسو واپس لاړ شئ.

دقريشولښكر ته دا پيغام اورسيدو.خو ابوجهل اووئيل، نه،مونږ سره د ګډيدونكې ښځې دی.اود طنبل وهونكی سړی دی.دخوراك ډيرمعقول او ښه انتظام دې.مونږ به بدر ته ځو. درې ورځې به هلته خوشحالی كوو.او د هغې نه پس به واپس راځو.(۵)

**د بنو زهره واپسی:** دبنو زهره سردار اخنس بن شريق اووئيل.مونږ خو دخپلې قافلې د حفاظت دپاره راغلی وو.قافله په حفاظت سره مكې ته روانه ده.اوس مونږ ته د وړاندې تلو ضرورت نشته.هغه خپل كسان ځان سره واخستل. او واپس لاړل.(۶).

دا خلق د بدرمقام ته د مسلمانانو نه وړاندې رارسيدلی وو.اوهلته چه كوم غوره ځاې وو.په

---

(۱)سيرة ابن هشام (۶۱۷\۱)_

(۲)ايضاً)_

(۳)سيرة ابن هشام ((۶۱۸\۱)_

(۴)سيرة ابن هشام (۶۱۸\۱)_

(۵)فقال ابوجهل والله لا نرجع حتى نرد بدراً .. فنقيم عليه ثلاثاً فننحر الجزور . ونطعم الطعام ونسقى الخمر،وتعزف علينا القيان، وتجمع بنا العرب بمسيرنا وجمعنا فلا يزالون يهابوننا أبداً بعدها فامضوا (السيرة النبوية (۶۱۸) والبداية والنهاية (۲۶۶\۳)_

(۶)طبقات ابن سعد (۱۴\۲)_

هغې باندې دوی قبضه کړې وه.اوهلته چه د اوبو کومه چینه وه.په هغې باندې ئې هم قبضه کړې وه.مسلمانان روسته راورسیدل.هغوی ته چه کوم ځاې ملاؤ شو.هغه بس شګه وه.په هغې کښې به پښې ښخیدلې.الله تعالی باران اوکړو.([1]) قرآن کریم ددې ذکر په دې آیت کښې کړې دې.

﴿ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُمْ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً لِيُطَهِّرَكُمْ بِهِ وَيُذْهِبَ عَنْكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ وَلِيَرْبِطَ عَلَى قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ ﴾ ([2])

او الله تعالی باران اوکړو.دې دپاره چه تاسو پاك کړي.اوتاسو نه د شیطان پلیتی لرې کړي. او ستاسو زړونه مضبوط کړي.او ستاسو قدمونه مضبوط کلك کړي.

د باران نتیجه دا شوه.چه دهغې په وجه هغه شګه کلکه شوه.اوپه کوم ځاې کښې چه مشرکان وو.هلته خټې جوړې شوې.اوهغوی ته مشکلات او ګرانی پیدا شوه.

په دغه دوران کښې نبی ﷺ حضرت علی،حضرت سعدبن ابی وقاص.اوحضرت زبیربن العوام ﷺ اولیږل.چه لاړ شئ.لړه د قریشو جائزه واخلئ.او راشئ.([3]) اتفاقی خبره وه.چه د قریشو دوه غلامان ([4]) دوی ته لاس ورغلل.هغوی ئې اونیول.او راتې وستل.نبی ﷺ مونځ کولو.هغه حضراتو د دوو غلامانو نه د ابوسفیان د قافلې په باره کښې تپوس کولو.هغوی ورته اووئیل.مونږ د قریشو لښکرسره هغوی ته د اوبو ورکولو دپاره راغلی یو.دابوسفیان د قافلې مونږ ته علم نشته.کله چه به هغه غلامانو د ابوسفیان د قافلې په باره کښې دخپلې لا علمۍ اظهار اوکړلو.نو دوی به هغوی لره وهل شروع کړل.چه کیدې شی.د دې ویرې نه د ابوسفیان د قافلې څه حال اوښائی.کله چه به هغوی وهل اوخوړل. نو هغوی به اووئیل. آو قافله شته.صحابو ﷺ به دهغوی وهل پریخودل.اوبیا به ئې ترې د قریشو د قافلې په باره کښې تپوس شروع کړل.نو هغوی به بیا وئیل.چه مونږ د قریشو مشکیان یو.د قافلې مونږ ته څه علم نشته.صحابو ﷺ به هغوی دوباره ویرول او دهمکی به ئې ورکوله.په دې دوران کښې نبی ﷺ سلام اوګرځولو.او وې فرمائیل.عجیبه خبره ده. کله چه هغوی دروغ وائی.نو تاسو ئې پریږدئ.اوچه کله رښتیا وائی.نو تاسو ئې وهئ.په الله قسم دا د قریشو سړی دی. بیا نبی ﷺ هغوی نه تپوس اوکړو.په لښکرکښې څومره کسان دی؟ هغوی ورته اووئیل. مونږ ته څو تعداد معلوم نه دې.البته دومره ده چه ډیر دی.نبی ﷺ ترې تپوس اوکړو.چه ښه

---

[1] )سیرة ابن هشام (۲۶۶/۱)_

[2] سورة الأنفال :۱۱)_

[3] )سیرة ابن هشام (۶۱۶/۱)_

[4] ) په دوی کښې یو غلام د بنو الحجاج وو.دهغه نوم اسلم او دویم غلام د بنو العاص وو.دهغه نوم عریض ابو یسارلیکلې دې.(سیره ابن هشام (۶۱۶/۱) خو په کنز العمال کښې دمسند احمد وغیره په حوالې سره د حضرت علی ﷺ روایت دې.چه مونږ ته دوه کسان ملاؤ شو.یو قریشی وو.او یو دعقبه بن ابی معیط غلام وو.قریش خو زمونږ نه ا ووتل اوتختیدل.اوغلام مونږ اونیولو.او دهغه نه مو تپوسونه شروع کړل... اوګورئ کنزالعمال (۳۹٤/۱۰) حدیث نمبر (۳۰۰٤۱)_

دا راته اوښائي.چه هغوی روزانه څواونښان ذبح کوی؟ نو غلامانو اوويل. يوه ورځ نهه او بله ورځ لس،نو نبی ﷺ اوفرمائيل.د نهه سوو نه تر يو زر پورې تعدا دی.او واقعی هم دغه شان وه.(١)

**دجنګ په شپه د نبی علیه السلام دعا:** د حضرت علی ﷛ روايت دی.چه په کوم صبا باندې جنګ کيدونکې وو.په دغه شپه ټول صحابه ﷡ اوده شول.خو نبی ﷺ اوده نشو.او نبی ﷺ برابر د الله تعالی نه دعا اوالتجاء کوله.(٢)

د حضرت انس ﷛ روايت دی.چه نبی ﷺ په دغه شپه صحابه ﷡ ميدان بدر طرف ته بوتلل.او د مکې د کافرانو د قتل ځايونه ئې دوی ته اوخودل.(٣)

دحضرت سعد بن معاذ ﷛ په تجويزباندې د نبی ﷺ دپاره د ډيرئ دپاسه سپر تيارکړې شو.په هغه سپرکښې نبی ﷺ په دعا اوزارئ اوعبادت کښې مصروف وو. حضرت ابوبکر ﷛ دننه په سپرکښې ددوی سره موجود وو.او حضرت سعد بن معاذ ﷛ بهر په دروازه باندې پهره ورکوله.(٤)

کله چه صبا شو.نو نبی ﷺ مونځ ورکړو.اوددې نه پس نبی ﷺ د صحابه کرامو ﷡ صفونه برابر کړل.يو بيرغ د حضرت علی ﷛ په لاس کښې وه.اويو بيرغ د حضرت مصعب بن عمير ﷛ په لاس کښې وه.يو بيرغ د يو انصاری ﷛ صحابی ﷛ په لاس کښې وه.(٥) دا د جمعې ورځ وه.اود رمضان د مياشتې اوولسم تاريخ وو.(٦)

**دمشرکانوصفونه جوړول:** يوخوا مشرکانو برابر صفونه جوړ کړی وو.او د جنګ دپاره ولاړ وو.اوس لا جنګ نه وو شروع شوې.چه يومشرك اوويل.ماته اجازت اوکړئ.چه زه اوګورم. دمسلمانانو دامداد دپاره نور فوځ چرته په پټ ځاې کښې خو نشته؟ نوهغه په اس باندې سور شو. او د ګيرچاپيره چکر ئې اولګولو.او واپس راغلو وې وئيل.بس هم دا دی.کوم چه مخامخ دی.نور فوځ د امداد دپاره نشته.خوزه دا وينم.چه دې کسانو د مدينې منورې نه سور مرګ په خپلو اوښانو باندې بار کړې دې.او راغلی دی.د تورې نه سوا دوی سره نور څه نشته.اوزما دا اندازه ده.چه په دوی کښې به هيڅ يوکس تر هغه وخته پورې مرګ قبول نکړی.ترڅو چه خپل مد مقابل مړ نکړی.که زمونږ کسان هم د هغوی په برابرئ باندې مړه شول.نو بيا به د ژوند څه مزه پاتې شی؟ نوسوچ او فکر اوکړئ.اوخه رائې قائمه کړئ.(٧)

---

(١) سيرة ابن هشام (١\٦١٧) كنزالعمال (١٠\٣٩٧) حديث نمبر (٢٩٩٤٤)_
(٢) كنزل العمال (١٠\٣٩٧) حديث نمبر (٢٩٩٤٤)_
(٣) كنز لالعمال (١٠\٤٢٤) حدث نمبر ٣٠٠٢٣)_
(٤) سيرة ابن هشام (١\٦٢٠)_
(٥) سيرة ابن هشام (١\٦١٢)_
(٦) سيرة ابن هشام (١\٦٢٦)_
(٧) ابن هشام دهغه الفاظ دا نقل کړی دی.((قال ما وجدت شيأ وقد رأيت يا معر قريش البلايا تحمل المنايا ،نواضح يثرب تحمل الموت الناقع ،قوم ليس لهم منعة ولا ملجأ إلا سيوفهم والله ما أرى أن يقتل رجل منهم حتى يقتل رجلاً منكم، فإذا أصابو منكم أعدادهم فما خيرالعيش بعد ذلك ؟ فروا رأيكم (سيرة ابن هشام (١\٦٢٢)

**دحكيم بن حزام عتبه ته د واپسئ مشوره ورکول:** په دې دوران کښې حکيم بن حزام ،عتبه بن ربيعه ته ورغلو.او ورته ئې اوونيل.چه د عمروبن حضرمى خون بها په خپله ذمه واخله.او خلقو ته د واپس تلو اووايه.عتبه ددې دپاره تيار شو.دخلقو واپس تلو دپاره ئې خپله خطبه اوونيله.(١)

خوابوجهل هغه سره اختلاف اوکړو.او پيغور ئې ورکړو.چه دخپل ځوى ابوحذيفه ﷺ د وجې د جنګ نه ډډه کوې.(٢)چه هغه د مسلمانانو په لښکر کښې دې.په جنګ کښې د هغه د قتليدو ده ته وېره ده.

**دعتبه دخپل ورور او پلار سره د مقابلې دپاره وتل:** د ابوجهل د دې پيغور نتيجه دا راووته.چه عتبه دخپل ورور شيبه بن ربيعه اود خپل ځوى وليد بن عتبه سره ميدان جنګ ته د مقابلې دپاره راووتلو.اودوى نعره اولګوله. «هل من مبارز؟» څوك مقابله کونکې شته.په مسلمانانو کښې درې انصارى صحابه حضرت عوف بن الحارث، حضرت معوذ بن الحارث، او حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ د مقابلې دپاره راوړاندې شول.(٣)

**دحضرت عفراء رضى الله عنها يوخصوصيت:** دحضرت عوف اوحضرت معوذ ﷺ دمور نوم حضرت عفراء دې.حضرت عفراء اولنې واده دحضرت حارث سره کړې وو.د حارث نه ددې درې ځامن اوشول.حضرت عوف، حضرت معوذ او حضرت معاذ ﷺ.دحارث د وفات نه پس بيا حضرت عفراء د بکيربن ياليل سره واده اوکړو.اود بکيربن ياليل نه ددې څلور ځامن پيدا شول.اياس عاقل خالد او عامر،دحضرت عفراء ﷺ دا خصوصيت وو.چه دهغې دا اووه ځامن وو.او اووه په اووه واړه په جنګ بدر کښې شريك وو.(٤) بهرحال کله چه دا درې واړه صحابه د مقابلې دپاره راووتل.نو عتبه اوونيل «من أنتم» تاسو څوك ئې؟ هغوى ورته اوونيل «رهط من الأنصار» مونږ دانصارو ډله يو.عتبه اوونيل «ما لنا بکم حاجة» زمونږ تاسو

---

(١)وفي سيرة ابن هشام (٦٢٣\١١) ثم قام عتبة بن ربيعة خطيباً فقال يا معشرقريش إنكم والله ما تصنعون بأن تلقوا محمداً وأصحابه شيأ والله لئن أصبتموه لا يزال الرجل ينظر فى وجه رجل يكره ألنظر إليه قتل أبن عمه ، ابن خاله، أو رجلاً من عشيرته، فارجعوا وخلوا بين محمد وبين سائر العرب فإن أصابوه فذلك الذى أردتم وإن كان غير ذلک الفاكم ولم تعرضوا منه ما تريدون .)_

(٢)أبوحذيفة بن عتبة بن ربيعة إسمه مهشم وقيل هشيم وقيل هاشم وقيل قيس.. كان من السابقين إلى الإسلام وهاجر الهجرتين وصلى إلى القبلتين .. ألم ببعد ثلاثة وأربعين إنساناً ... كان ممن شهد بدراً استشهد يوم اليمامة وهو ابن ست وخمسين سنة (الإصابة (٤٢\٤ - ٤٣)_

(٣)حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ مشهور انصارى صحابى دې.د ليلة العقبة په بيعت اوپه جنګ بدر کښې دشرکت شرف ورته حاصل دې.په غزوه موته کښې چه کله حضرت جعفرطيار ﷺ شهيد شو.نو د نبى ﷺ د خودلى شوى ترتيب مطابق د اسلامى لښکربيرغ دوى واخستله.اوپه جنګيدو جنګيدو کښې د موته په ميدان کښې ئې د شهادت پيالئ اوڅکله.(الإصابة (٣٠٦\٢)_

(٤)اوګورئ (الإصابة (٢٦٤\١٤)_

سره څه كار نشته.بيا عتبه اووئيل «يا محمد أخرج إلينا أكفاءنا من قومنا» زمونږ د قوم كسان چه زمونږ پشان وي.هغوی د مقابلې دپاره راوليږه.نونبي ﷺ حضرت علي رضي الله عنه حضرت حمزه او حضرت عبيده بن الحارث رضي الله عنه ته اوفرمائيل.ور وړاندې شئ.دا درې واړه ورووړاندې شول.

چونكه ددوی په مخونو باندې پرده وه.څكه عتبه تپوس اوكړو.«من أنتم؟» دوی ورسره خپل تعارف اوكړو.نو عتبه اووئيل «نعم أكفاء كرام»آو دا كسان زمونږ پشان دی.اوعزتمند دی.([1])
رسول الله ﷺ په دغه موقع باندې دا هم وئيلی وو.

«يا بني هاشم قوموا قاتلوا بحقكم الذي بعث الله به نبيكم إذ جاؤوا بباطلهم ليطفئوا نور الله»([2])
اې بنوهاشم تاسود هغه حق سره اوځئ.كوم چه الله تعالى ستاسو نبي ته وركړې او راليږلې ئې دې.حالانكه دې كسانو باطل راوړې دې.اودالله تعالى نور (دين حق) مړكولو (ختمولو) دپاره راغلي دی.

**په انفرادی مقابله كښې د عتبه، شيبه او وليد قتليدل:** حضرت علي حضرت حمزه او حضرت عبيده رضي الله عنهم انفرادی مقابلې دپاره اووتل. د حضرت علي رضي الله عنه مقابله د وليد سره اوشوه.اوهغه ئې جهنم ته اورسولو.اودحضرت حمزه رضي الله عنه مقابله د شيبه بن ربيعه سره اوشوه.اوهغوی هم په يو ګذار باندې دهغه كارختم كړو. اودحضرت عبيده بن الحارث رضي الله عنه مقابله د عتبه سره اوشوه.دواړه په يوبل باندې ګذارونه اوكړل.اوزخميان شول.د عتبه ګذار باندې دحضرت عبيده پښه كټ شوه.حضرت علي اوحضرت حمزه رضي الله عنهما دخپل مقابل دقتلولونه پس دحضرت عبيده بن الحارث رضي الله عنه د مدد دپاره راغلل.اوچه راغلل نود عتبه كار ئې هم ختم كړو.([3])

**دحضرت عبيده بن الحارث رضى الله عنه شهادت:** حضرت عبيده بن الحارث هم د زخم په حالت كښې نبي ﷺ ته راوستې شو.حضرت عبيده تپوس اوكړو.يارسول الله زه شهيد يم؟ نبي ﷺ ورته اوفرمائيل بالكل ته شهيد ئې.دشهادت نه وړاندې هغوی دا شعر اووئيل.

| | |
|---|---|
| فإن يقطعوا رجلي فإني مسلم | أرجي به عيشا من الله عاليا |
| والبسني الرحمن من فضل منه | لباسا من الإسلام غطى المساويا |

كه دوی زما پښه كټ كړه.نود څه پرواه خبره نه ده.زه مسلمان يم.اوزه دالله تعالى نه ددې په بدله كښې د اوچت ژوند اميد ساتم.
الله تعالى په خپل فضل او رحم سره ماته د اسلام داسې جامې واغوستې.كوم چه ټولې خطاګانې پټې كړې.([4])

**باقاعده د جنګ شروع:** ابوجهل د عتبه، شيبه او وليد د قتل نه پس لښكرته مخامخ تقرير

---

[1]) سيرة ابن هشام (۶۲۵\۱)_
[2]) طبقات ابن سعد (۱۷\۲)_
[3])سيرة ابن هشام (۶۲۵\۱)_
[4])سيرة مصطفى (۷۸\۲)_

اوکړو.چه دې کسانو د جلدبازئ نه کار واخستلو.څکه قتل شول.په لات او عزی مې دې قسم وی.مونږ به تر هغه وخته پورې نه څو.ترڅو پورې چه مونږ دوی په پړو باندې اونه تړو.[1] او سخت جنګ شروع شو.ابوجهل دعا اوکړه.اې الله څوك چه خپلولئ پریکوی.او د نیکئ په ځاې بدئ ته رواج ورکوی.هغه تباه او برباد کړه.[2]

**دجنګ شروع کیدو نه پس د نبی ﷺ په دعا کښې مشغوله کیدل:** بل طرف نبی ﷺ د جنګ شروع کیدو نه پس په دعا الحاح او زارئ کښې مشغول شو.نبی ﷺ دعا اوکړه.

((اللهم إني أنشدك عهدك ووعدك اللهم إن شئت لم تعبد بعد اليوم أبداً))[3]

اې الله چه تا کومه وعده او عهد کړې وو.دهغې دپوره کیدو درخواست درته کوم.اې الله که تاسو غواړئ.چه په مخ د زمکې دنن نه پس همشیه دپاره ستاسو عبادت اونشی.(نو ټیك ده. دا یو موتې مسلمانان به ختم شی) اوپه ځنی روایاتوکښې راغلی دی.چه نبی ﷺ دا دعا کړې وه. ((اللهم أنجزلي ما وعدتني اللهم إن تهلك هذه العصابة من أهل الإسلام لا تعبد في الأرض))[4]

اې الله تاسو چه ما سره کومه وعده کړې وه.هغه پوره کړئ.اې الله که دمسلمانانو دا ډله هلاکه شی.نو بیا به په مخ د زمکې ستاسو عبادت اونشی.

په روایت کښې راځی.چه نبی ﷺ په دعا کښې دومره زاری او عاجزی اوکړه.چه د نبی ﷺ څادر مبارك د اوږې نه اوغورځیدل.حضرت ابوبکر ﷺ دوی ته تشریف راوړو.او عرض ئې اوکړو.((كفاك مناشدتك ربك فإنه سينجزلك ما وعدك))[5] دخپل رب په در کښې دومره زاری او عاجزی کافی ده.بیشکه الله تعالی به خپله وعده پوره کوی.کومه چه ئې تاسو سره کړې ده.

**یواشکال اودهغې جواب:** دلته اشکال دا دې.چه نبی ﷺ په دعا کښې دومره مبالغه کوله.او زاری اوعاجزی ئې کوله.او حضرت ابوبکر ﷺ دوی د نورې دعا نه منع کولو.چه الله تعالی تاسو سره وعده کړې ده.چه تاسو ته به غلبه درکوی.اوتاسو ته به کامیابی درکوی.نوآیا دالله تعالی په دغه وعده باندې دحضرت ابوبکر ﷺ یقین وو.اود نبی ﷺ نه وو؟

نوددې په باره کښې تاسو دا وئیلې شئ.چه د مقام الوهیت او ربوبیت ادب هم دا دې.چه د وعدې باوجود سرې په ویره کښې وی.اود وعدې باوجود سرې اوغواړی.اودا ګڼړی چه د الله تعالی ذات بینیازه دې.((لايسئل عما يفعل))دهغه نه تپوس نشی کولې. چه هغه دا کار اوکړو. نو ولې ئې اوکړو؟

نبی ﷺ په مقام خوف کښې وو.هغوی د مقام الوهیت او مقام ربوبیت پوره پوره ادب کولو.

---

[1] )سيرة مصطفى (۹۱\۲)_

[2] )دابوجهل د دعا الفاظ داسې منقول دی ((اللهم اعطعنا للرحم. وأتانا لما لا يعرف . فأحنه الغداة فكان هو المستفتح (سيرة ابن هشام (۶۲۸\۱)_

[3] )البداية والنهاية (۲۷۶\۳)_

[4] )كنز العمال (۳۹۲\۱۱) رقم الحديث ۲۹۹۳۹)_

[5] )كامل لابن اثير (۸۷\۲)_

او حضرت ابوبکر ﷺ په مقام رجاء کښې وو.په هغوی باندې د رجاء غلبه وه (۱)
دویمه خبره یود دا هم ده.هغه دا چه ممکن ده.نبی ﷺ دا ګڼړلی وی.چه الله تعالی خو وعده کړې ده.خو کیدې شی.چه ددې وعدې د تکمیل دپاره څه شرطونه اوڅه اسباب داسې ضروری وی.چه د هغې نه بغیر دغه وعده پوره نشی.او زمونږ نه په دې شرطونو او دې اسبابو کښې کوتاهی اوشی.ددې وجې په نبی ﷺ باندې ویره غالبه وه.او نبی ﷺ دعا کوله. ددې نه پس نبی ﷺ د سپر نه رابهر شو.او نبی ﷺ اوفرمائیل.
((أبشر یا أبا بکر أتاك نصر الله هذا جبریل آخذ أبعنان فرسه))(۲)
ابوبکر زیرې! دالله تعالی مدد راغلو.دا جبریل دې ،دوی د خپل اس واګې نیولې دې.
**په موټی خاورې سره د کافرانو اوترکیدل:** جنګ شروع شو.او سخت جنګ وو.نبی ﷺ د خاورو یو موټی راواخستل.او کافرانو طرف ته ئې اوویشتل.او ((شاهت الوجوه)) ئې درې خله اوونیل.هم ددې په باره کښې الله تعالی فرمائیلی دی.(۳) ﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ﴾ (۴)
او تا نه دی ویشتلې هغه یو موټی خاورې کله چه تا ویشتل کول بلکه الله تعالی ویشتی دی.
د یو موټی خاورې به څه حقیقت وی.دکافرانو یو زر لښکر وو.خو ددې لښکر داسې یو کس هم پاتې نشو.چه د هغه په سترګو کښې دغه خاورې نه وی داخل شوې.هغه خاوره د هر یو کس په سترګو کښې ورداخل شوه.اوهغوی سترګې مګل شروع کړلې دې سره کافران اوتر شو.(۵) مسلمانانو به هغوی نیول.او قید کول،او قتلول.

---

(۱) حکی السهیلی عن شیخه أبی بکر بن العربی بأنه قال کان رسول الله ﷺ فی مقام الخوف والصدیق فی مقام الرجاء وکان مقام الخوف فی هذا الوقت أکمل لأن الله أن یفعل ما یشاء فخاف أنا لا یعبد فی الأرض بعدها (البدایة والنهایة (۲۷۲\۳)_

(۲) سیرة ابن هشام (۶۲۷\۱) وفی الکامل (۸۷\۲ و ۸۸) وخرج رسول الله ﷺ وهو یقول ﴿ سیهزم الجمع ویولون الدبر﴾ وحرض المسلمین وقال والذی نفس محمد بیده لا یقاتلهم الیوم رجل فیقتل صابراً محتسباً مقبلا غیر مدبر إلا أدخله الله الجنة فقال عمیربن الحمام الأنصاری .. وبیده تمرات یأکلهن بخ بخ ما بینی وبین أن أدخل الجنة إلا أن یقتلنی هولاء ثم ألقی التمرات من یده وقاتل حتی قتل و رمی مهجمع مولی عمربن الخطاب بسهم فقتل فکان أول قتیل وفی البدایة والنهایة (۲۷۷\۳) فأخرج عمیر تمرات فجعل یأکل منهن ثم قال لئن أنا أحییت حتی آکل تراتی هذه إنها حیاة طویلة فرمی مان کان معه من التمر ثم قاتلهم حتی قتل ﷺ وهو یقول حین قاتل.،
رکضا إلی الله بغیر زاد ۞ إلا التقی وعمل المعاد
والصبر فی الله علی الجهاد ۞ وکل زاد عرضة النفاد
غیر التقی والبر والرشاد

(۳) تفسیر ابن کثیر (۲۹۵\۲)_

(۴) سورة الأنفال:۱۷)_

(۵) أیضاً)_

**د ابوالبختری قتل:** نبی ﷺ صحابو ﷺ ته په دغه دوران کښې دا هم فرمائیلی وو.ځنې خلق د مسلمانانو د مقابلې دپاره راتلل نه غوښتل.هغوی په زور باندې راوستې شوی دی.نو هغوی مه قتلوئ.په هغوی کښې حضرت عباس بن عبدالمطلب هم دې.او ابو البختری بن هشام هم په زور باندې راوستې شوې دې.
یوانصاری صحابی ﷺ ابوالبختری (۱) اونیولو.او ورته ئې اووئیل.چه رسول الله ﷺ ستا د قتل نه مونږ منع کړی یو.د ابو البختری یو ملګرې وو.هغه سره د مکې نه راغلې وو.هغه اووئیل.زما دا ملګرې (۲) هم مه قتلوئ.انصاری صحابی ﷺ اووئیل. هرګز نه، نبی ﷺ صرف ستا په باره کښې حکم کړې دې.ستا د ملګری په باره کښې نه دی وئیلی. مونږ هغه نه پریږدو.ابوالبختری اووئیل.بیا داسې نشی کیدې.چه زما ملګرې دې زما وړاندې قتلولې شی.او زه دې ژوندې یم.او دا شعر ئې وئیل. او د حملې دپاره راغلو.

لن يسلم ابن حرة زميله حتى يموت أو يرى سبيله

د شریفې ښځې خوې خپل ملګرې قتل ته نه حواله کوی.تردې چه یا خو په خپله مړ شی.او یا بچ شی.خپله لار اووینی.آخری دا چه دغه انصاری صحابی ﷺ هغه مړ کړو.(۳)
**د عبیده بن سعید قتل:** عبیده بن سعید یو لوې کافر وو.د هغه د بدن هیڅ یوه حصه هم د زغرې نه بهر نه وه. صرف سترګې ئې په نظر راتلې.حضرت زبیر بن عوام ﷺ ورته په سوو (انتظار) کښې وو. او هغه ئې په نیزه په سترګه اووهلو.کومه چه د هغه د سر نه اخوا اووتله.او هغه راپریوتلو .اومړ شو.حضرت زبیر ﷺ فرمائی.چه ما د هغه په سینه باندې پښه کیخوده.او ښه په زور سره مې ترې نیزه راوویستله.او د هغه نیزې خوکې کږې شوې وې.رسول الله ﷺ د حضرت زبیر ﷺ نه دغه نیزه دیادګار په طور واخستله.اود نبی ﷺ نه پس بیا هغه د حضرت ابوبکر ﷺ سره وه.اود حضرت ابوبکر ﷺ نه پس د حضرت عمر ﷺ سره وه.بیا د حضرت عثمان ﷺ اوبیا دحضرت علی ﷺ او په آخر کښې حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ ته راغله.(۴)
په دې جنګ کښې دقریشو تقریباً اویا کسان مړه شول.او اویا کسان قیدیان کړې شول(۵)
**د حضرت عباس رضی الله عنه نیول:** په قیدیانو کښې حضرت عباس بن عبدالمطلب ﷺ هم وو. حضرت عباس ډیر اوګدقدوالا،لحیم شحیم جسیم سړې وو.دې حضرت ابوالیسر ﷺ

---

(۱) دده نوم مجزر بن ذیاد بلوی وو(اوګورئ البدایة والنهایة (۲۸۵\۳)_

(۲) دهغه نوم جناده بن ملیحه وو(البدایة (۲۸۵\۳)_

(۳) البدایة والنهایة (۲۸۵\۳) وإنما نهى رسول الله ﷺ عن قتل أبى البخترى لأنه كان أكف القوم عن رسول الله ﷺ وهو بمكة وكان لا يوذيه ولا يبلغه عنه شئ يكرهه وكان ممن قال فى نقض الصحيفة التى كتبت قريش على بنى هاشم وبنى المطلب (سيرة ابن هشام (۶۲۹\۱)_

(۴) اوګورئ بخاری غزوه بدر رقم الحديث ۳۹۹۸)_

(۵) طبقات ابن سعد (۱۸\۲۱)_

(١) قيد كړي وو.دي ډير كم قد،ډير زيات كمزوري او نرې پرې سړې وو.نبى ﷺ د دوى نه تپوس اوكړو،ابواليسر تا عباس څنګه اونيولو؟ ابواليسر ورته اووئيل.په حقيقت كښې ما دې په يواځې نه دې نيولې،يو سړى زما مدد كړې وو،هغه كس ما نه وړاندې ليدلې وو اونه روسته،نبى ﷺ ورته اوفرمائيل،هغه د آسمان فرښته وه،(٢)

**د جنګ نه پس د قريشو د سردارانو لعشونه په كوهى كښې د غورځولو حكم:** د جنګ د ختميدونه پس نبى ﷺ كريم ﷺ د قريشو سرداران په يوكوهى كښې د اچولو فيصله اوكړه. نو نبى ﷺ د هغه سردارانو لعشونه چه تعداد ئې خلورويش وو.په كوهى كښې اوغورځولو. او باقى مقتولين ئې هم دغه شان كندې اوكنستلې.اوپټ ئې كړل.(٣)په سردارانو كښې د اميه بن خلف لعش چونكه ډير خراب شوې وو.اوكله چه زغره دهغه د بدن نه اوويستې شوه.نو دهغه اندامونه جدا جدا شو.ددې وجې هغه هم په هغه ځاى كښې په خاورو كښې پټ كړې شو.او هغه په كوهى كښې اونه غورځولې شو.(٤)

**د كافرانو مړو لعشونوته د نبى ﷺ خطاب:** د نبى ﷺ دا عادت وو.چه كله به دوى په يو جنګ كښې فتح بيا مونده.نو د جنګ نه پس به ئې درې ورځې هلته قيام كولو.(٥) دوى دلته هم درې ورځې قيام اوكړو.كله چه دريمه ورځ شوه.نو نبى ﷺ د روانيدو حكم اوكړو نبى ﷺ زين برابر كړو.او په سورلۍ باندې كيناستلو.او هغه كوهى طرف ته روان شو.په كوم كښې چه د قريشو سرداران غورځولى شوى وو.د صحابو ﷺ خيال شو.چه د څه بل ضرورت دپاره به ځى.خو نبى ﷺ كوهى ته راغلو.او وې فرمائيل.

«يا أمية، يا أباجهل بن هشام، يا عتبة بن ربيعة يا شيبة بن ربيعة هل وجدتم ما وعدربكم حقاً فإنى قد وجدت ما وعدنى ربى حقاً» اې اميه، اې ابوجهل اې عتبه اې شيبه الله تعالى چه كومه وعده تاسو سره كړې وه.آيا تاسو هغه صحيح اوبرحق بيا مونده.الله تعالى چه كومه وعده ما سره كړې وه.هغه خو ما په حق بيا مونده.

حضرت عمربن خطاب ﷺ اوفرمائيل.«هل تكلم من أجساد لا أرواح فيها؟» تاسو دې بې روحه مړو سره خبرې كوئ.نو نبى ﷺ اوفرمائيل.«والذى نفسى بيده ما أنتم بأسمع لما أقول منهم ولكن لا يستطيعون أن يجيبوا» قسم دې په هغه ذات د چا په قبضه كښې چه زما روح دې.د دوى په

---

(١) حضرت ابواليسر انصار بدرى صحابى ﷺ دې.ليلة العقبه ته حاضر شوې وو.په مدنيه منوره كښې ٥٥ﻫ دوى وفات شوى وو.دې د ټولو نه آخرى بدرى صحابى دې.چه په مدينه كښې وفات شوې دې.اوګورئ الاصابة فى تمييز الصحابة (٢٢١\٤)۔

(٢) تاريخ طبرى (١٦١\٢)۔

(٣) كامل لابن اثير (٩٠\١٢) البداية والنهاية (٢٩٣\٣)۔

(٤) سيرة ابن هشام (٦٣٨\١)۔

(٥) البداية والنهاية (٢٩٣\٣)۔

مقابله كښې تاسو زما خبرې زياتې نه اورئ.خوصرف دومره ده چه دوى جواب نشى راكولې.(۱)

**مدينې منورې ته روانيدل او د دوو قيديانوقتل:** ددې نه پس نبى اكرم ﷺ ددې ځاې نه روان شو.(۲) او انصارى صحابى عبدالله بن كعب رضی الله عنه ته ئې د مال غنيمت حفاظت اوسپارلو.(۳) مدينې منورې ته نزدې مقام صفراء ته چه كله نبى ﷺ اورسيدل.نوپه قيديانوكښې د نضربن حارث په باره كښې حكم اوكړو.چه هغه دې قتل كړې شى.نوحضرت على رضی الله عنه هغه قتل كړو.(۴) دمقام صفراء نه چه كله روان شو.اومقام عرق الظبيه ته اورسيدل.نونبى ﷺ د عقبه بن ابى معيط دقتلولوحكم وركړو.نوعاصم بن ثابت رضی الله عنه دهغه څټ قلم كړو.(۵)

دا دواړه قولاً او فعلاً په دواړو طريقو نبى ﷺ ته په تكليف رسولو كښې مشغول وو. توقې اومسخرې به ئې كولې.عقبه بن ابى معيط بدبخته په يوځل د نبى ﷺ په مخ مبارك باندې لاړې (لعاب) توكلې وې.او يوځل نبى ﷺ په مسجد حرام كښې مونځ كولو.اود اوښ پليتى او بچه دانئ ئې راوړه.د نبى ﷺ په شا باندې ئې ورغورځوله.ددې وجې نبى ﷺ دهغه د

---

(۱)البداية والنهاية (۲۹۲\۳و ۲۹۳) په بعضې رواياتو كښې د نبى ﷺ دخطاب الفاظ داسې نقل شوى دى،،يا أهل القليب بئس عشيرة النبى ﷺ كنتم لنبيكم كذبتمونى وصدقنى الناس وأخرجتمونى وآوانى الناس وقاتلتمونى نصرنى الناس هل وجدتم ما وعد ربكم حقاً قد وجدت ما وعدنى ربى حقاً (البداية والنهاية (۲۹۲\۳)

اهل قليب ته چه كله نبى ﷺ خطاب اوكړو.نود حضرت ابوحذيفه په مخ باندې نبى ﷺ د غم او خفگان آثار اوليدل.نبى ﷺ اوفرمائيل.ابوحذيفه! كيدې شى د پلار دا حالت چه تا اوليدل.نو خفه شوې به ئې.وې وئيل نه،يارسول الله خبره صرف دومره ده.چه زما پلار د عقل او فضل مالك وو.كه ژوندې پاتې شوې وو.نو زما دا اميد دې.چه اسلام به ئې قبول كړې وو.اوس د كفر په حالت كښې دده مرگ ما خفه كوى.نبى ﷺ چه جواب واوريدو.نو دده دپاره ئې د خير دعا اوكړه.(كامل ابن اثير(۹۰\۲)،

د نبى كريم ﷺ مړو سره په خطاب كولو باندې حضرت عمر رضی الله عنه ته اشكال پيښ شو.چه دبې روحه بدنونو سره خبرې كول څه معنى لرى؟ نبى ﷺ چه كوم جواب وركړو.د هغې نه دا ښكاره ده.چه الله تعالى كله اوغواړى.او څومره اوغواړى.مړو ته اورول كولې شى.حضرت عائشه رضى الله عنها چونكه د سماع موتى قائله نه وه.ددې وجې به هغوى په داسې رواياتو كښې تاويل كولو. حافظ ابن كثير په البداية كښې تبصره كوى اوليكى.،،

قلت وهذا مما كانت عائشةرضى الله عنها تتاوله من الأحاديث وتعتقد أنه معارض لبعض الآيات وهذا المقام مما كانت تعارض فيه قوله ﴿ وما أنت بمسمع من فى القبور﴾ وليس هو بمعارض له والصواب قول الجمهور من الصحابة رضی الله عنهم ومن بعدهم للأحاديث الدالة نصاً على خلاف ما ذهبت إليه رضی الله عنها (البداية والنهاية (۲۹۲\۳)،،

د مسئله سماع موتى تفصيل وړاندې راځى_

(۲)مدينې منورې ته د روانيدو نه وړاندې دفتحې خوشخبرئ ليږلو دپاره نبى كريم ﷺ د مدينې پورته او ښكته دواړو طرفونو ته قاصد اوليږلو.پورته طرف ته عبدالله بن رواحه رضی الله عنه او ښكته طرف ته زيد بن حارثه رضی الله عنه لاړل.(طبقات ابن سعد(۱۹\۲)_

(۳)سيرة ابن هشام (۶۳۴\۱)_

(۴)كامل ابن اثير (۹۱\۲)_

(۵)كامل ابن اثير(۹۱\۲)_

قتلولو حکم اوکړو.(۱)

**د مال غنیمت دتقسیم مسئله:** ددې نه پس سوال پیدا شو د مال غنیت د تقسیم،مال غنیمت لا تقسیم شوې نه وو.په دې باره کښې په صحابوﷺ کښې اختلاف پیدا شو.چه کوم خوانان وو. هغوی اووئیل.چه مونږ جنګ کړې دې.اوکافران مو قتل کړې اوبند کړې دی.نومال غنیمت مونږ ته ملاویدل پکار دی.اوچه کوم اکابرین او مشران وو.که وړاندې وو.اوکه روستو وو.هغوی وئیل.که تاسو شکست خوړلې وو.نو مونږ ته به راواپس کیدئ.تاسو وړاندې جنګ زمونږ په ډاډ او پشت پناهئ باندې کتلې دې.ددې وجې مونږ ته هم په مال غنیمت کښې حصه ملاویدل پکار دی.اوهغه حضرات کوم چه د رسول الله د حفاظت دپاره مقرر وو.هغوی وئیل.چه دمال غنیمت مونږ زیات مستحق یو.په دې باندې د قرآن شریف آیت نازل شو﴿يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْأَنفَالِ ۖ قُلِ الْأَنفَالُ لِلَّهِ وَالرَّسُولِ ۖ﴾ (۲) دا خلق ستا نه د مال غنیمت د حکم تپوس کوی.تاسو ورته اووائې.چه دا د دالله اودهغه د رسول دپاره دې. بهرحال نبیﷺ دا مال بیا په ټولو مسلمانانو کښې برابر تقسیم کړل.(۳)

**په غنیمت کښې حصه اخستونکې اته صحابه رضی الله عنهم:** اته کسان داسې وو.چه هغوی په جنګ بدر کښې شریك شوی نه وو.خو په مال غنیمت کښې دهغوی حصه هم مقرر شوه.(۴)

① یو حضرت عثمانؓ وو.د نبیﷺ لور حضرت رقیهؓ دهغوی په عقد کښې ناسته وه.اوهغه د جنګ په وخت کښې بیماره وه.کله چه نبیﷺ دجنګ دپاره روانیدل. نو حضرت عثمانؓ ورسره تلل غوښتل.خو نبیﷺ ورته په مدینه کښې د پاتې کیدو حکم اوکړو. اودحضرت رقیه په تیمارداریٔ ئې هغه ماموره کړو.

(③ -②) طلحه بن عبیدالله اوحضرت سعید بن زیدؓ دا د واړه عشره مبشره دی .دوی نبیﷺ په یو مهم باندې روان کړی وو.ددې وجې دوی په جنګ کښې شرکت اونکړې شو.په مال غنمیت کښې نبیﷺ دهغوی حصه هم مقرر کړه.

④ دحضرت ابولبابه بن المنذرؓ ذکر مخکښې تیرشوې دې.چه نبیﷺ دوی لره خپل قائم مقام جوړ کړو.اومدینې منورې ته ئې واپس لیږلې وو.ددې وجې دوی په جنګ کښې شریك نشو.هغوی هم نبیﷺ بدری شمار کړې وو.اوپه مال غنیمت کښې ئې هغوی ته هم حصه ورکړې وه.

⑤ حضرت عاصم بن عدیؓ دوی لره نبیﷺ د مدینې منورې په پورته طرف کښې پریخودې وو.دوی ته هم حصه ملاؤ شوه.

⑥ حضرت حارث بن حاطبؓ دوی هم نبیﷺ په څه وجه باندې واپس لیږلی وو.

---

(۱)البدایة والنهایة (۳۰۶\۳) دغه شان اوګورئ دلائل ابی نعیم (۴۷۱\۲)_

(۲)سورة الأنفال:۱)_

(۳)البدایة والنهایة (۳۰۳\۳)_

(۴)په دغه اتو کښې درې حضرات حضرت عثمان،حضرت طلحه،حضرت سعیدمهاجرین وو. او باقی پنځو د انصارو سره تعلق ساتل)_

(۷ - ۸) حضرت حارث بن صمه رضي الله عنه او حضرت خوات بن جبير رضي الله عنه .. دې دواړو ته هم په مال غنيمت کښې حصه ورکړې شوې وه.([1])

**مال خمس:** د بدر د غنيمت نه خمس ويستې شوې وو که نه؟ په دې کښې اختلاف دې.د بعضې حضراتو دا رائې ده.چه خمس نه وو ويستلې شوې.خو دمحققينو رائې دا ده.چه خمس ويستلې شوې وو.([2])

**دبدر دقيديانو په باره کښې مشوره:** د بدرد قيديانو په باره کښې نبى صلى الله عليه وسلم صحابه کرامو رضي الله عنهم سره مشوره اوکړه.چه دوى سره څه اوکړې شى؟ دحضرت عمربن الخطاب، حضرت سعد بن معاذ او حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه رائې دا وه.چه دوى قتل کړې شى.نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ((إنما أمكنكم الله منهم)) الله تعالى تاسوته په دوى باندې قدرت درکړې دې.اشاره دې خبرې ته وه.چه کله په دشمن باندې قدرت حاصل شى.نومعاف کول ئې ښه دى.حضرت ابوبکر رضي الله عنه عرض اوکړو. يارسول الله چه دوى نه فديه واخستې شى.او آزاد کړې شى.کيدې شى.الله تعالى دوى ته د ايمان توفيق ورکړى.او دوى زمونږ لاس او متې جوړې شى.اود اسلام دفاع کوى.اود اسلام داشاعت او ترقئ ذريعه جوړه شى.([3]) نبى صلى الله عليه وسلم د فديه اخستلو فيصله اوکړه.اود يو زر نه واخله تر څلورو زرو درهمو پورې فديه ئې مقرر کړه.د هرکس حيثيت ته کتلې شوى وو.کوم کسان چه غريبانان وو.او فديه ئې نشوه ورکولې.نو هغوى ئې د فدې ورکولو نه بغير آزاد کړل.([4]) او کوم کسان چه په دوى کښې په ليکلو پوهيدل.هغوى سره ئې دا شرط اولګول.چه هغوى به دمسلمانانو لسو لسو ماشومانوته ليکل ښائى. نو حضرت

---

[1])طبقات ابن سعد(۱۲\۲)_

[2])وقد زعم أبوعبيدة القاسم بن سلام رحمه الله أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قسم غنائم بدر على السواء بين الناس ولم يخمسها ثم نزل بيان الخمس بعد ذلک ناسخاً لما تقدم .. وفى هذا نظر والله أعلم فإن فى سياق الآيات قبل آية الخمس وبعدها کلها فى غزوة بدر فيقتضى أن ذلک نزل جملة فى وقت واحد غير متفاصل بتأخر يقتضى نسخ بعضه بعضا ثم فى الصحيحين عن على رضي الله عنه أنه قال فى قصة شار فيه اللذين إجتب أسنمتهما حمزة رضي الله عنه أن أحداهما كانت من الخمس يوم بدر ما يرد صريحاً على أبى عبيد ان غنائم بدر لم تخمس والله أعلم بل خمست كما هو قول البخارى وابن جرير وغيرهما وهو الصحيح الراجح والله أعلم (البداية والنهاية ۳\۳۰۳)

[3])عن ابن عباس حدثنى عمربن الخطاب قال إستشار رسول الله صلى الله عليه وسلم أبابكر وعلياً وعمر رضي الله عنهم فقال ابوبكر رضي الله عنه يا رسول الله هولا بنو العم والعشيرة والإخوان وإگى أرى أن تطخذ منهم الفدية فيكون ما أخذناه قوة على الكفار وعسى أن يهديهم الله فيكون لنا عضداً فقال رسول الهل صلى الله عليه وسلم ما ترى يا ابن الخطاب؟ قال قلت والله ما أرى ما رأى دبوبكر ولكن أرى أن تمكننى من فلان قريبب لعمر أضرب عنقه وتمكن علياً من عقيل فيضرب عنقه وتمک حمزة من فلان فيضرب عنقه حتى يعلم الله أنه ليست فى قلوبنا هوادة للمشركين وهولاء صناديهم وأئمتهم وقادتهم فهوى رسول الله صلى الله عليه وسلم ما قال أبوبكر ولم يهو ما قلت وأخذ منهم الفداء (البداية ولانهاية (۳\۲۹۷)_

[4])ابوعزه جمحى دوى لره نبى صلى الله عليه وسلم بغيرفديې آزاد کړو.(طبقات ابن سعد (۲\۱۸)_

زيد بن ثابت رضي الله عنه هم په دغه موقع باندې ليکل زده کړل.(۱)

**د حضرت عباس رضي الله عنه فديه:** حضرت عباس بن عبدالمطلب رضي الله عنه اوونيل.ما سره د فديې ورکولو دپاره خو څه هم نشته.ما دغه شان آزاد کړئ.نبي ﷺ دحضرت عباس رضي الله عنه فديه څلور زره روپۍ مقرر کړې وې.دا د نورو نه زيات مقدار وو.(۲) کله چه حضرت عباس اوونيل.ما سره هيڅ هم نشته.نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل.تا او ستا بي بي ام الفضل چه کوم مال مونډلې وو.او په فلاني ځاې کښې مو ښخ کړې دې.ولې هغه تا سره نه دې؟ حضرت عباس رضي الله عنه ورته اوونيل. هغه مال خوزما او د ام الفضل نه سوا بل هيچا ته معلوم نه وو.تاسو ته د هغې په باره کښې علم اوشو.يقيناً ته دالله تعالى رښتينې رسول ئې.ددې نه پس عباس رضي الله عنه فديه ورکړه.(۳) د قرآن مجيد آيت دې.﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّمَن فِي أَيْدِيكُم مِّنَ الْأَسْرَىٰ إِن يَعْلَمِ اللَّهُ فِي قُلُوبِكُمْ خَيْرًا يُؤْتِكُمْ خَيْرًا مِّمَّا أُخِذَ مِنكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ (۴)

دحضرت عباس رضي الله عنه بيان دې.چه په دې آيت کښې الله تعالى دوه وعدې کړې دى. يوه دا چه کوم مال ستاسو نه واخستې شو.الله تعالى به ددې نه غوره درکړي.که ستاسو په زړونوکښې خير راغلو.حضرت عباس رضي الله عنه فرمائي چه ددې نه پس ماته څلويښت غلامان ددې په عوض کښې راکړې شول.او هرغلام د مال په کټلو کښې ماهر وو.دويمه وعده د مغفرت ده.زما اميد دې.چه الله تعالى به خامخا زما مغفرت کوى.(۵)

**نوفل بن حارث:** دغه شان نوفل بن حارث يوبل قيدى وو.هغه نبي ﷺ ته اوونيل. ما سره د فديې ورکولو دپاره هيڅ څه نشته.نبي ﷺ ورته اوفرمائيل.هغه په ،،جره،، کښې چه تا نيزې ايخودې دى.آيا هغه مال نه دې؟ نوهغه ډير حيران شو.او وې ونيل.دهغې نيزو خو چاته علم نشته.يقيني ده چه الله تعالى به تاسو ته خودلې وى.اوته دالله تعالى رښتونې رسول ئې.او کلمه ئې اوونيله مسلمان شو.(۶)

---

(۱)طبقات ابن سعد(۲۲/۲)_

(۲)حضرت عباس رضي الله عنه په دې موقع باندې دا هم ونيلى وو.چه ما اسلام قبول کړې دې.خود قريشو د بدو ردو ونيلو د وجې ما داسلام اعلان نشو کولې.نبي ﷺ ورته اوفرمائيل.که په حقيقت کښې تا اسلام قبول کړې وى.نو الله تعالى ښه پوهيږى تا ته به د هغې اجر ملاويږى.خو فديه به په هر حالت کښې ورکوې.انصارو د حضرت عباس نه د فديې نه اخستلو درخواست کړې وو.خو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل.نه بلکه دې به فديه ورکوى.ځکه چه حضرت عباس رضي الله عنه مالدار وو.نو نه يواځې دا چه نبي ﷺ دهغه نه فديه واخستله.بلکه هغه ته ئې د هغه د وراره عقيل او حليف عتبه بن عمرو د طرفه د فديې ورکولو هم اوونيل نو حضرت عباس د هغه دواړو د طرفه هم فديه ورکړه.(اوګورئ تاريخ طبرى (۱۶۳/۳) حضرات عباس ټوله سل اوقيې سره زر ادا کړى وو.دا دټولو نه زياته وه.

(۳)البداية والنهاية (۲۹۹/۳) دغه شان دلائل بيهقى (۱٤۱/۲)_

(٤)سورة الأنفال:۷۰)_

(۵)ايضاً)_

(۶)دلائل بيهقى (۱٤٤/۳)_

**ابوالعاص بن الربيع**: هم په دې قيديانو كښې د نبى ﷺ زوم ابوالعاص بن الربيع هم وو.(١) حضرت زينب رضی الله عنها د مكې نه دخپل خاوند ابوالعاص په فديه كښې هغه هار راوليږل.كوم چه حضرت خديجې رضی الله عنها د واده موقع باندې حضرت زينب رضی الله عنها ته وركړې وو.كله چه نبى ﷺ ته هغه هار اورسيدل.نو دحضرت خديجې رضی الله عنها ياد ورته تازه شو.اود خپلې لور د بيكسئ او غريبئ خيال ورته راغلو.او د نبى ﷺ په ستر كو كښې اوښكې راغلې.او نبى ﷺ صحابو رضی الله عنهم ته اووئيل.كه تاسو راضى ئې.نو دا هار به واپس كړې شى.اودې به بغير فديې آزاد كړې شى.ټولو صحابو رضی الله عنهم د زړه په خوشحالئ سره اجازت وركړو.او نبى ﷺ ابوالعاص نه دا وعده واخستله.چه ته به مكې ته د رسيدو نه پس زينب مدينې ته راليږې.هغه هار ئې ورته واپس كړو.او ابوالعاص ته ئې دتلو اجازت وركړو .ابوالعاص د خپلې وعدې مطابق حضرت زينب رضی الله عنها روانه كړه.او نبى ﷺ حضرت زيدبن ثابت او يوانصارى صحابى د حضرت زينب رضی الله عنها د راوستلو دپاره اوليږل .دا دواړه لاړل.اوحضرت زينب رضی الله عنها ئې مدينې ته راوستله.(٢)

**دابوسفيان ځوې عمرو**: په قيديانو كښې د ابوسفيان ځوې عمرو هم وو.دابوسفيان او څو نورو كسانو دا خيال وو.چه د يو قيدى فديه دې هم ورنكړې شى.زمونږ دومره كسان مړه شول.او اوس به ورته مونږ د روپو ډيرې هم وركوو.داسې مونږ نه كوو.خود مطلب بن ابى وداعه پلار چونكه په قيديانو كښې وو.نو مطلب څلور زره روپئ په پټه مدينې ته اوليږلې.او خپل پلار ئې آزاد كړل.چه هغه ته ئې اوكتل.نو نورو خلقو هم فديې ليږل شروع كړل.(٣) خو ابوسفيان په خپله اولنئ خبره باندې ټينګ وو.هغه اووئيل.چه زما يو ځوې حنظله وژلې شوې دې.او اوس د دويم ځوې په بدله كښې زه دولت دهغوى په قدمونو كښې

---

(١) ابوالعاص بن الربيع د قريشو په شمارلې شوې امانت ګرسوداګرو كښې وو.حضرت خديجه رضى الله عنها د دوى تررور وه.د نبوت ملاويدو نه وړاندې د حضرت خديجې رضى الله عنها په وينا باندې نبى ﷺ خپله مشره لور د حضرت زينب نكاح ده سره كړې وه.كله چه نبى ﷺ ته نبوت ملاؤ شو.نوحضرت خديجې او ددې ټولو لونړو ايمان راوړو.ابوالعاص په شرك باندې برقرار پاتې شو.قريشو ورته ډير اوئيل.كومه جينئ چه ستا خوښه وى.مونږ به د هغې واده تا سره اوكو.خو د محمد (ﷺ) لور پريږده.خو ابوالعاص تيار نشو.او حضرت زينب رضى الله عنها؟؟ د هغه په عقد كښې پاتې شوه.د غزوه بدر نه پس هغوى د وعدې مطابق حضرت زينب رضى الله عنها مدينې ته روانه كړه.څوكاله پس د تجارت په غرض شام ته تلې وو.په واپسئ كښې د سامان تجارت سره د مسلمانانو وړو لښكرو دې بنديوان كړو.دوى په پټه حضرت زينب رضى الله عنها ته اورسيدو.هغې ورته پناه وركړه.نبى ﷺ اوفرمائيل.كه مناسب ګنړئ.د ابوالعاص سامان واپس كړئ.صحابو رضی الله عنهم يو يو تار راوړل.او واپس ئې كړو.ابوالعاص ددې ځاى نه مكې ته واپس لاړلو.او ټول شريكان ئې په حساب پوهه كړل.اودخپل مسلمانيدو اعلان ئې اوكړو.او وې وئيل.زه ددې دپارهرذلته راغلم.حساب مې اوكړو.چه صبا تاسو دا نشى وئيلې.چه ابوالعاص زمونږ روپئ اوخوړلې اود مطالبې د ويرې د وجې مسلمان شو.د حضرت ابوبكر رضی الله عنه په دور خلافت كښې په ذى الحجه ١٢ﻫ كښې وفات شورضى الله عنه (اوګورئ تاريخ طبرى (١٦٣\٢) دغه شان (الإصابة (١٢٣\٤))_

(٢) كامل ابن اثير (٩٤\٢)_

(٣) كامل ابن اثير (٩٣\٢)_

واچوم.دا زما نه نه کیږی.حضرت سعدبن النعمان انصاری رضی الله عنه دمدینې منورې نه د عمرې دپاره راغلې وو.ابوسفیان هغه بندی کړل.او اعلان ئې اوکړو.چه مسلمانانو ترڅو پورې زما خوې آزاد کړې نه وی.ترهغه وخته پورې به زه دې نه آزادوم.نو نبی ﷺ د انصارو په وینا باندې دابوسفیان ځوې آزاد کړو.اودهغه په بدله کښې حضرت سعدبن النعمان رضی الله عنه آزادشو(١)

**سهیل بن عمرو:** سهیل بن عمرو هم په قیدیانو کښې وو.دې ډیر لوې شاعر وو.اواسلام ئې نه وو راوړې.ددې وجې به ئې د نبی ﷺ خلاف اشعار وئیل.حضرت عمر رضی الله عنه عرض اوکړو. یا رسول الله که اجازت وی.نو دده مخکنی دواړه غاښونه به مات کړم.چه ستا خلاف د شعر وئیلو قابل پاتې نشی.خو رحمة للعالمین ورته اوفرمائیل.نه ته دده دوه غاښونه مه ماتوه. کیدې شی.چه الله تعالی دده نه تاسو ته څه خوشحالی اوښائی.اودا ئې اوفرمائیل.زما سره ویره ده.که زه دده مثله اوکړم.هسې نه چه الله تعالی زما مثله اوکړی.(٢)

**د عمیربن وهب قبول اسلام:** مکې ته چه کله د قریشو دناکامئ او قتل او بند خبر اورسیدل. نو یوه غوغا شوه.د اویا کسانو قتل اود اویا کسانو قید کیدل.څه معمولی نقصان نه وو.د قریشو خلق ډیرخفه او پریشانه وو.یوځل عمیربن وهب او صفوان بن امیه د خانه کعبې ددیوال په سیوری کښې ناست وو.او یوبل ته ئې وئیل.د ژوند مزه اوس ختمه شوه.د قریشو دسردارانو دقتل نه پس اوس د ژوند څه مزه پاتې نشوه.عمیر اووئیل. په ما باندې قرض دې.او زما د بچو د کفالت مسئله ده.که د قرض د بوج او دبچو دکفالت د بوج نه زه آزاد ووم.نویقیناً به مدینې ته تلې ووم.اومحمد (ﷺ) به مې قتل کړې وو.

صفوان بن امیه ورته اووئیل.ستا د قرض خلاصولو اود بچو د کفالت ذمه واری زه اخلم.که ته دا کار اوکړې.نوعمیر یوه توره جوړه کړه.اودهغې تیره طرف ئې تیز کړو.اوپه زهرو کښې ئې غوپه کړو.اود نبی ﷺ دقتل په اراده باندې مدینې منورې ته روان شو.دلته په مکه کښې صفوان خلقو ته دا خبره وئیل شروع کړله.چه په څو ورځو کښې دننه به تاسو ته دومره لویه خوشحالی واورم.چه ستاسو د خوشحالئ به هډو څه انتها نه وی. د عمیر ځوې هم دمسلمانانو په قید کښې وو.چه حضرت عمر رضی الله عنه دې اولیدل.نو وې کتل. چه دې په څه بله اراده باندې راغلې دې.حضرت عمر رضی الله عنه ورواندې شو.اودهغه توره باندې ئې قبضه اوکړه. اود نبی ﷺ په خدمت کښې ئې حاضر کړو.نبی ﷺ تپوس اوکړو.ته د څه دپاره راغلې ئې.ده

---

(١) ایضاً ـ

(٢) البداية والنهاية (٣١٠/٣) حضرت عمر رضی الله عنه دده د غاښونو ماتولو اجازت اوغوښتل.نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.((وأنه عسى أن يقوم مقاماً لاتدمه)) حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکی.((قلت وهذا هوالمقام الذى قام سهيل بمكة حين مات رسول الله ﷺ وارتد من ارتد من العرب ونجم النفاق بالمدينة وغيرها فقام بمكة فخطب الناس وثبتهم على الدين الحنيف (البداية والنهاية (٣١٠/٣) وفى الإصابة (٩٤١٢) قال أبو سعد بن فضالة إصطحبت أنا وسهيل بن عمر إلى الشام فسمعته يقول سمعت رسول الله ﷺ يقول مقام أحدكم فى سبيل الله ساعة من عمره خير من عمله فى أهله قال سهيل فإنما أرابط حتى أموت لاأرجع إلى مكة قال فلم يزل مقيماً بالشام حتى مات فى طاعون عمواس سنة ثمان عشرة)ـ

اووئیل.دخپل ځوي د خلاصولو دپاره راغلې یم.نبی ﷺ ترې بیا تپوس اوکړو.ده بیا اصلی خبره اونه خودله.نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.د صفوان او ستا په مینځ کښې د خانه کعبې د دیوال لاندې چه تاسو ناست وئ.څه خبره شوې وه.اوس هغه حیران شو.او وې وئیل.«أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أنك رسول الله» او هغه مسلمان شو.هغه اووئیل.زما اود صفوان په مینځ کښې چه کومه خبره شوې وه.هغه دالله تعالی نه سوا او زمونږ دواړو نه علاوه بل هیڅ چاته معلومه نه وه.که ته دالله تعالی نبی نه وې.نو الله تعالی به تاته دا خبره نه وه کړې.ددې نه پس نبی ﷺ دهغه قیدی آزاد کړلو.او نبی ﷺ صحابو رضی الله عنهم ته اوفرمائیل. خپل ورور عمیر ته قرآن اوښائې.عمیر اووئیل.یارسول الله ما چه د اسلام خلاف څومره کوششونه کړی دی.اوس تاسو ماته اجازت راکړئ.چه زه مکې ته لاړ شم.اودهغې تدارك اوکړم.اوهلته دکفرخلاف هغه ټول څه اوکړم.کوم چه ما تر اوسه پورې د اسلام خلاف کړی وو.نوعمیر ددې ځاې نه واپس لاړلو.اوداسلام په دعوت اوتبلیغ کښې لګیا شو.الله تعالی د دوی په وجه څو کسانوته داسلام دولت ورکړو.(۱)

**یو سوال اودهغې جواب:** د اسیران بدر د فدیې په باره کښې یوه قابل توجه خبره ده.هغه دا چه نبی ﷺ ته حضرت جبریل علیه السلام په دې موقع باندې راغلې وو.او خبر ئې ورکړې وو.چه ته خپلو صحابو رضی الله عنهم ته اختیار ورکړه.که دوی غواړی.نو فدیه دې واخلی.او د هغوی بندیان دې آزاد کړی.که فدیه ئې واخستله او هغوی ئې آزاد کړل.نو په راروان کال کښې به د دوی اویا کسان شهیدان شی.او که غواړی نه دا قیدیان دې قتل کړی(۲) لکه څنګه چه وړاندې تیرشو.چه دحضرت ابوبکرصدیق،اود څه نورو کسانو رائې دا وه.چه ددې خلقو نه دې فدیه واخستې شی.او آزاد دې کړې شی.اودحضرت عمر،حضرت سعدبن معاذ او حضرت عبدالله بن رواحه رضی الله عنهم رائې دا وه.چه دا قیدیان دې قتل کړې شی.نبی کریم ﷺ د حضرت ابوبکراود فدیې اخستلو مشوره ورکونکو نورو حضراتو په رائې باندې عمل اوکړو.اوفدیه ئې واخستله.او آزاد ئې کړل.نوپه دې باندې د قرآن کریم دا آیت نازل شو.

﴿مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللَّهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝ لَوْلَا كِتَابٌ مِنَ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝﴾ (۳) د نبی ﷺ دشان سره مناسب نه

---

(۱) اوګورئ دلائل بیهقی (۱۴۸/۳و ۱۴۹)..
حضرت عمیر رضی الله عنه د حضرت عمر رضی الله عنه د دور خلافت پورې ژوندې وو.په جنګ احد اوتبوك وغیره کښې د نبی ﷺ سره شریك شوې وو.دحضرت عمر رضی الله عنه دخلافت په زمانه کښې دوی وفات شوی وو.(اوګورئ (الإصابة (۳۷/۳)_

(۲) دا د حضرت علی رضی الله عنه روایت دې.پوره حدیث داسې دې.،
عن علی رضی الله عنه عن رسول الله ﷺ أن جبريل هبط عليه فقال له خيرهم =يعني أصحابک – فى أسارى بدر القتل والفداء على أن يقتل منهم قابلاً مثلهم قالوا الفداء ويقتل منا .. رواه الترمذى وقال هذا حديث غريب (مشكواة المصابيح كتاب الجهاد باب حكم الأسراء رقم الحديث ۳۹۷۳)_~

(۳) سورة الأنفال:۶۷و ۶۸)_

دی.چه ددوی قیدیان باقی پاتې شی.(بلکه چه قتل کړې شی) ترڅوچه هغه په زمکه کښې د(دکافرانو) ښه وینه تویه نکړی.تاسو دنیا اوددې مال او اسباب غواړئ.او الله تعالی د آخرت (مصلحت) غواړی.اوالله تعالی د لوې حکمت خاوند دې.که دالله تعالی لیکل (د ازل) نه وو.نوکومه طریقه چه تاسو اختیار کړې ده.دهغې په باره کښې به په تاسو باندې لوښه سزا واقع شوې وه.

په حدیث کښې راځی.چه نبی ﷺ نزدې یوې ونې طرف ته اشاره اوکړه.او وې فرمائیل.چه عذاب دې ونې ته نزدې راغلې وو.اووې فرمائیل.که عذاب راغلې وو.نود عمر او سعد بن معاذ رضی الله عنهما نه سوا به ترې بل څوك نه وو بچ شوی.[1]

اوس سوال دا دې.چه دحضرت علی رضی الله عنه ددې روایت مطابق چه الله تعالی په قتلولو اوفدیه اخستلو کښې اختیار ورکړې وو.اوصحابو رضی الله عنهم د فدیې صورت اختیار کړو .نو په دې باندې دا وعید ولې نازل شو.

علامه طیبی رحمه الله په شرح دمشکاة کښې فرمائیلی دی.چه په اصل کښې دا اختیار دامتحان دپاره ورکړې شوې وو.کله څنګه چه د قرآن کریم په آیت ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ۝ وَإِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ فَإِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَاتِ مِنْكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا ۝﴾ کښې ازواج مطهراتو ته اختیار د امتحان دپاره ورکړې شوې وو.دغه شان هاروت اوماروت دوه فرښتې چه د سحر دتعلیم دپاره کله راکوزې کړې شوې وې.نو د هغې مقصد هم امتحان وو.چه آیا دا خلق کفر کوی.او هلاکیږی. اوکه ددې نه بچ کیږی.او نجات مومی.دغه شان په معراج کښې نبی ﷺ ته د پیو اوشرابو پیاله ورکړې شوې وه.نبی ﷺ پئ اختیار کړلو.نو حضرت جبرئیل علیه السلام اوفرمائیل ((لواخذت الخمر لغوت أمتك)). هلته هم چه نبی ﷺ ته کوم اختیار ورکړې شوې وو.هغه د امتحان دپاره وو.دغه شان دلته هم صحابه کرامو رضی الله عنهم ته اختیار د امتحان دپاره ورکړې شوې وو.چه مسلمانان به ددې قیدیانو په باره کښې د قتل صورت اختیاروی .کوم چه د الله تعالی په نیز زیات خوښ وو.اوکه فدیه اخلی.کله چه مسلمانانو د فدیهٔ صورت اختیار کړو.نو عتاب نازل شو.بهرحال علامه طیبی رحمه الله دا جواب ورکړې دې.[2]

---

[1] )سیرة مصطفی (۱۱٤\۲) بحواله د زرقانی (۳۳۲\۱)_~

[2] ) په اصل کښې دا اشکال واردیږی.د حضرت علی رضی الله عنه په ذکرشوی روایت باندې په کوم کښې چه داسیران بدر په باره کښې د قتل او فدیه اختیار دې.څکه چه اختیار دا تقاضا کوی.چه عتاب دې نازل نشی.دعتاب نزول ددې خبرې دلیل دې.چه اختیار نه وو ورکړې شوې.صحابو رضی الله عنهم دخپل طرف نه رائې قائم کړه.اوعمل ئې اوکړو.په دې سلسله کښې مروی ټولو احادیثو کښې د الله تعالی د طرفه د قتل او فدیهٔ په مینځ کښې د اختیار ورکولو څه ذکر نشته.،،

ددې وجې دحضرت علی رضی الله عنه ذکرشوې روایت د قرآن پاك د عتاب د آیت سره اود احادیثو د ظاهری مفهوم سره په ظاهره صحیح نه ښکاری.هم دا وجه ده.چه حافظ ابن کثیر رحمه الله ددې حدیث د نقل کولو نه پس وائی.چه ((وهذا حدیث غریب جداً )) البدایة والنهایة (۲۹۸\۳).،

علامه توریشتی رحمه الله ددې حدیث په باره کښې لیکی.، ....[بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

دا خبره دې ضرور په ذهن كښې كېنولې شى.چه پخپله د نبى ﷺ او دحضرت ابوبكر رضي الله عنه رائې دا وه.چه فديه دې واخستې شى.خو وعيد ددوى دپاره نه وو.ځكه چه دهغوى مقصد د فديه اخستو نه د اسلام فلاح اوكاميابى اود اسلام نفاذ وو.څه نور حضرات وو. چه د هغوى مقصد مال وو.اګرچه د فديه مال اخستل حلال وو.خو بيا هم د حلال مال اخستلو قصد د حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم د منصب سره مناسب نه وو.ددې وجې الله تعالى په دې باندې د خفګان اظهار اوكړو.دا په حقيقت كښې تربيت وو.دصحابو رضي الله عنهم چه دمحمد ﷺ په خدمت كښې د اوسيدو نه پس هم ستاسو نظر دنيا طرف ته څى. ددې وجې د دې آيت نه بعضې عالمانو دا استدلال كړې دې.چه انبياء عليهم السلام هم كله اجتهاد كوى.او دوى كله په خپل اجتهاد كښې غلط او خطا كيږى هم.خوالله تعالى خپل يو پيغمبر هم په غلطئ باندې نه پريږدى.د وحى په ذريعه په هغې باندې تنبيه راليږى.

**د انبياء او فقهاؤ په اجتهاد كښې فرق:** دې سره سره دا خبره هم په ذهن كښې ساتل پكار دى. چه دنبى ﷺ اجتهاد د فقهاؤ د اجتهاد پشان نه دې.دا اصولى خبره په ذهن كښې كېنول پكار دى.چه د انبياؤ عليهم السلام اجتهاد دوحى خفى په حكم كښې وى.اوكه په هغې باندې دالله تعالى د طرفه څه ترميم نازل نشو.نو بيا هغه وحى خفى ،وحى جلى ګرځى.اوكه دهغې په باره كښې څه ترميم راشى.دالله تعالى د طرفه، نو مونږ دا وئيلى شو.چه دهغه وحى خفى منسوخ شوه. په هغه وحى جلى سره كومه چه روستو د ترميم او تبديلئ دپاره

---

...دتيرمخ بقيه حاشيه]((هذا الحديث مشكل جداً لمخالفته ما يدل على ظاهر التنزيل ولما صح من الأحاديث في أمرأسارى بدر أن أخذ الفداء كان رأياً راؤه .. فعوقبوا عليه ولوكان هناك تخيير بوحى سماوى لم يتوجه المعاقبة عليهم ...)) بيا وړاندې علامه توربشى په دې حديث كښې تاويل كوى او ليكى.عين ممكن ده.چه دا حديث دغزوه احد په باره كښې وى.په هغه وخت كښې صحابو رضي الله عنهم ته اختيار وركړې شوې وو.په راوى باندې اشتباه راغلې ده.اوهغه دا د بدرد قيديانو په باره كښې بيان كړو.دغه شان هغوى ددې حديث د تفرد په باره كښې ليكى،،

((ومما جرانا على هذا التقدير سوى ما ذكرناه هو أن الحديث تفرد به يحيى بن زكريا ابن ابى زائدة عن سفيان من بين أصحابه فلم يروه غيره والسمع قد يخطى والنسيان كثيراً يطرأ على الإنسان (شرح الطيبى (۱۹۱۸)

خو علامه طيبى رحمه الله دحضرت على رضي الله عنه اوقرآن كښې د عتاب آيت په مينځ كښې تطبيق كړې دې.هغوى ليكى،،

((أقول وبالله التوفيق لا منافاة بين الحديث والآية وذلك أن التخيير فى الحديث وارد على سبيل الإختبار والإمتحان ولله أن يمتحن عباده بما شاء إمتحن الله تعالى أزواج النبى ﷺ بقوله ﴿ ياايها النبى قال لأزواجك إن كنتن تردن الحياة الدنيا وزينتها فتعالين أمتعكن ﴾ الآيتين. وامتحن الناس بتعليم السحر فى قول تعالى ﴿ وما يعلمان من أحد حتى يقولا إنما نحن فتنة ﴾ امتحن الناس بالملكين وجعل المحنة فى الكفر والإيمان بأن يقبل العامل تعلم السحر فيكفر ويؤمن بترك تعلمه ولعل الله تعالى إمتحن النبى ﷺ وأصحابه بين أمرين القتل والفداء وأنزل جبرئيل عليه السلام بذلك هل هم يختارون ما فيه رضا الله تعالى من قتل أعدائه أم يؤثرون الأعراض العاجلة من قبول الفدية؟ فلما إختاروا الثانى عوتبوا بقوله ﴿ ماكان لنبى أن يكون له أسرى.. ﴾ (شرح الطيبى على مشكاة المصابيح (۱۹۱۸و ۲۰)_

راغلي ده.د انبياؤ په اجتهاد کښې د خطاء او غلطئ احتمال نه وي.بلکه صرف د افضل او فاضل فرق وي.چه د کوم څيز د تبديلئ حکم ورکولې شي.هغه هم خطاء نه وي.البته هغه د ناسخ په مقابله کښې غيراولى اوغير افضل وي.دلته ډير لوې دليل ددې خبرې دپاره موجود دې.چه رسول الله ﷺ د فديې فيصله اوکړه.او آيت نازل شو.﴿مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرٰى﴾ الآية، د آيت د دې حکم د نزول نه پس هم نبي ﷺ فديه برقرار اوساتله. نومعلومه شوه.چه دغه فيصله خطا نه وه.بلکه امتحان اخستې شوې وو.اود امتحان مقصد دا وو. چه اعلى افضل او اولى اختياروي.اوکه غير اولى او غير افضل اختياروي.نو اختيار کړې شو.غير اولى او غير افضل،اوبيا هغه ددې دپاره برقرار اوساتلې شو.چه هغه هم جائز وو.نو د انبياؤ په اجتهاد کښې چه کومه خطا او لغزش اوشي.هلته فرق د جائز او نا جائز اود خطاء اوثواب نه وي.بلکه هلته د راجح او ارجح، د فاضل او افضل اولى او غير اولى وي. ددې وجې چه د نبي ﷺ نه چرته هم په اجتهاد کښې خطا شوې ده.نودهغې مطلب دا نه دې. چه والعياذبالله نبي ﷺ حق پريخودې دې.اود باطل مرتکب شوې دې. بلکه دهغې مطلب دا دې.چه نبي ﷺ په هيره باندې د اولى او افضل په مقابله کښې خلاف اولى کار اوکړو. هغه لغزش اګرچه د نبي ﷺ د شان په اعتبار سره قابل مواخذه وي.خوبيا هم په هرحال هغه صحيح او جائز وو.

## بَابُ ذِكْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُقْتَلُ بِبَدْرٍ

**دغزوه بدر په اغاز کښې ددې ترجمة الباب وجه:** امام بخاري رحمه الله دغزوه بدر شروع کوی.خود غزوه بدر شروع خو د وړاندې «باب قصة غزوة بدر» نه کيږی.سوال دا پيدا کيږی.چه امام بخاري رحمه الله لره پکار وو.چه دا ترجمه ئې ددې ځائې په ځائې دغزوه بدر په اختتام کښې راوړې وه.هغوی دا دلته د غزوه بدر نه وړاندې ولې ذکر کړه.دا ترجمه ئې وړاندې راوړه.په حقيقت کښې دې نکتې طرف ته اشاره وه.چه رسول الله ﷺ په جنګ بدر کښې دقتليدونکو کسان ذکر د غزوه بدر واقعه پيښيدو نه وړاندې کړې وو.چونکه امام بخاري رحمه الله د نبي ﷺ په اتباع کښې ډير ممتاز وو.ددې وجې هغوی دده ذکر وړاندې اوکړو.

دا شو ددې ترجمې دغزوه بدر سره د تعلق په وجه د غزوه بدر نه د وړاندې ذکر کولو سبب، ددې نه پس روايت دې.

[۳۷۳۴] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ مَيْمُونٍ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حَدَّثَ عَنْ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ أَنَّهُ قَالَ كَانَ صَدِيقًا لِأُمَيَّةَ بْنِ خَلَفٍ وَكَانَ أُمَيَّةُ إِذَا مَرَّ بِالْمَدِينَةِ نَزَلَ عَلَى سَعْدٍ وَكَانَ سَعْدٌ إِذَا مَرَّ بِمَكَّةَ نَزَلَ عَلَى أُمَيَّةَ فَلَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ انْطَلَقَ سَعْدٌ مُعْتَمِرًا فَنَزَلَ عَلَى أُمَيَّةَ بِمَكَّةَ فَقَالَ لِأُمَيَّةَ انْظُرْ لِي سَاعَةَ خَلْوَةٍ لَعَلِّي أَنْ أَطُوفَ بِالْبَيْتِ فَخَرَجَ بِهِ قَرِيبًا مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ فَلَقِيَهُمَا أَبُو جَهْلٍ فَقَالَ يَا أَبَا صَفْوَانَ مَنْ هٰذَا مَعَكَ فَقَالَ هٰذَا سَعْدٌ فَقَالَ لَهُ أَبُو جَهْلٍ أَلَا أَرَاكَ تَطُوفُ بِمَكَّةَ آمِنًا وَقَدْ أَوَيْتُمُ

الصُّبَاةَ وَزَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ تَنْصُرُونَهُمْ وَتُعِينُونَهُمْ أَمَا وَاللّٰهِ لَوْلَا أَنَّكَ مَعَ أَبِي صَفْوَانَ مَا رَجَعْتَ إِلَى أَهْلِكَ سَالِمًا فَقَالَ لَهُ سَعْدٌ وَرَفَعَ صَوْتَهُ عَلَيْهِ أَمَا وَاللّٰهِ لَئِنْ مَنَعْتَنِي هٰذَا لَأَمْنَعَنَّكَ مَا هُوَ أَشَدُّ عَلَيْكَ مِنْهُ طَرِيقَكَ عَلَى الْمَدِينَةِ فَقَالَ لَهُ أُمَيَّةُ لَا تَرْفَعْ صَوْتَكَ يَا سَعْدُ عَلَى أَبِي الْحَكَمِ سَيِّدِ أَهْلِ الْوَادِي فَقَالَ سَعْدٌ دَعْنَا عَنْكَ يَا أُمَيَّةُ فَوَاللّٰهِ لَقَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّهُمْ قَاتِلُوكَ قَالَ بِمَكَّةَ قَالَ لَا أَدْرِي فَفَزِعَ لِذٰلِكَ أُمَيَّةُ فَزَعًا شَدِيدًا فَلَمَّا رَجَعَ أُمَيَّةُ إِلَى أَهْلِهِ قَالَ يَا أُمَّ صَفْوَانَ أَلَمْ تَرَيْ مَا قَالَ لِي سَعْدٌ قَالَتْ وَمَا قَالَ لَكَ قَالَ زَعَمَ أَنَّ مُحَمَّدًا أَخْبَرَهُمْ أَنَّهُمْ قَاتِلِيَّ فَقُلْتُ لَهُ بِمَكَّةَ قَالَ لَا أَدْرِي فَقَالَ أُمَيَّةُ وَاللّٰهِ لَا أَخْرُجُ مِنْ مَكَّةَ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ اسْتَنْفَرَ أَبُو جَهْلٍ النَّاسَ قَالَ أَدْرِكُوا عِيرَكُمْ فَكَرِهَ أُمَيَّةُ أَنْ يَخْرُجَ فَأَتَاهُ أَبُو جَهْلٍ فَقَالَ يَا أَبَا صَفْوَانَ إِنَّكَ مَتَى مَا يَرَاكَ النَّاسُ قَدْ تَخَلَّفْتَ وَأَنْتَ سَيِّدُ أَهْلِ الْوَادِي تَخَلَّفُوا مَعَكَ فَلَمْ يَزَلْ بِهِ أَبُو جَهْلٍ حَتَّى قَالَ أَمَا إِذْ غَلَبْتَنِي فَوَاللّٰهِ لَأَشْتَرِيَنَّ أَجْوَدَ بَعِيرٍ بِمَكَّةَ ثُمَّ قَالَ أُمَيَّةُ يَا أُمَّ صَفْوَانَ جَهِّزِينِي فَقَالَتْ لَهُ يَا أَبَا صَفْوَانَ وَقَدْ نَسِيتَ مَا قَالَ لَكَ أَخُوكَ الْيَثْرِبِيُّ قَالَ لَا مَا أُرِيدُ أَنْ أَجُوزَ مَعَهُمْ إِلَّا قَرِيبًا فَلَمَّا خَرَجَ أُمَيَّةُ أَخَذَ لَا يَنْزِلُ مَنْزِلًا إِلَّا عَقَلَ بَعِيرَهُ فَلَمْ يَزَلْ بِذٰلِكَ حَتَّى قَتَلَهُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ بِبَدْرٍ

حضرت سعدبن معاذ رضی الله عنه فرمائی.چه دې دوست وو دامیه بن خلف ددوی په مینځ کښې د جاهلیت د زمانې نه دوستانه تعلقات وو.

**قوله**: وَكَانَ أُمَيَّةُ إِذَا مَرَّ بِالْمَدِينَةِ نَزَلَ عَلَى سَعْدٍ وَكَانَ سَعْدٌ إِذَا مَرَّ بِمَكَّةَ نَزَلَ عَلَى أُمَيَّةَ: اوامیه چه به کله په مدینه تیریدو.یعنی د تجارت په غرض چه به ئې کله د شام تجارت کولو.اومدینه به په لاره کښې راتله.نودهغه قیام به د حضرت سعدبن معاذ رضی الله عنه سره وو.اوکله چه حضرت سعد په مکه باندې تیریدلو.مثلاً دا چه کله به هغه دحج یا عمرې دپاره تلو.نود امیه سره به دیره کیدو.

**قوله**: فَلَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ انْطَلَقَ سَعْدٌ مُعْتَمِرًا فَنَزَلَ عَلَى أُمَيَّةَ بِمَكَّةَ فَقَالَ لِأُمَيَّةَ انْظُرْ لِي سَاعَةَ خَلْوَةٍ لَعَلِّي أَنْ أَطُوفَ بِالْبَيْتِ: نوکله چه نبی صلی الله علیه وسلم مدینې منورې ته هجرت اوکړو.نو حضرت سعد رضی الله عنه دعمرې دپاره راغلو.اوامیه سره دیره شو.حضرت سعد رضی الله عنه امیه ته اووئیل.زما دپاره څانله وخت اوګوره.چه زه د بیت الله طواف اوکړم.

**قوله**: فَخَرَجَ بِهِ قَرِيبًا مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ فَلَقِيَهُمَا أَبُو جَهْلٍ: نوامیه حضرت سعد رضی الله عنه د نصف النهار په وخت کښې بوتلو.او وې وئیل دا وخت د نمر دې.ګرمی زیاته وی.خلق په کورونو کښې دننه وی.څکه امیه دا وخت مناسب اوګڼړلو.خوپه لاره کښې ورته ابوجهل ملاؤ شو.

**قوله**: فَقَالَ يَا أَبَا صَفْوَانَ مَنْ هٰذَا مَعَكَ فَقَالَ هٰذَا سَعْدٌ فَقَالَ لَهُ أَبُو جَهْلٍ أَلَا أَرَاكَ تَطُوفُ بِمَكَّةَ آمِنًا وَقَدْ أَوَيْتُمُ الصُّبَاةَ وَزَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ تَنْصُرُونَهُمْ وَتُعِينُونَهُمْ أَمَا وَاللّٰهِ لَوْلَا أَنَّكَ مَعَ أَبِي صَفْوَانَ مَا رَجَعْتَ إِلَى أَهْلِكَ سَالِمًا: ابوجهل اوونيل.اې ابوصفوانه دا تاسره څوك دی.(ابوصفوان د اميه كنيت دی) اميه ورته اوونيل.دا سعد دی.نوابوجهل سعد رضی الله عنه ته اوونيل.ولې زه نه ګورم.چه ته په مكه كښې داسې بغيرويرې په اطمينان سره ګرځې.حالانكه تاسو د خپل نيكه دين نه اوړيدونكى كسانو ته ځاې وركړې دې.(صباة، دصابی جمع ده.بعضې خلق وائی.صابی هغه كس ته وائی.چه د يو دين نه بل دين ته اوړيدلې وی.چونكه صحابو رضی الله عنهم د بت پرستئ طريقه پريخودې وه.او په دين اسلام كښې داخل شوی وو.څكه ابوجهل ورته ، ،صباة، ، اوونيل.) اودا صرف نه چه ځاې مو ورته وركړې دې.بلكه ستاسو دا وينا هم ده.چه تاسوبه د هغوی مدد كوئ.په الله قسم كه ته د ابوصفوان سره نه وې.او ده تا ته پناه نه وه دركړې.نو ته به په خيريت سره خپل كور ته نه وې تلې.

**قوله**: فَقَالَ لَهُ سَعْدٌ وَرَفَعَ صَوْتَهُ عَلَيْهِ أَمَا وَاللّٰهِ لَئِنْ مَنَعْتَنِي هٰذَا لَأَمْنَعَنَّكَ مَا هُوَ أَشَدُّ عَلَيْكَ مِنْهُ طَرِيقَكَ عَلَى الْمَدِينَةِ: نوحضرت سعد رضی الله عنه ورته اوونيل.او خپل آواز ئې په هغه باندې اوچت كړو.(يعنی څومره په زوره چه ابوجهل خبره كړې وه.دهغې نه زياته په زوره خبره حضرت سعد رضی الله عنه جواب وركړو) په الله قسم كه تا زه په مكه كښې په اطمينان سره د ګرځيدو نه منع كړم.نو زه به خامخا تاسو دهغه څيز نه منع كړم.كوم چه به ستاسو دپاره زيات سخت اوګران وی.يعنی ستاسو لاره چه په اهل مدينه باندې تيريږی.

**قوله**: طَرِيقَكَ عَلَى الْمَدِينَةِ: منصوب دې.اوبدل واقع شوې دې.د «ما هو أشد عليك» نه،او«ما هو أشد عليك» مفعول ثانی دې.د «لأمنعن»دپاره،دويم صورت دا دې.چه «طريقك على أهل المدينة» تاسو مرفوع اووائې.او مبتدا محذوف «هو» اوګرخولې شی.

**قوله**: فَقَالَ لَهُ أُمَيَّةُ لَا تَرْفَعْ صَوْتَكَ يَا سَعْدُ عَلَى أَبِي الْحَكَمِ سَيِّدِ أَهْلِ الْوَادِي: اميه آخر كافر وو.او دابوجهل خيال ساتل دهغه مقصود وو.ددې وجې اميه حضرت سعد رضی الله عنه ته اوونيل.ته خپل آواز د «سيد أهل الوادی» په مقابله كښې مه اوچتوه.دا د ادب تعليم وركولې شی.چه دا د «أهل الوادی» سردار دې.ده سره په خبروكښې آواز پورته كول نه دی پكار.

**قوله**: فَقَالَ سَعْدٌ دَعْنَا عَنْكَ يَا أُمَيَّةُ: نو سعد رضی الله عنه اوونيل.اميه زمونږ نه اخوا شه.په الله قسم ما د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه اوريدلی دی.چه د نبی صلی الله عليه وسلم ملګری به تا قتلوی.
اوس د اميه نه د ابوجهل د ادب اواكرام خبره هيره شوه.هغه سره دخپل ځان فكر شو.څكه چه هغه ته پته وه.چه د نبی صلی الله عليه وسلم ارشاد غلط نه وی.ددې وجې ئې سمدستی تپوس اوكړو.
«قال بمكة» ما به په مكه كښې قتلوی. حضرت سعد بيا د عدم التفات اظهار اوكړو.او ورته ئې اوونيل.ماته څه پته نشته.«ففزع لذلك أمية فزعا شديدا» په دې خبره سره اميه ډير وارخطا شو.

امیه چه کله کور ته راغلو.نو وې وئیل ام صفوان تاته معلومه نه ده.چه سعد څه اوونیل. ښځې ترې تپوس اوکړو.سعد تا ته څه اوونیل؟ وې ونیل سعد وائی.چه محمد (ﷺ) دوی ته خبر ورکړې دې.چه هغه کسان (صحابه رضی الله عنهم) به ما قتلوی.ما چه ترې کله تپوس اوکړو.چه په مکه کښې نوهغه د لاعلمئ اظهار اوکړو.ددې نه پس امیه اوونیل.((والله لا أخرج من مكة)) په الله قسم زه به د مکې نه بهرته نه اوځم.ځکه چه مکه خپل وطن دې. اوپه وطن کښې دننه د حفاظت اسباب په آسانیتا سره ملاویږی.هسې هم مکه حرم دې.اوحرم د امن ځاې دې.ددې وجې هغه سوچ اوکړو.چه دمکې نه بهرته وتل خطراتو ته دعوت ورکول دی.

کله چه د بدر ورځ شوه.نو ابوجهل دلښکر په صورت کښې د خلقو نه د وتلو مطالبه اوکړه. او وې وئیل چه د خپلې تجارتی قافلې حفاظت اوکړئ.(ددې تفصیل تیر شوې دې) نوامیه وتل نه خوښول.هغه سره ویره وه.که زه دمکې نه بهرته لاړم.نو وژلې به شم.ابوجهل راغلو. اوده ته ئې اوونیل.اې ابوصفوان! چه کله خلق تا اوګوری.چه ته روسته پاتې شوې.او لښکرکښې تلو ته تیار نه ئې.حالانکه ته د اهل مکه سردار ئې.نوهغوی به هم روسته پاتې شی.ابوجهل ورته مسلسل وینا کوله.آخردا چه امیه اوونیل.هرکله چه ته په ما باندې غالب شوې.نوپه الله قسم چه زه به د خپلې سورلئ دپاره د مکې غوره اوښ اخلم.(اوکه په لاره کښې راته کله موقع ملاؤ شی.نو زر به واپس راځم)

بیا امیه اوونیل اې ام صفوان (دا د امیه ښځه وه) زما تیارې مکمل کړه.ښځې ورته اوونیل تا د خپل یثربی ورور (حضرت سعد رضی الله عنه) خبره هیره کړه.وې وئیل نه هغه چرته هیرولې شم.ما خو د نزدې ځاې پورې د تلو اراده کړې ده.مطلب دا چه نور خلق دې اوګوری.او ورسته پاتې نشی.کله چه لښکر روان شو.نو د امیه خیال وو.چه موقع ورته څنګه ملاؤ شی.واپس به راشی.

**قوله**: فَلَمَّا خَرَجَ أُمَيَّةُ أَخَذَ لَا يَنْزِلُ مَنْزِلًا إِلَّا عَقَلَ بَعِيرَهُ فَلَمْ يَزَلْ بِذَلِكَ حَتَّى قَتَلَهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ بِبَدْرٍ: امیه چه کله روان شو.نو په لاره کښې چه به په کوم منزل باندې هم کوزیدل.نو امیه به خپل اوښ تړل.مطلب دا چه کله په یوځاې کښې کوز شو.نو نورو خلقو به خپل اوښان د څریدو دپاره آزاد پریخودل.او امیه به خپل اوښ تړل.چه موقع ورته ملاؤ شی.نو په اوښ به سور شی.او مکې ته به واپس لاړ شی.امیه په ټوله لاره هم داسې کول.خو کامیاب نشو.تردې چه الله تعالی هغه په بدر کښې هلاك کړو.

**په جنګ بدرکښې د امیه بن خلف د قتل واقعه**: دده د قتل واقعه داسې پیښه شوه.چه د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه او امیه په مینځ کښې تعلقات وو.دحضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه خواهش وو.چه امیه قتل نشی. کیدې شی.ده ته روسته د اسلام سعادت نصیب شی. ددې وجې حضرت عبدالرحمن رضی الله عنه د امیه اودهغه د خوې لاس اونیولو.حضرت بلال رضی الله عنه اوکتل.او نعره ئې اوچته کړه.((لانجوت إن نجا امية)) که امیه بچ شو.نو زه به ژوندې نه اوسم.او انصار ئې هغه طرف ته متوجه کړل.نو انصار وریسې شول.اول خو عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه دامیه خوې هغوی ته مخامخ کړو.په دې خیال چه دده په قتلولوکښې به مشغول شی.او په

دومره وخت كښې به زه اميه اوباسم. خو انصارو ډير زر د اميه ځوئ هلاك كړو.اوبيا ئې د اميه تعاقب شروع كړو.كله چه عبدالرحمن رضي الله عنه اوكتل.چه هغوى دوباره راځى.او اوس د تيختې څه لار نشته .نو هغه اميه لاندې سملولو.او په خپله دهغه په خيټه باندې سملاستلو.او مقصد ئې دا وو.چه ما وربانديې دپاسه اووينى.دا خلق به په دې خيال كه اميه قتلوى.هسې نه چه عبدالرحمن قتل شى.كيدې شى دې پريږدى.خودا كسان دهغې جذبې په وجه كومه چه د كفر په مقابله كښې ددوى په زړونو كښې موجود وه.مجبور وو.هغوى د عبدالرحمن دا چل هم ناكامه كړو.څكه چه د اميه لاش ښه غټ وو.عبدالرحمن رضي الله عنه چه كله دهغه دپاسه سملاستلو.نو دهغه قتلول نور هم ښه آسان شو.اوپه اذيت ناكه طريقه ئې هغه قتل كړوز. اوهغه دا چه دښكته نه ئې هغه په نيزو او په تورو باندې وهل.په دې كښې د عبدالرحمن پښه هم زخمي شوه.خو بې وسه شو.او اميه بن خلف هم هغوى جهنم ته اورسولو.

**ترجمة الباب سره مناسبت:** نبى صلى الله عليه وسلم چه دكومو كسانو د قتل پيشنګوئى كړې وه.په هغوى كښې اميه بن خلف هم وو.ددې وجې د ترجمة الباب «باب ذكر النبى صلى الله عليه وسلم من يقتل ببدر» سره مناسبت ښكاره دې.

## ۳=باب قصة غزوة بدر

امام بخارى رحمه الله ددې ځاې نه غزوه بدر ذكر كوى.د غزوه بدر تفصيلات كوم چه تيرشو.هم دهغه تفصيلاتو اعاده به د بخارى په رواياتو اودبخارى د ابوابو په ضمن كښې كيږى.امام بخارى رحمه الله عنوان قائم كړې دې.«باب قصة غزوة بدر» او ددې نه پس ئې آيت ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ﴾ الآية .دا د امام بخارى رحمه الله عادت دې.چه دوى د ترجمة الباب سره اكثر د آياتونو ذكر هم كوى.د آياتونو ذكر يو خو ددې دپاره كوى.چه تاسو ته معلومه شى.چه په دې باب كښې چه د كوم مضمون ذكر دې.هغه په دې آيت كښې بيان شوې دې.اوبوه وجه بله دا هم وى.چه امام بخارى رحمه الله دې خبرې طرف ته اشاره كوى.چه په باب كښې څومره تفصيلات بيان شوى دى.ټول ددې آيت نه ماخوذ دى.دا آيات ددې تفاصيلو او مسائلو ماخذ دې.نود آيت تعلق هم د باب د مضمون سره خودل مقصود وى.اودا هم خودل وى.چه كوم تفصيلات مونږ بيانوو.هغه ټول ددې آيت نه ماخوذ دى. دلته ارشاد ربانى دې.

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ ۖ فَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ۞ إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ أَلَن يَكْفِيَكُمْ أَن يُمِدَّكُمْ رَبُّكُم بِثَلَاثَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُنزَلِينَ ۞ بَلَىٰ ۚ إِن تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا وَيَأْتُوكُم مِّن فَوْرِهِمْ هَٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُم بِخَمْسَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُسَوِّمِينَ ۞ وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوبُكُم بِهِ ۗ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ ۞ لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنقَلِبُوا خَائِبِينَ ۞﴾

او الله تعالى ستاسو مدد اوكړو.دبدر په جنګ كښې حالانكه تاسو كمزورى وئ. نوتاسو دالله نه ويريږئ.دې دپاره چه تاسو شكر اوكړې شئ.كله چه تا مسلمانانو ته وئيل .ولې ستاسو دپاره كافى نه ده.چه ستاسو رب د آسمان نه راكوزيدونكو درې زره فرشتې ستاسو د مدد دپاره راوليږى.اوكه تاسو صبر اوكړو.او بچ پاتې شوئ.اوهغوى په تاسو هم هغه وخت راغلو.نو ستاسو رب به په نښه دارو اسونو باندې پنځه زره فرښتې راوليږى .اودا خو الله

تعالى ستاسو زړونه خوشحاله کړل.اودې دپاره چه ستاسو زړونوته په دې سره تسکين ملاؤ شي.او مدد صرف دالله تعالى د طرفه دې.چه زبردست اود حکمت خاوند دې.دې دپاره چه بعضې کافرانو لره هلاك کړي.يا هغوى ذليل کړي.اوهغوى محرومه واپس شي.

«وأنتم أذلة» دلته د «أذلة» لفظ د کمزور د معنى دپاره دې.يعنى الله تعالى ستاسو مدد اوکړو. په داسې حالت کښې چه تاسو کمزورى وئې. تاسو ضعيفان او عاجزان وئې. اوپه تاسو کښې د مشرکانود لوې لښکر د مقابلې طاقت نه وو.«أذلة»چه د ذليل جمع ده.ددې معنى دا نه ده.چه تاسو حقير او سپك وئى.بلکه ددې معنى کمزورې او عاجز ده.

**فائده:** حضرت شاه اسماعيل شهيد رحمه الله په يوځاې کښې ليکلى دى.[1] چه هرمخلوق د الله تعالى وړاندې ذليل دې.نو هلته د حضرت شاه صاحب رحمه الله مطلب دا دې.چه د الله تعالى هرمخلوق کمزورې دې.او الله تعالى طاقتور دې.مخلوق ضعيف دې.او الله تعالى قوى دې.دحضرت شاه صاحب دکلام مطلب دا نه دې.چه مخلوق د الله تعالى وړاندې حقير،ادنى اوخسيس دې.لکه څنګه چه بعضې حضراتو ددې دا مطلب راويستې دې.او وئيلې ئې دى.چه حضرت اسماعيل شهيد رحمه الله دالله تعالى وړاندې مخلوق ته ذليل وئيلى دى.او رسول الله ﷺ هم چونکه په مخلوق کښې شامل دې.د دې وجې شاه اسماعيل رحمه الله معاذالله د رسول الله ﷺ توهين کړې دې.

خودا الزام سراسر غلط او بهتان دې.وړاندې بيان اوشو.چه په آيت کښې د «أذلة» لفظ دکمزورى او ضعيف په معنى دې.دحقير او خسيس په معنى کښې نه دې.دغه شان شاه صاحب چه څه وئيلې دى.چه هر مخلوق دالله تعالى په مقابله کښې ذليل دې.د هغې مطلب دا دې.چه دالله تعالى وړاندې مخلوق کمزورې او عاجز دې.دحضرت شاه صاحب هرګزدا مطلب نه دې.چه مخلوق د الله تعالى وړاندې حقير او سپك دې.

﴿إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ أَلَنْ يَكْفِيَكُمْ﴾ په باره کښې د اکثرو حضراتو رائې دا ده. چه ددې تعلق د ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنْتُمْ أَذِلَّةٌ﴾ سره دې.اودامام بخاري رحمه الله دعمل نه هم دا ثابتيږي.ځکه چه دوى قصه د بدر بيانوي.اودهغې په ضمن کښې ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ﴾ ذکر کوي.او ﴿إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ....﴾ هم امام بخاري رحمه الله په غزوه بدر کښې بيان کړو.نو معلومه شوه.چه د امام بخاري رحمه الله په نيز هم د آيت ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ﴾ تعلق د بدر سره دې.اودا آيت د غزوه بدر سره متعلق دې.خود حضرت عکرمه رضي الله عنه او بعضې نورو حضراتو رائې دا ده.چه د﴿إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ....﴾ تعلق د ﴿وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ﴾ سره دې.اود ﴿وَإِذْ غَدَوْتَ﴾ دا آيت د غزوه احد سره متعلق دې.نودحضرت عکرمه رحمه الله ددې تفسيرى قول په اعتبارسره د ﴿إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ....﴾ تعلق هم د احد سره دې.د غزوه بدر سره نه دې.[2]

---

[1] )اوګورئ تاليفات رشيديه (ص،٨٩)_

[2] )وأما قوله ﴿إذ تقول للمؤمنين﴾ فاختلف فيها أهل التاويل فمنهم من قال هى [بقيه حاشيه په راروان مخ...

خولكه څنګه چه معلومه شوه.چه امام بخاری رحمه الله دخپل طريقې نه دا ښکاره کړه.چه ددې آيت تعلق د غزوه بدر سره دې.د دې تائيد د ابن ابي حاتم د روايت نه هم کيږی.کوم چه هغوی د شعبی نه په صحيح سند سره نقل کړې دې.(١) چه په يوم بدر باندې مسلمانانو ته دا خبر ملاؤ شو.چه جابر فهری دمشرکانود امداد دپاره يولوې لښکر راروان کړې دې. راځی. نوپه هغه وخت کښې الله تعالی د مسلمانانود تسلی او اطمينان دپاره دا آيت نازل کړو. د ابن ابی حاتم د روايت نه ښکاره واضحه ده.چه ددې آيت تعلق د غزوه بدر سره دې.

ددې نه پس دلته ذکر دې د درې زره فرښتو او ددې نه پس د پنځو زرو فرښتو ذکر دې.او په سورة انفال کښې د يو زر فرښتو ذکر دې.نو سوال دا پيدا کيږی.چه دا درې زره او پنځه زره او يو زر فرښتې راغلې وې که نه؟

په دې باره کښې يوه خبره خو دا هم شوې ده.چه يو زر فرښتې راغلې وې.او ددې نه پس درې زره فرښتې راغلې وې.اودهغې نه پس پنځه زره راغلې وې.حضرت قتاده د حضرت ربيع بن انس رحمه الله نه هم دا نقل کوی.چه ترپنځو زرو پورې فرښتې راغلې وې.(٢) اوقاضی بيضاوی رحمه الله هم دا نقل کړی دی.او د بعضې حضراتو رائې دا ده.چه د پنځو زرو فرښتو د راتلو نوبت نه وو راغلې.اوپه يو زر او درې زره فرښتو سره مدد شوې وو.(٣)

دلته دې دا خبره په ذهن کښې وی.چه فرښتې خو په احد کښې هم راغلې وې.او په حنين کښې هم،او په بدر کښې هم ،خود بدر خصوصيت دا دې.چه د بدر په موقع فرښتو په قتال کښې هم شرکت کړې دې.اوپه حنين کښې د دوی نزول صرف د خير اوبرکت دپاره وو.اود احد په باره کښې دا وئيلې شوی دی.چه هغوی په قتال کښې شرکت نه دې کړې.هغوی د رسول الله ﷺ د حفاظت دپاره راغلې وې.

بهرحال چونکه د بدر واقعه ده.او دهغې يو عظيم الشان جزء دا دې.چه الله تعالی هلته د مسلمانانود مدد دپاره فرښتې راليږلې وې.ددې وجې امام بخاری رحمه الله په دې آيت کښې د هغوی ذکر کړې دې.اوښودلې ئې دی.چه په بدر کښې د فرښتو نزول د امداد دپاره وو.

قال ابوعبدالله فورهم: غضبهم.

وَقَالَ وَحْشِيٌّ قَتَلَ حَمْزَةُ طُعَيْمَةَ بْنَ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ يَوْمَ بَدْرٍ

وَقَوْلُهُ تَعَالَى وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُونُ لَكُمُ الْآيَةَ(٤) الشَّوْكَةُ الْحَدُّ،

---

...دتيرمخ بقيه حاشيه] متعلقة بقوله ﴿ نصركم ﴾ فعلى هذا هي فى قصة بدر،وعليه عمل المصنف وهو قول الأكثر وبه جزم الداودى وقيل هي متعلقة بقوله﴿وإذ غدوت﴾ فعلى هذا فهى متعلقة بغزوة أحد وهو قول عكرمة وطائفة انظر فتح البارى (٢٨٥\٧)_

(١)فتح البارى(٢٨٥\٧)_

(٢)فتح البارى (٢٨٥\٧)-

(٣)ايضاً_

(٤)الأنفال:٧)_

[٤٢٣٥] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبٍ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ كَعْبٍ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُولُ لَمْ أَتَخَلَّفْ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا إِلَّا فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ غَيْرَ أَنِّي تَخَلَّفْتُ عَنْ غَزْوَةِ بَدْرٍ وَلَمْ يُعَاتَبْ أَحَدٌ تَخَلَّفَ عَنْهَا إِنَّمَا خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيدُ عِيرَ قُرَيْشٍ حَتَّى جَمَعَ اللّٰهُ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ عَدُوِّهِمْ عَلَى غَيْرِ مِيعَادٍ [ر:٢٦٠٦]

**قوله**: وَقَالَ وَحْشِيٌّ قَتَلَ حَمْزَةُ طُعَيْمَةَ بْنَ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ يَوْمَ بَدْرٍ: دلته د طعيمه بن عدی بن الخيار ذکر دې.خو دا د راوی وهم دې.صحيح «طعيمة بن عدى بن نوفل» دې.دا حضرت وحشی دې.چه د حضرت حمزه رضی الله عنه قاتل دې.دلته امام بخاری دا ښائی.چه حضرت حمزه رضی الله عنه په جنګ احد کښې وحشی ولې قتل کړې وو؟ځکه چه حضرت حمزه رضی الله عنه طعيمه بن عدی په بدر کښې قتل کړې وو.د طعيمه وارثانو د جنګ احد په موقع باندې حضرت وحشی ته لالچ ورکړو.که تا حمزه رضی الله عنه قتل کړو.نوموږ به تا آزاد کړو.نوهغه د خپلې آزادئ په لالچ کښې په غزوه احد کښې حضرت حمزه رضی الله عنه شهيد کړو.

دا واقعه به په تفصيل سره وړاندې راشی.دلته خو ئې صرف په دې مناسبت سره ذکر کوی.چه حضرت حمزه رضی الله عنه طعيمه په جنګ بدر کښې قتل کړې وو.چونکه ذکر د بدر دې.اودا جزء هم چه د حضرت حمزه رضی الله عنه طعيمه لره قتلول په جنګ بدر کښې پيښ شوې وو.ددې وجې ئې دلته بيان کړه.

وړاندې ددې نه پس دويم آيت دې.﴿وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ﴾الآية، امام بخاری رحمه الله دا ښائی.چه د الله تعالى دا وعده هم د بدر په باره کښې وه.د دې نه پس د حضرت کعب بن مالک رضی الله عنه روايت دې.هغوی فرمائی.

**قوله**: لَمْ أَتَخَلَّفْ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا إِلَّا فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ غَيْرَ أَنِّي تَخَلَّفْتُ عَنْ غَزْوَةِ بَدْرٍ وَلَمْ يُعَاتَبْ أَحَدٌ: يعنی زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په هيڅ يوه غزوه کښې په کوم کښې چه هغوی شرکت کړې وو.نه يم پاتې شوې.سوا د غزوه تبوک نه،خو په بدر کښې هم متخلف شوې ووم.

يوددوی تخلف دغزوه بدر نه دې.او بل ددوی تخلف د غزوه تبوک نه دې.ددې ددو غزواتو نه علاوه په باقی نورو ټولو غزواتو کښې دوی د نبی صلی الله علیه وسلم سره شريک شوې وو.

**يوه نکته**: دلته په ظاهره اشکال دې.چه حضرت کعب بن مالک رضی الله عنه «إلا فی غزوة تبوك وغزوة بدر» ولې اونه وئيل.چه د «إلا» حرف استثناء نه پس ئې د غزوه تبوک سره غزوه بدر هم ذکر کړې وې.خو دوی داسې اونکړل.بلکه «إلا فی غزوة تبوك» نه ئې د «غزوة تبوك» استثناء جدا ذکر کړه.او «غير أنی تخلفت فی غزوة بدر» سره ئې لفظ د «غير» راوړلو.او د غزوه بدر نه ئې تخلف جدا ذکر کړو.

ددې وجه دا ده.چه تخلف خو په غزوه تبوك كښې هم شوې وو.او په غزوه بدر كښې هم شوې وو.خو د دواړو تخلف يو شان نه وو.په «غيرأني تخلفت في غزوة بدر» كښې ئې لفظ د «غير» راوړلو.اودا ښودل غواړی.چه د غزوه تبوك د تخلف نه د غزوه بدر تخلف مختلف دې.اودا ددې وجې مختلف وو.چه په غزوه بدر كښې په متخلفينو باندې عتاب نه وو.ځكه چه په غزوه بدر كښې نبی ﷺ د قتال په اراده باندې نه وو وتلی.هلته خود قريشو دقافلې تعاقب مقصود وو.ددې وجې چه څوك تلی وو.دهغوی دپاره فضيلت وو. اوچه څوك نه وو تلی.په هغوی باندې نكير نه وو.په خلاف دغزوه تبوك، ځكه چه په غزوه تبوك كښې د تخلف اجازت نه وو.هلته چه كوم كسان روسته پاتې شوی وو.په هغوی باندې عتاب اوشو.ددې وجې په روايت كښې «إلا في غزوة تبوك» ئې جدا بيان كړو.او «غيرأني تخلفت في غزوة بدر» ئې جدا بيان كړو.(١)

**قوله**: وَلَمْ يُعَاتَبْ أَحَدٌ تَخَلَّفَ عَنْهَا إِنَّمَا خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيدُ عِيرَ قُرَيْشٍ حَتَّى جَمَعَ اللَّهُ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ عَدُوِّهِمْ عَلَى غَيْرِ مِيعَادٍ: دغزوه بدرنه چه كوم كسان روسته پاتې شوی وو.په هغوی باندې عتاب نه ووكړې شوې. حضرت كعب رضی الله عنه ددې وجه دا خودلې ده.چه د نبی ﷺ اراده خو د قريشو تجارتی قافلې پسې تګ وو.خوالله تعالی دبغير څه اندازې نه مسلمانان او ددوی دشمنان جمع كړل.

په دې تجارتی قافله كښې ټول ديرش كسان وو.په بعضې رواياتوكښې دی.چه ټول څلويښت كسان وو.اوپه بعضوكښې د شپيتو كسانو ذكردې.په دې قافله كښې يوزر اوښان اود پنځوسو زرو دينارو سامان وو.(٢) رسول الله ﷺ ديرش يا څلويښت يا د شپيتو كسانود تعاقب اراده كړې وه.دهغوی په مقابله كښې دمسلمانانو ډله درې سوه او ديارلس كافی وه.ددې وجې كه هلته څوك ايسارشوې وو.نوپه هغه باندې دڅه قسم خفګان اظهار نه وو شوې.ددې په عكس په غزوه تبوك كښې نبی ﷺ د ډيرلوې دشمن د مقابلې په نيت باندې وتلې وو.دلته نبی ﷺ د نفيرعام اعلان كړې وو.اود معذورو كسانونه سوا بل هيچاته د تخلف اجازت نه وو.حضرت كعب بن مالك رضی الله عنه په بدركښې متخلف وو.خوڅه عتاب پرې نه ووشوې.خوپه غزوه تبوك كښې كله چه دوی تخلف اختياركړو.نو په دوی باندې ئې سخت خفګان اوكړو.ددې ذكر وړاندې په غزوه تبوك كښې راځی.(انشاءالله)

**دشبلی نعمانی مرحوم رحمه الله يو غلط فهمی**: ددې ځاې نه دا هم معلومه شوه.چه شبلی نعمانی مرحوم چه څه وئيلی دی.چه رسول الله ﷺ اقدامی جنګ نه دې كړې .اوپه اسلام كښې اقدامی جهاد نشته.ددوی دا وينا غلطه ده.ځكه چه نبی ﷺ دلته د قريشو د قافلې كومه اراده كړې وه.دا دنبی ﷺ د طرف نه هم اقدام وو.هغوی دا وائی.چه نه ،نبی ﷺ خو د

(١) اوګورئ فتح البارى(٧/٢٨۶)_

(٢) فتح البارى(٧/٢٨۶)_

قريشو دلښكرپه نيت (كوم چه په مدينه منوره باندې د حملې كولو په نيت د مكې نه راوتلى وو.) د دفاع اراده وه.(١)
خو ددوى دا وينا غلطه ده.ځكه چه د قريشو د لښكر روانيدو خوپه هغه وخت كښې وهم اوګمان هم نه وو.كله چه نبى ﷺ د قريشو د تجارتى قافلې دتعاقب اراده اوكړه .په روايت كښې هم دا دى ،چه((انما خرج رسول الله ﷺ يريد عير قريش))دا دې نه ښكاره ظاهره ده.چه نبى ﷺ د قريشو د لښكر د دفاع دپاره نه وو وتلې.بلكه نبى ﷺ خو د تجارتى قافلې په تعاقب كښې وتلې وو.اودا د نبى ﷺ د طرفه اقدام وو.وړاندې په روايت كښې دى.((حتى جمع الله بينهم وبين عدوهم على غير ميعاد)) د وتلوپه وخت كښې خو د مسلمانانو په وهم او ګمان كښې هم دا خبره نه وه.چه د قريشو د لښكر سره به جنګ كيږى.نودا وئيل چه په بدر كښې مسلمانان د قريشود حملې دفع كولودپاره وتلى وو .صحيح نه دى.اوددې روايت نه بيخى خلاف دى.

## ٣-باب قول الله تعالى ﴿إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُم بِأَلْفٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ ۝ وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ وَلِتَطْمَئِنَّ بِهِ قُلُوبُكُمْ ۚ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝ إِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ أَمَنَةً مِّنْهُ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً لِّيُطَهِّرَكُم بِهِ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ وَلِيَرْبِطَ عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ ۝ إِذْ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى الْمَلَائِكَةِ أَنِّي مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا ۚ سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ۝ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ ۚ وَمَن يُشَاقِقِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ۝﴾

هغه وخت ياد كړه.كله چه تاسو خپل رب ته فرياد كولو.(خپل قلت اود كافرانوكثرت چه مو اوليدل) بيا الله تعالى ستاسوخبره واوريده.چه زه به په يو زر فرشتو سره ستاسو مدد اوكړم. كومې چه به پرله پسې راځى.اوالله تعالى دا صرف د مسلمانانو د خوشحالئ او اطمينان قلب دپاره كړې وو.او فتح او نصرت خو د الله تعالى سره دې.بيشكه الله تعالى زبردست اود حكمت خاوند دې.هغه وخت ياد كړئ.كله چه الله تعالى په تاسو باندې پركالى راوسته. دخپل طرف نه د آرام دركولودپاره، اودآسمان نه ئې اوبه راؤوروليې.چه تاسو پاك كړى.اود شيطان ناپاكى تاسو نه لرې كړى.او ستاسو زړونه مضبوط كړى.او ستاسو قدمونه كلك كړى.ياد كړئ.كله چه الله تعالى فرښتو ته حكم وركولو.چه زه تاسو سره يم.نوايماندار ثابت قدم كړئ.زه به د كافرانو په زړونو كښې رعب واچوم.نوتاسو د كافرانو څټونه وهئ.اودوى په هريوبند باندې وهئ.ځكه چه دوى د الله تعالى اود هغه د رسول سره دشمنى كړې

(١) شبلى نعمانى مرحوم په خپل مشهور كتاب ((سيرة النبى) كښې په مستقل عنوان ((په غزوه بدر دوباره نظر)) قائم كړې دې.اوددې خبرې د ثابتولوكوشش ئې كړې دې.چه ددې غزا مقصد د قريشو د جنګى قافلې مقابله وه.د تجارت په قافله باندې حمله كول مقصد نه وو.اوګورئ ((سيرة النبى ﷺ (١/٢٠٢)_.

ده.اوځوك چه الله تعالى اود هغه د رسول سره دشمنى كوى.الله تعالى (هغه ته) سخته سزا وركونكې دې.

① ﴿إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ﴾ ددې د تركيب په باره كښې دا خبره شوې ده.چه دا د ﴿وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ﴾ نه بدل دې.([1])

② دويمه خبره دا شوې ده.چه ﴿لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ﴾ كښې د ﴿لِيُحِقَّ الْحَقَّ﴾ سره ددې تعلق دې.([2])

③ اودريمه خبره دا هم شوې ده. چه «اذكروا» د محذوف سره متعلق دې.([3])

مسلمانانو چه كله اوكتل.چه دكافرانو دا دومره لوې لښكر دې.او زمونږ شمار دوى په مقابله كښې ډيركم دې.نو هغوى اووئيل.«رب انصرنا على عدوك، يا غياث المستغيثين أغثنا»([4]) د مسلمانانو په دې درخواست باندې الله تعالى دا آيت نازل كړو.

**د مردفين معنى**: د ،،مردفين،، معنى يا خو دا ده.چه دوى به د مومنانونه پس راځى.او دويمه معنى دا هم بيان شوې ده.چه هغوى به يوبل پسې راځى.([5])

**يوه شبه اودهغې جواب**: دلته يوكس ته دا شبه كيدې شى.چه الله تعالى خو د يوې فرشتې په ذريعه هم د مسلمانانو مدد كولې شو.ددې يو زر او درې زرو او پنځو زرو د شمار څه ضرورت وو؟ يوې فرشتې ته دومره زيات طاقت وركړې شوې دې.چه هغه د زرګونو او لكهونو انسانانو د سترګې په رپ كښې خاتمه كولې شى.

نوتاسو دا وئيلې شئ.چه الله تعالى ته خو په دې باندې هم قدرت حاصل وو.چه هغه بغيرد فرشتې نه د«كن فيكون» په ذريعه سره د كافرانو خاتمه كړې وه.خو چونكه ابليس په خپله د سراقه بن مالك په شكل كښې اودهغه لښكرد بنو مدلج د سړو په شكلونوكښې د كافرانود مدد دپاره راغلى وو.([6]) نودهغوى د مقابلې دپاره الله تعالى د فرشتو لښكر راؤليږل.يو خو ابليس ته په مخامخ د جواب وركولو په طور الله تعالى د مسلمانانو د اطمينان اود دوى د خوشحالئ دپاره د فرشتو دا لښكر راوليږل.او دويمه خبره دا هم وه.چه ددې دنيا معاملات الله تعالى ددې دنياوى عادت مطابق كوى.اوپه دنيا كښې عادت هم دا دې.چه د يو سړى په ذريعه مدد نشى كولې.بلكه كوم امداد چه ليږلې شى.هغه د لښكرپه صورت كښې وى.نو ددې وجې الله تعالى دلته د فرشتو امداد د لښكر په شكل كښې راوليږل.

---

[1] )عمدة القارى(٧٩\١٧)-
[2] )عمدة القارى(٧٩\١٧)_
[3] ) تفسير كشاف(١٩٩\٢)_
[4] )عمدة القارى(٧٩\١٧)_
[5] )عمدة القارى(٧٩\١٧)_
[6] )تفسيرابن كثير(٣١٧\٢)_

**په بدر کښې د فرښتو د نزول فائدې:** ① دفرښتو کوم راتګ چه شوې وو.په هغې سره خو يو خير او برکت پيدا شو ،اودغه خيراو برکت په وجه مسلمانانو ته فتح ملاؤ شوه.
② دويمه خبره دا اوشوه.چه الله تعالى دغه فرښتې ماموره کړې.چه هغوى د مسلمانانو په زړونوکښې د استقامت جذبه پيدا کړى.د ثابت قدمئ جذبه پيدا کړى.ځکه چه فرښتو ته الله تعالى دا قدرت ورکړې دې.چه هغوى خپل خيالات په زړونوکښې اچوى.
③ دريمه فائده د فرښتو په راتګ کښې دا وه.چه د کافرانو په زړونوکښې رعب پيدا کړې شى.نود فرښتو په راتګ سره د کافرانوپه زړونوکښې رعب پيدا شو.
④ څلورمه فائده د فرښتو په راتګ سره دا هم اوشوه.چه الله تعالى باقاعده فرښتو ته د کافرانو په مقابله کښې د جنګ کولوحکم ورکړو.

**قوله:** ﴿وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً لِّيُطَهِّرَكُم بِهِ﴾: دلته په آيت کښې د باران د نازليدو ذکر دې.وړاندې بيان شوى دى.چه کافران راغلل.اود بدر په ميدان کښې ئې په ښه خاې باندې قبضه کړې وه.او مسلمانان روسته راورسيدل.ددې وجې مسلمانانو ته ښه خاې ملاؤ نشو.د اوبو چه کومه علاقه وه.هغه دهغوى په قبضه کښې وه.او مسلمانانو سره اوبه نه وې.اود مسلمانانو په علاقه کښې شګه هم زياته وه.په هغې کښې به پښې په زمکه کښې ښخيدې.ددې وجې الله تعالى باران نازل کړو.د هغې په وجه شګه کلکه شوه.اومسلمانانو دپاره په هغې باندې قدم کيخودل آسان او سهل شو.اودې سره مسلمانانو ته اوبه هم په زيات مقدار کښې ملاؤ شوې.

بهرحال ددې امورو په دې آياتونوکښې ذکر دې.کوم چه ټول په ټول د غزوه بدر سره متعلق دى.

[۳۷۳۶] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ مُخَارِقٍ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ يَقُولُ شَهِدْتُ مِنَ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ مَشْهَدًا لَأَنْ أَكُونَ صَاحِبَهُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا عُدِلَ بِهِ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَدْعُو عَلَى الْمُشْرِكِينَ فَقَالَ لَا نَقُولُ كَمَا قَالَ قَوْمُ مُوسَى اذْهَبْ أَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا وَلَكِنَّا نُقَاتِلُ عَنْ يَمِينِكَ وَعَنْ شِمَالِكَ وَبَيْنَ يَدَيْكَ وَخَلْفَكَ فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْرَقَ وَجْهُهُ وَسَرَّهُ يَعْنِي قَوْلَهُ [۴۳۳۳]

[۳۷۳۷] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ حَوْشَبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ اللَّهُمَّ إِنِّي أَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَوَعْدَكَ اللَّهُمَّ إِنْ شِئْتَ لَمْ تُعْبَدْ فَأَخَذَ أَبُو بَكْرٍ بِيَدِهِ فَقَالَ حَسْبُكَ فَخَرَجَ وَهُوَ يَقُولُ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ [رقم:۱۷۵۸]

**قوله:** حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ مُخَارِقٍ: دا دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روايت دې.دوى فرمائى.چه ما مقداد بن اسود اوليدلو.په داسې مقام کښې چه په هغه مقام کښې کيدل زما دپاره زيات محبوب وو.دهرهغه خيزنه کوم چه د هغې په مقابله کښې راوستې شى.

مطلب دا دې.كه د دنيا د لوې نه لوې دولت ماته راكړې شي.نودهغې په مقابله كښې به زه هغه خوښوم.چه كوم مقام حضرت مقدادبن اسود رضي الله عنه ته حاصل وو.هغه ماته حاصل وې.
دهغه تقرير په وجه كوم چه هغوى د نبى ﷺ په وړاندې كړې وو.چه مونږ داسې نه يو.چه هغه شان اووايو.څنګه چه د حضرت موسى عليه السلام قوم وئيلى وو.چه «اذهب أنت وربك فقاتلا» ددې پوره تفصيل وړاندې تيرشوې دې.

**قوله:** حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ حَوْشَبٍ: په دې باب كښې دويم روايت د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې.په هغې كښې نبى كريم ﷺ دهغه دعا ذكردې.كومه چه نبى ﷺ د بدر په ورځ كړې وه.په دغه دعا كښې د مختلفو مروى الفاظو تفصيل هم تيرشوې دې.

## ۵=باب:

[۳۷۳۹\۳۷۴۲]بَاب حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الْكَرِيمِ أَنَّهُ سَمِعَ مِقْسَمًا مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ يُحَدِّثُ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُولُ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنْ الْمُؤْمِنِينَ عَنْ بَدْرٍ وَالْخَارِجُونَ إِلَى بَدْرٍ[۴۳۱۹]

**دبې ترجمې باب وجوهات:** امام بخارى رحمه الله د باب ذكركړې دې.او ترجمه موجود نه ده.داسې اكثر پيښيږى. ددې مختلف تاويلونه كيدى شي.

① دلته تاسو داسې وئيلې شئ.چه دامام بخارى رحمه الله دا باب «كالفصل من الباب السابق» دې.دا د باب سابق فصل دې.نو د ترجمې ضرورت نشته.په باب سابق كښې د فرشتو د شركت بيان وو.اوپه دې باب كښې د هغه مجاهدينو ذكردې.دچا تعلق چه د انسانانو د ډلو سره دې.اوپه بدر كښې هغوى شركت كړې وو.نودمجاهدين بدر ذكرپه اولنى باب كښې وو.او د مجاهدين بدر ذكر په دې باب كښې هم دې.صرف دومره خبره ده. چه هلته مجاهدين فرشتې دى.اودلته مجاهدين انسانان دى.ددې وجې د ترجمې ضرورت اونه ګڼړلې شو.
② دويم يو صورت په داسې موقعو كښې دا هم كيدې شي.څنګه چه حضرت شيخ الهند رحمه الله ذكركړې دې.چه امام بخارى كله كله د شاګردانو امتحان هم اخلى.نود باب ذكر كوى.اود ترجمې ذكرنه كوى.په دې سره ،،تشحيذ اذهان،، يعنى د ذهن تيزول مقصود وى.چه مونږ خو ترجمې لګوو.اوتاسو د تراجمو د اسلوب او انداز نه آشنا كوو.اوس تاسو اوښائې.
چه تاسو ته څومره واقفيت شوې دې.په دې باب كښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث «لا يستوى القاعدون..» امام بخارى رحمه الله بيانوى.اوتاسو اوګورئ چه په حديث كښې فرمائيلى شوى دى.چه كوم خلق بدرته تلى وو.په هغوى كښې اوخوك چه نه ووتلى.په هغوى كښې ډير لوې فرق دې.نوتاسو دلته داسې ترجمه لګولې شئ:«كم من فرق بين البدريين وغيرهم» يا «باب فرق المراتب بين البدريين وغيرهم»چه په بريين او غير بدرين كښې ډير فرق دې.چه د بدريين درجه اوچته ده.او د غيربدريين درجه دهغوى سره برابر نه ده.هم داوجه وه.چه د صحابه

كراموﷺ په ډله كښې خودا خبره منلې شوې وه.چه د بدريين درجه اوچته ده.دغه شان حضرت جبرئيل عليه السلام د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضرشوې وو.او تپوس ئې كړې وو.چه ستاسو په نيز په بدريين او غيربدريين كښې څه فرق دې؟نو نبى ﷺ اوفرمائيل.بدريين غوره دى.د غيربدريين نه،نوحضرت جبرئيل عليه السلام اووئيل.چه زمونږ په نيز په آسمان كښې هم كومې فرښتې په بدركښې شريكې شوې وې.هغوى د نورو فرښتو په مقابله كښې غوره شمارلې شى.(۱)

امام بخارى رحمه الله د حضرت ابن عباس رضى الله عنهما روايت بيان كړې دې.ددې روايت حاصل دا دې.چه د قرآن شريف آيت ﴿لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ﴾ د بدريينُ په باره كښې نازل شوې دې.چه كوم خلق په بدركښې شريك شوى نه وو.دهغوى اوكم خلق چه شريك شوى وو.دهغوى درجې برابر نه دى.

**دحضرت ګنګوهى رحمه الله رائې:** حضرت ګنګوهى رحمه الله په «لامع» او«الكوكب الدرى» كښې فرمائيلى دى.چه دا آيت صرف د برريينوپه باره كښې نه دې نازل شوې.بلكه دا عام دې.دعام كيدو مطلب دا دې.چه كوم خلق جهادته لاړ شى.د هغوى درجه اوچته ده.دهغه خلقو په مقابله كښې چاچه په جهاد كښې شركت نه وى كړې.بيا ددې عام حكم لاندې بدريين هم داخل دى.چه څوك جنګ بدرته تلى وو.د هغوى درجه اوڅوك چه نه وو تلى دهغوى درجه د تلونكو په مقابله كښې كمه ده.(۲) حضرت شيخ الحديث د بحرمحيط او علامه عينى رحمه الله نه د «كوكب» په حاشيه كښې ددې تائيد هم نقل كړې دې.(۳) حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن التين رحمه الله نه هم دا نقل كړى دى.چه دا آيت عام دې صرف د بدريينو په باره كښې نه دې نازل شوې.البته بدريين ددې حكم په عموم كښې داخل دى.(۴) او ابوالسعود رحمه الله دمقاتل نه نقل كوى.چه دا آيت د غزوه تبوك په باره كښې نازل شوې دې.(۵)

**دحضرت شيخ الحديث رائې:** اوس پاتې شوه دا خبره چه دا عام دې.اوكه بدريين په دې كښې داخل دى.يا دا چه دا صرف د بدريينوپه باره كښې نازل شوې دې.نودحضرت شيخ الحديث رحمه الله رائې دا ده.چه دا آيت د بدريينو په باره كښې نازل شوې دې.اوپه حديث كښې «لا يستوى القاعدون عن بدر» نه دحضرت ابن عباس رضى الله عنهما هم دا مراد دى.

① اول خوددې وجې چه دامام بخارى رحمه الله د عمل نه ددې تائيد معلوميږى.څكه چه دوى په غزوه بدر كښې دا ذكركړې دې.ددې نه معلوميږى.چه دا آيت د غزوه بدر په باره كښې نازل شوې دې.

---

(۱) ددې تفصيل په ((باب فضل من شهد بدراً)) كښې وړاندې راځى۔

(۲) لامع الدرارى (۲۵۰/۸)۔

(۳) تعليقات لامع الدرارى از شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله (۲۵۰/۸)۔

(۴) فتح البارى(۲۶۲/۸)۔

(۵) تعليقات لامع الدرارى (۲۵۰/۸)۔

② ددې نه پس شیخ الحدیث رحمه الله یوه خبره دا هم کړې ده.چه ددې آیت د تاریخ نزول نه هم ددې تائید کیږی.چه دا د غزوه تبوك په باره کښې نه دې نازل شوې.نو که د تاریخ نزول اعتبار اوکړې شی.نودهغې نه هم د غزوه بدر تائید کیږی.د غزوه تبوك تائید ترې نه کیږی. ځکه چه ددې آیت نزول هم په هغه زمانه کښې شوې وو.کله چه جنګ بدر پیښ شوې وو.
③ دریمه خبره حضرت شیخ الحدیث صاحب یوه بله بیان کړې ده.چه په ترمذی کښې د حجاج به محمد رحمه الله روایت دې.په هغې کښې فرمائیلې شوی دی.چه «لما نزلت غزوة بدر قال عبدالله بن جحش وابن أم مکتوم: إنا أعمیان یا رسول الله فهل لنا رخصة فنزلت لا یستوی القاعدون . الخ»[1]
د ترمذی په دې روایت کښې دا صراحت موجود دې.چه کله د جنګ بدر واقعه پیښه شوه.نوپه هغه وخت کښې حضرت عبدالله بن جحش او عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنهما نبی ﷺ ته راغلل. دواړه حضرات نابینا وو.هغی اووئیل.چه «هل لنا من رخصة؟» آیا مونږ ته به اجازت ملاؤ شی.که مونږ شرکت اونکړو.نو دا آیت نازل شو.
دامام ترمذی رحمه الله ددې روایت نه دا ثابته شوه.چه دا آیت د بدریینو رضی الله عنهم په باره کښې نازل شوې دې.

## ٦=بَاب عِدَّةِ أَصْحَابِ بَدْرٍ

[٣٧٣٩\٣٧٤٢] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْبَرَاءِ قَالَ اسْتُصْغِرْتُ أَنَا وَابْنُ عُمَرَ حَدَّثَنِي مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا وَهْبٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْبَرَاءِ قَالَ اسْتُصْغِرْتُ أَنَا وَابْنُ عُمَرَ يَوْمَ بَدْرٍ وَكَانَ الْمُهَاجِرُونَ يَوْمَ بَدْرٍ نَيِّفًا عَلَى سِتِّينَ وَالْأَنْصَارُ نَيِّفًا وَأَرْبَعِينَ وَمِائَتَيْنِ
[٣٧٤٠] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ حَدَّثَنِي أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا أَنَّهُمْ كَانُوا عِدَّةَ أَصْحَابِ طَالُوتَ الَّذِينَ جَازُوا مَعَهُ النَّهَرَ بِضْعَةَ عَشَرَ وَثَلَاثَ مِائَةٍ قَالَ الْبَرَاءُ لَا وَاللَّهِ مَا جَاوَزَ مَعَهُ النَّهَرَ إِلَّا مُؤْمِنٌ
[٣٧٤١] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْبَرَاءِ قَالَ كُنَّا أَصْحَابَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَتَحَدَّثُ أَنَّ عِدَّةَ أَصْحَابِ بَدْرٍ عَلَى عِدَّةِ أَصْحَابِ طَالُوتَ الَّذِينَ جَاوَزُوا مَعَهُ النَّهَرَ وَلَمْ يُجَاوِزْ مَعَهُ إِلَّا مُؤْمِنٌ بِضْعَةَ عَشَرَ وَثَلَاثَ مِائَةٍ
[٣٧٤٢] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْبَرَاءِ وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

[1] )الحدیث أخرجه الترمذی فی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة النساء رقم ۳۰۳۲)_

قَالَ كُنَّا نَتَحَدَّثُ أَنَّ أَصْحَابَ بَدْرٍ ثَلَاثُ مِائَةٍ وَبِضْعَةَ عَشَرَ بِعِدَّةِ أَصْحَابِ طَالُوتَ الَّذِينَ جَاوَزُوا مَعَهُ النَّهَرَ وَمَا جَاوَزَ مَعَهُ إِلَّا مُؤْمِنٌ

**قوله**: حدثنا مسلم بن ابراهيم حدثنا شعبة: ① په دې باب كښې اولنې روايت د حضرت براء رضي الله عنه دې.دوى فرمائي.چه زه او ابن عمر رضي الله عنهما لره صغير اوګرځولي شول.ددې نه پس ،،تحويل،، دې.اوامام بخارى رحمه الله خپل دويم سند بيانوى.په ،،وحدثني محمود،، سره،هلته بيا حضرت براء رضي الله عنه راوى دې.فرمائي.چه زه او ابن عمر رضي الله عنهما په يوم بدركښې صغيرګرځولي شوى وو.اومهاجرين په دغه ورځ دشپيتو نه څه زيات وو.او انصار د دوو سوو نه زيات وو.

**قوله**: حدثنا عمرو بن خالد حدثنا زهير: ② ددې نه پس د حضرت عمروبن خالد رحمه الله روايت امام بخارى رحمه الله نقل كوى.په دې كښې هم حضرت براء رضي الله عنه راوى دې.فرمائي.چه د محمد صلى الله عليه وسلم په ملګرو كښې چه كوم په بدرينوكښې شامل او شريك شوى وو.هغوى ماته بيان كړې وو.چه بدريين د اصحاب طالوت د شمار برابر وو.ځوك چه د طالوت سره د نهر نه تيرشوى وو.اوهغوى درې سوه لس وو.او درې پرې دپاسه وو.يعنى درې سوه او ديارلس وو.

حضرت براء رضي الله عنه فرمائي.«لا والله ما جاوز معه النهر إلا مؤمن» په الله ... دلته ،،لا،، د قسم د تاكيد دپاره راوړې شوې ده.دطالوت سره صرف هغه كسان د نهر نه تيرشوى وو.ځوك چه ايماندار وو.

**قوله**: حدثني عبدالله بن رجاء حدثنا إسرائيل: ③ ددې نه پس ددې باب دريم روايت دحضرت عبدالله بن رجاء دې.حضرت براء رضي الله عنه فرمائي.چه مونږ اصحاب محمد صلى الله عليه وسلم به په خپل مينځ كښې خبرې كولې.چه د اصحاب بدر شمارد طالوت د ملګرو د شمار برابر دې.ځوك چه د طالوت سره د نهر نه تيرشوى وو. او د هغوى سره صرف اهل ايمان تيرشوى وو.چه د درې سوه او لسو نه څه زيات وو.

**قوله**: حدثني عبدالله بن ابي شيبة...: ④ ددې نه پس يو بل روايت راځى.د عبدالله بن ابى شيبه.دلته هم حضرت براء رضي الله عنه راوى دې.فرمائي.چه مونږ به خبرې كولې.چه اصحاب بدرددرې سروو اولسو نه څه زيات وو.اودهغوى سره صرف اهل ايمان د نهرنه تيرشوى وو.

**د اصحاب بدر په تعداد كښې اختلاف د رواياتو اوددې په مينځ كښې تطبيق:**

① رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په بدر كښې درې سوه او ديارلس سړى وو.

② په بعضې رواياتوكښې درې سوه او څوارلس ذكردې.

③ اوپه بعضې رواياتوكښې د درې سوه او پنځلسو ذكردې.

④ اوپه بعضې رواياتوكښې د درې سوه او نورلسو ذكردې.

كه نبى صلى الله عليه وسلم او يوهغه صحابى ځوك چه د شمارپه وخت موجود نه وو.خود لرې نه په اوښ باندې سور په نظر راتلو.شمار نكړې شى.نو تعداد به درې سوه او ديارلس شى.اوكه هغه صحابى شماركړې شى.نوبيا به تعداد درې سوه او څوارلس شى.اوكه نبى صلى الله عليه وسلم ورسره هم

شمار كړې شي.نوبيا به تعداد درې سوه پنځلس شي.اوكه دغه څلور صحابه كرامؓ كوم چه صغيرالسن وو.اوهغوى ته په جهاد كښې د شركت اجازت نه وو ملاؤ شوې.خو ورسره وو.نو تعداد به درې سوه او نورلس شي.[1]

په دغه څلور صغيرالسن صحابوؓ كښې يوحضرت انس ؓ وو.يوحضرت عبدالله بن عمر ؓ وو.او يو حضرت جابر ؓ وو.اويو حضرت براء بن عازب ؓ وو.

امام بخاري رحمه الله چه كوم روايات نقل كړى دى.په هغې كښې د اصحاب بدر تعداد د اصحاب طالوت برابر خودلې شوې دې.اود اصحاب طالوت تعداد درې سوه او ديارلس وو. ددې نه معلومه شوه.چه امام بخاري رحمه الله د درې سوه او ديارلس شمار اعتبار كړې دې.

په دې كښې د شپېتو نه زيات مهاجرين وو.اود دوه سوه او څلويښتو نه زيات انصار وو. شپېته او دوه سوه اوڅلويښت درې سوه شول.كه ته داسې اووايې.چه شپږ شپېته مهاجرين وو.او دوه سوه او اووه څلويښت انصار وو.نو درې سوه او ديارلس به برابر شي.اومورخينو او اصحاب السير د شپږ شپېتو او دوه سوه او اووه څلويښتو عدد نقل كړې دې.

**په اصحاب بدراواصحاب طالوت كښې مطابقت:** دلته د اصحاب بدر شمار د اصحاب طالوت د شمارمطابق خودلې شوې دې.په شماركښې خو موافقت دې چه دې.خو نور هم په څو وجوهاتو سره په دې دواړو ډلوكښې مطابقت شته.

① يو مطابقت دا دې.چه لكه څنګه د طالوت ملګرى «فئة قليلة» وړوكې جماعت «فئة كثيرة» لوې جماعت باندې غالب راغلې وه.دغه شان د نبى ﷺ ملګرى هم د «فئة قليلة» مصداق وو.اودغه شان ددوى دشمن د «فئة كثيرة» مصداق وو.

② لكه څنګه چه دلته اصحاب بدر په ايمان كښې كامل او اكمل اوګرځولې شول.دغه شان اصحاب طالوت هم په كمال ايمان باندې موصوف ګرځولى شوى وو.

③ لكه څنګه چه دلته اصحاب رسول ﷺ دالله تعالى په نصرت اودهغه په مددباندې بهروسه اوكړه.دغه شان هلته اصحاب طالوت هم دالله تعالى په نصرت او دهغه په امداد باندې بهروسه كړې وه.

مطلب دا چه په مختلفو وجوهاتوسره د بدرپه واقعه كښې د اصحاب طالوت د واقعې سره مشابهت موجود دې.

**دلفظ ،،نيف،، تحقيق:** «كان المهاجرون يوم بدر نيفا على ستين» دا لفظ «نيف»هم دې.او «نيّف»

---

[1] )وفى الفتح (٢٩١/٧) كان أهل بدر ثلاثمائة وثلاثة عشر وعن أبى أيوب الأنصارى قال خرج رسول الله ﷺ إلى بدر فقال لإصحابه تعادوا فوجدوهم ثلاث مائة وأربعة عشر رجلاً ثم قال لهم تعادوا فتعادوا مرتين فأقبل رجل على بكرله ضعيف وهم يتعادون فتمت العدة ثلاث مائة وخمسة عشر وروى البيهقى عن عبدالله بن عمروبن العاص قال خرج رسول الله ﷺ يوم بدر ومعه ثلاث مائة وخمسة عشر وهذه الرواية لا تنافى التى قبلها لإحتمال أن تكون الأولى لم يعد النبى ﷺ ولا الرجل الذى أتى آخراً وأما الرواية التى فيها وتسعة عشر فيحتمل أنه ضم إليهم من أستصغر ولم يؤذن له فى القتال كالبراء وابن عمرؓ وكذا أنس ؓ .. والله أعلم) .

بالتشديد ،هم دي، ،نيف، ، د ، ،بضع، ،په وزن باندې دې.او د ، ،بضع، اطلاق لکه څنګه چه د درې نه واخله ترنهو پورې کيږي.دغه شان د ، ،نيف، ، اطلاق هم د دريو نه واخله ترنهو پورې کيږي.

په روايت کښې فرمائيلې شوى دى.چه «ولم يجاوز معه إلا مؤمن بضعة عشر وثلاث مائة» په دې کښې دلته د ، ،بضع، ، لفظ د دريو دپاره استعمال شوې دې.يعنى «ثلاثة عشر وثلاث مائة» درې سوه اوديارلس تعداد مراد دې.

لکه چه امام بخارى د درې سوه څوارلس ،درې سوه پنځلس او درې سوه نورلس رواياتوپه مقابله کښې د درې سوه او ديارلس روايت ته ترجيح ورکړې ده.اوهم دا زياته مشهوره ده.

دا خبره وړاندې خودلې شوې ده.چه اته صحابه کرامؓ هغه دى.کوم چه بدريان شمارلى شى.اګرچه هغوى په جنګ بدر کښې شرکت نه وو کړې.دهغوى نومونه تيرشوى دى.

## ٧=بَاب دُعَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى كُفَّارِ قُرَيْشٍ شَيْبَةَ وَعُتْبَةَ وَالْوَلِيدِ وَأَبِي جَهْلِ بْنِ هِشَامٍ وَهَلَاكِهِمْ

رسول اللهﷺ د کفارقريش يعنى شيبه،عتبه،وليداو ابوجهل دپاره خيرې کول اودهغوى دهلاکت بيان.

[٣٧٤٣] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ اسْتَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَعْبَةَ فَدَعَا عَلَى نَفَرٍ مِنْ قُرَيْشٍ عَلَى شَيْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ وَعُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ وَالْوَلِيدِ بْنِ عُتْبَةَ وَأَبِي جَهْلِ بْنِ هِشَامٍ فَأَشْهَدُ بِاللَّهِ لَقَدْ رَأَيْتُهُمْ صَرْعَى قَدْ غَيَّرَتْهُمُ الشَّمْسُ وَكَانَ يَوْمًا حَارًّا [ر: ٢٣٧]

روايت باب د حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه مروى دې.دوى فرمائى.چه نبى کريمﷺ کعبې طرف ته مخ کړلو.اود قريشو يوې ډلې ته ئې خيرې اوکړې.په کومه کښې چه شيبه بن ربيعه،وليد بن عتبه،اوابوجهل بن هشام شامل وو.نبىﷺ اوفرمائيل.واورئ.زه الله تعالى ګواه جوړوم.اودا خبره کوم.چه ما د بدرپه ورځ دا ټول راپرځولې شوې کتلى دى.نمردهغوى بدنونه خراب کړى وو.يعنى دهغوى بدنونه پړسيدلى وو.اورژيدلى وو د هغوى د بدنونو نه بدبوئې راتله.اوهغه د ګرمئ ورځ وه.

**دغزوه بدرسره د حديث باب مناسبت:** دلته امام بخارىؒ دا روايت د بدر په باب کښې ذکرکړې دې.حالانکه دا واقعه د بدر نه ده.دا دهغه وخت واقعه ده.چه نبىﷺ د خانه کعبې سره څواه کښې مونځ کولو.کله چه د مانځه په دوران کښې نبىﷺ سجدې ته لاړو.نود سجدې په حالت کښې د نبىﷺ په شا مبارکه باندې عقبه بن ابى معيط د اوښې بچې دانه اچولې وه.بنکاره ده.چه په دې سره د نبىﷺ په مانځه کښې خلل راغلو.نو نبىﷺورته خيرې اوکړى.چه «اللهم عليك بشيبة بن ربيعة ،اللهم عليك بعتبة ،اللهم عليك بالوليد،اللهم عليك بأبي جهل» او دبدر واقعه د هجرت نه پس راغلې ده.اودا واقعه د هجرت نه وړاندې ده. خو

امام بخاری رحمه الله دا حديث دلته ددې وجې ذکرکړو.چه د نبی ﷺ د خیرو په نتیجه کښې د بدر په موقع د دوی هلاکت واقع شو.اوددغه خیرو اثر د بدرپه ورځ ښکاره شو.

**یوسوال اودهغې جواب:** دلته یوسوال کیږی.چه نبی ﷺ خو رحمة للعالمین وو.اونبی ﷺخو همیشه دپاره خپلو دشمنانو ته دعا کړې ده.چه ((اللهم اهد قومی فإنهم لایعلمون)) اې الله زما قوم ته هدایت اوکړه.دوی نه پوهیږی.دوی زما مقام نه پیژنی.دلته په نبی ﷺ کښې دا تبدیلی ولې راغله.نو ددې په باره کښې زمونږ استاذ شیخ الادب والفقه حضرت مولانا اعزاز علی صاحب رحمه الله یوه عجیبه خبره کړې ده.هغوی فرمائی.ورورہ! خبره په اصل کښې دا وه.چه کله یوڅیز د خپلې فطری تقاضې نه بند کړې شی.نوپه هغې کښې جوش پیدا شی. دا به تاسو کتلې وی.چه ریل ګاډې روان وی.او دانجن نه چلیږی.د انجن نه څنګه چلیږی؟دومره وزنی او دومره درون ریل او انجن دا اوړی.اودومره په تیزئ سره ئې اوړی. د کراچئ نه ترلاهوره پورې اووه نیم سوه میلو سفر په اتلس ګهنټوکښې کوی.نوته به وایې.چه وروره د ریل په انجن کښې بړاس پیدا کیږی.اوهغه بړاس دغه انجن او ریل ګاړی، بړاس څه څیز دې؟ نو مولانا صاحب اوفرمائیل.چه په اصل کښې داسې کیږی.چه د اوبونه یو لوښې ډك کړې شی. اود هغې لاندې اور اولګولې شی.د اور په لګیدو سره اوبه ګرمې شی.اودهغه اوبوپه ګرمیدو سره بړاس پیدا شی.اوددغه بړاس فطرت دې.چه ته دا آزاد پریږده.چه دې په فضا کښې تحلیل شی.خو ته دا کوې.چه دغه پیدا کیدونکې بړاس بندوې.اوهغه ډیر لطیف څیز دې.ددې په وجه په دې کښې دومره طاقت پیدا شی.چه د هغې په ذریعه هغه په سوونو او زرګونو ټنه وزنی ریل اوړی.او تیز روان وی. دا مثال د موټر او بس هم دې.

ددې نه پس هغوی اوفرمائیل.چه چونکه مونځ د نبی ﷺ د سترګو یخوالې وو.په دې موقع باندې نبی ﷺ مونځ کولو.اوپه مانځه کښې چه دنبی ﷺ اود الله تعالی په مینځ کښې چه کوم ربط او تعلق قائم وو.ددې مشرکانوپه حرکت سره په دغه تعلق کښې اوپه دې فطرتی عمل کښې خلل واقع شو.نو د نبی ﷺ په فطری عمل کښې د رکاوټ اچولوپه وجه اونبی ﷺ دخپل فطرت خلاف عمل کولوباندې د مجبوره کولونتیجه دا شوه.چه د نبی ﷺ عام عادت وو.(اوهغه دا چه نبی ﷺ ته که به قوم تکلیف اورسولو.نو دوی به ورته دعا کوله) ددې په خلاف نبی ﷺ دلته دهغه خلقو په حق کښې خیرې اوکړې کوم چه په دې حرکت کښې شریك وو.او نبی ﷺ دالله تعالی په دې تعلق او ربط کښې خلل برداشت نکړو.اوچونکه دا خیرې د نبی ﷺ د ژبې نه وتلې وې.اوداسې د کمزورئ په حالت کښې وې. چه د نبی ﷺ دپاره به ددې نه زیاته بې بسی او کمزوری نوره څه کیدې شوه.نوالله تعالی دغه دعا قبوله کړه.

یوخو د نبی ﷺ هسې خیرې کول کافی وو.او بیا د مظلومیت په انتهائی حالت کښې ، ددې خیرود ژبې مبارکې نه وتل د قبولیت یوزیاتی سبب جوړ شو.چه نتیجه ئې دا شوه.چه د کومو کومو کسانو نومونه نبی ﷺ اخستی وو.په هغوی کښې هریو الله تعالی خپل انجام ته اورسول.

# ۸=باب قتل أبي جهل

علامه عينى رحمه الله فرمائي.چه د ابوذر رحمه الله په نسخه كښې دا باب موجود نه دې.اوپه نورو نسخوكښې موجود دې.(١) اوكه دې طرف ته نظر اوكړې شي.چه په دې باب كښې د ابوجهل د قتل نه علاوه د نورو خلقو د قتل ذكر هم شته.نو مناسب دا ده.چه دا باب نه وې.ځكه چه ددې باب په احاديثو كښې صرف د ابوجهل قتل ذكرنه دې.بلكه د نورو ذكرپه كښې هم شته.خو علامه عينى دا هم فرمائيلى دى.چه چونكه په بعضې نسخوكښې ددې باب ترجمه داسې قائمه كړې شوې ده.((باب قتل أبي جهل وغيره)) يعنى د ابوجهل او ددې نه پس د((وغيره)) لفظ په كښې هم موجود دې.نود ابوجهل د قتل نه علاوه د نورو ذكر چه په كښې راغلې دې. هغه د ((وغيره)) لاندې راتلې شي.نوچه په ترجمه كښې د ((وغيره)) لفظ ته اوكتې شي. مناسب هم دا معلوميږى.چه دا باب وى.(٢)

علامه عينى رحمه الله چه كومه خبره كړې ده.هغه صحيح ده.خو ناكافى ده.ځكه چه په باب كښې بيشكه بعضې روايات داسې دى.چه په هغې كښې د ابوجهل نه علاوه د نورو كسانو د قتل ذكردې.لكه د عتبه،شيبه، وغيره د قتل ذكرپه كښې راغلې دې.يقيناً دوى د ((وغيره)) د لفظ لاندې شاملولې شى.

خو د حضرت زبيربن العوام رضي الله عنه په سلسله كښې يو روايت راځي.په هغه روايت كښې د چا د قتل ذكر هم نشته.نودهغه روايت مناسبت به ترجمة الباب سره څنګه وى؟ علامه عينى د ترجمة الباب سره دهغې دمناسبت په باره كښې دافرمائيلى دى.چه په دې روايت كښې د حضرت زبير بن العوام په جنګ بدر كښې شركت بيان شوې دې.نو ددې مطابقت د ترجمې سره راغلو(٣) خودعلامه عينى رحمه الله دا مناسبت بيانول كافى نه دى.ددې وجې د حضرت زبير رضي الله عنه په غزوه بدر كښې دشركت بيانولو سره د ((باب قتل أبي جهل وغيره)) سره مناسبت نه معلوميږى.ځكه چه په دغه روايت كښې نه د ابوجهل د قتل ذكرشته.اونه د غير ابوجهل دقتل ذكر،نو صرف دا وئيل چه په دې سره د حضرت زبير رضي الله عنه په جنګ بدر كښې شركت ثابتيږى.اودا د باب سره مناسبت شو.خودا خبره كافى نه ده.(٤)

---

(١) عمدة القارى(۸۵\۱۷)_

(٢) دغه شان حافظ صاحب ليكى.((تثبت هذه الترجمة للأكثر وسقطت لأبى ذر.. وثبوتها أوجه إذ لا تعلق لحديثها بباب عدة أهل بدر(فتح البارى (۲۹٤\۱۷)_~

(٣) علامه عينى رحمه الله د دې روايت د مطابقت په باره كښې ليكى.((مطابقته للترجمة ظاهرة فإنه يصرح بحضورالزبيربن العوام رضي الله عنه وقعة بدر فيدخل فى العدة (عمدة القارى (۹۰\۱۷)_~

(٤) خو لكه څنګه چه علامه عينى رحمه الله فرمائيلى دى.چه د ابوذرپه نسخه كښې دا باب موجود نه دې.په نورو نسخوكښې موجود دې.نو كه د ابوذرد نسخې اعتبار اوكړې شي.نو د علامه عينى رحمه الله بيان كړې مطابقت به صحيح شي.ځكه چه ((باب عدة أهل بدر)) سره ددې روايت مناسبت ښكاره دې.اود ابوذرپه نسخه كښې دا روايت اود دې باب نورټول روايات د ((باب عدة أهل بدر)) لاندې راغلې دې.

حافظ صاحب خو معامله بیخی ګول مول کړې ده.هغوی د مطابقت په باره کښې څه تسلی بخش خبره نه ده کړې.او زمونږ د بخاری شارحینو رحمهم الله هم ددې روایت د ترجمة الباب سره د مطابقت په باره کښې څه بحث نه دې کړې.حال دا چه د مطابقت مسئله اهمه ده.

**د ترجمة الباب اوددې د ټولو روایاتوپه مینځ کښې دمطابقت ښه توجیه:** په دې باره کښې یوه خبره دا کولې شي.چه ((باب قتل أبي جهل وغیره)) کښې ((وغیره)) کښې ضمیر ابوجهل طرف ته نه دې راجع.(لکه څنګه چه علامه عینی رحمه الله ضمیرده طرف ته راجع کړې دې) بلکه چه دا ضمیر ، ،قتل، ، طرف ته راجع کړې شی.نو مسئله به بیخی ښکاره شی.

نواوس به د باب مطلب دا وی.چه په دې باب کښې د ابوجهل د قتل ذکر دې.او د قتل ابوجهل نه علاوه د بدر د نورو څیزنو ذکرهم دې.نو اوس د حضرت زبیربن العوام رضی الله عنه د روایت په باره کښې څه اشکال نه پاتې کیږی.ځکه چه په دې روایت کښې د ابوجهل یا غیر ابوجهل د قتل ذکر نشته.خو دا ورایت بهر حال د جنګ بدر سره متعلق دې.او په دې کښې د حضرت زبیر په جنګ بدر کښې د شرکت بیان دې.اودغه شان په دې صورت کښې د باب د نورو روایتونه د ترجمة الباب سره مناسبت په آسانتیا سره راځی.

**په جنګ بدرکښې د ابوجهل د قتل واقعه:** ددې باب په اولنو روایتونو کښې د ابوجهل د قتل بیان شوی دې.د دې واقعې تفصیل د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه په روایت کښې دی.دوی فرمائی.چه زه د بدر په ورځ په میدان جنګ کښې ولاړ ووم.او د انصارو دوه هلکان زما ښی او ګس طرف ته ولاړ وو.زما په خیال کښې راغلل.که ددې دوو هلکانو په مینځ کښې زه چا اولیدم.نو هغه به ما غیر محفوظ اوګڼری.اوپه ما به حمله اوکړی.ددې زما سره ویره شوه.زه هم په دغه خیال کښې وم.چه په دې کښې یو زما نه تپوس اوکړو.تره تاسو ابوجهل پیژنئ.ما ورته اووئیل.آوزه ئې پیژنم.خوستاسودهغه سره څه کاردې؟ نوهغه اووئیل. چه ما اوریدلی دی.چه هغه به د رسول الله صلی الله علیه وسلم په شان کښې ګستاخی کوله.ددې وجې ما دا عهد کړې دې.چه کله هغه ماته په نظر راشی.نو ((یموت الأعجل منا)) چه په مونږ دواړوکښې چه د چا مرګ وړاندې لیکلې شوې وی.هغه به مری.یابه زه مرم اویا به هغه وژنم.اوس لا یوخپله خبره نه وه ختمه کړې.چه بل رانه د ابوجهل په باره کښې تپوس اوکړو. مادهغه نه هم هغه تپوس اوکړو.اوهغه هم هغه خبره اوکړه.چه ابوجهل به د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حق کښې بد رد وئیل.نوما دا عهد کړې دې.چه زما سیوری به دهغه د سیوری نه ترهغه وخته پورې نه جدا کیږی.ترڅوچه زه هغه ختم نکړم.حضرت عبدالرحمن رضی الله عنه فرمائی.چه ددې دواړو هلکانو خبرې چه ما واوریدې.زه په خپل اولنی خیال باندې ملامته شوم.په دې کښې ابوجهل په نظر راغلو.ما دغه ماشومانو ته اشاره اوکړه.چه ابوجهل دغه دې.نو لکه څنګه چه باز او شکرې په کونتره باندې حمله کوی.دغه شان دا دواړه هلکان په ابوجهل باندې حمله کونکی شو.اوهغوی ابوجهل زخمی کړلو.او د اس نه ئې راغزارکړلو.په دواړو هلکانو کښې د یو نوم معاذ او دبل معوذ وو.او دا دواړه د حضرت عفراء انصاریه ځامن وو.(۱) دا د بخاری کتاب المغازی روایت دې.اود بخاری د کتاب الجهاد په روایت کښې دی.چه د

---

۱) صحیح بخاری کتاب الجهاد..أبواب فرض الخمس باب من لم یخمس الأسلاب رقم (۳۱۴۱)۔

ابوجهل په قتل کولوکښې حضرت معاذبن جموح وړاندې وو.([1])
حافظ ابن حجر رحمه الله فیصله کړې ده.چه د عفراء دواړه ځامن معاذ او معو هم په قتل کښې شریك وو.او معاذبن عمروبن جموح رضي الله عنه هم په دې کښې شریك وو.د حافظ ابن حجر رحمه الله وینا دا ده.چه د ابوجهل په قتل کښې زیاته حصه د معاذبن عمرو رضي الله عنه وه.اوهم ددې وجې نه نبی ﷺ د ابوجهل سلب معاذبن عمروبن جموع ته ورکړې وه.([2])
په معاذبن حارث باندې د ابوجهل خوی عکرمه د خپل پلار بدلې اخستلودپاره په توره حمله اوکړه.د هغه لاس په دغه حمله باندې کټ شو.د لاس صرف یو رګ د بدن سره پاتې شوې وو.او باقی لاس بیکارزوړند وو.ټوله ورځ حضرت معاذ رضي الله عنه هم په دغه کیفیت کښې د کافرانو سره جنګیدل.او ماښام چه کله درد او تکلیف ئې زیات محسوس کولو. نو هغه خپله دغه لاس په زمکه باندې کیخودلو.او دپاسه ئې پرې پښه کیخوده.اوهغه ئې د بدن نه جدا کړو.دوی ددې نه پس تر څه مودې پورې ژوندې وو.البته ددوی ورور معوذ رضي الله عنه په غزوه بدرکښې شهید شو.
دجنګ نه پس نبی ﷺ اوفرمائیل.لاړ شئ. اوګورئ د ابوجهل څه اوشو؟ نو حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه لاړلو.عجیبه انتخاب دې.د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په روایت کښې دی.چه په لیلة الجن کښې چه کله نبی ﷺ تشریف اوړلو.نوفرمائیلی ئې وو.زما سره به هغه کس ځی.چه دهغه په زړه کښې د ذرهٔ برابر تکبر نه وی.حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اودریدل.او نبی ﷺ هغه دځان سره بوتلې وو.لکه چه نبی ﷺ دهغه تصدیق اوکړو.چه په ده کښې ذره برابر تکبر نشته.([3]) نو الله تعالی دلته د ابوجهل د سرکټ کولودپاره د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه انتخاب اوکړو.ځکه چه په هغه کښې د ذرې برابر تکبر نه وو.او ابوجهل د تکبر مجسمه وه.د الله تعالی د حکمت بالغه تقاضا هم دا وه.چه ددې تکبر او غرور نه ډك کس د روح ویتسلو سامان دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په ذریعه باندې اوکړې.کوم چه د تواضع او عاجزئ مجسمه وه.نو حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه لاړلو.د ابوجهل په سینه باندې کیناستلو.او وې وئیل.«أخزاك الله یا عدوالله» اې دالله دشمنه! الله تعالی ته ذلیله کړې.بیا حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دهغه سر د تنې نه جدا کړلو.په دغه وخت کښې ابوجهل اووئیل.سرمې لږ د لاندې نه کټ کړه.چه کله د سرنو قطار لګولی شی. نود سردار سر اوچت په نظرراځی.حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دهغه سرکټ کړلو.او د نبی ﷺ په خدمت کښې ئې پیش کړو.اووې وئیل.«هذا رأس عدوالله» نبی ﷺ چه اوکتل نو وې فرمائیل.واقعی دا د ابوجهل سر دې.حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اووئیل.په الله قسم دا دابوجهل سردې.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.«الحمدلله الذی أعزالإسلام وأهله» شکر دې دالله چا

---

[1] )ایضاً)_
[2] ) فتح الباری (۶\۲٤۸) کتاب فرض الخمس وفتح الباری(۷\۲۹۶)_
[3] )سیرة مصطفی (۱۲\۱۰۰) بحواله بنایة شرح هدایه للحافظ العینی (۱۱\۲۸۶)_

چه اسلام او اهل اسلام ته عزت او ترقي ورکړه.([1])
حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په دې موقع دا هم ونيلي دي.چه يارسول الله دې بدبخته د مرګ په وخت کښې ماته دا هم ونيلي وو.چه محمدته خبر ورکړه.چه زما په زړه کښې تاسره کوم بغض اودشمني وه.په دې وخت کښې هم په هغې کښې څه کمي نه دې راغلې.بلکه د وړاندې نه زياته ده.نبي صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل.چه دا زما د امت فرعون دې.اود موسى عليه السلام اودبني اسرائيلو د فرعون نه په کفر کښې زيات سخت دې.ځکه چه د حضرت موسى عليه السلام په مقابله کښې چه کوم فرعون وو.هغه چه کله مړ کيدو.نوپه هغه وخت کښې ئې د موسى عليه السلام د کلمې ونيلو کوشش کړې وو.او کله چه دې مړ کيدو.نو په کفرکښې ئې د څپل کلك والي اظهار اوکړو.حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه چونکه دهغه سرکټ کړې وو.ددې وجې نبي صلی الله عليه وسلم دهغه توره عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته ورکړه.([2])

[۳۷۴۴] حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ أَخْبَرَنَا قَيْسٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ أَتَى أَبَا جَهْلٍ وَبِهِ رَمَقٌ يَوْمَ بَدْرٍ فَقَالَ أَبُو جَهْلٍ هَلْ أَعْمَدُ مِنْ رَجُلٍ قَتَلْتُمُوهُ

[۳۷۴۵] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ أَنَّ أَنَسًا حَدَّثَهُمْ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وَحَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَنْظُرُ مَا صَنَعَ أَبُو جَهْلٍ فَانْطَلَقَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَوَجَدَهُ قَدْ ضَرَبَهُ ابْنَا عَفْرَاءَ حَتَّى بَرَدَ قَالَ آأَنْتَ أَبُو جَهْلٍ قَالَ فَأَخَذَ بِلِحْيَتِهِ قَالَ وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلْتُمُوهُ أَوْ رَجُلٍ قَتَلَهُ قَوْمُهُ قَالَ أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ أَنْتَ أَبُو جَهْلٍ
حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ مَنْ يَنْظُرُ مَا فَعَلَ أَبُو جَهْلٍ فَانْطَلَقَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَوَجَدَهُ قَدْ ضَرَبَهُ ابْنَا عَفْرَاءَ حَتَّى بَرَدَ فَأَخَذَ بِلِحْيَتِهِ فَقَالَ أَنْتَ أَبَا جَهْلٍ قَالَ وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلَهُ قَوْمُهُ أَوْ قَالَ قَتَلْتُمُوهُ
حَدَّثَنِي ابْنُ الْمُثَنَّى أَخْبَرَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ أَخْبَرَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ نَحْوَهُ [۳۷۴۵]

[۳۷۴۶] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كَتَبْتُ عَنْ يُوسُفَ بْنِ الْمَاجِشُونِ عَنْ صَالِحِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ فِي بَدْرٍ يَعْنِي حَدِيثَ ابْنَيْ عَفْرَاءَ [ر:۲۹۷۲]

اوس لږ دا روايتونه اوګورئ.ددې باب په شروع کښې په روايتونوکښې هم دا خبره بيان شوې ده.چه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ابوجهل په ميدان جنګ کښې په زمکه باندې پريوتې اومندلو.نودهغه په سينه باندې کيناستلو.او ابوجهل ته ئې اووئيل.«أنت أبوجهل»

[1] )عمدة القاري(۱۷\۸۶)_
[2] )السيرة ا لحلبية (۱۲\۱۷٤)_

**قوله: هَلْ أَعْمَدُ مِنْ رَجُلٍ قَتَلْتُمُوهُ؟ وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلَهُ قَوْمُهُ أَوْ قَالَ قَتَلْتُمُوهُ:**

**دوه مطلبه:** ابوجهل اووئیل.(( هَلْ أَعْمَدُ (١) مِنْ رَجُلٍ قَتَلْتُمُوهُ)) يا((وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلَهُ قَوْمُهُ أَوْ قَالَ قَتَلْتُمُوهُ))

① ددې جملې يو مقصد خو دا دې.چه په دې كښې ابوجهل دخپل تكبراظهار كوي.چه آيا دهغه كس نه زيات خوښ بل څوك شته.كوم چه تاسو قتلوئ؟ يا د هغه كس نه اوچت څوك شته.كوم چه تاسو قتل كړلو.يعني ددېنه زيات خوښ او دده نه زيات لوې بل څوك نشته.

② خو علامه عيني،حافظ ابن حجر، علامه نووى او ابوعبيده وغيره ﷭ ددې يو بل مطلب هم بيان كړې دې.چه د ابوجهل ددې قول مقصد دا دې.چه زما قتلول ددې نه زيات څه نه دى.چه يو كس خپل قوم پخپله قتل كړلو.نو په دې كښې نه ستاسو دپاره څه د فخر خبره شته.او نه زما دپاره څه د پيغور خبره ده.(٢)

حافظ ابن حجر﵀ ددې معنى په تائيد كښې د طبرانى نه د عمروبن ميمون يو روايت هم نقل كړې دې.په هغې كښې دى.چه حضرت عبدالله بن مسعود﵁ كله د ابوجهل په سينه باندې اوختلو.نوهغوى ورته اووئيل.((أى عدوالله قد أخزاك الله)) اې دالله دشمنه الله تعالى ته رسوا كړې.نو ابوجهل په جواب كښې اووئيل.((وبما أخزاني من رجل قتله قومه)) حافظ ابن حجر ﵀ فرمائى.چه ددې روايت نه معلوميږى.چه ابوجهل دا وئيل غوستل.چه ستاسو دپاره زما په قتل كښې څه كمال نشته.اوزما دپاره په دې كښې څه عار نشته.چه په هغې سره زه رسوا شم.ځكه چه يوكس هم خپل قوم قتل كړو.داڅه درسوائې خبره نه ده.دا خوهم داسې كيږى.(٣)

بهرحال دې تولو حضراتو په ((أعمد من رجل قتلتموه)) كښې استفهام انكارى مراد اخستې دې.اودا مطلب ئې راوستې دې.چه په دې كښې ابوجهل دخپل تكبراوفخر خبره نه كوى.بلكه د خپلې رسوائې او ذلت دفاع كوى.والله اعلم.

دلته د باب دريم حديث كم چه د حضرت انس﵁ نه مروى دې.په هغې كښې ((أنت أبا جهل)) راغلې دې.اوپه بعضې نسخوكښې ((أنت أبوجهل)) راغلې دې.

د حافظ ابن حجر﵀ رائې دا ده.چه دا ((أنت أبوجهل)) دحضرت انس﵁ په روايت كښې د بعضې راويانو نه اصلاح ده.دې راويانوچه كله اوكتل.چه ((أنت أبا جهل)) دقاعدې نه خلاف

---

١) واعمد: افعل التفضيل من عمد أى هلك ، يقال عمدالبعير يعمد عمداً بالتحريك إذا ورم سنامه من عض القتب .. ويكنى بذلك عن الهالك وقيل معنى اعمد : أعجب، وقيل بمعنى أغضب (فتح البارى ٧\٢٩٤)_

٢ )علامه عينى ﵀ ليكى.((هل أعمد من رجل أى هل أعجب من رجل قتله قومه يعنى ليس قتلكم لى إلا قتل رجل قتله قومه لا يزد على ذلك ولا هو فخرلكم ولا عار على)) عمدة القارى (١٧\٨٥)_

٣ )فتح البارى(٧\٢٩٤)_

دي. نوهغوی دحضرت انس رضي الله عنه په روايت كښې تصحيح اوكړه.او «أبا جهل» ئې په «أبوجهل» بدل كړو.ځكه چه اسماء سته مكبره په حالت رفعي كښې په الف سره نه وى.بلكه په واو سره وى.خوحافظ رحمه الله فرمائى.چه د حضرت انس رضي الله عنه په روايت كښې معتبر اومعتمد هم دا دى. چه «أبا جهل» الف سره وئيلې شى.او بعضې راويانو دخپل طرف نه چه كومه اصلاح كړې ده.هغه صحيح نه ده. حافظ رحمه الله ددې وجه دا بيان كړې ده.چه يو خو به د جنګ بدر په آخر كښې روايت راشى.هلته «أنا أبا جهل» موجود دې.دويمه وجه دا ده.چه ددې حديث راوى سليمان تيمى رحمه الله تصريح كړې ده.چه حضرت انس رضي الله عنه ددې تلفظ په «أنت أبا جهل» الف سره كړې دې.دغه شان يحيى بن سعيد قطان هم ددې تلفظ په الف سره كړې دې.نو هركله چه دې دواړو حضراتو ددې تلفظ په «أبا جهل» الف سره كړې دې.نو بيا روسته د راويانودخپل طرف نه اصلاح څنګه ټيك كيدې شى.ددې وجې صحيح خبره هم دا ده.چه دا لفظ «أنت أبا جهل» الف سره دې.[1] نو اوس به سوال كيږى.چه بيا به د نحوى قاعدې مطابق ددې توجيه څه وى.نو ددې متعلق څوتوجيهات شوى دى.

① يوه خودا چه «أنت» مبتدا ،او «مقتول» خبرمحذوف دې.او «أباجهل» منادى دې.يعنى «أنت مقتول يا أبا جهل» [2]

② علامه عينى رحمه الله ددې توجيه كړې ده.«أنت تكون أبا جهل» [3]

③ داودى رحمه الله يوه بله خبره كړې ده.هغه دا چه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د ابوجهل د تحقير او تذليل دپاره د صحيح «أبوجهل» مرفوع په ځائې قصداً دغه غلط «أنت أباجهل» منصوب اووئيل.[4]

④ يوه توجيه دا هم شوې ده.چه په اصل كښې بعضې دعرب، قبائل اسماء سته مكبره په حالت رفعى،حالت نصبى اوحالت جرى درې واړو حالتونوكښې په الف سره وائى.نو دا د دغه قبائلو دلغت مطابق دې.[5]

[۳۷۴] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الرَّقَاشِيُّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ حَدَّثَنَا أَبُو مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ أَنَا

---

[1] )فتح البارى (۲۹۵\۷)-
[2] )فتح البارى(۲۹۵\۷)-
[3] )عمدة القارى(۸۵\۱۷)_
[4] )فتح البارى(۲۹۵\۷)_
[5] )فتح البارى(۲۹۵\۷)_

أَوَّلُ مَنْ يَجْثُو بَيْنَ يَدَيِ الرَّحْمٰنِ لِلْخُصُومَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَقَالَ قَيْسُ بْنُ عُبَادٍ وَفِيهِمْ أُنْزِلَتْ هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ قَالَ هُمُ الَّذِينَ تَبَارَزُوا يَوْمَ بَدْرٍ حَمْزَةُ وَعَلِيٌّ وَعُبَيْدَةُ أَوْ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْحَارِثِ وَشَيْبَةُ بْنُ رَبِيعَةَ وَعُتْبَةُ بْنُ رَبِيعَةَ وَالْوَلِيدُ بْنُ عُتْبَةَ [ر:۳۷۴۹و۴۴۶۷]

[۳۷۴۸] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي هَاشِمٍ عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ نَزَلَتْ هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ فِي سِتَّةٍ مِنْ قُرَيْشٍ عَلِيٍّ وَحَمْزَةَ وَعُبَيْدَةَ بْنِ الْحَارِثِ وَشَيْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ وَعُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ وَالْوَلِيدِ بْنِ عُتْبَةَ [۳۷۵۰و۳۷۵۱و۴۴۶۶]

[۳۷۴۹] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الصَّوَّافُ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ يَعْقُوبَ كَانَ يَنْزِلُ فِي بَنِي ضُبَيْعَةَ وَهُوَ مَوْلًى لِبَنِي سَدُوسَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ قَالَ قَالَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فِينَا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ [ر:۳۷۴۷]

[۳۷۵۰/۳۷۵۱] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ أَبِي هَاشِمٍ عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ سَمِعْتُ أَبَا ذَرٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُقْسِمُ لَنَزَلَتْ هٰؤُلَاءِ الْآيَاتُ فِي هٰؤُلَاءِ الرَّهْطِ السِّتَّةِ يَوْمَ بَدْرٍ نَحْوَهُ

[۳۷۵۱] حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدَّوْرَقِيُّ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا أَبُو هَاشِمٍ عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا ذَرٍّ يُقْسِمُ قَسَمًا إِنَّ هٰذِهِ الْآيَةَ هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ نَزَلَتْ فِي الَّذِينَ بَرَزُوا يَوْمَ بَدْرٍ حَمْزَةَ وَعَلِيٍّ وَعُبَيْدَةَ بْنِ الْحَارِثِ وَعُتْبَةَ وَشَيْبَةَ ابْنَيْ رَبِيعَةَ وَالْوَلِيدِ بْنِ عُتْبَةَ [۳۷۴۸]

[۳۷۵۲] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ السَّلُولِيُّ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ سَأَلَ رَجُلٌ الْبَرَاءَ وَأَنَا أَسْمَعُ قَالَ أَشَهِدَ عَلِيٌّ بَدْرًا قَالَ بَارَزَ وَظَاهَرَ

**قوله**: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الرَّقَاشِيُّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ: دا روايت د حضرت علي رضي الله عنه دي.دوی فرمائی.

**قوله**: أَنَا أَوَّلُ مَنْ يَجْثُو بَيْنَ يَدَيِ الرَّحْمٰنِ لِلْخُصُومَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ: زه به اولني سړی یم.چه د قيامت په ورځ به د رحمان مخامخ د فيصلې دپاره کينم.او قيس بن عباد فرمائی.چه هم ددې حضراتو په باره کښې دا آيت نازل شوې وو. ﴿هٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ﴾ دا هغه خلق دی.چاچه د جنګ بدره په ورځ مقابله او مبارزه اوکړه.د مسلمانانو دطرفه حضرت حمزه،حضرت علي اوحضرت عبيده رضي الله عنهم وو.اود کافرانو دطرفه شيبه،عتبه او وليد وو.

دانا اول من يجثو معنى: د ،،يجثو،، معنى دا.((من يقعد على الركبتين للخصومة)) حافظ ابن حجر رحمه الله

دلته يو قيد لګولې دې.چه دا ئې د مجاهدينو په اعتبارسره «أول من يجثو» فرمائيلی دی. ځکه چه د اسلام د ټولونه اولنۍ دمجاهدينو ډله چا چه کافران قتل کړی وو.هغه د حضرت حمزه،حضرت علی او حضرت عبيده رضی الله عنهم ډله وه.نو «أنا أول من يجثو» هغوی په دې اعتبار سره فرمائيلی دی. (١)

«أنا أول من يجثو للخصومة» کښې د خصومت نه څه مراد دې؟حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائيلی دی.چه د خصومت نه مراد دا دې.چه مشرکان به د قيامت په ورځ اووائی.چه مونږ په ظلم سره قتل کړې شوی وو.اودا حضرات به ددې په مقابله کښې دا ثابتوی.چه مونږ دوی په ظلم سره نه دی قتل کړی.بلکه د اعلاء کلمة الله او د اسلام د ترقۍ دپاره مو قتل کړی دی. (لامع الدراری ۲۵۳/۸)_ حضرت ګنګوهی رحمه الله داتوجيه ددې دپاره کړې ده.چه هغوی فرمائيلی دی.د اهل کفرکلام به دا وی.چه مونږ په ظلم سره قتل شوی يو.اود اهل اسلام کلام به دا وی.چه مونږ په قتل کولوکښې په حق وو. (٢)

**څوک دچا په مقابله کښې وو؟**: دجنګ بدر په ابتداء کښې درې سړی د مسلمانانو د طرفه او درې کسان د کافرانو د طرفه راوتلی وو.دکوموچه په دې حديث کښې ذکر دې.البته په دې روايت کښې دا نه دی خودلې شوې.چه څوك د چا په مقابله کښې وو.د ابن اسحاق او ابن سعد رحمهما الله د بيان مطابق حضرت عبيده رضی الله عنه،د عتبه په مقابله کښې او حضرت حمزه رضی الله عنه د شيبه په مقابله کښې او حضرت علی رضی الله عنه د وليد په مقابله کښې وو.خود موسی بن عقبه په روايت کښې دی.چه حضرت عبيده رضی الله عنه د شيبه په مقابله کښې وو.او حضرت حمزه رضی الله عنه د عتبه په مقابله کښې وو.بعضې عالمانو رحمهم الله فرمائيلی دی.دحضرت علی رضی الله عنه د وليد په مقابله کښې کيدل متفق عليه دی.خودا خبره صحيح نه ده.ځکه په بعضې رواياتوکښې دا هم شته.چه حضرت علی رضی الله عنه د عتبه په مقابله کښې وو.حافظ رحمه الله د ابوداود نه د حارثه بن نضر په طريق سره ددې په ثبوت کښې روايت نقل کړې دې.(٣) نودا خبره متفق عليه خو پاتې نشوه.البته معقول هم دا معلوميږی.چه حضرت علی رضی الله عنه د وليد په مقابله کښې وو.ځکه چه دا دواړه ځوانان وو.او حضرت حمزه رضی الله عنه او حضرت عبيده رضی الله عنه په مقابله کښې عتبه او شيبه وو.ځکه چه دوی د زيات عمر وو.د زيات عمرکسانو د زيات عمرکسانوسره او د ځوان د ځوان سره مقابله معقوله په نظرراځی.(٤)

**﴿هٰذٰنِ خَصْمٰنِ اخْتَصَمُوْا فِيْ رَبِّهِمْ﴾ دا ايت دچا په باره کښې نازل شوې دې؟**: دلته د بخاری د روايت نه معلوميږی.چه دا آيت د دې شپږو حضراتو په باره کښې نازل شوې دې.حالانکه صاحب جمل يو روايت نقل کړې دې.دهغې نه معلوميږی.چه دا آيت د اهل کتابو او اهل

---

(١)فتح الباری(۲۹۷/۷)_

(٢)تعليقات لامع الدراری ۲۵۳/۸)_

(٣)فتح الباری(۲۹۸/۷)_

(٤)ايضاً_

اسلام په مينځ کښې د مخاصمهٔ په باره کښې نازل شوې دې.(1)
(۲۵۳)_ او علامه قسطلاني رحمه الله هم د حضرت قتاده رحمه الله په حوالې سره دا روايت نقل کړې دې.نود بخاری د روايت نه معلوميږي.چه دا آيت د اهل بدر په باره کښې نازل شوې دې.اود صاحب جمل او قسطلاني رحمهما الله د بيان نه معلوميږي.چه دا آيت د اهل کتابود مجادلې په باره کښې نازل شوې دې.(2)

① مجاهد وئيلي دی.چه په اصل کښې په دې آيت کښې مثال بيان شوې دې.د مومن او د کافر،چه مومن د الله تعالى د دين اوچت والې غواړي.او ددې دپاره جنګيږي.اوکافر دالله تعالى د نور او د دين د ختمولو په کوشش کښې لګيا وی.حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائي.چه د آيت دا توجيه زياته ښه ده.ځکه چه په دې صورت کښې دا په اهل بدر باندې هم منطبق کيږي.او په اهل اسلام او اهل کتابو په دې مذاکره باندې هم منطبق کيږي.(3)
② اوداسودا هم وئيلې شي،چه ممکن ده. دا آيت د اهل بدر په باره کښې نازل شوې وی.اود اهل اسلام او اهل کتابود مذاکرې په باره کښې هم نازل شوې وی.ځکه چه په کومه زمانه کښې د بدر واقعه پيښه شوې وه.داهل اسلام او اهل کتابو مناظره هم په دغه زمانه کښې شوې وه.نوچا داد بدر طرف ته منسوب کړې ده.اوچا داهل اسلام اواهل کتابوپه مينځ کښې مجادلې او مناظرې طرف ته منسوب کړې ده.

**ايا مبارزه بالقتال جائزده؟**: ددې روايت نه يوه خبره دا هم معلومه شوه.چه مبارزه بالقتال جائزده.حسن بصری رحمه الله مبارزه بالقتال ته ناجائز وائي.
امام اوزاعي.سفيان ثوري،امام احمد امام اسحاق رحمهم الله فرمائي.چه مبارزه باذن الامام جائزده.اوددې نه بغيرجائز نه ده.(4)
دلته حضرت حمزه،حضرت عبيده او حضرت علي رضي الله عنهم مبارزه بالقتال کړې وه.ددې نه جواز معلوميږي.

[۳۷۵۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي يُوسُفُ بْنُ الْمَاجِشُونِ عَنْ صَالِحِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ كَاتَبْتُ أُمَيَّةَ بْنَ خَلَفٍ فَلَمَّا كَانَ يَوْمَ بَدْرٍ فَذَكَرَ قَتْلَهُ وَقَتْلَ ابْنِهِ فَقَالَ بِلَالٌ لَا نَجَوْتُ إِنْ نَجَا أُمَيَّةُ [ر:۲۱۷۹]
په دې روايت کښې د اميه بن خلف د قتل واقعه ده.ددې تفصيل تيرشوې دې.

[۳۷۵۴] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ بْنُ عُثْمَانَ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْأَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَرَأَ وَالنَّجْمِ فَسَجَدَ بِهَا

---
1 )لامع الدراری (۲۵۳/۸)
2 )لامع الدراری (۲۵٤/۸)_
3 )لامع الدراری (۲۵٤/۸)_
4 )دتفصيل دپاره اوګورئ المغنى لابن قدامة (۱۷۶/۹)_

وَسَجَدَ مَنْ مَعَهُ غَيْرَ أَنَّ شَيْخًا أَخَذَ كَفًّا مِنْ تُرَابٍ فَرَفَعَهُ إِلَى جَبْهَتِهِ فَقَالَ يَكْفِينِي هَذَا قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَلَقَدْ رَأَيْتُهُ بَعْدُ قُتِلَ كَافِرًا [ر: ۱۰۱۷]

په دې روايت كښې د شيخ نه (چاچه سجده نه وه كړې او.روسته كافر مړشوې وو) مراد اميه بن خلف دې.دده قتل چونكه په بدر كښې شوې وو.په دې وجه ددې مناسبت د «باب قتل أبي جهل وغيره» سره ښكاره دې.

په دې روايت كښې د سجدې ذكردې.چه نبى ﷺ سجده اوكړه.او نورو خلقو هم سجده اوكړه.په هغوى كښې مسلمانان هم وو او كافران هم،ددې سجدې وجه څه وه.نودا په «أبواب السجود» كښې تيره شوې ده.

[۳۷۵۵، ۳۷۵۶] أَخْبَرَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ مَعْمَرٍ أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ كَانَ فِي الزُّبَيْرِ ثَلَاثُ ضَرَبَاتٍ بِالسَّيْفِ إِحْدَاهُنَّ فِي عَاتِقِهِ قَالَ إِنْ كُنْتُ لَأُدْخِلُ أَصَابِعِي فِيهَا قَالَ ضُرِبَ ثِنْتَيْنِ يَوْمَ بَدْرٍ وَوَاحِدَةً يَوْمَ الْيَرْمُوكِ قَالَ عُرْوَةُ وَقَالَ لِي عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَرْوَانَ حِينَ قُتِلَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ يَا عُرْوَةُ هَلْ تَعْرِفُ سَيْفَ الزُّبَيْرِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَمَا فِيهِ قُلْتُ فِيهِ فَلَّةٌ فُلَّهَا يَوْمَ بَدْرٍ قَالَ صَدَقْتَ بِهِنَّ فُلُولٌ مِنْ قِرَاعِ الْكَتَائِبِ ثُمَّ رَدَّهُ عَلَى عُرْوَةَ قَالَ هِشَامٌ فَأَقَمْنَاهُ بَيْنَنَا ثَلَاثَةَ آلَافٍ وَأَخَذَهُ بَعْضُنَا وَلَوَدِدْتُ أَنِّي كُنْتُ أَخَذْتُهُ حَدَّثَنَا فَرْوَةُ حَدَّثَنَا عَلِيٌّ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ سَيْفُ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ مُحَلًّى بِفِضَّةٍ قَالَ هِشَامٌ وَكَانَ سَيْفُ عُرْوَةَ مُحَلًّى بِفِضَّةٍ

[۳۷۵۶] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا لِلزُّبَيْرِ يَوْمَ الْيَرْمُوكِ أَلَا تَشُدُّ فَنَشُدَّ مَعَكَ فَقَالَ إِنِّي إِنْ شَدَدْتُ كَذَبْتُمْ فَقَالُوا لَا نَفْعَلُ فَحَمَلَ عَلَيْهِمْ حَتَّى شَقَّ صُفُوفَهُمْ فَجَاوَزَهُمْ وَمَا مَعَهُ أَحَدٌ ثُمَّ رَجَعَ مُقْبِلًا فَأَخَذُوا بِلِجَامِهِ فَضَرَبُوهُ ضَرْبَتَيْنِ عَلَى عَاتِقِهِ بَيْنَهُمَا ضَرْبَةٌ ضُرِبَهَا يَوْمَ بَدْرٍ قَالَ عُرْوَةُ كُنْتُ أُدْخِلُ أَصَابِعِي فِي تِلْكَ الضَّرَبَاتِ أَلْعَبُ وَأَنَا صَغِيرٌ قَالَ عُرْوَةُ وَكَانَ مَعَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ يَوْمَئِذٍ وَهُوَ ابْنُ عَشْرِ سِنِينَ فَحَمَلَهُ عَلَى فَرَسٍ وَوَكَّلَ بِهِ رَجُلًا [ر: ۳۵۱۶]

**دحضرت زبيررضى الله عنه په بدن كښې د تورې نښې:**

**قوله**: أَخْبَرَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ مَعْمَرٍ أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ كَانَ فِي الزُّبَيْرِ ثَلَاثُ ضَرَبَاتٍ بِالسَّيْفِ إِحْدَاهُنَّ فِي عَاتِقِهِ الخ:

**د معمر رحمه الله روايت:** دا روايت دې.«عن معمرعن هشام عن عروة» حضرت عروه د حضرت زبيربن العوام ﷺ خوې وو.فرمائى.چه د حضرت زبير ﷺ په بدن كښې درې زخمونه وو.يعنى د درې ګزارونو نښې وې.په دې كښې د يو ګزار نښه دحضرت زبير ﷺ په اوږه

كښې وه. حضرت عروه فرمائى.چه ما به خپلې ګوتې د دغه نښويه سورو كښې داخلولې.په دې كښې دوه نښې په جنګ بدركښې راغلې وې.اويوه نښه په جنګ يرموك كښې راغلې وه. حضرت عروه فرمائى.چه كله عبدالله بن زبير رضي الله عنه قتل كړې شو.نو عبدالملك بن مروان زما نه تپوس اوكړو،چه ته د حضرت زبير رضي الله عنه توره پيژنې؟ ما ورته اووئيل.آو،عبدالملك اووئيل.په هغې كښې څه نښه ده؟ ما ورته اووئيل.((فيه فلة أفلها يوم بدر)) په هغې كښې خاپونه دي.(يعنى دهغې په تيره اړخ كښې لږه غوندې حصه ماته شوې ده) اودا خاپونه په كښې د بدرپه ورځ راغلې وو.عبدالملك اووئيل.صحيح واې.((بهن فلول من قراع الكتائب)) (1) يعنى د لښكر سره د مقابلې په وجه په دې توروكښې خاپونه جوړ شوى دى. د حضرت زبير رضي الله عنه دا توره د عبدالملك سره وه.هغه بيا حضرت عروه رحمه الله ته دهغه د پلار توره واپس كړه.دعروه خوې هشام وائى.چه مونږ په خپل مينځ كښې ددغه تورې درې زره درهمه قيمت لګولې وو.اوزمونږ بعضې وارثانو دغه په دې قيمت واخستله.(2) ((ولوددت أنى كنت أخذته)) زما زړه دا غوارې.چه كاش دا ما اخستې وه.يعنى ما په هغه وخت كښې وانخستله.او اوس زه په دې خبره خفه يم.اوماته افسوس دې.چه كاش هم ما اخستې وه.

په وړاندينى روايت كښې دى.دحضرت زبير رضي الله عنه او حضرت عروه رحمه الله توره په سپينو زرو سره ښائسته كړې شوې وه.يعنى د هغې د لاسكى په لاندينى موټى باندې د سپينو زرو خول لګولې شوې وو.

**دعبدالله بن مبارك رحمه الله روايت:**

**قوله: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا هِشَامٌ:** ددې نه وړاندې د ((معمر عن هشام)) روايت وو.او دا روايت د عبدالله بن مبارك رحمه الله دې.هغه د هشام نه نقل كوى.او هشام د خپل پلار عروه نه نقل كوى.چه په جنګ يرموك كښې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم صحابو رضي الله عنهم حضرت زبير رضي الله عنه ته اووئيل.چه ته په روميانو باندې حمله ولې نه كوې؟ چه مونږ هم تاسره په حمله كښې شريك شو.نو حضرت زبير رضي الله عنه اووئيل.((إنى إن شددت كذبتم)) كه ما حمله اوكړه.نو

---

(1) دا د نابغه ذبيانى د شعر دويمه مصرعه ده.پوره شعر دا دې.

ولا عيب فيهم غير أن سيوفهم،

بهن فلول من قراع الكتائب. ،

فلول أى كلال، والقراع بكسر القاف المضاربة بالسيف، والكتائب جمع الكتيبة وهى الجيش (عمدة القارى ۹۰/۱۷) د شعر ترجمه دا ده....

ددى خلقو په (توروكښې ) ددې نه سوا بل څه عيب نشته.چه د لښكرو سره په مقابله كښې ددوى په توروكښې خاپونه جوړ شوى دى، ،

وهومن المدح فى معرض الذم لأن الفل فى السيف نقص حسى لكنه لما كان دليلاً على قوة ساعدصاحبه كان من جملة كماله (انظرفتح البارى(۷۳/۱۷)_

(2) دا توره د هشام ورور عثمان بن عروه اخستې وه.(فتح البارى(۳۰/۱۷)_

تاسوبه دروغژن ثابت شئ. مطلب دا دې چه تاسو خو وائې چه مونږ به تا سره په حمله کښې شريك شو. خو چه کله زه حمله اوکرم نو تاسو به بيا شرکت نه کوئ. صحابوﷺ اووئيل. مونږ به داسې نه کوو. نو حضرت زبير رضي الله عنه حمله اوکړه. او د روميانو صفونه ئې څيرې کول او بل طرف ته اورسيدل. ((ومامعه أحد)) او دوی سره څوك هم نه وو. حضرت زبير رضي الله عنه ووئيلی وو چه ((إني إن شددت كذبتم)) هغه خبره صحيح ثابته شوه. بيا حضرت زبير رضي الله عنه چه د روميانو د صف نه په بل طرف واپس راغلو. نو روميانو د حضرت زبير رضي الله عنه د اس واګې اونيولو.

**قوله**: فَضَرَبُوهُ ضَرْبَتَيْنِ عَلَى عَاتِقِهِ بَيْنَهُمَا ضَرْبَةٌ ضُرِبَهَا يَوْمَ بَدْرٍ: هغوی ئې په اوږه باندې دوه ګذاره اووهل. دهغه دووګذارونو په مينځ کښې يوګذار بل وو. کوم چه په جنګ بدر کښې دوی ته لګيدلې وو.

په دې جنګ کښې حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه هم دوی سره وو. دوی په دغه وخت کښې د لسو کالو وو.

**د معمراو ابن مبارک رحمهما الله په روايتونوکښې تعارض**: تاسو ته وړاندې دوه روايتونه دی. يود ((معمرعن هشام)) روايت اوبل د ((عبدالله عن هشام)) په دې دواړو روايتونوکښې په ظاهره تعارض معلوميږی. د((معمرعن هشام)) د روايت نه خو دا معلوميږی. چه د حضرت زبير رضي الله عنه په بدن کښې د توري درې نښې وې. په دغه دريو کښې دوه په بدرکښې لګيدلې وې. او يوه نښه په جنګ يرموك کښې، او د عبدالله بن مبارك رحمه الله د روايت نه معلوميږی. چه په جنګ يرموك کښې دوه زخمونه وو. او په جنګ بدر کښې يو ضرب وو. دغه شان د عبدالله بن مبارك د روايت نه معلوميږی. چه درې واړه زخمونه په اوږه کښې وو. ځکه چه په دغه روايت کښې تصريح ده. چه په اوږه کښې ديرموك د دوو زخمونوپه مينځ کښې يوزخم د بدر وو. اود معمر په روايت کښې دی. چه صرف يو ضرب په اوږه کښې وو. نوپه دواړو روايتونوکښې دوه قسمه تعارض راغلو.

① يو تعارض خو دا دې. چه د معمرد روايت نه معلوميږی. چه عاتق (اوږه) باندې يو ضرب وو. او د عبدالله بن مبارك رحمه الله د روايت نه معلوميږی. چه په عاتق باندې درې ضربونه وو.

② دويم تعرض دا دې. چه د معمر د روايت نه معلوميږی. چه په دې درې واړوکښې دوه د بدر او يو ضرب د يرموك وو. اود عبدالله بن مبارك رحمه الله د روايت نه معلوميږی. چه دوه د يرموك وو. او يو د بدر وو.

**دتعارض دحل دپاره مختلف توجيهات**: ① حافظ ابن حجر، علامه عينی او علامه قسطلانی رحمهم الله فرمائی. چه په دې دواړو روايتونوکښې اختلاف دې. اولنې روايت ((معمرعن هشام)) دې. او دويم روايت ((عبدالله بن المبارك عن هشام)) دې. او ابن مبارك ((أثبت عن معمر)) دې. دغه شان د معمرعن هشام په روايت کښې کلام هم شته. نو د عبدالله بن مبارك رحمه الله روايت ته به ترجيح وی. اودا به وئيلی شی. چه درې واړه ضربونه په عاتق وو. په دې کښې دوه د يرموك او يو د بدر وو.

② دويم جواب دې حضراتو دا ورکړې دې.چه په حقيقت کښې د حضرت زبير رضي الله عنه په بدن کښې درې نه بلکه پنځه ضربونه وو.په دې پنځو کښې درې د تورې وو.او دوه د نيزو وو.
نودمعمر په روايت کښې چه د کومو درې ضربونو ذکردې.په هغې کښې د ((بالسيف)) قيد دې.چه د تورې زخمونه درې وو. يوپه عاتق وو.او دوه په غير عاتق کښې وو.په اوږه کښې چه کوم زخم راغلې وو.هغه به بدرى منلې شى.او په غيرعاتق کښې چه د زخم کوم دوه نښې وې.په هغې کښې يو ضرب د بدر وو.اوبل د يرموك،
اود عبدالله بن مبارك رحمه الله په روايت کښې په اوږه باندې چه کوم درې ضربونه خودلې شوى دى.مينځنې بدرى خودلې شى.او هغه سيفى (يعنى د تورې گزار) وو.او کوم دوه چه يرموکى وو.هغه د نيزې وو.
نو په دې طريقه د يرموك ټول درې زخمونه وو.دوه په عاتق کښې وو.او يو په غير عاتق کښې،د عاتق دواړه زخمونه د نيزې وو.اود غيرعاتق زخم د تورې وو.اود بدر دواړه زخمونه يو په عاتق کښې او يو په غيرعاتق کښې وو.اودا دواړه د تورې وو.([1])
نوچه د زبير رضي الله عنه په بدن کښې پنځه زخمونه اومنلې شى.نود دواړو روايتونوپه مينځ کښې څه تعارض باقى نه پاتې کيږى.([2])
③ دريم جواب علامه کرمانى رحمه الله دا ورکړې دې.چه د معمر رحمه الله په روايت کښې ((احداهن فى عاتقه)) نه په عاتق کښې د يو ضرب ثبوت کيږى.اود ابن مبارك رحمه الله د رواياتو نه معلوميږى. چه درې واړه ضربونه په عاتق کښې وو.نو ددې ساده باده جواب دا دې.چه په عدد کښې د مفهوم مخالف اعتبارنه وى.نوکه د معمر رحمه الله په روايت کښې ((احداهن فى عاتقه)) دى.نوددې نه دا چرته لازميږى.چه په عاتق کښې بل ضرب نه وو.ځکه چه عدد اقل د عدد اکثر نفى نه کوى. نو د عبدالله بن مبارك رحمه الله روايت د معمر رحمه الله د روايت سره معارض نه دې.
④ علامه کرمانى رحمه الله يو جوب دا هم ورکړې دې.چه يو ضرب بيخى د اوږې په مينځ کښې

[1] )دا ددې نقشې په مدد سره زده کړه.




[2] ) حافظ ابن حجر ليکى.((فإن كان إختلافاً على هشام فرواية ابن المبارك أثبت لأن فى حديث معمر عن هشام مقالاً وإلا فيحتمل أن يكون فى غير عاتقه ضربان أيضاً فيجمع بذلك بين الخبرين (فتح البارى (٢٩٩\٧) وكذا فى عمدة القارى(٩٠\١١٧)_~.

وو.او نور دوه هم په اوږه كښې وو.خوبيخي په مينځ كښې نه وو.بلكه طرفونو ته وو.د معمر په روايت كښې د ((إحداهن فى عاتقه)) نه هغه بيخي مينځني ضرب مراد دې. ([1])
علامه كرمانى رحمه الله دا دواړه خبرې د اولنى تعارض لرې كولو دپاره كړې دى.د روايتونو په مينځ كښې د تعارض لرې كولو دپاره هغوى هم هغه جواب وركړې دې.كوم چه علامه عينى وغيره وركړې دې.([2])
**دحضرت گنګوهى رحمه الله توجيه:** خو حضرت گنګوهى ددې ټولو نه جدا خبره كړې ده. اوډيره معقوله توجيه ده.دوى فرمائى.چه د حضرت زبير رضي الله عنه په بدن كښې ټول څلور ضربونه وو.اودهغې ترتيب دا وو.يرموك،بدر،يرموك ،بدر،دوه نښې د بدر وې.او دوه د يرموك وې. كله چه راوى د حضرت زبير رضي الله عنه د جنګ بدر د بهادرئ ذكركولو.نو د جنګ بدر د دوو ضربونو ذكر ئې اوكړو.اود جنګ يرموك د يو ضرب په بيان باندې ئې اكتفاء اوكړه .اوكله چه راوى د حضرت زبير رضي الله عنه د جنګ يرموك د بهادرئ ذكركولو.نو دجنګ يرموك د دوو ضربونو ذكر ئې اوكړو.اود جنګ بدرپه يوضرب باندې ئې اكتفاء اوكړه.
دمعمر رحمه الله په روايت كښې چونكه د راوى د حضرت زبير رضي الله عنه د جنګ بدر د بهادرئ بيان مقصود وو.نو ځكه ئې په دې كښې د بدر د دوو ضربونو ذكر اوكړو.او د يرموك د يو ضرب،اود عبدالله بن مبارك په روايت كښې د راوى د حضرت زبير رضي الله عنه په جنګ يرموك كښې د بهادرئ ذكرمقصود وو.نوځكه ئې په كښې د جنګ يرموك د دوو ضربونواود جنګ بدرد يوضرب بيان اوكړو. ([3]) والله اعلم
**جنګ يرموك:** په دې روايت كښې دجنګ يرموك ذكر دې.يرموك د فلسطين سره نزدې د يوې علاقې نوم دې.بعضې وائي.چه دا د شام د يوې علاقې نوم دې.او بعضې وائى.چه يرموك د ،،اذرعات،، او ،،دمشق،، په مينځ كښې ديوځاې نوم دې.په كوم كښې چه د مسلمانانو او روميانوپه مينځ كښې تاريخى جنګ شوې وو.كوم چه په تاريخ كښې د جنګ يرموك په نوم سره مشهور دې.([4])
دابن جريرطبرى رحمه الله د بيان مطابق د جنګ يرموك دا واقعه په ۱۳ھ كښې پيښه شوې وه.اود محمدبن اسحاق په نيز دا واقعه په ۱۵ھ كښې پيښه شوې وه.دا جنګ د حضرت

---

[1] )شرح الكرمانى(۱۵\۱۶۵)_
[2] )شرح الكرمانى (۱۵\۱۶۵)_
[3] )په لامع الدرارى كښې دى.فالحاصل أن الضربات صارت أربعاً لكل يوم ضربتان غير أن ضربتى يوم اليرموك وقعتا بحيث صارت ضربة من ضربتى يوم بدر بينهما هكذا (۱ يرموك) (۱ بدر) (۱ يرموك) وكانت الضربة الثانية من ضربتى يوم بدر على طرف الضربات صورتها (۱ يرموك) (يرموك ۱) (۱ بدر) (۱ بدر) وعلى هذا فلا خلاف بين الروايات فمن روى ضربة يوم اليرموك بالإفراد فمراده منها الضربة المتوسطة بينهما لا مطلقاً ..انظرلامع الدرارى (۸\۲۵٤و ۲۵۵)_~
[4] )عمدة القارى(۱۷\۹۰)_

عمر رضي الله عنه په زمانه کښې شوې وو.د اسلامی لښکر امیر حضرت ابوعبیده بن الجراح رضي الله عنه وو.اود رومیانو د لښکر جرنیل باهان ارمنی وو.علامه عینی رحمه الله د هغه نوم ماهان ارمنی خودلې دې.(١)

په دې جنګ کښې څلور زره مسلمانان شهیدان شوی وو.اود رومیانو یولاکه پنځه زره سړی قتل شوی وو.اوڅلویښت زره بندیان شوی وو.(٢)

(١)عمدة القاری(١٧\٩٠)_

(٢)جنګ یرموك د تاریخ اسلام په عظیم جنګونوکښې دې.په دې جنګ کښې د شکست نه پس رومیان بیا جنګ ته نه دی سم شوی.کله چه د اسلام لښکر نه بندیدونکې سیلاب د جزیره عرب نه اووتل اود قیصر او کسری طرف ته ئې مخ کړل.اودمشق ،حمص اود شام سره نزدې علاقوکښې ئې رومیانو ته شکست ورکړو.نو رومیان د دې علاقونه اووتل.اوپه دارالخلافه انطاکیه کښې جمع شول.اوهرقل ته ئې فریاد اوکړو.چه عربوټول شام باندې قبضه اوکړه.هرقل ترې تپوس اوکړو.عرب ستاسو نه په قوت کښې په شمار کښې او سازوسامان کښې کم دی.بیا تاسو ولې دهغوی په مقابله کښې نشې ټینګیدې.نو یو تجربه کار بوډا ورته جواب ورکړو.اودا وجې ئې ورته بیان کړه،،

دعربو اخلاق زمونږ نه ښه دی.هغوی د شپې عبادت کوی.او د ورځې روژې نیسی.ظلم نه کوی.اود یوبل سره د برابرئ سلوك کوی.زمونږ حال دا دې.چه مونږ شراب څکو.زناګانې کوو.د اصولو پابندی نه کوو.او ظلم کوو.ددې اثر دا دې.چه د هغوی په کار کښې جذبه او استقامت دې.او زمونږ هرکار ددې نه خالی دې.،،

"قیصر ته چه هرکله د هرښارنه عیسایان فریادی راتلل شروع شول.نو قیصر ډیر په جوش او جذبه کښې راغلو.اوخپل پوره طاقت ئې د عربوپه مقابله کښې خرچ کولو ته تیارشو.نود سلطنت ټولو طرفونو.قسطنطنې،جزیره ،آرمینې، وغیره ته ئې حکمونه اولیږل.چه ټول فوځ په انطاکیه کښې جمع شی.ددې احکاموپه تعمیل کښې د فوځونوطوفان راغونډ شو.د انطاکیه څلورو طرفونوته د سترګوپه نظرد فوځونولښکرلګه د ملخانو خور شو.د بحر اوبرنه د راتلونکی فوځیانود جذبې دا حالت وو. چه فوځ به په کومه لاره باندې تلل،نو راهبان اود ګرجو عبادت ګذاربه راوتل.او فوځ سره به شاملیدل.

"د رومیانود فوځ جمع کیدو خبر چه کله مسلمانانو ته ملاو شو.نود اسلامی فوځ جرنیل حضرت ابوعبیده بن الجراح رضي الله عنه په دغه وخت کښې حمص کښې وو.دمسلمانانو په مشوره د هغه ځای نه روان شو.اوګیرچاپیره خور وور اسلامی لښکرئې.یرموك ته راجمع کړل.اودربارخلافت ته ئې د صورت حال نه خبرولوپاره خبر اولیږلو.حضرت عمر رضي الله عنه مهاجرین او انصار راجمع کړل. او صورت حال ئې ورته اوخودل.اومشوره اوشوه.چه یو زر نور امدادی فوځونه دې اولیږلی شی.او ورسره ئې د حضرت ابوعبیده رضي الله عنه په نوم یو پرتاثیرخط هم اولیکلو.اوقاصد ته ئې اوونیل.چه خط ورته واوره.او زبانی ورته دا پیغام ورکړه.

*العمر یقرئک السلام ویقول لکم یا أهل الإسلام أصدقوا اللقاء وشدوا علیهم شداللیوث، ولیکونوا أهون علیکم من الذر،فإنا قد کنا علمنا إنکم علهیم منصورون،

"د رومیانو په دوه لاکهه فوځ باندې مشتمل لښکرراغلو.اویرموك ته مخامخ ،،دیرالجبل،، کښې دیره شول.د اسلامی لښکرتعداد د ٣٠ نه تر٣٥ زرو پورې وو.اوس دواړه فوځونه یوبل ته مخامخ وو.چه صبا شو.نو رومیان داسې په جوش اوجذبې سره راووتل.چه مسلمانان حیران شول.خالد بن ولید رضي الله عنه چاچه په جنګ امورو کښې غیرمعمولی صلاحیت لرلو.اسلامی لښکرپه ٣٦ حصو باندې تقسیم کړل.اوپه هره یو حصه باندې ئې بهادر، اودجنګ په امورو کښې چه ښه مهارت لرلو.جرنیل مقرر کړلو.په اسلامی لښکرکښې یو زر صحابه کرام رضي الله عنهم وو..... [بقیه حاشیه په بل مخ.....

چونکه دحضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه سره د حضرت زبير رضي الله عنه زيات محبت وو.ددې وجې به حضرت زبير رضي الله عنه دې خان سره جنګ ته هم بوتلو.په جنګ يرموك كښې د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه (چه عمرئې د يوقول مطابق لس كاله اودبل قول مطابق دولس كاله وو.او د دولسو كالو قول صحيح دې.په حديث كښې چه ئې لس كاله كوم وئيلى دى. نو دا ئې كسورحذف كړى دى.اووئيلې ئې دى) دحضرت زبير رضي الله عنه سره وو.دوى به ئې په اس باندې سور كړې وو. حضرت زبير رضي الله عنه چه به كله دحملې كولودپاره تلل.نوچونكه په حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه كښې د ماشوموالى نه د بهادرئ آثار ښكاريدل.ددې وجې هغوى يوسړې (چه نوم ئې معلوم نشو) مقرركړو.چه هغه حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه په قابو كښې ساتى. ځكه چه حضرت زبير رضي الله عنه سره ويره وه.چه دې چرته د جنګ كولودپاره مجاهدينوسره په جنګ كښې شريك نشى.د دوى د كم عمرئ د وجې حضرت زبير رضي الله عنه دا نه غوښتل.چه دوى په جنګ كښې شريك شى.خودعبدالله بن مبارك رحمه الله بيان دې.چه ددې باوجود حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه به د اس نه راكوزيدو.اوپه ميدان جنګ به ئې زخمى كافران قتلول.(۱)

---

....دتيرمخ بقيه حاشيه] يو سل هغه حضرات وو.چاته چه په جنګ بدر كښې دشركت سعادت حاصل شوې وو.بل طرف ته د روميانود د جوش دا حالت وو.چه ديرش زره كسانو به پښيوكښې بيړئ اچولې وې.اود واپس كيدو خيال ورته هم نه راتلل.د جنګ ابتداء د روميانو د طرفه اوشوه.او دوه لاكه لښكرسره راوراندې شول.مسلمانان ډيروخته پورې ثابت قدم وو.خو حمله دومره زوراوره وه.چه د مسلمانانو ميمنه ماته شوه.اود فوځ نه جدا شوه.او مسلمانان په واپس تلوتلو د ښځو خيموته اورسيدل.مسلمانانوښځوچه دا اوليدل.نوډيره غصه ورته ورغله.اود خيموموګى ئې راوويستل. او چغې ئې كړې.نامرادو كه په دې طرف راغلئ.نوپه دې لرګو به ستاسو سرونه مات كړو.چه دا ئې واوريدل.نو د ميمنه سپه سالارحضرت معاذبن جبل رضي الله عنه د اس نه راكوز شو.اوبيدل ئې حمله شروع كړه.دهغوى خوئ هم ورسره وو.اوداسې زبردسته حمله ئې اوكړله.چه دمسلمانانو خويدلى قدمونه بيا مضبوط شول.،،

«خالدفوځ روسته ايساركړې وو.ناڅاپه ئې صفونه مات كړل.اوداسې زورروره حمله ئې اوكړه.چه د روميانو صفونه تريتر(اخوا ديخوا) شول.دابوجهل خوئ حضرت عكرمه رضي الله عنه اووئيل.په مرګ به خوك بيعت اوكړى.څلور سوه مجاهدينو ورسره په مرګ باندې بيعت اوكړو.اوداسې په ثابت قدمئ سره اوجنګيدل.چه په زرګونو روميان ئې قتل كړل.اوخپله هم ټول شهيدان شول.،،

«د جنګ دواړو طرفونه تراوسه پورې برابر وو.چه ناڅاپه د قيس بن هبيره رضي الله عنه كوم چه حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه د فوځ ديوې حصې سره د ميسرې شا ته متعين كړې وو.د شا نه راووتل .اوداسې حمله ئې اوكړه.چه رومى لښكرپه تيښته مجبوره شو.چه دجنګ نه پس اوكتلې شو.نو روميانو يولاكه پنځه زره لاشونه پريخودى وو.او تښتيدلى وو.اوځلويښت زره ژوندې بنديوان كړې شول.چه دربارخلافت ته ددې عظيم الشان فتحې خبر اورسيدل.نوحضرت عمر رضي الله عنه چه دا خبر واوريدو.په سجده پريوتلو.،، دصحيح روايت مطابق دجنګ يرموك دا واقعه په رجب ۱۵ھ كښې پيښه شوې وه.(تاريخ طبرى ۳۰) والله اعلم)~

(۱)عبدالله بن زبيريكنى أبا بكر الأسدى القرشى.كناه النبى صلى الله عليه وسلم بكنية جده لأمه أبى بكرالصديق وسماه بإسمه وهو أول مولود ولد فى الإسلام للمهاجرين بالمدينة أول سنة من الهجرة أذن أبوبكر فى أذنه وولدته أمه أسماء (بقباء) وأتته به إلى النبى صلى الله عليه وسلم فوضعته فى حجره فدعا بتمرة...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

**ترجمة الباب سره مطابقت:** دترجمة الباب سره به ددې روايت مطابقت هم په داسې صورت كښې وى. چه دعلامه عينى رحمه الله بيان كړې شوې د ((وغيره)) لفظ ورسره په ترجمه كښې ملحوظ اوساتلې شى.او ((وغيره)) كښې ضمير دابوجهل طرف ته نه بلكه قتل طرف ته راجع كړې شى.يعنى په دې باب كښې به د ابوجهل د قتل واقعه هم ذكركيږى.اودقتل ابوجهل نه علاوه د نورو واقعاتو ذكربه په كښې هم راځى.

چونكه په دې روايت كښې د حضرت زبير رضى الله عنه په بدن كښې د بدر په ورځ د زخم راتلو ذكردې.نو ددې وجې د ((باب قتل أبى جهل وغيره)) سره مناسبت ښكاره دې.

[٣٧٥٧] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ سَمِعَ رَوْحَ بْنَ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ ذَكَرَ لَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ يَوْمَ بَدْرٍ بِأَرْبَعَةٍ وَعِشْرِينَ رَجُلًا مِنْ صَنَادِيدِ قُرَيْشٍ فَقُذِفُوا فِي طَوِيٍّ مِنْ أَطْوَاءِ بَدْرٍ خَبِيثٍ مُخْبِثٍ وَكَانَ إِذَا ظَهَرَ عَلَى قَوْمٍ أَقَامَ بِالْعَرْصَةِ ثَلَاثَ لَيَالٍ فَلَمَّا كَانَ بِبَدْرٍ الْيَوْمَ الثَّالِثَ أَمَرَ بِرَاحِلَتِهِ فَشُدَّ عَلَيْهَا رَحْلُهَا ثُمَّ مَشَى وَاتَّبَعَهُ أَصْحَابُهُ وَقَالُوا مَا نُرَى يَنْطَلِقُ إِلَّا لِبَعْضِ حَاجَتِهِ حَتَّى قَامَ عَلَى شَفَةِ الرَّكِيِّ فَجَعَلَ يُنَادِيهِمْ بِأَسْمَائِهِمْ وَأَسْمَاءِ آبَائِهِمْ يَا فُلَانُ بْنَ فُلَانٍ وَيَا فُلَانُ بْنَ فُلَانٍ أَيَسُرُّكُمْ أَنَّكُمْ أَطَعْتُمُ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّا قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدْتُمْ مَا وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا قَالَ فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا تُكَلِّمُ مِنْ أَجْسَادٍ لَا أَرْوَاحَ لَهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ قَالَ قَتَادَةُ أَحْيَاهُمُ اللَّهُ حَتَّى أَسْمَعَهُمْ قَوْلَهُ تَوْبِيخًا وَتَصْغِيرًا وَنَقِيمَةً وَحَسْرَةً وَنَدَمًا [ر: ٢٩٠٠]

په دې روايت كښې د جنګ بدر په اختتام باندې د كفارقريش د سردارانو په كوهى كښې د غورځولو واقعه بيان شوې ده،چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د صناديد قريشو په كوهى كښې د غورځولو حكم اوكړو.صناديد جمع د صنديد دى.سردار ته وائى.نبى صلى الله عليه وسلم هغه كوهى ته لاړل.اوهغوى ته ئې خطاب اوكړو.نو د حضرت عمر رضى الله عنه شك پيدا شو.او هغوى تپوس اوكړو. ((ماتكلم من أجساد لا أرواح لها؟)) نو نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.((والذى نفس محمد بيده ما أنتم بأسمع لما أقول منهم)) حضرت قتاده رحمه الله فرمائى.چه الله تعالى دغه كافران د نبى صلى الله عليه وسلم د خبرو اوريدو دپاره ژوندى كړل.

.....دتيرمخ بقيه] فمضغها ثم تفل فى فيه، وحنكه فكان أول شئ دخل فى جوفه ريق رسول الله صلى الله عليه وسلم ثم دعا له وبرك عليه وكان أطلس لا شعرله فى وجهه ولا لحيته وكان كثيرالصيام والصلاة .. ذا أنفة شدد البأس قابلاً للحق وصولاً للرحم. إجتمع له مالم يجتمع لغيره،أبوه حوارى رسول الله صلى الله عليه وسلم أمه أسماءبنت الصديق وجدته صفية عمة رسول الله صلى الله عليه وسلم وخالته عائشةرضى الله عنها زوج انبى صلى الله عليه وسلم وبايع رسول الله صلى الله عليه وسلم وهو ابن ثمانى سنين قتله حجاج بمكة وصلبه يوم الثلثاء لسبع عشرة خلت من جمادى الأخرة سنة ثلاث وسبعين وكان بويع له بالخلافة سنة أربع وستين و روى عنه خلق كثير (انظرالإكمال فى أسماء الرجال لصاحب المشكاة،٢٦٨)_

[۳۷۵۸] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَةَ اللَّهِ كُفْرًا قَالَ هُمْ وَاللَّهِ كُفَّارُ قُرَيْشٍ قَالَ عَمْرٌو هُمْ قُرَيْشٌ وَمُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَةُ اللَّهِ وَأَحَلُّوا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ قَالَ النَّارَ يَوْمَ بَدْرٍ [ر: ۴۴۲۳]

دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت دې.دوى فرمائي.چه د ﴿الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَةَ اللهِ كُفْرًا﴾ مصداق قريش دى.چا چه د الله د رسول چه د الله تعالى لوئ نعمت او رحمت وو.دهغه اطاعت اونكړو. اوخپل قوم ئې دارالبوار يعنى په هلاكت كنبې اوغورځول.

[۳۷۵۹] حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ ذُكِرَ عِنْدَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَفَعَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْمَيِّتَ يُعَذَّبُ فِي قَبْرِهِ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عليه فَقَالَتْ وَهَلَ إِنَّمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهُ لَيُعَذَّبُ بِخَطِيئَتِهِ وَذَنْبِهِ وَإِنَّ أَهْلَهُ لَيَبْكُونَ عَلَيْهِ الْآنَ قَالَتْ وَذَاكَ مِثْلُ قَوْلِهِ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْقَلِيبِ وَفِيهِ قَتْلَى بَدْرٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَقَالَ لَهُمْ مَا قَالَ إِنَّهُمْ لَيَسْمَعُونَ مَا أَقُولُ إِنَّمَا قَالَ إِنَّهُمُ الْآنَ لَيَعْلَمُونَ أَنَّ مَا كُنْتُ أَقُولُ لَهُمْ حَقٌّ ثُمَّ قَرَأَتْ إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَى وَمَا أَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَنْ فِي الْقُبُورِ يَقُولُ حِينَ تَبَوَّءُوا مَقَاعِدَهُمْ مِنَ النَّارِ [ر: ۱۳۰۵]

[۳۷۶۰] حَدَّثَنِي عُثْمَانُ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ وَقَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَلِيبِ بَدْرٍ فَقَالَ هَلْ وَجَدْتُمْ مَا وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا ثُمَّ قَالَ إِنَّهُمُ الْآنَ يَسْمَعُونَ مَا أَقُولُ فَذُكِرَ لِعَائِشَةَ فَقَالَتْ إِنَّمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهُمُ الْآنَ لَيَعْلَمُونَ أَنَّ الَّذِي كُنْتُ أَقُولُ لَهُمْ هُوَ الْحَقُّ ثُمَّ قَرَأَتْ إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَى حَتَّى قَرَأَتِ الْآيَةَ [ر: ۱۳۰۴]

حضرت هشام دخپل پلار عروه نه روايت كوى.فرمائي.چه د حضرت عائشې رضي الله عنها وړاندې ددې خبرې ذكر اوشو.چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نبى ﷺ ته نسبت كوى.او دا حديث بيانوى. چه «إن الميت ليعذب فى قبره ببكاء أهله» چه مړى ته په قبر كنبې دده د كور دخلقو په ژړا باندې عذاب وركولې شى.نوحضرت عائشې رضي الله عنها اوفرمائل.

**قوله:** إِنَّمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهُ لَيُعَذَّبُ بِخَطِيئَتِهِ وَذَنْبِهِ وَإِنَّ أَهْلَهُ لَيَبْكُونَ عَلَيْهِ الْآنَ: يعنى نبى كريم ﷺ خودا فرمائيلى دى.چه هلته مړى ته دده د خطاء او ګناه په وجه عذاب وركولې شى.او بل طرف ته دكور خلق په هغې پسې ژاړى.

بيا حضرت عائشې رضي الله عنها اوفرمائيل.چه د ابن عمر رضي الله عنهما قول هم داسې دې.لكه څنګه چه د هغوى قول دې.چه نبى ﷺ د بدر په ورځ د «اهل قليب» په باره كنبې فرمائيلى وو.چه «إنهم ليسمعون ما أقول» حالانكه نبى ﷺ دا نه دى فرمائيلې.بلكله «إنهم الآن ليعلمون أن ما كنت أقول لهم حق» ئې فرمائيلى وو.بيا حضرت عائشې رضي الله عنها دا آيت اولسوتلو. ﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾

دلته ډوه مسئلې دى.يوه مسئله د سماع موتى ده.او دويمه مسئله دمړى ته د هغه د كور د خلقوپه ژړا باندې د عذاب وركولو د.اوپه دواړو مسئلوكښې يوه رائې دحضرت عائشې رضي الله عنها ده.او يوه رائې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ده.او په دواړو مسئلوكښې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت صريحه صحيحه مرفوعه منقول دې.دكوم نه چه حضرت عائشه رضي الله عنها انكار كوى.

**مسئله د سماع موتى:** اولنۍ مسئله دا وه.چه نبى ﷺ قليب بدر ته تشريف يوړو.او «إنهم الآن يسمعون ما أقول لهم» ئې اوفرمائل.حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د «ليسمعون» لفظ نقل كړې دې.او حضرت عائشه رضي الله عنها ته چه ددې ذكر اوشو.نوهغوى اوفرمائيل.نبى ﷺ د«ليسمعون» لفظ نه دې فرمائيلې.بلكه«ليعلمون» ئې فرمائيلى دى.حضرت عائشه رضي الله عنها دسماع نفى كوى.اوعلم ثابتوى. ددوى دليل دا دې.چه په قرآن مجيد كښې ﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾ (1) وارد دى.او په يو آيت كښې دى.﴿وَمَا أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِي الْقُبُورِ﴾ (2) په دې دواړو آياتونو كښې د سماع موتى نفى ده. نو د ابن عمر رضي الله عنهما په روايت كښې د «منهم الآن يسمعون» څنګه ټيك كيدې شى.

دحضرت عائشې اوحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهم اختلاف په دې مسئله كښې راغلو .دواړو ته شرف صحابيت حاصل دې.نو كه روستنى خلق په دې مسئله كښې اختلاف كوى.نو څه بده خبره نه ده.كوم كسان چه د سماع موتى قائل دى.هغوى د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په روايت سره استدلال كى.نو د دوى د ملامته كولو څه ګنجائش نشته.اوكوم خلق چه ددې نه انكار كوى.نو هغوى د حضرت عائشې رضي الله عنها په روايت باندې استدلال كوى.په هغوى باندې هم دڅه ملامتيا ګنجائش نشته.

خو يوه خبره ياد ساتئ:چه په سماع موتى كښې چه كوم اختلاف دې.دا د انبياء علهيم السلام په سماع كښې نه دې.د حضرات انبياء عليهم السلام سماع په اتفاق سره او په اجماع سره ثابته ده.البته د نورو مړو په باره كښې اختلاف دې.

**سماع موتى د قائلينو دلائل:** ① دوى خو يو د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په ذكر شوى روايت باندې استدلال كوى.يعنى په قليب بدركښې د نبى ﷺ مړو ته خطاب كول اودهغوى دسماع تصريح.

② دويم دوى په هغه رواياتو باندې استدلال كوى.په كوموكښې چه مقبرې ته د تلو په وخت كښې د«السلام عليكم يا أهل القبور» تصريح ده.(3)

③ دغه شان د حضرت انس رضي الله عنه روايت دې.چه نبى ﷺ فرمائيلى دى.كله چه مړې په قبر كښې كيخودې شى.اوخلق واپس لاړ شى.نو «إنه يسمع قرع نعالهم» نو هغه مړې د دوى د پيزار آواز اورى.(4)

---

(1) سورة النمل:۸۰_
(2) سورة فاطر:۲۲_
(3) الحديث أخرجه الترمذى فى كتاب الجنائز باب ما يقول الرجل إذا دخل المقابر رقم ۱۰۵۳)_
(4) الحديث أخرجه البخارى فى كتاب الجنائز باب الميت يسمع خفق النعال (۱۷۸۱)_

④ د مړو دپاره د علم ثبوت خو متفق عليه دې.لکه څنګه چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.چه نبی ﷺ ((انهم ليعلمون)) فرمائيلی وو.دا حضرات وائی.چه که په يو مړی کښې دا صلاحيت وی.چه هغه علم لری.نوکه د هغه دپاره سماع هم ثابته شی.نوڅه اشکال دې؟ دعلم د صلاحيت د ثبوت نه پس د سماع د صلاحيت په ثبوت کښې څه استبعاد دې؟

**د قائلين سماع موتی د طرفه د ايت قرانی توجيهات:** ① د آيت ﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾ او ﴿وَمَا أَنتَ بِمُسْمِعٍ مَّن فِي الْقُبُورِ﴾ په باره کښې دا حضرات فرمائی.چه په دې دواړو آياتونو کښې د سماع نه نفی نه ده.د اسماع نفی ده.اودا ښيخی بديهی او ښکاره ده.چه په دواړو آياتونو صيغو کښې دباب افعال صيغې دی.نويقيناً په دې کښې به نفی د اسماع وی.د سماع به نه وی.[1]

② حضرت شاه انورشاه کشميری رحمه الله په فيض البارى کښې فرمائی.چه په آيت کښې د هغه سماع نفی ده.چه د هغې په جواب کښې مړې هم څه اووائی.د مطلق سماع نفی نه ده.بلکه د ،، خاص قسم سماع نفی ده.

③ حضرت شاه صاحب يوه توجيه د حضرت علامه سيوطی رحمه الله په حوالې هم نقل کړې ده.چه په دې دواړو آياتونوکښې دا خودلې شوې ده.چه ته دې کافرانوته د مړو پشان اورول اوکړې خو څه هدايت نشې کولې.لکه څنګه چه مړوته اورول اوشی.خوپه دې اورولو سره هغوی نيغې لارې ته نشی راتلې.نودغه شان دا کافران هم نه په هدايت کيږی.نوپه دې آيت کښې د سماع نفی نه ده.بلکه د انتفاع باسماع نفی ده.[2]

**په دې اجتهادی مسئلې کښې غلو صحيح نه ده:** بهرحال دا مسئله اجتهادی ده.اوپه صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې په دې مسئله باندې اختلاف موجوددې.نوکوم خلق چه د سماع موتی قائل نه دی.د هغوی په باره کښې دا وئيل چه دوی د اهل سنت والجماعت نه خارج دی.يا کوم خلق چه د سماع موتی قائل دی.هغوی د اهل سنت والجماعت نه خارج ګڼړل دا غلو او زياتې دې.[3]

---

[1] )اوداسماع نفی د سماع نفی لره مستلزم نه ده، او په آيت کښې ،،ته اورول نشی کولې،د دې نه دا نه لازميږی.چه هغوی اوريدل هم نشی کولې.دغه شان په قرآن په آيت کښې دی.چه ((إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ )) يعنی ته چه چاته غواړې هدايت نشې کولې.ددې نه دا نه لازميږی.چه څوک د هدآيت ادراک هم نشی کولې.

[2] )فيض البارى(۴۶۸/۲)_

[3] )د مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله نه تپوس اوشو.چه اهل قبور اوری که نه،دوی ورته جواب ورکړو.دواړو طرفونو ته اکابرين او دلائل دی.د داسې اختلافی مسئلې حل څوک راوستې شی.اود علمی او عملی ضروورياتوځنې هم نه ده.چه د يوطرف ترجيح کښې تدقيق اوکړې شی.امداد الفتاوی (۳۷۹/۵) په يو بل ځاې کښې فرمائی.دا مسئله نه د عقائد ضروريه سره تعلق ساتی.اونه د دين څه عمل په دې باندې موقوف دې.اونه د يو طرف جزم ضروری دې.په دې کښې د اشتغال ما لايعنی اهتمام دې (امدادالفتاوی(۴۳۷/۵)_

**دعلماء ديوبند رحمهم الله مسلك:** د انبياء عليهم السلام د حيات په باره كښې د علماء ديوبند مسلك دا دې.چه انبياء عليهم السلام په خپلو قبرونوكښې د جسد عنصرى سره ژوندى دى. دا عقيده نه يواځې د علماء ديوبند ده.بلكه د ټول امت ده.حضرت مولانا خليل احمد سهارنپورى رحمه الله په «المهند على المفند» كښې ليكلى دى.«عندنا وعند مشائخنا حضرة الرسالة ﷺ حى فى قبره الشريف وحياته ﷺ دنيوية من غير تكليف وهى مختصة به ﷺ وبجميع الأنبياء صلوات الله عليهم والشهداء لابرزخية كما هى حاصلة لسائر المسلمين بل لجميع الناس»([1])

زمونږ او زمونږ د مشائخو په نيز نبى ﷺ په خپل قبر مبارك كښې ژوندې وې، اود دوى ژوند د دنيوى ژوند پشان دې.البته دا چه هغوى د احكامو مكلف نه دى.اودا حيات نبى كريم ﷺ اوټولو انبياوء او شهداء سره خاص دې.برزخى نه دې.كوم چه ټولو مسلمانانو بلكه ټولو خلقو ته حاصل دې.

تركومې پورې چه د عام سماع موتى تعلق دې.نو په دې كښې دواړو طرفونو ته د اكابرينو دلائل دى.البته معتدله خبره دا معلوميږى.چه په كومو مواقعوكښې په رواياتو صحيحو سره اوريدل ثابت دى.هلته په اوريدو باندې عقيده ساتل پكار دى.او په كوم ځاى كښې چه ثابت نه دى.هلته دواړه احتماله شته.ځكه نه د قطعى اثبات گنجائش شته.اونه د قطعى نفى([2])

**دويمه مسئله :**

**قوله:** إِنَّ الْمَيِّتَ يُعَذَّبُ فِي قَبْرِهِ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عليه: دا روايت د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې.خو دحضرت عمر رضي الله عنه نه دا هم منقول دى.چه كله دحضرت عمر رضي الله عنه آخرى وخت شونوصهيب رومى دوى ته راغلو.اوپه ژړاشو،حضرت عمر رضي الله عنه صهيب ته تنبيه وركړه.او وې فرمائيل.تاته معلومه نه ده.چه نبى ﷺ فرمائيلى دى.«إِنَّ الْمَيِّتَ يُعَذَّبُ فِي قَبْرِهِ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عليه»([3])

دغه شان د نورو صحابو رضي الله عنهم نه هم دا روايت منقول دې.خود ام المومنين حضرت عائشې رضي الله عنها مذهب ددې روايت د ظاهره نه خلاف دې.هغوى فرمائى.چه دا روايت د قرآن شريف د آيت ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرَىٰ﴾ او﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ نه خلاف دې.ځكه چه ددې دواړو آياتونو نه معلوميږى.چه هرانسان ته به هغه څه ملاويږى.څه چه ده كړى وى.اود يو انسان بوج به په بل نشى اچولى.نو بيا د كور د خلقوپه ژړا سره مړى ته څنګه عذاب ملاويدې شى؟ نو د حضرت عمر رضي الله عنه دا حديث چه كله حضرت عائشې رضي الله عنها ته اورسيدو.نو هغې اوفرمائيل.«رحم الله عمر رضي الله عنه والله ما حدث رسول الله ﷺ إن الله ليعذب المؤمن ببكاء أهله عليه ولكن رسول الله ﷺ قال إن الله ليزيد الكافر عذابا ببكاء أهله عليه» ([4])

---

[1] )المهند على المفند (ص،٣٨)_

[2] )معارف القرآن مولانا مفتى محمد شفيع صاحب (٦٠٤/٦)_

[3] )فلما أصيب عمر رضي الله عنه دخل صهيب يبكى يقول واأخاه واصاحباه وقال عمر رضي الله عنه يا صهيب أتبكى على وقد قال رسول الله ﷺ إن الميت ليعذب ببعض بكاء أهله عليه أخرجه البخارى فى كتاب الجنائز. رقم ١٢٨٧)

[4] )أخرجه البخارى فى كتاب الجنائز رقم ١٢٨٨)_

دا د بخاري د كتاب الجنائز روايت دې.او د بخاري په كتاب المغازي كښې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما روايت په باره كښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي.«إنما قال رسول الله ﷺ إنه ليعذب بخطيئته وذنبه وإن أهله ليبكون عليه الآن»

نوحضرت عائشې رضي الله عنها چه دا روايت واوريدو.نو دوه خبرې ئې بيان كړې.

① يوه دا چه «إن الميت ليعذب ببكاء أهله عليه» د كافر په باره كښې دې.د مومن په باره كښې نه دې.مومن ته به د اهل د ژړا په وجه عذاب نه وى.

② اودويمه خبره ئې دا اوكړه.چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى.چه سړى ته دخپلې غلطئ اوګناه په وجه عذاب وركولې شى.كومه ګناه چه ده په خپل ژوند كښې كړې وه.اوددې د كور خلق اوس ژاړى.(نو د كور دخلقو په ژړا هغه ته پكارده چه عذاب نه ملاويږى)

**وجوه تطبيق:** علامه خطابى رحمه الله دا توجيه كړې ده.چه په «ببكاء أهله عليه» كښې ،،باء،، حاليه ده.او مطلب دا دې.«إن الميت ليعذب في حالة بكاء أهله عليه» يعنى دلته د كور خلق په هغې پسې ژاړى.او هلته مړى ته دهغه د بداعمالوپه وجه عذاب وركولې شى.دوى هم په مصيبت كښې اخته او هغه هم په مصيبت كښې بنديوان [1]

② داحنافو رحمهم الله مسلك لكه څنګه چه در مختار نقل كړې دې.اود اكثرو شوافعو مسلك دا دې.چه مړى ته د اهل د ژړا په وجه عذاب په هغه وخت كښې وركولې شي.كله چه مړى خپل اهل ته د ژړا وصيت كړې وى.زما په مرګ به تاسو ما پسې ژړا كوئ) [2] كه ده وصيت نه وى كړې.او د كور خلق ژړا كوى.نود دوى په ژړا باندې مړى ته عذاب نه ملاويږى.

③ بعضې حضراتو دا هم وئيلى دى.چه د كور دخلقو په ژړا باندې مړى ته دا عذاب په هغه وخت كښې وركولې شى.چه مړكيدونكى ته دا علم وى.چه د كور د خلقو طريقه اوعادت دا دې.چه مړى پسې ژړا كوى.او ددې باوجود ده د كور خلق د ژړا كولو نه منع نكړل.نو چونكه ده دكور خلق نه دى منع كړى.ددې وجې ده ته عذاب وركولې شى.

④ يوه توجيه دا هم شوې ده.چه «إن الميت ليعذب ببكاء أهله عليه» دا د عالم برزخ په باره كښې دې.اود قرآن شريف آيت ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ د آخرت په باره كښې دې.نو په دواړو كښې څه تعارض نشته.دا توجيه علامه كرمانى رحمه الله كړې ده.

⑤ حافظ ابن حجر رحمه الله ددې يوه بله توجيه كړې ده.هغه دا چه په زمانه د جاهليت كښې به خلقو ډاكې وهلې.قتلونه به ئې كول.اوددې پشان نور حرام كارونه به ئې كول.كله چه به څوك مړ شو.نو د كور خلقو به دهغه د بهادرئ،دهغه د قتل ،اوپه جنګونو كښې دلوټ مار

---

[1] )حكاه الخطابى ولا يخفى ما فيه من التكلف (فتح البارى( ۳\۱٥٤)_

[2] )اودا ددې وجې چه په زمانه د جاهليت كښې به كله څوك مړ كيدلو.نو د مرګ په وخت كښې به هغه د كور خلقو ته د ژړا كولو وصيت اوتاكيد كولو.مشهورشاعر د طرفه شعر دې.،

إذا مت فانعيني بما أنا أهله وشقي على الجيب يا إبنة معبد)_

ذکرېه ژړا کښې کولو.نو «إن المیت لیعذب ببکاء أهله علیه» مطلب دا دې.چه دا د کور خلق د مړی کومې کارنامې یادوی.او ژړا کوی.هم ددې کارونو په وجه ده ته عذاب ملاویږی.[1] بهرحال دا مختلف توجیهات شوی دی.

**قوله**: قال قتادة أحیاهم الله ثم أسمعهم قولهم: د حضرت ابوطلحه د روایت په آخرکښې د قتاده رحمه الله دا قول منقول دې.چه اهل قلیب ته الله تعالی د نبی کریم ﷺ د خطبې اوریدو دپاره ژوندی کړی وو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه قتاده رحمه الله په خپل دې قول سره د هغه کسانو رد کوی.څوک چه د سماع موتی نه انکار کوی.ځکه چه قتاده رحمه الله د سماع موتی قائل وو.[2]

خو حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی.چه قتاده رضی الله عنه د سماع موتی قائل نه وو.بلکه هغه د حضرت عائشې رضی الله عنها هم خیال وو.ددې وجې هغوی «أحیاهم الله» اووئیل.اوتاویل ئې اوکړل. که حضرت قتاده رحمه الله د سماع موتی قائل وو.لکه څنګه چه حافظ رحمه الله ګنړلې دی.نوبیا به «أحیاهم الله حتی أسمعهم» دتاویل څه ضرورت وو.[3]

## ۹=باب فضل من شهد بدرًا

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلی دی.چه د امام بخاری رحمه الله مقصد ددې باب نه د اهل بدر مطلق فضیلت بیانول نه دی.بلکه د افضیلت بیانول مقصود دی.یعنی دا بیانول مقصودنه دی. چه اهل بدر صاحب الفضل وو.بلکه دا بیانول مقصود دی.چه اهل بدر په ټولو صحابو رضی الله عنهم کښې افضل وو.[4]

[۳۷٦۱] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ أُصِيبَ حَارِثَةُ يَوْمَ بَدْرٍ وَهُوَ غُلَامٌ فَجَاءَتْ أُمُّهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ عَرَفْتَ مَنْزِلَةَ حَارِثَةَ مِنِّي فَإِنْ يَكُنْ فِي الْجَنَّةِ أَصْبِرْ وَأَحْتَسِبْ وَإِنْ تَكُ الْأُخْرَى تَرَى مَا أَصْنَعُ فَقَالَ وَيْحَكِ أَوَهَبِلْتِ أَوَجَنَّةٌ وَاحِدَةٌ هِيَ إِنَّهَا جِنَانٌ كَثِيرَةٌ وَإِنَّهُ فِي جَنَّةِ الْفِرْدَوْسِ [ر:۲٦٥۳]

---

[1] )ددې ټولو توجیهاتو دپاره اوګورئ فتح الباری (۳/۱٥٤او ۱٥٥او ۱٥٦) حافظ ابن حجر رحمه الله ددې توجیهاتوپه تفصیل سره د ذکر کولو نه پس لیکی.((ویحتمل أن یجمع بین هذه التوجیهات فینزل علی إختلاف الأشخاص بأن یقال مثلاً من کانت طریقته النوح فمشی أهله علی طریقته أوبالغ فأوصاهم بذلک عذب بصنعه ومنا کان ظالماً فندب بأفعاله الجائرة عذب بما ندب به ومن کان یعرف من أهله النیاحة فأهمل نهیهم عنها .. عذب بالتوبیخ کیف أهمل النهی (وانظرفتح الباری ۳/۱٥٥)_~

[2] )فتح الباری (۷/۳۰۲)_

[3] )لامع الدراری (۸/۲٥٦)_

[4] )فتح الباری(۷/۳۰٥)_

ددې باب اولنې روايت د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې.دوى فرمائى.چه حضرت حارثه رضي الله عنه د بدر په ورځ شهيد شوې وو.اوهغه اوس لا هلك وو.د هغه مور د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه.او وې وئيل.اې دالله رسوله! تاسو ته علم دې.چه د حارثه مقام زما په نيز څه وو؟(يعنى هغه زما خوښ خوږ وو) كه د شهادت نه پس هغه په جنت كښې وى.نو زه به صبر كوم.اود الله نه به د ثواب اميد ساتم.او كه بله خبره وى.(چه هغه په جنت كښې نه وى) نو تاسو به اوګورئ چه زه به څه كوم.(يعنى زه به ښه ډيره ژړا او ويركوم)

«فَقَالَ وَيْحَكِ»نو نبى ﷺ ورته اوفرمائې.«ويحك» په تا باندې افسوس دې.د «ويحك» په باره كښې داودى فرمائى.چه دا كلمه د زجر ده.خوصحيح خبره دا ده.چه دا كلمه د ترحم ده.نبى ﷺ دلته د ترحم دپاره «ويحك» فرمائيلى دى.د زجر او توبيخ دپاره نه دى.(١)

«أَوَهَبِلْتِ» آيا ستا عقل تلې دې؟(٢) آيا يو جنت دې.هلته خو ډير جنتونه دى. اوحارثه به په جنت الفردوس كښې وى.

**حارثه بن سراقه رضى الله عنه:** دحضرت حارثه رضي الله عنه د پلار نوم سراقه وو.حضرت سراقه هم صحابى وو.او په جنګ حنين كښې شهيد شوې وو.دحضرت حارثه رضي الله عنه د مور نوم ربيع بنت النضر رضي الله عنها وو.اودا د حضرت انس رضي الله عنه ترور وه.(دپلارخور) حضرت حارثه رضي الله عنه په انصاروكښې اول شهيد وو.چه په جنګ بدر كښې شهيد شوې وو.دحوض نه ئې اوبه ځكلې.چه حبان بن العرقه هغه په تير باندې اوويشتل.او دوى شهيد شو.(٣)

[٣٧٦٣] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ قَالَ سَمِعْتُ حُصَيْنَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا مَرْثَدٍ الْغَنَوِيَّ وَالزُّبَيْرَ بْنَ الْعَوَّامِ وَكُلُّنَا فَارِسٌ قَالَ انْطَلِقُوا حَتَّى تَأْتُوا رَوْضَةَ خَاخٍ فَإِنَّ بِهَا امْرَأَةً مِنْ الْمُشْرِكِينَ مَعَهَا كِتَابٌ مِنْ حَاطِبِ بْنِ أَبِي بَلْتَعَةَ إِلَى الْمُشْرِكِينَ فَأَدْرَكْنَاهَا تَسِيرُ عَلَى بَعِيرٍ لَهَا حَيْثُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا الْكِتَابُ فَقَالَتْ مَا مَعَنَا كِتَابٌ فَأَنَخْنَاهَا فَالْتَمَسْنَا فَلَمْ نَرَ كِتَابًا فَقُلْنَا مَا كَذَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ أَوْ لَنُجَرِّدَنَّكِ فَلَمَّا رَأَتْ الْجِدَّ أَهْوَتْ إِلَى حُجْزَتِهَا وَهِيَ مُحْتَجِزَةٌ بِكِسَاءٍ فَأَخْرَجَتْهُ فَانْطَلَقْنَا بِهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ خَانَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالْمُؤْمِنِينَ فَدَعْنِي فَلِأَضْرِبَ عُنُقَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا حَمَلَكَ عَلَى مَا صَنَعْتَ قَالَ حَاطِبٌ وَاللَّهِ

---

(١) ايضاً_

(٢) أوهبلت ،الهمزة فيه للإستفهام والواو مفتوحة للعطف على مقدر .. من قولهم هبلته أى ثكلته وقد يرد بمعنى المدح والإعجاب (وانظر العمدة (٩٤\١٧) والفتح (٣٠٥\٧)_

(٣) عمدة القارى(٩٤\١٧)_

مَا بِي أَنْ لَا أَكُونَ مُؤْمِنًا بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَدْتُ أَنْ يَكُونَ لِي عِنْدَ الْقَوْمِ يَدٌ يَدْفَعُ اللّٰهُ بِهَا عَنْ أَهْلِي وَمَالِي وَلَيْسَ أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِكَ إِلَّا لَهُ هُنَاكَ مِنْ عَشِيرَتِهِ مَنْ يَدْفَعُ اللّٰهُ بِهِ عَنْ أَهْلِهِ وَمَالِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ وَلَا تَقُولُوا لَهُ إِلَّا خَيْرًا فَقَالَ عُمَرُ إِنَّهُ قَدْ خَانَ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ وَالْمُؤْمِنِينَ فَدَعْنِي فَلِأَضْرِبَ عُنُقَهُ فَقَالَ أَلَيْسَ مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ لَعَلَّ اللّٰهَ اطَّلَعَ إِلَى أَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ وَجَبَتْ لَكُمُ الْجَنَّةُ أَوْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ فَدَمَعَتْ عَيْنَا عُمَرَ وَقَالَ اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ [ر:۲۸۴۵]

**دحاطب بن ابى بلتعه رضى الله عنه دمشركانوپه نوم خط ليږل:** دا د حضرت علی رضی اللہ عنہ روايت دې. په دې کښې د حضرت حاطب بن ابی بلتعه د خط ذکردې.کوم چه هغوی په پټه دمکې خلقو ته ليږلې وو.

حضرت علی رضی اللہ عنہ فرمائی چه رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم زه او ابومرثد او زبيردرې وانړه په يو مهم باندې اوليږلو.(په بعضې رواياتو کښې د حضرت مقداد رضی اللہ عنہ ذکر هم شته.نوبيا به څلور شی) او مونږ ټول په اسونو سوارهٔ وو.نبی صلی اللہ علیہ وسلم اوفرمائيل.تاسو لاړ شئ.او، ،روضهٔ خاخ، ، ته اورسئ. دا مقام د مدينې منورې نه په دولس ميله فاصله کښې دی. هلته به يوه ښځه (ساره) تاسوته ملاؤ شی.دهغې تعلق دمشرکانو سره دې.د هغې سره يو خط دې.کوم چه د حاطب بن ابی بلتعه د طرفه دمشرکانو په نوم ليږلې شوې دې.هغه ترې واخلئ. او راوړئ.وائی.چه حضرت حاطب رضی اللہ عنہ دغه ښځې ته مزدوری ورکړې وه.بعضې حضراتو يودينارمزدوری نقل کړې ده.او بعضو دولس دينارونه نقل کړی دی.([1])

حضرت علی رضی اللہ عنہ فرمائی.چه مونږ دغه ښځه په داسې حالت کښې اوليده.چه هغه په اوښ سوره روانه وه.او هم په هغه ځای کښې مو اوليده.دکوم ځای په باره کښې چه نبی صلی اللہ علیہ وسلم فرمائيلی وو.يعنی ، ،روضهٔ خاخ، ، کښې.((فقلنا الكتاب)) مونږ هغې ته اووئيل.خط راوباسه. هغې اووئيل.ما سره خط نشته.((فأنخنا)) مونږ د هغې اوښه کينوله.او د هغې تلاشی مو شروع کړه.خو مونږ ته د هغې سره څه خط ملاؤ نشو.مونږ اووئيل.د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم خبره خو غلطه نشی کيدې.ددې وجې مونږ هغې ښځې ته اووئيل.چه خط راکړه.کنې مونږ به تا بربنډه کړو.

**قوله**: فَلَمَّا رَأَتِ الْجِدَّ أَهْوَتْ إِلَى حُجْزَتِهَا: کله چه هغې زمونږ سخته رويه اوکتله. نو پوهه شوه.که خط نه ورکوم.نو دوی په رښتيا ما بربنډه کوی.نوهغه خپلې حجزه (بډې) طرف ته ښکته شوه.((حجزة)) معقد ازار ته وائی.په کوم ځای چه لنګ تړلو شی.

**قوله**: وَهِيَ مُحْتَجِزَةٌ بِكِسَاءٍ: اوهغې په بډه باندې څادر تړلې وو.نو دې د هغې ځای نه خط رااويسته.د بعضې رواياتو نه معلوميږی.چه دې د خپلو ويختو د کمسو نه خط را

---

[1] )فتح البارى(۵۲۰/۷)_

اویسته.([1]) اودلته دی.چه دې د «حجزة» نه خط را اویستهٔ.دې تعارض د لرې کولو دپاره مختلف توجیهات شوی دی.

① یوه توجیه دا شوې ده.چه په اول کښې خط په «وقاص شعر» د ویختوپه کمسوکښې وو.او روسته ئې د هغې نه معقد ازار ته منتقل کړه.اوکیخوده.

② دویمه توجیه دا ده.چه کیدې شی.هغې سره دوه خطونه وو.یو ئې په وقاص شعر کښې کیخودې وو.اوبل ئې په معقد ازار کښې ،

③ دریمه توجیه دا شوې ده.چه «حجزة» معنی دمطلق ماخذ اومعقدده.که هغه د ویختو وی اوکه د ازار وی.

④ یوه توجیه دا هم شوې ده.چه په اصل کښې ددغه ښځې ویخته ډیر اوږده وو.دغه ښځې اول خط په کمسئ کړې ویختوکښې.کیخودې وو.اوپه ویختوکښې چه په کومه حصه کښې دغه خط پروت وو.هغه ئې په معقد ازار کښې پټ کړې وو.نو خط د ویختود کمسونه هم راووتهٔ.اود معقدازارنه هم،په یو روایت کښې د ویختود کمسو نه د راوستو ذکردې.اوپه بل کښې د معقد ازارنه د راویستو ذکردې.اوراویستې شوې د دواړو نه وو.نو څه تعارض نشته.([2])

حضرت علی رضی الله عنه فرمائی.چه هغه تحریرمونږ رسول الله ﷺ ته راوړل.نو حضرت عمر رضی الله عنه اووئیل.یارسول الله حاطب الله اودهغه رسول سره اومومنانوسره خیانت اوکړو.ته ماته اجازت راکه.چه زه دده څټ قلم کړم.رسول الله ﷺ حضرت حاطب رضی الله عنه ته متوجه شو.اووې وئیل.ته کوم څیز په دې عمل باندې آماده کړې ئې؟ حاطب رضی الله عنه اووئیل په الله قسم دا خبره بیخی نشته.چه په الله اود هغه په رسول باندې زما ایمان باقی نه دې.زما مقصد صرف دا وو.که په کافرانو زما یو احسان اوشی.اوالله تعالی د هغه اسان په ذریعه زما د اهل اوزما د مال حفاظت اوکړی.او ستاسو په صحابو رضی الله عنهم کښې دهریو کس څه نه څه دخاندان کس په مکه کښې موجود دې.چه د هغه په ذریعه الله تعالی دهغه اودهغه د اهل اومال حفاظت کوی.نبی ﷺ اوفرمائیل«صدق» ده رښتینې اوصحیح خبره اوکړه.او تاسو دده په باره کښې د خیر نه سوا بل څه مه وائې .حضرت عمر رضی الله عنه بیا عرض اوکړو.یارسول الله ﷺ «انه قد خان الله ورسوله والمومنین» نونبی ﷺ اوفرمائیل. ولې دې په بدریانو کښې نه دې؟ الله تعالی بدریانو خبر دې.اود بدریانوپه باره کښې د الله تعالی ارشاد دې.«اعملوا ما شئتم فقد وجبت لکم الجنة» چه څه غواړئ. هغه کوئ.ستاسو دپاره جنت واجب دې. چه دا ئې واوریده.نو

[1] )فتح الباری(۱۹۱/۶) کتاب الجهاد باب إذا إضطر الرجل إلی النظر فی شعور أهل الذمة)_

[2] )د دې څلورو واړه جوابونو دپاره اوګورئ فتح الباری(۱۹۱/۶) کتاب الجهاد باب إذا إضطر الرجل إلی النظر)_

دحضرت عمر رضي الله عنه د سترګونه اوښکې روانې شوې.اووې وئيل «الله ورسوله أعلم» الله اودهغه رسول ښه پوهيږي.

په دې روايت کښې دحضرت حاطب بن ابی بلتعه رضي الله عنه د مکې خلقو ته د خط ليږلو واقعه ذکرده.دحديبيه په موقع نبی کريم صلی الله عليه وسلم د مکې د مشرکانو سره د لسو کالودپاره صلح کړې وه.خو اوس د دې صلحې دوه کاله هم نه وو پوره شوې.چه مشرکانو ددې صلحې خلاف ورزی اوکړه.

اهل مکه و د صلحې د تجديد کوشش اوکړو.خو هغوی کامياب نشول.اونبی صلی الله عليه وسلم پټ په پټه په مکه باندې دحملې کولوتياريانې شروع کړې.دتيارئ داسلسله روانه وه.اودا پته ساتلې شوه.

په دې کښې حضرت حاطب بن ابی بلتعه دمشرکانوپه نوم يوخط اوليکل.ددې خط مضمون څه داسې وو.چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم يوزبردست لښکراولی.چه دهغې د دوړو نه به داسې تياره خوره شی.لکه څنګه چه د شپې تياره وی.اورسول الله صلی الله عليه وسلم که يواځې هم په تاسوحمله اوکړی.نوالله تعالى به د هغه مدد اوکړی.اوهغه ته به کاميابی ورکوی. تاسو خپل انتظام اوکړئ.والسلام (١)

چونکه دخط په مضمون کښې داسې څه خبره نه وه.چه په هغې باندې مسلمانانوته د نقصان رسيدو ويره وه.بلکه دخط مضمون دمشرکانود مکې د مرعوبه کولويوه ښه ذريعه وه. خو چونکه بهرحال په هغې کښې د نبی صلی الله عليه وسلم د راز ښکاره کول وو.ددې وجې نبی صلی الله عليه وسلم ته د وحی په ذريعه خبر ورکړې شو.اوهغه خط مکې ته اونه رسيدهٔ،

حضرت حاطب رضي الله عنه د مکې اوسيدونکې نه وو.اودده اهل وعيال هم په مکه کښې وو.هلته دده د خاندان کسان نه وو.چه دده د اهل وعيال حفاظت اوکړی.ددې دپاره دوی خط اوليکل.چه په اهل مکه و باندې دده احسان اوشی.چه دهغې په ذريعه دې دخپل اهل وعيال حفاظت اوکړی.(٢) د خط ليکلو مقصد دمسلمانانو سره دشمنی يادد وی راز ښکاره کول نه وو.اونه د نفاق په وجه دوی داسې کړی وو.هم دا وجه وه.چه کله دوی نبی صلی الله عليه وسلم ته خپل اصلی مقصد اوخودل.نو نبی صلی الله عليه وسلم دده تصديق اوکړو.

**يواشکال** دلته يواشکال کيږی.چه کله رسول الله صلی الله عليه وسلم دحاطب بن ابی بلتعه تصديق اوکړو.او وې فرمائيل «لاتقولوا له إلا خيرا» نوددې باوجود حضرت عمر رضي الله عنه هغه ته ،خائن، ولې اووئيل. اود هغه د څټ قلمولواجازت ئې ولې غوښتلو.په ظاهره حضرت عمر رضي الله عنه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم

---

(١)دخط الفاظ داسې نقل دی.أما بعد يامعشرقريش. فإن رسول الله صلی الله عليه وسلم جاءكم بجيش كالليل يسير كالسيل فوالله لوجاءكم وحده لنصره الله وأنجزله وعده.فانظروا لأنفسكم والسلام ..).

دا الفاظ علامه سهيلی رحمه الله نقل کړی دی.ددې نه مختلف الفاظ هم په بعضې رواياتو کښې منقول دی.اوګورئ (فتح البارى ٥٢١/١٧)_

(٢) په بعضې رواياتوکښې د خط مضمون داسې نقل شوې دی...

إن رسول الله صلی الله عليه وسلم أذن فى الناس بالغزو ولا أراه يريدغيركم وقد أحببت أن يكون لى عندكم يد(فتح البارى (٥٢١/١٧)_

مخالفت کولو.ددې اشکال مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.

**مختلف جوابونه:** ① دعلامه قسطلانی رحمه الله جواب دا دې.چه حضرت عمر رضی الله عنه د کفر اونفاق په باره کښې سخت وو.اوډیره دتشدد رویه ئې ساتله.د هغوی خیال وو.چه دا کس په ژبه باندې د اسلام اظهارکوی.خو د ده په زړه کښې د کافرانو سره تعلق او محبت موجود دې.نو ځکه ده دا خط لیکلې دې.ددې وجې حضرت عمر رضی الله عنه ده ته خائن او منافق اووئیل.([1])

② شیخ ابوالحسن سندهی رحمه الله په شرح بخاری کښې یو بل جواب ورکړې دې.دوی فرمائی.چه په اصل کښې حضرت عمر رضی الله عنه د کفراونفاق په مسئله کښې ډیرسخت وو. نو هغه مغلوب الحال شو.اود رسول الله صلی الله علیه وسلم قول چه «لا تقولوا له إلا خيراً» دده په پوهه کښې رانغلو.نو د غلبه حال د وجې هغوی حضرت حاطب رضی الله عنه ته خائن او منافق اووئیل. ([2])

③ علامه سندهی رحمه الله یو بل جواب دا هم ورکړې دې.چه حضرت عمر رضی الله عنه دا محسوس کړه. چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه تالیف کوی.اوچونکه حضرت عمر رضی الله عنه د کفر او نفاق په باره کښې متشدد وو.ددې وجې د هغوی خپله رائې دا وه.چه دې د تالیف مستحق نه دې.بلکه د تادیب مستحق دې.دخپلې دې رائې په وجه دوی حضرت حاطب رضی الله عنه ته خائن اومنافق اووئیل.([3])

**دحضرت گنگوهی رحمه الله تسلی بخش جواب:** خو یوجواب حضرت گنگوهی رحمه الله ورکړې دې.او تاسو په خپله فیصله اوکړئ. چه دحضرت گنگوهی رحمه الله په جواب کښې کم لطافت او حسن دې.دا جواب د «لامع» او «کوکب» دواړو ملاوولو نه تیارشوې دې.

دوی فرمائی.چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم بیشکه د حاطب بن ابی بلتعه رضی الله عنه نه د کفر او نفاق نفی کړې وه.خوددې کفر او نفاق د نفی دا مطلب نه وو.چه ده نه په هیڅ اندازه کښې هم د خیانت صدور نه دې شوې.فی الجمله خیانت خو په هرحال د هغوی نه شوې وو.چه هغوی د نبی صلی الله علیه وسلم پټ راز کافرانوته د ښکاره کولوکوشش کړې وو.نو حضرت عمر رضی الله عنه د «خان الله ورسوله» نه هم د دې مطلق خیانت ذکرکړې وو.دکوم چه نبی صلی الله علیه وسلم نفی نه وه کړې.دغه شان د حضرت عمر رضی الله عنه په قول «إنه منافق» ([4])کښې څه فرمائیلی شوی دی. د دې نه نفاق فی العقیده مراد نه دې .بلکه ددې نه نفاق عملی مراد دې.

خلاصه د کلام دا شوه. چه فی الجمله ارتکاب د خیانت هم شوې وو.نبی صلی الله علیه وسلم ددې نفی نه

---

[1] )لامع الدراری (۸/۲۵۹)_

[2] )تعلیقات لامع الدراری (۸/۲۵۹)_

[3] )اوګورئ تعلیقات لامع الدراری (۸/۲۵۹)_

[4] ) په روایت باب کښې د حضرت عمر رضی الله عنه د طرفه حضرت حاطب ته دنفاق نسبت موجود نه دې.البته وړاندې د((باب غزوة الفتح)) په روایت کښې حضرت عمر رضی الله عنه دوی ته منافق وئیلی دی.(باب غزوة الفتح بخاری رقم ۴۲۷۴)_

وه کړې.دغه شان د نفاق فی العمل ارتکاب هم شوې وو.اونبی ﷺ د نفاق فی العمل نفی هم نه وه کړې.د نفاق فی العقیدې نفی ئې کړې وه.حضرت عمر رضی الله عنه هغوی ته «خائن،» او «منافق،» ددې فی الجمله خیانت او نفاق فی العمل د وجې کړې وو.نود حضرت عمر رضی الله عنه قول د نبی ﷺ د ارشاد سره متصادم او معارض نه وو.

پاتې شوه دا خبره چه حضرت عمر رضی الله عنه د حضرت حاطب رضی الله عنه د قتل اجازت غوستې وو.ددې نه خو دا معلومیږی.چه حضرت عمر رضی الله عنه ده لره منافق فی العقیده ګڼړلې وو. نو حضرت ګنګوهی فرمائی.چه حضرت عمر رضی الله عنه د کفر د وجې یا د نفاق فی العقیده په وجه دا اجازت نه ووغوستې.بلکه د تعزیرپه طور ئې اجازت غوستې وو.اوپه داسې قسم خیانت کښې د تعزیز په طور دامام دپاره د قتل اجازت شته.دا جواب داسې دې.چه په دې سره اشکال بیخی ختمیږی.([1])

**قوله**: اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ: الله تعالی د اهل بدر په باره کښې فرمائیلی دی.تاسوچه څه غواړئ.کوئ ما ستاسو مغفرت کړې دې.

**یواشکال اودهغې جوابونه**: دلته دا سوال پیدا کیږی.چه آیا الله تعالی اهل بدر د تکالیف شرعیه نه مستثنی کړی وو.ددې روایت د ظاهرنه خو هم دا معلومیږی.چه اهل بدر د تکالیف شرعیه نه مستثنی شوی وو.

① ددې یو جواب حافظ او نورو شارحینو رحمهم الله دا ورکړې دې.چه «اعملوا ما شئتم فقد غفرت لکم» د تیرو شوو ګناهونو په باره کښې دی.کوم چه اهل بدرنه په تیره شوې زمانه کښې صادر شوی وو.الله تعالی فرمائی.چه ما دغه ګناهونه معاف کړل.خو بیا دا اشکال کیږی.چه «اعملوا» دامرصیغه ده.کومه چه د مستقبل دپاره راځی.تاسو دا په «ذنوب ماضیه» باندې څنګه محمول کولې شئ.خو دوی وائی.چه د «فقد غفرت لکم» الفاظ په دې باندې دلیل دې.ځکه چه «غفرت» د ماضی صیغه ده.

خودا جواب ضعیف دې.ځکه چه د حضرت حاطب رضی الله عنه دا واقعه د بدر نه شپږ کاله پس واقع شوې وه.اوپه دغه موقع نبی ﷺ فرمائی.چه «لعل الله اطلع علی أهل بدر فقال إعملوا ما شئتم فقد غفرت لکم» د دې نه په ظاهره دا ښکاری.چه ددې تعلق د امور مستقبله سره دې.

پاتې شوه دا خبره چه په «فقد غفرت لکم» کښې ئې د ماضی صیغه ولې استعمال کړې ده.نوددې په باره کښې وئیلې شوی دی.چه د ماضی صیغه د تحقیق او تیقن دپاره استعمال شوې ده.([2]) چه کومه ګناه به په راروانه زمانه کښې کیږی.هغه به یقیناً بخښلې شی.اودا مغفرت به بیخی قطعی اویقینی وی.لکه څنګه چه ماضی قطعی اویقینی ده.

---

[1] د تفصیل دپاره اوګورئ لامع الدراری (۲۵۹/۸و ۲۶۰)_

[2] فتح الباری(۳۰۵/۷) وتعلیقات لامع الدراری (۲۶۰/۸)_

۲ دويم جواب دا ورکړي شوې دي چه دا خطاب د تشريف اوتکريم دپاره دې.دفع د تکليف ترې مراد نه ده.مقصود دا دې چه الله تعالى د اهل بدرذنوب ماضيه خو معاف کوى.اوپه مستقبل کښې د گناهونود صادريدو په باره کښې به الله تعالى په اهل بدرکښې داسې صلاحيت پيدا کړى.اود دوى ايمان به داسې مضبوط اوقوى کړى.چه په تقاضه د بشريت د دوى نه په راروان ژوند کښې څه گناه اوشى.نوسمدستى به توبه اوباسى.اوالله تعالى طرف ته به رجوع کوى.اوپه استغفارسره به د هغې کمې پوره کوى. نودا خطاب د تشريف اوتکريم دپاره دې.د اهل بدرنه تکاليف شرعيه پورته کول مقصود نه دې.

۳ بعضې حضراتو وئيلى دى.چه په دې کښې اهل بدر ته د عدم وقوع فى الذنوب بشارت ورکړې شوې دې.چه د اهل بدر نه به په راروانه زمانه کښې گناه نه صادريږى. خودا خبره صحيح نه ده.ځکه چه په بدرى صحابوﷺ کښې داسې حضرات هم شته.چه د هغوى نه د بدر نه پس گناه شوې ده.حضرت قدامه بن مظعون بدرى صحابىﷺ دې. او دحضرت عمرﷺ په زمانه کښې د هغوى نه د شرب خمرگناه صادره شوې وه.په هغه باندې حد جارى شوې وو.ددې وجې دا خبره محل دنظر ده.(۱)

**دحضرت شاه ولى الله صاحب رحمه الله رائې:** حضرت شاه ولى الله محدث دهلوى ﷫ ډيره ښکلې خبره کړې ده.هغوى فرمائى.چه«اعملوا ماشئتم فقد غفرت لکم» تعلق د فضائلو او مندوباتو سره دې.د فرائضو او واجباتو سره ددې تعلق نه دې.هغوى فرمائى.چه مسئله بيانولې شى.نود هغې دپاره د عبارت يو خاص اسلوب وى.اوکومه خبره چه د محاورې په طور سره کولې شى. نو د هغې اسلوب جدا وى.په دې حديث کښې مسئله نشى بيانولې. بلکه په دې کښې د اهل بدر قربانى او په جنگ کښې د شرکت عظمت بيانولې شى.نواهل بدرته دا خطاب د محاورې په طور شوې دې.دا مطلب نه دې.چه دوى د فرائضو نه مستثنى گرځولې شوى دى.اودا مطلب هم نه دې.چه په آئنده کښې به اهل بدر د مندوباتو اهتمام نه کوى.بلکه مطلب دا دې.چه اهل بدرته الله تعالى د فضائلو اومندوباتو داهتمام نه بغيرهغه مقام ورکړې دې.کوم چه اهل فضائلو ته نه نشى حاصليدې.(۲) والله اعلم

دا خبره دې په ذهن کښې وى،چه داهل بدر دپاره کوم بشارت بيان شوې دې، ددې تعلق د آخرت داحکامو سره دې،ددنياداحکامو سره د دې تعلق نشته.په دنيا کښې که د يو بدرى نه څه غلطى اوشى(لکه څنگه چه د قدامه بن مظعون ﷺ نه غلطى شوې وه،چه شراب ئې څکلى وو،نوپه هغه باندې حدجارى شوې وو) نودنيوى احکام به په هغه باندې جارى کيږى.

---

(۱) فتح البارى(۷/۳۰۱) وتعليقات لامع (۸/۲۶۱)_

(۲) فيض البارى(۴/۱۱۹) په حواله د ..المسوى والمصفى)_ ~

# ۱۰- باب

دا باب د ترجمة الباب نه بغير دې.او د((فيما يتعلق ببدر)) په معنى كښې دې.د بدر متعلق په دې كښې روايات ذكر كولې شى.

[۳۷۶۳] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْغَسِيلِ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ وَالزُّبَيْرِ بْنِ الْمُنْذِرِ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ عَنْ أَبِي أُسَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ إِذَا أَكْثَبُوكُمْ فَارْمُوهُمْ وَاسْتَبْقُوا نَبْلَكُمْ
حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْغَسِيلِ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ وَالْمُنْذِرِ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ عَنْ أَبِي أُسَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ إِذَا أَكْثَبُوكُمْ يَعْنِي كَثَرُوكُمْ فَارْمُوهُمْ وَاسْتَبْقُوا نَبْلَكُمْ [ر: ۲۷۴۴]

په اولنى روايت كښې د امام بخارى رحمه الله استاذ عبدالله بن محمد الجعفى دې. دد ته عبدالله بن محمد مسندى هم وائى،دوى روايت كوى د ابواحمد زبيرى نه.اوهغه روايت كوى د عبدالرحمن بن غسيل نه.

عبدالرحمن بن الغسيل: ددوى د پلار نوم غسيل نه دې.بلكه سليمان دې.سلسله نسب ئې دا ده.((عبدالرحمن بن سليمان بن عبدالرحمن بن عبدالله بن حنظلة الغسيل)) د غسيل د حنظله صفت دې. چونكه عبدالرحمن ددوى د اولاد په سلسله نسب كښې دې. ددې وجې دوى ته ((ابن الغسيل)) وائى.([1]) حضرت حنظله رضى الله عنه په جنګ احد كښې د جنابت په حالت كښې شهيد شوې وو.كله چه په مقتولين احد كښې ددوى لاش ملاؤ شو.نودده د سر د ويختو نه اوبه څڅيدې .رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.فرښتو ده ته غسل وركړې دې.ددې وجې دده لقب ((غسيل الملائكة)) شو.([2])

ابواُسيد رضى الله عنه: دا صحابى رضى الله عنه دې.ددوى نوم مالك بن ربيعه دې.په انصاروكښې د خزرج قبيلې سره تعلق ساتى.فرمائى.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د بدرپه ورځ فرمائيلى وو.((إذا أكثبوا فارموهم)) ددې معنى ده .((إذا قربوا منكم فأمكنوكم من أنفسهم فارموهم)) ([3]) يعنى كله چه كافران تاسو ته نزدې راشى.او په خپلو نفسونو تاسو ته قدرت دركړى.نوبيا تاسو په هغوى باندې د غشو ګذارونه اوكړئ.څكه كه دښمن لرې وى.اود غشو ګذارونه كولې شى.نو غشى به

---

[1] )عمدة القارى(۱۷\۹۶)_
[2] )عمدة القارى(۱۷\۹۶)_
[3] )قال الحافظ فى الفتح (۷\۳۰۶) والهمزة فى قوله ..أكثبوكم ..للتعدية من كثب بفتحتين وهو القرب قال ابن فارس أكثب الصيد إذا أمكن من نفسه فالمعنى إذا قربوا منكم فأمكنوكم من أنفسهم فارموهم)_

ضائع کیږی.اود دشمن به څه نقصان نه کیږی.((واستبقوانبلکم)) اوخپل غشي بچ کړئ.(چه ضائع نشي)

**قوله**: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بن عبدالرحیم قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ: په دي روایت کښې محمدبن عبدالرحیم دامام بخاری رحمه الله استاذ دې.دوی روایت کوی.چه د ابوامد زبیری نه وړاندې سند دې.((عبدالرحمن بن الغسيل عن حمزة بن أبي أسيد والمنذر بن أبي أسيد عن أبي أسيد))

د اولنی روایت سند وو.((عبدالرحمن بن الغسيل عن حمزة بن أبي أسيد والزبيربن المنذر بن أبي أسيد))
په اولنی روایت کښې د عبدالرحمن بن الغسیل دوه استاذان دی.یو حمزه بن ابی اسید او بل زبیربن المنذر بن ابی اسید،اوپه دویم روایت کښې د عبدالرحمن بن الغسیل په دوو استاذانوکښې یو خو هم هغه حمزه بن ابی اسید دې.خو بل استاذ ((زبيربن المنذربن أبي اسيد)) نه بلکه ((منذربن ابي اسيد)) دې.

دلته د حافظ ابن حجر رحمه الله نه تسامح شوې ده.هغوی فرمائیلی دی.چه ددې باب په دویم روایت کښې امام بخاری کوم سند نقل کړې دې.په دې کښې امام بخاری رحمه الله د ،،زبیربن المنذربن ابی اسید،، په ځای ،،زبیربن ابی اسید،،وئیلي دې.حالانکه امام بخاری رحمه الله په دې دویم سند کښې ،،زبیربن ابی اسید،، نه دې وئیلې.بلکه هم ،،منذربن ابی اسید،، ئې وئیلي دې.

حضرت ابواسید رضی الله عنه فرمائی.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته د بدر په ورځ فرمائیلی وو((اذا اكثبوكم)) یعنی ((اكثروكم – فارموهم)) حافظ او عینی رحمهما الله ((اكثركم)) نقل کړی دی.(۱) زمونږ په نسخوکښې ((كثروكم)) مطلب دا دې.چه کله کافران په زیات تعداد کښې تاسو ته نزدې راشی.نو په دغه وخت کښې په هغوی باندې د غشو ګذارونه کوئ.داودي وئیلی دی.چه د ((فارموهم)) معنی ده.کله چه هغوی په زیات تعداد کښې تاسوته نزدې راشی.نو په دغه وخت کښې هغوی په کاڼړو باندې اولئ.(۲)

[۳۶۷۳]حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الرُّمَاةِ يَوْمَ أُحُدٍ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ جُبَيْرٍ فَأَصَابُوا مِنَّا سَبْعِينَ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ أَصَابُوا مِنَ

(۱) حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی.قوله: عن حمزة بن ابی اسید والزبیربن المنذر بن ابی أسید كذا فی هده الرواية ووقع فی التی بعدها الزبیربن أبی أسید فقیل هو عمه وقیل هو هولكن نسب إلی جده والأول أصوب ..(فتح الباری (۳۰۶/۷)_~
(۲) فتح الباری(۳۰۶/۱) وعمدة القاری(۹۷/۱۷)_

الْمُشْرِكِينَ يَوْمَ بَدْرٍ أَرْبَعِينَ وَمِائَةً سَبْعِينَ أَسِيرًا وَسَبْعِينَ قَتِيلًا قَالَ أَبُوسُفْيَانَ يَوْمٌ بِيَوْمِ بَدْرٍ وَالْحَرْبُ سِجَالٌ [ر:۲۸۷۴]

دا د حضرت براء بن عازب رضی اللہ عنہ روایت دې.دوی فرمائی.چه نبی ﷺ په جنګ احد کښې حضرت عبدالله بن جبیر رضی اللہ عنہ په غشی ویشتونکو باندې امیر مقرر کړې وو.چونکه د دغه دستې نه غلطی اوشوه.اود نبی ﷺ د حکم تعمیل ترې اونشو.ددې وجې حضرت عبدالله بن جبیر رضی اللہ عنہ او د هغه لس ملګری شهیدان شول.او ګټلې شوې جنګ په شکست کښې بدل شو.نو حضرت براء رضی اللہ عنہ فرمائی.چه په احد کښې کافرانو زمونږ اویا صحابه رضی اللہ عنہم شهیدان کړل.حالانکه نبی ﷺ او صحابو رضی اللہ عنہم د بدر په ورځ باندې یوسل څلویښتوکسانو ته نقصان رسولې وو.چه اویا په کښې قتل شوی وو.او اویا بندیوان شوی وو.په دغه وخت کښې ابوسفیان اووئیل.«یوم بیوم بدر» یعنې نن د احد ورځ د بدر د ورځې بدله شوه.

**قوله**: يَوْمٌ بِيَوْمِ بَدْرٍ وَالْحَرْبُ سِجَالٌ: دلته سجال د ،،سجل،، جمع ده.ډول ته وائی.دا محاوره ده.چه په کومه طریقه د کوهی نه د ډول راویستلو په وخت کښې ډول کله په یولاس کښې وی.اوکله په بل کښې،دغه شان په جنګ کښې کامیابی هم کله د یو فریق وی.او کله د بل فریق،

[۳۷۶۵] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ جَدِّهِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى أُرَاهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَإِذَا الْخَيْرُ مَا جَاءَ اللَّهُ بِهِ مِنَ الْخَيْرِ بَعْدُ وَثَوَابُ الصِّدْقِ الَّذِي آتَانَا بَعْدَ يَوْمِ بَدْرٍ [ر:۳۴۲۵]

«أراه» دا یاخودابوبرده قول دې.دوی فرمائی.چه زما خیال دې.چه ابوموسی رضی اللہ عنہ دا حدیث د نبی ﷺ نه مرفوعاً نقل کړې دې.اودا هم احتمال شته.چه دا د ابوبرده قول نه وی.بلکه د ښکته یو راوی قول وی.

**قوله**: قَالَ وَإِذَا الْخَيْرُ مَا جَاءَ اللَّهُ بِهِ مِنَ الْخَيْرِ بَعْدُ: دا حدیث امام بخاری رحمہ اللہ په «باب علامات النبوة» کښې په تفصیل سره بیان کړې دې.او وړاندې په غزوه احد کښې به هم راشی.دلته ئې ددې حدیث یو جزء نقل کړې دې.چه نبی ﷺ خوب اولیدلو.چه نبی ﷺ یوه توره اوخوزوله.اود هغې مخکنۍ حصه ماته شوه.ددې نه پس نبی ﷺ هغه دوباره اوخوزوله. نودهغې نه په زیات ښه صورت کښې شوه.څنګه چه وړاندې وه.([1]) دلته چه کوم جزء نقل شوې دې.ددې ترجمه او ،،خیر،، هغه دې.کوم چه روسته الله تعالی خیرراوستل.

[1] )پوره حدیث دا دې،،
عن أبي موسى عن النبي ﷺ قال رأيت في المنام أني أهاجر من مكة إلى أرض بها نخل فذهب وهلي إلى أنها اليمامة أوالهجر فإذا هي المدينة يثرب و رأيت في رؤياي أني هززت سيفاً فانقطع صدره فإذا هو ما أصيب من المؤمنين يوم أحد ثم هززته أخرى فعاد أحسن ما كان فإذا هو ما جاء الله به من الفتح وإجتماع المؤمنين ورأيت فيها بقراً والله خير فإذا هم المؤمنون يوم أحد .وإذا الخير ما جاء الله به ممن الخير وثواب الصدق الذي أتانا الله بعد يوم بدر (باب علامات النبوة بخاري (۵۱۱۱۱)_

① بعضې حضراتو وئيلي دي.چه ددې خيرنه مراد د احد د شهيدانو شهادت دې.چونكه شهادت د مومن دپاره تحفه ده.[1] د دې وجې ئې شهادت د دوی دپاره خير اوګرځولو،
② بعضې حضراتووئيلي دي.چه ددې نه مراد د مسلمانانو ثابت قدمی او فتوحات دي.كوم چه الله تعالی د غزوه احد نه پس راوستی وو.[2]
③ بعضې حضراتو وئيلي دي.چه ددې خيرنه په بدركښې د مسلمانانو كاميابی ده.[3]

**قوله**: وَثَوَابُ الصِّدْقِ الَّذِي آتَانَا بَعْدَ يَوْمِ بَدْرٍ: اوبهترين او ښه بدله او ثواب هغه دې.كوم چه الله تعالی مونږ ته د بدر نه پس راكړې دې.

**قوله**: ثَوَابُ الصِّدْقِ: ①بعضې حضراتو ددې ترجمه د صحيح او درست اعمالو په ثواب سره كړې ده.
② اوبعضې حراتو وئيلي دي.چه په دې كښې دموصوف اضافت صفت طرف ته كيږی. د دې معنی ((الثواب الصالح)) ((الثواب المرضي)) ((الثواب الجيد)) ده.[4]
حضرت شاه صاحب ددې دوه معنی بيان كړی دی.

① يوه دا چه ((بعد)) مبنی علی الضم ده.او مبدل منه دې،او ((يوم بدر)) ددې نه بدل دې. دا خو تاسو ته معلومه ده.چه ((بعد)) كله بغيرد اضافت نه وی.نو مبنی علی الضم وی. په دې صورت كښې به مطلب دا وی.چه بهترين ثواب او بدله هغه ده.كومه چه الله تعالی د بدر په ورځ مسلمانانو ته وركړې وه.دكوم په وجه چه دوی ته مقام تشريف او تكريم حاصل شو.[5]

② اوحضرت شاه صاحب رحمه الله دويمه توجيه دا كړې ده.چه ((بعد)) مضاف او ((يوم بدر)) مضاف اليه ده.او مطلب دا دې.چه بهترينه بدله او ثواب هغه دې.كوم چه الله تعالی مونږ ته ديوم بدرنه پس راكړو.خود ((يوم بدر)) نه پس خو ((غزوة احد)) پيښه شوې وه.اوپه هغې كښې مسلمانانو ته شكست شوې وو.ددې وجې شاه صاحب فرمائی.چه په دې صورت كښې د ((يوم بدر)) نه به بدرصغری،، مراد وی.[6] واقعه د بدر صغری په ٤هـ كښې واقع شوې

---

[1] )عمدة القارى(١٦\١٥٣)_
[2] ) عمدة القارى(١٦\١٥٣)_
[3] )فيض البارى(٤\٩١)-
[4] )عمدة القارى (٤\٩١)_
[5] )فيض البارى(٤\٩١)_
[6] )غزوه بدر صغری ته ((غزوة السويق)) هم وائی.نبی ﷺ مقام بدر ته تشريف يوړو او اته ورځې هلته ايسار وو.ابوسفيان هم د مكې د قريشو يوه ډله راوسته.او ،،مقام مرالظهران،، يا ،،مقام عسفان ،، ته راغلل.اود هغه ځاې نه ئې اراده ملتوی كړه.اوواپس شو.په دې موقعه باندې نبی ﷺ حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه په مدينه كښې خپل قائم مقام جوړ كړې وو.اوګورئ (الكامل لابن الأثير(١٢٠\٢)_~

وه.داحد نه چه تلل.نو ابوسفيان وئيلى وو.چه په راروان كال به د بدريه مقام باندې مقابله كيږى.نو په راروان كال نبى ﷺ پنځلس سوه صحابه كرام ﷺ واخستل.او مقام بدر طرف ته ئې تشريف يوړو.خوابوسفيان ته د مقابلې كولوجرات اوهمت اونشو.

بهرحال مطلب دا دې.چه الله تعالى د بدر صغرى نه پس چه مسلمانانوته كوم انعامات او فتوحات وركړل.نبى ﷺ فرمائى.چه دا د الله تعالى د طرفه غوره او ښه بدله ده.

[٣٧٦٦]حَدَّثَنِي يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ إِنِّي لَفِي الصَّفِّ يَوْمَ بَدْرٍ إِذْ الْتَفَتُّ فَإِذَا عَنْ يَمِينِي وَعَنْ يَسَارِي فَتَيَانِ حَدِيثَا السِّنِّ فَكَأَنِّي لَمْ آمَنْ بِمَكَانِهِمَا إِذْ قَالَ لِي أَحَدُهُمَا سِرًّا مِنْ صَاحِبِهِ يَا عَمِّ أَرِنِي أَبَا جَهْلٍ فَقُلْتُ يَا ابْنَ أَخِي وَمَا تَصْنَعُ بِهِ قَالَ عَاهَدْتُ اللَّهَ إِنْ رَأَيْتُهُ أَنْ أَقْتُلَهُ أَوْ أَمُوتَ دُونَهُ فَقَالَ لِي الْآخَرُ سِرًّا مِنْ صَاحِبِهِ مِثْلَهُ قَالَ فَمَا سَرَّنِي أَنِّي بَيْنَ رَجُلَيْنِ مَكَانَهُمَا فَأَشَرْتُ لَهُمَا إِلَيْهِ فَشَدَّا عَلَيْهِ مِثْلَ الصَّقْرَيْنِ حَتَّى ضَرَبَاهُ وَهُمَا ابْنَا عَفْرَاءَ[ر:٢٩٧٢]

دا سند مسلسل بالآباء دې.په دې كښې هر راوى د خپل پلار نه روايت كوى(١) په دې روايت كښې په ابوجهل باندې حمله كونكو هغه دوو انصارى ماشومانو واقعه بيان شوې ده.كوم چه د حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ سره ولاړ وو.ددې تفصيل تيرشوې دې.

[٣٧٦٧]حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ أَسِيدِ بْنِ جَارِيَةَ الثَّقَفِيُّ حَلِيفُ بَنِي زُهْرَةَ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةً عَيْنًا وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَاصِمَ بْنَ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيَّ جَدَّ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ حَتَّى إِذَا كَانُوا بِالْهَدَةِ بَيْنَ عُسْفَانَ وَمَكَّةَ ذُكِرُوا لِحَيٍّ مِنْ هُذَيْلٍ يُقَالُ لَهُمْ بَنُو لِحْيَانَ فَنَفَرُوا لَهُمْ بِقَرِيبٍ مِنْ مِائَةِ رَجُلٍ رَامٍ فَاقْتَصُّوا آثَارَهُمْ حَتَّى وَجَدُوا مَأْكَلَهُمْ التَّمْرَ فِي مَنْزِلٍ نَزَلُوهُ فَقَالُوا تَمْرُ يَثْرِبَ فَاتَّبَعُوا آثَارَهُمْ فَلَمَّا حَسَّ بِهِمْ عَاصِمٌ وَأَصْحَابُهُ لَجَئُوا إِلَى مَوْضِعٍ فَأَحَاطَ بِهِمْ الْقَوْمُ فَقَالُوا لَهُمْ انْزِلُوا فَأَعْطُوا بِأَيْدِيكُمْ وَلَكُمْ الْعَهْدُ وَالْمِيثَاقُ أَنْ لَا نَقْتُلَ مِنْكُمْ أَحَدًا فَقَالَ عَاصِمُ بْنُ ثَابِتٍ أَيُّهَا الْقَوْمُ أَمَّا أَنَا فَلَا أَنْزِلُ فِي ذِمَّةِ كَافِرٍ ثُمَّ قَالَ اللَّهُمَّ أَخْبِرْ عَنَّا نَبِيَّكَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَمَوْهُمْ بِالنَّبْلِ فَقَتَلُوا عَاصِمًا وَنَزَلَ إِلَيْهِمْ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ عَلَى الْعَهْدِ وَالْمِيثَاقِ مِنْهُمْ خُبَيْبٌ وَزَيْدُ بْنُ الدَّثِنَةِ وَرَجُلٌ آخَرُ فَلَمَّا اسْتَمْكَنُوا مِنْهُمْ أَطْلَقُوا أَوْتَارَ قِسِيِّهِمْ فَرَبَطُوهُمْ بِهَا قَالَ الرَّجُلُ الثَّالِثُ هَذَا أَوَّلُ الْغَدْرِ وَاللَّهِ لَا أَصْحَبُكُمْ إِنَّ لِي بِهَؤُلَاءِ أُسْوَةً يُرِيدُ الْقَتْلَى فَجَرَّرُوهُ وَعَالَجُوهُ فَأَبَى أَنْ يَصْحَبَهُمْ فَانْطُلِقَ بِخُبَيْبٍ وَزَيْدِ بْنِ الدَّثِنَةِ حَتَّى بَاعُوهُمَا بَعْدَ وَقْعَةِ بَدْرٍ فَابْتَاعَ بَنُو الْحَارِثِ بْنِ عَامِرِ بْنِ نَوْفَلٍ خُبَيْبًا وَكَانَ خُبَيْبٌ هُوَ قَتَلَ الْحَارِثَ بْنَ عَامِرٍ يَوْمَ بَدْرٍ فَلَبِثَ خُبَيْبٌ عِنْدَهُمْ أَسِيرًا حَتَّى أَجْمَعُوا قَتْلَهُ

---

(١) فتح البارى(٧/٣٠٨)_

فَاسْتَعَارَ مِنْ بَعْضِ بَنَاتِ الْحَارِثِ مُوسًى يَسْتَحِدُّ بِهَا فَأَعَارَتْهُ فَدَرَجَ بُنَيٌّ لَهَا وَهِيَ غَافِلَةٌ حَتَّى أَتَاهُ فَوَجَدَتْهُ مُجْلِسَهُ عَلَى فَخِذِهِ وَالْمُوسَى بِيَدِهِ قَالَتْ فَفَزِعْتُ فَزْعَةً عَرَفَهَا خُبَيْبٌ فَقَالَ أَتَخْشَيْنَ أَنْ أَقْتُلَهُ مَا كُنْتُ لِأَفْعَلَ ذَلِكَ قَالَتْ وَاللَّهِ مَا رَأَيْتُ أَسِيرًا قَطُّ خَيْرًا مِنْ خُبَيْبٍ وَاللَّهِ لَقَدْ وَجَدْتُهُ يَوْمًا يَأْكُلُ قِطْفًا مِنْ عِنَبٍ فِي يَدِهِ وَإِنَّهُ لَمُوثَقٌ بِالْحَدِيدِ وَمَا بِمَكَّةَ مِنْ ثَمَرَةٍ وَكَانَتْ تَقُولُ إِنَّهُ لَرِزْقٌ رَزَقَهُ اللَّهُ خُبَيْبًا فَلَمَّا خَرَجُوا بِهِ مِنَ الْحَرَمِ لِيَقْتُلُوهُ فِي الْحِلِّ قَالَ لَهُمْ خُبَيْبٌ دَعُونِي أُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ فَتَرَكُوهُ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ فَقَالَ وَاللَّهِ لَوْلَا أَنْ تَحْسِبُوا أَنَّ مَا بِي جَزَعٌ لَزِدْتُ ثُمَّ قَالَ اللَّهُمَّ أَحْصِهِمْ عَدَدًا وَاقْتُلْهُمْ بَدَدًا وَلَا تُبْقِ مِنْهُمْ أَحَدًا ثُمَّ أَنْشَأَ يَقُولُ

فَلَسْتُ أُبَالِي حِينَ أُقْتَلُ مُسْلِمًا ... عَلَى أَيِّ جَنْبٍ كَانَ لِلَّهِ مَصْرَعِي
وَذَلِكَ فِي ذَاتِ الْإِلَهِ وَإِنْ يَشَأْ ... يُبَارِكْ عَلَى أَوْصَالِ شِلْوٍ مُمَزَّعِ

ثُمَّ قَامَ إِلَيْهِ أَبُو سِرْوَعَةَ عُقْبَةُ بْنُ الْحَارِثِ فَقَتَلَهُ وَكَانَ خُبَيْبٌ هُوَ سَنَّ لِكُلِّ مُسْلِمٍ قُتِلَ صَبْرًا الصَّلَاةَ وَأَخْبَرَ أَصْحَابَهُ يَوْمَ أُصِيبُوا خَبَرَهُمْ وَبَعَثَ نَاسٌ مِنْ قُرَيْشٍ إِلَى عَاصِمِ بْنِ ثَابِتٍ حِينَ حُدِّثُوا أَنَّهُ قُتِلَ أَنْ يُؤْتَوْا بِشَيْءٍ مِنْهُ يُعْرَفُ وَكَانَ قَتَلَ رَجُلًا عَظِيمًا مِنْ عُظَمَائِهِمْ فَبَعَثَ اللَّهُ لِعَاصِمٍ مِثْلَ الظُّلَّةِ مِنَ الدَّبْرِ فَحَمَتْهُ مِنْ رُسُلِهِمْ فَلَمْ يَقْدِرُوا أَنْ يَقْطَعُوا مِنْهُ شَيْئًا [ر: ۲۸۸۰]

عمروبن جاريه..ددوى په نوم كښې درې اقوال دى.عمرو،عمر. عمير، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلى دى.چه صحيح هم دا ده.چه دده نوم ..عمرو،، دې.دده د پلار نوم ..اسيد،، دې.د اسيد كنيت ابوسفيان دې.د عمرو د نيكه نوم جاريه دې.كله هغه نيكه طرف ته منسوب كړى.او راوى ،،عمروبن جاريه،. وائى.اوكله ئې دې د پلار نوم يا كنيت طرف ته منسوب كوى.او عمروبن اسيد يا عمروبن ابى سفيان،، هم وائى.ثقفى دې.او د بنو زهره حليف دې.([1])

په مخكنى روايت كښې د اصحاب بيرمعونه قصه بيان شوې ده.كومه چه به انشاء الله په غزود رجيع كښې په تفصيل سره راشى.چونكه په اصحاب بيرمعونه كښې خبيب بن عدى، حضرت زيدبن دثنه او حضرت عاصم بن ثابت انصارى رضي الله عنهم په بدر كښې شريك شوى وو.اوپه دې روايت كښې د دوى په بدر كښې د قتال ذكردې.په دې مناسبت سره امام بخارى رحمه الله دا حديث دلته ذكر كړې دې.ددې روايت په آخر كښې دى.

[۳۷۶۸] وَقَالَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ ذَكَرُوا مَرَارَةَ بْنَ الرَّبِيعِ الْعَمْرِيَّ وَهِلَالَ بْنَ أُمَيَّةَ الْوَاقِفِيَّ رَجُلَيْنِ صَالِحَيْنِ قَدْ شَهِدَا بَدْرًا [ر: ۳۶۰۶]

دا دهغه اورد حديث يوه حصه ده.كوم چه به وراندې په غزوه تبوك كښې په تفصيل سره راځى.دلته امام بخارى د كعب بن مالك رضي الله عنه په حواله سره بيان كوى. چه هغوى په غزوه تبوك كښې د خپل تخلف قصه بيانوى.او د مراره بن ربيع او هلال بن اميه رضي الله عنهما ذكر كوى.چه

[1] فتح البارى (۱۷/۳۱۰)_

دا دواړه حضرات نيكان سړي وو.او حضرت كعب رضي الله عنه فرمائي.چه «قد شهدا بدراً» دا دواړه په بدر كښې شريك شوي وو.امام بخارى دا ،،تعليق،، دلته بيان كړو.په اصل كښې امام بخارى رحمه الله د كعب بن مالك رضي الله عنه دا قول نقل كوى،اوپه هغه كسانو باندې رد كوى.څوك چه وائي. چه حضرت مراره بن ربيع او حضرت هلال بن اميه رضي الله عنهما په جنګ بدركښې نه وو شريك شوى.ددې قول نسبت امام زهرى رحمه الله طرف ته هم شوې دې.علامه دمياطى او حافظ ابن القيم رحمهما الله هم ددې رائې اظهار كړې دې.چه دا دواړه حضرات په بدر كښې نه وو شريك شوى.نو امام بخارى رحمه الله ددې رائې رد كوى.دوى د كعب بن مالك رضي الله عنه په حوالې سره نقل كوى.چه دا دواړه حضرات په بدر كښې شريك شوى وو.اوښكاره ده چه د كعب بن مالك رضي الله عنه ددې تصريح نه پس د دغه خلقو د رائې څه اهميت پاتې نشو.كومو سره چه د حضرت مراره بن ربيع او حضرت هلال رضي الله عنهما په جنګ بدركښې د نه شركت څه صريح دليل نشته.([1])

[۳۷۶۹] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ذُكِرَ لَهُ أَنَّ سَعِيدَ بْنَ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ وَكَانَ بَدْرِيًّا مَرِضَ فِي يَوْمِ جُمُعَةٍ فَرَكِبَ إِلَيْهِ بَعْدَ أَنْ تَعَالَى النَّهَارُ وَاقْتَرَبَتِ الْجُمُعَةُ وَتَرَكَ الْجُمُعَةَ

يعنى د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه ذكرشوى دى.چه ذكركونكې څوك دې، حافظ اوونيل «لم أقف» ([2]) ماته معلوم نه دى.خود مصنف ابن ابى شيبه په روايت كښې په صراحت سره موجود دى.چه ذكركونكې د سعيدبن زيد خوې وو. ([3]) دوى ذكر كړې دې.چه سعيدبن زيد د جمعې په ورځ ناجوړه شو. «فركب إليه بعد أن تعالى النهار» چه د هغه د بيمارئ خبر ئې واوريدو.نو حضرت عبدالله بن عمرد ورځ راختونه پس د دبيماړپرسئ په غرض هغه ته ورغلو.سعيدبن زيد رضي الله عنه بدرى صحابى دې.اوپه عشره مبشره كښې دې،دحضرت عمر رضي الله عنه خور حضرت فاطمه رضي الله عنها د دوى په نكاح كښې وه.نودې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د ترورخاوند وو.

**قوله**: وَاقْتَرَبَتِ الْجُمُعَةُ وَتَرَكَ الْجُمُعَةَ: د جمعې د مونځ وخت نزدې شو.خو حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما جمع پريخوه.اودهغه د بيماړپرسئ دپاره لاړل.

دلته دا نه معلومه نشوه،چه ابن عمر رضي الله عنهما د بيماړپرسئ دپاره كوم ځاې ته لاړلو؟ البته د ابن ابى شيبه د روايت نه معلوميږى.چه دحضرت سعيدبن زيد قيام په ،،عقيق،، كښې وو.كوم چه د مدينې منورې نه د درې ميلو په فاصله باندې دې.حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دهغوى د عيادت دپاره هلته تلې وو.([4])

---

[1] )فتح البارى(۳۱۱\۷)_
[2] )فتح البارى(۳۱۱\۷)_
[3] )مصنف ابن ابى شيبة (۱۰۵\۲) كتاب الصلاة باب من رخص فى السفر يوم الجمعة)_
[4] )مصنف ابن ابى شيبة كتاب الجمعة باب من رخص فى السفريوم الجمعة(۱۰۵\۲)_

**دجمعې په ورځ د سفر مسئله:** دلته يو سوال دا كيدې شي.چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دجمعې مونځ پريخودو.اوعيادت دپاره څنګه لاړلو.دجمعې مونځ پريخودل اود زوال نه وړاندې داسې
تلل جائزدی؟
① داكثروحنابلوّ، اومالكيه وّ او قول قديم كښې دامام شافعي رحمه الله په نيز د زوال نه وړاندې دجمعې په ورځ تلل جائز دی.
② دامام مالك رحمه الله نه يو روايت اودامام احمدنه يو روايت او دامام شافعي رحمه الله د قول جديد مطابق داسې د جمعې په ورځ د زوال نه وړاندې دجهاد دپاره تلل جائزنه دی.
③احمد بن حنبل رحمه الله يو روايت دا هم دې.كه سفر د جهاد دپاره وی.نو جائز دې. اوكه نه وی نوناجائز دې.([1])
④دبعضې شوافعو او امام الحرمين رحمهم الله په نيز كه سفر واجب او ضروری وی. نوتلې شی. ګنی نشی تلې.
⑤ د اكثرو شوافو رحمهم الله راې دا ده.چه كه سفر د طاعت وی.(لكه دعيادت وغيهر نيك كار دپاره سفر وی) نو تلې شی.برابره ده كه سفرواجب وی اوكه نه وی.

**دجمعې په ورځ د زوال نه پس جمعه پريخودل اودښارنه تلل:** ① د جمهورو رحمهم الله په نيز ناجائز دی.② دامام اوزاعي رحمه الله په نيز جائز دی.([2])

**داحنافو رحمهم الله نه په دې مسئله كښې مختلف روايات مروی دی:** ① قاضي خان رحمهما الله د احنافو رحمهم الله مذهب دا نقل كړې دې.چه د زوال نه وړاندې هم تلی شی.او د زوال نه پس هم تلې شی.([3])
② فتاوی ظهيريه دا نقل كړی دی.چه د زوال نه پس دجمعې مونځ پريخودل او تلل جائز نه دی.
③ په شرح منيه كښې ئې د احنافو رحمهم الله مذهب دا نقل كړې دې.چه د زوال نه وړاندې جائز دې او د زوال نه پس مكروه دې.او ابن عابدين هم دا فرمائيلی دی.([4])
خوكه يو كس دا خيال كوی.كه ده سفر اونكړو.نود قافلې نه روسته پاتې كيږی.او بيا خانله د ده دپاره سفرْ كول ګران وی.اود مشكلاتوباعث وی.نود داسې كس دپاره دجمعې په ورځ د زوال نه پس هم جمعه مونځ پريخودل او تلل جائز دی.

---

[1] )د ذكرشوو درې واړه رواياتو دپاره اوګورئ المغنی لابن قدامة (۱۰۸۱۲) حكم النفر يوم الجمعة)_
[2] )المغنی لابن قدامة)_
[3] )إذا ارادالرجل أن يسافر يوم الجمعة لا بأس به إذا خرج من عمران المصر قبل خروج وقت الظهر لأن الجمعة إنما تجب فی آخر الوقت وانظر فتاوی قاضی خان علی هامش الهندية (۱۷۶۱۱) باب صلاة الجمعة والبحر الرائق (۱۶٤۱۲)_
[4] )الدرالمختارعلی هامش ردالمختار (۱۶۲۱۲) باب الجمعة وغنية المستملی ص:۵۶۵فصل فی صلاة الجمعة)

[٣٧٧٠] وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ أَبَاهُ كَتَبَ إِلَى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَرْقَمِ الزُّهْرِيِّ يَأْمُرُهُ أَنْ يَدْخُلَ عَلَى سُبَيْعَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ الْأَسْلَمِيَّةِ فَيَسْأَلَهَا عَنْ حَدِيثِهَا وَعَمَّا قَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ اسْتَفْتَتْهُ فَكَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَرْقَمِ إِلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ يُخْبِرُهُ أَنَّ سُبَيْعَةَ بِنْتَ الْحَارِثِ أَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا كَانَتْ تَحْتَ سَعْدِ بْنِ خَوْلَةَ وَهُوَ مِنْ بَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ وَكَانَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا فَتُوُفِّيَ عَنْهَا فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَهِيَ حَامِلٌ فَلَمْ تَنْشَبْ أَنْ وَضَعَتْ حَمْلَهَا بَعْدَ وَفَاتِهِ فَلَمَّا تَعَلَّتْ مِنْ نِفَاسِهَا تَجَمَّلَتْ لِلْخُطَّابِ فَدَخَلَ عَلَيْهَا أَبُو السَّنَابِلِ بْنُ بَعْكَكٍ رَجُلٌ مِنْ بَنِي عَبْدِ الدَّارِ فَقَالَ لَهَا مَا لِي أَرَاكِ تَجَمَّلْتِ لِلْخُطَّابِ تُرَجِّينَ النِّكَاحَ فَإِنَّكِ وَاللَّهِ مَا أَنْتِ بِنَاكِحٍ حَتَّى تَمُرَّ عَلَيْكِ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ قَالَتْ سُبَيْعَةُ فَلَمَّا قَالَ لِي ذَلِكَ جَمَعْتُ عَلَيَّ ثِيَابِي حِينَ أَمْسَيْتُ وَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذَلِكَ فَأَفْتَانِي بِأَنِّي قَدْ حَلَلْتُ حِينَ وَضَعْتُ حَمْلِي وَأَمَرَنِي بِالتَّزَوُّجِ إِنْ بَدَا لِي

تَابَعَهُ أَصْبَغُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَسَأَلْنَاهُ فَقَالَ أَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ مَوْلَى بَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ إِيَاسِ بْنِ الْبُكَيْرِ وَكَانَ أَبُوهُ شَهِدَ بَدْرًا أَخْبَرَهُ [ر: ٥٠١٣و٣٦٢٦]

په دې روايت کښې عبيدالله بن عبدالله بن عتبه وائي.چه د دوی پلارحضرت عبدالله بن عتبه عمروبن عبدالله بن ارقم زهری ته اوليکل.چه هغه دې سبيعه بنت الحارث اسلميه ته ورشي.اود هغې نه دې دهغه واقعه په باره کښې تپوس اوکړي. کومه چه هغې سره پينه شوې وه.اورسول الله ﷺ هغې ته په دې معامله کښې څه ارشاد فرمائيلي وو.هغه معلوم کړي.نو عمروبن عبدالله بن ارقم حضرت سبيعه رضي الله عنها ته ورغلو.او د هغې نه ئې د تحقيق کولونه پس عبدالله بن عتبه ته په جواب کښې اوليکل.چه حضرت سبيعه رضي الله عنها ده ته دا خبر ورکړو.چه دا (سبيعه) د سعد بن خوله په نکاح کښې وه.او حضرت سعد په هغه خلقوکښې وو.کوم چه په بدرکښې شريك شوی وو(هم دا جمله د ترجمة الباب سره متعلق ده) دحجة الوداع په موقع باندې د حضرت سعد بن خوله وفات اوشو.او هغه (سبيعه)حامله وه.د خاوند د وفات نه پس څه ورځې تيرې شوې.چه د سبيعه بچې پيدا شو.د بچی د پيدائش نه پس کله چه سبيعه د نفاس نه پاکه شوه.نو پيغام راليرونکو دپاره دې ډول سنګارشروع کړو.بنی عبدالدارکښې يوکس ابوالسنابل بن بعکك دې ته راغلو.اودې ته ئې اوونيل.کيدې شی.ته د نکاح پيغام راليرونکودپاره ډول سنګار کوې.غالباً چه ستاسو دنکاح خيال دې.خوپه الله قسم ته واده نشې کولې.تردې چه په تا څلورمياشتې اولس ورځې تيرې شوې نه وی.د حضرت سبيعه رضي الله عنها بيان دې.چه کله ابوالسنابل ماته دا خبره اوکړه.نوما هم مابنام خپلې جامې او څادر وغيره واچول.اود رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوم.او د نبی ﷺ نه مې د مسئلې تپوس اوکړو.نبی ﷺ ماته فتوی راکړه.چه هرکله وضع د حمل شوې ده.نو اوس زه حلاله شوم.اوکه زما خواهش وی.نوزه نکاح کولې شم.

دې حديث سره متعلق فقهي مسائل به انشاء الله په كتاب النكاح كښې راځي. چونكه په دې كښې دحضرت سعدبن خوله په باره كښې دى.چه دې د بدر په شركاء كښې وو.په دې مناسبت سره امام بخارى رحمه الله په دې مقام كښې ددې تخريج اوكړو. والله اعلم.

## ۱۱=بَاب شُهُودِ الْمَلَائِكَةِ بَدْرًا

[۳۷۷۱] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ مُعَاذِ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ الزُّرَقِيِّ عَنْ أَبِيهِ وَكَانَ أَبُوهُ مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ قَالَ جَاءَ جِبْرِيلُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا تَعُدُّونَ أَهْلَ بَدْرٍ فِيكُمْ قَالَ مِنْ أَفْضَلِ الْمُسْلِمِينَ أَوْ كَلِمَةً نَحْوَهَا قَالَ وَكَذَلِكَ مَنْ شَهِدَ بَدْرًا مِنْ الْمَلَائِكَةِ

حضرت جبرئيل عليه السلام نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته راغلو.ا تپوس ئې اوكړو.چه داهل بدرستا په نيزخه مقام دې؟ نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.((من أفضل المسلمين)) په ټولومسلمانانو كښې مونږ بدريان افضل شمارو.يا ددې پشان ئې بله څه كلمه اووئيله.نو جبرئيل عليه السلام اووئيل.هم دا شان د هغه فرښتو هم دې.كوم چه بدرته حاضرې شوې وې.

جنګ بدركښې د فرښتو د نزول فائدې او دې سره متعلقه نور بحثونه وړاندې تيرشوى دى.

[۳۷۷۲] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ مُعَاذِ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ وَكَانَ رِفَاعَةُ مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ وَكَانَ رَافِعٌ مِنْ أَهْلِ الْعَقَبَةِ فَكَانَ يَقُولُ لِابْنِهِ مَا يَسُرُّنِي أَنِّي شَهِدْتُ بَدْرًا بِالْعَقَبَةِ قَالَ سَأَلَ جِبْرِيلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ أَخْبَرَنَا يَزِيدُ أَخْبَرَنَا يَحْيَى سَمِعَ مُعَاذَ بْنَ رِفَاعَةَ أَنَّ مَلَكًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ وَعَنْ يَحْيَى أَنَّ يَزِيدَ بْنَ الْهَادِ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ كَانَ مَعَهُ يَوْمَ حَدَّثَهُ مُعَاذٌ هَذَا الْحَدِيثَ فَقَالَ يَزِيدُ فَقَالَ مُعَاذٌ إِنَّ السَّائِلَ هُوَ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام

**قوله**: مَا يَسُرُّنِي أَنِّي شَهِدْتُ بَدْرًا بِالْعَقَبَةِ: دا د حضرت رافع انصارى رضى الله عنه قول دې.كوم چه دوى خپل خوى ته كوى.د دوى خوى حضرت رفاعه رضى الله عنه دې.حضرت رفاعه رضى الله عنه په جنګ بدركښې شريك شوې وو.خود دوى پلار حضرت رافع په جنګ بدركښې نه وو شريك شوې. البته په بيعت عقبه كښې شريك شوې وو.

① د دوى په دې قول كښې چه كومه ..ما.. ده.په دې كښې يو صورت خو دا دې. چه دا نافيه اومنلې شى.نو مطلب به دا شى.چه زما دپاره دا خبره د خوشحالۍ نه ده.چه زه د عقبه په ځاې په بدر كښې حاضر شوې وم.يعنى كه زه بدركښې نه يم حاضرشوې.نو زما په دې باندې خفګان نشته.ځكه چه زه د بدر په ځاې په عقبه ته حاضرشوې وم.ځكه چه عقبه خو هغه منزل وو.چه د هغې نه پس د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د هجرت اسباب پيدا شول.اوهم د بيعت عقبه په وجه اسلام ته د ترقۍ لارې پيدا شوې.اود اسلام دعوت اوتبليغ او ددې نشر او اشاعت په لويه پيمانه باندې شروع شو.

② دویم صورت دا دې چه ،،ما،، استفامیه تسلیم کړې شي.نو په دې صورت کښې به مطلب دا وی.چه څه خوشحالي به وه ماته،چه د عقبه په ځاې زه بدر ته حاضر شوې وم.په دې صورت کښې دعقبه فضیلت بیانول مقصود نه دی.بلکه په بدر کښې د حاضرئ ارمان مقصود دې.(۱)

[۳۷۷۳]حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ بَدْرٍ هَذَا جِبْرِيلُ آخِذٌ بِرَأْسِ فَرَسِهِ عَلَيْهِ أَدَاةُ الْحَرْبِ[ر:۳۸۱۵]

ددې روایت خصوصیت دا دې.چه دا روایت بعینه هم په دې سند سره اوهم په دې الفاظو سره وړاندې په غزه احد کښې راځی.(۲) دا خوزیات کیږی.چه یو روایت تیر شی.اوبیا روایت هم په دغه سند سره راشی.خوبه متن کښې دالفاظو فرق وی.خودا روایت د سندا او متن په اعتبار سره بعینه مکرر راغلې دې.د بخاری شارحینو رحمهم الله د تحقیق مطابق داسې روایات د شلو نه څه زیات دی.چه په هغې کښې متن او سند بعینه مکرر دی.

خوکه یو کس ته توفیق ملاؤ شو.اوهغه ددې خبرې تحقیق اوکړی.نو هغه ته به د شلو نه زیات داسې روایات ملاؤ شی.چه په هغې کښې سند او متن بعینه مکرر وی.

## ۱۲=باب

دا باب د ((فیمایتعلق ببدر)) په معنی کښې دې.

[۳۷۷۴]حَدَّثَنِي خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ مَاتَ أَبُو زَيْدٍ وَلَمْ يَتْرُكْ عَقِبًا وَكَانَ بَدْرِيًّا

محمد بن عبدالله انصاری ،دامام بخاری رحمه الله د مشرانو استاذانو نه دې. امام بخاری رحمه الله د دوی نه براه راست هم روایات نقل کوی.دلته روایت د خلیفه بن خیاط په واسطه سره امام بخاری رحمه الله نقل کوی.

حضرت ابوزید رضی الله عنه وفات شو.اود دوی نارینه اولاد نه وو.دوی بدری وو.

---

(۱)علامه عینی لیکی.((ما یسری نی ،، کلمة ما إستفهامیة وفیه معنی التمنی لشهود بدر ویحتمل أن تکون نافیة والباء فی ،،بالعقبة ،، باء البدل أی بدل العقبة (عمدة القاری (۱۷\۱۰٤)،،

البته کله چه ،ما،، نافیه اومنلې شی.نوبه دې صورت کښې اشکال کیدې شی.چه حضرت رافع بیعت عقبه ته په بدرباندې ولې ترجیح ورکوی.حالانکه نبی صلی الله علیه وسلم تصریح کړې ده.چه اهل بدر په ټولو مسلمانانوباندې افضل دی.نو ددې اشکال جواب حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی.،،

والذی یظهر أن رافع بن مالک لم یسمع من النبی صلی الله علیه وسلم التصریح بتفضیل أهل بدرعلی غیرهم فقال ما قال بإجتهاد منه وشبهته أن العقبة کانت منشأ نصرة الإسلام وسبب الهجرة التی نشأ منها الإستعداد للغزوات کلها لکن الفضل بیدالله یؤتیه من یشاء (فتح الباری (۷\۳۱۳)_~

(۲)باب غزوة أحد.. رقم الحدیث (٤۰٤۱)_

حضرت ابوزيد رضي الله عنه: حضرت ابوزيد انصارى رضي الله عنه صحابى دې.د دوى د نوم په باره كښې مختلف اقوال دى.

① علامه ذهبى رحمه الله په معجم الصحابة رضي الله عنهم كښې د دوى نوم ،،اوس بن السكن،، نقل كړې دې.[1] ② بعضې حضراتو ددوى نوم ،،معاذ،، نقل كړې دې.[2]

③ يحى بن معين او حافظ دمياطى رحمهما الله ددوى نوم ،،ثابت بن زيد،، خودلې دې.[3]

خودوى په خپل كنيت سره مشهر دى.او په هغه صحابو رضي الله عنهم كښې دې.چاچه د نبى صلى الله عليه وسلم په ژوند كښې ي قران پاك حفظ كړې وو.په بدر كښې شريك شوې وو.اود بدر نه علاوه په نورو تولو ،،مشاهد،، كښې هم شريك پاتې شوې دې.د حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه په دور خلافت كښې وفات شوى وو.[4]

[٣٧٧٥] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ خَبَّابٍ أَنَّ أَبَا سَعِيدِ بْنَ مَالِكٍ الْخُدْرِيَّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ فَقَدَّمَ إِلَيْهِ أَهْلُهُ لَحْمًا مِنْ لُحُومِ الْأَضَاحِي فَقَالَ مَا أَنَا بِآكِلِهِ حَتَّى أَسْأَلَ فَانْطَلَقَ إِلَى أَخِيهِ لِأُمِّهِ وَكَانَ بَدْرِيًّا قَتَادَةَ بْنِ النُّعْمَانِ فَسَأَلَهُ فَقَالَ إِنَّهُ حَدَثَ بَعْدَكَ أَمْرٌ نَقْضٌ لِمَا كَانُوا يُنْهَوْنَ عَنْهُ مِنْ أَكْلِ لُحُومِ الْأَضْحَى بَعْدَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ [ر:٥٢٢٨]

د دې روايت په سند كښې مسلسل درې تابعيان راغلى دى.يحى بن سعيد ، قاسم بن محمد او ابن خباب رحمهم الله چه نوم ئې عبدالله دې.دا درې واړه تابعيان دى.

په دې روايت كښې دى چه حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه د يو سفر نه واپس شو.دكور خلقو ورته د قربانۍ غوښه وړاندې كړه.حضرت ابوسعيد رضي الله عنه اووئيل.زه خو نه خورم.ترڅو چه د نبى صلى الله عليه وسلم نه تپوس اونكړم.(څك چه نبى صلى الله عليه وسلم په اول كښې د دريو ورځو نه زيات د قربانۍ د غوښې ساتلونه منع كړې وه.اودلته په دې وخت كښې د درې ورځو نه زياته موده تيره شوې وه) نو حضرت ابوسعيد رضي الله عنه دخپل مور شريك وررور حضرت قتاده بن النعمان رضي الله عنه ته ورغلو.

((وكان بدرياً)) اوقتاده رضي الله عنه بدرى وو.(د دې جملې د مناسبت په وجه دا روايت امام بخارى رحمه الله دلته ذكركړې دې) د هغوى نه حضرت ا بوسعيد رضي الله عنه تپوس اوكړو.نو حضرت قتاده بن نعمان رضي الله عنه اووئيل.چه ستا په سفر باندې د تلونه پس هغه اولنې حكم مسوخ شوې دې.په كوم كښې چه به د قربانۍ غوښه د درې ورځو نه زيات استعمالولو نه منع شوې وه.اوس د درې ورځو نه زيات د قربانۍ د غوښې ساتلو اجازت شوې دې.نوتاسو د قربانۍ غوښه خوړلې شئ.

---

[1] )عمدة القارى(١٠٦\١٧)_

[2] )عمدة القارى(١٠٦\١٧)_

[3] )عمدة القارى(١٠٦\١٧)_

[4] )فتح البارى(٣١٤\٨) وعمدة القارى(١٠٦\١٧)_

**حضرت قتاده بن النعمان رضی الله عنه:** حضرت قتاده بن النعمان بدری رضی الله عنه صحابی دي.اوپه انصارو کښې دې.د دوی کنیت ،،ابوعمر،، دې.انصارو دده کنیت ،،ابوعبدالله،، کیخودې وو. بعضو وئیلی دی.چه د دوی کنیت ،،ابوعثمان،، دې.[1] د دوی یوه سترګه په جنګ احد کښې بهرته راوتلې وه.بعضې خلقو وئیلی دی.چه په غزوه بدرکښې دا واقعه پیښه شوې وه.[2] اوبعضو وئلی دی.چه په غزوه خندق کښې دا واقعه پیښه شوې وه.[3] خو صحیح دا ده.چه دا واقعه په جنګ احد کښې پیښه شوې وه.[4] دوی د نبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو.او وې وئیل.یارسول الله زما یوه ښځه ده.زما د هغې سره محبت دې.او هغه زما سره محبت کوی.زما دا سترګه بهرته راوتلې ده.که هغه ما اووینی.نو زما نه به نفرت کوی.تاسو زما دپاره دعا اوکړئ.نو نبی صلی الله علیه وسلم د دوی دپاره دعا اوکړه.اوددوی هغه سترګه د وراندې زیاته ښه شوه.[5]

حضرت قتاده بن النعمان رضی الله عنه په ۲۳ھ کښې د حضرت عمر رضی الله عنه په دور خلافت کښې وفات شوې وو.۶۵ شپېته کاله عمر ئې وو.حضرت عمر رضی الله عنه د دوی د جنازې امامت کړې وو.[6]

بهرحال د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه د دې دویم روایت اصلی مقام خو «كتاب الأضاحى» دې.خوچونکه په دې روایت کښې دحضرت قتاده بن النعمان رضی الله عنه په بدر کښې د شرکت ذکر وو.ددې وجې امام بخاری رحمه الله دلته په غزوه بدرکښې ددې تخریج اوکړو.

[۳۷۷۶]حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ الزُّبَيْرُ لَقِيتُ يَوْمَ بَدْرٍ عُبَيْدَةَ بْنَ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ وَهُوَ مُدَجَّجٌ لَا يُرَى مِنْهُ إِلَّا عَيْنَاهُ وَهُوَ يُكْنَى أَبُو ذَاتِ الْكَرِشِ فَقَالَ أَنَا أَبُو ذَاتِ الْكَرِشِ فَحَمَلْتُ عَلَيْهِ بِالْعَنَزَةِ فَطَعَنْتُهُ فِي عَيْنِهِ فَمَاتَ قَالَ هِشَامٌ فَأُخْبِرْتُ أَنَّ الزُّبَيْرَ قَالَ لَقَدْ وَضَعْتُ رِجْلِي عَلَيْهِ ثُمَّ تَمَطَّأْتُ فَكَانَ الْجَهْدَ أَنْ نَزَعْتُهَا وَقَدْ انْثَنَى طَرَفَاهَا قَالَ عُرْوَةُ فَسَأَلَهُ إِيَّاهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَعْطَاهُ فَلَمَّا قُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَهَا ثُمَّ طَلَبَهَا أَبُو بَكْرٍ فَأَعْطَاهُ فَلَمَّا قُبِضَ أَبُو

---

[1] )الإصابة (۲۲۵\۳)_
[2] ) بیهقی په دلائل النبوة کښې د ابن غسیل نه په دې باره کښې دوه روایتونه نقل کړی دی.اوپه دغه دواړو روایتونوکښې ددې واقعه په جنګ بدرکښې د کیدو تصریح ده.دلائل بیهقی (۲۵۲\۳)
[3] )عمدة القاری(۱۰۶\۱۷)_
[4] ) ابن سعد په طبقات (۴۵۳\۳) کښې ابونعیم په دلائل النبوة (۴۸۴\۲) کښې ابوبکر هیثمی په مجمع الزوائد (۱۱۳\۶) کښې دغه شان په (۹۷۱۸) کښې اوحافظ ابن حجر رحمه الله په الإصابة (۲۲۵\۳) کښې په غزوه احدکښې ددې واقعه د واقع کیدو روایات نقل کړی دی._
[5] )دلائل أبي نعيم (۲۵۳\۲) وطبقات ا بن سعد(۴۵۳\۳)_
[6] )الإصابة (۲۲۶\۳) وطبقات ابن سعد (۴۵۳\۳)_

بَكْرٍ سَأَلَهَا إِيَّاهُ عُمَرُ فَأَعْطَاهُ إِيَّاهَا فَلَمَّا قُبِضَ عُمَرُ أَخَذَهَا ثُمَّ طَلَبَهَا عُثْمَانُ مِنْهُ فَأَعْطَاهُ إِيَّاهَا فَلَمَّا قُتِلَ عُثْمَانُ وَقَعَتْ عِنْدَ آلِ عَلِيٍّ فَطَلَبَهَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ فَكَانَتْ عِنْدَهُ حَتَّى قُتِلَ

په دې روايت كښې د عبيده بن سعيد بن العاص د قتل ذكردې.كوم چه په بدر كښې حضرت زبيربن العوام رضي الله عنه قتل كړې وو.ددې تفصيل تيرشوې دې. (١)

دامام بخارى رحمه الله په دې مقام كښې د دې حديث ذكركولونه مقصود دا خودل دى.چه حضرت زبيربن العوام رضي الله عنه په جنګ بدر كښې شريك شوې وو.

[٣٧٧٧]حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو إِدْرِيسَ عَائِذُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عُبَادَةَ بْنَ الصَّامِتِ وَكَانَ شَهِدَ بَدْرًا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَايِعُونِي [ر:١٨]

په دې روايت كښې د حضرت عباده بن الصامت رضي الله عنه د بدرى كيدو ذكر دې. (٢) د دې وجې امام بخارى رحمه الله ددې تخريج دلته كړې دې.

[٣٧٧٨]حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ أَبَا حُذَيْفَةَ وَكَانَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبَنَّى سَالِمًا وَأَنْكَحَهُ بِنْتَ أَخِيهِ هِنْدَ بِنْتَ الْوَلِيدِ بْنِ عُتْبَةَ وَهُوَ مَوْلًى لِامْرَأَةٍ مِنْ الْأَنْصَارِ كَمَا تَبَنَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا وَكَانَ مَنْ تَبَنَّى رَجُلًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ دَعَاهُ النَّاسُ إِلَيْهِ وَوَرِثَ مِنْ مِيرَاثِهِ حَتَّى أَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ فَجَاءَتْ سَهْلَةُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ [ر:٣٨٠٠]

حضرت ابوحذيفه رضي الله عنه كوم چه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره په جنګ بدركښې شريك شوې وو.هغوى سالم بن معقبل متنبى (په خوى توب سره نيولې شوې)جوړ كړې وو.اود خپلې وريرې سره ئې د سالم واده كړې وو.د دوى د وريرې نوم ،،هند بنت الوليد،، وو.د بخارى ددې روايت نه علاوه د نسائى اوابوداود په رواياتوكښې هم ددوى نوم ،،هند بنت الوليد،، ذكردې.(٣) خود موطا امام مالك رحمه الله په روايت كښې د دې نوم ،،فاطمه،، خودلې شوې دې.اوحافظ ابن عبدالبر رحمه الله په شرح د موطاء كښې دامام مالك اقتداء كړې ده.دسالم د ښځې نوم ئې فاطمه بنت الوليد بيان كړې دې.(٤) ابن عبدلبر رحمه الله په ،،الاستيعاب، كښې په صحابياتو كښې د ،،هندبنت الوليد،، ذكرنه دې كړې.ابن سعدپه طبقات كښې هم ،،هندبنت الليد

---

١) اوګورئ د عبيده بن سعيد قتل (٦٧)_

٢ )عبادة بن الصامت.. كان أحد النقباء بالعقبة وآخى رسول الله صلى الله عليه وسلم بينه وبين أبى مرثد الغنوى وشهد المشاهد كلها أنه كان طوالاً جميلاً جسيماً ومات بالرملة سنة أربع وثلاثين(وانظر الإصابة (٢٦٩١٢)_

٣ )عمدة القارى(١٠٨\١٧)_

٤ )عمدة القارى(١٠٨\١٧)_

ذکرپه صحابیاتوکښې نه دې کړې.(١) خودبخاری،ابوداؤد اونسائی په روایاتونو کښې ددې نوم هندبنت ولید خودلې شوې دې.(٢)
په دواړه قسم روایاتوکښې تاسو تطبیق داسې کولې شئ،چه ممکن ده.چه ددې دوه نومونه وی.اودا هم وئیلې شئ،چه یو نوم وی.اوبل لقب وی.نو چا په نوم سره ذکرکړې ده.او چا په لقب ،نو اوس د بخاری او موطاء په روایتونوکښې تضاد پاتې نشو.

**قوله**: وَهُوَ مَوْلًى لِامْرَأَةٍ مِنْ الْأَنْصَارِ: او حضرت سالم د یو انصاری ښځې آزاد کړې غلام وو.دا انصاری میرمن «ثبیتة بنت یعار» وه.دلته اشکال کیږی.چه په کتاب المناقب کښې یو باب دې.«باب مناقب سالم مولی أبی حذیفة» هلته سالم «مولی أبی حذیفة» وئیلی دی.اوپه دې روایت کښې «هو مولی لإمرأة من الأنصار» دی.چه دا د یوې انصاریې آزاد کرده غلام وو.په ظاهره په دواړو کښې تعارض دې.
حافظ ابن حجر رحمه الله ددې جواب دا ورکړې دې.چه په اصل کښې آزاده کرده غلام هم د «ثبیته انصاریه،،» دې
په کتاب المناقب کښې چه حضرت سالم ته ،،مولی ابی حذیفه،، وئیلی دی.هغه ئې ورته مجازاً وئیلی دی.ځکه چه حضرت سالم به د حضرت ابو حذیفه رضی الله عنه سره اوسیدل.اودهغوی سره ئې خصوصی تعلقات وو.ددې وجې هغوی ته ،،مولی ابی حذیفه،، وئیلی دی.(٣)

**قوله**: وَكَانَ مَنْ تَبَنَّى رَجُلًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ دَعَاهُ النَّاسُ إِلَيْهِ: اوپه زمانه د جاهلیت کښې چه به ئې څوك په خوی توب سره اونیولو.نوخلقو به دهغه نسبت هغه کس ته کولو.چاچه به دې متبنی نیولې وو.
اودا متبنی به دهغه متبنی نیونکی وارث هم وو.تردې چه الله تعالی د سورة احزاب دا آیت نازل کړو.﴿ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ﴾ (٤)

**قوله**: فَجَاءَتْ سَهْلَةُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ: وراندې هم هغه واقعه ده.چه سهله بنت سهیل کومه چه د حضرت ابوحذیفه ښځه وه.هغه نبی صلی الله علیه وسلم ته راغله.اوددوی په خدمت کښې ئې عرض اوکړو.چه د حضرت سالم سره زمونږ محبت او تعلق دومره دې،چه دې مونږ خپل خوې جوړ کړې وو.اوس هرکله چه آیت نازل شو.نو سالم چه زمونږ کورته راځی.ابوحذیفه دا ښه نه ګڼړی.حالانکه سالم سره قطع تعلق کول هم زمونږ

---

١ )فتح الباری(٣١٥\٧)_
٢ )فتح الباری(٣١٥\٧)_
٣ )فتح الباری(٣١٥\٧)_
٤ )پوره آیت دا دې﴿ ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِنْدَ اللَّهِ فَإِنْ لَمْ تَعْلَمُوا آبَاءَهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَمَوَالِيكُمْ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيمَا أَخْطَأْتُمْ بِهِ وَلَكِنْ مَا تَعَمَّدَتْ قُلُوبُكُمْ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا ﴾ سورة الأحزاب:٥)_

دپاره ګران دی.نو نبی ﷺ اوفرمائيل.چه ته هغه ته پئ ورکړه.نوحضرت سهلې هغه ته خپل پئ ورکړل.اودغه شان هغه ددې رضاعي خوئ شو.په دې عمرکښې د پيو ورکول او رضاعت معتبر ګڼړل په خصوصيت باندې محمول دی.

ددې واقعه ددې باب سره څه تعلق نشته.په دې حديث کښې چونکه د ا دی.چه حضرت ابوحذيفه رضي الله عنه په بدرکښې شريك شوې وو.ددې وجې امام بخاری رحمه الله دا حديث دلته ذکرکړلو.

**حضرت ابوحذيفه رضى الله عنه:** حضرت ابوحذيفه رضي الله عنه بدری صحابی رضي الله عنه دې. ددوی نوم بعضې خلقو ،،مهشم،، ،اوبعضو ،،هشيم،، ،اوبعضو ،،هاشم،، او بعضو ،،قيس،، خودلې دې. دوی په فضلاء صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې وو.او صاحب الهجرتين وو.د شپږ پنځوس کالو په عمرکښې د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه په دورکښې په جنګ يمامه کښې شهيد شوې وو.(١)

[٣٧٧٩] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا بِشْرُبْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا خَالِدُبْنُ ذَكْوَانَ عَنْ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَدَاةَ بُنِيَ عَلَيَّ فَجَلَسَ عَلَى فِرَاشِي كَمَجْلِسِكَ مِنِّي وَجُوَيْرِيَاتٌ يَضْرِبْنَ بِالدُّفِّ يَنْدُبْنَ مَنْ قُتِلَ مِنْ آبَائِهِنَّ يَوْمَ بَدْرٍ حَتَّى قَالَتْ جَارِيَةٌ وَفِينَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُولِي هَكَذَا وَقُولِي مَا كُنْتِ تَقُولِينَ [٤٨٥٢]

ربيع بنت معوذفرمائی.چه ماته رسول الله ﷺ دهغې شپې په صبا باندې تشريف راوړو.په کومه شپه چه زما رخصتی شوې وه.(دعربودا رواج وو.چه هغوی به د ناوې ترهغه وخته پورې نه رخصت کوله.ترڅوچه به خاوند دهغې دپاره د جدا کور او مکان انتظام نه وو کړئ.ددې وجې لفظ د ،،بنى،، د رخصتئ دپاره استعمالول شروع شو.ځکه چه رخصتی به په بناء (دکور په جوړولو.) موقوف وه. نو د «بنى على» مطلب دا شو.چه په کومه شپه زه رخصت شوې ووم.(دپلارد کورنه د خاوند کورته) او رسول الله ﷺ راغلو.زما په بستره داسې کيناستلو.لکه څنګه اې خالدبن ذکوان! چه ته ناست ئې.

**يواشکال اودهغې جوابونه:** دلته دا اشکال کيدې شی. چه خلوة بالاجنبيه نبی ﷺ څنګه کړې وو؟

① يوجواب دا ورکړې شوې دې.چه دا واقعه د نزول حجاب نه وړاندې وه.

② دويم جواب دا دې.چه دلته خلوت نه و.دلته خو ماشومانو جينکو سندرې وئيلې.لکه څنګه چه په روايت کښې وړاندې راځی.

③ خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه د قوی دلائلو نه مونږ باندې دا خبره ښکاره شوې ده.چه د نبی ﷺ دپاره خلوت بالاجنبيه جائز وو.ځکه چه خلوت بالاجنبيه په شريعت کښې ددې وجې ناجائز دې، چه په دې کښې د فتنې ويره وی. او نبی ﷺ معصوم وو.دلته د فتنې

(١) الإصابة (٤٢١ و ٤٣)_

څه ویره موجود نه وه.([1])

**قوله**: وَجُوَيْرِيَاتٌ يَضْرِبْنَ بِالدُّفِّ: دف بالضم هم وئیلی شی.او بالفتح هم وئیلی شی.یعنی ماشومانې جینکۍ وې.چه هغوی به طنبل وهل.([2])

**قوله**: يَنْدُبْنَ مَنْ قُتِلَ مِنْ آبَائِهِنَّ: ،،ندب،، د مړی محاسنو ذکرکولو ته وائی.نودلته ماشومانوچه په بدر کښې کوم حضرات شهیدان شوی ووی.دهغوی په باره ښې چه کومې مرثې وئیلې شوې وې. هغه ئې لوستلې.ددې حدیث نه د طنبل وهلو اوددې د آواز اوریدو اجازت معلومیږی.خو ددې نه د نن ورځې د مزامیرو استعمال او د سندرو په جوازباندې استدلال کول صحیح نه دی.ځکه چه نن صبا کوم خلق سندرې وائی.یا ډهول وهی. هغوی ددې فن د زده کولو دپاره ډیرمشقت کوی.د فن استاذان او ماهرین فن چه کوم کار کوی.هغه ددې ماشومانو جینکو په فعل سره نشی جائزثابتولې.د نکاح په موقع د طنبل وهلو صرف دومره اجازت شته.چه په دې سره د نکاح اعلان اوشی.

**قوله**: حَتَّى قَالَتْ جَارِيَةٌ وَفِينَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ:یوې ماشومې په کښې اووئیل.په مونږ کښې نبی موجود دې ،هغوی د راتلونکې زمانې خبرې پیژنی.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.((لاتقولی هکذا)) داسې مه وایه.ځکه چه د مستقبل علم خو صرف الله تعالی ته وی. که الله تعالی چاته د مستقبل د څه واقعې خبر ورکړی.نوهغه بله خبره ده.خوبغیرد څه سبب نه اوبغیرد الله تعالی د خودلو نه هیچا ته د مستقبل علم نشی کیدې.

[۳۷۸۰] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي أَخِي عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي عَتِيقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو طَلْحَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صَاحِبُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلَا صُورَةٌ يُرِيدُ التَّمَاثِيلَ الَّتِي فِيهَا الْأَرْوَاحُ [ر: ۳۰۵۳]

دا دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت دې.دوی فرمائی.چه حضرت ابوطلحه رضی الله عنه په بدرکښې شریك شوې وو. حضرت ابوطلحه رضی الله عنه مشهور صحابی دې.اودحضرت ام سلیم خاونددې.([3])

---

[1] )قال الكرمانى هو محمول على أن ذلک كان من وراء حجاب أوكان قبل نزل آية الحجاب وأجاز النظر للحاجة أو عند الأمن من الفتننة .. والآخر هو المعتمد والذى وضح لنا بالأدلة القوية أن من خصائص النبى ﷺ جواز الخلوة بالأجنبية والنظر إليها (فتح البارى ٩\٢٠٣) كتاب النكاح)_

[2] )عمدة القارى(١٧\١٠٩)_

[3] )قال الحافظ ابن حجر فى الإصابة (١١\٥٦٥و ٥٦٦) زيدبن سهل بن الأسود بن حرام.. الأنصارى الخزرجى أبوطلحة مشهور بكنية .. كان من فضلاء الصحابة رضی الله عنهم وهو زوج أم سليم....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

**قوله**: لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلَا صُورَةٌ: په کوم کورکښې سپي یا تصویر وی.هغې ته فرشتې نه داخلیږی.

**قوله**: يُرِيدُ التَّمَاثِيلَ الَّتِي فِيهَا الْأَرْوَاحُ: یا خودې نه د ذی روح تصویر مراد دې.یا هغه بتان مراد دی.کوم چه د ذی روح څیزونو وی.(١) بهر حال داسې کورته فرشتې نه داخلیږی. په کوم کښې چه سپې یا تصویرونه یا بتان وی.د فرشتونه مراد د رحمت فرشتې دی.بیا دلته سوال پیدا کیږی.چه ،،کلب،، عام دې.یا د ،،کلب،، نه مراد هغه ،،کلب دې.دکوم د ساتلو اجازت چه نه وی.دعلامه نووی او قرطبی رحمهما الله رایې دا ده.چه د دې نه عام کلب مراد دې.البته نور حضرات فرمائی.چه ددې نه هغه ،،کلب،، مراد دې.دکوم د ساتلو اجازت چه نشته.(ددې پوره تفصیل به په کتاب اللباس کښې راشی.انشاء الله) (٢)

[٣٧٨] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُونُسُ عَنْ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ أَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ عَلَيْهِمُ السَّلَام أَخْبَرَهُ أَنَّ عَلِيًّا قَالَ كَانَتْ لِي شَارِفٌ مِنْ نَصِيبِي مِنْ الْمَغْنَمِ يَوْمَ بَدْرٍ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَانِي مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْهِ مِنْ الْخُمُسِ يَوْمَئِذٍ فَلَمَّا أَرَدْتُ أَنْ أَبْتَنِيَ بِفَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَام بِنْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاعَدْتُ رَجُلًا صَوَّاغًا فِي بَنِي قَيْنُقَاعَ أَنْ يَرْتَحِلَ مَعِي فَنَأْتِيَ بِإِذْخِرٍ فَأَرَدْتُ أَنْ أَبِيعَهُ مِنْ الصَّوَّاغِينَ فَنَسْتَعِينَ بِهِ فِي وَلِيمَةِ عُرْسِي فَبَيْنَا أَنَا أَجْمَعُ لِشَارِفَيَّ مِنْ الْأَقْتَابِ وَالْغَرَائِرِ وَالْحِبَالِ وَشَارِفَايَ مُنَاخَانِ إِلَى جَنْبِ حُجْرَةِ رَجُلٍ مِنْ الْأَنْصَارِ حَتَّى جَمَعْتُ مَا جَمَعْتُ فَإِذَا أَنَا بِشَارِفَيَّ قَدْ أُجِبَّتْ أَسْنِمَتُهُمَا وَبُقِرَتْ خَوَاصِرُهُمَا وَأُخِذَ مِنْ أَكْبَادِهِمَا فَلَمْ أَمْلِكْ عَيْنَيَّ حِينَ رَأَيْتُ الْمَنْظَرَ قُلْتُ مَنْ فَعَلَ هَذَا قَالُوا فَعَلَهُ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَهُوَ فِي الْبَيْتِ فِي شَرْبٍ مِنْ الْأَنْصَارِ عِنْدَهُ قَيْنَةٌ وَأَصْحَابُهُ فَقَالَتْ فِي غِنَائِهَا أَلَا يَا حَمْزُ لِلشُّرُفِ النِّوَاءِ فَوَثَبَ حَمْزَةُ إِلَى السَّيْفِ فَأَجَبَّ أَسْنِمَتَهُمَا وَبَقَرَ خَوَاصِرَهُمَا وَأَخَذَ مِنْ أَكْبَادِهِمَا قَالَ عَلِيٌّ فَانْطَلَقْتُ حَتَّى أَدْخُلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ وَعَرَفَ

...د تیرمخ بقیه حاشیه] خطب أبوطلحة أم سليم فقالت ياأباطلحة مامثلك يرد ولكنك إمرؤ كافر وأنا مسلمة لا تحل لي فإن تسلم فذلك مهري فأسلم فكان ذلك مهرها .. ووعن أنس رضي الله عنه أنه كان يرمي بين يدي النبي ﷺ يوم أحد فرفع النبي ﷺ ينظر فرفع أبوطلحة صدره وقال هكذا لا يصيبك بعض القوم سهامهم نحري دون نحرك.. واختلف في وفاته فقال الواقدي مات سنة أربع وثلاثين وصلى عليه عثمان وقيل قبلها بسنتين وقال أبوزرعة الدمشقي عاش بعد النبي ﷺ أربعين سنة .. فعلى هذا يكون موته سنة خمسين أو سنة إحدى وخمسين .. وبه جزم المدائني)_

١) التماثيل جمع تمثال وهو الصورة (عمدة القاري(١٧/١١٠)_

٢) صحيح مسلم (٢٠/١٢) كتاب اللباس والزينة باب تحريم تصوير صورة الحيوان)_

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي لَقِيتُ فَقَالَ مَا لَكَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ عَدَا حَمْزَةُ عَلَى نَاقَتَيَّ فَأَجَبَّ أَسْنِمَتَهُمَا وَبَقَرَ خَوَاصِرَهُمَا وَهَا هُوَ ذَا فِي بَيْتٍ مَعَهُ شَرْبٌ فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرِدَائِهِ فَارْتَدَى ثُمَّ انْطَلَقَ يَمْشِي وَاتَّبَعْتُهُ أَنَا وَزَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ حَتَّى جَاءَ الْبَيْتَ الَّذِي فِيهِ حَمْزَةُ فَاسْتَأْذَنَ عَلَيْهِ فَأَذِنَ لَهُ فَطَفِقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلُومُ حَمْزَةَ فِيمَا فَعَلَ فَإِذَا حَمْزَةُ ثَمِلٌ مُحْمَرَّةٌ عَيْنَاهُ فَنَظَرَ حَمْزَةُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ إِلَى رُكْبَتِهِ ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ إِلَى وَجْهِهِ ثُمَّ قَالَ حَمْزَةُ وَهَلْ أَنْتُمْ إِلَّا عَبِيدٌ لِأَبِي فَعَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ ثَمِلٌ فَنَكَصَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عَقِبَيْهِ الْقَهْقَرَى فَخَرَجَ وَخَرَجْنَا مَعَهُ

**قوله**: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ: دلته د امام بخاری رحمه الله شیخ عبدان دې.دا عبدالله بن عثمان بن جبله دې.او د دوی کنیت ابوعبدالرحمن دې.د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې دا ده.چه د دوی نوم عبدالله دې. خلقو په دې کښې ترمیم کړې دې.او عبدان ئې ترې جوړ کړې دې،او حافظ ابن طاهر فرمائی.چه د دوی نوم عبدالله او کنیت ابوعبدالرحمن دې. د دوی د نوم نه ئې ,,عبد،،اخستې دې.اودغه شان ئې ددوی د کنیت نه هم ،،عبد ،،اخستې دې.اود دواړو تثنیه نه ئې ،،عبدان،، جوړ کړې دې،او هم په دې سره دوی مشهور دی.[1]

**قوله**: أَنَّ عَلِيًّا قَالَ كَانَتْ لِي شَارِفٌ مِنْ نَصِيبِي مِنَ الْمَغْنَمِ يَوْمَ بَدْرٍ:
حضرت علی رضی الله عنه فرمائی.چه زما سره یوه اوښه وه.کومه چه د جنګ بدر د مال غنیمت په حصه کښې زما رسیدلې وه.

«شارف» مسن اوښې ته وائی[2]

«وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَانِي مِمَّا أَفَاءَ اللّٰهُ عَلَيْهِ مِنَ الْخُمُسِ يَوْمَئِذٍ» د «أعطانی» مفعول محذوف دې.یعنی «أعطانی شارفا»

اویوه بله اوښه نبی صلی الله علیه وسلم ماته د هغه خمس نه راکړې وه.کوم چه الله تعالی نبی صلی الله علیه وسلم ته د بدر په ورځ ورکړې وو.

یعنی دغنیمت نه خمس وستې شوې وو.اوهغه خمس نبی صلی الله علیه وسلم بیا تقسیم کړې وو. نوپه هغې کښې یوه بله اوښه جضرت علی رضی الله عنه ته ملاؤ شوې وه.نودغه شان د حضرت عل رضی الله عنه سره دوه اوښې شوې.

---

[1] )عمدة القاری(۱۱/۷٤)_
[2] )فتح الباری(۱۹۹/٦)_

**قوله**: فَلَمَّا أَرَدْتُ أَنْ أَبْتَنِيَ بِفَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَام بِنْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: کله چه ما د حضرت فاطمه بنت نبی ﷺ د رخصتئ (واده کولو) اراده اوکړه.د ،،بناء،، او ،،ابتناء،، لفظ د رخصتئ په معنی کښې استعمالیږی.

**قوله**: وَاعَدْتُ رَجُلًا صَوَّاغًا فِي بَنِي قَيْنُقَاعَ أَنْ يَرْتَحِلَ مَعِي فَنَأْتِيَ بِإِذْخِرٍ فَأَرَدْتُ أَنْ أَبِيعَهُ مِنَ الصَّوَّاغِينَ فَنَسْتَعِينَ بِهِ فِي وَلِيمَةِ عُرْسِي: نوما د بنی قینقاع د یو زرګرسره دا خبره کړې وه.چه هغه به ماسره ځی.او مونږ به د اذخرګیاه راوړو.ما اراده کړې وه.چه زه به دغه ګیاه په زرګرانو باندې خرڅوم.اوپه دې سره به د خپل واده په ولیمه مدد اخلم.

**قوله**: فَبَيْنَا أَنَا أَجْمَعُ لِشَارِفَيَّ مِنَ الْأَقْتَابِ وَالْغَرَائِرِ وَالْحِبَالِ: ①الاقتاب: د ،،قتب،، جمع ده.کټهې ته وائی.(یعنی هغه پیړه کپړه چه د خریا بل څه خاروی په شا باندې اچولې شی. چه د بوج په وجه دهغه ملا د خوږیدونه بچ وی ازمترجم)

②الغرائر:د ،،غرارة،، جمع ده.بورو ته وائی.(څه اذخرپه کښې جمع کړی از مترجم)

③الحبال: د ،،حبل،، جمع ده.رسئ ته وائی.

ترجمه: نوپه داسې وخت کښې چه ما دخپلو دواړو اوښودپاره کټهې،بورئ او رسئ جمع کولې.

**قوله**: وَشَارِفَايَ مُنَاخَانِ إِلَى جَنْبِ حُجْرَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ: اوزما دواړه اوښې د یو انصاری د حجرې په خواه کښې ناستې وې.

**قوله**: حَتَّى جَمَعْتُ مَا جَمَعْتُ: تردې چه ما چه څه جمع کول هغه مې جمع کړل.

**قوله**: فَإِذَا أَنَا بِشَارِفَيَّ قَدْ أُجِبَّتْ أَسْنِمَتُهَا وَبُقِرَتْ خَوَاصِرُهُمَا وَأُخِذَ مِنْ أَكْبَادِهِمَا: ①اسنمة: د ،،سنام،، جمع ده.اوښ قب ته وائی.

② بقرت: ((أی شقت وقطعت)) څیرلې شوې وې.

③ خواصر: د ،،حاصر،، جمع ده.تشی ته وائی.

④ اکباد: د ،،کبد،، جمع ده.اینې (کلیجی) ته وائی.

نوناګهانه ما اوکتل.چه زما د دواړو اوښو قبونه پرې کړې شوی دی.اودهغې تشی څیرلی شوی دی.او د دواړو اینې راوستې شوی دی.

**قوله**: فَلَمْ أَمْلِكْ عَيْنَيَّ حِينَ رَأَيْتُ الْمَنْظَرَ قُلْتُ مَنْ فَعَلَ هَذَا قَالُوا فَعَلَهُ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَهُوَ فِي هَذَا الْبَيْتِ فِي شَرْبٍ مِنَ الْأَنْصَارِ: کله چه ما دا منظراولیدل.نوما په خپلو سترګو قابو اونکړې شو،ما تپوس اوکړو دا چا کړی دی؟ خلقو راته اوونیل.چه (ستا تره) حمزه بن عبدالمطلب کړې دی.او دانصارو د شراب څکونکو یوې ډلې سره هغه په دې کورکښې موجود دې.

شرب: دا د ،،شارب،، جمع ده.لكه څګه چه ،،راجل،، د ،،رجل،، جمع ده.مراد دى. شراب څكونكى خلق.

**قوله**: عِنْدَهُ قَيْنَةٌ وَأَصْحَابُهُ فَقَالَتْ فِي غِنَائِهَا أَلَا يَا حَمْزُ لِلشُّرُفِ النِّوَاءِ:

① قينة: سندرغاړې.

② شرف: دا د ،،شارف،، جمع ده.د پوخ عمراوبښې ته وائى.

③ النواء:د ،،ناوية،، جمع ده.دا د ،،شرف،، صفت دې. په معنى د څربې او پيړې، دوى سره يوه سندرغاړې وه.اوددوى ملګرى وو.نو سندرغاړې په خپله سندره كښې وئيلى وو.((أيايا حمزة للشرف النواء)) اې حمزه، دغه پيړو څربو اوښو ته طرف ته ورشه.

**قوله**: فَوَثَبَ حَمْزَةُ إِلَى السَّيْفِ فَأَجَبَّ أَسْنِمَتَهُمَا وَبَقَرَ خَوَاصِرَهُمَا وَأَخَذَ مِنْ أَكْبَادِهِمَا: نوحمزه رضي الله عنه راټوپ كړې.او توره ئې راواخستله.اود دواړو اوښو قبونه ئې كټ كړل.اودهغې تشې ئې اوخيرل.اودهغې اينې ئې را اوويستلې.

قَالَ عَلِيٌّ فَانْطَلَقْتُ حَتَّى أَدْخُلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ وَعَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي لَقِيتُ فَقَالَ مَا لَكَ: حضرت على رضي الله عنه فرمائى.ماچه دا حالت اوليدل.نود نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم.نبى ﷺ سره زيدبن حارثه هم و،.نبى ﷺ زماپه غم اوپريشانۍ باندې پوهه شو.نبى ﷺ تپوس اوكړو.په تا څه شوى دى؟ ما ورته اووئيل.يا رسول الله ما د نن ورځې پشان د غم منظر چرته نه دې ليدلې.نن حضرت حمزه رضي الله عنه زما په دوو اوښو باندې ظلم كړې دې.دهغې قبونه ئې كټ كړى دى.اودهغوى تشې ئې خيرلى دى. اوهغه اودهغه ملګرى دلته په يو كور كښې موجود دى.نو نبى ﷺ خپل څادر راوغوښتل.او ئې واچول، او روان شو.زيدبن حارثه رضي الله عنه هم دوى پسې شاته راروان شو.اوهغه كور ته ورغلل.په كوم كښې چه حضرت حمزه رضي الله عنه وو.نبى ﷺ د دننه تلواجازت اوغوستلو.نو نبى ﷺ ته اجازت ملاؤ شو.چه دننه لاړلو.نو نبى ﷺ حضرت حمزه رضي الله عنه د هغوى په دې فعل باندې ملامته كول شروع كړل.((فإذا حمزة ثمل محمرة عيناه)) ،،ثمل،، په نشه كښې د مدهوشه كيدوپه معنى كښې دې.يعنى حضرت حمزه رضي الله عنه د نشې په حالت كښې وو.اودواړه سترګې ئې سرې وې.حضرت حمزه رضي الله عنه نبى كريم ﷺ ته نظر راپورته كړو.(دپښو دطرف نه) اوبيا ئې نظرلږ نور پورته كړو.اود نبى ﷺ په زنګون نظرواچولو.اوبيا ئې نظر نور اوچت كړلو.او د نبى ﷺ مخ طرف ته ئې اوكتل.او وې وئيل.

**قوله**: وَهَلْ أَنْتُمْ إِلَّا عَبِيدٌ لِأَبِي: تاسوخلقو زما د پلار غلامان ئې.نبى ﷺ پوهه شو.چه دې په نشه كښې بيخوده دې.نو نبى ﷺ واپس دهغه ځاې نه په پوندو راغلو.اومونږ هم دهغوى سره راووتلو.

حضرت حمزه رضي الله عنه دلته نبي ﷺ او حضرت علي رضي الله عنه ته اوونيل.چه تاسو زما د پلار غلامان ئې.حافظ ابن حجر رحمه الله ددې توجيه دا كړې ده.چه چونكه نبي ﷺ د حضرت عبدالمطلب نمسې وو.او حضرت علي رضي الله عنه هم د هغوى نمسې وو.او حضرت حمزه رضي الله عنه دهغوى نمسې نه وو. بلكه خوئ وو.نو هغوى عبدالمطلب (چه د نبي ﷺ او حضرت علي رضي الله عنه نيكه اود عربو سردار وو) په منزله د سيد او مالك اوګرځول.او نبي ﷺ او حضرت علي رضي الله عنه ته ئې اوونيل.چه «هل أنتم إلا عبيد لأبي» اوپخپله چونكه دهغوى خوئ وو.او د عبدالمطلب سره دهغوى نسبت د نبي ﷺ او دحضرت علي رضي الله عنه په مقابله كښې زيات نزدې وو.نو ددې جملې نه د حضرت حمزه رضي الله عنه مقصود په دې خبره باندې فخر كول وو.چه زه ستاسو په نسبت عبدالمطلب ته زيات نزدې يم.([1])

خو حضرت ګنګوهي رحمه الله فرمائي.چه دحضرت حمزه رضي الله عنه په دې كلام كښې د توجيه كولو ضرورت څه دې؟ځكه چه هغوى په حالت د نشه كښې وو.د نشې په حالت كښې انسان نه عقل او هوش تلې وى.حضرت حمزه رضي الله عنه هم په دغه حالت كښې يوه بې معنى او بې مقصده خبرې كړې وه.نوددې د توجيه ضرورت څه دې؟ ([2])

بهرحال امام بخاري رحمه الله دا حديث دلته د غزوه بدر په بيان كښې ځكه ذكر كړو.چه په دې حديث كښې دى.چه د جنګ بدر په مال غنيمت كښې حضرت علي رضي الله عنه ته اوبنه ملاؤ شوې وه.ددې نه دحضرت علي رضي الله عنه بدرى كيدل معلوم شو.او هم دا د امام بخاري رحمه الله مقصد دې.

[٣٧٨٣] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبَّادٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ قَالَ أَنْفَذَهُ لَنَا ابْنُ الْأَصْبَهَانِيِّ سَمِعَهُ مِنْ ابْنِ مَعْقِلٍ أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كَبَّرَ عَلَى سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ فَقَالَ إِنَّهُ شَهِدَ بَدْرًا

دمحمدبن عباد كنيت ابوعبدالله دې.دامام بخاري رحمه الله استاذ دې.دووى قيام په بغداد كښې وو.ثقه او معروف او مشهور راوى دې.په ٢٣٤هـ كښې وفاتش وې دې.خصوصى خبره دا ده.چه د وى په بخاري كښې صرف دا يو روايت دې.([3])

**قوله**: أَنْفَذَهُ لَنَا ابْنُ الْأَصْبَهَانِيِّ : د «ابن الأصفهاني» نوم ،،عبدالرحمن بن عبدالله،، دې. دكوفې اوسيدونكې وو.ددې جملې دوه مطلبه كيدې شى.

① يو مطلب دا دې.چه ابن الاصبهانى دا حديث مونږ ته په پوره سند سره تر آخره پورې بيان كړې دې.

② دويمه معنى دا كيدې شى.چه ابن الاصبهانى دا حديث مونږ ته ليكلې راليږلې دې.مونږ

---

[1] )قال الحافظ أراد أن أباه عبدالمطلب جد للنبي ﷺ ولعلي رضي الله عنه أيضاً والجد يدعى سيداً وحاصله أن حمزة أراد الإفتخار عليهم بأنه أقرب إلى عبدالمطلب منهم (تعليقات اللامع (٢٦٨\٨)_

[2] )قال الشيخ رشيد أحمد الجنجوهي قدس سره في قوله ((وما أنتم إلا عبيد لأبي .. وما أبعد التلطف لتوجيه صحته مع أنه من كلام سكران الذي لم يكن له عقل إذا ذاك (لامع الدراري (٢٦٧\٨)_

[3] )عمدة القاري(١١١\١٧)_

دا حدیث د هغه نه اوریدلې نه دې.چه نقل کوو ئې.بلکه بطریق المکاتبة ئې نقل کوو.([1])
په راروان روایت کښې دی.چه حضرت علی رضی الله عنه د حضرت سهل بن حنیف په جنازه باندې تکبیرونه اوونیل.او وې فرمائیل.حضرت سهل رضی الله عنه بدرته حاضرشوې وو.دجنازې په مانځه کښې ئې څومره تکبیرونه وئیلی وو.د ابن عبدالبر او امام بغوی رحمهما الله د روایت مطابق ئې شپږ تکبیرونه وئیلی وو.او د حافظ ابوذر د روایت مطابق حضرت علی رضی الله عنه پنځه تکبیرونه وئیلی وو.([2])

[۳۷۸۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يُحَدِّثُ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حِينَ تَأَيَّمَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عُمَرَ مِنْ خُنَيْسِ بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا تُوُفِّيَ بِالْمَدِينَةِ قَالَ عُمَرُ فَلَقِيتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَفْصَةَ فَقُلْتُ إِنْ شِئْتَ أَنْكَحْتُكَ حَفْصَةَ بِنْتَ عُمَرَ قَالَ سَأَنْظُرُ فِي أَمْرِي فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ فَقَالَ قَدْ بَدَا لِي أَنْ لَا أَتَزَوَّجَ يَوْمِي هَذَا قَالَ عُمَرُ فَلَقِيتُ أَبَا بَكْرٍ فَقُلْتُ إِنْ شِئْتَ أَنْكَحْتُكَ حَفْصَةَ بِنْتَ عُمَرَ فَصَمَتَ أَبُو بَكْرٍ فَلَمْ يَرْجِعْ إِلَيَّ شَيْئًا فَكُنْتُ عَلَيْهِ أَوْجَدَ مِنِّي عَلَى عُثْمَانَ فَلَبِثْتُ لَيَالِيَ ثُمَّ خَطَبَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَنْكَحْتُهَا إِيَّاهُ فَلَقِيَنِي أَبُو بَكْرٍ فَقَالَ لَعَلَّكَ وَجَدْتَ عَلَيَّ حِينَ عَرَضْتَ عَلَيَّ حَفْصَةَ فَلَمْ أَرْجِعْ إِلَيْكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَإِنَّهُ لَمْ يَمْنَعْنِي أَنْ أَرْجِعَ إِلَيْكَ فِيمَا عَرَضْتَ إِلَّا أَنِّي قَدْ عَلِمْتُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ ذَكَرَهَا فَلَمْ أَكُنْ لِأُفْشِيَ سِرَّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوْ تَرَكَهَا لَقَبِلْتُهَا [۳۸۳۰و۳۸۳۶و۳۸۵۰]

په روایت کښې دی.چه حضرت حفصه بنت عمردخپل خاوند حضرت خنیس بن حذافه سهمی په وفات سره کونډه شوه.او حضرت خنیس رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې وو.اوپه بدرکښې شریک شوې وو.دووی وفات په مدینه منوره کښې شوې وو.چونکه حضرت حفصه اوس هم دواده د عمروه.نودهغوی خیال شو.چه واده اوکړې.نوپه دې سلسله کښې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه حضرت عثمان رضی الله عنه سره ملاو شو.او وې وئیل. که تاسو غواړئ.نوستاسو نکاح به د حفصې سره اوکړم.خو حضرت عثمان رضی الله عنه ورته اوونیل.زه به پرې سوچ اوکړم.او د سوچ نه پس ئې اوونې.زما فی الحال د نکاح کولو اراده نشته.حضرت عمر رضی الله عنه ددې نه پس حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره ملاو شو.اوهغوی ته ئې د حضرت حفصې د نکاح په باره کښې اوونیل.حضرت ابوبکر چپ پاتې شو.او څه جواب ئې ورته ورنکړو.حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی.چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته د حضرت عثمان رضی الله عنه په مقابله

---

[1] )قال الحافظ أنفذه لنا إبن الأصبهانی أی بلغ منتهاه من الروایة وتمام السیاق فنفذ فیه ،کقولک : إنفذت السهم أی رمیت به فاصبت وقیل المراد بقوله أنفذه لنا أی أرسله فکأنه حمله عنه مکاتبة أو إجازة وانظرفتح الباری (۳۱۸\۷)_
[2] )فتح الباری(۳۱۸\۷)_

كښې ماته زياته غصه راغله.(يوخودې وجې چه دوی څه جواب رانکړو.او دويم ددې وجې چه د دوی سره تعلقات هم د حضرت عثمان رضي الله عنه په مقابله کښې زيات وو.) بيا څو روځې پس نبی کريم ﷺ پخپله حفصې ته دنکاح پيغام اوليږلو.نودنبی ﷺ سره دحفصې نکاح اوشوه.
حضرت عمر رضي الله عنه فرمائی.چه روسته ما سره حضرت ابوبکر رضي الله عنه ملاو شو.او وې ونيل.کيدې شی.چه کله تاسو ته ما د حضرت حفصې دنکاح په باره کښې څه جواب درنکو.نو ته به زما نه خفه شوې وې.ما ورته اووئيل.آو زه خفه شوې ووم.نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائيل. ماتاسو ته ددې وجې جواب درنکړو.چه زما په علم کښې دا خبره راغلې وه.چه نبی ﷺ د حضرت حفصې سره نکاح کول غواړی.نوما د رسول الله ﷺ راز ښکاره کول نه غوښتل.که نبی ﷺ اراده پريخودې وه.نو ما به ضرور قبلوله.

په دې حديث کښې چونکه د حضرت خنيس بن حذافه رضي الله عنه د بدری کيدو ذکر دې.ددې وجې امام بخاری دلته ذکرکړو.والله اعلم.

**حضرت خنيس بن حذافه:** دوی د فضلاء صحابو رضي الله عنهم نه دې.او صاحب الهجرتين دې.په جنګ بدر کښې شريك وو.او په جنګ احد کښې زخمی شوې وو.اوهم ددغه زخم د وجې په مدينه منوره کښې وفات شو.دا د عبدالله بن حذافه ورور دې.(۱)

وړاندې امام بخاری رحمه الله درې رواياتونه ذکرکړې دی.اوپه دغه درې واړه روايتونوکښې امام بخاری رحمه الله حضرت ابومسعود رضي الله عنه بدری ثابتوی.

[۳۷۸۳] حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيٍّ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ سَمِعَ أَبَا مَسْعُودٍ الْبَدْرِيَّ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَفَقَةُ الرَّجُلِ عَلَى أَهْلِهِ صَدَقَةٌ [ر:۵۵]

[۳۷۸۵] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ يُحَدِّثُ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ فِي إِمَارَتِهِ أَخَّرَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ الْعَصْرَ وَهُوَ أَمِيرُ الْكُوفَةِ فَدَخَلَ عَلَيْهِ أَبُو مَسْعُودٍ عُقْبَةُ بْنُ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيُّ جَدُّ زَيْدِ بْنِ حَسَنٍ شَهِدَ بَدْرًا فَقَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ نَزَلَ جِبْرِيلُ فَصَلَّى فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسَ صَلَوَاتٍ ثُمَّ قَالَ هَكَذَا أُمِرْتُ كَذَلِكَ كَانَ بَشِيرُ بْنُ أَبِي مَسْعُودٍ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِيهِ [ر:۴۹۹]

[۳۷۸۶] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْبَدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْآيَتَانِ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ مَنْ قَرَأَهُمَا فِي لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ فَلَقِيتُ أَبَا مَسْعُودٍ وَهُوَ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ فَسَأَلْتُهُ فَحَدَّثَنِيهِ [۴۷۲۲، ۴۷۵۳، ۴۷۶۳]

**حضرت ابومسعود رضی الله عنه:** د دوی نوم عقبه بن عمرو دې.او دې انصاری دې.دخزرج قبيلې سره ددوی تعلق دې. او په بيعت عقبه کښې شريك شوې وو.د دوی په بدری کيدو کښې اختلاف دې.د ابن اسحاق او واقدی وغيره رحمهم الله رائې دا ده . چه دې په جنګ بدر

۱) الإصابة (۴۵۶/۱)۔

كښې نه وو شريك شوې.دوى ته بدرى ددې وجې وئيلې شى. چه د بدر په خاې كښې اوسيدلو.خودامام بخارى،امام مسلم ،طبرانى وابوعتبه بن سلام رحمهم الله وغيره راې دا ده.چه دې په بدركښې شريك شوې وو.اوتاسوته معلومه ده.چه ((المثبت مقدم على المنفى)) چه مثبت ته په منفى باندې ترجيح وى. نو ځكه به دې بدرى شمارلې شى.(١)

امام بخارى رحمه الله دلت د ابومسعود رضي الله عنه د بدرى كيدو د ثبوت دپاره د درې روايتونوتخريج كړې دې.په اولنى روايت كښې ئې د دوى د يوم سره صرف ،،بدرى،،ذكركړې دې.په دې كښې دا احتمال وو.چه چونكه دوى په بدر كښې اوسيدل. د دې وجې دوى ته بدرى وئيلې شى.نو امام بخارى رحمه الله د دويم روايت تخريج اوكړو.په هغې كښې حضرت عروه د ((شهد بدراً)) تصريح كړې ده.دغه شان په دريم روايت كښې حضرت علقمه رحمه الله دوى ته بدرى وئيلى دى.بهر حال د دې باب په درې واړه رواياتوكښې امام بخارى د ابو مسعود انصارى رضي الله عنه بدرى كيدل ثابت كړى دى.

[٣٧٨٧] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي مَحْمُودُ بْنُ الرَّبِيعِ أَنَّ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مِنَ الْأَنْصَارِ أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حَدَّثَنَا أَحْمَدُ هُوَ ابْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُونُسُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ ثُمَّ سَأَلْتُ الْحُصَيْنَ بْنَ مُحَمَّدٍ وَهُوَ أَحَدُ بَنِي سَالِمٍ وَهُوَ مِنْ سَرَاتِهِمْ عَنْ حَدِيثِ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ عَنْ عِتْبَانَ بْنِ مَالِكٍ فَصَدَّقَهُ [ر: ٤٢٤]

په دې روايت كښې د حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه په باره كښې دى.چه دوى په جنګ بدر كښې شركت كړې وو.حضرت عتبان بن مالك رضي الله عنه انصارى خزرجى دې.دوى د خپلې قبيلې بنو سالم امام هم وو.د جمهورو په نيز دوى بدر دى.البته ابن اسحاق دوى په بدرينو كښې نه دې شمار كړې.د حضرت امير معاويه رضي الله عنه په دورخلافت كښې دوى وفات شوى وو.او دوى دهغه د جنازې مونځ وركړې وو.(٢)

[٣٧٨٨] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ وَكَانَ مِنْ أَكْبَرِ بَنِي عَدِيٍّ وَكَانَ أَبُوهُ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ عُمَرَ اسْتَعْمَلَ قُدَامَةَ بْنَ مَظْعُونٍ عَلَى الْبَحْرَيْنِ وَكَانَ شَهِدَ بَدْرًا وَهُوَ خَالُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ وَحَفْصَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ

دا حديث د عبدالله بن عامر رحمه الله نه مروى دې.د دوى پلار عامربن ربيع رضي الله عنه دې.په جنګ بدر كښې شريك شوې وو.حضرت عامربن ربيعه رضي الله عنه خطيب الاسالم دې.په مكه مكرمه

---

(١) الإصابة ٢/٤٩٠ و ٤٩١)_
(٢) الإصابة ٢/٤٥٢)_

كښې ئې ايمان راوړې وو.او حبشه طرف ته ئې هجرت کړې وو. بیامدینې ته راغلې وو.د بدر نه عالوه د نوروو ټول مشاهدو کښې شريك شوې وو.د دوى خوى عبدالله بن عامر كوم چه د دې حديث راوى دې.په ٢ ﻫ کښې پيدا شوې وو.د حضرت عامر رضي الله عنه يو بل خوې هم وو. د هغه نوم هم عبدالله وو.او هغه په جنګ طائف كښې شريك شوې وو.او هم په هغې کښې شهيد شوې وو.د حضرت عامر بن ربيعه وفات په ٣٢ﻫ يا ٣٣ﻫ يا ٣٥ﻫ کښې شوې وو.(١)

**قوله:** أَنَّ عُمَرَ اسْتَعْمَلَ قُدَامَةَ بْنَ مَظْعُونٍ عَلَى الْبَحْرَيْنِ وَكَانَ شَهِدَ بَدْرًا:

حضرت عمر رضي الله عنه حضرت قدامه بن مظعون رضي الله عنه د بحرين عامل جوړ کړې وو.او حضرت قدامه رضي الله عنه په جنګ بدر کښې شريك شوې وو.

**حضرت قدامه بن مظعون رضى الله عنه:** حضرت قدامه بن مظعون رضي الله عنه د حضرت عثمان بن مظعون او عبدالله بن مظعون رضي الله عنهما ورور وو.اود حضرت عبدالله بن عمر او حضرت حفصې رضي الله عنها ما ما وو.د دوى خور حضرت زينب بنت مظعون د حضرت عمر رضي الله عنه بى بى وه.دوى په جنګ بدر کښې شريك شوى وو،حضرت عمر رضي الله عنه دوى د بحرين عامل جوړ کړې وو.حضرت عمر ته شكايت ملاؤ شو.چه قدامه رضي الله عنه مسكر استعمال کړې دې.دوى تحقيق اوکړو.او ددې نه پس ئې حضرت قدامه رضي الله عنه معزول کړلو.اوپه دوى باندې ئې حد جارى کړو.او د دوى په ځاې ئې حضرت عثمان بن ابى العاص رضي الله عنه د بحرين والى مقرر کړو.(٢)

[٣٧٨٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَسْمَاءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَنَّ سَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ أَخْبَرَهُ قَالَ أَخْبَرَ رَافِعُ بْنُ خَدِيجٍ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ أَنَّ عَمَّيْهِ وَكَانَا شَهِدَا بَدْرًا أَخْبَرَاهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ كِرَاءِ الْمَزَارِعِ قُلْتُ لِسَالِمٍ فَتُكْرِيهَا أَنْتَ قَالَ نَعَمْ إِنَّ رَافِعًا أَكْثَرَ عَلَى نَفْسِهِ [ر:٢٢٠٢]

په دې حديث کښې هم دا خودل مقصود دى.چه د حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه دوه ترونه وو.او دواړه جنګ بدر ته حاضر شوى وو.په دوى کښې د يونوم ،،ظهير،،(په تصغيرسره) اودبل نوم ،،مظهر،، وو.ظهير په عقبه ثانيه كښې شريك شوې وو.مظهر دده دووغلامانوپه خيبر کښې د يهودو په سازش سره قتل کړې وو.دا د حضرت عمر رضي الله عنه زمانه وه.حضرت

(١) عمدة القارى(١٧\١١٣و ١١٤)_

(٢) وقد اورد الحافظ القصة عن عبدالرزاق فى مصنفه وقال فقدم الجارود العقدى على عمر فقال إن قدامة سكر،فقال من يشهد معک؟ فقال أبوهريرة فشهد أبوهريرة أنه سكران يقى فأرسل إلى قدامة فقال له الجارود أقم عليه الحد فقال له عمر إخصم أنت أم شاهد رضي الله عنه فصمت ثم عاوده فقال لتمسكن .أ و لأسوانک فقال ليس فى الحق أن يشرب إبن عمک وتسوءنى فأرسل عمر إلى زوجته هند بنت الوليد فشهدت على زوجها فقال عمر لقدامة إنى أريد أن أحدک فقال ليس لک ذلک لقول الله عزوجل ﴿ ليس على الذين آمنوا وعملوا الصالحات جناح فيما طعموا ﴾ فقال أخطأت التاويل فإن بقية الآية ((إذا ما إتقوا)) فإنک إذا إتقيت أجتنبت ما حرم الله عليک ثم أمربه فجلد فغاضبه قدامة ثم حجاً جميعاً فاستيقظ عمر من نومه فزعاً فقال عجلوا بقدامة أتانى آت فقال صالح قدامة فإنه أخوک فاصطلحا (وانظرفتح البارى(٧\٣٢٠))_

عمرؓ ددې واقعه په وجه د يهوديانو د خيبر نه د جلا وطنئ حكم اوكړو.اودغه شان يهود د خيبر نه هم اووتل.([1]) په حديث كښې وړاندې د. كراء الارض مسئله ده.كومه چه به په كتاب المزارعة كښې راشي. (انشاء الله)

[۳۷۹۰]حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ شَدَّادِ بْنِ الْهَادِ اللَّيْثِيَّ قَالَ رَأَيْتُ رِفَاعَةَ بْنَ رَافِعٍ الْأَنْصَارِيَّ وَكَانَ شَهِدَ بَدْرًا

په دې روايت كښې د حضرت رفاعه بن رافع په باره كښې دى.چه دوى په جنګ بدر كښې شريك وو.([2])

[۳۷۹۱]حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ وَيُونُسُ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَمْرَو بْنَ عَوْفٍ وَهُوَ حَلِيفٌ لِبَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ وَكَانَ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ إِلَى الْبَحْرَيْنِ يَأْتِي بِجِزْيَتِهَا وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ صَالَحَ أَهْلَ الْبَحْرَيْنِ وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ الْعَلَاءَ بْنَ الْحَضْرَمِيِّ فَقَدِمَ أَبُو عُبَيْدَةَ بِمَالٍ مِنْ الْبَحْرَيْنِ فَسَمِعَتْ الْأَنْصَارُ بِقُدُومِ أَبِي عُبَيْدَةَ فَوَافَوْا صَلَاةَ الْفَجْرِ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا انْصَرَفَ تَعَرَّضُوا لَهُ فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ رَآهُمْ ثُمَّ قَالَ أَظُنُّكُمْ سَمِعْتُمْ أَنَّ أَبَا عُبَيْدَةَ قَدِمَ بِشَيْءٍ قَالُوا أَجَلْ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ فَأَبْشِرُوا وَأَمِّلُوا مَا يَسُرُّكُمْ فَوَاللَّهِ مَا الْفَقْرَ أَخْشَى عَلَيْكُمْ وَلَكِنِّي أَخْشَى أَنْ تُبْسَطَ عَلَيْكُمْ الدُّنْيَا كَمَا بُسِطَتْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ فَتَنَافَسُوهَا كَمَا تَنَافَسُوهَا وَتُهْلِكَكُمْ كَمَا أَهْلَكَتْهُمْ[ر:۲۹۸۸]

حضرت مسعودبن مخرمهؓ فرمائى.چه عمروبن عوف كوم چه د بنى عامر بنى لوى حليف وو.اوپه جنګ بدر كښې د نبىﷺ سره شريك وو.بيان كړى دى.چه نبىﷺ ابوعبيده بن الجراحؓ بحرين ته اوليږلو.چه دهغه ځاى نه جزيه راوړى.او نبىﷺ د اهل بحرين سره صلح كړې وه.او حضرت علاء بن حضرمىؓ ئې په هغوى امير مقرر كړې و..دحضرت علاء بن حضرمىؓ د پلار نوم عبدالله بن عماد حضرمى دى.علاء بن حضرمى د حضرت ابوبكرؓ او حضرت عمرؓ په زمانه كښې هم د بحرين امير پاتې شوې دى.په ۱۴هـ كښې وفات شوى وو.ددوى نه پس حضرت عمرؓحضرت ابوهريرهؓ د بحرين امير مقرر كړو.([3]) دحضرت ابوهريرهؓ نه پس ئې حضرت قدامه بن مظعونؓ او بيا حضرت عثمان بن ابى العاصؓ د بحرين امير مقرر كړو.حضرت ابوعبيده بن الجراح دؓ د

---

[1] )عمدة القارى(۱۷\۱۱٤)_

[2] )حضرت رفاعه بن رافع د انصارو د قبيلې خزرج سره تعلق ساتلو.دوى او ددوى پلار دواړه عقبه او نورو مشاهدو ته حاضرشوى وو.په يوځلويشت يا دوه ځلويښت هجرئ كښې وفات شوى وو. الإصابة (۱۱\۵۱۷)_

[3] )عمدة القارى(۱۷\۱۱۵)_

بحرين نه مال راوړول. او راغلل.حضرات انصارو چه د ابوعبيده ﷺ د راتلو خبر واو ريدو.نود نبى ﷺ سره د صبا په مانځه كښې د ملاويدودپاره حاضر شول.نوكله چه نبى ﷺ د مانځه نه فارغ شو.انصار ورته مخامخ راغلل.نبى ﷺ چه دوى اوليدل نو مسكې شو.او بيا دوى ته مخاطب شو.او وې فرمائيل.زما خيال دې چه تاسو خلقو د ابوعبيده ﷺ د راتلو خبراوريدلې دې.چه هغه (دبحرين ) نه څه (مال) راوړې دې.حضرات انصاروﷺ جواب وركړو.آو.يا رسول الله! وئيل چه نبى ﷺ اوفرمائيل.

**قوله**: قَالَ فَأَبْشِرُوا وَأَمِّلُوا مَا يَسُرُّكُمْ فَوَاللَّهِ مَا الْفَقْرَ أَخْشَى عَلَيْكُمْ وَلَكِنِّي أَخْشَى أَنْ تُبْسَطَ عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا كَمَا بُسِطَتْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ فَتَنَافَسُوهَا كَمَا تَنَافَسُوهَا وَتُهْلِكَكُمْ كَمَا أَهْلَكَتْهُمْ: ناسوته دې زيرې وى.او كوم څيز چه تاسو خوشحاله كوى.د هغې اميد ساتئ.(يعنى مال او دولت) په الله قسم زما په تاسو د فقر او محتاجئ ويره او خوف نشته.بلكه زه ددې خبرې نه ويريږم.چه دنيا به په تاسو داسې فراخه كړې شى.لكه څنګه چه ستاسو نه په وړاندې خلقو فراخه كړې شوې وه.او تاسو به دې طرف ته مائله شئ.لكه څنګه چه مخكنى خلق مائله شوى وو.او دا دنيا به تاسو تباه او برباد كړى.لكه څنګه چه ئې ستاسونه وړاندې خلق تباه كړى وو.

په دې واقعه كښې د حضرت عمروبن عوف ﷺ بدرى ذكردې.ددې وجې امام بخارى ﷺ دا دلته ذكر كړه.

[۳۷۹۲]حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا كَانَ يَقْتُلُ الْحَيَّاتِ كُلَّهَا حَتَّى حَدَّثَهُ أَبُو لُبَابَةَ الْبَدْرِيُّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ قَتْلِ جِنَّانِ الْبُيُوتِ فَأَمْسَكَ عَنْهَا[ر:۳۱۳۰]

په دې روايت كښې دى.چه حضرت ابن عمر ﷺ به هرقسم ماران وژل. تردې چه حضرت ابولبابه بدرى ﷺ دوى ته بيان اوكړو.چه ((أن النبى ﷺ نهى من قتل جنان البيوت)) يعنى رسول اكرم ﷺ د ،،جنان البيوت،، د قتل نه منع كړې ده.

((جنان:بكسرالجيم، وتشديدالنون)) جمع ده.د ،،جان،،دسپين رنګ مارته وائى. بعضې حضراتو فرمائيلى دى.چه نرې غوندې مار دې.هغې ته ،،جان،، وائى.(۱)

كله چه حضرت ابولبابه ﷺ دا حديث حضرت ابن عمر ﷺ ته واورول. نوهغوى بيا د مارانو د قتل كولونه منع شو.(۲) بهرحال په دې حديث كښې چونكه ابولبابه ﷺ ته بدرى وئيلې دې،ددې وجې امام بخارى دا دلته بيان كړو.

حضرت انس ﷺ فرمائى.چه د انصارو څو كسانود نبى ﷺ نه اجازت اوغوستلو اووې وئيل.چه تاسو مونږ ته اجازت راكړئ.چه مونږ د خپل خوريى حضرت عباس ﷺ فديه

(۱) عمدة القارى(۱۷\۱۱۵)_

(۲) ددې حديث تشريح په ((بدء الخلق)) كښې تيره شوې ده)_

پريږدو.نو نبی ﷺ اوفرمائيل.په الله قسم،يو درهم به هم په دې کښې نه پريږدئ.(ددې تفصيل تير شوې دې) چونکه په دې کښې د انصارو د هغه کسانو ذکر دې،کوم چه بدر ته حاضر شوی وو.ددې وجې امام بخاری رحمه الله دا روايت دلته بيان کړو.

[۳۷۹۳] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّ رِجَالًا مِنَ الْأَنْصَارِ اسْتَأْذَنُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا ائْذَنْ لَنَا فَلْنَتْرُكْ لِابْنِ أُخْتِنَا عَبَّاسٍ فِدَاءَهُ قَالَ وَاللَّهِ لَا تَذَرُونَ مِنْهُ دِرْهَمًا [ر: ۲۴۰۰]

**قوله**: وَاللَّهِ لَا تَذَرُونَ مِنْهُ دِرْهَمًا: «لاتذرن» هغه فعل دې.چه ماضی ،مصدراو اسم فاعل ئې مستعمل نه دې. که څنګه چه د «يدع»، ماضی مستعمل نه دې.(۱)

**قوله**: فَقَالُوا ائْذَنْ لَنَا فَلْنَتْرُكْ لِابْنِ أُخْتِنَا: د «فلنترك» په باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلی دی.چه دا د امر صيغه ده.او لام د مبالغې دپاره دې.(۲)

علامه عينی رحمه الله فرمائيلی دی.دې ته فعل امر هغه کس وئيلې شی.دچا چه دعلم صرف سره هيڅ واقفيت نه وی.دوی وائی.چه دا فعل مضارع ده.اولام د تاکيد دپاره دې.(۳)

**قوله**: لِابْنِ أُخْتِنَا عَبَّاسٍ رضى الله عنهما: حضرات انصارو رضی الله عنهم حضرت عباس رضی الله عنه ته خوريې اووئيل.دحضرت عباس رضی الله عنه مور د انصارو څنی نه وه.بلکه د دوی نيا د عبدالمطلب مور سلمی بنت عمرو د انصارو نه وه.حضرت عباس رضی الله عنه ته هغوی خوريې مجازاً وئيلی دی.(۴)

[۳۷۹۴] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَدِيٍّ عَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهِ قَالَ أَخْبَرَنِي عَطَاءُ بْنُ يَزِيدَ اللَّيْثِيُّ ثُمَّ الْجُنْدَعِيُّ أَنَّ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ أَخْبَرَهُ أَنَّ الْمِقْدَادَ بْنَ عَمْرٍو الْكِنْدِيَّ وَكَانَ حَلِيفًا لِبَنِي زُهْرَةَ وَكَانَ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَأَيْتَ إِنْ لَقِيتُ رَجُلًا مِنَ الْكُفَّارِ فَاقْتَتَلْنَا فَضَرَبَ إِحْدَى يَدَيَّ بِالسَّيْفِ فَقَطَعَهَا ثُمَّ لَاذَ مِنِّي بِشَجَرَةٍ فَقَالَ أَسْلَمْتُ لِلَّهِ أَأَقْتُلُهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ بَعْدَ أَنْ قَالَهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ

---

۱ )مختارالصحاح (۷۱۵) ماده «و، ذ، ر»_

۲ )فتح الباری(۳۲۲\۷)_

۳ )عمدة القاری(۱۱۶\۱۷)_

۴ )فتح الباری(۳۲۲\۷) د حضرت عباس رضی الله عنه د مور نوم نشيله وو.د «تيم الله بن النمر» په اولاد کښې وه.(عمدة القاری (۱۱۶\۱۷) البته حافظ ابن حجر رحمه الله د دوی نوم «نتيله» په «تا» سره ليکلې دې.فتح الباری(۳۲۲\۷)_

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقْتُلْهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهُ قَطَعَ إِحْدَى يَدَيَّ ثُمَّ قَالَ ذَلِكَ بَعْدَ مَا قَطَعَهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقْتُلْهُ فَإِنْ قَتَلْتَهُ فَإِنَّهُ بِمَنْزِلَتِكَ قَبْلَ أَنْ تَقْتُلَهُ وَإِنَّكَ بِمَنْزِلَتِهِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ كَلِمَتَهُ الَّتِي قَالَ [ر:۲۶۴۲]

حضرت مقداد بن عمروكندى كوم چه د بنو زهره حليف او د شركاء بدرنه وو. فرمائى. چه دوى نبى ﷺ ته عرض اوكړو.چه په دې باره كښې تاسو د خپلې رايې ارشاد اوفرمائې.كه د يو كافر سره زما مقابله شى.او مونږ د يوبل د قتل كولو كوشش كوو.په دې كښې هغه زما يو لاس په توره باندې كټ كړى.او بيا هغه زما نه دبچ كيدو دپاره ديوې وونې پناه واخلى.اود وونې شاته شى.ا واووائى .((أسلمت لله)) زه مسلمان شوم.نو يارسول الله ﷺ دده د دې وينا نه پس زه دې قتلولې شم؟ نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.((لاتقتله)) ته هغه مه قتلوه.حضرت مقداد عرض اوكړو. يارسول الله هغه خو وړاندې زما يو لاس كټ كړې دې. اود هغې نه پس هغه بيا ((أسلمت لله)) اووئيل.د حضرت مقداد ﷺ مطلب دا وو.چه هغه دا اقراردځان بچ كولودپاره كوى.نو دده قتل پكارده چه جائز وى.نو نبى ﷺ اوفرمائيل

**قوله**: لَا تَقْتُلْهُ فَإِنْ قَتَلْتَهُ فَإِنَّهُ بِمَنْزِلَتِكَ قَبْلَ أَنْ تَقْتُلَهُ وَإِنَّكَ بِمَنْزِلَتِهِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ كَلِمَتَهُ الَّتِي قَالَ: ته هغه مه قتلوه.كه تا هغه قتل كړو،نو هغه به ستا هغه درجې ته اورسى. كومه چه د هغه د قتلولو نه وړاندې ستا وه.اوته به د هغه په هغه درجه كښې شې. كومه چه د كلمې وئيلو (اواسلام اعلان كولو) نه وړاندې دهغه وه.

دلته دوه تشبيهات دى.يوه تشبيه په ،،عصمت دم،، كښې ده.او دويمه تشبيه په ،،اباحت دم،، كښې ده.((فإنه بمنزلتك قبل أن تقتله)) دا تشبيه ده.د عصمت دم،چه دده د قتل كولو نه وړاندې ته معصوم الدم وې.او هغه چه كلمه د اسلام اووئيله.او اوس هغه داسې معصوم الدم شو.لكه څنګه چه ته د هغه د قتل نه وړاندې معصوم الدم وې.(ځكه چه د اسلام دكلمې وئيلونه پس هغه مسلمان شو، اومسلمان معصوم الدم وى. ((وإنك بمنزلته التى قبل أن يقول كلمته التى قال)) د تشبيه په اباحت دم كښې ده.چه دهغه د قتلولونه پس ته داسې مباح الدم اوګرځيدې شى.لكه څنګه چه د اسلام دكلمې وئيلونه وړاندې هغه مباح الدم وو.(ځكه څوك چه كلمه داسلام اووائى.نودهغه قتل موجب د قصاص دې.اوپه قصاص كښې قتل كيدونكې سړې مباح الدم وى.([1])

[۲۶۹۵] حَدَّثَنِي يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ حَدَّثَنَا أَنَسٌ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ مَنْ يَنْظُرُ مَا صَنَعَ أَبُو جَهْلٍ

---

[1] )قال الخطابى معنى هذا أن الكافر مباح الدم بحكم الدين قبل أن يقول كلمة التوحيد فإذا قالها صار محظورالدم كالمسلم فإن قتله المسلم بعد ذلک صار دمه مباحاً بحق القصاص كالكافر بحق الدين )ـ

فَانْطَلَقَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَوَجَدَهُ قَدْ ضَرَبَهُ ابْنَا عَفْرَاءَ حَتَّى بَرَدَ فَقَالَ أَنْتَ أَبَا جَهْلٍ قَالَ ابْنُ عُلَيَّةَ قَالَ سُلَيْمَانُ هَكَذَا قَالَهَا أَنَسٌ قَالَ أَنْتَ أَبَا جَهْلٍ قَالَ وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلْتُمُوهُ قَالَ سُلَيْمَانُ أَوْ قَالَ قَتَلَهُ قَوْمُهُ قَالَ وَقَالَ أَبُو مِجْلَزٍ قَالَ أَبُو جَهْلٍ فَلَوْ غَيْرُ أَكَّارٍ قَتَلَنِي [ر:۳۷۴۵]

په دې روايت کښې د حضرت معاذ او حضرت معوذ په جنګ بدر کښې د شرکت بيان دې، چه هغوى په ابوجهل باندې حمله کړې وه.(تفصيل ئې تيرشوې دې) ددې روايت په آخر کښې د ابوجهل دا قول «ابومجلز» نقل کړې دې.

**قوله**: قَالَ أَبُو جَهْلٍ فَلَوْ غَيْرُ أَكَّارٍ (۱) قَتَلَنِي: ابوجهل د مرګ په وخت کښې وئيلى وو.ارمان د زميندارو نه علاوه بل چا زه قتل کړې وم.دا ددې وجې ده اووئيل چه حضرت معاذ او حضرت معوذ دواړه د انصارو ځنې وو.،او انصاروبه د زراعت او زميندارى کوله.

[۳۷۹۶] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ لَمَّا تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ لِأَبِي بَكْرٍ انْطَلِقْ بِنَا إِلَى إِخْوَانِنَا مِنَ الْأَنْصَارِ فَلَقِينَا مِنْهُمْ رَجُلَانِ صَالِحَانِ شَهِدَا بَدْرًا فَحَدَّثْتُ بِهِ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ فَقَالَ هُمَا عُوَيْمُ بْنُ سَاعِدَةَ وَمَعْنُ بْنُ عَدِيٍّ [ر:۲۳۳۰]

دا روايت د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه نه مروى دې.دوى فرمائى.چه کله نبى صلى الله عليه وسلم وفات شو.نو ما حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته اووئيل.چه تاسو ماسره زمونږ انصارو ورونړو ته لاړ شه.نو په هغوى کښې دوه داسې نيکان کسان زمونږ سره ملاؤ شو.کوم دواړه چه په جنګ بدر کښې شريك وو.دحديث راوى عبدالله وائى.چه ما دا روايت حضرت عروه رحمه الله ته واورولو.نو هغوى اوفرمائيل.هغه دوه کسان عويم بن ساعده او معن بن عدى رضي الله عنهما وو.(۲)

[۳۷۹۷] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ سَمِعَ مُحَمَّدَ بْنَ فُضَيْلٍ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ كَانَ عَطَاءُ الْبَدْرِيِّينَ خَمْسَةَ آلَافٍ خَمْسَةَ آلَافٍ وَقَالَ عُمَرُ لَأُفَضِّلَنَّهُمْ عَلَى مَنْ بَعْدَهُمْ

دا روايت د حضرت قيس رضي الله عنه نه مروى دې.دوى فرمائى چه د بدريانود بيت الله نه سالانه وظيفه پنځه پنځه زره روپئ وه.حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل.چه زه به دې بدرييانو ته په هغه کسانو ترجيح ورکوم.څوك چه د دوى نه پس مسلمانان شوى دى.په دې روايت کښې چونکه د بدرى صحابو رضي الله عنهم ذکر دې.ددې وجې امام بخارى رحمه الله دلته بيان کړو.

---

(۱) والأكار :بفتح الهمزة ،وتشديد الكاف ،الزراع والفلاح ،وكان الذين قتلوه من الأنصار وهم أهل الزراعة يريد بذلك إستخفافهم (عمدة القارى (۱۱۸\۱۷)_

(۲) عويم بضم العين .. وفتح الواو وسكون الياء .. ابن ساعدة .. شهد العقبتين جميعاً وشهدا بدراً وأحداً والخندق ومات فى خلافة عمر رضي الله عنه بالمدينة وهو ابن خمس أو ست وستين سنة .. ومعن بفتح الميم وسكون العين .. ابن عدى شهد العقبة وبدراً وأحداً والخندق وسائر المشاهد مع النبى صلى الله عليه وسلم وقتل يوم اليمامة شهيداً فى خلافة أبى بكرصديق رضي الله عنه (عمدة القارى (۱۱۸\۱۷)_

[٣٧٩٨] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّورِ وَذَلِكَ أَوَّلَ مَا وَقَرَ الْإِيمَانُ فِي قَلْبِي [ر: ٧٣١]

[٣٧٩٩] وَعَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي أُسَارَى بَدْرٍ لَوْ كَانَ الْمُطْعِمُ بْنُ عَدِيٍّ حَيًّا ثُمَّ كَلَّمَنِي فِي هَؤُلَاءِ النَّتْنَى لَتَرَكْتُهُمْ لَهُ [ر: ٢٩٧٠]

امام زهری رحمه الله د محمدبن جبير نه اوهغه دخپل پلارجبيربن مطعم رضی الله عنه نه نقل کوی.چه حضرت جبيربن مطعم رضی الله عنه فرمائيلی دی.ما د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه واوريدل .چه هغوی د مابنام په مانځه کښې دسورة طور تلاوت کولو.اودا اولنۍ موقع وه.چه ايمان زما په زړه کښې ځاې اونيولو.

**د روايت دترجمة الباب سره مطابقت:** دلته امام بخاری رحمه الله صرف دومره حصه ذکرکړې ده.چه دهغې د جنګ بدرسره په ظاهره څه تعلق نه معلوميږی.خوپه کتاب الجهاد کښې دا دا روايت تيرشوې دې.په هغې کښې دی.چه حضرت جبيربن مطعم رضی الله عنه نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته د بدرد دقيديانوپه باره کښې راغلې وو.نوپه دې لحاظ سره د بدر سره ددې روايت تعلق ښکاره دې.(¹) وړاندې ددې ماقبل سند سره امام بخاری نقل کړی دی.چه حضرت جبيربن مطعم رضی الله عنه فرمائی.چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم د جنګ بدرد قيديانوپه باره کښې فرمائيلی وو.((لوكان المطعم بن عدى حيا ثم كلمنى فى هولاء النتنى (²) لتركتهم له))

که مطعم بن عدی ژوندې وو.او ددې بدبودارو خلقو (د بدرقيديانو) په باره کښې ئې ما ته سفارش کړې وو.نو ما به د هغوی په خاطر دا قيديان بغيرد فديې نه پريخودی وو.

دمطعم بن عدی په نبی صلی الله عليه وسلم باندې ښو احسانات وو.کله چه نبی صلی الله عليه وسلم د طائف نه واپس راغلو.اواهل طائف نبی صلی الله عليه وسلم ته ډيرتکليف رسولې وو.نو اهل مکه نبی صلی الله عليه وسلم ته په مکې کښې د اوسيدو اجازت ورکولو ته تيار نه وو.په دې موقع باندې مطعم بن عدی اعلان کړې وو.چه زه محمدپه خپله پناه کښې اخلم.او خپل ځلورو واړه ځامن ئې مسلح کړل.اود بيت الله په ځلورو واړه ګوټونوکښې د نبی صلی الله عليه وسلم د حفاظت دپاره اودرول.قريشوته چه کله خبر ملاؤ شو.نووې وئيل.((أنت الرجل الذى لاتخفر ذمتك)) ته داسې سړې ئې.چه ستاسو عهد او پيمان نشي ماتولې.

دغه شان په شعب ابی طالب کښې بنوهاشم محصور کړې شوی وو.اودمکې قريشود

---

¹ )حافظ ليکی.((ووجه إيراده هنا ما تقدم فى الجهاد أنه كان قدم فى أسارى بدر أى فى طلب فدائهم .. (فتح البارى(٣٢٤\١٧)_

² )النتنى:بنونين مفتوحتيين بينهما تاء مثناة من فوق وهو جمع ،،نتن،، بفتح لانون وكسرالتاء كز من يجمع على زمنى سمى أسارى بدرالذين قتلوا وصاروا جيفاً بالنتنى لكفرهم كقوله تعالى (( إنما المشركون نجس)) عمدة القارى (١١٩\١١٧)_~

مقاطعة معاهده كړې وه.ددې معاهدې په ختمولوكښې مطعم بن عدى لوئې كردار ادا كړې وو. (۱) ددې وجې نبي اوفرمائيل.كه مطعم ژوندې وو.اوسفارش ئې كړې وو.نو ما به دا قيديان بغيرد فديه نه آزاد كړى وو.

[۳۸۰۰]وَقَالَ اللَّيْثُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ الْأُولَى يَعْنِي مَقْتَلَ عُثْمَانَ فَلَمْ تُبْقِ مِنْ أَصْحَابِ بَدْرٍ أَحَدًا ثُمَّ وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ الثَّانِيَةُ يَعْنِي الْحَرَّةَ فَلَمْ تُبْقِ مِنْ أَصْحَابِ الْحُدَيْبِيَةِ أَحَدًا ثُمَّ وَقَعَتِ الثَّالِثَةُ فَلَمْ تَرْتَفِعْ وَلِلنَّاسِ طَبَاخٌ

دا تعليق دې.د سند ابتدائى حصه ذكر نه ده.يحيى بن سعيد انصارى د حضرت سعيدبن المسيب رحمه الله نه نقل كوى.چه اولنۍ فتنه يعنى د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهيد كولوفتنه واقع شوه. نو هغې په اصحاب بدركښې څوك پرې نه خودل.

مطلب دا دې.چه دحضرت عثمان رضي الله عنه د شهيدكولوكومه فتنه چه پيښه شوې وه.(۲) ددې نه پس بدرى صحابه يوپه بل پسې وفات كيدل شروع شول.دا مطلب نه دې.چه په دې فتنه كښې هغوى قتل شوى وو.ځكه چه ددې واقعه نه پس حضرت على،حضرت طلحه ،حضرت زبير،او حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنهم وغيره بدرى صحابه كرام رضي الله عنهم ژوندى وو.

**دويمه فتنه:** دويمه فتنه واقعه شوه. يعنى د ،،حره،، واقعه،نودې په اصحاب حديبيه كښې څوك پرې نه خودل.مطلب دادې.چه دواقعه، ،حره، ،نه پس اصحاب حديبيه پرله پسې وفات شول.

د ،،حره،، دواقعه تفصيل خو به په كتاب الفتن كښې په تفصيل سره راشى. دلته دومره خبره زده كړئ.چه دحضرت معاويه رضي الله عنه د وفات نه پس كله چه يزيد خليفه شو.نواهل مدينې د يزيدپه لاس د بيعت كولونه انكار اوكړو.نو يزيد د مسلم بن عقبه په سركردګۍ كښې د ۲۷ زرد كسانو يو لښكر روان كړلو.په كوم كښې چه دولس زره شهسواران وو.اوپنځلس زره پيدل وو.اوپه مدينه منوره كښې په حره مقام كښې كومه چه كانړيځنه زمكه ده.دغه لښكرقيام اوكړو.(د دې وجې دې فتنې ته فتنه حره وائى) او په مدينه منوره باندې ئې حمله اوكړه.د انصارو او مهاجرينو تقريباً اووه سوه كسان په دې واقعه كښې شهيدان كړې شول.

دا واقه په ۶۲ ھ يا ۶۳ھ كښې پيښه شوې وه.(۳) د يحيى بن سعيد انصارى بيان دې. چه د عثمان رضي الله عنه د شهادت د واقعه په وخت كښې په مسجد نبوى كښې اذان اومونځ موقوف شوې وو.اود فتنه حره د واقع كيدو په وخت كښې هم په مسجد نبوى كښې اذان او مونځ موقوف شوې وو.(۴)

---

۱ )د تفصيل دپاره اوګورئ فتح البارى (۳۲۴\۷)_

۲ )وكان مقتل عثمان رضي الله عنه يوم الجمعة لثمان ليال خلت من ذى الحجة يوم التروية سنة خمس وثلاثين قاله الواقدى وعنه أيضاً أنه قتل يوم الجمعة ليلتين بقيتا من ذى الحجة وحاصروه تسعة وأربعين يوماً.. عمدة القارى (۱۱۹\۱۷)_

۳ )عمدة القارى(۱۱۹\۱۷)_

۴ )فتح البارى(۳۲۵\۷)_

دريمه فتنه:

**قوله**: ثُمَّ وَقَعَتْ الثَّالِثَةُ فَلَمْ تَرْتَفِعْ وَلِلنَّاسِ طَبَاخٌ: بيا دريم فتنه واقع شوه.نو هغه ختمه شوې نه وه.په داسې حال کښې چه په خلقوکښې عقل اوخيرباقي وو.

((طباخ)) بفتح الطاء، والباء)) قوت او شدت ته وائي.خو د عقل او هوښيارتيا او خيردپاره هم استعماليږي.(1) مطلب دا دې.چه کله دريمه فتنه واقع شوه.نو د خلقو نه عقل او هوښيارتيا او خير تللې وو.

ددې دريمې فتنې نه کومه فتنه مراد ده.دلته په روايت کښې ددې ذکر نشته. د اکثرو حضراتو رائې دا ده.(2) چه ددې نه د ابوحمزه خارجي واقعه مراد ده.کومه چه په ۱۳۰هـ کښې پيښه شوې وه.واقعه دا ده،چه د،حضر موت،، مقام نه ابو حمزه خارجي د خپل ځان سره اووه سوه (۷۰۰) سوارهٔ واخستل.اوحجاز طرف ته روان شو.په هغه زمانه کښې مروان بن محمد بن مروان بن الحکم خليفه وو. ابو حمزه خارجي د مکې ،مدينې او طائف حاکم عبدالواحد بن سليمان د ځان سره ملګرې کړلو.او د مروان بن محمد خلاف ئې د بغاوت اعلان اوکړو.او لاړل په مکه مکرمه باندې ئې قبضه اوکړه.مروان ته چه کله خبر ملاؤ شو.نوهغه د خپل فوځ نه ځلور زره کسان منتخب کړل.اود ابوحمزه د ختمولودپاره ئې روان کړل.عبدالملك بن محمدبن عطيه ئې ددې لښکر جرنيل او اميرمقرر کړو.د دواړو فوځونو په مينځ کښې جنګ اوشو.ابو حمزه خارجي اودهغه اوو سوه کسان قتل کړې شول. اود هغه حمايت کونکو نورو خلقوته هم شکت اوشو.(3)

امام بخاری رحمه الله د حضرت ليث دا تعليق دلته ددې دپاره ذکر کړو.چه په دې کښې د اصحاب بدر ذکر دې.(يعنى د اولنۍ فتنې په بيان کښې چه په کوم ځاې کښې د ((فلم تبق من أصحاب بدر أحداً)) ئې وئيلى دى)

[۳۸۰۱] حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ النُّمَيْرِيُّ حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ وَسَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ وَعَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ وَعُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ حَدِيثِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلٌّ حَدَّثَنِي طَائِفَةً مِنْ الْحَدِيثِ قَالَتْ فَأَقْبَلْتُ أَنَا وَأُمُّ مِسْطَحٍ فَعَثَرَتْ أُمُّ مِسْطَحٍ فِي مِرْطِهَا فَقَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ فَقُلْتُ بِئْسَ مَا قُلْتِ تَسُبِّينَ رَجُلًا شَهِدَ بَدْرًا فَذَكَرَ حَدِيثَ الْإِفْكِ [ر:۲۴۵۳]

په دې حديث کښې د قصه افك بيان دې .دا حديث به په تفصيل سره وړاندې راشي.چه په حديث کښې چونکه د حضرت مسطح رضي الله عنه د بدری کيدو ذکر ددې.ددې وجې امام بخاری دا حديث دلته بيان کړو.

---

1 )عمدة القاری(۱۲۰۱۱۷)_

2 )د داودی خيال دې.چه ددې نه فتنه ،،ازارقه،، مراد ده (عمدة القاری(۱۲۰۱۱۷)_

3 )فتح الباری(۳۲۵۱۷)_

[۳۸۰۲] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحِ بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ هَذِهِ مَغَازِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُلْقِيهِمْ هَلْ وَجَدْتُمْ مَا وَعَدَكُمْ رَبُّكُمْ حَقًّا قَالَ مُوسَى قَالَ نَافِعٌ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ قَالَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ تُنَادِي نَاسًا أَمْوَاتًا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا قُلْتُ مِنْهُمْ [ر: ۱۳۰۴]

[۳۸۰۳] قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ فَجَمِيعُ مَنْ شَهِدَ بَدْرًا مِنْ قُرَيْشٍ مِمَّنْ ضُرِبَ لَهُ بِسَهْمِهِ أَحَدٌ وَثَمَانُونَ رَجُلًا وَكَانَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ يَقُولُ قَالَ الزُّبَيْرُ قُسِمَتْ سُهْمَانُهُمْ فَكَانُوا مِائَةً وَاللَّهُ أَعْلَمُ

حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ ضُرِبَتْ يَوْمَ بَدْرٍ لِلْمُهَاجِرِينَ بِمِائَةِ سَهْمٍ

**قوله**: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ الخ: په دې روايت كښې په بدر كښې اهل قليب ته د نبى ﷺ د خطاب ذكر دې.ددې تفصيل بيان شوې دې.ددې روايت په آخر كښې د امام بخارى خپل قول دې. يا د موسى بن عقبه قول دې.چه په بدر كښې د شريك شوو قريشوتعداد ۸۱ سړى وو.چاته چه په مال غنيمت كښې حصه وركړې شوې وه. او حضرت عروه د حضرت زبير رضي الله عنه په حواله سره وائى.چه دچا حصې تقسيم شوې وې.(په مهاجرينو كښې) نو هغه سل كسان وو.

**قوله**: حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ: ددې باب دا آخرى روايت د حضرت زبير رضي الله عنه نه مروى دى.دوى فرمائى.چه د بدر په ورځ د مهاجرينو دپاره سل حصې مقررشوې وې.

**د رواياتوتعارض اود هغې توجيهات**: دلته پورته د موسىٰ بن عقبه په روايت كښې دى.چه د يو اتيا مهاجرينودپاره په جنګ بدر كښې حصې مقرر شوې وې.اود حضرت زبير رضي الله عنه په روايت كښې دى.چه سل حصې مقرر شوې وې.په ظاهره په دواړو روايتونوكښې تعارض دې.

① په دواړو رواياتوكښې د تطبيق مختلف توجيهات شوى دى.داودى وئيلى دى. چه ممكن ده.حضرت زبير رضي الله عنه ته اشتباه شوى وى.اودهغه اشتباه په وجه هغوى ۱۰۰ وئيلى وى.[۱]

② ممكن ده.چه دحضرت زبير رضي الله عنه نه چه چا روايت كړې وى.هغوى ته اشتباه شوى وى.اوهغوى تعداد غلط خودلى وى.[۲] ګنى تحقيقى خبره هم دا ده.چه مهارين سل نه وو.

③ داودى رحمه الله دريمه توجيه دا كړې ده.چه ټول مهاجرين څلور اتيا وو.او دوى سره درې اسونه وو.دوه حصې د هريواس وى.دغه شان شپږ حصې د اسونو شوې. څلور اتيا او شپږ لس كم سل شوې.او لس كسان هغه وو.كوم چه په جنګ كښې شريك شوى نه وو.خونبى ﷺ د هغوى دپاره حصې مقرر كړې وې.په دې حساب سره ټولې حصې سل شوې.نوبعضې

---

[۱] )فتح البارى(۷/۳۲۶)_
[۲] )فتح البارى(۷/۳۲۶)_

راويان ټول جمع كوى.او بيان كوى.اوبعضى حضرات صرف په جنګ كښې د شريكو خلقو حصه بيانوى.نودهغوى خودلې شوې تعداد كميږى.

④ حافظ ابن حجر رحمه الله دا جواب وركړې دېڅچه په مال غنيمت كښې چه كومې حصې مهاجرينوته ملاؤ شوې وې، هغه اتيا وې،او شل حصې روسته په مال خمس كښې دوى ته ملاؤ شوې وې.په دې حساب سره ټولې حصې سل شوې.په بعضې رواياتوكښې د مال غنيمت او مال خمس دواړو تعداد خودلې شوې دې.اوپه بعضوكښې صرف د مال غنيمت د حصو تعداد خودلې شوې دې.نو د دې وجې په دواړه قسمه رواياتوكښې څه تعرض نشته.(۱)

## ۱۳=بَاب تَسْمِيَةُ مَنْ سُمِّيَ مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ فِي الْجَامِعِ الَّذِي وَضَعَهُ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ عَلَى حُرُوفِ الْمُعْجَمِ

⊙ النَّبِيُّ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْهَاشِمِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ⊙ إِيَاسُ بْنُ الْبُكَيْرِ ⊙ بِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ الْقُرَشِيِّ ⊙ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ الْهَاشِمِيُّ ⊙ حَاطِبُ بْنُ أَبِي بَلْتَعَةَ حَلِيفٌ لِقُرَيْشٍ ⊙ حَارِثَةُ بْنُ الرَّبِيعِ الْأَنْصَارِيُّ قُتِلَ يَوْمَ بَدْرٍ وَهُوَ حَارِثَةُ بْنُ سُرَاقَةَ كَانَ فِي النَّظَّارَةِ ⊙ خُبَيْبُ بْنُ عَدِيٍّ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ خُنَيْسُ بْنُ حُذَافَةَ السَّهْمِيُّ ⊙ رِفَاعَةُ بْنُ رَافِعٍ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ رِفَاعَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُنْذِرِ ⊙ أَبُو لُبَابَةَ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ الزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ الْقُرَشِيُّ ⊙ زَيْدُ بْنُ سَهْلٍ ⊙ أَبُو طَلْحَةَ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ أَبُو زَيْدٍ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ الزُّهْرِيُّ ⊙ سَعْدُ بْنُ خَوْلَةَ الْقُرَشِيُّ ⊙ سَعِيدُ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ الْقُرَشِيُّ ⊙ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ ظُهَيْرُ بْنُ رَافِعٍ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ وَأَخُوهُ ⊙ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُثْمَانَ ⊙ أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ الْقُرَشِيُّ ⊙ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ الْهُذَلِيُّ ⊙ عُتْبَةُ بْنُ مَسْعُودٍ الْهُذَلِيُّ ⊙ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ الزُّهْرِيُّ ⊙ عُبَيْدَةُ بْنُ الْحَارِثِ الْقُرَشِيُّ ⊙ عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ الْعَدَوِيُّ ⊙ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ الْقُرَشِيُّ خَلَّفَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ابْنَتِهِ وَضَرَبَ لَهُ بِسَهْمِهِ ⊙ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ الْهَاشِمِيُّ ⊙ عَمْرُو بْنُ عَوْفٍ حَلِيفُ بَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ ⊙ عُقْبَةُ بْنُ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيُّ ⊙ عَامِرُ بْنُ رَبِيعَةَ الْعَنَزِيُّ ⊙ عَاصِمُ بْنُ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ عُوَيْمُ بْنُ سَاعِدَةَ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ عِتْبَانُ بْنُ مَالِكٍ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ قُدَامَةُ بْنُ مَظْعُونٍ ⊙ قَتَادَةُ بْنُ النُّعْمَانِ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ ⊙ مُعَوِّذُ بْنُ عَفْرَاءَ ⊙ وَأَخُوهُ ⊙ مَالِكُ بْنُ رَبِيعَةَ ⊙ أَبُو أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ مُرَارَةُ بْنُ الرَّبِيعِ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ مَعْنُ بْنُ عَدِيٍّ الْأَنْصَارِيُّ ⊙ مِسْطَحُ بْنُ أُثَاثَةَ

(۱) فتح البارى (۳۲۶/۷)_

بْنِ عَبَّادِ بْنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ مَنَافٍ ⊙ مِقْدَادُ بْنُ عَمْرٍو الْكِنْدِيُّ حَلِيفُ بَنِي زُهْرَةَ ⊙ هِلَالُ بْنُ أُمَيَّةَ الْأَنْصَارِيُّ رضي الله عنهم

په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله په شرکاء بدر کښې د هغه حضراتو نومونه بيان کړی دی.د چا د شرکت تصريح چه په بخاری شريف کښې راغلې ده.د ټولو بدريانود نومونو ذکر مقصود نه دې.دغه شان بعضې داسې حضرات چه د هغوی په بدری کيدو کښې دچا اختلاف نشته.بلکه پخپله په صحيح بخاری کښې هم د هغوی د بدری کيدو ذکرموجود دې.خوچونکه په تنصيص او تصريح سره نه دېږددې وجې د هغوی نومونه امام بخاری دلته ذکرنکړل.لکه حضرت عبيده بن الجراح رضي الله عنه شو.ددوی د بدری کيدو ذکر خود په بخاری کښې موجود دې.خوچونکه په تنصيص او تصريح «أنه شهد بدرا» الفاظو سره موجود نه دې. ددې وجې د نومونو په دې فهرس کښې د هغوی نومونه نشته.[1]

امام بخاری رحمه الله دلته د څلور څلويښتو نومونو ذکر د حروف تهجی په ترتيب سره کړې دې.

د بدر د شرکاء تعداد د مشهور روايت مطابق درې سوه او دياړلس دې.ددې ټولو د نومونو ذکر حافظ ضياء الدين مقدسی په ،،کتاب الاحکام،، کښې په استيعاب سره کړې دې.ابن سيدالناس او ابن اسحاق رحمهما الله په تفصيل سره د بدريين صحابو رضي الله عنهم نومونه ذکرکړی دی..

امام بخاری رحمه الله چه دلته کوم نومونه ذکر کړی دی. ددې په باره کښې مشهوره دا ده.چه کله دا نومونه اولوستې شی.نويه هغه وخت کښې دعا قبليږی.

## بَاب: حَدِيثِ بَنِي النَّضِيرِ وَمَخْرَجِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمْ فِي دِيَةِ الرَّجُلَيْنِ وَمَا أَرَادُوا مِنَ الْغَدْرِ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

قَالَ الزُّهْرِيُّ عَنْ عُرْوَةَ كَانَتْ عَلَى رَأْسِ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ وَقْعَةِ بَدْرٍ قَبْلَ أُحُدٍ وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى ﴿هُوَ الَّذِي أَخْرَجَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مِنْ دِيَارِهِمْ لِأَوَّلِ الْحَشْرِ مَا ظَنَنْتُمْ أَنْ يَخْرُجُوا﴾ (٢) وَجَعَلَهُ ابْنُ إِسْحَاقَ بَعْدَ بِئْرِ مَعُونَةَ وَأُحُدٍ

[٣٨٠٤] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ حَارَبَتِ النَّضِيرُ وَقُرَيْظَةُ فَأَجْلَى بَنِي النَّضِيرِ وَأَقَرَّ قُرَيْظَةَ وَمَنَّ عَلَيْهِمْ حَتَّى حَارَبَتْ قُرَيْظَةُ فَقَتَلَ رِجَالَهُمْ وَقَسَمَ نِسَاءَهُمْ وَأَوْلَادَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا بَعْضَهُمْ لَحِقُوا بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَآمَنَهُمْ وَأَسْلَمُوا وَأَجْلَى يَهُودَ الْمَدِينَةِ كُلَّهُمْ بَنِي قَيْنُقَاعَ وَهُمْ رَهْطُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ وَيَهُودَ بَنِي حَارِثَةَ وَكُلَّ يَهُودِ الْمَدِينَةِ

امام بخاری رحمه الله دلته د بنو نضيرو واقعه نقل کوی.غزوه بنو نضير کله پيښه شوې وه؟ په دې باره کښې امام بخاری رحمه الله يوه رائې د حضرت عروه نه نقل کړې ده.او يوه رائې ئې د

---

[1] فتح البارى(٣٢٩\٧) وعمدة القارى(١٢١\١٧)_

[2] الحشر:٢)_

ابن اسحاق نقل کړې ده.د حضرت عروه رائې دا ده. چه کله د غزوه بدر نه پس شپږ میاشتې تیرې شوې.نو د غزوه بنو نضیرواقعه پیښه شوې وه.او د ابن اسحاق رحمه الله رائې امام بخاری رحمه الله دا نقل کړی ده.چه د بنو نضیر دا واقعه د غزوه بیر معونه او جنګ احد نه پس رواقع شوې ده.

**د نبی علیه السلام مدینې منورې ته د راتلو په وخت کښې د کافرانو قسمونه:** نبی ﷺ چه کله مدینې منورې ته تشریف راوړې وو.په هغه وخت کښې د کافرانو درې قسمونه وو.

① دکافرانو یو قسم هغه وو.چه چه به ښکاره د دشمنۍ اعلان کولو.-اوجنګ کولوته تیار وو.

② دویم قسم د هغه خلقو وو.کوم چه په دې انتظار کښې وو.چه د مسلمانانو انجام به څه وی.که غالب شی نو مونږ به هم د دوی سره شو.ګنی د خپل پلار نیکه په دین باندې به قائم پاتې یو.بیا په دوی کښې بعضو د زړه نه د مسلمانانو غلبه غوستله.لکه بنو خزاعه،اوځه کسانود زړه نه د مسلمانانو غلبه نه غوښتله.

③ دریم قسم د مدینې د یهود، وو.د مدینې په یهودوکښې اصل دوه قبیلې وې.یو بنو قریظه او بله بنو نضیر،د بنو قینقاع او بنو حارثه ذکر هم راځی.خوپه حقیقت کښې هغه د بنو قریظه او بنو نضیر شاخونه وو[1]

د مدینې د یهودی قبیلو د مسلمانانو سره د امن معاهده شوې وه.چه نه به د یو بل سره جنګ کوو.اونه به د یوبل خلاف د بلې قبیلې سره مدد کوو.[2] خو یهودیانو.ددې معاهدې پابندی او خیال اونه ساتلو.نود ټولو نه وړاندې بنو قینقاع دا معاهده ماته کړه.اوپه یهودو کښې د ټولونه وړاندې بنو قینقاع د مدینې منورې نه جلا وطن کړې شول[3]

**د بنو قینقاع د یهودو جلاوطنی:** کله چه نبی ﷺ په جنګ بدر کښې د کامیابۍ حاصلولو نه پس مدینې منورې ته تشریف راوړو.نو نبی ﷺ د مدینې یهود راجمع کړل.او هغوی ته ئې د اسلام دعوت ورکړل.او هغووی ته ئې اوفرمائیل.دالله نه اوویریږئ.تاسوته دا خبره ښه معلومه ده.چه زه د الله رسول یم.چه چرته داسې اونشی.(چه زما د مخالفت په وجه) په تاسو هم داسې عذاب نازل شی.لکه څنګه په بدر کښې په قریشو نازل شو.نو اسلام قبول کړئ.[4] د بنوقینقاع یوهود د نبی ﷺ په دې خبره غصه شول.او وې وئیل.چه تاته د قریشو په مقابله کښې کامیابی حاصله شوه.خودا دې تا په غلطه فهمۍ کښې وانچوی.قریشوچونکه د جنګ تجربه نه لرله.ددې وجې هغوی قتل کړې شول.کله چه زمونږ سره ستا مقابله راشی.نو بیا به معلومه شی.چه څوک به غالب راځی.کله چه بنو قینقاع جنګ ته اماده شول.او وعده ئې

[1] )فتح الباری(۳۳۰/۷)-

[2] )فتح الباری(۳۳۰/۷)_

[3] )کالم ابن اثیر(۹۶/۲)_

[4] )ابن کثیر د نبی ﷺ د خطاب الفاظ داسې ذکر کړی دی.یا معشریهود أحذروا من الله مثل ما نزل بقریش من النقمة وأسلموا فإنکم قد عرفتم أن نبی مرسل تجدون ذلک فی کتابکم وعهدالله إلیکم (البدایة والنهایة (۳/٤)_

ماته کړه.نو نبی ﷺ هغوی طرف ته خرج اوکړو.مسلمانانو ترځو ورځو پورې د هغوی محاصره کړې وه.آخر دا چه دا خلق مجبوره شول.اود قلعې نه رابهر شول.نبی ﷺدوی قتل کول غوښتل.خود منافقانو سردارعبد.الله بن ابی سفارش اوکړو.چه دوی مه قتلوه.نبی ﷺ دوی قتل خونکړل.خودوی ته ئې د مدينې پريخود حکم اوکړو.دا واقعه په پنځلسم شوال ۲ھ پيښه شوې وه.( )

**قوله: وَمَخْرَجِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمْ فِي دِيَةِ الرَّجُلَيْنِ وَمَا أَرَادُوا مِنَ الْغَدْرِ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:** د نبی ﷺ د دوو کسانود ديت په باره کښې بنو نضيرطرف ته تلل،اوهغه غداری کومه چه بنو نضير د نبی ﷺ سره کول غوښتل. دهغې بيان.

**غزوه بنو نضير:** په يهوديانوکښې د بنو قينقاع د غدارئ نه پس اوس بنو نضيرو وعه ماته کړه.ددې تفصيل دا دې.چه عمروبن اميه ضمری دبيرمعونه د واقعه نه اتفاقی طور ژوندې بچ شو.(د بير معونه تفصيل وړاندې راغی) د هغه ځائې نه مدينې منورې ته په راتلوکښې هغه ته دوه کافران ملاؤ شول.کوم چه د بنو عامرنه وو.نو عمروبن اميه دا اوګڼل.چه ددې قبيلې سردار عامربن طفيل اويا مسلمانان (په بير معونه کښې) شهيدان کړل.دغه دواړه ئې قتل کړل.عمروبن اميه ﷺ ته دا معلومه نه وه.چه د مقتولينو د قبيلې سره نبی ﷺمعاهده کړې ده.کله چه نبی ﷺ ته خبراوشو.نو نبی ﷺاوفرمائيل.هغوی سره خو زمونږ معاهده وه.نو ديت ورکول ضروری دی.(اګرچه عامربن طفيل معاهده ماته کړې وه.او اويا مسلمانان ئې شهيدان کړی وو.خوپه دې عهد شکنئ کښې توله قبيله شريکه نه وه.ددې وجې نبی ﷺ د بنو عامر د دغه دوو مقتولينو ديت ورکول ضروری اوګڼړل)

بنوعامرلکه څنګه چه د مسلمانان حليف وو.دغه شان د بنو نضير هم حليف وو.نود عربو د دستور مطابق په ديت کښې څه حصه د بنو نضيرو په ذمه هم واجب الاداء وه.نو نبی ﷺ ددې ديت په باره کښې حضرت ابوبکر حضرت عمر ا څو نرو صحابه کرام ﷺواخستل.او بنو نضير ته ئې تشريف يوړلو.هلته چه لاړلو.نونبی ﷺ د يوديوال لاندې کيناستل.

په دغه دوران کښې بنو نضير په خپل مينځ کښې دا مشوره اوکړه.چه يوکس د کور چت ته اوخيژی.اود پورته نه يوه غټ کانړې په نبی ﷺ باندې راغوزار کړی.چه په دې طريقه نبی ﷺ قتل کړې شی.نبی ﷺ ته د وحی په ذريعه ددې سازش خبر ملاؤ شو.نبی ﷺ دهغه ځاې نه پاسيدل.لکه چه د څه کار دپاره پاسيدلو.او وس واپس راغی.او مدينې منورې ته ئې تشريف يوړلو.کله چه د نبی ﷺ په واپسئ کښې روستوالې اوشو.نو يهوديان ډير ملامته شول.او مايوس شول.او صحابه کرام ﷺ دهغه ځاې نه پاسيدل.د نبی ﷺ په لټون کښې مدينې منورې ته راورسيدل.صحابه کرام ﷺ چه کله نبی ﷺ ته راورسيدل.نو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل.بنو نضيرو معاهده ماته کړې ده.نو د دوی محاصره دې اوکړې شی.

[1] )البداية والنهاية (۳۱٤)_

عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنه نبی ﷺ د مدینې منورې عامل مقرر کړلو.(۱) او صحابه ئې واخستل.اود بنو نضیرو محاصره ئې اوکړه.
عبدالله بن ابی بنو نضیروته پیغام اولیږلو.چه مونږ تاسو سره یو.د ویرې ضرورت نشته.خود منافقانو په زړونوکښې الله تعالی رعب واچولو.اوهغوی د مسلمانانو د مقابلې دپاره رانغلل.
پنځلس ورځو د محاصرې کولونه پس بنو نضیر مجبوره شول.اونبی ﷺ ته ئې درخواست اوکړو.چه مونږ ته دې امن راکړې شی.نبی ﷺ ورته اوفرمائی.د لسو ورځو مهلت دې.په لسو ورځو کښې دننه دننه تاسو د مدینې نه اوځئ.اوځومره سامان چه تاسو خان سره اوړې شئ.نودهغې اجازت درته شته.خود وسلې د وړلو اجازت نشته.یهودیانود خپلو کورونو دروازې اوچوکاټونه راویستل هم شروع کړل .اوپه لسو ورځوکښې دننه دننه د مدینې نه اووتل.څه شام ته لاړل.اوڅه په خیبر کښې آباد شول.اودغه شان مدینه منوره نه د یهودیانوشرارت ختم شو.یامین بن عمیر او ابوسعیدبن وهب دا دواړه کسان په دوی کښې مسلمانان شول.نودوی
جلاوطن نکړې شول.اونه دوی دمال او اسباب نه محروم کړې شول.(۲)
ابن اسحاق چه د غزوه بنو نضیرکومه واقعه لیکلې ده.هغه دا وه.(۳) ددې نه به تاسو ته معلومه شوې وی.چه په بیرمعونه کښې د اویا قاریانو د شهادت نه پس عمروبن امیه ضمری چه د بنو عامر دوه کسان قتل کړل.اودهغوی د دیت په باره کښې نبی ﷺبنو نضیرو ته تشریف اوړې وو.نوددې نه ثابته شوه.چه دا واقعه د بیرمعونه نه پس شوې ده.خود حضرت عروه د بیان مطابق دا واقعه د احد او بیرمعونه نه وړاندې ده.دوی فرمائی.چه غزوه بنو نضیرد جنګ بدرنه صرف شپږ میشاتې پس شوې ده.نو که د حضرت عروه روایت اومنلې شی.نو بیا به د بنو نضیر د غزوه سبب کوم څیز وی.(ښکاره ده چه په دې صورت کښې د عمروبن امیه ضمری د دوو کسانو قتل اود هغوی د دیت په باره کښې د نبی ﷺ یهودو د بنو نضیرته تلل اود یهودیانو غداری سبب نشی جوړیدې.ځکه چه د دوو کسانود قتل دا واقعه د احد نه لاڅه چه د غزوه بیرمعونه نه هم روستو خبره ده)
نود دې په باره کښې ونیلې شوی دی.چه ابن مردویه رحمه الله په صحیح سند سره د زهری نه یو روایت نقل کړې دې.دهغه روایت حاصل دا دې.چه کله د جنګ بدر واقعه پیښه شوه.او مسلمانانو ته کامیابی ملاوه شوه.نود مکې مشرکانو د مدینې یهودو ته خط اولیکل.چه تاسو سره قلعې او د جنګ سازوسمان شته.تاسو د مسلمانانو خلاف ولې آواز نه اوچتوئ.
نو بنونضیرو ددې خط نه پس د یو سازش فیصله اوکړه.اوهغه دا چه نبی ﷺ ته ئې پیغام اولیږل. چه تاسو خان سره درې کسان راولئ.او زمونږ درې عالمان به تاسو سره مذاکره

---

(۱) البدایة والنهایة (۷۵\۴)_
(۲) فتح الباری(۳۳۱\۷)_
(۳) د پوره تفصیل دپاره اوګورئ البدایة والنهایة (۷۴\۴و ۷۶)_

اوکړی.که په دې مذاکره کښې زمونږ دغه درې کسان مطمئن شول.نو مونږ به اسلام قبول کړو.اوپه خپل مینځ کښې ئې دغه درې عالمانوته اووئیل.چه خپل ځان سره خنجر پټ اوساتئ .اوچه موقع ملاؤ شی.نو دې قتل کړئ.په بنو نضیروکښې یوانصاری ښځه وه.د هغې ورور مسلمان وو.هغې ددې سازش خبر خپل ورور ته ورکړو.ورور ئې راغلو. او نبی ﷺ ته ئې دهغې خبر ورکړو.نبی ﷺ د مذاکرې فیصله پریخوده.اوپه هغوی باندې ئې د حملې پروګرام جوړ کړو.([1])

که دحضرت عروه رحمه الله روایت اومنلې شی.نوپه دغه وخت کښې د غزوه بنو نضیر سبب به دا واقعه وی.په دې کښې د بیرمعونه ذکرنشته.خواکثراصحاب سیردمحمدبن اسحاق سره موافقت کړې دې.او وئیلې ئې دی.چه غزوه بنونضیرد احد او غزوه بیر معونه نه پس شوې وه.اودا د ۴هـ د اولنو ورځو واقعه وه.

امام بخاری رحمه الله د ابن اسحاق او حضرت عروه رحمهما الله دواړو قولونه ذکر کړی دی.اوپه ترجمة الباب کښې ئې آیت ذکرکړې دې.

**قوله**: وَقَوْلِ اللهِ: هُوَ الَّذِيٓ اَخْرَجَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ دِيَارِهِمْ لِاَوَّلِ الْحَشْرِ: الله تعالی هغه ذات دې.چه راوې ویستل. اهل کتابوکښې کافران،د هغوی د کورونو نه په اول حشرکښې،

د اول حشر نه د بنو نضیرود یهودو جلاوطنی ده.هسې خود بنو قینقاع جلا وطنی ددې نه وړاندې شوې وه.اول خوهغه څه لویه قبیله نه وه.بلکه یوشاخ وو.اودویمه دا چه د بنو نضیر د دې جلاوطنۍ واقعه دهغې په نسبت ډیره لویه واقعه وه.ددې وجې قرآن پاك دې ته ،،اول حشر،، اووئیل.

**قوله**: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ حَارَبَتِ النَّضِيرُ وَقُرَيْظَةُ فَأَجْلَى بَنِي النَّضِيرِ وَأَقَرَّ قُرَيْظَةَ: قریظه او نضیرمحاربه اوکړه.ددې محاربې نه مراد دا دې.چه د مکې قریشو دجنګ بدر نه پس بنی قریظه اوبنی نضیروته خط اولیکلو. او د مسلمانانو مخالفت ته ئې هغوی اماده کړل.نو دې دواړو قبیلو دمعاهدې ماتولو منصوبه جوړه کړه.نو مسلمانانوبنو نضیر جلاوطن کړل.او د بنو قریظة سره ئې تجدید دمعاهدې اوکړو. هغوی برقرار پریخودل.تردې چه د غزوه خندق په موقع بنو قریظه دوباره عهد شکنی اوکړه.نو بیا دهغوی سړی قتل کړلاوښځې ،بچی او مالونه ئې په مسلمانانو تقسیم کړل. (دغزوه قریظه تفصیل د غزوه خندق نه روستو راځی)

[1] )فتح الباری(۳۳۱/۷)_

[٣٨٠٥] حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُدْرِكٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ أَخْبَرَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ سُورَةُ الْحَشْرِ قَالَ قُلْ سُورَةُ النَّضِيرِ تَابَعَهُ هُشَيْمٌ عَنْ أَبِي بِشْرٍ [ر: ٣٣٦٨ و ٣٦٠٠ و ٣٦٠١]

حضرت سعيد بن جبير رحمه الله فرمائى، چه ما د ابن عباس رضي الله عنهما وړاندې د ،،سورة الحشر،، ټكې اوونيل.نو دوى رضي الله عنه اوفرمانيل.((قل : سورى النضير)) دې سورة ته سورة نضير وايه.
مقصدا دې.چه دا سورت د بنو نضير په باره كښې نازل شوې دې،نو دې ته ،،سورة النضير،، هم وئيلى شى،او ،،سورة الحشر،، هم.

[٣٨٠٦] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ أَبِيهِ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ يَجْعَلُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّخَلَاتِ حَتَّى افْتَتَحَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيرَ فَكَانَ بَعْدَ ذَلِكَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ [ر: ٢٩٦٠]

حضرت انس رضي الله عنه فرمائى.چه انصار صحابو رضي الله عنهم به د نبى ﷺ په خدمت كښې د قجورو وونې پيش كولې،او وئيل به ئې چه تاسو دا په مهاجرينو كښې تقسيم كړئ.او د خپل ځان دپاره هم اوساتئ،كله چه ﷺنبى ﷺ قريظه او بنو نضير فتح كړل،نو بيا نبى ﷺ انصارو ته هغه وونې واپس كړې،ددې تفصيل دا دې،چه كله نبى ﷺ قرظه او نضير فتح كړل.او د هغوى مالونه مسلمانانو ته په لاس راغلل،نو په هغه وخت كښې نبى ﷺ انصارو ته اوونيل.كه تاسو خوښوئ،نو زه به دا مالونه په مهاجرينو كښې تقسيم كړم،او ستاسو چه كومې وونې دى،هغه به تاسو ته واپس كړم،د انصارو سردارانو حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه او حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه اوونيل،يارسول الله! زمونږ خو خوښه ده،چه دا مالونه هم تاسو ټول په مهاجرينو كښې تقسيم كړئ،او زمونږ چه كوم مالونه دوى سره دى،هغه هم دوى سره پريږدئ،نبى ﷺ د هغوى د دې پرزونې تعريف اوكړو،خود انصارو كوم مالونه چه د مهاجرينو سره وو،هغه ئې هغوى ته واپس كړل،او د يهوديانو نه چه كوم مالونه ملاؤ شوى وو،هغه ئې په مهاجرينو كښې تقسيم كړل.([1])

خود مهاجريو سره نبى ﷺ په انصارو كښې حضرت ابودجانه انصارى رضي الله عنه او سهل بن حنيف انصارى رضي الله عنه ته هم حصه وركړه،ځكه چه د دې دواړو حضراتو مالى حالت ډير كمزورې وو.([2])

[٣٨٠٨/٣٨٠٧] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ حَرَّقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيرِ وَقَطَعَ وَهِيَ الْبُوَيْرَةُ فَنَزَلَتْ مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَى أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللَّهِ

---

[1]) فتح البارى (٣٣٣/٧)_

[2]) علامه سهيلى د حضرت ابودجانه او حضرت سهل سره د انصارو نه د حضرت حارث بن صمه نوم هم ذكر كړې دې،... اوګورئ البداية والنهاية (٧٦/٤)_

[۳۸۰۸] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا حَبَّانُ أَخْبَرَنَا جُوَيْرِيَةُ بْنُ أَسْمَاءَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرَّقَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيرِ قَالَ وَلَهَا يَقُولُ حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ

وَهَانَ عَلَى سَرَاةِ بَنِي لُؤَيٍّ حَرِيقٌ بِالْبُوَيْرَةِ مُسْتَطِيرُ

قَالَ فَأَجَابَهُ أَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ

أَدَامَ اللَّهُ ذَلِكَ مِنْ صَنِيعٍ وَحَرَّقَ فِي نَوَاحِيهَا السَّعِيرُ

سَتَعْلَمُ أَيُّنَا مِنْهَا بِنُزْهٍ وَتَعْلَمُ أَيَّ أَرْضَيْنَا تَضِيرُ [ر: ۲۲۰۱]

حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائي، چه نبي ﷺ د بن نضيرو د قجورو وونې سوزولې او کټ کړي وي، او هغه باغ کوم ځائې کښې چه دا عمل کړې شوې وو، ،بويره،، وو، نو په دې باندې دا آيت نازل شوو «ماترکتم من لينة...»

يهوديانو دا اعتراض کړې وو، چه دا څنګه پيغمبر دې، چه باغونه او د خلقو په کارلاتلونکې څيزونه کټ کوی او سوزوی، چه ختم شی، نو الله تعالى د پيغمبر د طرف نه جواب ورکړو، چه کومې وونې تاسو کټ کړې دی، اويا مو پريخودې دی، چه تر اوسه پورې هغه په خپلو جرړو ولاړې دی، دا ټول د الله تعالى په حکم سره دی. (۱)

يعنی هريو په دواړو کښې د مصلحت نه خالی نه دی، په سوزولو او کټ کولو کښې په کافرانو باندې د رعب او غلبې اظهار دې، او په سالم پريخودو کښې د مسلمانانو دنيوی فائده ده.

البويرة (بضم الباء وفتح الواو....) دا د ،،بورة،، تصغير دې،، بورة ،، کندې ته وائی، د مدينې منورې سره نزدې په کوم ځائې کښې چه د بنو نضيرو باغ واقع وو. چونکه هغه ښکته ځائې وو، ددې وجې دغه باغ ته ،،بويره،، ونيلې شو. (۲)

«لينة» يو خاص قسم قجورې ته وائی. (۳)

حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائي، نبي ﷺ چه کله د بنو نضير وونې اوسوزولې، نو د هغې په باره کښې حضرت حسان بن ثابت رضي الله عنه دا شعر ونيلې وو.

**قوله**: وَهَانَ عَلَى سَرَاةِ بَنِي لُؤَيٍّ حَرِيقٌ بِالْبُوَيْرَةِ مُسْتَطِيرُ قَالَ فَأَجَابَهُ أَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ: اوآسان شو د بنو لوی د سردارانو دپاره په مقام بويره کښې داسې اور لګول چه د هغې لمبې خورې وې.

سراة: (بفتح السين) دا د ،،سری،، جمع ده، سردار ته وائی، يعنی د قريشو سردار مراد

---

(۱) اوګورئ تفسير ابن کثير (۳۳۴/۴)۔
(۲) فتح الباری (۳۳۳/۷) وعمدة القاری (۱۲۸/۱۷)۔
(۳) عمدة القاری (۱۲۸/۱۷)۔

نبي ﷺ او نور قريشي مهاجرين صحابه ﷺ دی.ډیرو حضراتو ، د ،،سراة بنی لوئی،، نه د قریشو کافر سرداران مراد دی، په دواړو صورتونوکښې مطلب مختلف دې.

**د شعرمطلب** حضرت حسان بن ثابت رضي الله عنه فرمائی،چه نبی ﷺ او د دوی صحابو رضي الله عنهم بغير د څه جنګ نه ډیر په آسانئ سره په مقام بویره کښې باغوو ته اور اولګولو،په دې شعر کښې حضرت حسان د مکې قریشو ته پیغور ورکوی،څکه چه قریشو بنو نضیر په جنګ باندې راپارولی وو.

اوکه د ،،سراة بنی لوی،، نه د قریشو کافر سرداران مراد وی.نو مطلب به دا وی،چه د قریشو سردارانو په مقام بویره کښې د اور لګولو معامله ډیره آسانه او وړه اوګنړله،دا طنز (توقي) دی،چه قریشو بنو نضیر او بنو قریظه ته دا باور ورکړې وو،چه د مسلمانانو سره د جنګ په وخت کښې به دوی (کافران) د هغوی سره مدد کوی،اوس چه هرکله په دوی باندې مصیبت راغلو،او د دوی باغونه اوسوزولی شول،نو په قریشو کښې څوك هم مدد ته رانغلو،لکه چه دا څه لویه واقعه نه ده.

کله چه حضرت حسان رضي الله عنه دا شعر اووئیل.نو د دې په جواب کښې ابو سفیان بن الحارث (چه د نبی ﷺ د ترۀ څوئې وو،اوتردغه وخته پورې ئې اسلام نه وو راوړې) دا اشعار اووئیل.

**قوله:** أَدَامَ اللَّهُ ذَلِكَ مِنْ صَنِيعٍ وَحَرَّقَ فِي نَوَاحِيهَا السَّعِيرُسَتَعْلَمُ أَيُّنَا مِنْهَا بِنُزْهٍ وَتَعْلَمُ أَيَّ أَرْضَيْنَا تَضِيرُ: ① الله دې دا اور چه په بویره کښې لګیدلې دې،همیشه دپاره قائم ساتی.اود بویره چارچاپیردې هم دغه شان اوسوزوی.

② تاسو به ډیر زر پوهه شئ،چه څوك د دې بويره (او د دې د اور نه) لرې دې،او تاسوته به دا پته هم اولګی،چه په مونږ کښې د چا زمکې ته دا اور نقصان رسوی.

ابو سفیان په اولنی شعر کښې خیرې کړی دی،چه بویره او ددې نه چارچاپیره یعنی مدینه کښې دې دغه شان اور بلیږی.او په دویم شعر کښې حضرت حسان رضي الله عنه ته وائی، چه په بویره کښې د اور پیغور مونږ ته څه راکوې،د بويره نه ګیرچاپیره خو تاسو اوسیږئ،په دې سره مونږ او زمونږ زمکو ته څه نقصان نه رسی.هم ستاسو د استوګنې زمکه به سوزی.(۱)

[۴۸۰۹] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي مَالِكُ بْنُ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ النَّصْرِيُّ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دَعَاهُ إِذْ جَاءَهُ حَاجِبُهُ يَرْفَا فَقَالَ هَلْ لَكَ فِي عُثْمَانَ وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ وَالزُّبَيْرِ وَسَعْدٍ يَسْتَأْذِنُونَ فَقَالَ نَعَمْ فَأَدْخِلْهُمْ فَلَبِثَ قَلِيلًا ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ هَلْ لَكَ فِي عَبَّاسٍ وَعَلِيٍّ يَسْتَأْذِنَانِ قَالَ نَعَمْ فَلَمَّا دَخَلَا قَالَ عَبَّاسٌ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ اقْضِ بَيْنِي وَبَيْنَ هَذَا وَهُمَا يَخْتَصِمَانِ فِي الَّذِي أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي النَّضِيرِ فَاسْتَبَّ عَلِيٌّ وَعَبَّاسٌ فَقَالَ الرَّهْطُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ اقْضِ

---

(۱) بنزه:بضم النون وسكون الزاى ذى ببعدوزناً ومعنى وهو فى الاصل من النزاهى وهى البعد من السوء وجاء فيه فتح النون (عمدى القارى :۱۷/۲۹۱)۔

بَيْنَهُمَا وَأَرِحْ أَحَدَهُمَا مِنَ الآخَرِ فَقَالَ عُمَرُ اتَّئِدُوا أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالأَرْضُ هَلْ تَعْلَمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ يُرِيدُ بِذَلِكَ نَفْسَهُ قَالُوا قَدْ قَالَ ذَلِكَ فَأَقْبَلَ عُمَرُ عَلَى عَبَّاسٍ وَعَلِيٍّ فَقَالَ أَنْشُدُكُمَا بِاللَّهِ هَلْ تَعْلَمَانِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قَالَ ذَلِكَ قَالَا نَعَمْ قَالَ فَإِنِّي أُحَدِّثُكُمْ عَنْ هَذَا الأَمْرِ إِنَّ اللَّهَ سُبْحَانَهُ كَانَ خَصَّ رَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْفَيْءِ بِشَيْءٍ لَمْ يُعْطِهِ أَحَدًا غَيْرَهُ فَقَالَ جَلَّ ذِكْرُهُ وَمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْهُمْ فَمَا أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ إِلَى قَوْلِهِ قَدِيرٌ فَكَانَتْ هَذِهِ خَالِصَةً لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ وَاللَّهِ مَا احْتَازَهَا دُونَكُمْ وَلَا اسْتَأْثَرَهَا عَلَيْكُمْ لَقَدْ أَعْطَاكُمُوهَا وَقَسَمَهَا فِيكُمْ حَتَّى بَقِيَ هَذَا الْمَالُ مِنْهَا فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِنْ هَذَا الْمَالِ ثُمَّ يَأْخُذُ مَا بَقِيَ فَيَجْعَلُهُ مَجْعَلَ مَالِ اللَّهِ فَعَمِلَ ذَلِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيَاتَهُ ثُمَّ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ فَأَنَا وَلِيُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبَضَهُ أَبُو بَكْرٍ فَعَمِلَ فِيهِ بِمَا عَمِلَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنْتُمْ حِينَئِذٍ فَأَقْبَلَ عَلَى عَلِيٍّ وَعَبَّاسٍ وَقَالَ تَذْكُرَانِ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ فِيهِ كَمَا تَقُولَانِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّهُ فِيهِ لَصَادِقٌ بَارٌّ رَاشِدٌ تَابِعٌ لِلْحَقِّ ثُمَّ تَوَفَّى اللَّهُ أَبَا بَكْرٍ فَقُلْتُ أَنَا وَلِيُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ فَقَبَضْتُهُ سَنَتَيْنِ مِنْ إِمَارَتِي أَعْمَلُ فِيهِ بِمَا عَمِلَ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ وَاللَّهُ يَعْلَمُ أَنِّي فِيهِ صَادِقٌ بَارٌّ رَاشِدٌ تَابِعٌ لِلْحَقِّ ثُمَّ جِئْتُمَانِي كِلَاكُمَا وَكَلِمَتُكُمَا وَاحِدَةٌ وَأَمْرُكُمَا جَمِيعٌ فَجِئْتَنِي يَعْنِي عَبَّاسًا فَقُلْتُ لَكُمَا إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ فَلَمَّا بَدَا لِي أَنْ أَدْفَعَهُ إِلَيْكُمَا قُلْتُ إِنْ شِئْتُمَا دَفَعْتُهُ إِلَيْكُمَا عَلَى أَنَّ عَلَيْكُمَا عَهْدَ اللَّهِ وَمِيثَاقَهُ لَتَعْمَلَانِ فِيهِ بِمَا عَمِلَ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ وَمَا عَمِلْتُ فِيهِ مُنْذُ وَلِيتُ وَإِلَّا فَلَا تُكَلِّمَانِي فَقُلْتُمَا ادْفَعْهُ إِلَيْنَا بِذَلِكَ فَدَفَعْتُهُ إِلَيْكُمَا أَفَتَلْتَمِسَانِ مِنِّي قَضَاءً غَيْرَ ذَلِكَ فَوَاللَّهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالأَرْضُ لَا أَقْضِي فِيهِ بِقَضَاءٍ غَيْرِ ذَلِكَ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ فَإِنْ عَجَزْتُمَا عَنْهُ فَادْفَعَا إِلَيَّ فَأَنَا أَكْفِيكُمَاهُ

قَالَ فَحَدَّثْتُ هَذَا الْحَدِيثَ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ فَقَالَ صَدَقَ مَالِكُ بْنُ أَوْسٍ أَنَا سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقُولُ أَرْسَلَ أَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُثْمَانَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ يَسْأَلْنَهُ ثُمُنَهُنَّ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُنْتُ أَنَا أَرُدُّهُنَّ فَقُلْتُ لَهُنَّ أَلَا تَتَّقِينَ اللَّهَ أَلَمْ تَعْلَمْنَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ يُرِيدُ بِذَلِكَ نَفْسَهُ إِنَّمَا يَأْكُلُ آلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْمَالِ فَانْتَهَى أَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى مَا أَخْبَرَتْهُنَّ قَالَ

فَكَانَتْ هَذِهِ الصَّدَقَةُ بِيَدِ عَلِيٍّ مَنَعَهَا عَلِيٌّ عَبَّاسًا فَغَلَبَهُ عَلَيْهَا ثُمَّ كَانَ بِيَدِ حَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ ثُمَّ بِيَدِ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ ثُمَّ بِيَدِ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ وَحَسَنِ بْنِ حَسَنٍ كِلَاهُمَا كَانَا يَتَدَاوَلَانِهَا ثُمَّ بِيَدِ زَيْدِ بْنِ حَسَنٍ وَهِيَ صَدَقَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقًّا [ر:٢٧٤٨]

[٣٨١٠] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَام وَالْعَبَّاسَ أَتَيَا أَبَا بَكْرٍ يَلْتَمِسَانِ مِيرَاثَهُمَا أَرْضَهُ مِنْ فَدَكٍ وَسَهْمَهُ مِنْ خَيْبَرَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ إِنَّمَا يَأْكُلُ آلُ مُحَمَّدٍ فِي هَذَا الْمَالِ وَاللَّهِ لَقَرَابَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ أَصِلَ مِنْ قَرَابَتِي [ر:٢٩٢٦]

مالك بن اوس بن الحدثان بيان كوى.چه حضرت عمر رضی الله عنه زه راوغوستم.ناڅاپه حضرت عمر رضی الله عنه ته د هغه دربان ((يرفاء)) راغلو[1] او ووې وئيل.چه حضرت عثمان ،حضرت عبدالرحن بن عوف او حضرت زبير او حضرت سعد بن ابى وقاص رضی الله عنهم د دننه راتلو اجازت غواړى.حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائيل.آو هغوى دننه راوله.اوس لږ غوندې وخت تير شوى وو.چه يرفاء دوباره راغلو.او حضرت عمر رضی الله عنه ته ئې اووئيل.چه حضرت عباس او حضرت على رضی الله عنهما راغلى دى.او دننه راتلل غواړى.حضرت عمر رضی الله عنه اجازت ورکړو.کله چه دواړه حضرات دننه داخل شو.نو حضرت عباس رضی الله عنه اووئيل.اې اميرالمومنين زما او دده (حضرت على رضی الله عنه) په مينځ کښې فيصله اوکړه.

**قوله: وَهُمَا يَخْتَصِمَانِ فِي الَّذِي أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي النَّضِيرِ:** اودې دواړو جګړه کوله د بنو نضيرو نه چه کوم مال فئ نبى صلی الله علیه وسلم ته ملاوه شوې وو.د هغې په باره کښې ( دا جمله د ترجمة الباب سره متعلق ده)

د بنو نضيرو نه چه کوم مال فئ نبى کريم صلی الله علیه وسلم ته ملاؤ شوې وو.هغه نبى صلی الله علیه وسلم په مهاجرينو کښې تقسيم کړې وو.البته د هغې څه حصه نبى صلی الله علیه وسلم د خپل ځان سره ايساره کړې وه.کومه چه به ئې د مسلمانانو په حاجتوونو باندې خرچ کوله.او نبى صلی الله علیه وسلم به خپلو رشته دارانو ته هم په هغې کښې حصه ورکوله.هم ددغه مال په باره کښې د حضرت عباس او حضرت على رضی الله عنهما په مينځ کښې اختلاف راغلې وو.دحضرت عمر رضی الله عنه په مجلس کښې ددې دواړو په مينځ کښې توتو مئ مئ هم اوشو.نو د دوى نه وړاندې چه کم حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم راغلى وو.هغوى اووئيل .اې امير المومنين د دوى په مينځ کښې فيصله اوکړه.او يودبل نه خلاص کړه.نو حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائيل. ((اتَّئِدُوا)) [2]ايسار شئ.جلتى مکوئ.زه تاسو خلقو ته د هغه ذات قسم درکوم.چه د هغه په حکم آسمان او زمکه ولاړدى.آيا تاسوته

[1] )يرفاء بفتح الياء وسكون الراء (عمدة القارى( ١٧\١٣٠)_
[2] )إتندوا: أى لا تستعجلوا وهى من التؤدة وهى التانى والمهلة عمدة القارى :١٧\١٣٠)_

معلومه ده.چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي.((لانورث ما تركنا صدقة..)) زمونږ د پيغمبرانو د مال څوك وارث نه وي.څه چه مونږ پريږدو.نو هغه صدقه وي.
ددې نه نبي ﷺ خپله خپل ځان مراد اخستو.چه د وفات نه پس چه کوم مالونه زه پريږدم.هغه به د صدقې مالونه وي.اوپه هغې کښې به ميراث نه جاري كيږي. هلته چه كوم صحابه كرام رضي الله عنهم موجود وو.هغوى د حضرت عمر رضي الله عنه تصديق اوكړو.او حضرت عمر رضي الله عنه بيا حضرت عباس او حضرت على رضي الله عنه طرف ته متوجه شو.اوهغوى ته ئې اووئيل.چه زه تاسو ته دالله تعالى قسم دركوم.آيا تاسوته معلومه ده.چه نبي كريم ﷺ دا حديث فرمائيلې دې.هغه دواړو جواب وركړو.چه ،،نعم،، آو جى. او د دغه حديث په باره كښې ئې د حضرت عمر رضي الله عنه تصديق اوكړو.حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل.اوس زه ددې معاملې په باره كښې تاسوته بيان كوم.چه د (بنو نضير) دغه مال فئ الله تعالى دخپل رسول دپاره خاص كړې وو.اوپه هغې كښې بل چاته حق نه دې وركړې.دالله تعالى ارشاد دې.
وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَآ اَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ (١)
نو دا مال صرف دالله اود هغه د رسول دپاره خاص دې.خوپه الله قسم نبي ﷺ دا مال صرف د خپل ځان دپاه نه وو جمع كړې او ساتلې،اونه ئې خپل ذات ته ترجيح وركړې وه.بلكه دا مال ئې په تاسو خلقوكښې تقسيم كړې وو.تردې چه په هغې كښې د مال دا حصه باقي پاتې شوه.رسول الله ﷺ به هم د هغې نه په خپل اهل وعيال باندې خرچ كولو.د ټول كال خرچ به ئې هم د هغې نه وركړه.او نوره به ئې دالله تعالى په لار (جهاد وسله او نورو داسې قسم كارونو كښې) خرچ كوله.نبي ﷺ به په خپل ژوند كښې هم داسې كولو.بيا نبي ﷺ وفات شو.نو حضرت ابوبكر رضي الله عنه اووئيل.بيشك زه د الله تعالى د رسول ولي (او خليفه) يم.نودا مال حضرت ابوبكر رضي الله عنه په خپل لاس كښې واخستلو،.اوو د رسول الله ﷺ د عمل مطابق به ئې په دغه مال كښې تصرف كولو.يعنې هم په هغه مصارفوكښې به ئې ددې ګټه خرچ كوله.په كوموكښې چه به نبي ﷺ خرچ كوله.او تاسو ټول خلق په هغه وخت كښې موجود وې.(اوتاسو ته علم دې) بيا حضرت عمر رضي الله عنه حضرت عباس او حضرت على رضي الله عنهما طرف ته متوجه شو.او وې وئيل.

**قوله**: تَذْكُرَانِ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ عَمِلَ فِيهِ كَمَا تَقُولَانِ : تاسو دواړه دا ذكر كوئ.او وائې.چه ابوبكر رضي الله عنه ددې مال په تصرف كښې هم هغه شان وو. څنګه چه تاسو وائې.خودل دا دى.چه ستاسو خيال دا وو.چه تصرف كول هم مونږ لره پكار دې.او توليت زمونږ په لاس كښې پكار دې.ابوبكر رضي الله عنه په خپل لاس كښې دا تصرف ساتلې دې او زياتې ئې كړې دې.
حالانكه ابوبكر رضي الله عنه په دې تصرف كښې رښتينې او مخلص وو.په سمه لاره او په حق وو.
(حضرت عباس اوحضرت على رضي الله عنهما ته د ابوبكر رضي الله عنه نه ګله په دې خبره وه.چه ددې مال

(١) سورة الحشر)_

توليت نې مونږ ته ولې حوالنه نكړل،ولې ابوبكر رضي الله عنه مونږ عادلان او قابل اعتماد نه ګنړي.د دې دواړو بزرګانو د حضرت ابوبكر رضي الله عنه نه ددې خبرې ګله نه وه.چه دا مال مونږ ته په ميراث كښې ولې ملاؤ نشو.ځكه چه هغوى ته هم دا معلومه وه.چه د نبى صلى الله عليه وسلم ميراث نه وى.ګله صرف د توليت اوپه دغه مال كښې د تصرف اختيارنه وركولو وه.دا خو دهغوى نقطه نظر وو.خود ابوبكر رضي الله عنه نقصه نظردا وو.كه په دې وخت كښې په دې مال كښې د تصرف اختيار او ددې توليت دوى ته حواله كړې شى.نو په دې سره به خلقو ته دا شك شى.چه د نبى صلى الله عليه وسلم ميراث تقسيم شوې وى.نو ددې شبې د وجې حضرت ابوبكر رضي الله عنه حضرت عباس او حضرت على رضي الله عنهما ته په هغې كښې د تصرف اختيار نه وو وركړې.حضرت عمر رضي الله عنه فرمائى.چه د حضرت ابوبكر رضي الله عنه طرز عمل صحيح وو)

بيا حضرت ابوبكر رضي الله عنه وفات ش.نو زه د نبى صلى الله عليه وسلم اود حضرت ابوبكر رضي الله عنه په ځاې كيناستم.اوخليفه جوړ شوم.او ما دا مال د خپل امارت په اولنو دوو كالوكښې په خپله قبضه كښې اوساتلو.اوپه دې كښې مې هم هغه عمل كولو.كوم چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم او حضرت ابوبكر رضي الله عنه كولو.بيا تاسو دواړه ماته راغلئ.اوپه هغه وخت كښې ستاسو د دواړو خبرد يوه وه.او ستاسوخبره اتفاقى وه.نو ما تاسودواړو ته اووئيل. چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى.«لا نورث ماتركنا صدقة» بيا چه كله دوه كاله تير شو.نوزما اطمينان راغلو.كه اوس ددې مال تصرف تاسو دواړو ته حواله كړې شى. نو په دې كښې به څه قباحت نه وى.نو ما تاسو ته ونيلى وو.كه تاسو غواړئ.نو زه به دا جدائداد تاسوته حواله كړم.خو په دې شرط سره چه تاسو به د الله تعالى سره عهد او وعده كوئ.چه تاوسو به په دې جائيداد كښې هم هغه عمل كوئ.كوم چه به نبى كريم صلى الله عليه وسلم او حضرت ابوبكر او ما كولو.ګنى تاسو په دې باره كښې زما سره خبرې مكوئ.تاسو دواړو ونيلى وو.چه هم په دې وعدې سره تاسو دا مال زمونږ حواله كړئ.نو ما تاسو دواړو ته حواله كړې وو.او چه اوس تاسو دواړه ماته راغلې ئې.آيا ددې نه علاوه تاسو په ما باندې څه بله فيصله كول غواړئ.

**قوله**: فَوَاللَّهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ لَا أَقْضِي فِيهِ بِقَضَاءٍ غَيْرِ ذَلِكَ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ: په هغه الله قسم،د چا په حكم چه زمكه او آسمان ولاړ دى.ترقيامته پورې به زه په دې كښې ددې نه سوا بله فيصله اونكړم.

كه تاسو دواړ ددې د انتظام نه عاجزه شوې ئې.نوماته ئې واپس كړئ.زه به ددې انتظام پخپله كوم.

**قوله**: فَحَدَّثْتُ هَذَا الْحَدِيثَ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ: دا د زهرى رحمه الله قول دې.دوى فرمائى.چه ما دا حديث حضرت عروه بن الزبير رضي الله عنه ته بيان كړلو.نو عروه اووئيل.چه مالك بن اوس صحيح ونيلى دى.ما هم د حضرت عائشې رضي الله عنها نه اوريدلى وو.چه فرمائيل ئې.د نبى صلى الله عليه وسلم ازواج مطهراتو رضي الله عنهن حضرت عثمان رضي الله عنه حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه ته ليږلى وو.ازواج مطهراتود حضرت ابوبكر رضي الله عنه نه په هغه مال فئ كښې د خپلې اتمې حصې مطالبه كوله.كومه چه الله تعالى خپل نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته وركړې وه.نو ما هغوى (ازواج مطهرات) منع كړلې:اوما هغوى

ته ونيل.چه تاسو دالله تعالى نه نه ويريږئ. تاسو ته معلومه نه ده.چه نبى ﷺ فرمائيلى دى.((لانورث ماتركنا صدقة)) اوددې نه مراد د نبى ﷺ خپل ذات وو.البته د آل محمد نفقه به د هغه مال نه وى.حضرت عائشه ﷝ فرمائى، چه ما ازواج مطهراتوته كله دا حديث واورولو.نو هغوى منع شوى(او هغوى په ميراث كښې دخپلې حصې مطالبه پريخوده)

حضرت عروه ﷫ فرمائى.چه دا مالونه كوم چه د صدقې وو.د حضرت على ﷛ سره وو. حضرت على ﷛حضرت عباس ﷛ ددې نه جدا كړو.(اوپه انتظامى اوموروكښې داختلاف په وجه نې حضرت عباس ﷛ په دې كښې شريك نكړو) او په هغوى باندې زورآور پاتې شو.بيا دا اموال صدقه د حضرت حسن بن على ﷛ په قبضه كښې وو.اوبيا هغه د حضرت حسين بن على ﷛ په لاس كښې راغلل.اوبيا د على بن حسين او حسن بن حسن په لاس كښې وو.او هغوى دواړو به وار په وار ددې انتظام كولو.او بيا دا د زيد بن حسن په قبضه كښې راغلل.

**قوله**: وهى صدقة رسول الله ﷺ حقاً: اودا يقينى طور د رسول الله ﷺ صدقه وه.(ددې وجې په دې مال كښې نه ميراث جارى شو.اونه دغه حضراتود ذاتى ملكيت په طور دا استعمال كړې دى)

**ترجمة الباب سره مطابقت**: چونكه په دې روايت كښې چه د حضرت عباس او حضرت على ﷛ دكومې مخاصمې ذكردې.هغه دهغه مالونوپه باره كښې وه.كوم چه د بنو نضيرو نه د فئ په طور حاصل شوى وو.ددې وجې امام بخارى ﷫ دا حديث په ((باب حديث بنى النضير)) كښې دلته ذكر كړو.([1])

## بَابُ قَتْلِ كَعْبِ بْنِ الْأَشْرَفِ

[۳۸۱۱] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لِكَعْبِ بْنِ الْأَشْرَفِ فَإِنَّهُ قَدْ آذَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَامَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَتُحِبُّ أَنْ أَقْتُلَهُ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَأْذَنْ لِي أَنْ أَقُولَ شَيْئًا قَالَ قُلْ فَأَتَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَقَالَ إِنَّ هَذَا الرَّجُلَ قَدْ سَأَلَنَا صَدَقَةً وَإِنَّهُ قَدْ عَنَّانَا وَإِنِّي قَدْ أَتَيْتُكَ أَسْتَسْلِفُكَ قَالَ وَأَيْضًا وَاللَّهِ لَتَمَلُّنَّهُ قَالَ إِنَّا قَدِ اتَّبَعْنَاهُ فَلَا نُحِبُّ أَنْ نَدَعَهُ حَتَّى نَنْظُرَ إِلَى أَيِّ شَيْءٍ يَصِيرُ شَأْنُهُ وَقَدْ أَرَدْنَا أَنْ تُسْلِفَنَا وَسْقًا أَوْ وَسْقَيْنِ وحَدَّثَنَا عَمْرٌو غَيْرَ مَرَّةٍ فَلَمْ يَذْكُرْ وَسْقًا أَوْ وَسْقَيْنِ أَوْ فَقُلْتُ لَهُ فِيهِ وَسْقًا أَوْ وَسْقَيْنِ فَقَالَ أُرَى فِيهِ وَسْقًا أَوْ وَسْقَيْنِ فَقَالَ نَعَمِ ارْهَنُونِي قَالُوا أَيَّ شَيْءٍ تُرِيدُ قَالَ ارْهَنُونِي نِسَاءَكُمْ قَالُوا كَيْفَ نَرْهَنُكَ نِسَاءَنَا وَأَنْتَ أَجْمَلُ الْعَرَبِ قَالَ فَارْهَنُونِي أَبْنَاءَكُمْ قَالُوا كَيْفَ نَرْهَنُكَ أَبْنَاءَنَا فَيُسَبُّ

[1] )ددې حدې سره متعلق نور مباحث په ((باب فرض الخمس)) كښې اوګورئ.

أَحَدُهُمْ فَيُقَالُ رُهِنَ بِوَسْقٍ أَوْ وَسْقَيْنِ هَذَا عَارٌ عَلَيْنَا وَلَكِنَّا نَرْهَنُكَ اللَّأْمَةَ قَالَ سُفْيَانُ يَعْنِي السِّلَاحَ فَوَاعَدَهُ أَنْ يَأْتِيَهُ فَجَاءَهُ لَيْلًا وَمَعَهُ أَبُو نَائِلَةَ وَهُوَ أَخُو كَعْبٍ مِنَ الرَّضَاعَةِ فَدَعَاهُمْ إِلَى الْحِصْنِ فَنَزَلَ إِلَيْهِمْ فَقَالَتْ لَهُ امْرَأَتُهُ أَيْنَ تَخْرُجُ هَذِهِ السَّاعَةَ فَقَالَ إِنَّمَا هُوَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ وَأَخِي أَبُو نَائِلَةَ وَقَالَ غَيْرُ عَمْرٍو قَالَتْ أَسْمَعُ صَوْتًا كَأَنَّهُ يَقْطُرُ مِنْهُ الدَّمُ قَالَ إِنَّمَا هُوَ أَخِي مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ وَرَضِيعِي أَبُو نَائِلَةَ إِنَّ الْكَرِيمَ لَوْ دُعِيَ إِلَى طَعْنَةٍ بِلَيْلٍ لَأَجَابَ قَالَ وَيُدْخِلُ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ مَعَهُ رَجُلَيْنِ قِيلَ لِسُفْيَانَ سَمَّاهُمْ عَمْرٌو قَالَ سَمَّى بَعْضَهُمْ قَالَ عَمْرٌو جَاءَ مَعَهُ بِرَجُلَيْنِ وَقَالَ غَيْرُ عَمْرٍو أَبُو عَبْسِ بْنُ جَبْرٍ وَالْحَارِثُ بْنُ أَوْسٍ وَعَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ قَالَ عَمْرٌو جَاءَ مَعَهُ بِرَجُلَيْنِ فَقَالَ إِذَا مَا جَاءَ فَإِنِّي قَائِلٌ بِشَعَرِهِ فَأَشَمُّهُ فَإِذَا رَأَيْتُمُونِي اسْتَمْكَنْتُ مِنْ رَأْسِهِ فَدُونَكُمْ فَاضْرِبُوهُ وَقَالَ مَرَّةً ثُمَّ أُشِمُّكُمْ فَنَزَلَ إِلَيْهِمْ مُتَوَشِّحًا وَهُوَ يَنْفَحُ مِنْهُ رِيحُ الطِّيبِ فَقَالَ مَا رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ رِيحًا أَيْ أَطْيَبَ وَقَالَ غَيْرُ عَمْرٍو قَالَ عِنْدِي أَعْطَرُ نِسَاءِ الْعَرَبِ وَأَكْمَلُ الْعَرَبِ قَالَ عَمْرٌو فَقَالَ أَتَأْذَنُ لِي أَنْ أَشُمَّ رَأْسَكَ قَالَ نَعَمْ فَشَمَّهُ ثُمَّ أَشَمَّ أَصْحَابَهُ ثُمَّ قَالَ أَتَأْذَنُ لِي قَالَ نَعَمْ فَلَمَّا اسْتَمْكَنَ مِنْهُ قَالَ دُونَكُمْ فَقَتَلُوهُ ثُمَّ أَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرُوهُ [ر:٢٣٧٥]

په جنګ بدرکښې کله چه مسلمانانو ته فتح نصيب شو.نوكعب بن اشرف ډير خفه شو.چه مسلمانانو ته غلبة حاصليږي.ؤي وئيل.اوس په دنيا كښې د ژوند مزه او خوند باقى پاتې نشو.اوس خو ((بطن الأرض خير من ظهرها)) كيفيت دې، د مكې د قريشو تعزيت دپاره دې مكې ته اورسيدل.او د قريشو چه كوم خلق قتل شوى وو.ده د هغوى مرثې اوليكلې.اوهغه مرثې به ئې په اجتماعاتوكښې اورولې. په خپله به ئې هم ژړل.او خلق به ئې هم ژړول.د خانه كعبې غلاف ئې اونيولو.او خلقو ته ئې اووئيل.تاسو هم د خانه كعبې غلاف اونيسئ.اوعهد اوكړئ.چه ټول به يوځاې كيږو.اودمسلمانانو خلاف به يو فيصله كن جنګ كوو.(١) چه مدينې ته راغلو.نو ده د مسلمانانو ښځو په باره كښې په ،،تشبيب،، (٢) عشقيه اشعار وئيل شروع كړل.او دوى سره به ئې د خپل عشق او محبت تذكره كول شروع كړل. ښكاره خبره ده.چه ددې ښځودپاره دا خبره ډيره دردناكه اود پريشانئ باعث وه. اود هغوى د

---

(١) البداية والنهاية (٦/٤)..
ددې حركتونونه علاوه دده د قتل يوبل سبب هم بيان شوې دې.حافظ ليكى.
((ووجدت فى فوائد عبدالله بن اسحاق .. لقتل كعب سببا آخر وهو أنه صنع طعاماً وواطأ جماعة من اليهود أنه يدعوا النبى ﷺ إلى الوليمة فإذا حضر فتكوا به (أى اقتلوه) ثم دعاء فجزم ومعه بعض أصحابه فأعلمه جبريل بما أضمروه بعد أن جالسه فقام فستره جبريل بجناحه فخرج فلما فقدوه تفرقوا فقال حينئذ :من ينتدب لقتل كعب ؟ ويمكن الجمع بتعدد الأسباب .. فتح البارى (٣٣٨/٧)_
(٢) تشبيب د قصيدې په شروع كښې د عشق او محبت كوم اشعار وى.هغې ته وائى.)_

سړودپاره هم دا خبره ډیره د تکلیف او افسوس وه.بیا ئې په دې باندې هم بس اونکړو،.د نبی ﷺ په شان کښې ئې د هجو قصیدې لکیل شروع کړې.(۱)

کله چه دا حرکتونه ډیر زیات شو.نو نبی ﷺ یوه ورځ اوفرمائیل.((من لکعب بن أشرف ؟ فإنه قد آذی الله ورسوله)) څوك دې چه دې (دا یهودی) کعب بن اشرف قتل کړی.ده الله اودهغه رسول ته تکلیف اورسولو.حضرت محمدبن مسلمه اودریدل ،اوهغوی اووئیل.تاسودا خوښه وئ.چه زه هغه قتل کړم؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائیل. ،نعم،، .(آو) نو حضرت محمدبن مسلمه عرض اوکو.((فاذن لي أن أقول شیئاً)) تاسو ماته اجازت راکړئ.که زه (مجمل او مبهم اندازکښې) څه خبرې اوکړم.(چه په هغې سره هغه خوشحالیږی.او بیا زما دپاره دهغه قابوکول آسان شی) نو نبی ﷺ ورته اجازت اوکړو.

دا خود بخاری روایت دې.د ابن اسحاق په روایت کښې دی.چه محمد بن مسلمه ﷺ ته کله نبی ﷺد کعب بن اشرف د قتل اجازت ورکړونو دې فکر مند شو. اوسوچ ئې کول.چه کومه طریقه اختیارکړې شی.دوه درې ورځې د سوچ کولونه پس د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضرشو.او عرض ئې اوکړو،حضرت ددې اجازت شته.چه زه هغه سره ملاؤ شم.اود ملاویدو نه پس د هغه د مطمئن کولودپاره د ابهام او اجمال په صورت کښې هغه سره څو خبرې اوکړم.نو نبی ﷺ ورته اجازت ورکړو.(۲)

نومحمدبن مسلمه ﷺ د کعب بن اشرف د قتل په اراده باندې روان شو.د دوی سره ابونائله او د حضرت سعد بن معاذ ﷺ ورارهٔ حارث بن اوس هم وو.کعب بن اشرف ته راغلل.اوهغه ته ئې اووئیل.

**قوله**: إِنَّ هٰذَا الرَّجُلَ قَدْ سَأَلَنَا صَدَقَةً وَإِنَّهُ قَدْ عَنَّانَا وَإِنِّي قَدْ أَتَيْتُكَ أَسْتَسْلِفُكَ: دا سړې (مراد نبی کریم ﷺ دې) زمونږ نه د صدقې مطالبه کوی.او مونږ ئې په مشقت کښې اچولی یو.زه تاسو ته د قرض غوستلو دپاره راغلې یم.کعب بن اشرف چه دا واوریدل.نو وې وئیل.((وأیضاً والله لتملنه)) په الله قسم تاسو به ددې نه زیات تنګ شئ.یعنی اوس خو لا شروع ده.وړاندې به اوګورئ چه څه صورتال به پیدا کیږی.اوس خو به لا نور تنګیدل وی.

محمد بن مسلمه ورته اووئیل.مونږ د هغه تابعداری کړې ده.نواوس نه غواړو.چه هغه پریږدو.تردې چه مونږ اوګورو چه انجام به څه وی؟ دمحمد بن مسلمه ﷺ مقصد دا دې.چه زمونږ د اسلام د غلبې انتظار دې.اوس خو په امتحان کښې راغلی یو.او ان شاء الله اسلام ته به غلبه حاصلیږی.اود ((یدخلون فی دین الله أفواجاً)) شان به ښکاره کیږی.خوکعب بن اشرف دخپل ذهنیت په وجه ددې کلام نه دا اوګڼړل.چه مونږ څونکه دده اتباع کړې ده.او مونږ عرب خلق یو.دخپل قول او وعدې نه انحراف خو نشو کولې.ددې وجې اوس مونږ په دې

---

۱ )البدایة والنهایة (۶/۱٤)..
۲ )البدایة والنهایة (۷/۱٤)_

انتظار كښې يو.چه ددوی خاتمه به كله كيږی.چه خاتمه ئې اوشی.نو زمونږ خان به خلاص شی.كعب بن اشرف د محمد بن مسلمه رضي الله عنه د كلام نه د خپل ذهنيت مطابق دا تاثر واخستلو.

**قوله**: وَقَدْ أَرَدْنَا أَنْ تُسْلِفَنَا وَسْقًا أَوْ وَسْقَيْنِ : مونږ غواړو.چه ته مونږ ته قرض راكړې.يو وسق يا (راوی وئيلی دی) دوه وسق،كعب بن اشرف اووئيل.ها،اوس دده خبث باطن ته اوګورئ.وې وئيل.ما سره څه څيزګانړه كيږدئ.محمد بن مسلمه رضي الله عنه اود هغه ملګرو اووئيل.ته څه څيز غواړې .مونږ كوم څيز تاسره ګانړه كيږدو.وې وئيل.خپلې ښځې ماسره ګانړه كړئ.هغوی ورته اووئيل.مونږ خپلې ښځې تا سره څنګه ګانړه كړو.ته خو د عربو ډيرښكلې سړې ئې.(ښځې ډير په ښائست باندې عاشقې كيږی.كه هغوی په تا عاشقانې شوې.نو زمونږ به څه كيږی) نو وې وئيل.ښه بيا خپل ځامن زما سره ګانړه كړئ. دوی ورته اووئيل.خپل ځامن تا سره څنګه ګانړه كولې شو.روستو به ټول عمر هغوی ته پيغور وركولې شی.چه دا هغه دی.چه په وسق دوو وسقو كښې ګانړه شوی وو.دا زمونږ دپاره شرم دې.

**قوله**: وَلٰكِنَّا نَرْهَنُكَ اللَّأْمَةَ :(۱) البته مونږ به تا سره خپلې وسلې ګانړه كيږدو.سفيان وائی. «اللامة» نه مراد وسله اوهتيار دی.

نو محمد بن مسلمه هغه سره د راتلو وعده اوكړه.اودشپې هغه ته راغلو.دوی سره ابونائيله رضي الله عنه هم وو.كوم چه د كعب بن اشرف رضاعی ورور وو.(د ابونائله نوم سلكان بن سلامه دې) كعب دوی قلعې ته راوغوښتل.اوپه خپله دقلعې نه هغه طرف ته راكوز شو.ښځې كعب ته اووئيل.د شپې په دې تياره كښې چرته ځې.نو كعب ورته اووئيل.صرف محمد بن مسلمه او زما ورور ابونائله دې.

دعمروبن دينار نه علاوه د بل راوی بيان دې.چه د كعب بن اشرف ښځې په دې موقع دا هم وئيلی وو.چه ما خو داسې آواز واوريدل.لكه چه د هغې نه د وينې قطرې څاځی.نو ته د كور نه مه اوځه.(۲)

كعب اووئيل.خپل ورو محمد بن مسله او پئ شرك ابونائله ته ورځم.هغوی مې غواړی.ځكه چه «إِنَّ الْكَرِيمَ لَوْ دُعِيَ إِلَى طَعْنَةٍ بِلَيْلٍ لَأَجَابَ» شريف سړې كه د شپې د نيز بازئ دپاره راوبللې شی. نو هغه ئې قبلوی.

محمد بن مسلمه خپل ځان سره ابوعبس بن جبر،حارث بن اوس او عباد بن بشر رضي الله عنهم راوستی وو.يعنی عمرو وائی.چه هغه ځان سره دوه كسان راوستې وو.او د عمر نه علاوه بل

---

(۱) الأمة بتشديد اللام وس...كون الهمزة قال سفيان يعنى السلاح وقال غيره من أهل اللغة الدرع (فتح البارى ۳۳۹/۷)_

(۲) وفى البداية والهنهاية (۴/۷) فأخذت إمرأة بناحيتها وقال أنت إمرو محارب وإن أصحاب الحرب لا ينزلون فى هذه الساعة قال إنه أبونائلة لو وجدنى نائماً ما أيظنى فقالت والله إنى لأعرف فى صوته الشر)_

راوي وائي.چه هغه دا درې كسان خان سره راوستي وو.[1]
محمدبن مسلمه خپلو ملګروته وئيلي وو.چه كله كعب راشي.نو زه به د هغه ويخته د بويولودپاره اونيسم.كله چه تاسو ته يقين اوشي.چه ما د هغه په سر باندې مكمل قابو بيا موندو.نو تاسو به ئې اونسئ.اوقتل به ئې كړئ.

**قوله**: فَنَزَلَ إِلَيْهِمْ مُتَوَشِّحًا وَهُوَ يَنْفَحُ مِنْهُ رِيحُ الطِّيبِ: نو كعب څادر اغوستې وو.او د هغوى طرف ته راكوز شو.دهغه د بدن نه خوشبوئى تله.نو محمدبن مسلمه اووئيل.چه د نن پشان خوشبوى چرته نه ده محسوس كړې.كعب اووئيل.ما سره د عربو هغه حسين اوجميل ښځه ده.كومه چه هروخت په عطرواوخوشبوې كښې اوسيږى.په دې باندې محمدبن مسلمه اووئيل. كه تاسو اجازت راكوئ.چه زه ستاسو سر بوې كړم.كعب اووئيل.بوئې كړه.نو محمد بن مسلمه دهغه سره بوې كړه.اوخپلو ملګروته ئې هم د بويولودپاره اووئيل.محمد بن مسلمه دوباره د بويولواجازت اوغوستل.كعب بن اشرف ورته دوباه اجازت وركړو.كله چه په بويول بويولو كښې محمد بن مسلمه ﷺ دهغه سره قابو كړو.نو خپلو ملګرو ته ئې اووئيل،((دونك)) حمله كوئ.نو هغوى حمله اوكړه. اودې ئې قتل كړو.اورغلل نبى ﷺ ته ئې خبر وركړو.نبى ﷺ چه د دې شاتم رسول او موذى رسول د قتل خبر واوريدو.نو دالله تعالى شكرئې ادا كړو.روسته يهوديان دخپل سردار دقتل تپوس كولودپاره نبى ﷺ ته راغلل.نو نبى ﷺ ورته دهغه د حركتونو تفصيل اوخودل.نوهغوى چپ واپس شول.[2]

**دا واقعه كله پيښه شوې وه**: ① بعضې حضراتو په نيز د كعب بن اشرف د قتل واقعه په ۱۴ ربيع الاول ۳ھ كښې پيښه شوې وه.

② دمحمدبن اسحاق رائې دا ده.چه په رمضان ۳ھ كښې دا واقعه پيښه شوې وه.[3]

**محمدبن مسلمه رضى الله عنه**: ددوى تعلق د انصارو د اوس قبيلې سره وو.په بدر او نورو ټولو جنګوكښې شريك شوې وو.ددوى وفات په ۴۳ھ يا ۴۷ھ يا ۴۶ھ په مدينه منوره كښې د دوه اويا كالو په عمر كښې شوې دې. مروان بن حكم كوم چه په هغه وخت كښې دمدينې منورې حاكم وو.هغه ددوى د جنازې مونځ كړې وو.[4]

---

[1] په بعضې رواياتوكښې د محمد بن مسلمه سره صرف د ابونائيله ذكر دې.په بعضوكښې د دوو سړو ذكر دې.خوپه حقيقت كښې دا ټول پنځه ملګرى وو.①محمدبن مسلمه② ابونائله③ ابوعبس بن جبر④ حارث بن اوس ⑤ اوعباد بن بشر( فتح البارى(۳۴۹۱۷)ـ

[2] )فتح البارى(۳۴۰۱۷)ـ

[3] )عمدة القارى(۱۳۱۱۱۷)ـ

[4] )عمدة القارى(۱۳۲۱۱۷)ـ

# بَاب = قَتْلِ أَبِي رَافِعٍ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي الْحُقَيْقِ

وَيُقَالُ سَلَّامُ بْنُ أَبِي الْحُقَيْقِ كَانَ بِخَيْبَرَ وَيُقَالُ فِي حِصْنٍ لَهُ بِأَرْضِ الْحِجَازِ وَقَالَ الزُّهْرِيُّ هُوَ بَعْدَ كَعْبِ بْنِ الْأَشْرَفِ

[۳۸۱۲/۳۸۱۳] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَهْطًا إِلَى أَبِي رَافِعٍ فَدَخَلَ عَلَيْهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَتِيكٍ بَيْتَهُ لَيْلًا وَهُوَ نَائِمٌ فَقَتَلَهُ

[۳۸۱۳] حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَبِي رَافِعٍ الْيَهُودِيِّ رِجَالًا مِنَ الْأَنْصَارِ فَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَتِيكٍ وَكَانَ أَبُو رَافِعٍ يُؤْذِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيُعِينُ عَلَيْهِ وَكَانَ فِي حِصْنٍ لَهُ بِأَرْضِ الْحِجَازِ فَلَمَّا دَنَوْا مِنْهُ وَقَدْ غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَرَاحَ النَّاسُ بِسَرْحِهِمْ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ لِأَصْحَابِهِ اجْلِسُوا مَكَانَكُمْ فَإِنِّي مُنْطَلِقٌ وَمُتَلَطِّفٌ لِلْبَوَّابِ لَعَلِّي أَنْ أَدْخُلَ فَأَقْبَلَ حَتَّى دَنَا مِنَ الْبَابِ ثُمَّ تَقَنَّعَ بِثَوْبِهِ كَأَنَّهُ يَقْضِي حَاجَةً وَقَدْ دَخَلَ النَّاسُ فَهَتَفَ بِهِ الْبَوَّابُ يَا عَبْدَ اللَّهِ إِنْ كُنْتَ تُرِيدُ أَنْ تَدْخُلَ فَادْخُلْ فَإِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُغْلِقَ الْبَابَ فَدَخَلْتُ فَكَمَنْتُ فَلَمَّا دَخَلَ النَّاسُ أَغْلَقَ الْبَابَ ثُمَّ عَلَّقَ الْأَغَالِيقَ عَلَى وَتَدٍ قَالَ فَقُمْتُ إِلَى الْأَقَالِيدِ فَأَخَذْتُهَا فَفَتَحْتُ الْبَابَ وَكَانَ أَبُو رَافِعٍ يُسْمَرُ عِنْدَهُ وَكَانَ فِي عَلَالِيَّ لَهُ فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْهُ أَهْلُ سَمَرِهِ صَعِدْتُ إِلَيْهِ فَجَعَلْتُ كُلَّمَا فَتَحْتُ بَابًا أَغْلَقْتُ عَلَيَّ مِنْ دَاخِلٍ قُلْتُ إِنِ الْقَوْمُ نَذِرُوا بِي لَمْ يَخْلُصُوا إِلَيَّ حَتَّى أَقْتُلَهُ فَانْتَهَيْتُ إِلَيْهِ فَإِذَا هُوَ فِي بَيْتٍ مُظْلِمٍ وَسْطَ عِيَالِهِ لَا أَدْرِي أَيْنَ هُوَ مِنَ الْبَيْتِ فَقُلْتُ يَا أَبَا رَافِعٍ قَالَ مَنْ هَذَا فَأَهْوَيْتُ نَحْوَ الصَّوْتِ فَأَضْرِبُهُ ضَرْبَةً بِالسَّيْفِ وَأَنَا دَهِشٌ فَمَا أَغْنَيْتُ شَيْئًا وَصَاحَ فَخَرَجْتُ مِنَ الْبَيْتِ فَأَمْكُثُ غَيْرَ بَعِيدٍ ثُمَّ دَخَلْتُ إِلَيْهِ فَقُلْتُ مَا هَذَا الصَّوْتُ يَا أَبَا رَافِعٍ فَقَالَ لِأُمِّكَ الْوَيْلُ إِنَّ رَجُلًا فِي الْبَيْتِ ضَرَبَنِي قَبْلُ بِالسَّيْفِ قَالَ فَأَضْرِبُهُ ضَرْبَةً أَثْخَنَتْهُ وَلَمْ أَقْتُلْهُ ثُمَّ وَضَعْتُ ظُبَةَ السَّيْفِ فِي بَطْنِهِ حَتَّى أَخَذَ فِي ظَهْرِهِ فَعَرَفْتُ أَنِّي قَتَلْتُهُ فَجَعَلْتُ أَفْتَحُ الْأَبْوَابَ بَابًا بَابًا حَتَّى انْتَهَيْتُ إِلَى دَرَجَةٍ لَهُ فَوَضَعْتُ رِجْلِي وَأَنَا أُرَى أَنِّي قَدِ انْتَهَيْتُ إِلَى الْأَرْضِ فَوَقَعْتُ فِي لَيْلَةٍ مُقْمِرَةٍ فَانْكَسَرَتْ سَاقِي فَعَصَبْتُهَا بِعِمَامَةٍ ثُمَّ انْطَلَقْتُ حَتَّى جَلَسْتُ عَلَى الْبَابِ فَقُلْتُ لَا أَخْرُجُ اللَّيْلَةَ حَتَّى أَعْلَمَ أَقَتَلْتُهُ فَلَمَّا صَاحَ الدِّيكُ قَامَ النَّاعِي عَلَى السُّورِ فَقَالَ أَنْعَى أَبَا رَافِعٍ تَاجِرَ أَهْلِ الْحِجَازِ فَانْطَلَقْتُ إِلَى أَصْحَابِي فَقُلْتُ النَّجَاءَ فَقَدْ قَتَلَ اللَّهُ أَبَا رَافِعٍ فَانْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثْتُهُ فَقَالَ ابْسُطْ رِجْلَكَ فَبَسَطْتُ رِجْلِي فَمَسَحَهَا فَكَأَنَّهَا لَمْ أَشْتَكِهَا قَطُّ

[٣٨٨٣] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحٌ هُوَ ابْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَبِي رَافِعٍ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَتِيكٍ وَعَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُتْبَةَ فِي نَاسٍ مَعَهُمْ فَانْطَلَقُوا حَتَّى دَنَوْا مِنَ الْحِصْنِ فَقَالَ لَهُمْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَتِيكٍ امْكُثُوا أَنْتُمْ حَتَّى أَنْطَلِقَ أَنَا فَأَنْظُرَ قَالَ فَتَلَطَّفْتُ أَنْ أَدْخُلَ الْحِصْنَ فَفَقَدُوا حِمَارًا لَهُمْ قَالَ فَخَرَجُوا بِقَبَسٍ يَطْلُبُونَهُ قَالَ فَخَشِيتُ أَنْ أُعْرَفَ قَالَ فَغَطَّيْتُ رَأْسِي وَجَلَسْتُ كَأَنِّي أَقْضِي حَاجَةً ثُمَّ نَادَى صَاحِبُ الْبَابِ مَنْ أَرَادَ أَنْ يَدْخُلَ فَلْيَدْخُلْ قَبْلَ أَنْ أُغْلِقَهُ فَدَخَلْتُ ثُمَّ اخْتَبَأْتُ فِي مَرْبِطِ حِمَارٍ عِنْدَ بَابِ الْحِصْنِ فَتَعَشَّوْا عِنْدَ أَبِي رَافِعٍ وَتَحَدَّثُوا حَتَّى ذَهَبَتْ سَاعَةٌ مِنَ اللَّيْلِ ثُمَّ رَجَعُوا إِلَى بُيُوتِهِمْ فَلَمَّا هَدَأَتِ الْأَصْوَاتُ وَلَا أَسْمَعُ حَرَكَةً خَرَجْتُ قَالَ وَرَأَيْتُ صَاحِبَ الْبَابِ حَيْثُ وَضَعَ مِفْتَاحَ الْحِصْنِ فِي كَوَّةٍ فَأَخَذْتُهُ فَفَتَحْتُ بِهِ بَابَ الْحِصْنِ قَالَ قُلْتُ إِنْ نَذِرَ بِي الْقَوْمُ انْطَلَقْتُ عَلَى مَهَلٍ ثُمَّ عَمَدْتُ إِلَى أَبْوَابِ بُيُوتِهِمْ فَغَلَّقْتُهَا عَلَيْهِمْ مِنْ ظَاهِرٍ ثُمَّ صَعِدْتُ إِلَى أَبِي رَافِعٍ فِي سُلَّمٍ فَإِذَا الْبَيْتُ مُظْلِمٌ قَدْ طَفِئَ سِرَاجُهُ فَلَمْ أَدْرِ أَيْنَ الرَّجُلُ فَقُلْتُ يَا أَبَا رَافِعٍ قَالَ مَنْ هَذَا قَالَ فَعَمَدْتُ نَحْوَ الصَّوْتِ فَأَضْرِبُهُ وَصَاحَ فَلَمْ تُغْنِ شَيْئًا قَالَ ثُمَّ جِئْتُ كَأَنِّي أُغِيثُهُ فَقُلْتُ مَا لَكَ يَا أَبَا رَافِعٍ وَغَيَّرْتُ صَوْتِي فَقَالَ أَلَا أُعْجِبُكَ لِأُمِّكَ الْوَيْلُ دَخَلَ عَلَيَّ رَجُلٌ فَضَرَبَنِي بِالسَّيْفِ قَالَ فَعَمَدْتُ لَهُ أَيْضًا فَأَضْرِبُهُ أُخْرَى فَلَمْ تُغْنِ شَيْئًا فَصَاحَ وَقَامَ أَهْلُهُ قَالَ ثُمَّ جِئْتُ وَغَيَّرْتُ صَوْتِي كَهَيْئَةِ الْمُغِيثِ فَإِذَا هُوَ مُسْتَلْقٍ عَلَى ظَهْرِهِ فَأَضَعُ السَّيْفَ فِي بَطْنِهِ ثُمَّ أَنْكَفِئُ عَلَيْهِ حَتَّى سَمِعْتُ صَوْتَ الْعَظْمِ ثُمَّ خَرَجْتُ دَهِشًا حَتَّى أَتَيْتُ السُّلَّمَ أُرِيدُ أَنْ أَنْزِلَ فَأَسْقُطُ مِنْهُ فَانْخَلَعَتْ رِجْلِي فَعَصَبْتُهَا ثُمَّ أَتَيْتُ أَصْحَابِي أَحْجُلُ فَقُلْتُ انْطَلِقُوا فَبَشِّرُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنِّي لَا أَبْرَحُ حَتَّى أَسْمَعَ النَّاعِيَةَ فَلَمَّا كَانَ فِي وَجْهِ الصُّبْحِ صَعِدَ النَّاعِيَةُ فَقَالَ أَنْعَى أَبَا رَافِعٍ قَالَ فَقُمْتُ أَمْشِي مَا بِي قَلَبَةٌ فَأَدْرَكْتُ أَصْحَابِي قَبْلَ أَنْ يَأْتُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَشَّرْتُهُ [ر: ٢٨٥٩]

په دې باب کښې د ابو رافع عبدالله بن ابى الحقيق د قتل بيان دې.ده ته سلام بن ابى الحقيق هم وائى.دې په خيبر کښې اوسيدل.يو قول دا هم دې.چه د حجاز په زمکه کښې په خپله يوه قلعه کښې اوسيدل.کيدې شى.چه دده قلعه د خيبر اوحجاز په مينځ کښې چه کوم سرحد وو.دهغې په مينځ کښې وه.په دې طريقه به په دواړو قولونوکښې تطبيق راشى.

ابورافع: ابورافع په مالداريهودېانوکښې د کعب بن اشرف په هم خيالوخلقو کښې وو..دغطفان قبيلو ته د مسلمانانو خلاف ده ډير لوې امداد ورکړې وو.په انصاروکښې چه کله د اوس د قبيلې حضراتو د کعب بن اشرف قصه ختمه کړه.نو خزرج قبيلې د ابو رافع د قتل کولو اراده اوکړه.ځکه چه د انصارو دې دوو قبيلو په نيکو کښې د يوبل نه د وړاندې والى کوشش کولو.

نو عبدالله بن عتيک ﷺ اودده سره څو خزرجى صحابو ﷺ د نبى ﷺ نه اجازت اوغوستل.

چه ابو رافع قتل كړى.نبى ﷺ ورته اجازت وركړو.[1]
ددوى د قتل واقعه كله پيښه شوې وه.په دې كښې مختلف اقوال دى.

① د بعضې حضراتو رائې دا ده.چه په رجب كال ۳ﻫ كښې دې قتل شوې وو.

② د بعضې حضراتو په نيز په كال ۴ﻫ كښې دا واقعه پيښه شوې وه.

③ بعضې حضرات وائى.چه په كال ۵ﻫ ابو رافع قتل شوې وو.

④ د واقدى خيال دې.چه دا واقعه د كال ۶ﻫ وه.د واقدى خيال ته علامه عينى رحمه الله وهم وئيلې دې.خو حافظ ابن كثير رحمه الله د غزوه خندق نه پس په ۶ﻫ كښې د ابو رافع قتل راجح ګرځولې دې،حافظ ابن حجر رحمه الله هم د ابن سعد په حوالې سره«سنة ست» نقل كړې دې.[2]
امام بخارى رحمه الله د زهرى رحمه الله د قول نه صرف دومره اوخودله.چه د كعب بن اشرف د قتل نه پس د ابورافع د قتل واقعه پيښه شوې وه.او د كعب بن اشرف د قتل واقعه په ۳ﻫ شوې وه.
د ابورافع د قتل تفصيل بيانوى.حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمائى.[3] چه نبى ﷺ د ابورافع يهودى د قتل دپاره د انصارو څو كسان اوليږل... كله چه دا كسان د ابو رافع قلعه ته نزدې اورسيدل.

**قوله**: وَقَدْ غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَرَاحَ النَّاسُ بِسَرْحِهِمْ: په دغه وخت كښې نمر پريوتې وو.او خلقوخپل څاروى ځرولى وو.اوواپس شوى وو.
سرح: هغه څاروو ته وائى.چه په هغې كښې اوښ،غوا،چيلۍ او ګډې دى وى.[4] عبدالله بن عتيك خپلو ملګرو ته وئيلى وو.تاسو هم دلته ايسار شئ.

**قوله**: فَإِنِّي مُنْطَلِقٌ وَمُتَلَطِّفٌ لِلْبَوَّابِ: زه لږ ځم دربارن سره څه چل ول كوم.كيدې شى.چه دننه د تلو موقع ملاؤ شى.
نو دروازې ته نزدې راغلو.او خپلو جامو كښې ئې ځان داسې پټ كړلو،لكه چه د اودس ماتى دپاره ناست دې.كله چه قلعې ته ټول خلق دننه شول.نو دربان ورته آواز وركړو.اې د الله بنده كه دننه د راتلو اراده دې وى.نو راشې.زه دروازه بندوم.حضرت عبدالله بن عتيك رضي الله عنه فرمائى.چه دا آواز مې واوريدې.نود نورو خلقوسره يوځائې زه دننه داخل شوم.او د قلعې د دروازې دننه د خرو په غوجل كښې زه پټ كيناستم.كله چه ټول خلق دننه داخل شول.نو دربان دروازه بنده كړه.

---

[1] )فتح البارى(۷/۳٤۳و ۳٤۲) والبداية والنهاية (٤/۱۳۷)_
[2] )عمدة القارى(۱۷/۱۳٤) وفتح البارى(۷/۳٤۳) والبداية والنهاية (٤/۱۳۷)_
[3] )امام بخارى رحمه الله د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه دوه روايتونه د اسرائيل او يوسف په طريق سره تفصيلاً ذكر كړى دى.د ابو رافع د قتل واقعه چه دواړه رواياتوته نظراوكړې شى.بيان شوې ده.په دواړو رواياتوكښې په كوم ځاې كښې اختلاف دې.د هغې خودلې هم شوې ده._
[4] )عمدة القارى(۱۷/۱۳۶)_

**قوله**: ثُمَّ عَلَّقَ الْأَغَالِيقَ عَلَى وَتَدٍ: بيا ئې چابيانې يو ميخ ته زوړندې کړې.
((وتد)) (فتح الواو وتشديد الدال) وقد (ميخ) ته وائى. علامه كرمانى رحمه الله فرمائى. ((وتد)) كښې ،،تاء،، په ،،دال،، بدله شوې ده. اوبه دال كښې مدغمه شوې وه. ود ترې جوړ شوې دې.(١)

**قوله**: وَضَعَ مِفْتَاحَ الْحِصْنِ فِي كَوَّةٍ: دربان د قلعې چابيانې په يو تاخ كښې زوړندې كړې، په تاخ كښې يو ميخ وو. هغې ميخ ته به چابيانې زوړندولې شوې.
الاغاليق: دا د ،،غلق،، جمع ده. ددې نه مراد چابيانې دى.(٢) په اصل كښې ،،غلق،، تالې ته وائى. خو چونكه په چابى باندې تاله كهولاويږى. ددې وجې چابئ ته هم ،،غلق،، وئيلې شى.
الكوة: روشن دا ته وائى. مراد ترې دلته تاخ دې.

**قوله**: فَقُمْتُ إِلَى الْأَقَالِيدِ فَأَخَذْتُهَا فَفَتَحْتُ الْبَابَ: عبدالله بن عتيك رضي الله عنه فرمائى. چه زه ورغلم. چابيانې مې راوچتې كړې. او دروازه مې پرانسته. يعنى د قلعې دروازه مې پرانسته. لكه څنګه چه په وړاندې روايت كښې راغې.
الاقاليد: دا د ،،اقليد،، جمع ده. چابئ ته وائى.

**قوله**: وَكَانَ أَبُو رَافِعٍ يُسْمَرُ عِنْدَهُ وَكَانَ فِي عَلَالِيَّ لَهُ: علالى: دا د ((علية)) (بضم العين وكسرها وكسر اللام وتشديدها وتشديد الياء) جمع ده. بالاخانې ته وائى.
نو كله چه قصه بر(قصې بيانونكى) خلق د ابورافع نه لاړل. نو زه د كمرې طرف ته ورغلم. كله چه به مې يوه دروازه پرانستله. نو د دننه به مې بندوله. ددې دپاره كه چرته شور جوړ شى. او بته اولګى نو چه څوك دننه نشى راتلې. ترڅوچه ما دې قتل كړې نه وى. نو زه ابو رافع ته اورسيدم. هغه په يوه تياره كمره كښې دخپل اهل وعيال سره يوځاى ملاست وو. خوماته دا معلومه نه وه. چه ابو رافع په كور كښې كوم ځاى دې؟ ددې وجې ما آواز اوكړو ابو رافع. هغه اووئيل؟ څوك ئې؟ د كوم طرف نه چه دا آواز راغلو. هغ طرف ته زه وروړاندې شوم. اوبه توره مې يو ګذار اوكړو. خوم زه ويريدم. ددې وجې كامياب نشم. كله چه هغه چغه كړې. نو زه د كمرې نه رابهرشوم. اولږ وخت بهرايسارشوم. بيا كمرې ته ورغلم. او آواز مې بدل كړو. ما اووئيل. ابورافع دا په كمره كښې څه آواز وو. هغه اووئيل. ستا مور دې هلاكه شى. يوكس اوس لږ غوندې وړاندې په توره په ما ګذار اوكړو.(٣) كله چه ما بنه تسلى اوړه. چه د كومې ځاى نه خبرې كوى. نو يو مضبوط ګذار مې پرې اوكړو. نو قتل نشو.

---

(١) عمدة القارى (١٧/١٣٧)_
(٢) غلق.. ما يغلق به الباب والمراد بها المفاتيح كأنه كان يغلق بها ويفتح بها (فتح البارى (٧/٣٤٣)_
(٣) وزاد فى رواية قال فعمدت له أيضاً فأضربه أخرى فلم تغن شيأ فصاح وقام أهله ثم جئت وغيرت صوتى كهيئة المستغيث فإذا هو مستلق على ظهره وفى رواية ابن اسحاق فصاحت إمرأته فنوهت بنا فجعلنا نرفع السيف عليها ثم نذكر نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن قتل النساء فنكف عنها (فتح البارى (٧/٣٤٤)_

**قوله:** ثُمَّ وَضَعْتُ ظُبَةَ السَّيْفِ فِي بَطْنِهِ حَتَّى أَخَذَ فِي ظَهْرِهِ فَعَرَفْتُ أَنِّي قَتَلْتُهُ: (۱)
بيا ما د تورې تيره طرف دهغه په خيټه باندې كيخودو.تردې چه هغه دهغه د شا پورې اورسيدل.او زما يقين راغلو.چه ما هغه قتل كړو.
ضبيب السيف: د ضبيب معنى د وينې تويول راځى.د علامه خطابى رحمه الله خيال دې، چه دا لفظ دلته صحيح نه دې.صيحح لفظ «ظبة السيف» دې.چه معنى ئې د تورې تيرة طرف راځى. د «ظبة» جمع «ظبات» ده.(۲)
اوس زه واپس شوم.اويوه يوه دروازه كومه چه ما د ننه نه بنده كړې وه.هغه به مې كهولاوهله. تردې چه .زه پوړو ته راورسيدم.ما دا اوګنړل اوخپله ښئ پښه مې لاندې كيخوده. چه جوړې زه زمكې ته راورسيدم.حالانكه زمكه لا لرې وه.دغه شان زه د پوړو نه راګذار شوم.دڅوارلسمې سپوږمئ شپه وه.د راپريوتو په وجه زما پنډئ ماته شوه.نوما په خپل پټكى باندې هغه اوتړله.
په يو روايت كښې «فانكسرت ساق» دى.پنډئ مې ماته شوه.او په دويم روايت كښې «فانخلعت رجلى»زما ديښې جوړ بې ځايه شو.په دواړو رواياتونو كښې تعرض دې.ددې جواب دا دې.چه دواړه خبرې به شوې وى.جوړ به ئې هم بې ځايه شوې وى.اوپنډئ به ئې هم مات شوې وى.يا داسې اووايه.چه د جوړ بې ځايه كيدو نه ئې د پنډئ په ماتيدو سره تعبير كړې دې.
فرمائى.چه ما دا فيصله اوكړه.چه ددې ځاې نه به ترهغه وخته پورې نه ځم. ترڅو چه دا معلومه شوې نه وى.چه ابورافع قتل شوې دې.نو زه د قلعې د دروازې سره ناست وم.كله چه چرګه د صبا د وخت آذان اوكړو.نودمرګ خبر وركونكې د قلعې په ديوال باندې اوختل.او وې وئيل.«أنعى أبا رافع تاجر أهل الحجاز» د اهل حجاز دسوداګرابورافع د مرګ اعلان كوم.
دعربو رواج وو.چه كله به څوك لوې سړې مړ شو،نو په اوچت ځاې به اوختل. اودهغه د مرګ اعلان به ئې كولو.چه فلانى سړې مړ شو.
چه دا خبر مې واوريدو.نو زه خپلوملګروته راورسيدم.هغوى ته ما اووئيل. «النجاء» تادى كوئ. الله ابورافع قتل كړو.
په دويم روايت كښې دى. ))أَضَعُ السَّيْفَ فِي بَطْنِهِ ثُمَّ أَتَّكِئُ عَلَيْهِ» يعنى ما دهغه په خيټه باندې توره كيخوده.اوبيا مې هغې ته زور وكړو،.تردې چه هغه هډوكى ته اورسيده،په دغه دويم روايت كښې دا هم دى.چه دابورافع د مرګ د اعلان نه پس چه زه راپسيدم.او راروان شوم.نودډيرې زياتې خوشحالئ دوجې ماته دخپلې پښې د درداحساس نه كيدل.درد خو وو.

(۱) وفى رواية يوسف: فاضع السيف فى بطنه ثم أتكى عليه حتى سمعت صوت العظم)_
(۲) فتح البارى(۳٤٤/۱۷)_

خود خوشحالئ د وجې په هغه وخت کښې دهغې درد احساس ختم شوې وو.
دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم.اوتفصیل مې ورته واورول.نبی ﷺ اوفرمائیل.خپله پښه دې اوغزوه.ما پښه اوغزوله.نبی ﷺ پرې لاس راښکل.پښه داسې ټیک شوه.لکه چه ما هډو په دې کښې څه تکلیف نه وو محسوس کړې.
ددې مهم دپاره نبی ﷺ شپږ صحابه کرام لیږلی وو.① عبدالله بن عتیک② مسعود بن سنان③ عبدالله بن انیس④ ابوقتاده⑤ خزاعی بن اسود⑥ او عبدالله بن عتبه،.. نبی ﷺ حضرت عبدالله بن عتیک رضی الله عنه دهغوی امیر جوړ کړې وو.اوهم هغه ابو رافع قتل کړو.
حضرت عبدالله بن عتیک رضی الله عنه په جنګ احد کښې شریک وو.اوپه جنګ یمامه کښې دوی شهید شوی وو.بعضې حضرات وائی.چه عبدالله بن عتیک په جنګ صفین کښې دحضرت علی رضی الله عنه سره ملګرې وو.اود جنګ صفین نه پس وفات شوی دی.([1]) والله اعلم.

## بَاب غَزْوَةِ أُحُدٍ

امام بخاری رحمه الله غزوه احد په دولس بابونو کښې بیان کړې ده.

① بَاب غَزْوَةِ أُحُدٍ ② بَاب إِذْ هَمَّتْ طَائِفَتَانِ مِنْكُمْ أَنْ تَفْشَلَا ... ③ بَاب قَوْلِ اللهِ تَعَالَى إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ ④ بَاب إِذْ تُصْعِدُونَ وَلَا تَلْوُونَ ⑤ بَاب ثُمَّ أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ... ⑥ بَاب لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ... ⑦ بَاب ذِكْرِ أُمِّ سَلِيطٍ ⑧ بَاب قَتْلِ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ⑨ بَاب مَا أَصَابَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْجِرَاحِ يَوْمَ أُحُدٍ ⑩ بَاب الَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِلهِ وَالرَّسُولِ ⑪ بَاب مَنْ قُتِلَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَوْمَ أُحُدٍ ⑫ بَاب أُحُدٌ جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ

دغزوه بدرپشان غزوه احد هم حضرت شیخ الحدیث مد ظلهم اول په تاریخی تفصیل سره بیان کړې ده.اوددې نه پس ئې ذ ابواب بخاری او په دې کښې د ذکرشوو احادیثو تشریح بیان کړه.البته د تکرار نه د بچ کیدو دپاره کوم واقعات چه د بخاری په احادیث کښې په تفصیل سره راروان دی.هغه ئې په ابتداء کښې نه دی ذکرکړې.لک دحضرت حمزه رضی الله عنه د قتل واقعه ،چونکه دا واقعه پخپله په بخاری کښې د مستقل باب لاندې په تفصیل سره بیان شوې ده.څکه په شروع کښې نه ده ذکرشوې.
دې ځاې نه امام بخاری جنګ احد بیانوی.
**احد:** احد د یو غر نوم دې.کوم چه د مدینې منورې نه درې میله فاصله باندې واقع دې.دې غرته احد ددې وجې وائی.چه دا جدا او یودې.([2])
**دجنګ احد سبب او د مشرکانو تیاری:** په جنګ بدرکښې چونکه د قریشو کافرانو ته سخت زخم لګیدلې وو.ددې وجې هغوی سوزیدل.اودمسلمانانو نه د انتقام اخستلوسوچ ئې

[1] )عمدة القاری(۱۷\۱۳۵)_
[2] )البدایة والنهایة)_

كول.د ابوسفيان قافله د تجارت دكومې په تعاقب كښې چه مسلمانان د مدينې منورې نه وتلي وو.هغه صحيح سلامت مكې ته رسيدلې وه.په دغه قافله كښې چه كوم سامان وو.هغه ډير زيات وو.ابوسفيان بن حرب، عكرمه بن ابي جهل، صفوان بن اميه او حارث بن هشام وغيره د قريشو سرداران په ،،دارندوه،، كښې جمع شول، اوهغوى دا فيصله اوكړه.چه په دې قافله كښې چه كوم سامان تجارت وو.د هغې اصلي رقم (يعني راس المال) خوبه تړولو ته واپس كړې شي.البته كومه ګټه چه شوې ده.هغه به د محمد(ﷺ) خلاف د جنګ په تيارئ كښې خرچ كولې شي.دې سره سره هغوى خواه اوشا قبيلو ته هم خبر اوكړو.او ورته ئې اووئيل.چه د مسلمانانود مقابلې دپاره مونږ ډيرپه لويه تيارئ سره څو.تاسو خلق هم زمونږ سره شريك شئ.(¹)

دغه شان دوى د درې زره ډيرلوې لښكرجمع كولوكښې كامياب شول.دا لښكرپه ٥ شوال ٣ھ كښې د مكې نه روان شو.په لښكر كښې اووه سوه په زرغو كښې پټ كسان وو.(²) درې زره اوښان وو.دوه سو اسونه وو.اوپنځلس ښځې هم په دې ارادې سره ورسره شوې وې.چه دوى به رجزيه اشعار وائى.(³) اوجنګيدونكى به تيزوى.دغه شان د دوى د عزت او ناموس د وجې به خلق په جوش او جذبې سره جنګيږى.(⁴)

**مسلمانانوته د حضرت عباس رضى الله عنه د وړاندې نه اطلاع وركول:** حضرت عباس بن عبدالمطلب ﷺ كوم چه په دغه وخت كښې په مكه مكرمه كښې مقيم وو.هغوى سمدستى يو تيز تلونكې قاصد ته خط وركړو.او مكې ته ئې روان كړو.اوورته ئې اووئيل.چه ته زر ترزره مدينې ته اورسه.او نبى ﷺ ته د قافلې خبر وركړه.په درې ورځو كښې دننه دننه ستا دپاره رسيدل پكار دى.نو هغه سور نبى ﷺ ته اورسيدل.او د صورتحال نه ئې دخبرولوخط ئې دوى ته وركړو.(⁵)

**د قريشو د لښكرحال معلومولودپاره د صحابه كرامو رضى الله عنهم روانيدل:** نبى ﷺ دوه انصارى صحابه حضرت انس او حضرت مونس ﷺ مقرر كړ.چه دوى لاړ شى.اود قريشو د لښكر حال معلوم كړى.دا حضرات لاړل.او واپس راغلل.خبر ئې وركړو.چه لښكرنزدې رارسيدلى دې.حضرت حباب بن منذر ﷺ نبى ﷺ اوليږلو.چه ته لاړه شه.او اوګوره چه د لښكرشمار څومره دې؟ هغوى لاړل اوټيك ټيك اندازه ئې اوكړه.او واپس راغلو.خبر ئې وركړ،.چه درې زرو ته نزدې كسان دى.(⁶)

---

¹)الكامل لابن اثير(١٠٣\٢) وسيرة ابن هشام (٦٤\٣)
²)تاريخ الطبرى (١٩٠\٢)_
³)ابن هاشم په خپل سيرت كښې ددې ښځو نومونه او د قبيلو ذكر كړې دې. سيرة ابن هشام (٦٦\٣)
⁴)تاريخ الطبرى (١٩٠\٢)_
⁵)طبقات ابن سعد (٣٧\٢) سيرة المصطفى (١٨٧\٢) السيرة الحلبية (٢١٧\٢)_
⁶)طبقات ابن سعد(٣٧\٢) السيرة الحلبية (٢١٨\٢)_

**د نبی ﷺ د صحابو رضی الله عنهم سره مشوره:** د شپې حضرت سعد بن معاذ، حضرت سعد بن عباده او حضرت اسید بن حضیر رضی الله عنهم د نبی ﷺ د کورنه ګېرچاپېره څوکیرداری اوکړه.او څه دستې مقرر کړې شول.چه هغوی مدینې منورې ته چه کومې لارې د داخلیدو دی.په هغې باندې کینی.دې دپاره چه د شپې ناڅاپې حمله دفع کړې شی.[1] راروان صبا د جمعې ورځ وه.نبی کریم ﷺ صحابه کرام رضی الله عنهم جمع کړل.اوهغوی سره ئې مشوره اوکړه.چه څه صورت اختیارول پکار دی؟ نبی ﷺ اوفرمائیل.چه ما خوب لیدلې دې.چه زه په یوه قلعه کښې یم.او یوه غوا ذبح کړې شوه.اوما خپله توره اوخوزوله.نودهغې مخکښې حصه ماته شوه.بیا ما دوباره اوخوزوله.نوهغه د اولنی صورت نه په زیات ښه حالت کښې شوه.صحابو رضی الله عنهم ترې دخوب د تعبیرتپوس اوکړو.نو نبی ﷺ اوفرمائیل. قلعه کومه چه ما په خوب کښې لیدله ده.هغه مدینه منوره ده.که هم دلته پاتې شو.اومقابله اوکړې شی.نو لکه څنګه چه په قلعه کښې په موجودتیا سره حفاظت وی.نودلته چه پاتې شو.هم به حفاظت وی.اود غوا ذبح کیدو تعبیر دا دې.چه زمونږ څه صحابه به شهیدان کیږی.او توره خوزول جنګ دې.اوددې مخکښې حصه ماتیدل په دې کښې چه کوم ناخوښه حالات دی.دهغې راپیښیدل دی.اود تورې دوباره خوزیدو سره د اولنی نه زیاته ښه کیدل ددې جنګ نه پس چه کوم حالات دی.هغه به د اولنی حالاتو په نسبت سره ښه اوموافق وی.[2]

دنبی ﷺ او نورو څو مشرانو صحابو رضی الله عنهم رائې دا وه.چه په مدینه کښې پاتې شو.اومقابله دې اوکړې شی،او د مدینې نه بهرته اونه ځو.خود ډیرو صحابو رضی الله عنهم رائې دا وه.چه د مدینې نه بهرته وتل اومقابله پکار ده.خاص کرهغه حضرات کوم چه په جنګ بدر کښې شریک شوی نه وو.هغوی د شهادت ارمان په خپلو زړونوکښې اخستې وو.دهغوی شوق وو.چه بهرته دې اوځو.اومقابله دې اوکړو.نود شهادت دجام څکلو موقع به راته ښه ملاؤ شی.که په مدینه کښې دننه مقابله اوکړې شی.نوکیدې شی.ددې نوبت رانشی.حضرت حمزه رضی الله عنه خو قسم اوخوړلو . ((والله الذی أنزل علیك الکتاب لا أطعم الیوم طعاماً حتی أجادلهم بسیفی خارج المدینة))

([3]) زما دې په هغه ذات قسم وی.چاچه په تاسو باندې کتاب نازل کړې دې.زه به ترهغه وخته پورې خوراك نه کوم.ترڅو چه مې د مدینې نه بهر د کافرانو سره په خپله توره باندې مقابله نه وی کړې.

حضرت سعد بن عباده او نورو بعضې مشرانوصحابو رضی الله عنهم هم دا رائې پیش کړه.که په مدینه کښې ایسار شو. مونږ دفاع کوو.نو کافران به اوګڼړی.چه مونږ کمزوری او ډرپوك یو.ددې

---

[1] )طبقات ابن سعد(۳۷\۲) السیرة الحلبیة (۲۱۸\۲)_

[2] )البدایة والنهایة (۱۲\٤)_

[3] )په دې موقع باندې د بعضې صحابو رضی الله عنهم د شهادت عجیبه شوق وو.حضرت نعمان بن مالك انصاری رضی الله عنه د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.او وې فرمائیل.((یارسول الله لاتحرمنی الجنة فوالذی بعثک بالحق لأدخلن الجنة فقال له بم؟قال بأنی أشهد أن لا إله إلا الله وأنک رسو لاله وإني لا أفرمن الزحف قال صدقت فقتل یومئذ(تاریخ الطبری (۸۹\۲) والبدایة والنهایة (۱۲\٤)_ ~

وجي بهرته وتل مناسب دى.عبدالله بن ابى رئيس المنافقين هم يوتجربه كارسړى وو.هغه خپل ځان په مسلمانانوكښې شامل كړې وو.دهغه نه هم نبى ﷺ مشوره اوغوستله.هغه اوونيل.خبره په اصل كښې دا ده.چه په مدينه كښې چه كله هم داسې قسم واقعه پيښه شوې ده.نو كه د مدينې خلق په ښاركښې پاتې شوى دى.اومقابله ئې كړې ده.نودوى ته كاميابى ملاؤ شوې ده.او كه دوى د مدينې نه بهرته وتلى دى.اومقابله ئې كړې ده.نوناكامه شوى دى.ددې وجې زما رائې دا ده.چه هم دننه پاتې شو.اومقابله اوكړې شى(١)

خود ځوانانونه سوا بعضې مشران صحابه كرام رضي الله عنهم هم نبى ﷺ په دې خبره باندې كلك اوليدل.چه د مدينې نه بهرته وتل اومقابله كول پكار دى.نو چه د مازيګردمانځه نه فارغ شو.نبى ﷺ كورته تشريف يوړو.په دغه دوران كښې حضرت سعد بن معاذ او حضرت اسيد بن حضير رضي الله عنهما باقى صحابو رضي الله عنهم ته اوونيل. تاسوخلقو رسول الله ﷺ د ښارنه په بهرته وتلو باندې مجبوره كړو.د نبى ﷺ د رائې خلاف اصرار كول مناسب نه وو.ټولوته د خپلې غلطۍ احساس اوشو.اوكله چه نبى ﷺ مسلح شو.او بهرته ئې تشريف راوړو.نو صحابو رضي الله عنهم عرض اوكړو.زمونږ نه غلطى اوشوه.مونږ ته په خپله رائې باندې ټلكيدل نه وو پكار،ستاسو چه څنګه رائې وى.هم د هغې مطابق عمل اوكړئ.نبى ﷺ اوفرمائيل.دهيڅ پيغمبردپاره دا مناسب نه دى.چه هغه يوځل وسله واچوى.اود دشمن سره د مقابلې نه بغيراوباسى.اوس خو بس بهرته وتل دى.(٢)

**دمدينې منورې نه روانيدل:** نبى ﷺ ځان سره د زركسانو لښكر واخستل.او د جمعې په ورځ په ١٥شوال ٣هـ د مدينې نه احد طرف ته روان شو.او عبدالله بن ام مكتم ئې په مسجد نبوى كښې په امامت باندې مقرر كړو(٣) دجمعې ورځ وه.احد خو نزدې وو.خو روانيدل چونكه د ماښام نه لږ غونډې وړاندې وو.ددې وجې په لاره كښې په يوځاى ،،شيخين،، كښې نبى ﷺ د شپې تيرولو اراده اوكړه.(٤)

**دمنافقانو جدا كيدل:** په راروانه ورځ دخالى په سحر نبى چه كله احد طرف ته د روانيدو اراده اوكړه.نو عبدالله بن ابى د خپلو درې سوو ملګرو سره دا اوونيل.اوواپس شو.چه مونږ بغيرد څه وجې نه خپل ځانونه په هلاكت كښې نشو اچولى.تا زمونږ په مشوره عمل اونكړو.(٥)

---

(١)تاريخ طبرى (١٨٩\٢)_

(٢)سيرة ابن هشام (٦٨\٣) والبداية والنهاية (١٣\٤)_

(٣)په مدينه منوره كښې نبى ﷺ حضرت عبدالله بن ام مكتوم رضي الله عنه خپل قائم مقام جوړ كړې وو(الكامل لابن الأثر(١٠٤\٢)_

(٤)طبقات ابن سعد (٣٩\٢)_

(٥)په دې موقع د حضرت جابر رضي الله عنه پلار حضرت عبدالله بن حرام رضي الله عنه دغه منافقانو ته لاړلو.اوهغوى ئې ډير پوهه كړل.چه د الله تعالى پيغمبر داسې پريخودل په هيڅ طريقه مناسب نه دى.خو خو منافقانو جواب وركړو((لونعلم أنم تقاتلون ما أسلمناكم )) حضرت عبدالله بن حرام رضي الله عنه اوفرمائيل.اې دالله دشمنانو الله تعالى به خپل پيغمبر ستاسو نه بې پرواه كړى.د سورة آل عمران آيت ﴿ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ نَافَقُواْ وَقِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْاْ قَاتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ أَوِ ادْفَعُواْ قَالُواْ... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

د خزرج د قبيلې د يوشاخ بنو سلمه او د اوس د قبيلې د يو شاخ بنوحارثه قدمونه اوخويدل. اوهغوى ته دا خيال شو.چه مونږ به هم واپس لاړ شو.نوالله تعالى دهغوى مدد اوكړو.د قرآن شريف آيت ﴿إِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ كښې هم ددې دوو قبيلو ذكردې. چونكه دا دواړه په اسلام كښې مخلصې وې.اود بشرى كمزورئ په وجه دوى ته دا خيال راغلې وو.ددې وجې الله تعالى دهغوى د اخلاص په بركت د هغوى حفاظت اوكړو.(١)
د منافقانو د جدا كيدو په وجه د مسلمانانولښكر كم شو.او اووه سوه شو.په دې اووه سوه كسانوكښې سلو زغرې اچولې وې.يو اس د نبى ﷺ وو.او يو اس د حضرت ابوبرده بن نيار حارثى رضی الله عنه وو.په پوره لښكركښې صرف دا دوه اسونه وو.(٢)
**داسلامى لښكر ترتيب او صف بندى:** په پنځلسم شوال خالى په ورځ د صبا مونځ نبى ﷺ د احد سره نزدې ادا كړل.اوددې نه پس د لښكرترتيب ته متوجه شو.د فوج ترتيب ئې داسې قائم كړو. چه مدينه دوى ته مخامخ وه.اواحد ددو شا ته وو.چونكه داحد د شا طرف نه د كافرانو دحملې كولوخطره وه.ددې وجې نبى ﷺ د پنځوسو بهترينو تيراندازو انتخاب اوكړو.اود احد شا ته ئې هغوى كينول.اودا تاكيد ئې ورته اوكړو.كه مونږ غالب شو. اوكه مغلوب،په هيڅ صورت كښې تاسو خپل ځاې مه پريږدئ.د تيراندازو باندې ئې ددوى د دستې حضرت عبدالله بن جبير رضی الله عنه اميرمقرر كړو.(٣)
**دابوعامرخروج او داسلامى لښكرجواب:** د فريقينوصفنونه يوبل ته مخامخ وو.داسلامى لښكر بيرغ د حضرت مصعب بن عمير رضی الله عنه سره وه.د عربو د جنګى قاعدې مطابق په اول كښې د انفرادى مقابلې دپاره خلق راغلل.خود انفرادى مقابلې شروع كولونه وړاندې ابوعامر كوم چه داسلام نه وړاندې د قبيله اوس سردرا وو.د كافرانود لښكر نه راووتل.ابوعامر د ظهور اسلام نه پس د نبى ﷺ ډير لوې دشمن جوړ شوې وو.اود مدينې نه تلې وو.په مكه كښې مقيم شوې وو.هلته كه ده قريشو ته دجنګ ترغيب وركړې وو.اوورته ئې وئيلى وو.چه په ميدان جنګ كښې ما اووينى.نو د اوس خلق به زما طرف ته راشى.اودغه شان به د مسلمانانو لښكر كم شى.نود كافرانود لښكر نه راووتل.او آواز ئې اوكړو.اې د اوس خلقو زه ابو عامر يم.د اوس خلقو د ابوعامر د توقع نه بيخى خلاف جواب وركړو.«لا أنعم الله بك عيناً يا فاسق»(٤) اې فاسقه الله تعالى دې ستا سترګې چرته هم يخې نكړى.ابوعامر چه دا

---

.....دتير مخ بقيه حاشيه] لَوْ نَعْلَمُ قِتَالاً لَّاتَّبَعْنَاكُمْ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلإِيمَانِ يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِم مَّا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ ﴾هم ددې خلقو په باره كښې نازل شوې دې.(البداية والنهاية (١٤١٤)_
١ )ددې تفصيل وړاندې باب كښې راځى)_
٢ )تاريخ الطبرى(١٩٠١٢)_
٣ )الكامل لابن الأثير(١٠٥١٢)_
٤ )ابو عامر په جاهليت كښې په ،راهب،، مشهور وو.رسول الله ﷺ دده نوم فاسق كيخودې وو.ددې وجې د اوس خلقو ده ته ،،يافاسق،،اووئيل.(سيرة ابن هشام (٧١١٣)_

جواب واوریدو. نو مایوسه شو.اوقریشو ته واپس شو.او دا ئې اوونیل.چه زما د تلو نه پس زما د قوم حالت بدل شوې دې.

**په انفرادی مقابله کښې د کافرانو سخت ماتې:** دمشرکانود طرفه د ټولونه وړاندې د مبارزت دپاره طلحه بن ابی طلحه میدان ته راووتل.او مسلمانانوته ئې د مقابلې دعوت ورکړو.د اسلای ملښکرنه حضرت علیﷺ وراووتل.اوهغه ئې قتل کړو.ددې نه پس دطلحه بن ابی طلحه وروړعثمان بن ابی طلحه دکافرانو د لښکرنه راووتل.حضرت حمزه ﷺ دهغه د مقابلې دپاره وراووتل.اوهغه ئې قتل کړو.بیا ابوسعد بن ابی طلحه دریم وروړ دکافرانو د لښکرنه د مقابلې دپاره راووتل.د مسلمانانو دطرفه حضرت سعدبن ابی وقاصﷺ راووتل. اوهغه ئې جهنم ته اورسول.ددې نه پس د کافرانو د طرفه مسافع بن طلحه راووتل.حضرت عاصم بن ثابتﷺ بس په یو ګذار سره هغه ختم کړو.بیا دهغه وروړ حارث بن طلحه راغلل. حضرت عاصم بن ثابتﷺ هغه هم قتل کړو.ددې نه پس دریم وروړ جلاس بن طلحه راووتل.اودمبارزت دعوت ئې ورکړو.هغه طلحه بن عبید ﷺ قتل کړو.(١)

**په نفیرعام کښې دمسلمانانوفتح:** دغه شان په انفرادی مقابله کښې دکافرانو ډیرتعداد قتل شول.اوښکاره ده چه په دې کښې د مسلمانانو تلۀ درنده شو.ددې نه پس عام جنګ شروع شو.حضرت ابودجانه د ډیرې بهادرئ مظاهره اوکړه.(٢)حضرت علی اوحضرت حمزهﷺ هم ډیر په بهادرئ سره جنګیدل.ددې د وجې د کافراو قدمونه اوخویدل.سرې اوښخې تول دغرطرف ته په تیښته باندې مجبوره شول.او مسلمانانو مال غنیمت جمع کول شروع کړل.

**دکټلی جنګ په شکست کښې بدلیدل:** د احد شا ته چه دحضرت عبدالله بن جبیرﷺ په امیرئ کښې د تیراندازوکومه د پنځوسو کسانودسته نبیﷺ مقرر کړې وه.هغوی چه کله دا حالت اولیدل.نو هغوی هم د مال غنیمت راجمع کولوپه غرض خپل ځاې پریخودل.حضرت عبدالله

---

١)تاریخ الطبری (١٩٤\٢) البدایة والنهایة (٢٠١\٤) الکامل لابن الأثیر(١٠٦\٢) طبقات ابن سعد(٤١\٢)_

٢)نبیﷺ اعلان اوکړو.چه څوك دی.چه زه ورته خپله توره ورکړم.اوهغه ددې حق ادا کړی.ددې دپاره مختلف لاسونه پورته شول.خو نبیﷺ توره حضرت ابودجانه ﷺ ته ورکړه.حضرت زبیربن العوامﷺ هم لاس اوچت کړې وو.خو هغه ته نه وه ملاو شوې.حضرت زبیرﷺ اوونیل.((وجدت فی نفسی حین سألت رسول الله ﷺ السیف فمنعنیه وأعطاه أبودجانة وقلت أنا إبن صفیة عمته ومن قریش وقد قمت إلیه فسألته إیاه قبله فأعطاه إیاه وترکننی والله لأنظر ما یصنع فأتبعته فأخرج عصابة له حمراء فعصب بها رأسه فقالت الأنصار إخرج أبودجانة عصابة الموت وهکذا کانت تقول له إذا تعصب بها فخرج وهو یقول..

أنا الذی عاهدنی خلیلی ونحن بالسفح لدی النخیل

الا أقوم الدهر فی الکیول أضرب بسیف الله والرسول

فجعل لا یلقی أحد إلا قتله.وکان فی المشرکین رجل لا یدع لنا جریحاً إلا وقف علیه.فجعل کل واحد منهما یدنو من صاحبه .فدعوت الله أن یجمع بینهما .فالتقیا. فاختلفا ضربتین .فضرب المشرک أبادجانة فاتقاه بدرقته.. وضربه أبودجانة فقتله. ثم رأیته .قد حمل السیف علی مفرق رأس هند بنت عتبة ثم عدل السیف عنها قال الزبیر فقلت الله ورسوله أعلم (وانظر سیرة ابن هشام (٧٣\٣)_

بن جبير ﷛ ورته د نبي ﷺ ارشاد وریاد کړو.د نبي ﷺ حکم یادولونه پس هغوی اووئیل.بیشکه نبي ﷺ دا حکم کړې وو.خو د نبي ﷺ مقصد دا وو.چه د جنګ د فیصلې نه وړاندې تاسو دا مورچه مه پریږدئ.او اوس خو فصله شوې ده.نو اوس دلته د ایساریدو څه ضرورت نشته ﷡نتیجه دا شوه.چه حضرت عبدالله بن جبیر ﷛ سره صرف لس کسان پاتې شول.او نور ټول راغلل.

خالد بن ولید ﷛ کوم چه په دغه وخت کښې دکافرانود لښکر د میمنه امیر وو.هغوی چه د احد دا غاښې خالي اولیدل.نو د هغه طرف نه ئې حمله اوکړه.هلته چه دمسلمانانو دسته کوم چه یوولس کسان وو.هغه ټول ئې شهیدان کړل.اودشا نه ئې په مسلمانانو باندې حمله اوکړه.دا حمله دومره ناڅاپې وه.چه دا د مسلمانانو په خوا خاطرکښې هم نه وه.ددې حملې په وجه صورتحال بیخي بدل شو. او د کافرانوکوم لښکر چه تښتیدلې وو.هغوی هم واپس راغلل.اوس مسلمانان د دواړو طرفونو نه ګیرشول.اود دوست او دوشمن امتیاز پاتې نشو.نتیجه دا شوه. چه بعضې مسلمانان پخپله دخپلو مسلمانانو دلاسه شهیدان شول.[1]

دحضرت حذیفه ﷛ پلار حضرت یمان هم د مسلمانانو د لاسه شهید شو، حضرت حذیفه ﷛ چه کله اوکتل.چه زما په پلار باندې مسلمانان حمله کوی. نو هغه ډیرشورجوړکړو.خود چا خیال اونشو.په جنګ کښې هم داسې حالت پیښیږی.[2]

**دنبي ﷺ دشهادت غلط خبر:** حضرت مصعب بن عمیر ﷛ دنبي ﷺ سره په شکل کښې مشابه وو.هغه یو کافر شیهد کړلو. اودا ئې مشهوره کړه.چه نبي ﷺ شهید شو.[3] په دې خبر سره د مسلمانان وپه زړونو باندې یوه بې همتي غونده خوره شوه.اودبعضې مسلمانانو دا خیال شو.چه نبي ﷺ خو وفات شو.اوس دجنګ جاری ساتلو څه فائده ده.دحضرت عثمان ﷛ هم دا حال و.[4] دغه شان مسلمانان د غل غوبل په حالت کښې مبتلاء شو.

**هغه صحابه کرام ﷡ کوم چه د غل غوبل په وخت کښې د نبي ﷺ سره وو:** ددغې غل غوبل په وخت کښې د نبي ﷺ سره چه کوم صحابه کرام ﷡ موجود وو.هغه دا دی.① حضرت ابوبکرصدیق ② حضرت عمرفارق③ حضرت عبدالرحمن بن عوف ④ حضرت ابوعبیده بن الجراح⑤ حضرت سعد بن ابی وقاص⑥ حضرت طلحه بن عبیدالله ⑦ حضرت زبیربن العوام ﷡ دا اووه په مهاجرینوکښې وو.

اواووه انصاری صحابه کرام ﷡ وو.① حضرت سعد بن معاذ② حضرت سهل بن حنیف③ حضرت ابودجانه④ حضرت اسید بن حضیر⑤ حضرت عاصم بن ثابت⑥ حضرت حباب بن المنذر ⑦ اوحضرت حارث بن صمه ﷡ وو.

---

[1] اوګورئ طبقات ابن سعد (۴۲/۲)۔
[2] اوګورئ بخاری کتاب المغازی رقم الحدیث ۴۰۶۵وکامل ابن اثیر (۱۱۳/۲)۔
[3] الکامل لابن الأثیر(۱۰۸/۲)۔
[4] الکامل لابن الأثیر(۱۱۰/۲)۔

په بخاري شريف کښې دحضرت براء بن عازب ﷜ په روايت کښې د دولسو صحابو﷢ ذکردې.اوپه نسائي او دلائل بيهقي کښې د يولسو ذکردې.(١) او امام مسلم ﷫ دحضرت انس﷜ نه روايت نقل کړې دې،په هغې کښې د اووه ذکر دې،خودا څه حقيقي تعارض نه دې.په مختلفو وختونوکښې مختلف صحابه کرام﷢ د نبي ﷺ سره موجود وو.ددې وجې په بعضې رواياتوکښې زيات او په بعضو کښې د کم ذکر دې.خوپه هرحال ټول شمار څوارلس وو.(٢)

**د اوچتې بهادرئ ثبوت ورکونکی صحابه کرام رضی الله عنهم:** په دې موقع باندې بعضې صحابه کرامو ﷢ دډيرې بهادرئ ثبوت ورکړو.کله چه کافرانو په نبي ﷺ د غشو باران شروع کړل. نوحضرت ابودجانه﷜ دکافرانو طرف ته شا کړه.او اودريدو.اودغه شان چه نبي ﷺ ته څومره غشي راتلل.هغه به ئې پخپله شا باندې تنبول.د ده په شا باندې اوياو ته نزدې زخمونه راغلي وو.خوالله تعالى هغه ژوندې اوساتل.(٣) دغه شان حضرت طلحه﷜هم د ډيرې مړانې اوبهادرئ مظاهره اوکړه.حافظ ابن حجر﷫ د ابوداود طيالسي په روايت سره د حضرت ابوبکرصديق﷜ قول نقل کړې دې.چه کله به دوی د غزوه احد ذکرکولو.نو فرمائيل به ئې.«کان ذلك اليوم کله لطلحة» (٤) د احد ټوله ورځ د طلحه﷜ په بهادرئ کښې وه.حضرت طلحه ﷜ د نبي ﷺ دحفاظت دپاره برابر هلته موجود وو. اوهغوی د غشو نه د نبي ﷺ حفاظت دپاره خپل لاس ډهال جوړ کړې وو.تردې چه د ده لاس شل شو.حاکم په اکليل کښې نقل کړې دی.چه دحضرت طلحه﷜ په بدن باندې پنځه ديرش يا يوکم څلويښت زخمونه راغلي وو.(٥) خود طيالسي په روايت کښې دی.چه دده په بدن اويا زخمونه راغلي وو.

دغه شان دحضرت انس﷜ ميرني پلارحضرت ابوطلحه انصاري﷜ بې مثاله کردار ادا کړې وو.چه کوم کس به ورسره هم تيريدل.نو نبي ﷺ به ورته وئيل.دخپل ترکش نه غشې راوباسه.او ابوطلحه ته ئې ورکړه.حضرت ابوطلحه ﷜ په دې جنګ کښې څو کمانونه مات کړی وو.(٦)

دغه شان سعدبن ابی وقاص﷜ هم په هغه صحابه کرامو﷢ کښې وو.چاچه د بهادرئ

---

(١) د ذکرشوو نومونو اونورو صحابه کرامو﷢ دتفصيل دپاره اوګورئ (فتح الباری(١٧/٣٦٠) البته په مهاجرينوکښې د حضرت عمرفاروق﷜ په ځای دحضرت علي﷜ نوم ئې ذکرکړې دې.والله أعلم

(٢) ابن سعد ليکلی دی.(وثبت منعه عصابة من أصحابه أربعة عشر رجلاً سبعة من المهاجرين .. وسبعة من الأنصار(طبقات ابن سعد(٢/٤٢)_

(٣)سيرة ابن هشام(٢/٧٨)_

(٤)فتح الباری(١٧/٣٦)_

(٥)فتح الباری(١٧/٣٦)_

(٦)بخاری کتاب المغازی باب ﴿إذا همت طائفتان منکم أن تفشلا﴾ رقم الحديث (٤٠٥٥)_

مظاهره كړې وه.نبى ﷺ به دخپل تركش نه غشى راويستل.اوده ته به ئې وركول.اوفرمائيل به ئې.«ارم فداك ابى وامى» (۱)
حضرت على رضي الله عنه فرمائى.چه ما د نبى ﷺ نه چرته نه وو اريدلى.چه نبى ﷺ چاته «فداك ابى وامى» وئيلى وى.سوا دحضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه نه.

**په نبى ﷺ باندې حملې:** دحضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه ورور عتبه بن ابى وقاص موقع اوليده.نو په نبى ﷺ باندې ئې د كانړى ګذاراو كړل.په كوم سره چه د نبى ﷺ لاندينى غاښ مبارك شهيد شو.او شونډې زخمى شوې.عبدالله بن قمبه په نبى ﷺ باندې حمله اوكړه.په كوم سره چه د خود دوه كړئ په مخ مبارك كښې ورخخې شوې.عبدالله بن شهاب زهرى نبى ﷺ په كانړى باندې اوويشته.په كوم سره چه د نبى ﷺ تندې مبارك د وينو نه رنګ شو.(۲) حضرت مالك بن سنان رضي الله عنه دغه وينه اوڅكله(يعنى خوله ئې پرې دپاسه كيخوده،او وې څكله)اوصفا كړه.نبى ﷺ په دغه موقع باندې اووئيل.دچا په خيټه كښې چه د نبى وينه وى.دجهنم اور هغه ته نشى رسيدې.(۳) ابوعامرفاسق د مسلمانانو دپاره يوه كنده تياره كړې وه.نبى ﷺ د دغه زخمونونه د متاثر كيدو نه پس په دغه كنده كښې اوغورځيده. حضرت على رضي الله عنه د نبى ﷺ لاس اونيولو.او رابهر ئې كړو.او حضرت طلحه بن عبيدالله رضي الله عنه د نبى ﷺ شا اونيوله.نوهله نبى ﷺ اودريده، (۴)

**د ابى بن خلف قتل:** ابى بن خلف يو اس ساتلې وو.د هغه خيال وو.چه په دير اس به سوريږم. او نبى ﷺ به شهيد كوم.كله چه هغه اس ته پونده وركړه.او د نبى ﷺ طرف ته راروان شو.نو نبى ﷺ اوفرمائيل.دې به زه په خپل لاس باندې قتلوم.بل څوك دې ده ته څه نه وائى.كله چه هغه نزدې راغلو.نو نبى ﷺ د حضرت حارث بن صمه رضي الله عنه نه د هغه نيزه واخستله.او ابى بن خلف ئې په څټ باندې يومعمولى غوندې ګذار اوكړو . هغه چغه كړې.اوشور ئې جوړ كړو. واپس شو.او وئيل ئې.په الله قسم محمد (ﷺ) زه قتل كړم.خلقو هغه ته اووئيل.دا خو معمولى غوندې زخم دې.ته دومره چغې ولې وهې.وې وئيل.په الله قسم ددې زخم تكليف كه په ټول اهل حجاز باندې تقيم كړې شى.نو هغوى ټول به د دې د تكليف د وجې هلاك شى.دغه شان هغه چغې وهلې.د مكې معظمې نه نهه لس ميله فاصله باندې په مقام سرف كښې جهنم ته اورسيدل (۵)

**د حضرت عمروبن جموح رضى الله عنه شهادت:** د حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه پلار عبدالله بن عمروبن حرام غزوه احد كښې شيهد شو.د هغه دخور خاوند حضرت عمروبن جموح رضي الله عنه

---
(۱)بخارى كتاب المغازى باب ﴿ إذا همت طائفتان منكم﴾ رقم الحديث (۴۰۶۴)_
(۲)دتفصيل دپاره اوګورئ سيرة ابن هشام (۸۴\۳و ۸۵)_
(۳)سيرة ابن هشام (۸۵\۳)_
(۴)الكامل لابن اثير(۱۱۰\۲)_
(۵)د تفصيل دپاره اوګورئ (البداية والنهاية (۳۲\۴)_

د پښو نه معذوره وو.هغه خپلو خامنوته اووئیل.چه زه هم احد ته د جنګ دپاره خم.خامنو ورته اووئیل.ته معذور ئې.ددې وجې تاسو هم دلته ایسارشئ.عمروبن جموح ﷜ د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.او وې وئیل.زما د شهادت شوق دې.اوزما خامن ما جنګ ته د تلو نه منع کوی.نبی ﷺ اوفرمائیل.ته معذوره ئې.اوستا دپاره رخصت دې.خوبیا هم چه دهغه شوق ا اصرار ئې اولیدلو.نو نبی ﷺ ورته اجازت ورکړو.اوهغه په احد کښې شهید شو.(١)

**د حضرت جابررضی الله عنه د پلارحضرت عبدالله بن عمروشهادت:** دحضرت جابربن عبدالله ﷜ دپلار حضرت عبدالله بن حرام ﷜ په باره کښې امام ترمذی په کتاب التفسیر کښې یو روایت نقل کړې دې.چه رسول الله ﷺ حضرت جابر ﷜ ته اووئیل.تاته معلومه ده.چه ستا پلارسره الله تعالی څه معامله اوکړه؟ هغه عرض اوکړو.تاسو اوفرمائیې.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.ستا پلارسره الله تعالی براه راست مکالمه اوکړه.او د نورو شهیدانو سره ئې من وراء حجاب خبرې اوکړې.(٢)

علامه ابن القیم ﷫ په زاد المعاد کښې نقل کړی دی.چه حضرت عبدالله بن عمروبن حرام ﷜ د احد نه وړاندې یو خوب لیدلې وو.په خوب کښې هغه مبشربن عبدالمنذر اولیدل.چه هغه ورته وائی.اې عبدالله ته هم ډیرزر مونږ ته راتلونکې ئې.عبدالله ورته اووئیل.ته کوم ځاې ئې.نو مبشرورته اووئیل.مونږ په جنت کښې یو.او په جنت کښې چه چرته زمونږ زړه غواړي.سیل کوو.عبدالله اووئیل.ته خو په بدرکښې شهید شوې نه وې؟ نو هغوی اووئیل.شهید شوې وم. خکه خو جنت ته تلې یم.(٣)

**دحضرت ربیع شهادت:** په شهید شوو کښې یو صحابی حضرت سعد بن الربیع ﷜ دې،د جنګ نه پس نبی ﷺ اوفرمائیل،لږ اوګورئ چه سعد کوم ځائې کښې دې؟ په لټون لټون په مقتولینو کښې ملاؤ شو،اوس په کښې لا ساه باقی وه،لټونکې صحابی ﷜ اووئیل ،زه نبی ﷺ ستا د لټون دپاره رالیږلې یم،حضرت سعد بن الربیع ﷜ اووئیل ،چه نبی ﷺ ته زما سلام کوه،او زما ذ شهادت خبر ورکولو نه پس انصارو ته اووایه،چه ستاسو دپاره څه عذر قابل قبول نه دې،تاسو ته پکار دی،چه په هر حالت کښې د نبی ﷺ نصرت اوکړئ،خکه چه هم د نبی ﷺ په نصرت کښې انصارو فائده ده.(٤)

**دحضرت اصیرم رضی الله عنه شهادت:** یو بل عجیب اوناشنا صحابی حضرت اصیرم انصاری دې.ده دجنګ احد نه وړاندې اسلام نه وو راوړې،کله چه د احد واقعه پیښه

---

(١)سیرة ابن هشام (٣\٩٦)_

(٢)أخرج الترمذی من طریق طلحة بن خراش سمعت جابربن عبدالله یقول لقینی رسول الله ﷺ فقال لی یا جابر مالی اراک منکسرًا؟ قلت یا رسول الله استشهد أبی قتل یوم أحد وترک عیالاً ودیناً قال أفلا أبشرک بما لقی الله به أباک ؟ قال قلت بلی یارسول الله قال ما کلم الله أحداً إلا من وراء حجاب وأحیا أباک فکلمه کفاحاً..... وانظر الجامع للإمام الترمذی کتاب التفسیر باب من سورة آل عمران رقم ٣٠١٠)_

(٣)سیرة المصطفی (٢\٢٣١و ٢٣٢) په حواله د زادالمعاد)_

(٤)اوګورئ البدایة والنهایة (٤\٣٩)_

شوه،نو دې هم په زخميانو کښې بيا موندې شو،او شهادت ته نزدې وو،خلقو چه کله هغه اوليدل،نو تپوس ئې اوکړو،ته دلته څنګه ئې؟ د اسلام د رغبت په وجه جنګيدلې ئې،او که د قومي او قبائلي حميت په وجه،حضرت اصيرم رضي الله عنه اوونيل،زه د اسلام د دفاع، حفاظت او ترقئ دپاره په جنګ کښې شريك شوې يم،د شهيد کيدو نه پس کله چه نبی ﷺ ته د هغه قصه بيان کړې شوه،نو نبی ﷺ اوفرمائيل،«إنه لمن أهل الجنة» (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله په ،،الاصابه،، کښې نقل کړی دی،چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه به فرمائيل،حضرت اصيرم رضي الله عنه هغه صحابی دې،چه د يو وخت مونځ ئې هم نه وو کړې،او جنت ته داخل شو.

**د اوياؤ مسلمانانو شهادت د اسيران بدر د فدې په بدله کښې وو:** د بدر د بنديانو په باره کښې مسلمانو ته اختيار ورکړې شوې وو،که دوی غواړی،نو دا ټول قيديان دې ختم کړی او که غواړی، نو د دوی نه دې فديه واخلی،او آزاد دې کړی،خو د فديه په صورت کښې به په راروان کال اويا کسان د مسلمانانو نه شهيدان کيږی.چونکه مسلمانانو فديه اخستې وه،او دغه بنديان ئې آزاد کړی وو،ددې وجې په غزوه أحد کښې د اويا صحابو رضي الله عنهم د شهادت واقعه پيښه شوه،په هغوی کښې حضرت حمزه، حضرت مصعب بن عمير، حضرت انس بن النضر ،حضرت معاذبن عمروبن جموح،حضرت ربيع بن انس، حضرت اصيرم رضي الله عنهم چه (نوم ئې عمروبن ثابت دې) وغيره اويا ته نزدې صحابه رضي الله عنهم شامل وو،په دوی کښې زيات شمار د انصارو وو.(۲)

**د نبی عليه السلام د خيريت دپاره د انصارو ليواله کيدل:** د حضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه په شهادت سره چونکه دا خبر مشهور شوې وو ،چه نبی ﷺ شهيد شوې دې،ددې وجې بعضې صحابو رضي الله عنهم جنګ پريخودې وو ،اومدينې ته واپس تلی وو،او ونيلی ئې وو،چه کله نبی ﷺ شهيد شو،نو په ميدان جنګ کښې د جنګيدو څه فائده ! ددې خبر په وجه په مدينه کښې يو غوغا شوه،او سړی ،ښځې ،ماشومان او بوډاګان ټول د نبی ﷺ د عافيت او سلامتيا دپاره ليواله شول،د يو انصاری ميرمن خاوند ،ورور،او پلار ټول په دې غزا کښې شهيدان شوی وو،کله چه دغه ښځې ته ددوی د شهادت خبر ورکړې شو،نو وې ونيل،ماته دا اوواېې ،چه نبی ﷺ په عافيت سره دې که نه؟ خلقو ورته اوونيل،نبی ﷺ په خيريت او عافيت کښې دې،نو وې ونيل،زما تر هغه وخته پورې تسلی نه کيږی،تر څو چه مې په خپلو سترګو د نبی ﷺ زيارت نه وی کړې،چه نبی ﷺ ئې اوليدل،نو مطمئنه شوه،او وې ونيل «كل مصيبة بعدك جلل»(۳) چه تاسو په خير خيريت ئې،نو ددې نه پس ټول مصيبتونه آسان دی، په دې غزا کښې د مشرکانو ټول ۲۲ کسان قتل شوی وو.(۴)

---

(۱) د تفصيل دپاره اکورئ (البداية والنهاية (۳۷/٤)_
(۲) فتح الباری (۷/۵۱او ۳۵۲)_
(۳) الکامل لابن الثير (۱۱۳/۲)_
(٤) سيرة ابن هشام (۱۳۵/۳)_

**په غزوه احد كښې د شكست مصلحتونه:** په جنګ احد كښې ډېر مسلمانان شهيدان شول.او مسلمانانوشكست بيا موندو.په دې كښې د الله سبحانه وتعالى د طرفه څو مصلحتونه وو.

① په دې جنګ كښې په اولنۍ مرحله كښې ميدان د مسلمانانو په لاس كښې وو.او كافرانو ته شكست ملاويدو.تردې چه هغوى د ميدان په پرېخودواو تختيدو مجبوره شول، خو كله چه د غشو ويشتونكې دستې خپل ځائې پرېخودو ، او د نبى ﷺ د حكم نافرمانى ئې اوكړه،نو د جنګ نقشه بدله شوه.ددې نه د رسول الله ﷺ په حكم د عمل اهميت او د نبى ﷺ د حكم د نافرمانۍ په صورت كښې د سوء عاقبت اندازه او احساس د مسلمانانو په زړونو كښې نور هم مضبوط اوزيات شو

② يو مصلحت په دې كښې دا هم وو،چه د اسلام په باره كښې د مخلصينو او منافينو امتياز اوشى،الله ته اګرچه د مخلصينو او منافقينو دواړو علم وو.خو په دې سره ئې مسلمانانو ته ښكاره كړه،چه څوك مخلص دې او څوك منافق.

③ دغه شان ډېرو صحابوﷺ ته د شهادت اوچته درجه ملاؤ شوه.او د الله د دين د ترقۍ دپاره هغوى خپل خانونه قربان كړل.

④ د جنګ په شكست كښې چه ثابت قدم پاتې شول،نو مسلمانان د الله تعالى د طرف نه د لوې اجر او ثواب مستحق شول.

دغه شان نور څو مصلحتونه دى.كوم چه حافظ ابن جر رحمه الله په تفصيل سره بيان كړى دى.[1]

## ۱ =بَابُ غَزْوَةِ أُحُدٍ

قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى ((وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ)) [2]

اوهغه وخت ياد كړه،كله چه ته د صبا په وخت كښې د خپل كور د خلقو نه راووتلې، تا مسلمانان دجنګ په مورچو باندې كينول،او الله تعالى ښه اوريدونكې اوپېژندونكې دې.

دلته په ((وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ)) او ((تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ)) كښې فصل دې، ځكه چه مسلمانان په مورچو باندې نبى ﷺ د خالى په ورځ دصبا په وخت كښې كينولى وو.اودجنګ احد دپاره د صحابه كراموﷺ سره د مشورې كولو دپاره د جمعې په ورځ صبا وتل شوى وو.

اودا هم وئيلى شى،چه چونكه په دې غزوه كښې حضرت عائشه رضي الله عنها ورسره وه،او كومه خيمه چه د نبى ﷺ دپاره هلته لګولې شوې وه،په هغې كښې حضرت عائشه رضي الله عنها موجود وه،نو د دغه خيمې نه د خالى په ورځ د صبا په وخت كښې راووتل،او صفونه ئې برابرول،په دې صورت كښې به فصل نه وى.چه دِ كور دخلقو نه راوتل او د مجاهدينود صفونه برابرول دواړه د خالى په صبا شوى وو.

---

[1] اوګورئ فتح البارى (۳۴۷/۷)_

[2] سورة ال عمران:۱۲۱)_

ابن جریر طبری په غریب سند سره یو روایت د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړې دې،چه دا آیت د غزوه احد په باره کښې نازل شوې دې.(۱) خود جمهور مفسرینو او محدثینو په دې باندې اعتماد نشته،دجمهورو رائې دا ده،چه ذکر شوې آیت د غزوه احد په باره کښې نازل شوې دې.ددې وجې امام بخاری دا آیت په غزوه احد کښې ذکر کړې دې.

قَوْلِهِ جَلَّ ذِكْرُهُ ((وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ۝ إِنْ يَمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِثْلُهُ ۚ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَاءَ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ۝ وَلِيُمَحِّصَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَيَمْحَقَ الْكَافِرِينَ ۝ أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ ۝ وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَلْقَوْهُ فَقَدْ رَأَيْتُمُوهُ وَأَنْتُمْ تَنْظُرُونَ ۝))

وَقَوْلِهِ ((وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللَّهُ وَعْدَهُ إِذْ تَحُسُّونَهُمْ بِإِذْنِهِ ۖ حَتَّىٰ إِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ فِي الْأَمْرِ وَعَصَيْتُمْ مِنْ بَعْدِ مَا أَرَاكُمْ مَا تُحِبُّونَ ۚ مِنْكُمْ مَنْ يُرِيدُ الدُّنْيَا وَمِنْكُمْ مَنْ يُرِيدُ الْآخِرَةَ ۚ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ۖ وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ ۗ وَاللَّهُ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ ۝))

**قوله**: وَقَوْلِهِ ((وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا)): الآيَةَ (۲) اومه کمزوری کیږئ چه همت بیلئ،اومه غمژن کیږئ،که تاسو مومنان ئې،نو غالب به ئې،که (په دې غزا کښې ) تاسو ته زخمونه اورسیدل،نو (ددې نه وړاندې په غزوه بدر کښې) هغه قوم (کافر) ته هم دغه شان زخمونه رسیدلی وو،اود خلقو په مینځ کښې مونږ د هغوی ورځې اړوو راړوو، (چه کله یو ډله غالبه شی،اوکله بله ډله،او دا تاسو چه مغلوب شوئ،او ستاسو ملګری شهیدان شول،دا دې دپاره ) چه الله تعالی په تاسو کښې څه کسانو ته د شهادت مرتبه ورکړه.او الله تعالی ظالمانو سره محبت نه کوی.او (یو حکمت په دې کښې دا هم دې) چه الله تعالی (د ګناهونو او معاصی) خیرې د ایمان داورنه صفا کړی.او کافران ختم کړی.(چه د غالب راتلو په صورت کښې به د کافرانو جراءت زیات شی.او هغوی به د مقابلې دپاره دوباره راشی.او هلاك به شی،یا دا چه په مسلمانانو به ظلم کوی. د الله تعالی په غضب کښې به اخته شی.او تباه به شی) آیا تاسو دا خیال کوئ،چه تاسو به جنت ته داخل شئ،حال دا چه تر اوسه پورې الله تعالی هغه خلق نه دی لیدلی ،چا چه (بنه ) جهاد کړې دې،او نه ئې هغوی لیدلی دی،څوك چه (په جنګ کښې) ثابت قدم پاتې کیدونکی دی.او تاسو خو(ددې غزا نه) وړاندې د شهادت ډیر ارمان کولو،نو اوس تاسو په خپلو سترګو اولیدلو(۳)

---

۱) فتح الباری (۳٤۷/۷)_

۲) آل عمران:۱۳۹-۱٤۳)_

۳) چونکه مسلمانان په جنګ کښې د شکست په وجه ډیر خفه وو.څکه الله تعالی په دې آیاتونو کښې تسلی ورکړه.او د جنګ د شکست مصالح او اسباب ئې بیان کړل. دامام زهری نه په دې باره کښې دا روایت نقل کړې دې: ((کثر فی أصحاب النبی ﷺ القتل والجراح حتی خلص إلی کل امرئ منهم نصیب فاشتد حزنهم فعزاهم الله أحسن تعزیة )) ومن طریق قتادة نحوه. قال ((ففعزاهم وحثهم علی قتال عدوهم ونهاهم عن العجز) فتح الباری (٤٥۷/۷)_

وقوله «وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللَّهُ وَعْدَهُ إِذْ تَحُسُّونَهُمْ بِإِذْنِهِ حَتَّى إِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ فِي الْأَمْرِ وَعَصَيْتُمْ مِنْ بَعْدِ مَا أَرَاكُمْ مَا تُحِبُّونَ مِنْكُمْ مَنْ يُرِيدُ الدُّنْيَا وَمِنْكُمْ مَنْ يُرِيدُ الْآخِرَةَ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ وَاللَّهُ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ» ([1])

وقوله «وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا» الآية ([2])

او يقيناً الله تعالى تاسو سره خپله وعده رښتيې کړه،او وې خودله،په کوم وخت کښې چه تاسو دغه کافران د الله په حکم سره قتلول.يعنى قتلول مو اوجرړه مو ورله ختموله،تردې چه هم تاسو کمزورى شوئ.(چه په مورچه مقرر شوې پنځوسو کسانو کښې بعضو په غلط فهمۍ سره خپل ځائې پريخودلو) او په خپل مينځ کښې په حکم کښې ئې اختلاف شروع کړو،(چه بعضو وئيل،دلته کيناستل پکار دى،او بعضې پاسيدل ځائې ئې پريخودل) اود رسول الله ﷺ د حکم نافرمانى ئې اوکړه،پس دددې نه چه تاسو څه غوښتل،الله درته هغه اوخودل،په تاسو کښې بعضې هغه وو،چه دنيا ئې غوښتله،او بعضې د آخرت طلبګار وو،نو الله تعالى تاسو په دغه کافرو باندې د غالب راتلو نه واړولئ.چه په تاسو امتحان اوکړى،او الله تعالى تاسو معاف کړى ئې،او الله تعالى په مومنانو ډير فضل کونکې دې.

[۳۸۱۵] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ هَذَا جِبْرِيلُ آخِذٌ بِرَأْسِ فَرَسِهِ عَلَيْهِ أَدَاةُ الْحَرْبِ [ر:۳۷۷۳]

دا روايت د غزوه بدرپه بيان کښې تيرشوې دې.ددې روايت تعلق د غزوه بدر سره دې.دلته په روايت کښې د غزوه احد لفظ غلط دې.هم دا وجه ده.چه د بخارى په نورو ټولو نسخو کښې دا روايت دلته ذکرنه دې.صرف ابوالوقت او اصيلى دلته د «يوم أحد» قيدلګولو سره دا روايت ذکرکړې دې.([3])

[۳۸۱۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ أَخْبَرَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ عَدِيٍّ أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ حَيْوَةَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَتْلَى أُحُدٍ بَعْدَ ثَمَانِي سِنِينَ كَالْمُوَدِّعِ لِلْأَحْيَاءِ وَالْأَمْوَاتِ ثُمَّ طَلَعَ الْمِنْبَرَ فَقَالَ إِنِّي بَيْنَ أَيْدِيكُمْ فَرَطٌ وَأَنَا عَلَيْكُمْ شَهِيدٌ وَإِنَّ مَوْعِدَكُمْ الْحَوْضُ وَإِنِّي لَأَنْظُرُ إِلَيْهِ مِنْ مَقَامِي هَذَا وَإِنِّي لَسْتُ أَخْشَى عَلَيْكُمْ أَنْ تُشْرِكُوا وَلَكِنِّي أَخْشَى عَلَيْكُمْ الدُّنْيَا أَنْ تَنَافَسُوهَا قَالَ فَكَانَتْ آخِرَ نَظْرَةٍ نَظَرْتُهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:۱۲۷۹]

حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه فرمائى.

---

[1]) سورة آل عمران:۱۵۲)_

[2]) آل عمران:۱۶۹)_

[3])فتح البارى(۳۴۹/۷) وعمدة القارى(۱۴۱/۱۷)_

**قوله**: صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَتْلَى أُحُدٍ بَعْدَ ثَمَانِي سِنِينَ كَالْمُوَدِّعِ لِلْأَحْيَاءِ وَالْأَمْوَاتِ: نبى كريم ﷺ د شهداء احد مونځ اته كاله پس كړې وو.په داسې انداز كښې چه نبى ﷺ رخصت كوى ژوندى هم او مړى هم.( ) د مړو د رخصت كولو دپاره. نبى ﷺ په دوى باندې دجنازې مونځ اوكړو.او د ژوندو د رخصت كولو ،،الوداع ،،وئيلو دپاره نبى ﷺ خطاب اوكړو.

**قوله**: إِنِّي بَيْنَ أَيْدِيكُمْ فَرَطٌ وَأَنَا عَلَيْكُمْ شَهِيدٌ وَإِنَّ مَوْعِدَكُمُ الْحَوْضُ وَإِنِّي لَأَنْظُرُ إِلَيْهِ مِنْ مَقَامِي هَذَا وَإِنِّي لَسْتُ أَخْشَى عَلَيْكُمْ أَنْ تُشْرِكُوا وَلَكِنِّي أَخْشَى عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا أَنْ تَنَافَسُوهَا: فرط: هغه كس ته وائى چه هغه د قافلې نه وړاندې لاړ شى. او په راروان منزل كښې د قيام وغيره دپاره انتظام كوى.نبى ﷺ فرمائيلى دى.

،،زه ستاسود قيام د انتظاردپاره ستاسو نه وړاندې ځم.او زه ستاسو په حق كښې ګواه يم.(چه تاسو ايمان راوړې دې.اوداېمان اواسلام دپاره مو خپل ټول هرڅه قربان كړل) او اوس تاسو سره د ملاقات ځاې حوض كوثر دې.اوزه ددې ځاې نه حوض كوثروينم.اوستاپه باره كښې زما د ويره نشته.چه تاسو به په شرك كښې اخته شئ. بلكه ما سره د دې ويره ده.چه تاسويه دنيا طرف رغبت اوكړئ.

عقبه بن عامر رضي الله عنه فرمائى.چه دا د نبى ﷺ آخرى ديدار وو.كوم چه ما كړې وو.

**يوه لطيفه**:په دې حديث كښې دى.چه رسول الله ﷺ اته كاله پس په شهداء احد باندې د جنازې مونځ اوكړو.مسئله خو د كتاب الجنائز ده.دلته يوه لطيفه اوروم.علامه كرمانى رحمه الله چه كله دا روايت اوليدلو.نو چونكه هغه شافعى وو.او شوافع په شهداو باندې د جنازې د مونځ قائل نه دى.ددې وجې هغوى په دې حديث كښې تاويل اوكړو .چه دلته د ((صلاة)) نه مراد دعا ده.چه نبى ﷺ د احد د شهيدانو دپاره دعا اوكړه. نو ددې نه په شهيد باندې د جنازې د مونځ ثبوت نه كيږى.

علامه عينى رحمه الله فرمائى((حفظ شيأ وغابت عنه أشياء)) عينى فرمائى.چه هم دا روايت په بخارى او مسلم كښې په دې الفاظو سره مروى دې.((أن النبى ﷺ خرج يوما فصلى على شهداء أحد صلاته على الميت)) په دې كښې د ((صلاته على الميت)) الفاظ په دې خبره كښې نص دې.چه نبى ﷺ د جنازې مونځ اوكړو.نوبيا د علامه كرمانى رحمه الله تاويل څنګه صحيح كيدې شى.دغه شان عبدالله بن عباس رضي الله عنهما عبدالله بن زبير رضي الله عنهما سعيدبن المسيب،حسن بصرى، امام اوزاعى، سفيان ثورى او امام مزنى رحمهم الله د دې ټولو دا مذهب دې.چه په شهيد باندې به د جنازې

---

[1] )وتوديع الأحياء ظاهر لأن سياقه يشعر بأن ذلك كان فى آخر حياته ﷺ وأما توديع الأموات فيحتمل أن يكون الصحابى أراد بذلك إنقطاع زيارته الأموات بجسده .. ويحتمل أن يكون المراد بتوديع الأموات ما أشار إليه فى حديث عائشة رضى الله عنها من الإستغفار لأهل البقيع (فتح البارى (۳۴۹/۷)_

مونځ کولې شي.صرف احناف ﷺ د دې قائل نه دی.بلکه ددوی ټولو دا قول دې.(۱)

[۳۸۱۷] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَقِينَا الْمُشْرِكِينَ يَوْمَئِذٍ وَأَجْلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَيْشًا مِنَ الرُّمَاةِ وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَبْدَ اللَّهِ وَقَالَ لَا تَبْرَحُوا إِنْ رَأَيْتُمُونَا ظَهَرْنَا عَلَيْهِمْ فَلَا تَبْرَحُوا وَإِنْ رَأَيْتُمُوهُمْ ظَهَرُوا عَلَيْنَا فَلَا تُعِينُونَا فَلَمَّا لَقِينَا هَرَبُوا حَتَّى رَأَيْتُ النِّسَاءَ يَشْتَدِدْنَ فِي الْجَبَلِ رَفَعْنَ عَنْ سُوقِهِنَّ قَدْ بَدَتْ خَلَاخِلُهُنَّ فَأَخَذُوا يَقُولُونَ الْغَنِيمَةَ الْغَنِيمَةَ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ عَهِدَ إِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ لَا تَبْرَحُوا فَأَبَوْا فَلَمَّا أَبَوْا صُرِفَتْ وُجُوهُهُمْ فَأُصِيبَ سَبْعُونَ قَتِيلًا وَأَشْرَفَ أَبُو سُفْيَانَ فَقَالَ أَفِي الْقَوْمِ مُحَمَّدٌ فَقَالَ لَا تُجِيبُوهُ فَقَالَ أَفِي الْقَوْمِ ابْنُ أَبِي قُحَافَةَ قَالَ لَا تُجِيبُوهُ فَقَالَ أَفِي الْقَوْمِ ابْنُ الْخَطَّابِ فَقَالَ إِنَّ هَؤُلَاءِ قُتِلُوا فَلَوْ كَانُوا أَحْيَاءً لَأَجَابُوا فَلَمْ يَمْلِكْ عُمَرُ نَفْسَهُ فَقَالَ كَذَبْتَ يَا عَدُوَّ اللَّهِ أَبْقَى اللَّهُ عَلَيْكَ مَا يُخْزِيكَ قَالَ أَبُو سُفْيَانَ اعْلُ هُبَلُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجِيبُوهُ قَالُوا مَا نَقُولُ قَالَ قُولُوا اللَّهُ أَعْلَى وَأَجَلُّ قَالَ أَبُو سُفْيَانَ لَنَا الْعُزَّى وَلَا عُزَّى لَكُمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجِيبُوهُ قَالُوا مَا نَقُولُ قَالَ قُولُوا اللَّهُ مَوْلَانَا وَلَا مَوْلَى لَكُمْ قَالَ أَبُو سُفْيَانَ يَوْمٌ بِيَوْمِ بَدْرٍ وَالْحَرْبُ سِجَالٌ وَتَجِدُونَ مُثْلَةً لَمْ آمُرْ بِهَا وَلَمْ تَسُؤْنِي [ر:۲۸۷۴]

دریم روایت د حضرت براء ﷺ دې.د روایت په اول کښې د تیر انداز د هغه دستې ذکر دې.کومه چه نبی ﷺ د احد د غرپه شا مقرر کړې وه.او تاکید ئې ورته کړې وو.چه دخپل ځاې نه به په هیڅ حالت کښې نه اخوا کیږی.خو چه کله هغه کسان اخوا شو.نو ګټلې شوې جنګ په شکست کښې بدل شو.ددې نه پس ابوسفیان په غر باندې اوختلو.او ووې وئیل.

«أفي القوم محمد؟» آې په قوم کښې محمد (ﷺ) شته؟ نبی ﷺ اوفرمائیل.تاسو ورته جواب مه ورکوئ.ابوسفیان بیا اووئیل.«أفي القوم ابن أبي قحافة؟» آې په قوم کښې ،ابن ابی قحافه (حضرت ابوبکر ﷺ) شته؟ نبی ﷺ اوفرمائیل.جواب مه ورکوئ.او سفیان بیا آواز اوکړو.«أفي القوم عمر ابن الخطاب؟» آیا عمر بن الخطاب شته؟ کله چه ورته جواب ملاؤ نشو.نو وې وئیل.دا ټول قتل شوی دی.که دا خلق ژوندی وو.نو خامخا به ئې جواب راکړې وو.په دې باندې حضرت عمرفاروق ﷺ خپل ځان په قابوکښې اونشو ساتلې.او ووې وئیل.«كذبت يا عدو الله أبقى الله عليكم ما يخزيك» اې د الله دشمنه ته دروغ واې.الله تعالى ستا د رسوا کولو دپاره دا ټول ژوندی ساتلی دی.ابوسفیان اووئې.«أعل هبل» اې هبل ته دې اوچت اوسه،«هبل» دیوبت نوم وو.کوم چه عمروبن لحی قریشتو ته راوړې وو.او په کعبه کښې ئې

(۱) د تفصیل دپاره اوګورئ عمدة القاری(۱۷\۱٤۲)_

كيخودي وو.نبى ﷺ ددې جواب صحابه كرامو ﷺ ته اوخودل.چه تاسو اووايئ.«الله أعلى وأجل» الله تعالى د ټولو نه زيات اوچت او لوې دې؛ابوسفيان اووئيل.«لنا العزى ولا عزى لكم» زمونږ دپاره عزى شته اوستا عزى نشته.عزى د بت نوم وو.صحابو ﷺ د نبى ﷺ په حكم سره داسې جواب وركړو«الله مولانا ولا مولى لكم» الله تعالى زمونږ مددگار دې. او ستاسو مددگارنشته.

بيا ابوسفيان اووئې.نن ورځ د بدر د ورځې بدله شوه.اوجنګ د ډول پشان وى.(چه كله ډوى د يو په لاس كښې وى.اوكله د بل په لاس كښې وى.دغه شان كاميابى كله د يوپه لاس كښې وى. اوكله د بل په لاس كښې وى)

چونكه ابوسفيان په جنګ كښې د دمكې د قريشو سردار وو.ددې وجې هغه اووئيل.تاسوبه په خپلو مړو كښې مثله اومومئ.ما ددې حكم نه ووكړې.خوكله چه ماته ددې علم اوشو.نو ماته بده هم ښكاره نشوه.

[۳۸۱۸]أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ قَالَ اصْطَبَحَ الْخَمْرَ يَوْمَ أُحُدٍ نَاسٌ ثُمَّ قُتِلُوا شُهَدَاءَ[ر:۲۶۶۰]

دحضرت جابر ﷺ نه روايت دې.چه د احد په ورځ ډيرو مسلمانانو شراب څكلى وو اوهم په دغه ورځ هغوى شهيدان شول.خودل دا دى.چه تردغه وخته پورې شراب حرام شوى نه وو.

[۳۸۱۹]حَدَّثَنَا عَبْدَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِيهِ إِبْرَاهِيمَ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ أُتِيَ بِطَعَامٍ وَكَانَ صَائِمًا فَقَالَ قُتِلَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَهُوَ خَيْرٌ مِنِّي كُفِّنَ فِي بُرْدَةٍ إِنْ غُطِّيَ رَأْسُهُ بَدَتْ رِجْلَاهُ وَإِنْ غُطِّيَ رِجْلَاهُ بَدَا رَأْسُهُ وَأُرَاهُ قَالَ وَقُتِلَ حَمْزَةُ وَهُوَ خَيْرٌ مِنِّي ثُمَّ بُسِطَ لَنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا بُسِطَ أَوْ قَالَ أُعْطِينَا مِنَ الدُّنْيَا مَا أُعْطِينَا وَقَدْ خَشِينَا أَنْ تَكُونَ حَسَنَاتُنَا عُجِّلَتْ لَنَا ثُمَّ جَعَلَ يَبْكِي حَتَّى تَرَكَ الطَّعَامَ[ر:۱۲۱۵]

دحضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ خوې ابراهيم فرمائى.چه يوه ورځ حضرت عبدالرحمن ﷺ ته د روژه ماتى په وخت كښې روټئ راوړې شوه.دوى په دغه ورځ روژه وو.نو دوى اوفرمائيل.حضرت معصب بن عمير ﷺ په جنګ احد كښې شهيد شوې وو.اوهغه زما نه غوره او افضل وو.په يو څادر كښې هغه كفن كړې شو.خو هغه څادر دومره وركوټې وو.كه دهغه سر به پټولې شو.نو پښې به ئې ښكاره كيدې.اوكه پښې به ئې پټولې شوې.نوسر به ئې ښكاره كيدو.اوحضرت حمزه په احد كښې قتل شوې وو.هغه هم زما نه غوره او افضل وو.ددې نه پس په مونږ باندې دنيا فراخه شوه.مونږ ته خو ددې خبرې ويره ده.چه هسې نه زمونږ د ټولو نيكو بدله هم په دنيا كښې راكولې شى.دا ئې اووئيل.او حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ په ژړا شو.تردې چه روټئ ئې هم نشوه خوړې.

چونكه په دې روايت كښې د حضرت مصعب او حضرت حمزه ﷺ د احد په جنګ كښې د شهادت ذكر دې.ددې وجې امام بخارى دا روايت دلته نقل كړو.

[۳۸۲۰]حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فَأَيْنَ أَنَا قَالَ فِي الْجَنَّةِ فَأَلْقَى تَمَرَاتٍ فِي يَدِهِ ثُمَّ قَاتَلَ حَتَّى قُتِلَ

حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه فرمائي.چه د احد په ورځ يو سړي د نبي ﷺ نه تپوس اوکړو.که زه جنګ کوم. اوپه دې کښې قتل شم.نو کوم ځاې کښې به يم.؟ نبي ﷺ اوفرمائيل.په جنت کښې.نودهغه په لاس کښې قجورې وې.هغه ئې اوغورځولې.او ميدان جنګ ته ورګډ شو.تردې چه شهيد شو.

ددې صحابي رضي الله عنه د نوم په باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.«لم أقف على إسمه» (۱) د ابن بشكوال خيال دې.چه دا صحابي عميربن الحمام دې.(۲) دغه شان يوه واقعه په غزوه بدرکښې هم تيره شوې وه.د علامه عيني رحمه الله رائې دا ده.چه دا دواړه د جدا جدا کسانو واقعات دي.(۳)

[۳۸۲۱]حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ شَقِيقٍ عَنْ خَبَّابِ بْنِ الْأَرَتِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ هَاجَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبْتَغِي وَجْهَ اللّٰهِ فَوَجَبَ أَجْرُنَا عَلَى اللّٰهِ وَمِنَّا مَنْ مَضَى أَوْ ذَهَبَ لَمْ يَأْكُلْ مِنْ أَجْرِهِ شَيْئًا كَانَ مِنْهُمْ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ لَمْ يَتْرُكْ إِلَّا نَمِرَةً كُنَّا إِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَأْسَهُ خَرَجَتْ رِجْلَاهُ وَإِذَا غُطِّيَ بِهَا رِجْلَاهُ خَرَجَ رَأْسُهُ فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَطُّوا بِهَا رَأْسَهُ وَاجْعَلُوا عَلَى رِجْلِهِ الْإِذْخِرَ أَوْ قَالَ أَلْقُوا عَلَى رِجْلِهِ مِنَ الْإِذْخِرِ وَمِنَّا مَنْ قَدْ أَيْنَعَتْ لَهُ ثَمَرَتُهُ فَهُوَ يَهْدِبُهَا [ر:۱۲۱۷]

دامام بخاري رحمه الله استاذ احمدبن يونس رحمه الله د زهير رحمه الله نه نقل کوي. دا ,,زهيربن معاويه،، دې.هغه نقل کول.د اعمش نه.دا ،،سليمان اعمش،، دې. هغه د ,,شقيق بن سلمه،، نه نقل کوي.هغه د حضرت خباب بن الارت رضي الله عنه نه روايت کوي.چه حضرت خباب رضي الله عنه فرمائي.مونږ د نبي کريم ﷺ سره د الله تعالى د رضا او خوشحاله کولو دپاره هجرت کړې وو.د الله د وعدې مطابق الله سره زمونږ اجر يقيني دې.زمونږ بعضې ملګرى خو لاړل.او هغوى خپل اجر کښې (ددې دنيا نه ) څه اونه خوړل.په هغوى کښې حضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه هم وو.«ومنا من إينعت له ثمرته فهو يهدبها» ناو په مونږ کښې څه لق هغه دي.چه د هغوى دپاره د هغوى ميوه په دنيا کښې پخه شوه.او هغوى دغه ميوې ټوري.«يهدبها أى يجنيها»

[۳۸۲۲]أَخْبَرَنَا حَسَّانُ بْنُ حَسَّانَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَلْحَةَ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ عَمَّهُ غَابَ عَنْ بَدْرٍ فَقَالَ غِبْتُ عَنْ أَوَّلِ قِتَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَئِنْ

---

(۱)فتح البارى(۱۷/۳۵٤)_
(۲)فتح البارى(۱۷/۲۵٤)
(۳)عمدة القارى(۱۷/۱٤٤)_

أشهدني الله مع النبي صلى الله عليه وسلم ليرين الله ما أجد فلقي يوم أحد فهزم الناس فقال اللهم إني أعتذر إليك مما صنع هؤلاء يعني المسلمين وأبرأ إليك مما جاء به المشركون فتقدم بسيفه فلقي سعد بن معاذ فقال أين يا سعد إني أجد ريح الجنة دون أحد فمضى فقتل فما عرف حتى عرفته أخته بشامة أو ببنانه وبه بضع وثمانون من طعنة وضربة ورمية بسهم [ر: ۲۶۵۱]

حضرت انس بن مالك رضی الله عنه فرمائی چه دده تره حضرت انس بن نضر رضی الله عنه په جنگ بدر کښې نه وو شریك شوی.هغوی ته د نبی ﷺ سره اولنی جهاد (بدر) کښې د نه حاضریدو ډیر خفګان وو.فرمائیل به ئې.که الله تعالی ماته آئنده د نبی ﷺ سره په جنګ کښې د حاضرئ توفیق راکړو.نو الله تعالی به په هغې کښې زما کوشش اوګوری.نو په جنګ احد کښې دوی لاړل.کله چه مسلمانانوته شکست اوشو.نو حضرت انس بن نضر رضی الله عنه اوفرمائیل.اې الله زه د مسلمانانو د طرفه (یعنی په جنګ کښې د دوی د تختیدو د غلطئ) تاسوته معذرت وړاندې کوم.او زه ویزاری ښکاره کوم.د مشرکانو د حرکاتونه.بیا ئې په لاس کښې توره واخستله.او وړاندې شو.نو دحضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه سره ئې ملاقات اوشو.وې وئیل اې سعد! چرته؟ زه د احد نه د جنت خوشبوئی محسوسوم.(۱) نو وړاندې شو.او شهید شو.

**قوله**: فما عرف حتى عرفته أخته بشامة أو ببنانه وبه بضع وثمانون من طعنة وضربة ورمية بسهم: بیا د دوی لاش نشو پیژندلې.تردې چه د دوی خور (ربیع بنت نضر) په یو تور داغ (چه پښتو کښې ورته ماما وائی) یا د ګوتو په یو بند باندې ددوی لاش اوپیژندلو.د دوی په بدن کښې د نیزو.تورو او تیرونو د اتیا (۸۰) زخمونونه زیات وو.

شامة: په څرمن باندې چه تور غوندې کوم ټاکې وی.هغې ته ..شامه.. وائی .په پښتو کښې ورته ..ماما.. وائی.

[۳۸۲۳] حدثنا موسى بن إسماعيل حدثنا إبراهيم بن سعد حدثنا ابن شهاب أخبرني خارجة بن زيد بن ثابت أنه سمع زيد بن ثابت رضي الله عنه يقول فقدت آية من الأحزاب حين نسخنا المصحف كنت أسمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يقرأ بها فالتمسناها فوجدناها مع خزيمة بن ثابت الأنصاري من المؤمنين رجال صدقوا ما عاهدوا الله عليه فمنهم من قضى نحبه ومنهم من ينتظر فألحقناها في سورتها في المصحف [ر: ۲۶۵۲]

حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه فرمائی.کله چه مونږ مصحف لیکل.نود سورة احزاب یو آیت ماته ملاؤ نشو.ما د رسول الله ﷺ نه هغه آیت اوریدل.نو مونږ د هغه آیت لټون شروع کړو. نود

---

(۱) يحتمل أن يكون ذلک على الحقيقة بأن يكون شم رائحة طيبة زائدة عما يعهد فعرف أنها ريح الجنة ويحتمل أن يكون أطلق ذلک باعتبار ما عنده من اليقين حتى كان الغائب عنه صار محسوساً عنده والمعنى أن الموضع الذي أقاتل فيه يئول بصاحبه إلى الجنة .. (فتح الباری(۳۵۵/۷)_

حضرت خزیمه بن ثابت انصاری رضی الله عنه سره هغه آیت مونږ ته ملاو شو.

﴿مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهٗ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرُ﴾

په مومنانو کښې څه خلق داسې دی.چه هغوی الله تعالی سره کومه وعده کړې وه.هغه ئې پوره کړه.اوپه هغې کښې رښتینې ثابت شول.اوبعضې په کښې هغه دی.چا چه خپل حاجت پوره کړې دې.(اوشهیدشوی دی) اوڅه خلق هغه دی.چه اوس(د شهادت) انتظارکونکی دی.

ددې حدیث بحث خو د کتاب فضائل القرآن سره متعلق دې.خو چونکه په دې آیت کښې د ﴿فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهٗ﴾ مصداق هغه حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم دی.کوم چه په احد کښې شهیدان شوی وو.ددې وجې امام بخاری رحمه الله دا روایت دلته ذکرکړو.

[۳۸۲۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ يَزِيدَ يُحَدِّثُ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أُحُدٍ رَجَعَ نَاسٌ مِمَّنْ خَرَجَ مَعَهُ وَكَانَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِرْقَتَيْنِ فِرْقَةٌ تَقُولُ نُقَاتِلُهُمْ وَفِرْقَةٌ تَقُولُ لَا نُقَاتِلُهُمْ فَنَزَلَتْ فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ وَاللّٰهُ أَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوا وَقَالَ إِنَّهَا طَيْبَةُ تَنْفِي الذُّنُوبَ كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْفِضَّةِ

حضرت زید بن ثابت انصاری رضی الله عنه فرمائی.چه کله نبی صلی الله علیه وسلم د جنګ احد دپاره اووتل.نو کوم کسان چه دوی سره وتلی وو.په هغوی کښې څه واپس شو.(مراد ددې نه عبدالله بن ابی او دده درې سوه ملګری وو.کوم چه په لار کښې واپس شوی وو) د نبی صلی الله علیه وسلم صحابه رضی الله عنهم دهغوی په باره کښې په ددو ډلوکښې تقسیم شول.یوې ډلې وئیل.مونږ به دوی سره قتال کوو.ځکه چه دوی زمونږ ملګرتیا پریخوده.او دهوکه ئې اوکړه.نو دوی مسلمانان نه دی.دویمې ډلې وئیل.چه په واپس تللو باندې اګرچه دوی ګناه اوکړه.خو د دوی سره قتال کول نه دې پکار.په دې باندې د قرآن پاك آیت نازل شو.﴿فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ وَاللّٰهُ أَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا﴾ تاسوته د منافقانو په باره کښې څه اوشو.چه په دوو ډلو کښې تقسیم شوئ.حالانکه الله تعالی هغوی د هغوی دعمل د سپیرتوب په وجه واپس کړی دی.

ددې آیت په شان نزول کښې نور هم ډیر روایتونه دی.یو روایت دا دې.چه د افك د واقعه متعلق کله چه نبی صلی الله علیه وسلم خطبه ورکوله. او وې وئیل.زما د کور والا په باره کښې ماته تکلیف رسولې شوې دې.عبدالله بن ابی په دې کښې لویه برخه اخستې وه.نو په دغه موقع باندې د عبدالله بن ابی په باره کښې د اوس او خزرج سره تعلق ساتونکې صحابو رضی الله عنهم کښې اختلاف پیدا شو.اوذکرشوې آیت د دوی په باره کښې نازل شوې دی.

خوراجح قول هم دا دې.چه دا د غزوه احد په موقع باندې نازل شوې وو.(۱)

---

(۱) قال الحافظ هذا هو الصحیح فی نزولها وأخرج ابن أبی حاتم .. عن ابی سعید بن معاذ قال ﴿ نزلت هذه الآية فی الأنصار خطب رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال من لی بمن یؤذینی ؟ فذکر منازعة سعد بن معاذ وسعد بن عبادة واسیدبن حضیر ومحمد بن مسلمة قال فأنزل الله هذه الآية وفی سبب نزولها قول آخر أخرجه أحمد .. إن قوما أتو المدینة فأسلموا فأصابهم الوباء فرجعوا واستقبلهم ناس من الصحابة فأخبرهم فقال بعضهم نافقوا وقال بعضهم لا فنزلت .. فإن کان محفوظاً أحتمل أن تکون نزلت فی الأمرین جمیعاً (وانظرفتح الباری (۷/۳۵۶)

اوهم ددې وجې امام بخاري رحمه الله دا حديث دلته ذکر کړو.د روايت په اخر کښې دی.

**قوله**: طَيْبَةُ تَنْفِي الذُّنُوبَ كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْفِضَّةِ: دا مدينه منوره پاك ځاې دې. دا ګناهونه داسې ختموي.لکه څنګه چه اور د سپينو زرو نه خيرې او زنګ ختموي. مطلب دا دې.چه کومو کسانو منافقانه حرکات کړي وی.الله تعالی به يقيناً هغوی بيل اوجدا کړی.اود هغوی حثيت به مشتبه پاتې نشي.

## ۲=بَاب ﴿إِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ﴾[1]

دا خبره په ماقبل کښې تيره شوې ده.چه بنو سلمه د قبيلې خزرج يو شاخ دې.اوبنو حارثه د قبيلې اوس يو شاخ دې.نوپه کوم وخت کښې چه عبدالله بن ابی درې سود کسان واخستل. اود مقام ،،شيخين،، نه واپس شو.نو د بنو سلمه او بنو حارثه په زړه کښې هم د واپسې خيال راغلو.خوچونکه دا خلق مخلص وو،څکه الله تعالی د دوی امداد اوکو.اود واپسې اراده ئې د زړه نه اوويستله.دقران په دې آيت کښې هم د دې ذکردې.

[۳۸۲۵] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِينَا ﴿إِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا﴾ بنى سلمة وبنى حارثة وما أحب أنا لم تنزل والله يقول ﴿وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ [ر:۳۲۸۲]

حضرت جابر رضی الله عنه چونکه هم ددې قبيلو سره تعلق ساتل.ددې وجې دوی فرمانی.چه ﴿إِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ﴾ دا آيت د بنو سلمه او بنو حارثه په باره کښې نازل شوې وو.اوزه دا نه غوارم.چه دا آيت نه وی نازل شوې.څك چه په دې کښې الله تعالی ﴿وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ فرمائيلی دی.يعنی په دې آيت کښې اګرچه د دې دوارو قبيلو د بزدرلئ او کمزورئ ذکر دې.خو په دې کښې ﴿وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ زبردست انعام هم شته.ددې وجې د دې آيت په نزول مونږ خوشحاله يو.

[۳۸۲۶] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ أَخْبَرَنَا عَمْرٌو عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ نَكَحْتَ يَا جَابِرُ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ مَاذَا أَبِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا قُلْتُ لَا بَلْ ثَيِّبًا قَالَ فَهَلَّا جَارِيَةً تُلَاعِبُكَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَبِي قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ وَتَرَكَ تِسْعَ بَنَاتٍ كُنَّ لِي تِسْعَ أَخَوَاتٍ فَكَرِهْتُ أَنْ أَجْمَعَ إِلَيْهِنَّ جَارِيَةً خَرْقَاءَ مِثْلَهُنَّ وَلَكِنْ امْرَأَةً تَمْشُطُهُنَّ وَتَقُومُ عَلَيْهِنَّ قَالَ أَصَبْتَ [ر:۴۳۲]

حضرت جابر رضی الله عنه فرمانی.چه نبی صلی الله علیه وسلم زمانه تپوس اوکړو،جابره! تا نکاح اوکړه.ما ورته عرض اوکړو،آو جی،نو نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل.باکرې سره که ثيبه سره؟ ما اووئيل. ثيبه سره، نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل.د باکرې سره تا ولې نکاح اونکړه.چه هغې تاسره لوبې کولې اوتا هغې

---

[1] )آعمران:۱۲۲(۔

سره، (اويوبل سره مو محبت كول) ما اوونيل. يارسول الله زما پلار په احد كښې شهيد شوې وو. او هغوى نهه لونړه پريخودې وې. نو زما نهه خويندې دى.

**قوله**: فَكَرِهْتُ أَنْ أَجْمَعَ إِلَيْهِنَّ جَارِيَةً خَرْقَاءَ مِثْلَهُنَّ وَلَكِنْ امْرَأَةً تَمْشُطُهُنَّ وَتَقُومُ عَلَيْهِنَّ: ددې وجې ما دا مناسب اونه ګنړل. چه زه دوى ته هم د دوى پشان ناتجربه كاره جينۍ راولم. ما اوغوښتل. چه داسې ښځه وى. چه هغه د دوى سرونه ګومنځوى. او تربيت ئې كوى.

خرقاء: داسې جينۍ ته وائى. كومه چه كم عقله وى. اود كور په كارونو كښې ماهره نه وى. نبى ﷺ ورته اوفرمائيل «أصبت» تا ټيك كړى دى.

دلته يوه خبره خو دا معلومه شوه. چه حضرت جابر رضي الله عنه واده اوكړو. او نبى ﷺ ته پته نه وه. نن صبا چه په مونږ كښې ودونه كيږى. نو هنګامې او ډرامې وى. ټولې دنيا ته د خبر وركولو اهتمام كولې شى. د نبى ﷺ نه زيات محبوب د صحابو رضي الله عنهم په نظر كښې څوك كيدې شو؟ خو ددې باوجود دنبى كريم ﷺ ديو صحابى رضي الله عنه هم په مدينه كښې واده كيږى. خو هغوى ددې خبرې ضرورت محسوس نكړو. چه نبى ﷺ ته خبر وركړى. دنكاح دپاره اعلان كول پكار دى. او هغه د څوكسانو په موجودګۍ كښې كيږى. ددې دپاره د كارډ چهاپ كول او شاميانې لګول او هال بك كول او د جشن منظر جوړول څه ضرورى دى. د صحابه كرامو رضي الله عنهم په دور كښې دا تكلفات نه وو.

[٣٨٢٤] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ أَبِي سُرَيْجٍ أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ فِرَاسٍ عَنْ الشَّعْبِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ أَبَاهُ اسْتُشْهِدَ يَوْمَ أُحُدٍ وَتَرَكَ عَلَيْهِ دَيْنًا وَتَرَكَ سِتَّ بَنَاتٍ فَلَمَّا حَضَرَ جِدَاذُ النَّخْلِ قَالَ أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ قَدْ عَلِمْتَ أَنَّ وَالِدِي قَدْ اسْتُشْهِدَ يَوْمَ أُحُدٍ وَتَرَكَ دَيْنًا كَثِيرًا وَإِنِّي أُحِبُّ أَنْ يَرَاكَ الْغُرَمَاءُ فَقَالَ اذْهَبْ فَبَيْدِرْ كُلَّ تَمْرٍ عَلَى نَاحِيَةٍ فَفَعَلْتُ ثُمَّ دَعَوْتُهُ فَلَمَّا نَظَرُوا إِلَيْهِ كَأَنَّهُمْ أُغْرُوا بِي تِلْكَ السَّاعَةَ فَلَمَّا رَأَى مَا يَصْنَعُونَ أَطَافَ حَوْلَ أَعْظَمِهَا بَيْدَرًا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ جَلَسَ عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ ادْعُ لِي أَصْحَابَكَ فَمَا زَالَ يَكِيلُ لَهُمْ حَتَّى أَدَّى اللَّهُ عَنْ وَالِدِي أَمَانَتَهُ وَأَنَا أَرْضَى أَنْ يُؤَدِّيَ اللَّهُ أَمَانَةَ وَالِدِي وَلَا أَرْجِعَ إِلَى أَخَوَاتِي بِتَمْرَةٍ فَسَلَّمَ اللَّهُ الْبَيَادِرَ كُلَّهَا وَحَتَّى إِنِّي أَنْظُرُ إِلَى الْبَيْدَرِ الَّذِي كَانَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَأَنَّهَا لَمْ تَنْقُصْ تَمْرَةً وَاحِدَةً [ر: ٢٠٢٠]

دا روايت هم د حضرت جابر رضي الله عنه نه دې. دوى فرمائى. چه زما پلار په جنګ احد كښې شهيد شو. اوډير قرض ئې پريخودو. شپږ لونړه هم هغوى پريخودې وې.

**قوله**: فَلَمَّا حَضَرَ جِدَاذُ النَّخْلِ: كله چه د قجورو كټ كولو وخت راغلو.

جذاذ: دجيم په كسرې او فتحې دواړو سره وئيلى شى. كټ كول اوپريكولو ته وائى.

حضرت جابر رضي الله عنه فرمائى. چه زه په هغه موقع نبى ﷺ ته راغلم. اود نبى ﷺ په خدمت كښې مې عرض اوكړو. چه يا رسول الله تاسو ته معلومه ده. چه زما پلار په جنګ احد كښې شهيد

شوى دي.اودهغه په ذمه ډيرقرض دي.زه دا غواړم.چه قرض غوښتونكى تاسو اووينى. (ممكن ده.چه ستاسو په كتلو هغه څه رعايت او نرمى اوكړى) نو نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.
((اذهب فبيدر كل تمر على ناحية)) څه لاړه شه. او هرقسم قجورو نه جدا جدا ډيري جوړ كړه.
نوما د نبى ﷺ د حكم مطابق جدا جدا ډيرې جوړ كړو.او بيا مې نبى ﷺ راوبللو كله چه دغه قرض غوښتونكو نبى ﷺ اوليدو.چه راځي.(نوچونكه هغوى يهوديان وو.په دغه موقع د نبى ﷺ راتلل دهغوى ډيرناخوښه وو) نوداسې ښكاريده.لكه چه اوس هغوى په ما باندې حمله كوى.(چه په قرض كښې د نرمئ كولودپاره ما نبى ﷺ ولې راوغوښتل)
كله چه نبى ﷺ دهغوى اندازه واخستله.نونبى ﷺ د ټولونه غټې ډيرې نه ګير چاپيره درې چكرې اولګولې.او بيا شاه كړې كيناستلو.اووې فرمائيل.خپل قرض غوښتونكې راوغواړه.نبى ﷺ شروع شو.مسلسل ئې تلل كول.اودهغوى قرضونه ئې خلاصول.تردې چه الله تعالى زما د پلار په ذمه چه څومره قرضونه وو.هغه ادا كړل.زه په دې خبره هم خوشحاله وم.چه الله تعالى زما دپلار قرضونه خلاص كړى. او زه خپلو خويندو ته يوه قجوره هم يونسم. (خو د نبى ﷺ بركت داسې ښكاره شو. چه) الله تعالى هغه ټول ډيرى محفوظ اوساتل.اوپه كوم ډيرى سره چه نبى ﷺ تشريف فرما وو.په هغې كښې ماته يوه قجوره هم ماته كمه نه ښكاريده.

**يوتعارض اودهغې حل**: په دې روايت كښې حضرت جابر ﷺ فرمائى.چه زما پلار شپږ لونړه پريخودي وې.اودې نه وړاندينى روايت كښې دى.چه د دوى پلار نهه لونړه پريخودې وې. حضرات شارحينو ﷺ ددې داسې تطبيق كړې دې.چه په اصل كښې نهه لونړه د حضرت جابر ﷺ پلار پريخودې وې.خوپه هغې كښې درې وادهٔ شوې وې. د دې وجې په دې روايت كښې د دريو ذكرنه دې شوې.اوپه اولنى روايت كښې دهغوى ذكرهم شته.([1])
په دې دواړو رواياتوكښې چونكه د حضرت جابر ﷺ د پلار په جنګ احد كښې دشهادت ذكر دې.ددې وجې امام بخارى ﷺ دلته د دې تخريج اوكړو.

[٣٨٢٨] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ وَمَعَهُ رَجُلَانِ يُقَاتِلَانِ عَنْهُ عَلَيْهِمَا ثِيَابٌ بِيضٌ كَأَشَدِّ الْقِتَالِ مَا رَأَيْتُهُمَا قَبْلُ وَلَا بَعْدُ [ر:٥٤٨٨]

حضرت سعدبن ابى وقاص ﷺ فرمائى.چه ما د احد په ورځ د نبى كريم ﷺ سره دوه سړى اوليدل.چا چه د دوى د طرفه جنګ كولو.هغه دواړه په سپينو جاموكښې پټ وو.ما هغوى نه ددې نه وړاندې يدلى وو.اونه روستو.دا دواړه فرښتې وې. يو حضرت جبرئيل او بل حضرت ميكائيل عليهما السلام وو.([2]) په احد كښې د فرښتو نزول شوى و.خو هغوى په عام جنګ كښې حصه نه وه اخستې.صرف د نبى ﷺ د دفاع دپاره په جنګ كښې شريكې شوې وې.

[1] )فتح البارى(٣٥٨\٧)_
[2] )فتح البارى(٣٥٩\٧)_

[۳۸۲۹/۳۸۲۹] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ السَّعْدِيُّ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ يَقُولُ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ يَقُولُ نَثَلَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِنَانَتَهُ يَوْمَ أُحُدٍ فَقَالَ ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي

[۳۸۳۰] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدًا يَقُولُ جَمَعَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَوَيْهِ يَوْمَ أُحُدٍ

[۳۸۳۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ يَحْيَى عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّهُ قَالَ قَالَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لَقَدْ جَمَعَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ أَبَوَيْهِ كِلَيْهِمَا يُرِيدُ حِينَ قَالَ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي وَهُوَ يُقَاتِلُ [ر: ۳۵۱۹]

[۳۸۳۲/۳۸۳۲] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شَدَّادٍ قَالَ سَمِعْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ أَبَوَيْهِ لِأَحَدٍ غَيْرَ سَعْدٍ

[۳۸۳۳] حَدَّثَنَا يَسَرَةُ بْنُ صَفْوَانَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَعَ أَبَوَيْهِ لِأَحَدٍ إِلَّا لِسَعْدِ بْنِ مَالِكٍ فَإِنِّي سَمِعْتُهُ يَقُولُ يَوْمَ أُحُدٍ يَا سَعْدُ ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي [ر: ۲۷۴۹]

حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ

حضرت سعدبن ابی وقاص رضی اللہ عنہ فرمائی «نَثَلَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِنَانَتَهُ يَوْمَ أُحُدٍ فَقَالَ ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي» چه نبی ﷺ دخپل ترکش تیر راوویسته اوماته ئې راکړو.او وې فرمائیل.زما مور پلار دې په تا قربان شی.غشی اوله.

«نثل»ازباب ضرب ونصر معنی ده.دترکش نه غشی راوباسه.«کنانة» ترکش ته وائی.

**قوله**: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ: په دې روایت کښې هم هغه خبره ده.چه نبی ﷺ دحضرت سعد بن ابی وقاص رضی اللہ عنہ دپاره خپل والدین ( په تفدیه) کښې جمع کړل.دا محاوره ده.کله چه چا سره ډیر زیات محبت وی.اودخپلې رضا اظهار مقصود وی.نو«فداك أبي وأمي» وائی.

[۳۸۳۴] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ مُعْتَمِرٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ زَعَمَ أَبُو عُثْمَانَ أَنَّهُ لَمْ يَبْقَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ تِلْكَ الْأَيَّامِ الَّتِي يُقَاتِلُ فِيهِنَّ غَيْرُ طَلْحَةَ وَسَعْدٍ عَنْ حَدِيثِهِمَا [ر: ۳۵۱۷]

[۳۸۳۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يُوسُفَ قَالَ سَمِعْتُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ قَالَ صَحِبْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ وَطَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ وَالْمِقْدَادَ وَسَعْدًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ فَمَا سَمِعْتُ أَحَدًا مِنْهُمْ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا أَنِّي سَمِعْتُ طَلْحَةَ يُحَدِّثُ عَنْ يَوْمِ أُحُدٍ [ر: ۲۶۶۹]

[۳۸۳۶] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ رَأَيْتُ يَدَ طَلْحَةَ شَلَّاءَ وَقَى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ [ر: ۳۵۱۸]

[۳۸۳۷] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ أُحُدٍ انْهَزَمَ النَّاسُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو طَلْحَةَ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُجَوِّبٌ عَلَيْهِ بِحَجَفَةٍ لَهُ وَكَانَ أَبُو طَلْحَةَ رَجُلًا رَامِيًا شَدِيدَ النَّزْعِ كَسَرَ يَوْمَئِذٍ قَوْسَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا وَكَانَ الرَّجُلُ يَمُرُّ مَعَهُ بِجَعْبَةٍ مِنَ النَّبْلِ فَيَقُولُ انْثُرْهَا لِأَبِي طَلْحَةَ قَالَ وَيُشْرِفُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ إِلَى الْقَوْمِ فَيَقُولُ أَبُو طَلْحَةَ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي لَا تُشْرِفْ يُصِيبُكَ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ الْقَوْمِ نَحْرِي دُونَ نَحْرِكَ وَلَقَدْ رَأَيْتُ عَائِشَةَ بِنْتَ أَبِي بَكْرٍ وَأُمَّ سُلَيْمٍ وَإِنَّهُمَا لَمُشَمِّرَتَانِ أَرَى خَدَمَ سُوقِهِمَا تُنْقِزَانِ الْقِرَبَ عَلَى مُتُونِهِمَا تُفْرِغَانِهِ فِي أَفْوَاهِ الْقَوْمِ ثُمَّ تَرْجِعَانِ فَتَمْلَآنِهَا ثُمَّ تَجِيئَانِ فَتُفْرِغَانِهِ فِي أَفْوَاهِ الْقَوْمِ وَلَقَدْ وَقَعَ السَّيْفُ مِنْ يَدَيْ أَبِي طَلْحَةَ إِمَّا مَرَّتَيْنِ وَإِمَّا ثَلَاثًا [ر: ۲۷۲۴]

**قوله**: حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ: حضرت انس رضی اللہ عنہ فرمائی.

**قوله**: لَمَّا كَانَ يَوْمُ أُحُدٍ انْهَزَمَ النَّاسُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو طَلْحَةَ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُجَوِّبٌ عَلَيْهِ بِحَجَفَةٍ لَهُ: داحد په ورځ کله چه خلقو شکست اوخوړلو.او د نبی ﷺ نه منتشر شول.نوحضرت ابوطلحه رضی اللہ عنہ د نبی ﷺ مخامخ د خپلې ځرمنې ډال اخستې وو.اوپرده شوې وو.

**مجوّب:** اسم فاعل صيغه ده.

**حجفة:** (دحاء او جيم په فتحې سره (ډهال ته وائي.حضرت ابوطلحه رضی اللہ عنہ ډير تير اندازوو. اوډيره تيزه به غشى راښکل (يعنى لينده به ئې راښکله).دوه درې ليندې په دغه ورځ دوى ماتې کړې وې.

**قوله**: وَكَانَ الرَّجُلُ يَمُرُّ مَعَهُ بِجَعْبَةٍ مِنَ النَّبْلِ فَيَقُولُ انْثُرْهَا لِأَبِي طَلْحَةَ: کله چه به څوک سړى د مسلمانانو نه دوى سره نزدې تيريدو.اودهغه په لاس کښې به دغشو ترکش وو.نو نبى ﷺ به ورته فرمائيل.غشى ابوطلحه ته راوغورځوه.

**جعبة:** (دجيم په فتحه اوعين په سکون سره) ترکش ته وائي.کله چه به نبى ﷺ د کافرانو ليدلو دپاره کتل.نوحضرت ابوطلحه رضی اللہ عنہ به ورته ونيل.زما مور پلار دې په تاسو قربان وى.تاسو مه ګورئ.هسې نه چه د کافرانوپه غشى اولګى.زما سينه ستاسو د سينې وړاندې ده.(که غشى راځى.نو زما په سينه کښې به ننوځى)

**قوله**: وَلَقَدْ رَأَيْتُ عَائِشَةَ بِنْتَ أَبِي بَكْرٍ وَأُمَّ سُلَيْمٍ وَإِنَّهُمَا لَمُشَمِّرَتَانِ أَرَى خَدَمَ سُوقِهِمَا تُنْقِزَانِ الْقِرَبَ عَلَى مُتُونِهِمَا تُفْرِغَانِهِ فِي أَفْوَاهِ الْقَوْمِ: اوماحضرت عائشه او

حضرت ام سليم رضي الله عنها ليدلې وې.چه هغوى خپلې پينسې اوچتې كړې وې.اوما دهغوى د پنډو پانزيب ليدل.هغوى دواړو به په خپلو شاګانو باندې مشكونه راوړل.اوخلقوته به ئې اوبه وركولې.

«تنقزان القرب» ترجمه حضرت شاه ولى الله رحمه الله دا كړې ده.چه مشكونه به ئې برجق (پوره ډك شوې) راوړل.يعنى مشكونه به دومره ډك وو.چه اوبه به ترې بهر وتلې.(۱)

په روايت كښې دى.چه دحضرت ابوطلحه رضي الله عنه نه دوه يا درې خله توره اوغورځيده چونكه په دې جنګ كښې الله تعالى په مسلمانانو باندې سكينه نازل كړې وه.د كومې ذكرچه د قرآن پاك په آيت ﴿ اِذْ يُغَشِّيْكُمُ النُّعَاسَ اَمَنَةً مِّنْهُ﴾ كښې دى. د دې بركالې او سكينې په وجه د حضرت ابوطلحه رضي الله عنه نه دوه درې خله توره وغورځيده (۲)

[۳۸۲۸]حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمَّا كَانَ يَوْمَ أُحُدٍ هُزِمَ الْمُشْرِكُونَ فَصَرَخَ إِبْلِيسُ لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَيْهِ أَيْ عِبَادَ اللَّهِ أُخْرَاكُمْ فَرَجَعَتْ أُولَاهُمْ فَاجْتَلَدَتْ هِيَ وَأُخْرَاهُمْ فَبَصُرَ حُذَيْفَةُ فَإِذَا هُوَ بِأَبِيهِ الْيَمَانِ فَقَالَ أَيْ عِبَادَ اللَّهِ أَبِي أَبِي قَالَ قَالَتْ فَوَاللَّهِ مَا احْتَجَزُوا حَتَّى قَتَلُوهُ فَقَالَ حُذَيْفَةُ يَغْفِرُ اللَّهُ لَكُمْ قَالَ عُرْوَةُ فَوَاللَّهِ مَا زَالَتْ فِي حُذَيْفَةَ بَقِيَّةُ خَيْرٍ حَتَّى لَحِقَ بِاللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ بَصُرْتُ عَلِمْتُ مِنْ الْبَصِيرَةِ فِي الْأَمْرِ وَأَبْصَرْتُ مِنْ بَصَرِ الْعَيْنِ وَيُقَالُ بَصُرْتُ وَأَبْصَرْتُ وَاحِدٌ[ر:۳۱۱۶]

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى.چه كله په جنګ احد كښې مشركانو ته شكست اوشو.نوابليس آواز اوكړو.يا عبادالله خپل روستو خيال اوكړئ.چه د شانه په تاسوحمله اونكړې شى.نو مخكنئ ډله شاته شوه.اود شاتنئ ډلې سره مخامخ شول.اومسلمانانوپه خپل مينځ كښې جنګ شروع كړو.

داواقعه هغه وخت كښې پيښه شوې وه.كله چه تيراندازو خپل ځاى پريخودل او د مال غنيمت جمع كولو دپاره راكوز شول.نو په دغه موقع د حضرت حذيفه رضي الله عنه پلار،حضرت يمان د مسلمانانو د لاسه شهيدشو.حضرت حذيفه رضي الله عنه د مسلمانانو دلاسه خپل پلار په قتليدو باندې ليدلې وو.خوچونكه په غلطئ سره داسې شوى وو.ددې وجې به هغوى د مسلمانانو په حق د مغفرت دعا كوله.حضرت عروه فرمائى.چه په حضرت حذيفه رضي الله عنه كښې د خير دا اثر هميشه دپاره وو.يعنى هغوى به دخپل پلار قاتلانومسلمانانو دپاره هميشه دپاره دمغفرت دعا كوله.تردې چه هغه خپل رب سره ملاؤ شو.

............

(۱)فيض البارى (۴۳۴/۳) تنقزان ضبط بعضهم هذا اللفظ بضم القاف من نصر وبعضهم بضم أوله من الإنقاذ)
(۲)حضرت ابوطلحه انصارى رضي الله عنه حالات وړاندې په حاشيه باندې اوګورئ.)

۳-باب قول الله تعالى: إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا وَلَقَدْ عَفَا اللَّهُ عَنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ[1]

هغه خلق چا چه تاسوته شا کړې وه.په هغه ورځ کله چه (د مسلمانانو او کافرانو) دوه ډلې (دجنګ دپاره) يوبل ته مخامخ شوې.سوا ددې نه نۀ چه شيطان دوی په لغزش کښې مبتلا کړې وو.دوی د بعضې اعمالوپه وجه (يعنی د نبی ﷺ د حکم نافرمانئ ئې کوله او د تيراندازو خپل ځاې پرېخودلوپه وجه) اوالله تعالى دوی معاف کړی دی.بيشکه الله تعالى غفور او رحيم دې.

[۳۸۳۹] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا أَبُو حَمْزَةَ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ مَوْهَبٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ حَجَّ الْبَيْتَ فَرَأَى قَوْمًا جُلُوسًا فَقَالَ مَنْ هَؤُلَاءِ الْقُعُودُ قَالُوا هَؤُلَاءِ قُرَيْشٌ قَالَ مَنْ الشَّيْخُ قَالُوا ابْنُ عُمَرَ فَأَتَاهُ فَقَالَ إِنِّي سَائِلُكَ عَنْ شَيْءٍ أَتُحَدِّثُنِي قَالَ أَنْشُدُكَ بِحُرْمَةِ هَذَا الْبَيْتِ أَتَعْلَمُ أَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ فَرَّ يَوْمَ أُحُدٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَتَعْلَمُهُ تَغَيَّبَ عَنْ بَدْرٍ فَلَمْ يَشْهَدْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَتَعْلَمُ أَنَّهُ تَخَلَّفَ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَمْ يَشْهَدْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَكَبَّرَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ تَعَالَ لِأُخْبِرَكَ وَلِأُبَيِّنَ لَكَ عَمَّا سَأَلْتَنِي عَنْهُ أَمَّا فِرَارُهُ يَوْمَ أُحُدٍ فَأَشْهَدُ أَنَّ اللَّهَ عَفَا عَنْهُ وَأَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَدْرٍ فَإِنَّهُ كَانَ تَحْتَهُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَتْ مَرِيضَةً فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لَكَ أَجْرَ رَجُلٍ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا وَسَهْمَهُ وَأَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَإِنَّهُ لَوْ كَانَ أَحَدٌ أَعَزَّ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ لَبَعَثَهُ مَكَانَهُ فَبَعَثَ عُثْمَانَ وَكَانَتْ بَيْعَةُ الرِّضْوَانِ بَعْدَمَا ذَهَبَ عُثْمَانُ إِلَى مَكَّةَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ الْيُمْنَى هَذِهِ يَدُ عُثْمَانَ فَضَرَبَ بِهَا عَلَى يَدِهِ فَقَالَ هَذِهِ لِعُثْمَانَ اذْهَبْ بِهَذَا الْآنَ مَعَكَ [ر: ۳۴۹۸]

عثمان بن موهب رحمه الله وائی.چه يوکس د بيت الله د حج دپاره راغلو.غالباً دا خوک مصری وو.ځکه چه هم په مصر کښې د تولونه وړاندې د حضرت عثمان رضی الله عنه خلاف بغاوت پورته شوې وو.دا کس د حضرت عثمان رضی الله عنه په مخالفينوکښې وو.هغه د حضرت عثمان رضی الله عنه په باره کښې درې اعتراضونه اوکړل.اوکله چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د هغه د خيالاتو تائيد اوکړو.او ((نعم)) ئې اوونيل.نو هغه ډير خوشحاله شو.او د الله اکبر نعره ئې اوچته کړه.

هغه د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه اولنې سوال دا اوکړو.آيا تا ته معلومه ده.چه حضرت عثمان رضی الله عنه د جنګ احد په ورځ تختيدلې وو؟حضرت ابن عمر رضی الله عنهما اوفرمائيل ،،نعم،، او.هغه تپوس اوکړو.آيا تاته معلومه ده.چه حضرت عثمان رضی الله عنه په جنګ بدرکښې شريک شوې نه وو.حضرت ابن عمر رضی الله عنهما اوونيل،،نعم،، او.هغه تپوس اوکړو..آيا تاته معلومه ده.چه حضرت عثمان رضی الله عنه په بيعت الرضوان کښې روستو پاتې شوې وو.ابن عمر رضی الله عنهما

[1] )آل عمران:۱۵۵(_

اووئيل، ،نعم، ،او، په دې باندې دغه سائل ، ،الله اكبر، ، اووئيل حضرت ابن عمر ﷺ ورته اوفرمائيل.راشه ته چه زه تاته ستا د دې درې سوالونو تفصيل اوښايم. تركومې پورې چه دحضرت عثمان ﷺ د جنګ احد نه د تختيدو تعلق دې.نوزه ددې خبرې ګواهي وركوم،چه الله تعالى دوى معاف كړى دى.(ځكه چه په قرآن پاك كښې الله تعالى د ﴿وَلَقَدْ عَفَا اللَّهُ عَنْهُمْ﴾ اعلان كړې دې) پاتې شودحضرت عثمان ﷺ د جنګ بدرنه غائب كيدل.نو ددې وجه دا وه.چه دحضرت عثمان ﷺ په نكاح كښې د نبى ﷺ لور بى بى وه.هغه ته ئې په مدينه كښې د خپلې بى بى د تيمارداري حكم كړې وو.اودوى ته ئې وئيلى وو.چه تاته به دومره اجراوپه مال غنيمت كښې حصه ملاويږى.څومره چه شريكو كسانوكښې يوته ملاويږى.(نوهغه د رسول الله ﷺ په حكم سره په مدينه كښې پاتي شو.اوحكماً هغه بدرى دې) باقى پاتې شوه ستا دريمه خبره،چه حضرت عثمان ﷺ د بيعت رضوان نه روسته پاتې شوې وو.نوكه په وادى مكه كښې د حضرت عثمان ﷺ نه څوك زيات معزز وو.نو نبى ﷺ به هم هغه ليږلې وو.(خوچونكه په وادى مكه كښې د ټولونه زيات معزز هغه وو.ددې وجې نبى ﷺ د دوى انتخاب اوكړو) كله چه حضرت عثمان ﷺ مكې ته لاړل.نودبيعت رضوان واقعه پيښه شوه.چونكه حضرت عثمان ﷺ په دغه موقع موجود نه وو.ددې وجې نبى ﷺ خپل ښي لاس اوچت كړو.او وې فرمائيل.((هذه يد عثمان))دا دعثمان لاس دې.اوهغه ئې خپل ګس لاس ته راپريخودل.او وې فرمائيل ((هذه لعثمان)) دا دعثمان بيعت دې.

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ د سائل د درې واړو تپوسونو تفصيلى جواب وركولونه پس اووئيل.((اذهب بهذا الآن معك)) اوس ځان سره دا تفصيل واخله او لاړ شه.

چونكه په دې روايت كښې د حضرت عثمان ﷺ په جنګ احد كښې په شا كيدو ذكردې.هم په دې مناسبت سره دا روايت امام بخارى دلته په غزوه احد كښې ذكركړو.والله اعلم.

## ۴=باب: إِذْ تُصْعِدُونَ وَلَا تَلْوُونَ عَلَىٰ أَحَدٍ

وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ فِي أُخْرَاكُمْ فَأَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ لِكَيْلَا تَحْزَنُوا عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ وَلَا مَا أَصَابَكُمْ ۗ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ۞ (ال عمران: ۱۵۳) تُصْعِدُونَ تَذْهَبُونَ أَصْعَدَ وَصَعِدَ فَوْقَ الْبَيْتِ

هغه وخت ياد كړئ.كله چه تاسو ختئ:او تاسو شا ته دچا طرف ته نه راګرځيدئ.،او پيغمبر ﷺ ستاسو د شا طرفه تاسورابللې:(خوتاسودهغوى آواز نه اوريدل) نو الله تعالى (ستاسوپيغمبرته) د غم رسولو په وجه تاسوته غم اورسولو. (اود دې دپاره چه په تاسو كښې استقامت پيدا شى.چه د هغې پس) تاسو غمګين نشئ:په هغه څيزكوم چه ستاسو دلاس نه اوځى.او نه په هغه مصيبت كوم چه تاسو ته اورسيږى.اوالله تعالى ښه پوهيږى.په هغه كارونوكوم چه تاسو كوئ.

په دې آيت كريمه كښې هم هغه واقعه بيان شوې ده.كله چه حضرت عبدالله بن جبير ﷺ د خپلو لسو ملګروسره شهيد كړې شو.كوم چه ئې د احد په مورچه باندې مقرر كړى وو. او نورو د اميردحكم مخالفت اوكړو.او مورچه ئې پريخودله.د دوى د شهادت نه پس كافرانود

شا طرف نه ناځاپې حمله اوکړه.په هغه وخت کښې غل غوبل جوړ شو.نبی ﷺ صحابو ﷺ ته چغې وهلې.خوهغوی په دغه حالت کښې د نبی ﷺ آواز نه اوریدل.

په ﴿فَاَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ﴾ کښې د دوو غمونوذکردې.مفسرینو فرمائیلی دی. چه اولنی غم نه د شکست غم وو.او د دویم غم نه هغه غم مراد دې.کوم چه رسول الله ﷺ ته د هغوی د حکم د نافرمانۍ په وجه رسولې شوې وو.نبی ﷺ حکم ورکړې وو.چه مورچه به په هیڅ حالت کښې نه پریږدئ.خوهغوی پریخودله.په دې باندې د الله تعالی پیغمبرته غم اورسیدو.اوددغه غم په وجه مسلمانانوته شکست ملاؤ شو.(۱) په روایت باب کښې حضرت براء ﷺ هم دا خبره کړې ده.

[۳۸۳۰] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الرَّجَّالَةِ يَوْمَ أُحُدٍ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ جُبَيْرٍ وَأَقْبَلُوا مُنْهَزِمِينَ فَذَاكَ إِذْ يَدْعُوهُمُ الرَّسُولُ فِي أُخْرَاهُمْ [ر: ۲۸۷۴]

## ۵-بَاب: ثُمَّ أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِ الْغَمِّ أَمَنَةً نُعَاسًا

يَغْشَى طَائِفَةً مِنْكُمْ وَطَائِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنْفُسُهُمْ يَظُنُّونَ بِاللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ يَقُولُونَ هَلْ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ مِنْ شَيْءٍ قُلْ إِنَّ الْأَمْرَ كُلَّهُ لِلَّهِ يُخْفُونَ فِي أَنْفُسِهِمْ مَا لَا يُبْدُونَ لَكَ يَقُولُونَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ مَا قُتِلْنَا هَاهُنَا قُلْ لَوْ كُنْتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِينَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ إِلَى مَضَاجِعِهِمْ وَلِيَبْتَلِيَ اللَّهُ مَا فِي صُدُورِكُمْ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِي قُلُوبِكُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾(۲)

بیا نازل کړو الله تعالی د اطمینان قلب دپاره په تاسو باندې پرکالی چه هغه خوریده. په تاسو کښې یوې ډلې باندې،او یوه ډله (کومه چه دمنافقانووه) هغوی ته هم دخپل ځان فکروو.دغه خلقو الله تعالی سره خلاف حقیقت دجاهلیت ګمان کولو.(او) وئیل ئې.چه زمونږ څه اختیارنشته؟ ته ورته اووایه.چه ټوله معامله او اختیارخو دالله تعالی په لاس کښې دې.دغه خلق په خپلو زړونوکښې داسې خبرې پټې ساتی.چه دهغې اظهارتاسوته نه کوی.وائی.که زمونږ اختیار چلیدل.(اوزمونږ خبره منلې شوې وه) نو مونږ به دلت نه وو قتل شوی.ته ورته اووایه.که تاسو په خپلو کورونوکښې ئې.نوبیا هم چه دکوموکسانودپاره قتل کیدل لیکلی شوی وو.هغو به دخپل قتل ځایونوته وتل.اودا ټول هرڅه ددې وجې راپیښ شول.چه الله تعالی امتحان اوکړی.دهغه ایمان کوم چه ستاسوپه زړونوکښې دې.اوچه الله تعالی پاك کړی.هغه خیرې کوم چه ستاسو د ګناهونو په وجه ستاسوپه زړونوکښې پیدا شوې دې.اوالله تعالی خو د زړونو په خبروښه پوهیږی.

﴿ثُمَّ أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِ الْغَمِّ أَمَنَةً نُعَاسًا يَغْشَى طَائِفَةً مِنْكُمْ﴾

په ﴿أَمَنَةً نُعَاسًا﴾ کښې دنحوی ترکیب په اعتبارسره څو احتمالات دی.

---

(۱) تفسیر قرطبی (۲۴۰/۱۴)_
(۲) آل عمران: ۱۵۴)_

① يو احتمال دا دې.چه ((اَمَنَةً)) مبدل منه د او ((نُعَاسًا)) بدل دې.اوبدل او مبدل منه چه دواړه ملاؤ شي.نو د ((اَنْزَلَ)) دپاره مفعول به دې.

② دويم احتمال دا دې،چه ((اَمَنَةً)) حال مقدم او ((نُعَاسًا)) ذوالحال موخر دې،لكه((رأيت راكباً رجلاً)) كښې چه ((راكباً)) حال مقدم او ((رجلاً)) ذوالحال موخردې.

③ دريم احتمال دا دې.چه ((اَمَنَةً)) مفعول له دې.د ((اَنْزَلَ)) دپاره،او ((نُعَاسًا)) د ((اَنْزَلَ)) مفعول به دې.او ﴿يَّغْشٰى طَآىِٕفَةً مِّنْكُمْ﴾ صفت دې.د ((نُعَاسًا)) دپاره.([1])

**قوله**: يَظُنُّوْنَ بِاللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ: په ﴿غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ﴾ كښې ﴿غَيْرَ الْحَقِّ﴾ مبدل منه دې.او﴿ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ﴾ بدل دې،يعنى منافقان د الله تعالى سره خلاف حقيقت دجاهليت ګمان ساتى.دمنافقانو ګمان دا وو.چه الله تعالى به دمسلمانانو مدد نه كوى.([2])

**قوله**: يُخْفُوْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ مَّا لَا يُبْدُوْنَ لَكَ: دغه منافقانوپه خپلو زړونوكښې داسې خبرې پټوى.چه تاته ئې نه ښكاره كوى.منافقانوپه خپلو زړونوكښې څه پټ كړى وو؟

① يو احتمال دا خودلې شوې د.چه شرك كفر اوتكذيب ئې پټ كړې وو([3])

② دويم احتمال دا خودلې شوې دې.چه دوى په زړه زړه كښې وئيل.كه په مدينه كښې پاتې شوى وو.نو دقتل نه به بچ وو.نبى ﷺ ته خو ئې دخپل خيال اظهارنه كولو.خوپه زړه كښې ئې دا خبره پټه كړې وه.([4])

③ يو احتمال دا بيان شوې دې.چه په جنګ احد كښې په شركت سره دوى ته پيښمانتيا، افسوس اوپريشانى وه.خوپه ژبه ئې ددې اظهارنه كولو.([5])

④ څلورم احتمال دا بيان شوې دې.چه د دوى په زړونوكښې دا خيال وو.چه دالله تعالى دطرفه به د نبى ﷺ مدد او نصرت اونشى.([6])

خوپه دې اقوالوكښې څه تضاد نشته.ممكن ده.چه د هغوى په زړونوكښې دا ټول خيالات وو.

[۳۸۴۱] وقَالَ لِي خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كُنْتُ فِيمَنْ تَغَشَّاهُ النُّعَاسُ يَوْمَ أُحُدٍ حَتَّى سَقَطَ سَيْفِي مِنْ يَدِي مِرَارًا يَسْقُطُ وَآخُذُهُ وَيَسْقُطُ فَآخُذُهُ [ر:۳۸۲۶]

[1]) د ذكرشوى تركيبى احتمالاتو دپاره اوګورئ تفسير كبير (۹\٤٤)_

[2])عمدة القارى(۱۷\۱٥٤)_

[3])تفسير قرطبى (٤\۲٤۲)_

[4])عمدة القارى(۱۷\۱٥٤)_

[5])عمدة القارى(۱۷\۱٥٤)_

[6])عمدة القارى(۱۷\۱٥٤)_

دلته امام بخاری رحمه الله انداز بدل کړو.((حدثنا خليفة)) ئې اونه وئيل.علامه عينی رحمه الله فرمائی.
چه ((قال لي خليفة)) ئې ددې وجې اووئيل.چه د تحديث او اخبارپه طورخليفه.دا خبره امام بخاری رحمه الله ته نه وه بيان کړې.بلکه څه علمی مذاکره وه.په هغې کښې دوی د دې تذکره کړې وه.(۱)

په روايت الباب کښې حضرت ابوطلحه انصاری رضی الله عنه فرمائی.چه په جنګ احدکښې په ما باندې پرکالی غالبه شوه.زما دلاس نه به توره پريوتله.اوما به بار بار راوچتوله.

## ٦=بَاب لَيْسَ لَكَ مِنْ الْأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ

قَالَ حُمَيْدٌ وَثَابِتٌ عَنْ أَنَسٍ شُجَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ فَقَالَ كَيْفَ يُفْلِحُ قَوْمٌ شَجُّوا نَبِيَّهُمْ فَنَزَلَتْ لَيْسَ لَكَ مِنْ الْأَمْرِ شَيْءٌ(۲)

دلته په ((ليس لك)) کښې ،،لام،،د،،الی،، په معنی کښې دې.يعنی ((ليس إليك من الأمرشئ)) په دې معامله کښې ستا څه اختيار نشته.يعنی تاسو چه د دوی دپاره کومې خيرې کوندډ دې اجازت تاسوته نشته.

((أويتوب عليهم)) کښې ،،او،، د ،،حتی،، په معنی کښې دې.ترڅو چه الله تعالی دوی ته د توبې توفيق ورکړی.اويا دوی ته عذاب ورکړی.دا د الله تعالی کار دې.اودهغه په اختيار کښې دې.

**قوله**: قَالَ حُمَيْدٌ وَثَابِتٌ عَنْ أَنَسٍ شُجَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ فَقَالَ كَيْفَ يُفْلِحُ قَوْمٌ شَجُّوا نَبِيَّهُمْ فَنَزَلَتْ لَيْسَ لَكَ مِنْ الْأَمْرِ شَيْءٌ: دا تعليق دې.

سند نه دې بيان کړی.چه د احد په ورځ د نبی صلی الله عليه وسلم سر زخمی شې وو.د ((شج)) اطلاق د سر په زخم باندې کيږی.خو دلته صرف د سر زخم مراد نه دې.ځکه چه د نبی صلی الله عليه وسلم سرمبارک هم زخمی شوې وو.او مخ مبارک هم زخمې شوې وو.نو په دې موقع باندې نبی صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل.
داسې قوم به څنګه کامياب شی.چا چه خپل پيغمبر زخمی کړو.نو دا آيت نازل شو.﴿لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ﴾

[۳۸۴۲] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللَّهِ السُّلَمِيُّ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِي سَالِمٌ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنْ الرُّكُوعِ مِنْ الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ مِنْ الْفَجْرِ يَقُولُ اللَّهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا وَفُلَانًا وَفُلَانًا بَعْدَ مَا يَقُولُ سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ

---

(۱) عمدة القاری (۱۷\۱۵۵)_
(۲) آل عمران:۱۲۸)_

الْحَمْدُ فَأَنْزَلَ اللَّهُ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ إِلَى قَوْلِهِ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ
وَعَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ سَمِعْتُ سَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو عَلَى صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ وَسُهَيْلِ بْنِ عَمْرٍو وَالْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ فَنَزَلَتْ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ إِلَى قَوْلِهِ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ [ر: ۳۸۴۳و ۶۹۱۳]

**د ايت اسباب نزول** د ذكرشوى اا يت په شان نزول كښې اختلاف دې.

① يو قول خو هم دا دې چه كله كافرانو په جنګ احد كښې نبى ﷺ زخمى كړو.نو په دغه وخت كښې دا آيت نازل شو.

② بعضې حضراتو ونيلى دى.چه نبى ﷺ كله حضرت حمزه رضي الله عنه اوليدلو.چه هغه شهيد كړې شوې دې.نو په هغه وخت كښې هغوى د كافرانو په حق كښې خيرې اوكړې.نو دا آيت نازل شو.[1]

③ د بعضو خيال دې.چه نبى ﷺ دهغه مسلمانانو دپاره د خيرو اراده كړې وه.كوم چه د ګډوډ حالت پيښيدو په وخت كښې د ميدان جنګ نه تلى وو او مدينې ته رغلى وو.نو په دغه وخت كښې دا آيت نازل شو.[2]

④ د دې باب په روايت كښې دى.چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائيلى دى.چه دوى د نبى ﷺ نه د صبا په مانځه كښې د دويم ركعت د ركوع نه سر پورته كولو په وخت كښې اوريدلى وو.چه دوى فرمائيل.«اللهم العن فلاناً وفلاناً وفلاناً» دا خيرې به نبى ﷺ د «سمع الله لمن حمده» نه پس كولې.نو په دې باندې د ﴿لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ﴾ نه تر ﴿فَإِنَّهُمْ ظَٰلِمُونَ﴾ پورې آيت نازل شو.

امام بخارى رحمه الله ددې نه پس هم په دې طريق سره د «حنظله بن ابى سفيان» نه نقل كوى.چه دا خيرې نبى ﷺ د صفوان بن اميه،سهيل بن عمرو اوحارث بن هشام په حق كښې كړې وې. ځكه چه دا د قريشو سرداران وو.اوددوى په مشرئ كښې مسلمانانوته نقصان رسيدلې وو.

دا درې واړه حضرات د فتح مكه په موقع باندې مسلمانان شوى وو.چونكه د دوى په قسمت كښې اسلام وو.ددې وجې الله تعالى خپل نبى ﷺ د خيرو كولونه منع كړو.[3]

بهرحال ددې آيت په شان نزول كښې مختلف اقوال دى.خو راجح هم دا دې. چه واقعه داحد ددې آيت د نزول سبب دې.[4] والله اعلم

---

[1] )عمدة القاى ر(۱۷\۱۵۵)_
[2] )عمدة القارى (۱۷\۱۵۵)_
[3] )فتح البارى(۷\۳۶۶)_
[4] )ايضاً)_

# ۷ = باب ذكر أم سليط

[۳۸۴۳] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ وَقَالَ ثَعْلَبَةُ بْنُ أَبِي مَالِكٍ إِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَسَمَ مُرُوطًا بَيْنَ نِسَاءٍ مِنْ نِسَاءِ أَهْلِ الْمَدِينَةِ فَبَقِيَ مِنْهَا مِرْطٌ جَيِّدٌ فَقَالَ لَهُ بَعْضُ مَنْ عِنْدَهُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَعْطِ هَذَا بِنْتَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي عِنْدَكَ يُرِيدُونَ أُمَّ كُلْثُومٍ بِنْتَ عَلِيٍّ فَقَالَ عُمَرُ أُمُّ سَلِيطٍ أَحَقُّ بِهِ وَأُمُّ سَلِيطٍ مِنْ نِسَاءِ الْأَنْصَارِ مِمَّنْ بَايَعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُمَرُ فَإِنَّهَا كَانَتْ تُزْفِرُ لَنَا الْقِرَبَ يَوْمَ أُحُدٍ [ر: ۲۷۲۵]

حضرت عمر رضي الله عنه د مديني منورې په ښځوباندې څادرونه تقسیم کړل.یو ښه څادر باقي پاتې شو.نودحضرت عمر رضي الله عنه سره نزدې یو سړي ناست وو.هغه اووئیل .امیرالمومنین دا څادر بنت رسول صلی الله علیه وسلم ته ورکړئ.کومه چه ستاسوپه نکاح کښې ده.د بنت رسول صلی الله علیه وسلم نه د هغه کس مراد د نبی صلی الله علیه وسلم نمسئ وه.یعنی د حضرت علی رضي الله عنه لور ،،ام کلثوم،، کوه چه دحضرت عمر رضي الله عنه په نکاح کښې وه.حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائیل .ام سلیط ددې څادرزیاته حقداره ده. مروط: (بضمتین) د ،،مرط،،(بکسرالمیم) جمع ده.د سوت یا ریښمو څادرته وائی.

**قوله**: <u>فَإِنَّهَا كَانَتْ تُزْفِرُ لَنَا الْقِرَبَ يَوْمَ أُحُدٍ</u>: ځکه چه دې به په احد کښې زمونږ دپاره مشکونه راوړل.

د ،،تزفر،،معنی ده.څه څیز په شا باندې اوچتول.بعضې حضراتو وئیلی دی.چه ،،تزفر،، د ،،تخیط،، په معنی کښې دې.یعنی ام سلیط رضي الله عنها به داحد په ورځ شلیدلی مشکونه ګنډل.[1]

**حضرت ام سلیط رضی الله عنها** : دا دحضرت ابوسعید رضي الله عنه مور وه.ددوی اولنې خاوند حضرت ابوسلیط وفات شو.دوی بیا دمالك بن سنان رضي الله عنه سره نکاح اوکړه.اود هغوی نه ورله الله تعالی حضرت ابوسعیدخدری رضي الله عنه ورکړو.دوی ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دبیعت او په جنګ احد کښې د شرکت شرف حاصل دي.[2]

**د روافضو خبث باطن**: هم په دې روایت کښې دی.چه دحضرت علی رضي الله عنه لور د حضرت عمر رضي الله عنه په عقد نکاح کښې وه.دا ددې خبرې ډیر لوې دلیل دې.چه حضرت علی رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه نه بیخی خفه نه وو.اوددوی په مینځ کښې دومره ښه تعلقات وو.چه حضرت علی رضي الله عنه خپله لور دوی ته په نکاح کړې وه.چه دا ښه تعلق ئې اولیدلو.نو روافض لمبه شول.اوهغوی وئیل شروع،کړو.چه دحضرت علی رضي الله عنه دا لور دحضرت فاطمې رضي الله عنها د خیټې نه نه وه.بیوقوف دا نه ګوری.چه دا دحضرت فاطمې رضي الله عنها د بطن نه نه وه.نوبیا په

---

[1] )عمدة القاری(۱۷\۱۵۷)_

[2] )فتح الباری(۷\۳٦۷)_

روایت کښې دې ته ،،بنت رسول،، ولې وائی. دوی ته بنت رسول خو هم ددې وجې وائی.چه هغه د حضرت فاطمې رضی الله عنها د بطن نه وه.بعضې روافض دا هم وائی.چه ،،ام کلثوم،، دحضرت علی رضی الله عنه سره پرورش بیاموندې وو.خود دوی لور نه وه.دبنت علی رضی الله عنه ونیلو سره ددې خیال هم تردید اوشو.

کله چه روافضو اوکتل.چه د تیختې څه لارنشته.نووې وئیل.چه حضرت عمر رضی الله عنه په زرو دحضرت علی رضی الله عنه نه دا لور اخستې وه.،،أول فرج غصب منا،، الفاظ دې بدبختانو استعمال کړې دی.(۱) هغوی ته څه بل تعبیر هم ملاؤ نشو.اوددې مسئلې دپاره هغوی دا مکروه ترین عنوان اختیار کړو.

سوال دا دې.چه یومعمولی غوندې سړې چه دهغه دیانت او شرافت خاص طورقابل ذکر نه وی.که د داسې کس لور څوک په زور سره واخلی.نوهغه د ژوند پرواه نه کوی.اوشریعت هم هغه ته دخپلې لور د حفاظت دپاره د ځان قربانولو اجازت ورکړې دې.نوحضرت علی رضی الله عنه چه دهغوی دیانت او شرافت ډیر اوچت دې. اودچا طاقت قوت او بهادری چه منلې شوې ده.دهغه لور غصب کولې شی. او د حضرت عمر رضی الله عنه نه دهغې بچې پیدا کیږی.خوحضرت علی رضی الله عنه په دې باندې څه احتجاج نه کوی.که د روافضو دا خبره اومنلې شی.نوپه دې سره دحضرت علی رضی الله عنه معاذالله بزدلی ثابتیږی.چه ئې وئیلی دی.نو په دې وینا روافض دحضرت علی رضی الله عنه په شان کښې د ډیرې سختې گستاخئ مرتکب شوی دی.اوددې باوجود د ،،مولی علی،، دمحبت دعوې کوی.دا ټول ددوی فریب اودهوکه ده.

## ۸=بَاب قَتْلِ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

[۳۸۴۴]حَدَّثَنِي أَبُو جَعْفَرٍ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا حُجَيْنُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْفَضْلِ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيِّ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ فَلَمَّا قَدِمْنَا حِمْصَ قَالَ لِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَدِيٍّ هَلْ لَكَ فِي وَحْشِيٍّ نَسْأَلُهُ عَنْ قَتْلِ حَمْزَةَ قُلْتُ نَعَمْ وَكَانَ وَحْشِيٌّ يَسْكُنُ حِمْصَ فَسَأَلْنَا عَنْهُ فَقِيلَ لَنَا هُوَ ذَاكَ فِي ظِلِّ قَصْرِهِ كَأَنَّهُ حَمِيتٌ قَالَ فَجِئْنَا حَتَّى وَقَفْنَا عَلَيْهِ بِيَسِيرٍ فَسَلَّمْنَا فَرَدَّ السَّلَامَ قَالَ وَعُبَيْدُ اللَّهِ مُعْتَجِرٌ بِعِمَامَتِهِ مَا يَرَى وَحْشِيٌّ إِلَّا عَيْنَيْهِ وَرِجْلَيْهِ فَقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ يَا وَحْشِيُّ أَتَعْرِفُنِي قَالَ فَنَظَرَ إِلَيْهِ ثُمَّ قَالَ لَا وَاللَّهِ إِلَّا أَنِّي أَعْلَمُ أَنَّ عَدِيَّ بْنَ الْخِيَارِ تَزَوَّجَ امْرَأَةً يُقَالُ لَهَا أُمُّ قِتَالٍ بِنْتُ أَبِي الْعِيصِ فَوَلَدَتْ لَهُ غُلَامًا بِمَكَّةَ فَكُنْتُ أَسْتَرْضِعُ لَهُ فَحَمَلْتُ ذَلِكَ الْغُلَامَ مَعَ أُمِّهِ فَنَاوَلْتُهَا إِيَّاهُ فَلَكَأَنِّي نَظَرْتُ إِلَى قَدَمَيْكَ قَالَ فَكَشَفَ عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ وَجْهِهِ ثُمَّ قَالَ أَلَا تُخْبِرُنَا بِقَتْلِ حَمْزَةَ قَالَ نَعَمْ إِنَّ حَمْزَةَ قَتَلَ طُعَيْمَةَ بْنَ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ بِبَدْرٍ فَقَالَ لِي مَوْلَايَ جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ إِنْ قَتَلْتَ حَمْزَةَ بِعَمِّي فَأَنْتَ حُرٌّ قَالَ

(۱) دشیعیت کی اصلی روپ (ص، ۲۷۶) په حواله د ،،فروع کافی،، (۵/۱٤٤) طبع تهران)

فَلَمَّا أَنْ خَرَجَ النَّاسُ عَامَ عَيْنَيْنِ وَعَيْنَيْنِ جَبَلٌ بِحِيَالِ أُحُدٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ وَادٍ خَرَجْتُ مَعَ النَّاسِ إِلَى الْقِتَالِ فَلَمَّا أَنِ اصْطَفُّوا لِلْقِتَالِ خَرَجَ سِبَاعٌ فَقَالَ هَلْ مِنْ مُبَارِزٍ قَالَ فَخَرَجَ إِلَيْهِ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ يَا سِبَاعُ يَا ابْنَ أُمِّ أَنْمَارٍ مُقَطِّعَةِ الْبُظُورِ أَتُحَادُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثُمَّ شَدَّ عَلَيْهِ فَكَانَ كَأَمْسِ الذَّاهِبِ قَالَ وَكَمَنْتُ لِحَمْزَةَ تَحْتَ صَخْرَةٍ فَلَمَّا دَنَا مِنِّي رَمَيْتُهُ بِحَرْبَتِي فَأَضَعُهَا فِي ثُنَّتِهِ حَتَّى خَرَجَتْ مِنْ بَيْنِ وَرِكَيْهِ قَالَ فَكَانَ ذَاكَ الْعَهْدَ بِهِ فَلَمَّا رَجَعَ النَّاسُ رَجَعْتُ مَعَهُمْ فَأَقَمْتُ بِمَكَّةَ حَتَّى فَشَا فِيهَا الْإِسْلَامُ ثُمَّ خَرَجْتُ إِلَى الطَّائِفِ فَأَرْسَلُوا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَسُولًا فَقِيلَ لِي إِنَّهُ لَا يَهِيجُ الرُّسُلَ قَالَ فَخَرَجْتُ مَعَهُمْ حَتَّى قَدِمْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَآنِي قَالَ آنْتَ وَحْشِيٌّ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ أَنْتَ قَتَلْتَ حَمْزَةَ قُلْتُ قَدْ كَانَ مِنَ الْأَمْرِ مَا بَلَغَكَ قَالَ فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تُغَيِّبَ وَجْهَكَ عَنِّي قَالَ فَخَرَجْتُ فَلَمَّا قُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ مُسَيْلِمَةُ الْكَذَّابُ قُلْتُ لَأَخْرُجَنَّ إِلَى مُسَيْلِمَةَ لَعَلِّي أَقْتُلُهُ فَأُكَافِئَ بِهِ حَمْزَةَ قَالَ فَخَرَجْتُ مَعَ النَّاسِ فَكَانَ مِنْ أَمْرِهِ مَا كَانَ قَالَ فَإِذَا رَجُلٌ قَائِمٌ فِي ثَلْمَةِ جِدَارٍ كَأَنَّهُ جَمَلٌ أَوْرَقُ ثَائِرُ الرَّأْسِ قَالَ فَرَمَيْتُهُ بِحَرْبَتِي فَأَضَعُهَا بَيْنَ ثَدْيَيْهِ حَتَّى خَرَجَتْ مِنْ بَيْنِ كَتِفَيْهِ قَالَ وَوَثَبَ إِلَيْهِ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَضَرَبَهُ بِالسَّيْفِ عَلَى هَامَتِهِ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْفَضْلِ فَأَخْبَرَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ يَقُولُ فَقَالَتْ جَارِيَةٌ عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ وَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ قَتَلَهُ الْعَبْدُ الْأَسْوَدُ

حضرت جعفربن عمروبن امیه ضمری فرمائی.چه زه عبیدالله بن عدی بن الخیارسره د سفر دپاره اووتم.کله چه مونږ د شام ښار ،،حمص،، ته اورسیدو.نو عبیدالله بن عدی ماته اووئیل.چه ستا د وحشی سره د ملاقات شوق شته.چه دهغه سره ملاؤ شې.اودحضرت حمزه رضی الله عنه د قتل متعلق ترې تپوس اوکړې.(چه هغوی د حضرت حمزه رضی الله عنه غوندې بهادرکس څنګه قتل کړې وو) ما ورته اووئیل.ټیک ده. (هغه ته ورغلو) حضرت وحشی رضی الله عنه په حمص کښې استوګنه کوله.مونږ دهغه په باره کښې تپوس اوکړو.(چه هغه چرته دې) نومونږ ته اوخودلې شو.چه

**قوله**: <u>هُوَ ذَاكَ فِي ظِلِّ قَصْرِهِ كَأَنَّهُ حَمِيتٌ</u>: هغه هلته دخپل محل په سوری کښې موجود دې.(کله چه مونږ اوکتل. نو داسې معلومیده.) لکه چه هغه ډک شوې مشک وی.(چه په د پاسه ویخته وغیره نه وی. او د تور رنګ وی.حضرت وحشی رضی الله عنه هم دغه شان غټ اوتور وو)

((حمیت)) د رغیف په وز باندې ډك شوی غټ مشك ته وائی.

حضرت جعفر وائی.چه بیا مونږ هغه ته ورغلو.او لږ ساعت هغه سره ولاړ وو. بیا ورته مونږ سلام اوکړو.او هغوی د سلام جواب راکړو.

**قوله**: قَالَ وَعُبَيْدُ اللّٰهِ مُعْتَجِرٌ بِعِمَامَتِهِ مَا يَرَى وَحْشِيٌّ إِلَّا عَيْنَيْهِ وَرِجْلَيْهِ: حضرت جعفر وائي.چه عبيدالله خپل پټکې داسې تاؤ کړې وو.چه وحشي صرف دهغه سترګګ او پښې ليدې شوې.

د «معتجر» معنى ده رانښتلو ده.يعنى عبيدالله په سر او مخ دواړو باندې پټکې راتاؤ کړې وو.صرف د دوى سترګې ښکاريدې.او پښې ئې ښکاريدې.باقى ټول بدن ئې په جامو کښې پټ وو.عبيدالله تپوس اوکړ،. جناب وحشى صاحب آيا تاسو ما پيژنئ؟

حضرت وحشي رضي الله عنه ده طرف ته اوکتل.او وې وئيل.په الله قسم نور خو ستا په باره کښې څه نه پيژنم.البته دومره خبره زما په علم کښې شته.چه عدى بن الخيار د يوې ښځې سره واده کړې وو.چا ته چه «أم القتال بنت أبي العيص» وئيلې شو.د هغه ښځې نه د عدى په مکه کښې يو بچې پيدا شوې وو.ما دهغه ماشوم دپاره د مرضعې لټون کړې و،.هغه ماشوم ما اوچت کړې وو.او دهغه (مرضعه) مور ته مې بوتلې وو.اوس چه زه ستا دا قدمونه وينم.ماته دا محسوسيږى.چه دا دهغه ماشوم قدمونه دى.

ددې نه پس عبيدالله د مخ نه څادر لرې کړو،او هغوى ته ئې اووئيل.تاسو به ماته اوښائې. چه تاسو حضرت حمزه رضي الله عنه څنګه قتل کړې وو؟

وحشى رضي الله عنه اووئيل.آو.ددې قصه دا ده.چه حضرت حمزه طعيمه بن عدى بن الخيارقتل کړې وو،([1]) نو زما مالك مولى جبيربن مطعم ماته اووئيل.که تا زما د ترهٔ په بدله کښې حمزه قتل کړو.نوته به آزاد ئې.

**قوله**: فَلَمَّا أَنْ خَرَجَ النَّاسُ عَامَ عَيْنَيْنِ وَعَيْنَيْنِ جَبَلٌ بِحِيَالِ (۲) أُحُدٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ وَادٍ: وحشى اووئيل.بيا کله چه خلق د عينين په کال د جنګګ دپاره اووتل.اوعينين احد ته مخامخ يو غر دې.د دواړو په مينځ کښې يوه وادى حائل ده.

(چونکه مشرکانو په جنګګ احد کښې د جبل عينين په لمن کښې ډيره اچولې وه. ددې وجې د مشرکانو په نيزددې نوم جنګګ عينين مشهور وو.وحشى رضي الله عنه چونکه په دغه وخت کښې دمشرکانودطرفه په جنګګ کښې شريك شوې وو.ددې وجې هغوى د احد کال ته ،،عام عينين،، وئيل.

کله چه خلقو د جنګګ دپهر صفونه جوړ کړل.نو دقريشو د طرفه سباع بن عبد العزى راووتل. هغه د «هل من مبارز؟» نعره اولګوله. د هغه په مقابله کښې حضرت حمزه رضي الله عنه

---

[1] )قوله طعيمة بن عدى بن الخيار وهو وهم والصحيح ط عيمة بن عدى بن نوفل وإلا لا يصح قوله بعد ذلك إن قتلت حمزة بعمى، لأګ طعيمة إن كان ابن عدى بن الخيار كان ابن أخيه لا عمه فافهم والنظرلامع الدرارى (۳۰۵/۸)_

[2] )قوله وعينين جبل بحيال أحد أى من ناحية أحد يقال فلان بحيال كذا (بكسر الحاء المهملة وتخفيف الياء ) أى بمقابله وانظر عمدة القارى (۱۵۹/۱۷)_

راووتلو. او وې وئيل.

**قوله**: يَا سِبَاعُ يَا ابْنَ أُمِّ أَنْمَارٍ مُقَطِّعَةِ الْبُظُورِ (۱) أَتُحَادُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اې سباع! اې د ام انمار بچيه،چه د خلقو ختنه كونكې وه.ته الله اودهغه د رسول سره د جنګ دپاره راغلې ئې.

بيا حضرت حمزه رضي الله عنه په هغه باندې حمله اوكړه.اوهغه د تير شوى صبا پشان نيست او نابود شو. وحشي وائى.چه زه حضرت حمزه رضي الله عنه ته په انتظار كښې د يو غټ ګټ لاندې پټ ووم.كله چه هغه زما خوا ته تيريدو.نو ما هغه په خپله نيزه باندې اووهلو .اوهغه نيزه د هغه د شا نه اووتله.اوهم د هغې نه هغه شهيد شو.

بيا چه كله خلق واپس شو.نو زه هم دخلقو سره واپس شوم.زه هم په مكه كښې مقيم وو.تردې چه هلته اسلام خور شو.نو زه د مكې نه اووتم.او طائف ته لاړم.د طائف خلقو (داسلام قبلولودپاره) نبى ﷺ ته د وفد ليږلو اراده اوكړه.نوماته چا اووئيل.چه نبى ﷺ قاصدانوته نه غصه كيږى.(ته هم لاړ شه.اواسلام قبول كړه) نو ددغه وفد سره زه هم لاړم.د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضرشوم.كله چه نبى ﷺ زه اوليدم.نو ماته ئې اووئيل.ته وحشي ئې؟ ماورته عرض اوكړو.آو.نبى ﷺ راته اوفرمائيل.آياتا حمزه رضي الله عنه قتل كړې وو؟ ما ورته اووئيل. آو. څنګه چه تاسو ته خبر دررسيدلې دې.هم دغه شان شوى وو.(۲) (يعنى دحضرت حمزه رضي الله عنه دشهادت په باره كښې چه تاسو ته كوم خبر دررسيدلې دې.چه وحشي هغه قتل كړې دې.نودغه خبر صحيح دې.)

نبى ﷺ اوفرمائيل.آيا ته داسې كولې شې.چه خپل شكل زما نه پټ ساتې. (اوماته نه مخامخ كيږې)

نبى ﷺ دحضرت وحشي رضي الله عنه اسلام قبول كړو.او ((الإسلام يهدم ما كان قبله)) يعنى په اسلام سره سابقه ګناهونه معاف كيږى.خوددې باوجود نبى ﷺ وحشي رضي الله عنه ته اوفرمائيل.كه كيدې شى.نوزما مخكښې مه راځه.په دې كښې په يو لحاظ سره د شفقت اړخ وو.كه وحشي رضي الله عنه نبى ﷺ ته مخامخ راتلو.نو نبى ﷺ ته به د خپل تره د قتل واقعه وريادېده.اوپه دې باندې به د نبى ﷺ په زړه كښې د بشريت د تقاضا مطابق دوحشي دپاره انقباض پيدا كيدو.اود يوكس دپاره د نبى ﷺ په زړه كښې انقباض پيدا كيدل دهغه كس دپاره د نقصان سبب جوړيدې شى.ددې وجې نبى ﷺ هغ ته اووئيل.چه زما مخې ته مه راځه.څكه چه په دې كښې هم دهغه فائده وه. (۳)

---

۱ )البظور: جمع بظر وهى اللحمة التى يقطع من فرج المرأة عند الختان قال ابن اسحاق كانت أمه ختانة بمكة تختن النساء والعرب تطلق هذا اللفظ فى معرض الذم (فتح البارى(۳۶۹/۷)_

۲ )دحضرت وحشي بلاغت او ادب ته اوګورئ.دا ئې ورته اونه وئيل.چه آو ما قتل كړې وو.بلكه ذكر شوې تعبيرئې اختياركړو.دې دپاره چه د نبى ﷺ زړه نور خفه نشى)_

۳ ) اوګورئ لامع الدرارى (۲۰۷/۸)

حضرت وحشى رضي الله عنه وائى.چه زه د هغه ځاى نه لاړم.كله چه نبى ﷺ وفات شو.نو مسيلمه كذاب فتنه (د دعوى د نبوت) شروع كړه(هسې خو ده د نبوت دعوه د نبى ﷺ په ژوند كښې كړې وه.خو په هغه وخت كښې د ده څه اثراو رسوخ نه وو.د نبى ﷺ په وفات باندې دهغه په اثر او رسوخوكښې زيادت اوشو.) حضرت وحشى رضي الله عنه فرمائى.ما په خپل زړه كښې اووئيل. چه زه د مسيلمه د مقابلې دپاره ځم.كيدې شى.چه زه هغه قتل كړم.او دحضرت حمزه رضي الله عنه د قتل تدارك اوكړم.(حضرت حمزه رضي الله عنه د الله تعالى په مخلصو بندګانوكښې اوچته مرتبه لرله. نو دهغوى دقتل د تدارك دپاره ضرورى وه.چه څوك لوې كافرقتل كړې شى.اود مسيلمه كذاب نه لوې كافربل څوك كيدې شو.ددې وجې د هغوى خواهش پيدا شو.چه مسيلمه كذاب قتل كړى.) نو زه دخلقو سره شوم.(اود مسيلمه د مقابلې دپاره اووتم) ناڅاپه ما اوكتل.چه يوسړې د ديوال په چوند كښې ولاړ دې.

**قوله**: كَأَنَّهُ جَمَلٌ أَوْرَقُ ثَائِرُ الرَّأْسِ: لكه چه د خاكى رنګ اوښ دې.دسر ويخته ئې خواره وو.(دا مسيلمه كذاب وو) حضرت وحشى رضي الله عنه وائى.چه ما دهغه د دواړو سينو د مينځ نښه مې واخستله .اوهغه طرف ته مې خپله نيزه اوويشتله.اوهغه نيز دهغه د دواړو اوږو په مينځ كښې ورخخه شوه.او اووتله.(ښكاره ده.چه ددې په وجه به هغه غوزيدلى وى) په دې كښې يو انصارى هغه طرف ته ورټوپ كړې.اوبه توره باندې ئې دهغه كپرئ اووهله.اوهغه ئې ختم كړو.

(دمسيلمه كذاب واقعه وړاندې د وفودو په بيان كښې راځى) نو يوه جينئ په چت باندې ولاړه وه. هغې اووئيل.اميرالمومنين يو حبشى غلام قتل كړو.

„اميرالمومنين،، مسيلمه كذاب ته وئيلې شو.مسيلمه خپل ځان ته نبى او رسول وئيل. اواميرالمومنين هم وئيل.

## ۹=بَاب مَا أَصَابَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ الْجِرَاحِ يَوْمَ أُحُدٍ

په جنګ احد كښې چه نبى ﷺ ته كوم زخمونه رسيدلى وو.د هغې بيان په دې باب كښې كيږى.

[۳۸۳۵] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَدَّ غَضَبُ اللَّهِ عَلَى قَوْمٍ فَعَلُوا بِنَبِيِّهِ يُشِيرُ إِلَى رَبَاعِيَتِهِ اشْتَدَّ غَضَبُ اللَّهِ عَلَى رَجُلٍ يَقْتُلُهُ رَسُولُ اللَّهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

[۳۸۳۶] حَدَّثَنِي مَخْلَدُ بْنُ مَالِكٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأُمَوِيُّ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ اشْتَدَّ غَضَبُ اللَّهِ عَلَى مَنْ قَتَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ اشْتَدَّ غَضَبُ اللَّهِ عَلَى قَوْمٍ دَمَّوْا وَجْهَ نَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:۳۸۴۸]

**قوله**: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ: ددې باب اولنې روايت دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه مرى دې.دوى فرمائى.چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى.د الله تعالى سخت

غضب دې وي.په هغه قوم باندې چا چه دخپل نبى سره دا كار اوكړو.دوى اشاره كوله خپل رباعى غاښونو طرف ته ،(يعنى كومو كسانو چه غاښونه شهيدان كړل.دالله تعالى سخت غضب دې وي-په هغوى باندې) دا ترجمه په هغه صورت كښې ده.كله چه دا جمله خبرى اوګنړلې شى.اوكه دا جمله خبريه شى.نوبيا به ترجمه داسې وى.دالله تعالى غضب سخت وى.په هغه كسانوڅوك چه دخپل پيغمبر سره داسې معامله اوكړى.اوپه هغه كس باندې چا لره چه د الله تعالى نبى ﷺ په جهاد كښې قتل كړى.په ماقبل كښې د ابى بن خلف د قتل ذكر په تفصيل سره تيرشوې دې.

دلته په روايت كښې د«فى سبيل الله» قيد ياد ساتئ.كه دالله تعالى رسول څوك په قصاص يا حد كښې قتل كړى.نو د هغې حكم دا نه دې،دا حكم د هغه كس په باره كښې دې.څوك چه په جهاد كښې دالله تعالى د رسول د مقابلې دپاره مخامخ راشى.يعنى د الله تعالى رسول قتلول غواړى.نو د الله تعالى رسول چه كله هغه قتل كړى.په هغه باندې د الله تعالى غصه زياته وى.

**قوله**: حَدَّثَنِي مَخْلَدُ بْنُ مَالِكٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأُمَوِيُّ: يويحيى بن سعيد انصارى ﷺ مراد نه دې.خكه ئې د ،،اموى،، قيد لګولې دې.د بنو اميه تعلق د مكې سره وو.نو څكه دې انصارى نشى كيدې.دا روايت دحضرت ابن عباس ﷺ نه مروى دې.دوى فرمائى.چه دالله تعالى غصه زياته وى.په هغه كس باندې چا لره چه د الله تعالى نبى په جهاد كښې قتل كړى.اودالله تعالى غضب به هغه قوم باندې زيات وى.څوك چه دخپل پيغمبر مخ د وينې نه رنګ كړى.

د دې باب دواړه روايتونه په مراسيل صحابه كښې داخل دى.اولنى روايت د حضرت ابوهريره ﷺ نه دې.او دويم روايت دحضرت ابن عباس ﷺ نه دې. اوښكاره ده.چه دا دواړه حضرات په غزوه احد كښې شريك شوى نه وو.ددې وجې ونيلى شى.چه دوى د نورو صحابوﷺ نه دا اوريدلى دى.اګرچه دا احتمال پاتې كيږى.چه په څه موقع باندې نبى ﷺ د دوى مخامخ هم ددې ذكر كړې وى.نوپه دغه صورت كښې به روايت مرسل نه وى.

[٣٨٤٧] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ عَنْ أَبِي حَازِمٍ أَنَّهُ سَمِعَ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ وَهُوَ يُسْأَلُ عَنْ جُرْحِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَمَا وَاللَّهِ إِنِّي لَأَعْرِفُ مَنْ كَانَ يَغْسِلُ جُرْحَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ كَانَ يَسْكُبُ الْمَاءَ وَبِمَا دُووِيَ قَالَ كَانَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَام بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَغْسِلُهُ وَعَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ يَسْكُبُ الْمَاءَ بِالْمِجَنِّ فَلَمَّا رَأَتْ فَاطِمَةُ أَنَّ الْمَاءَ لَا يَزِيدُ الدَّمَ إِلَّا كَثْرَةً أَخَذَتْ قِطْعَةً مِنْ حَصِيرٍ فَأَحْرَقَتْهَا وَأَلْصَقَتْهَا فَاسْتَمْسَكَ الدَّمُ وَكُسِرَتْ رَبَاعِيَتُهُ يَوْمَئِذٍ وَجُرِحَ وَجْهُهُ وَكُسِرَتْ الْبَيْضَةُ عَلَى رَأْسِهِ [ر:٢٤٠]

[٣٨٤٨] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اشْتَدَّ غَضَبُ اللَّهِ عَلَى مَنْ قَتَلَهُ نَبِيٌّ وَاشْتَدَّ غَضَبُ اللَّهِ عَلَى

مَنْ دَمِي وَجْهَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۳۸۴۶]

**دحضرت شيخ الهند رحمه الله استدلال:**

**قوله**: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ.....: په دې روايت کښې دي. چه کله په جنګ احد کښې د نبي ﷺ مخ مبارك زخمي شو.نو د نبي ﷺ لور حضرت فاطمې رضي الله عنها ورته مخ وينځل.او حضرت علي رضي الله عنه به د ډول نه اوبه اچولولې.خوچه وينې په خپځ صورت نه بنديده.نو حضرت فاطمې رضي الله عنها د پوزکی ټکړه اوسوزوله.اوکله چه ئې دهغې ايره په زخم باندې اولګولو.نووينه بنده شوه.حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائي.چه ددې روايت نه دا معلوميږي.چه د «مس امرأة» ناقض د اودس نه دی.ځکه چه دا خوظاهره ده.چه دجهاد پشان مقدسه فريضه به نبي ﷺ په اودس کښې کوله.نوکه «مس امرأة» د اودس ماتونکې وو.نونبي ﷺ به حضرت فاطمې نه د اوبو اچولو کاراخستلو.اود زخمونو وينځول کاربه حضرت علي رضي الله عنه کولو.

پاتې شو دا اشکال چه د نبي ﷺ د مخ نه خو وينه بهيدله.اوخروج د دم ناقض د اودس دې.نو ددې جواب دا دې.چه دکومو حضراتو په نيز «مس امرأة» د اودس ماتونکې ده.د هغوی په نيز په خروج د دم سره اودس نه ماتيږي.ددې حديث نه صرف په دې باندې دليل قائمول مقصود دی.دخپل مسلك اثبات مقصود نه دې.

## ۱۰- باب ﴿الَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِلّٰهِ وَالرَّسُولِ﴾ [1]

[۳۸۴۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا الَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِلّٰهِ وَالرَّسُولِ مِنْ بَعْدِ مَا أَصَابَهُمُ الْقَرْحُ لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا أَجْرٌ عَظِيمٌ قَالَتْ لِعُرْوَةَ يَا ابْنَ أُخْتِي كَانَ أَبَوَاكَ مِنْهُمُ الزُّبَيْرُ وَأَبُو بَكْرٍ لَمَّا أَصَابَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَصَابَ يَوْمَ أُحُدٍ وَانْصَرَفَ عَنْهُ الْمُشْرِكُونَ خَافَ أَنْ يَرْجِعُوا قَالَ مَنْ يَذْهَبُ فِي إِثْرِهِمْ فَانْتَدَبَ مِنْهُمْ سَبْعُونَ رَجُلًا قَالَ كَانَ فِيهِمْ أَبُو بَكْرٍ وَالزُّبَيْرُ

حضرت عروه دحضرت عائشې رضي الله عنها نه نقل کوی.چه هغوی فرمائيلي دی.﴿الَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِلّٰهِ وَالرَّسُولِ مِنْ بَعْدِ مَا أَصَابَهُمُ الْقَرْحُ لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا أَجْرٌ عَظِيمٌ﴾ کومو کسانو چه د الله اودهغه درسول په قول باندې لبيك اووئيل ددې نه پس چه هغوی ته زخمونه رسيدلي وو.په دوی کښې چه څوك نيکان اومتقيان دي.د هغوی دپاره لوی اجر دی.حضرت عائشې رضي الله عنها حضرت عروه ته اووئيل.ستا پلا رزبير رضي الله عنه (اوستا نيکه) حضرت ابوبکر د اجرعظيم په دې مستحقينوکښې دی.

کله چه نبي ﷺ داحد په ورځ تکليف برداشت کړل.اومشرکان واپس لاړل.نو نبي ﷺ ته ويره شوه.چه مشرکان چرته واپس رانشي.او افواه هم خوره شوې وه.چه مشرکان واپس راځی.او

[1] آل عمران: ۱۷۲)_

دوباره حمله كوى.ددې وجې نبي ﷺ اعلان اوكړو.«من يذهب لى أثرهم» څوك به دهغوى په تعاقب كښې لاړ شي؟ په دغه وخت كښې اويا كسانو لبيك اووئيل.په دغه اويا كسانو كښې حضرت ابوبكراو حضرت زبير رضي الله عنهما هم وو.(١)

## باب مَنْ قُتِلَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَوْمَ أُحُدٍ

مِنْهُمْ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَالْيَمَانُ وَأَنَسُ بْنُ النَّضْرِ وَمُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ

په جنګ احد كښې چه كوم مسلمانان شهيدان شوى وو.دا باب د هغوى په بيان كښې دې.

[۳۸۵۰] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ قَتَادَةَ قَالَ مَا نَعْلَمُ حَيًّا مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ أَكْثَرَ شَهِيدًا أَعَزَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ قَتَادَةُ وَحَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّهُ قُتِلَ مِنْهُمْ يَوْمَ أُحُدٍ سَبْعُونَ وَيَوْمَ بِئْرِ مَعُونَةَ سَبْعُونَ وَيَوْمَ الْيَمَامَةِ سَبْعُونَ قَالَ وَكَانَ بِئْرُ مَعُونَةَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَوْمُ الْيَمَامَةِ عَلَى عَهْدِ أَبِي بَكْرٍ يَوْمَ مُسَيْلِمَةَ الْكَذَّابِ

[۳۸۵۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلَى أُحُدٍ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ ثُمَّ يَقُولُ أَيُّهُمْ أَكْثَرُ أَخْذًا لِلْقُرْآنِ فَإِذَا أُشِيرَ لَهُ إِلَى أَحَدٍ قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ وَقَالَ أَنَا شَهِيدٌ عَلَى هَؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَمَرَ بِدَفْنِهِمْ بِدِمَائِهِمْ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ وَلَمْ يُغَسَّلُوا [ر:۱۲۷۸]

[۳۸۵۲] وَقَالَ أَبُو الْوَلِيدِ عَنْ شُعْبَةَ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ لَمَّا قُتِلَ أَبِي جَعَلْتُ أَبْكِي وَأَكْشِفُ الثَّوْبَ عَنْ وَجْهِهِ فَجَعَلَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

---

(١) مورخينو او سيرت نګارو دا يوه مستقله غزوه ،،حمراء الاسد،، په نوم باندې ذكركړې ده.د كافرو لښكركله چه د احد نه روان شو.او مقام روحاء ته اورسيدل.نوابوسفيان وغيره ته خيال راغلو. چه كار پوره اونشو.په مدينه باندې حمله كول پكار دى.چه د مسلمانانو پاتې شوې طاقت هم ختم كړې شي.بل طرف ته رسول الله ﷺ ته د وراندې نه ويره وه. نو نبى ﷺ اعلان اوكړو.چه به كافرانو پسې وتل دى.اوصرف هغه كسان دې لاړ شي.كوم چه پرون په احد كښې شريك وو.نو نبى ﷺ د ،،حمراء الاسد،، پورې كومه چه د مدينې منورې نه اووه ميله لرې دې. تشريف يوړو.خزاعه قبيله اګرچه هغوى تر هغه وخته پورې اسلام نه وو راوړې.خوبيا په پټه د مسلمانانوطرفداره وه.دهغوى سردار ،،معبدخزاعى،، چه د شكست خبر واوريدو.نو د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضر شو. غمراخى ئې اوكړه.او ددې ځاى نه لاړو. ابوسفيان سره ملاو شو. ابوسفيان په مسلمانانو باندې د دوباره حملې كولو اراده ښكاره كړه.معبدخزاعى ورته اووئيل.محمد ﷺ يو ډيرلوې لښكر راوران كړې دې.زما تا ته دا مشوره ده.چه واپس مكې ته نيغ لاړ شه.نوابوسفيان اراده پريخوده.اوواپس لاړلو.نبى ﷺ په حمراء الاسد كښې د ګل،نهې او چارشنبې درې ورځې ايسار وو.اوددې نه پس مدينې منورې ته ئې واپس تشريف يوړو.الكامل لابن عدى (١١٤١٢)_

وَسَلَّمَ يَنْهَوْنِي وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَنْهَهُ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَبْكِيهِ أَوْمَا تَبْكِيهِ مَا زَالَتِ الْمَلَائِكَةُ تُظِلُّهُ بِأَجْنِحَتِهَا حَتَّى رُفِعَ [ر:١١٨٧]

[٣٨٥٣] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ جَدِّهِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أُرَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَأَيْتُ فِي رُؤْيَايَ أَنِّي هَزَزْتُ سَيْفًا فَانْقَطَعَ صَدْرُهُ فَإِذَا هُوَ مَا أُصِيبَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ أُحُدٍ ثُمَّ هَزَزْتُهُ أُخْرَى فَعَادَ أَحْسَنَ مَا كَانَ فَإِذَا هُوَ مَا جَاءَ بِهِ اللَّهُ مِنَ الْفَتْحِ وَاجْتِمَاعِ الْمُؤْمِنِينَ وَرَأَيْتُ فِيهَا بَقَرًا وَاللَّهُ خَيْرٌ فَإِذَا هُمُ الْمُؤْمِنُونَ يَوْمَ أُحُدٍ [ر:٣٤٢٥]

[٣٨٥٤] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ شَقِيقٍ عَنْ خَبَّابٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ هَاجَرْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَبْتَغِي وَجْهَ اللَّهِ فَوَجَبَ أَجْرُنَا عَلَى اللَّهِ فَمِنَّا مَنْ مَضَى أَوْ ذَهَبَ لَمْ يَأْكُلْ مِنْ أَجْرِهِ شَيْئًا كَانَ مِنْهُمْ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ فَلَمْ يَتْرُكْ إِلَّا نَمِرَةً كُنَّا إِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَأْسَهُ خَرَجَتْ رِجْلَاهُ وَإِذَا غُطِّيَ بِهَا رِجْلَاهُ خَرَجَ رَأْسُهُ فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَطُّوا بِهَا رَأْسَهُ وَاجْعَلُوا عَلَى رِجْلَيْهِ الْإِذْخِرَ أَوْ قَالَ أَلْقُوا عَلَى رِجْلَيْهِ مِنَ الْإِذْخِرِ وَمِنَّا مَنْ أَيْنَعَتْ لَهُ ثَمَرَتُهُ فَهُوَ يَهْدِبُهَا [ر:١٢١٧]

**قوله**: حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ: حضرت قتاده رحمه الله فرمائي.چه مونږ ته علم نشته.چه د عربو په ټولو قبيلوکښې د شهيدانو په اعتبار سره د انصارو د تعداد نه زيات تعداد به دچا وي.اود قيامت په ورځ به د انصارو په مقابله کښې د زيات عزت خاوندان څوك وي.( انصاروچه د شهادت په صورت کښې کومې قربانيانې ورکړې دي.بل چا نه دي ورکړي.اوانصارچه به ددې شهادت په وجه د قيامت په ورځ څومره عزت حاصل کړي.دومره به بل څوك حاصل نکړې شي)

قتاده وائي.چه حضرت انس رضي الله عنه مونږ ته خودلي وو.چه د انصارونه په جنګ احد کښې ټول اويا کسان شهيدان شوي وو.(١) اوپه مهاجرينو صحابو رضي الله عنهم کښې ټول څلور يا د بل روايت مطابق شپږ کسان شهيدان شوي وو.او په بئر معونه کښې اويا انصاري شهيدان شوي وو.اوپه جنګ يمامه کښې هم اويا انصاري شهيدان شوي وو.بئر معونه د نبي صلى الله عليه وسلم په زمانه کښې شوې وه.اود يمامه واقعه د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه په دور کښې پيښه شوې وه.

(١)د احد د شهيدان په تعداد کښې د اصحاب سير مختلف روايات دي.مشهور روايت د (٧٠) دې. په کوم کښې چه د يو روايت مطابق مهاجرين څلور او باقي انصار وو.په مهاجرينوکښې حضرت حمزه رضي الله عنه حضرت مصعب بن عمير.حضرت عبدالله بن جحش، او حضرت شماس بن عثمان رضي الله عنه وو.البته د حاکم او ابن حبان په روايت کښې د مهاجرينو تعداد شپږ خودلې شوې دې.هغوی د دې څلورو سره حضرت سعد مولى حاطب بن ابي بلتعه او يوسف بن عمرو اسلمى هم زياتوى.داولنى روايت مطابق د انصار شهداؤ تعداد شپږ شپيته دى.اود دويم روايت په بناء د دوى تعداد څلور شپيته دى)-

**قوله**: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ: حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی. چه نبی کریم ﷺ به شهیدانو نه دوه دوه کسان په یوه جامه کښې جمع کول.اودوی به ئې په یو قبر کښې ښخول.او نبی ﷺ به تپوس کولو.په دوی کښې چاته زيات قرآن ياد وو؟ دچا طرف ته به چه اشاره اوشوه.هغه به ئې قبلې طرف ته مقدم کولو.او نبی ﷺ اوفرمائيل.زه ګواه يم.ددې خلقو په حق کښې د قيامت په ورځ ،اونبی ﷺ هغوی لره په وينوکښې د ښخولوحکم کړې وو.نه ئې ورته غسل ورکړې وو.اونه ئې پرې دجنازې مونځ کړې وو.

**قوله**: وَقَالَ أَبُو الْوَلِيدِ عَنْ شُعْبَةَ: دا روايت هم د حضرت جابر رضی الله عنه نه دې.دوی فرمائی.چه کله زما پلار په جنګ احد کښې شهيد شو.نو زه په ژړا شو.اودهغه د مخ نه مې څادر لرې کړو.د هغه ديدن مې کولو.نو د نبی ﷺ صحابو رضی الله عنهم زه منع کولم.(چه څادرمه اچتوه.اومه ئې ګوره) خو نبی ﷺ زه نه منع کولم.نبی ﷺ اوفرمائيل.

«لاتبکیه» که دا مضارع وی.نو وئيلې به شی.چه خبر په معنی د انشاء کښې دې.اوکه د نهی صيغه وی.نوبيا په خپل ظاهرباندې ده.خوپه دې صورت کښې به «لاتبکه» وی. ته په ده باندې ژړا کوې.فرشتو برابر په خپلو وزرو په ده باندې سيورې کړې وو.تردې چه جنازه ئې اوچته شوه.

**قوله**: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ: په دې روايت کښې دجنګ احد نه وړاندې دنبی ﷺ دخوب ذکردې.چه تفصيل ئې تيرشوې دې.البته په دې کښې يوه جمله ده.

**قوله**: وَرَأَيْتُ فِيهَا بَقَرًا وَاللَّهُ خَيْرٌ: ① يا خو ددې معنی ده.«وثواب الله خير» يعنی الله تعالی چه کوم اجرورکوی.لکه څنګه چه دې شهيدانوته ورکړې شو.هغه ډير ښه دې.

② اويا ئې معنی ده.«صنع الله بالشهداء خير» يعنی الله تعالی چه دوی سره کومه معامله اوکړه. هغه ډيره ښه ده.ددوی په دنيا کښې د ژوندی پاتې کيدوپه مقابله هغه معامله ډيره ښه ده.([1])

## ۱۴=بَاب أُحُدٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ قَالَهُ عَبَّاسُ بْنُ سَهْلٍ عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[۳۸۵۵/۳۸۵۶] حَدَّثَنِي نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ قُرَّةَ بْنِ خَالِدٍ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ أَنَسًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ

[۳۸۵۶] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلَعَ لَهُ أُحُدٌ فَقَالَ هَذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ

---

[1] )فتح الباری(۳۷۷\۷) وعمدة القاری (۱۶٤\۱۷)_

اللّٰهُمَّ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ حَرَّمَ مَكَّةَ وَإِنِّي حَرَّمْتُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا [ر:٢٤٣٢]

[٣٨٥٧] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمًا فَصَلَّى عَلَى أَهْلِ أُحُدٍ صَلَاتَهُ عَلَى الْمَيِّتِ ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ إِنِّي فَرَطٌ لَكُمْ وَأَنَا شَهِيدٌ عَلَيْكُمْ وَإِنِّي لَأَنْظُرُ إِلَى حَوْضِي الْآنَ وَإِنِّي أُعْطِيتُ مَفَاتِيحَ خَزَائِنِ الْأَرْضِ أَوْ مَفَاتِيحَ الْأَرْضِ وَإِنِّي وَاللّٰهِ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمْ أَنْ تُشْرِكُوا بَعْدِي وَلَكِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنَافَسُوا فِيهَا [ر:٣٤٩]

په دې باب کښې بيان شوې دې چه نبی کريمﷺ فرمائيلی دی چه احد (يعنی داحد غر) زمونږ سره مبحت کوی. اومونږ ده سره محبت کوو.

① بعضې حضراتو وئيلی دی چه د احد نه مراد ،،اهل احد،، يعنی د مدينې انصاردی. او مطلب دادې چه اهل احد يعنی انصار زمونږ سره محبت کوو. او زمونږ ددوی سره محبت دې.[1]

② خوکه د احد غر طرفته د محبت نسبت اوشی. نو هم په دې کښې څه استبعاد نشته.[2]

تاسو به د کدو ونه کتلې وی. کله چه هغه په زمکه باندې سر راوباسی. او لويديل ئې شروع شی. نوکه د پورت نه په لاره کښې څه رکاوټ پيدا شی. نو هغه ددغه رکاوټ نه وراندې تاؤ شی. اوخپله لار بدله کړی. دغه شان يو بوټې دې. ډير شرميدونکې اوحيا ناك دې. هغه ته په اردوکښې د ،چهونی موئی،، بوټې وائی. دې بوټې ته که لاس وروړې شی. نوسمدستی مراوې شی. اود هغې تازګی او شادابی انبساط او خوريدل ټول هرڅه ختم شی. د سړی په مـه کولوسره هغه سمدستی منقبض شی. دا خو دمشاهدې څيزونه دی. و ددې اقرار هغه خلق هم کوی. څوك چه په الله او د هغه په رسول باندې ايمان نه ساتی. خو چه کوم خلق په الله او په رسول باندې ايمان بالغيب راوړی. د هغوی دپاره که مشاهده نه وی. نوهم هغوی د قرآن او حديث هرې خبرې منلو ته غاړه بسته وی. په قرآن کښې دی. ﴿وَإِنْ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَكِنْ لَا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ﴾ ([3])اوپه يو بل ځاې کښې دی. ﴿وَأَوْحَى رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا﴾ ([4]) او رسول الله ﷺ ته چه څه وخت نبوت نه وو ملاؤ شوې. اود نبوت بنياد اچولې شو. نو ونو به نبیﷺ ته سلام کولو. د نبیﷺ ارشاد دې چه زه هغه ونه پيژنم. کومې سره چه به زه تيريدم. نوماته به ئې سلام اچولو.

داسې قسم واقعات کوم چه شرعی او عرفی لحاظ سره معلومې وی. که وراندې کيخودې شی. نوکه داحد دطرفه د محبت اسناد حقيقی وی. په دې کښې څه استبعاد نشته. نبیﷺ هم دې احد ته يو ځل تشريف يوړو. اود نبیﷺ سره حضرت صديق اکبر، حضرت عمرفاروق

---

[1] )عمدة القاری(١٤\١٧٣) کتاب الجهادباب فضل الخدمة فی الغزو)_

[2] )عمدة القاری(١٤\١٧٣)_

[3] )سورة بنی اسرائيل (٤٤)_

[4] )سورة النحل:٦٨)_

او حضرت عثمان رضي الله عنه وو.كله چه دا حضرات په دې باندې اوختل.نو اوحد رپيدل شروع كړل.نو نبى ﷺ احد په پښه باندې اووهل.او وې فرمائيل.«أثبت أحد فإنما عليك نبى وصديق و شهيدان» (١) نو احد په قلارشو.اوهغه خوزيدل بند كړو.په دې وجه كه دا اسناد حقيقى هم شي. نو څه باك په كښې نشته.

وړاندې دى.چه حضرت ابراهيم عليه السلام مكه حرام گرځولې وو.اوزه مدينه حرامه گرځوم.كومه چه د كاڼرى ژنه زمكې په مينځ كښې ده.

داحنافو په نيزدا حرمت اصطلاحى نه دې.بلكه ددې نه د نبى ﷺ مقصد دا وو. چه د مدينې منورې شينكې؛ او باغونه دې شاړ نكړې شى.او ددې رونق او تازگى دې برقراره پاتې كړې شى.دا مسئله د كتاب الحج ده.

## بَابُ غَزْوَةِ الرَّجِيعِ وَرِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَبِئْرِ مَعُونَةَ

وَحَدِيثِ عَضَلٍ وَالْقَارَةِ وَعَاصِمِ بْنِ ثَابِتٍ وَخُبَيْبٍ وَأَصْحَابِهِ قَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عُمَرَ أَنَّهَا بَعْدَ أُحُدٍ

د دې ځاې نه امام بخارى رحمه الله د دوو غزاگانو بيان كوى.يوه غزوه رجيع او بله غزوه بئر معونه.كومې ته چه «سرية القراء» هم وئيلې شى.

**غزوه رجيع او غزوه بئرمعونه په يو باب كښې د ذكر كولو وجه:** د غزوه رجيع په باره كښې د ابن اسحاق رائې دا ده.چه دا غزوه په ۳هجرىٔ كښې شوې ده.(٢) اود واقدى ابن سعد او ابن حبان رحمهم الله رائې دا ده.چه دا د ۴ھ واقعه ده.(٣)

د غزوه بئر معونه په باره كښې د ټولو اهل سير تقريباً اتفاق دې.چه دا د ۴ هجرىٔ واقعه ده. امام بخارى رحمه الله دواړه غزوات په يو باب كښې جمع كړې.كيدې شى.په دې كښې د واقدى،ابن سعد او ابن حبان رحمهم الله د رائې تائيد مقصود وى.

ابن عبدالبر رحمه الله په ،،الاستيعاب،، كښې كله دا د ۳هجرىٔ واقعه بنائى. اوكله د ۴ هجرىٔ روايت نقل كوى.

بهرحال د امام بخارى رحمه الله دا دواړه غزوات په يو باب كښې جمع كول د حكمت نه خالى نه دى.اودغه حكمت په ظاهره هم دا دې.چه دا دواړه غزوات په ۴هجرىٔ كښې شوى دى.

د امام بخارى رحمه الله د ترجمة الباب د عبارت نه يوه غلط فهمى پيدا كيږى. په باب كښې د غزوه رجيع نه پس دوى د «رعل و ذكوان» ذكر كړې دې.د كوم نه چه په ظاهره دا معلوميږى.

---

(١) صحيح بخارى (۵۱۹\۱) كتاب المناقب باب فضل أبى بكر)_

(٢) سيرة ابن هشام (۱۷۸\۳)_

(٣) البداية والنهاية (۶۲\۴) وطبقات ابن سعد(۵۵\۲) وتاريخ الطبرى (۲۱۳\۲)_

چه غزوه رجيع د قبيله رعل او ذكوان د خلقو سره پيښه شوې وه.حالانكه داسې نه ده.لكه څنګه چه به د تفصيل نه معلومه شي.

دغه شان وړاندې د ترجمة الباب كښې عبارت دې.((وبئرمعونة وحديث عضل والقارة)) ددې عبارت نه دا شبه پيدا كيږي.چه د غزوه بئر معونه تعلق د قبيله عضل او قاره سره دې. حالانكه دا غلطه ده.په حقيقت كښې د رعل اوذكوان تعلق د بئر معونه سره دې.او د عضل او قاره تعلق د غزوه رجيع سره دې.

رعل(د راء په كسره او عين په سكون سره) او ذكوان قبيله د بنو سليم شاخونه دى.او عضل او قاره د بنوالهول شاخونه دى.

[۳۸۵۸] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي سُفْيَانَ الثَّقَفِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً عَيْنًا وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَاصِمَ بْنَ ثَابِتٍ وَهُوَ جَدُّ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَانْطَلَقُوا حَتَّى إِذَا كَانَ بَيْنَ عُسْفَانَ وَمَكَّةَ ذُكِرُوا لِحَيٍّ مِنْ هُذَيْلٍ يُقَالُ لَهُمْ بَنُو لَحْيَانَ فَتَبِعُوهُمْ بِقَرِيبٍ مِنْ مِائَةِ رَامٍ فَاقْتَصُّوا آثَارَهُمْ حَتَّى أَتَوْا مَنْزِلًا نَزَلُوهُ فَوَجَدُوا فِيهِ نَوَى تَمْرٍ تَزَوَّدُوهُ مِنْ الْمَدِينَةِ فَقَالُوا هَذَا تَمْرُ يَثْرِبَ فَتَبِعُوا آثَارَهُمْ حَتَّى لَحِقُوهُمْ فَلَمَّا انْتَهَى عَاصِمٌ وَأَصْحَابُهُ لَجَئُوا إِلَى فَدْفَدٍ وَجَاءَ الْقَوْمُ فَأَحَاطُوا بِهِمْ فَقَالُوا لَكُمْ الْعَهْدُ وَالْمِيثَاقُ إِنْ نَزَلْتُمْ إِلَيْنَا أَنْ لَا نَقْتُلَ مِنْكُمْ رَجُلًا فَقَالَ عَاصِمٌ أَمَّا أَنَا فَلَا أَنْزِلُ فِي ذِمَّةِ كَافِرٍ اللَّهُمَّ أَخْبِرْ عَنَّا نَبِيَّكَ فَقَاتَلُوهُمْ حَتَّى قَتَلُوا عَاصِمًا فِي سَبْعَةِ نَفَرٍ بِالنَّبْلِ وَبَقِيَ خُبَيْبٌ وَزَيْدٌ وَرَجُلٌ آخَرُ فَأَعْطَوْهُمْ الْعَهْدَ وَالْمِيثَاقَ فَلَمَّا أَعْطَوْهُمْ الْعَهْدَ وَالْمِيثَاقَ نَزَلُوا إِلَيْهِمْ فَلَمَّا اسْتَمْكَنُوا مِنْهُمْ حَلُّوا أَوْتَارَ قِسِيِّهِمْ فَرَبَطُوهُمْ بِهَا فَقَالَ الرَّجُلُ الثَّالِثُ الَّذِي مَعَهُمَا هَذَا أَوَّلُ الْغَدْرِ فَأَبَى أَنْ يَصْحَبَهُمْ فَجَرَّرُوهُ وَعَالَجُوهُ عَلَى أَنْ يَصْحَبَهُمْ فَلَمْ يَفْعَلْ فَقَتَلُوهُ وَانْطَلَقُوا بِخُبَيْبٍ وَزَيْدٍ حَتَّى بَاعُوهُمَا بِمَكَّةَ فَاشْتَرَى خُبَيْبًا بَنُو الْحَارِثِ بْنِ عَامِرِ بْنِ نَوْفَلٍ وَكَانَ خُبَيْبٌ هُوَ قَتَلَ الْحَارِثَ يَوْمَ بَدْرٍ فَمَكَثَ عِنْدَهُمْ أَسِيرًا حَتَّى إِذَا أَجْمَعُوا قَتْلَهُ اسْتَعَارَ مُوسًى مِنْ بَعْضِ بَنَاتِ الْحَارِثِ لِيَسْتَحِدَّ بِهَا فَأَعَارَتْهُ قَالَتْ فَغَفَلْتُ عَنْ صَبِيٍّ لِي فَدَرَجَ إِلَيْهِ حَتَّى أَتَاهُ فَوَضَعَهُ عَلَى فَخِذِهِ فَلَمَّا رَأَيْتُهُ فَزِعْتُ فَزْعَةً عَرَفَ ذَاكَ مِنِّي وَفِي يَدِهِ الْمُوسَى فَقَالَ أَتَخْشَيْنَ أَنْ أَقْتُلَهُ مَا كُنْتُ لِأَفْعَلَ ذَاكِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ وَكَانَتْ تَقُولُ مَا رَأَيْتُ أَسِيرًا قَطُّ خَيْرًا مِنْ خُبَيْبٍ لَقَدْ رَأَيْتُهُ يَأْكُلُ مِنْ قِطْفِ عِنَبٍ وَمَا بِمَكَّةَ يَوْمَئِذٍ ثَمَرَةٌ وَإِنَّهُ لَمُوثَقٌ فِي الْحَدِيدِ وَمَا كَانَ إِلَّا رِزْقٌ رَزَقَهُ اللَّهُ فَخَرَجُوا بِهِ مِنْ الْحَرَمِ لِيَقْتُلُوهُ فَقَالَ دَعُونِي أُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَيْهِمْ فَقَالَ لَوْلَا أَنْ تَرَوْا أَنَّ مَا بِي جَزَعٌ مِنْ الْمَوْتِ لَزِدْتُ فَكَانَ أَوَّلَ مَنْ سَنَّ الرَّكْعَتَيْنِ عِنْدَ الْقَتْلِ هُوَ ثُمَّ قَالَ اللَّهُمَّ أَحْصِهِمْ عَدَدًا ثُمَّ قَالَ

مَا أُبَالِي حِينَ أُقْتَلُ مُسْلِمًا : عَلَى أَيِّ شِقٍّ كَانَ لِلَّهِ مَصْرَعِي
وَذَلِكَ فِي ذَاتِ الْإِلَهِ وَإِنْ يَشَأْ : يُبَارِكْ عَلَى أَوْصَالِ شِلْوٍ مُمَزَّعِ

ثُمَّ قَامَ إِلَيْهِ عُقْبَةُ بْنُ الْحَارِثِ فَقَتَلَهُ وَبَعَثَتْ قُرَيْشٌ إِلَى عَاصِمٍ لِيُؤْتَوْا بِشَيْءٍ مِنْ جَسَدِهِ يَعْرِفُونَهُ وَكَانَ عَاصِمٌ قَتَلَ عَظِيمًا مِنْ عُظَمَائِهِمْ يَوْمَ بَدْرٍ فَبَعَثَ اللّٰهُ عَلَيْهِ مِثْلَ الظُّلَّةِ مِنَ الدَّبْرِ فَحَمَتْهُ مِنْ رُسُلِهِمْ فَلَمْ يَقْدِرُوا مِنْهُ عَلَى شَيْءٍ [ر:٢٨٨٠]

[٣٨٥٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرًا يَقُولُ الَّذِي قَتَلَ خُبَيْبًا هُوَ أَبُو سِرْوَعَةَ

**غزوه رجیع:** رجیع د یو خاې نوم دې.کوم چه د بنو هذیل په قبضه کښې وو.(١) چونکه دا غزوه هم په دې مقام کښې پیښه شوې وه.ددې وجې دې ته ((غزوة رجیع)) وائی. حضرت ابوهریره رضی الله عنه بیان کوی.چه نبی ﷺ په لسو کسانو باندې مشتمله یوه سریه د جاسوسئ په غرض باندې لیږلې وه.او حضرت عاصم بن ثابت رضی الله عنه ئې په دوی باندې امیر مقرر کړې وو. داخود بخاری روایت دې.ابن سعد رحمه الله چه کوم روایت نقل کړې دې.په هغې کښې دی.چه دنبی ﷺ په خدمت کښې د عضل اوقاره خلق راغلل.او هغوی درخواست اوکړو.چه زمونږ قوم ته د قرآن تعلیم ورکوول دپاره یو څوي صحابه رضی الله عنهم تاسو راولیږئ.(٢) نو نبی ﷺ دوی سره دا لس کسان اولیږل.

خویه دواړوروایاتوکښې تطبیق کیدې شی.چه د مشرکانو د حالاتو معلومولو په غرض ددې کسانو د ولیږلو د وړاندې نه اراده وه.خو کله چه د عضل او قاره درخواست راغلو.نو نبی ﷺ داکار دوی ته اورسپارل.چه هلته لاړ شئ.اود قرآن تعلیم ورته هم ورکړئ.

ددې جماعت د امیر حضرت عاصم بن ثابت انصاری رضی الله عنه نه سوا چه په دې کښې کوم حضرات شامل وو.هغوی حضرت خبیب بن عدی،حضرت عبدالله بن طارق، حضرت زید بن دثنه،حضرت مرثد بن ابی مرثد غنوی،او حضرت خالد بن ابی البکیر رضی الله عنهم شامل ووکله چه دا حضرات د مکې او عسفان په مینځ کښې مقام ،،هداة،، ته اورسیدل.نود عضل او قاره خلقو غداری اودهوکه اوکړه.اود قبیله هزیل یوې قبیلې بنو لحیان ته ئې تذکره اوکړه.چه د محمد(ﷺ) ملګری راغلی دی. اوددغه قبیلې سلوتیرانداز ودې صحابو رضی الله عنهم تعاقب اوکړو.اودقدمونوپه نښو باندې روان ووتردې چه داسې خاې ته اورسیدل.کوم خاې کښې چه د صحابو رضی الله عنهم دې ډلې دمه کړې وه.دې خلقو په دې مقام کښې د قجورو هډوکی بیاموندل.او وې وئیل. دا خود یثرب قجورې دی.نود قدمونو په نښو باندې ئې لټون شروع کړو.اوبیا روان شو.آخر دا چه د مسلمانانو دغه ډلائې بیاموندہ.

---

١)وفی معجم البلدان (٣١٢٩) الرجیع ما ء لهذیل قرب الهداة بین مکة وطائف وفی طبقات ابن سعد(٢١٥٥) هو ماء لهذیل بصدور الهدة والهدة علی سبعة أمیال منها)۔

٢)طبقات ابن سعد(٢١٥٥) وسیرة ابن هشام (٣١٧٨) و کامل لابن اثیر(٢١١٠١) البته په سیرة ابن هشام او کامل ابن اثیرکښې د لسو په خاې د شپږوکسانو دلیږلو ذکردې.خوراجح او قوی د بخاری او ابن سعد رحمهما الله روایت دې)۔

**قوله**: فَلَمَّا انْتَهَى عَاصِمٌ وَأَصْحَابُهُ لَجَئُوا إِلَى فَدْفَدٍ: کله چه عاصم او هغه ملګری د تلو نه منع شول.نوهغوی یوې اوچتې ډیرۍ دپاسه پناه واخسته.

«فدفد» (د دواړو فاء فتحې سره) اوچتې اولوړې ډیرۍ ته وائی.

کافران راغلل.اوددې ډیرۍ نه ګیرچاپیره ئې مسلمانان راګیرکړل.او ووې وئیل.تاسوسره وعده اومعاهده ده.چه تاسو رکوز شوئ.اوموږ ته مو ځان حواله کړو.نوپه تاسوکښې به څوك نه قتلوو.

په دې باندې د ډلې امیرحضرت عاصم رضی الله عنه اووئیل.زه دکافر په پناه کښې نه کوزیږم.اودا دعا ئې اوکړه.«اللهم أخبرعنا نبيك» اې الله زموږ دحالت نه خپل پیغبرخبرکړې.اوبیاکافرانو دوی سره جنګ شروع کړو.او په تیرونو سره ئې حضرت عاصم رضی الله عنه اود هغه شپږ ملګری شیهدان کړل.(۱)

حضرت خبیب،حضرت زید او یو بل سړی یعنی حضرت عبدالله بن طارق رضی الله عنهم پاتې شول.کافرانو هغوی سره دامان وعده اوکړه.ددوی دامان په وعده باندې درې واړه د ډیرۍ نه راکوز شول.

**قوله**: فَلَمَّا اسْتَمْكَنُوا مِنْهُمْ حَلُّوا أَوْتَارَ قِسِيِّهِمْ فَرَبَطُوهُمْ بِهَا: کله چه کافرانو په دوی باندې قابو بیا موندو.نو ددوی د لیندو مزی ئې پرانستل.اوپه هغه مزو باندې ئې دا درې واړه اوتړل.

«أوتار» د وتر جمع ده.د لیندې مزی ته وائی.«قسی» لیندې ته وائی.

په دې باندې عبدالله بن طارق رضی الله عنه اووئیل.دا اولنۍ غداری ده.اوهغوی سره ئې د تلو نه انکار اوکړو.کافرانو هغه راښکل.اود هغه ئې د خپل ځان سره د بوتلو کوشش اوکړو.خو حضرت عبدالله بن طارق رضی الله عنه هغوی سره تلو ته تیار نه وو. نو کافرانو هغه قتل کړو.اوحضرت خبیب او حضرت زید رضی الله عنهما ئې بوتلل اوپه مکه کښې ئې خرڅ کړل.حضرت خبیب دحارث بن عامربن نوفل ځامنو واخستل.چونکه حارث لره خبیب رضی الله عنه په جنګ بدر کښې قتل کړې وو.ددې وجې د پلار د قصاص دپاره دحارث ځامنو دې واخستلو.حضرت خبیب رضی الله عنه دوی سره قیدی شو. تردې چه کله هغوی د خبیب رضی الله عنه د قتلولو عزم اوکړو.

**قوله**: اسْتَعَارَ مُوسَى مِنْ بَعْضِ بَنَاتِ الْحَارِثِ لِيَسْتَحِدَّ بِهَا: نوحضرت خبیب رضی الله عنه د حارث دیوې لور نه پاکی(د نائی جاړه) اوغوښتله.چه د زیرناف صفائی پرې اوکړی.

---

(۱)قال ابن هشام (۱۷۹\۳) فاما مرثد بن ابی مرثد وخالدبن البکیروعاصم بن ثابت فقالوا والله لا نقبل من مشرک عهداً ولا عقداً أبداً فقال عاصم بن ثابت رضی الله عنه :

ما علتی وأنا جلد نابل والقوس فیها وتد عنابل
تزل عن صفحتها المعابل الموت حق والحیاة باطل
وکل ما حم الإله نازل بالمرء والمرء إلیه آئل
إن لم أقاتلکم فأمی هابل...

النابل صاحب النبل،عنابل: غلیظ شدید،المعابل : جمع معبلة وهو نصل عریض، حم الإلة: قدرة آئل: صائر..)

((بعض بنات الحارث)) نه مراد ((زينب بنت الحارث)) ده.په بعضې رواياتو كښې ددې ښځې نوم ماريه راغلې دې.خو په دوارو كښې تطبيق داسې كيدې شى.چه د كومې ښځې په كور كښې چه حضرت خبيب رضی الله عنه بندى وو.هغه ماريه وه.او كومه ښځه چه دحضرت خبيب رضی الله عنه په نگرانئ باندې مقرروه.هغه زينب وه.روسته مسلمانانه شوې وه.([1])

ددې نه يوه خبره دا هم معلومه شوه.كله چه يوسړې قتل كولې شى.نودقتل نه وړاندې هغه ته پكار دى.چه دخپلو نوكونواو زيرناف وختو صفائى اوكړى.

دغه ښځې ورته عارية پاكى(دنائى جاړه) وركړه.ددغه ښځې بيان دې.چه زه د خپل يو بچى نه غافله شوم.(اوزما خيال نه وو) هغه ماشوم دخبيب طرف ته ورغلو.حضرت خبيب رضی الله عنه ماشوم په خپل پتون باندې كينولې وو.كله چه ما ماشوم د هغه سره اوليدلو.نو زه اوويريدم. حضرت خبيب رضی الله عنه زما په ويره باندې پوهه شو.نو ووې وئيل.آيا ته ددې خبرې نه ويرېږې.چه زه به دې قتل كړم.انشاءالله زه داسې نكوم.([2]) هغه ښځه وائى.

((ما رأيت أسيرا قط خيرا من خبيب لقد رأيته يأكل من قطف عنب وما بمكة يومئذ ثمرة وإنه لموثق فى الحديد وماكان إلا رزق، رزقه الله))

ما دخبيب پشان ښه بندى نه دې ليدلې.ما هغه ليدل.چه د انگورد غنچو نه ئې خوراك كولو.حالانكه په دغه وخت كښې په مكه كښې ميوه نه وه موجود ،اوهغه داوسپنې په بيړو كښې تړلې شوې وو.داصرف دالله تعالى دطرفه رزق وو.چه هغه ته الله تعالى وركولو.

**دحضرت خبيب رضی الله عنه شهادت:** بيا دې خلقو حضرت خبيب رضی الله عنه د قتل دپاره د حرم نه بهرته بوتلل.حضرت خبيب رضی الله عنه ورته اووئيل.ماته موقعه راكړئ.چه زه دوه ركعته مونځ اوكړم.نو هغوى پريخودو.دوې دوه ركعته مونځ اوكړو.اوددې نه پس هغه خلقو ته متوجه شو.او وې وئيل.كا ما سره د دې خبرې ويره نه وه.چه تاسو به دا اوگنړى،چه گنى زه د مرگ نه ويريږم.(ددې وجې زه مونځ اوږدوم) نو ما به نور زيات (اوږد مونځ) كړې وو. (خوچونكه ماته ستاسود گمان ويره وه.ځكه ما مختصر مونځ اوكړو) بيا دوى رضی الله عنه خلقوته خيرې اوكړې. چه((اللهم أحصهم عدداً))([3]) اې الله دوى يويوكس په شمارباندې اونيسه.اودوى دا شعر اووئيل.

---

[1] )فتح البارى (٣٨٢\٧) وعمدة القارى(١٦٨\١٧)_

[2] )ددغه ماشوم نوم ئې ابوحسين بن الحارث بن عدى ليكلې دې.په يو روايت كښې دى.چه حضرت خبيب رضی الله عنه د ماشوم لاس اونيولو.او ښځې ته ئې اووئيل.الله تعالى ماته هم په په تاسو قدرت راكړې دې.ښځې اووئيل.زما ستا نه دا ويره نشته.(چه ته به دا ماشوم قتل كړې) حضرت خبيب رضی الله عنه پاكى ښځې طرف ته اوغورځوله.او ووې وئيل.مادرسره ټوقې كولې. فتح البارى (٣٨٢\٧)

[3] )وفى سير ابن هشام (١٨٢\٣) فلما أوثقوه (أى خبيباً) قال اللهم إنا قد بلغنا رسالة رسولك فبلغه الغداة ما يصنع بنا ثم قال اللهم أحصهم عدداً وقتلهم بدداً ولا تغادرمنهم أحداً. فكمان معاوية بن ابى سفيان يقول حضرته يومئذ فيمن حضره مع ابى سفينان فلقد رأيته يلقينى إلى الأرض فرقا من دعوة خبيب وكانوا يقولون إن الرجل إذا دعى عليه فاضطجع لجنبه زالت عنه)_

مَا أُبَالِي حِينَ أُقْتَلُ مُسْلِمًا عَلَى أَيِّ شِقٍّ كَانَ لِلَّهِ مَصْرَعِي
وَذَلِكَ فِي ذَاتِ الْإِلَهِ وَإِنْ يَشَأْ يُبَارِكْ عَلَى أَوْصَالِ شِلْوٍ مُمَزَّعِ

① هرکله چه زه د مسلمانئ په حالت کښې وژلې کیږم.نوزما په دې خبره څه پرواه نشته.چه دالله تعالی دپاره په کوم اړخ باندې زه (په زمکه ) راغورځولې شم.
② اودا زما قتلیدل د الله تعالی د رضا دپاره دی.که هغه اوغواړی.نو د ټکړې شوی اندامونو په هرجوړ به برکت نازل کړی.

«أوصال» د وصل جمع ده.جوړ ته وائی.

«شلو» د شین په کسرې سره اندام ته وائی.

«ممزع» ټکړې ټکړې کړې شوی ته وائی.

بیا عقبه بن حارث هغه طرف ته پاخیدو.او هغه ئې قتل کړو.([1]) کافرانو د حضرت خبیب رضی الله عنه لاش په سولئ زوړند پریخودو.طبری په خپل تاریخ کښې لیلکی دی.چه نبی ﷺ حضرت زبیر او حضرت مقداد رضی الله عنهما دهغوی د لاش راوړلو دپاره اولیږل.دا حضرات هلته اورسیدل.چه وې کتل نو مشرکان د لاش نه ګیر چاپیره د څوکئ کولو دپاره پراته دی.چه هغوی ئې غافله اولیدو.نو حضرت زبیر او حضرت مقداد رضی الله عنهما لاش راوکوز کړل.بیخی تروتازه وو.حالانکه چه دوی شهیدشوی وو.نو څلویښت ورځې شوې وې.لاش ئې په خپل اوښ باندې کیخودو .او راروان شو.کله چه د مشرکانو سترګې غړې شوې.چه او ئې کتل نو لاش نشته، په منډو شو.اوحضرت زبیراوحضرت مقداد رضی الله عنهما ئې په لاره کښې اونیول .حضرت زبیر رضی الله عنه په دې غرض چه بې حرمتی اونشی.لاش په آرام سره د اوښ نه په زمکه کیخودو.سمدستی زمکه ځیرې شوه.اودحضرت خبیب رضی الله عنه لاش په هغې کښې غائب شو.([2])

هم ددې خائې نه د «بلیع الأرض» په لقب سره مشهور شو.([3])

**دحضرت زیدبن دثنه رضی الله عنه شهادت:** د بخاری په روایت کښې د حضرت خبیب رضی الله عنه د شهادت واقعه ذکرده.د دویم بندی حضرت زید بن الدثنه رضی الله عنه قصه ذکر نه ده.

حضرت زید بن الدثنه، صفوان بن امیه دخپل پلار امیه بن خلف د قتل د بدلې کښې

---

[1] ) دا عقبه بن حارث روسته مسلمان شوې دې.ابن اسحاق د عقبه دا قول هم نقل کړې دې.،،
ما أنا والله قتلت خبيباً لأنى كنت أصغر من ذلك ولكن أبا ميسرة أخا بنى عبدالدارأخذ الحربة فجعلها فى يدى ثم أخذ بيدى وبالحربة ثم طعنه بها حتى قتله (وانظرسيرة ابن هشام (۱۸۲\۳) والبداية (۶۳\٤)_
[2] )تاريخ الطبرى (۲۱۶\۲)_
[3] )حافظ ابن حجر رحمه الله په ((الإصابة فى تميز الصحابة)) کښې د ذکرشوې واقعه نقل کولونه پس داهم لیکلی دی.چه حضرت خبیب رضی الله عنه کله شهید کړې شو.نو مشرکانو په سولئ باندې ددوی مخ دقبلې نه واړولو.خودهغوی مخ به په خپله قبلې طرف ته کیدو.کافرانو څوځله دهغه دمخ اړولو کوشش اوکړو.هوبه هرځل به هم دغه شان کیدو.آخردا چه عاجزه شول.اولاش ئې هم دغه شان قبلې طرف ته پریخودو. اوګورئ (الإصابة (۱۹\۲ ٤)_

واخستلو. صفوان خپل غلام نسطاس رومی ته زید ﷛ حواله کړو.چه مقام تنعیم ته ئې بوځه. اوهلته دې قتل کړه.دتماشې کتلو دپاره د قریشو یوه ډله مقام تنعیم کښې جمع شول. کله چه د شهید کولو دپاره دې مخامخ راوستې شو.نو ابو سفیان ورته اوونیل.اې زید! آیا ته دا خبره خوښوې.چه ستا ځان بچ کړې شی. اوستا په ځاې محمد (ﷺ) قتل کړې شی. حضرت زیدبن الدثنه ﷛ په غصه شو. او هغه ئې اورتل.اووې وئیل.په الله قسم زه دا هم نشم برداشت کولې.چه دمحمد ﷺ په پښه کښې ازغی ننوځي.اوزما ځان دهغې په بدله کښې بچ شی.ابوسفیان چه جواب واوریدو.نو وې وئیل.په الله قسم ما داسې مخلص او عاشق نه دې دلیدلې.لکه څنګه چه دمحمد (ﷺ) ملګری دهغه عاشقان او وفادار دی.(١)

ددې نه پس نسطاس دې شهید کړو.دانسطاس روسته دفتح مکې په موقع مسلمان شوې وو.(٢)

بل خوا چه قریشو ته د حضرت عاصم بن ثابت انصاری ﷛ د قتل اطلاع ملاؤ شوه.نو هغوی څو کسان اولیږل.چه دعاصم د بدن څه حصه راوړی.چه په هغې سره هغه پیژندې شی.ځکه چه حضرت عاصم ﷛ په جنګ بدر کښې د قریشو یو سردار قتل کړې وو.او ابن اسحاق په روایت کښې دی.چه حضرت عاصم ﷛ عقبه بن ابی معیط د نبی ﷺ په حکم باندې قتل کړې وو.(٣)

د بعضې اهل سیرو په روایاتوکښې دا هم دی.چه حضرت عاصم ﷛ د سلافه بنت سعید دوه خامن قتل کړی وو.ددې وجې سلافه دا نذر منلې وو.چه د عاصم د سرپه کنډول کښې به شراب څکم.اواعلان ئې کړې وو.چه کوم کس دعاصم سر راوړو.نو هغه ته به سل اوښان په انعام کښې ورکولې شی.(٤)

بل طرف ته حضرت عاصم ﷛ دا وعده کړې وه.چه زه به دکافر د بدن سره خپل بدن نه لګوم.اودا دعا ئې کړې وه.چه «اللهم احمي لك اليوم دينك فاحمي لي لحمي» (٥)اې الله نن زه ستا د دین حفاظت کوم.ته زما د بدن حفاظت اوکړه.الله تعالی دهغه دعا قبولې کړې وه.اودلته د بخاری په روایت کښې دی.

**قوله**: فبعث الله عليه مثل الظلة من الدبر فحمته من رسلهم: الله تعالی دحضرت عاصم دبدن دپاره د څپر (دسیوری ځاې) پشان د ډمبرو یوه ډله راولیږله.هغوی د قریشو لیږلو شوو خلقو نه د دوی حفاظت اوکړل.

«الظلة» د ظاء په ضمه سره، څپر، (دسیوری ځاې) ته وائی.

«الدبر» د دال په فتح او باء په سکون سره، د ډنبرواو مچو ډلې ته وائی.

---

(١) سيرة ابن هشام (١٨١\٣) وتاريخ الطبرى (٢١٦\٢)
(٢) الإصابة (٥٥٣\٣)
(٣) ددې تفصيل په غزوه بدر کښې تیرشوې دی.)
(٤) تاريخ الطبرى (٢١٤\٢) والبداية والنهاية (٦٤\٣)ـ
(٥) فتح البارى(٣٨١\١٧)ـ

چه ډنبرې ئې اوليدې.نو هغه خلقو اوونيل.چه دشپې كله مچۍ لاړې شى.نو رابه شو.او دده سره به كټ كړو.خوكله چه شپه راغله.نوالله تعالى يو سيلاب راوستلو.اوپه هغې كښې لاش غائب شو.اوبعضې حضراتو وئيلى دى.چه زمكه اوچوده.اوپه هغې كښې دحضرت عاصم رضي الله عنه لاش پټ شو.بهرحال كافرانوته دهغه په بدن باندې طاقت حاصل نشو.([1])

**غزوه بئر معونه صفر ٥ هجرى** د بئر معونه واقعه داسې پېښه شوه.چه د قبيلې بنو عامر سردار عامر بن مالك د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضر شو.او خان سره ئې هديه هم راوړه. نبى ﷺ هغه ته د اسلام دعوت وركړو.نو هغه خو نه اسلام قبول كړو.اونه ئې انكار اوكړو. بلكه دا درخواست ئې اوكړو.چه ته خپل سړى زمونږ قبيلې ته د اسلام د دعوت په غرض راوليږه. نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.ماته د اهل نجد نه ويره ده.چه هغوى به زمونږ ملګرو ته نقصان اورسوى.عامر بن مالك چه كنيت ئې ،،ابوبراء،، وو. اووئيل.زه ستا ملګرو ته پناه وركوم.([2]) نو نبى ﷺ د هغه په غوښتنه د اويا قاريانو ليږلو فيصله اوكړه.د بخارى په كتاب الجهاد كښې دا هم دى.چه د رعل او ذكوان د قبيلې خلق د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضر شول.اوهغوى د اسلام اظهار اوكړو .اونبى ﷺ ته ئې درخواست اوكړو.چه زمونږ د دشمنانو په مقابله كښې زمونږ مدد اوكړئ.د هغوى د مدد په غرض سره نبى ﷺ هغوى سره د اويا صحابو رضي الله عنهم يوه ډله اوليږله.([3])

خودواړه خبرې جمع كيدې شى.عامر بن مالك چه كوم درخواست كړې وو،د هغه خواهش هم پوره كول وو.او د رعل او ذكوان امداد كول هم مقصود وو.

نودا حضرات روان شول.د دوى امير نبى ﷺ منذر بن عمرو ساعدى رضي الله عنه مقرر كړو.او حضرت حرام بن ملحان رضي الله عنه ته نبى ﷺ خط د بنو عامر د سردارد عامر بن طفيل په نوم باندې اوليكلو.دا عامر بن طفيل د عامربن مالك ورارهٔ وو.حضرت حرام رضي الله عنه د خپلو ملګرو سره هلته اورسيدل.اوخپل ملګرو ته ئې اووئيل.چه تاسو روستو ايسارشئ.زه عامر بن طفيل ته خط وركوم.كه هغه ماته امن راكړو.نو تاسو هم دلته اوسئ.اوكه هغه زه قتل كړم.نو تاسو د نورو ملګرو ځاې ته ځئ.حضرت حرام رضي الله عنه لكه څنګه چه وړاندې په روايات كښې تفصيل راځى.شهيد كړې شو.او بنو عامرئې دنورو ملګرو په قتل باندې راپار كړو. دعامر بن طفيل ترهٔ عامربن مالك ورته اووئې.چه ما دې كسانو ته امن وركړې دې.دوى ته څه نقصان مه رسوه. خوعامربن طفيل د خپل ترهٔ خبره اونه منله.خوبنو عامر اووئيل.هركله چه دوى ته امن وركړې شوې دې.نو بيا غدارى او وعده ماتول نه دى پكار.([4]) كله چه بنو

---

[1] ) حضرت عاصم بن ثابت انصارى رضي الله عنه جليل القدرصحابى رضي الله عنه وو.اوپه سابقين اولين كښې وو،په غزوه بدركښې ئې شركت كړې وو.اوپه ليلة العقبه ورته د بيعت شرف حاصل شوې وو.د حالاتودپاره اوګورئ (الإصابة (٢٤٤١٣)_

[2] )طبقات ابن سعد(٥٢١٢) وسيرة ابن هشام (١٩٣١٣، ١٩٤)_

[3] )فتح البارى(٣٨٦١٧)_

[4] )سيرة ابن هشام (١٩٤١٣)_

عامرد عامربن طفيل خبره اونه منله.نو عامر د رعل او ذكوان نه مدد اوغوستل .رعل او ذكوان سره ددې نه چه د نبى ﷺ نه د صحابو رضي الله عنهم ليږلو درخواست كړې وو.د وعده ماته كړه.اود عامر بن طفيل سره ملاؤ شو.اوصحابه رضي الله عنهم ئې شهيدان كړل.

صرف درې صحابه بچ شول.يو حضرت كعب بن زيد انصارى رضي الله عنه وو.دده په باره كښې دا اوګڼړلى شو.چه دا مړې شوې دې.حالانكه هغه ژوندې وو.حضرت كعب بن زيد رضي الله عنه روستو د غزوه خندق په موقع باندې شهيد شوې وو.نور دوه صحابو كښې يو منذر بن محمد رضي الله عنه وو.او يو عمروبن اميه ضمرى رضي الله عنه وو.دا دواړه حضرات د څاروو څرڅولوډپاره ځنګل ته تلى وو.ناڅاپه هغوى ته په آسمان كښې مرغۍ الوتونكې په نظرراغلې.چه مرغۍ ئې اوليدې.نودا دواړه اوويريدل.اوووې وئيل.چه څه حادثه ضرور پيښه شوې ده.كله چه نزدې ورغلل.چه وې كتل. نو ټول صحابه شهيدان شوى وو.دواړو مشوره اوكړه.چه څه كول پكار دى.عمروبن اميه رضي الله عنه اووئيل.مدينې ته تلل پكار دى.او نبى ﷺ ته خبر وركول دى.خو منذ ربن محمد رضي الله عنه اووئيل.په كوم ځاې كښې چه منذر بن عمرو(د ډلې امير) شهيد كړې شوې دې، د هغه ځاې نه زه ولې اوتختم. وروړاندې شو.اودكافرانو سره اوجنګيدو.اود شهادت پيالئ اوڅكله.عمروبن اميه خلقو ژوندې ګرفتار كړو.او عامربن طفيل ته ئې حواله كړو. عامر دهغه د سر ويخته اونيول.او وې وئيل.دې پريږدئ.ځكه چه زما مور د يوغلام آزادولو نذر منلې وو.دا دهغې دطرفه شو.[1]

كله چه نبى ﷺ ته خبراوشو.نو هغوى د رعل اوذكوان په حق كښې تريوې مياشتې پورې په قنوت نازله كښې خيرې كولې.په دې حادثه باندې نبى ﷺ ته دومره تكليف ملاؤ شوې وو. چه په ټول عمركښې ورته دومره تكليف نه وو ملاؤشوې.اوس لږ د بخارى روايتونه اوګورئ.

[٣٨٦٠\٣٨٦٥] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعِينَ رَجُلًا لِحَاجَةٍ يُقَالُ لَهُمُ الْقُرَّاءُ فَعَرَضَ لَهُمْ حَيَّانِ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ رِعْلٌ وَذَكْوَانُ عِنْدَ بِئْرٍ يُقَالُ لَهَا بِئْرُ مَعُونَةَ فَقَالَ الْقَوْمُ وَاللَّهِ مَا إِيَّاكُمْ أَرَدْنَا إِنَّمَا نَحْنُ مُجْتَازُونَ فِي حَاجَةٍ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَتَلُوهُمْ فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ شَهْرًا فِي صَلَاةِ الْغَدَاةِ وَذَلِكَ بَدْءُ الْقُنُوتِ وَمَا كُنَّا نَقْنُتُ قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ وَسَأَلَ رَجُلٌ أَنَسًا عَنِ الْقُنُوتِ أَبَعْدَ الرُّكُوعِ أَوْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِنَ الْقِرَاءَةِ قَالَ لَا بَلْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِنَ الْقِرَاءَةِ

دباب په اولنى روايت كښې د غزوه رجيع بيان شوې دې.او دباب د دويم روايت نه واخله تر آخره پورې ټول روايات د غزوه بئر معونه سره متعلق دى.

دغزوه بئر معونه سره متعلق اولنې روايت د حضرت انس رضي الله عنه دې.دوى فرمائى.

چه رسول الله ﷺ اويا كسان د يو كار دپاره ليږلى وو.چه هغو ته به «قراء» وئيلى شو.د بنو سليم دوه قبيلې رعل او ذكوان دوى ته په لاركښې يوكوهى سره چه ،،بئر معونه ،، ورته

[1] تاريخ طبرى (٢٢٠\٢) وسيرة ابن هشام (١٩٥\٣)۔

ونيلي شو.مخامخ راغلل.صحابو رضی الله عنهم ورته اوونيل.تاسو زمونږ لاره نيسئ.په الله قسم مونږ ستاسو په اراده باندې نه يو راغلي.مونږ خو نبي ﷺ د يوکاردپاره رااليږلي يو.خو هغه خلقو صحابه رضی الله عنهم قتل کړل.نبي ﷺ تر يوې مياشتې پورې د رعل او ذکوان په حق کښې خيرې کولې.او هم دغې نه د قنوت نازله شروع اوشوه.ددې نه وړاندې به مونږ قنوت نه وئيل.

حضرت عبدالعزيز بن صهيب فرمائي.چه يو سړي حضرت انس رضی الله عنه نه اوونې. چه قنوت د رکوع نه پس دی او که د قراءت د فراغت نه پس او د رکوع نه وړاندې؟ حضرت انس رضی الله عنه ورته اوفرمائيل.د قراءت نه د فارغ کيدو نه پس اود رکوع نه وړاندې،اوظاهره ده.چه د وترو قنوت د رکوع نه وړاندې وی.

[۳۸٦١]حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَنَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا بَعْدَ الرُّكُوعِ يَدْعُو عَلَى أَحْيَاءٍ مِنْ الْعَرَبِ

د بئر مونه سره متعلق دويم روايت هم د حضرت انس رضی الله عنه نه مروی دې.دلته حضرت قتاده، د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت کوی.په دې کښې دی چه د رکوع نه پس نبي ﷺ يو مياشت قنوت ونيلي وو.مراد ترې قنوت نازله دې.د عربو د څو قبيلو دپاره نبي ﷺ خيرې کولې.

[۳۸٦٢]حَدَّثَنِي عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رِعْلًا وَذَكْوَانَ وَعُصَيَّةَ وَبَنِي لَحْيَانَ اسْتَمَدُّوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عَدُوٍّ فَأَمَدَّهُمْ بِسَبْعِينَ مِنْ الْأَنْصَارِ كُنَّا نُسَمِّيهِمْ الْقُرَّاءَ فِي زَمَانِهِمْ كَانُوا يَحْتَطِبُونَ بِالنَّهَارِ وَيُصَلُّونَ بِاللَّيْلِ حَتَّى كَانُوا بِبِئْرِ مَعُونَةَ قَتَلُوهُمْ وَغَدَرُوا بِهِمْ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَنَتَ شَهْرًا يَدْعُو فِي الصُّبْحِ عَلَى أَحْيَاءٍ مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ عَلَى رِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَعُصَيَّةَ وَبَنِي لَحْيَانَ قَالَ أَنَسٌ فَقَرَأْنَا فِيهِمْ قُرْآنًا ثُمَّ إِنَّ ذَلِكَ رُفِعَ بَلِّغُوا عَنَّا قَوْمَنَا أَنَّا لَقِينَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَأَرْضَانَا

دغزوه بئر معونه سره متعلق دريم روايت د «سعيد عن قتادة عن أنس رضی الله عنه» دې.حضرت انس رضی الله عنه فرمائي.

رعل اوذکوان عصيه اوبني لحيان د نبي ﷺ نه د دشمن خلاف مدد اوغوښتلو .نو نبي ﷺ اويا انصار د هغوی دمدد دپاره ورکړو.چاته چه مونږ ،،قراء،، وئيل.د هغوی په زمانه کښې (يعنی په هغه زمانه کښې چه نبي ﷺ هم لاژوندې وو.اولوې لوې صحابه رضی الله عنهم هم موجود وو.هغوی ته ،،قراء،،وئيلی شو) دې خلقوبه د ورځې لرګی راجمع کول.(اوهغه به ئې خرڅول.اوخپل ضروريات به ئې پوره کول) اودشپې به ئې مونځونه کول.

دلته په روايت کښې د بنو لحيان ذکر شوې دې.حالانکه د بنو لحيان تعلق د غزوه رجيع سره دې.ددې وجې د بنو لحيان ذکر وهم ګرځولې شوې دې.ځکه چه دا روايت د غزه رجيع سره نه بلکه غزوه بئر معونه سره متعلق دې.(١) حضرت انس رضی الله عنه فرمائي.چه ددې اويا

---

(١)فتح الباری(۳۸۷/۱۷)_

قاريانوپه باره كښې مونږ د قران يو روايت لوستل.خوبيا هغه آيت پورته كړې شو.(اودهغې تلاوت منسوخ شو.) هغه آيت دا وو.((بَلِّغُوا عَنَّا قَوْمَنَا أَنَّا لَقِينَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَأَرْضَانَا))
زمونږ دطرفه زمونږ قوم (مسلمانانو) ته دا خبر وركړئ.چه مونږ د خپل رب سره ملاقات اوكړو. نو هغه زمونږ نه راضى شو.اومونږ دهغه نه راضى يو.په دې آيت كښې د ((قراء سبعين)) قول نقل شوې دې.

[٣٨٦٣]وَعَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ حَدَّثَهُ أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَنَتَ شَهْرًا فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ يَدْعُو عَلَى أَحْيَاءٍ مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ عَلَى رِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَعُصَيَّةَ وَبَنِي لِحْيَانَ زَادَ خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسٌ أَنَّ أُولَئِكَ السَّبْعِينَ مِنَ الْأَنْصَارِ قُتِلُوا بِبِئْرِ مَعُونَةَ قُرْآنًا كِتَابًا نَحْوَهُ

ددې روايت سند دماقبل سره ملاؤ نه دې.دا خانله تعليق دې.ددې روايات په باره كښې امام بخارى رحمه الله فرمائى.چه زما استاذ خليفه (بن خياط) دا اضافه كړې ده.چه يزيد بن زريع مونږ ته بيان كړې وو.چه ((أن أولئك السبعين من الأنصار قتلوا ببئر معونة)) چه اويا صحابه رضي الله عنهم كوم چه په بئر معونه كښې شهيد كړې شوى وو.هغه د انصارو ځنې وو.

((قرآنا كتاباً نحوه)) په پورتنى روايت كښې د حضرت انس رضي الله عنه قول وو.او ((وقرأنا فيهم قرآنا)) دلته ئې ((قرآنا كتاباً)) اووئيل.دا ئې اوخودل.چه دقرآن نه مراد كتاب الله دې.اومطلب دا دې.چه ددې قاريانو د شهادت نه پس ددوى په باره كښې آيت نازل شو.(١)

په دې ذكرشوو څلورو واړو روايتونو كښې دى.چه نبى صلى الله عليه وسلم قنوت وئيل.د ((عبدالعزيز عن أنس رضي الله عنه)) په روايت كښې ددې تصريح ده.چه دا قنوت قبل الركوع وو.او د ((قتادة عن أنس رضي الله عنه)) په روايت كښې دى.چه دا قنوت بعدالركوع وو.

په دواړو روايتونو كښې تطبيق ښكاره دې.چه په اولنى روايت كښې د كوم قنوت ذكر دې.هغه د وترو قنوت دې ،او په دويم روايت كښې قنوت نازله مراد دې.او قنوت نازله د ركوع نه پس وى.په دريم روايت كښې د ((صلاة الصبح)) تصريح ده.وړاندې هم په دې باب كښې يوبل روايت راځى.هغه د فيصله كن درجه لرى.چه د صبا په مانځه كښې قنوت صرف يومياشت پورې وئيلى شو.اوهغه قنوت نازله وو.اوددې نه علاوه چه نور كوم قنوت دى.هغه د وترو قنوت دى.كوم چه قبل الركوع دى.

[٣٨٦٤]حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسٌ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ خَالَهُ أَخٌ لِأُمِّ سُلَيْمٍ فِي سَبْعِينَ

(١) علامه عينى ليكى. ((قرانا كتاباً نحوه غرضه تفسير القرآن بالكتاب كما ذكرناه قوله ..نحوه.. أى نحو رواية عبدالأعلى بن حماد عن يزيد بن زريع إلى آخره وانظر عمدة القارى (١٧٠،١١٧)_~

رَاكِبًا وَكَانَ رَئِيسَ الْمُشْرِكِينَ عَامِرُ بْنُ الطُّفَيْلِ خَيَّرَ بَيْنَ ثَلَاثِ خِصَالٍ فَقَالَ يَكُونُ لَكَ أَهْلُ السَّهْلِ وَلِي أَهْلُ الْمَدَرِ أَوْ أَكُونُ خَلِيفَتَكَ أَوْ أَغْزُوكَ بِأَهْلِ غَطَفَانَ بِأَلْفٍ وَأَلْفٍ فَطُعِنَ عَامِرٌ فِي بَيْتِ أُمِّ فُلَانٍ فَقَالَ غُدَّةٌ كَغُدَّةِ الْبَكْرِ فِي بَيْتِ امْرَأَةٍ مِنْ آلِ فُلَانٍ ائْتُونِي بِفَرَسِي فَمَاتَ عَلَى ظَهْرِ فَرَسِهِ فَانْطَلَقَ حَرَامٌ أَخُو أُمِّ سُلَيْمٍ هُوَ وَرَجُلٌ أَعْرَجُ وَرَجُلٌ مِنْ بَنِي فُلَانٍ قَالَ كُونَا قَرِيبًا حَتَّى آتِيَهُمْ فَإِنْ آمَنُونِي كُنْتُمْ وَإِنْ قَتَلُونِي أَتَيْتُمْ أَصْحَابَكُمْ فَقَالَ أَتُؤْمِنُونِي أُبَلِّغْ رِسَالَةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يُحَدِّثُهُمْ وَأَوْمَئُوا إِلَى رَجُلٍ فَأَتَاهُ مِنْ خَلْفِهِ فَطَعَنَهُ قَالَ هَمَّامٌ أَحْسِبُهُ حَتَّى أَنْفَذَهُ بِالرُّمْحِ قَالَ اللَّهُ أَكْبَرُ فُزْتُ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ فَلُحِقَ الرَّجُلُ فَقُتِلُوا كُلُّهُمْ غَيْرَ الْأَعْرَجِ كَانَ فِي رَأْسِ جَبَلٍ فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيْنَا ثُمَّ كَانَ مِنَ الْمَنْسُوخِ إِنَّا قَدْ لَقِينَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَأَرْضَانَا فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثَلَاثِينَ صَبَاحًا عَلَى رِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَبَنِي لَحْيَانَ وَعُصَيَّةَ الَّذِينَ عَصَوُا اللَّهَ وَرَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت انس رضي الله عنه فرمائي.چه نبی کریم ﷺ ددوی ماما چه د ام سلیم ورور وو.په اویا سورو کښې لیږلې وو.دمشرکانو سردار عامربن طفیل وو.دې مدینې منورې ته راغلې وو.اونبی ﷺ ته ئې په دریو خبروکښې د یوې خبرې اختیاروړکړې وو.نوهغه اووئیل.

**قوله**: يَكُونُ لَكَ أَهْلُ السَّهْلِ وَلِي أَهْلُ الْمَدَرِ أَوْ أَكُونُ خَلِيفَتَكَ أَوْ أَغْزُوكَ بِأَهْلِ غَطَفَانَ بِأَلْفٍ وَأَلْفٍ: په کلوبه ستا حکومت وی.اوپه ښارونو به زما حکومت وی.یا ستا نه پس به ستا خلیفه زه یم.(که په دې دواړو خبروکښې درته یوهم منظور نه وی نو) بیا به د غطفان په زرګونو کسان راولم.اوتا سره به جنګ کوم.

**قوله**: بِأَلْفٍ وَأَلْفٍ: ددې یومطلب خو دا دې.چه چه یو زر سواره به وی.او یو زر اسونه به وی.او یو مطلب دا اخستې شی.چه یو زر اسونه به سرۀ وی.او یو زر اسونه به سرۀ او سپین وی. اوښکاره ده چه کله دوه زره اسونه وی.نو دوه زره سوارۀ به هم وی([1]) مقصد دا چه ډیر لوئې فوځ به راولم.اوتاسره به جنګیږم.

**قوله**: فَطُعِنَ عَامِرٌ فِي بَيْتِ أُمِّ فُلَانٍ فَقَالَ غُدَّةٌ كَغُدَّةِ الْبَكْرِ: بیا عامر د ام فلان په کور کښې په طاعون کښې اخته شو.لکه څنګه چه د خوان اوښ په بدن کښې غټه دانه راوخیژی.دغه شان دهغه په بدن کښې هم غټه دانه راوخته.

**قوله**: فِي بَيْتِ امْرَأَةٍ مِنْ آلِ فُلَانٍ: دلته خو وضاحت نشته.خو داهل سیر یو روایت نقل کړې دې.چه د آل سلول د یوښځې په کور کښې په ده باندې د طاعون دانه راوخته.([2])

[1] )فتح الباری(٣٨٧\٧) وعمدة القاری(١٧١\١٧)
[2] )فتح الباری(٣٨٧\٦) وعمدة القاری(٧١\١٧)_

هغه مرګ ته نزدې شو.نوهغه اوونيل.زما اس راوله.-(زه به په بستره باندې نه مرم) او سور شو.اود اس په شا باندې مړ شو.دا روايت د غزوه بئر معونه د قصې سره متعلق دې .خو چونکه په بئر معونه کښې د شهيدشوو صحابه کرامو رضی الله عنهم اصلي قاتل عامر بن طفيل وو.نو ځکه د جمله معترضه په طور به مينځ کښې دهغه قصه بيان شوه.

**قوله**: فَانْطَلَقَ حَرَامٌ أَخُو أُمِّ سُلَيْمٍ وَهُوَ رَجُلٌ أَعْرَجُ وَرَجُلٌ مِنْ بَنِي فُلَانٍ: دلته په عبارت کښې غلطي شوې ده.صحيح عبارت دا دې.((فانطلق حرام هوو رجل أعرج و رجل من بني فلان)) دا ،،واو،، د ،،هو،، نه پس دې.ځکه که ((وهو رجل أعرج)) اولوستې شي.نودوه خرابيانې لازميږي.

① يودا چه په دې صورت کښې د حضرت حرام رضی الله عنه اعرج کيدل ثابتيږي.حالانکه حضرت حرام اعرج (يعني ګډ) نه وو.

② دويمه دا چه په دې صورت کښې به ترجمه داسې وي.چه يوحضرت حرام رضی الله عنه لاړلو.کوم چه اعرج وو.اويوسړې د بنی فلان نه لاړو.حالانکه تلونکي درې کسان وو.يو حضرت حرام بن ملحان رضی الله عنه.دويم اعرج چه نوم ئې کعب بن زيد رضی الله عنه خودلې شوې دې.اودريم منذربن محمد رضی الله عنه وو.

په وړاندينی روايت کښې د حضرت حرام رضی الله عنه قول دې.((کونا قريباً)) تاسو دواړه نزدې اوسئ.ددې خبرې دليل ښکاره دې.چه د دوی رضی الله عنهما سره دوه کسان وو. دغه شان په يوبل روايت کښې دی.((فانطلق حرام ورجلان معه ،رجل أعرج ورجل من بني فلان)) ددې وجې ښکارده چه ..واو،، د ،،هو،، نه پس وې.خود غلطئ نه ،،واو،، مقدم شوې دې.(۱)

په وړاندی روايت کښې هم هغه خبره ده.چه عامربن طفيل ته کله حضرت حرام بن ملحان رضی الله عنه د نبی ﷺ خط يوړلو.نوحرت حرام رضی الله عنه هم هلته شهيد کړې شو.او رعل ذکوان او عصيه درې واړو په شريکه نور صحابه کرام رضی الله عنهم ئې شهيدان کړل.

**قوله**: فَلُحِقَ الرَّجُلُ: ① په دې کښې يوصورت خو دا دې.چه ((لحق)) معروف اوونلی شي.او ((الرجل)) نه مراد هغه کافرواخستې شي.چاچه حضرت حرام رضی الله عنه په نيزه وهلو باندې شهيد کړې وو.او بيا دخپلوکافرانو ملګروسره ملاؤ شوې وو.يعنی ((لحق الرجل بالمشركين بعد قتل حرام بن ملحان رضی الله عنه))

② دويم صورت دا دې،چه ((لحق الرجل)) کښې ((الرجل)) نه مراد دحضرت حرام رضی الله عنه ملګرې شي.چه هغه د حضرت حرام رضی الله عنه د شهادت نه پس د خپلو مسلمانانوملګرو سره ملاؤ شو. يعنی ((لحق الرجل بالمسلمين))

---

۱ )فتح الباری(۳۸۷\۷) وعمدة القاری (۱۷\۱۷)_

③ دريم صورت دا دې،چه «لحق» مجهول اولوستې شي.او «الرجل» نه مراد حضرت حرام رضي الله عنه و.په دې صورت كښې به مطلب دا شي.چه حضرت حرام رضي الله عنه په نيزه اووهلې شو.نو هغوى «الله أكبر فزت ورب الكعبة» اووئيل.او وفات شو.اودمرګ په غيږه كښې ورغلو.يعنى «لحق الرجل بالموت»

④ يو صورت دا دې.چه «الرجل» (دجيم په سكون سره وى) د «راجل» جمع شي.

اود «رجل» نه مراد د مشركانو ډله واخستې شي.په دې صورت كښې به مطلب دا وى.چه «لحق الرجل المشركون بالمسلمين فقتلوهم»يعنى دكافرانوپيدله ډله د مسلمانانو سره ملاؤ شوه.او هغوى ئې شهيدان كړل.[1]

[٣٨٦٥] حَدَّثَنِي حِبَّانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ قَالَ حَدَّثَنِي ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَنَسٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ لَمَّا طُعِنَ حَرَامُ بْنُ مِلْحَانَ وَكَانَ خَالَهُ يَوْمَ بِئْرِ مَعُونَةَ قَالَ بِالدَّمِ هَكَذَا فَنَضَحَهُ عَلَى وَجْهِهِ وَرَأْسِهِ ثُمَّ قَالَ فُزْتُ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ [ر:٢٦٤٧]

په دې روايت كښې دى.چه حضرت حرام د بئر معونه په موقع په نيزه وهلې شوې وو.

**قوله**: قَالَ بِالدَّمِ هَكَذَا يعنى فعل بالدم هكذا: هغه وينه په خپل مخ او سر باندې اومږله.او وې وئيل «فزت ورب الكعبة» حضرت حرام رضي الله عنه خپل مظلوميت الله تعالى ته د بنكاره كولو دپاره اوپه وينه ككړ مخ او سر،سره دالله تعالى په دربار كښې د پيش كيدو دپاره دا صورت اختيار كړو.

[٣٨٦٦/٣٨٦٧] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ اسْتَأْذَنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبُو بَكْرٍ فِي الْخُرُوجِ حِينَ اشْتَدَّ عَلَيْهِ الْأَذَى فَقَالَ لَهُ أَقِمْ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَتَطْمَعُ أَنْ يُؤْذَنَ لَكَ فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنِّي لَأَرْجُو ذَلِكَ قَالَتْ فَانْتَظَرَهُ أَبُو بَكْرٍ فَأَتَاهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ ظُهْرًا فَنَادَاهُ فَقَالَ أَخْرِجْ مَنْ عِنْدَكَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّمَا هُمَا ابْنَتَايَ فَقَالَ أَشَعَرْتَ أَنَّهُ قَدْ أُذِنَ لِي فِي الْخُرُوجِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ الصُّحْبَةَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّحْبَةَ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ عِنْدِي نَاقَتَانِ قَدْ كُنْتُ أَعْدَدْتُهُمَا لِلْخُرُوجِ فَأَعْطَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِحْدَاهُمَا وَهِيَ الْجَدْعَاءُ فَرَكِبَا فَانْطَلَقَا حَتَّى أَتَيَا الْغَارَ وَهُوَ بِثَوْرٍ فَتَوَارَيَا فِيهِ فَكَانَ عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ غُلَامًا لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الطُّفَيْلِ بْنِ سَخْبَرَةَ أَخِي عَائِشَةَ لِأُمِّهَا وَكَانَتْ لِأَبِي بَكْرٍ مِنْحَةٌ فَكَانَ يَرُوحُ بِهَا وَيَغْدُو عَلَيْهِمْ وَيُصْبِحُ فَيَدَّلِجُ إِلَيْهِمَا ثُمَّ يَسْرَحُ فَلَا يَفْطُنُ بِهِ أَحَدٌ

[1] فتح البارى(٣٨٨/٧) وعمدة القارى(١٨٢/١٧)_

مِنَ الرِّعَاءِ فَلَمَّا خَرَجَ خَرَجَ مَعَهُمَا يُعْقِبَانِهِ حَتَّى قَدِمَا الْمَدِينَةَ فَقُتِلَ عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ يَوْمَ بِئْرِ مَعُونَةَ

[٣٨٦٧] وَعَنْ أَبِي أُسَامَةَ قَالَ قَالَ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ فَأَخْبَرَنِي أَبِي قَالَ لَمَّا قُتِلَ الَّذِينَ بِبِئْرِ مَعُونَةَ وَأُسِرَ عَمْرُو بْنُ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيُّ قَالَ لَهُ عَامِرُ بْنُ الطُّفَيْلِ مَنْ هَذَا فَأَشَارَ إِلَى قَتِيلٍ فَقَالَ لَهُ عَمْرُو بْنُ أُمَيَّةَ هَذَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ فَقَالَ لَقَدْ رَأَيْتُهُ بَعْدَ مَا قُتِلَ رُفِعَ إِلَى السَّمَاءِ حَتَّى إِنِّي لَأَنْظُرُ إِلَى السَّمَاءِ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْأَرْضِ ثُمَّ وُضِعَ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَبَرُهُمْ فَنَعَاهُمْ فَقَالَ إِنَّ أَصْحَابَكُمْ قَدْ أُصِيبُوا وَإِنَّهُمْ قَدْ سَأَلُوا رَبَّهُمْ فَقَالُوا رَبَّنَا أَخْبِرْ عَنَّا إِخْوَانَنَا بِمَا رَضِينَا عَنْكَ وَرَضِيتَ عَنَّا فَأَخْبَرَهُمْ عَنْهُمْ وَأُصِيبَ يَوْمَئِذٍ فِيهِمْ عُرْوَةُ بْنُ أَسْمَاءَ بْنِ الصَّلْتِ فَسُمِّيَ عُرْوَةُ بِهِ وَمُنْذِرُ بْنُ عَمْرٍو سُمِّيَ بِهِ مُنْذِرًا [ر: ٣٦٣]

**قوله**: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي.چه کله په حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه باندې په مکه کښې د. کافرانو د طرفه تکليفونه او مصيبتونه سخت شول.نو هغوى دنبى ﷺ نه د مکې نه دوتلو اوهجرت کولواجازت اوغوستلو. دا واقعه دهغه واقعه نه پس دده.کله چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه د مکې نه وتلې وو.او ابن الدغنه دوى واپس راوستل.نبى کريم ﷺ حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته اوونيل.ته صبر کوه. اوس مه ځه.حضرت ابوبکر رضي الله عنه عرض اوکړو.يارسول الله آيا تاسو ته ددې خبرې اميد شته. چه د الله تعالى دطرفه به تاسو ته دمکې نه د وتلو حکم اوشي؟ نو نبى ﷺ ورته اوفرمائيل. آو زما اميد شته.

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي.چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه به انتظارکولو.يوه ورځ نبى کريم ﷺ د ماسپخين په وخت کښې دحضرت ابوبکر رضي الله عنه کورته راغلو.اووې فرمائيل «أخرج أخرج من عندك» دلته او «اخرج» دې.اوددې نه پس «أخرج من عندك» دې. خو حافظ او عينى چه کوم روايت نقل کړې دې.په هغې کښې صرف «أخرج من عندك»دې.(١) اوهم دا ظاهر دې.

د نبى ﷺ د ارشاد مطلب دا دې چه کوم خلق تاسو سره دى.هغه اوباسه،اوکه د «أخرج» روايت صحيح شي.نوونيلى به شي.چه لږ غونډې بهرته راوخه.اوکوم کسان چه تا سره دى. هغه بيل کړه.مطلب دا وو.چه زمونږ خبره بل څوك واونه رى.حضرت ابوبکر رضي الله عنه اووئيل. حضرت زما سره خو زما دوه لونړه دى.کومې چه زما رازدارې دى.اودهغوى نه د څه خبرې پټولوضرورت نشته.نبى ﷺ اوفرمائيل.تا ته معلومه ده.چه ماته د مکې نه د هجرت کولو حکم اجازت راکړې شوې دې.حضرت ابوبکر رضي الله عنه ورته اوونيل. «الصحبة» يعنى زه د ملګرتيا درخواست کوم.

اول ئې هم درخواست کړې وو،اود دې نه وړاندې دا خبره متعينه وه،چه ورسره به ځى،او

---

(١) فتح البارى(حديث نمبر ٤٠٩٣) ٣٨٩/٧) وعمدة القارى(١٧٣/١٧) حديث نمبر ١٢٩)_

رسول الله ﷺ هم ددې خودلو دپاره راغلې وو،چه اوس تلل دى،خود ادب په وجه حضرت ابوبكر ﷺ دوباره درخواست اوكړو،

**قوله: قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّحْبَةَ:** «الصحبة» خومنصوب دې.يعنى «أختارالصحبة» اويا د مبتدا په وجه مرفوع دې.اوددې خبر محذوف دې.يعنى «لك الصحبة»

حضرت ابوبكر ﷺ عرض اوكړو.يا رسول الله ما سره دوه اوښانې دى.ما دا دواړه د سفر دپاره تيارې كړى دى.ځكه چه انتظار وو.چه نبى ﷺ ته به اجازت ملاويږى.اوبيا به ورسره سفركوى نويوه اوښه ئې د نبى ﷺ دپاره اويوه اوښه ئې د خان دپاره تياره كړې وه.نو يوه اوښه ئې نبى ﷺ ته وركړه.دې ځاى كښې نشته.په بل ځاى كښې به راشى.چه نبى ﷺ ورته اوونيل.ددې قيمت واخله.حضرت ابوبكر ﷺ د قيمت اخستلو نه معذرت اوكړو.نو نبى ﷺ پرې اصرار اوكړو.اووجه دا وه.چه نبى ﷺ غوښتل چه د هجرت پشان مقدس عمل په خپله خرچه اومال سره اوكړى. حضرت ابوبكر ﷺ ته خو چونكه د نبى ﷺ خوشحالى مطلوب وه.ددې وجې هغوى قيمت قبول كړو.

**قوله: وهى الجدعاء:** د نبى ﷺ په اوښوكښې د يوې نوم «قصواء» راغې.د بعضې حضراتو خيال دې ،چه حضرت ابوبكر ﷺ چه كومه اوښه د دوى په خدمت كښې پيش كړې وه. هغه «ناقه قصواء» وه.([1]) خو دلته روايت دې،چه هغه «جدعاء» وه.بعضې خلقو ونيلى دى. چه «جدعاء» ددې وجې وه.چه د هغې غوږونه كټ شوى وو.علامه قسطلانى ﷫ فرمائى.چه ددې غوږ كټ شوې نه وو.بلكه ددې نوم «جدعاء» وو.نو په خپلو خپلو اوښو باندې دواړه د شپې په تياره كښې سوارۀ شول.اوروان شول.دجبل ثور يو غار ته اورسيدل. او دواړه حضرات په هغې كښې پټ شول.

دنبى ﷺ دخپل تحفظ په غرض په غار كښې پټيدل په دې خبره دلالت كوى .چه داسبابو اختيارول د توكل خلاف نه دى.ځكه چه نبى ﷺ پخپله دخپل ځان دپاره د حفاظت دا طريقه اختيار كړه.نبى ﷺ په دې غار كښې درې ورځو پورې پټ وو.([2])

**دحضرت قاسم نانوتوى ﷫ د اتباع جذبه:** د حضرت مولانا قاسم نانوتوى ﷫ متعلق دهغوى په سوانحوكښې ليكلى شوى دى.چه كله د انګريزانو په مقابله كښې هغوى جهاد اوكړو.اوپه هغې كښې ناكامه شول.نو انګريزانو د ظلم اووينې تويولو بازاركرم كړو.په دې موقع باندې انګريزانو په زرګونو عالمان قتل كړى.په چوكونوكښې به هغوى دپانسئ په تخته باندې ئې زوړند كړل.اوبعضې د خنزې په خرمن كښې ژوندى اوګنډلو.اودفن ئې كړلو.

حضرت مولانا قاسم نانوتى ﷫ خو د انګريزانو خلاف برينډه توره وه. اوهغوى په عملى توګه دهغوى خلاف قتال اوجهاد كړې وو.د دوى د ګرفتارولو دپاره انګريزانو كوشش شروع

---

[1] )زاد المعاد (١٣٤/١)_

[2] )د هجرت سره متعلق تفصيل دپاره اوګورئ ابواب الهجرة بخارى جلد اول (٥٥١)_~

كړو.خلقو مولانا ته مشوره ورکړه.چه تاسو پټ شئ. نو دوی د خلقوپه ډير اصرار باندې صرف درې ورځې پټ شو.ځکه چه نبی ﷺ درې ورځې پټ شوې وو.اودرې ورځې پس بيا ښکاره شو.خلقو به ورته ډيرمنت کول.چه د پټيدوپه جواز کښې څه اشکال هم نشته.خودې باوجود د سنت د تابعدارئ غلبه وه.چه هغوی د درې ورځو نه زيات پټيدل اونه زغمل.

يوځل حکومت ته خبر ملاؤ شو.چه مولانا قاسم په فلانی ځای کښې دې. د نيولودپاره سرکاری سپايان راغلل.اومولانا صاحب ورته ملاؤ هم شو.خوالله تعالی ورته څومره جراءت ورکړې وو.اوڅومره حوصله اوبهادری په کښې وه.چه دغه کسان کله د ګرفتارئ دپاره وراورسيدل.نوچونکه هغوی د مولانا د شکل او صورت نه ناخبر وو.نو هم د مولانا نه ئې تپوس اوکړو.چه مولوی قاسم کوم ځای دې؟ مولانا صاحب د خپل ځای نه يو دوه قدمونه وړاندې شو.او وې فرمائيل.اوس خو هم دلته وو.هغوی دا اوګڼړل. چه د بل چا په باره کښې وائی.چه هغه دلته اوس وو.نوهغوی هغه بل کس اونه موندل.دغه شان ناکامه واپس لاړل.اودغه شان مولانا صاحب د نيولونه بچ شو.

يوځل مولانا ديوبند سره نزدې په خپلو پټو کښې په يو کور کښې مقيم وو. خبر ورته ملاؤ شو.چه مولانا په فلانی ځای کښې موجود دې.ګرفتارونکی کسان هلته اورسيدل.مولانا موجود وو.ملاقات ورسره اوشو.هغه خلقو تپوس اوکړو.چه مولوی قاسم کوم ځای دې؟ نولانا قاسم نانوتوی رحمه الله ورته اوفرمائيل.مولوی قاسم سره ملاؤ شوئ.کينئ چئ اوڅکئ. دځه خبرې جلتی ده.هغوی ئې کينول.اوښه قدر اوعزت ئې ورله اوکړو.هغه کسانو اوګڼړل. چه دا کس دومره ښې ويرې مونږ سره ملاويږی.اوزمونږ قدر اوعزت هم کوی.نويقيناً دا به بل څوك وی.اومولانا به بل څوك وی.دغه شان هغوی پاسيدل. لاړل. اومولانا صاحب د ګرفتارئ نه بچ شو.

خبره د مولانا قاسم نانوتی رحمه الله د اتباع سنت کيدله.په حديث کښې راغلی دی.که دچا تبه شوه.نو هغه دې بهر ته لاړشی او سحروختی دې د اوبو د بهيدو طرف ته مخ کړی.اوغسل دې اوکړی.چه څومقرر ورځې داسې اوکړی.نو د تبې نه به ښه شی.مولانا صاحب رحمه الله چه به کله هم تبې اونيولو.نوددې باوجود چه د ديوبند سره نزدې نهرنه وو.خوبيا به هم مولانا صاحب څوميله لرې تلو.اوپه نهر کښې به ئې غسل کولو.اوشفا به ورته ملاويده.ځکه چه په حديث کښې دا علاج خودلې شوې وو.خودا دهرچا کار نه دې.بلکه دا د پوخ يقين خبره ده.هغه يقين کوم چه الله تعالی چاته ورکړی.نودهغې مطابق نتائج اوثمرات ښکاره کيږی.

**قوله**: فَكَانَ عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ غُلَامًا لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الطُّفَيْلِ: عامربن فهيره د عبدالله بن طفيل بن سخبره غلام وو.دلته هم دا نقل شوی دی.خو د رجالو په کتابوکښې په عامه توګه دا ليکلې شوې دی.چه دا عبدالله بن طفيل نه وو.بلکه طفيل بن عبدالله وو.دلته قلب شوې دې.[1] دا عبدالله بن سخبره د حضرت عائشې رضي الله عنها د مور ام رومان اولنې خاوند

[1] )فتح الباری(۳۹۰۱۷)_

وو.عبدالله بن سخبره د حضرت ابوبکر رضی الله عنه حليف وو.کله چه هغه وفات شو.نو د ام رومان سره حضرت ابوبکر رضی الله عنه واده اوکړو،د هغې نه حضرت عائشه او حضرت عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنهما پيدا شول.طفيل هم د ام رومان د بطن نه پيدا شوې وو.خوهغه د اولنی خاوند عبدالله بن سخبره خوې وو.نوپه دې طريقه طفيل د حضرت عائشې رضی الله عنها مور شريك ورور وو.عامربن فهيره د طفيل بن عبدالله غلام وو.حضرت ابوبکر رضی الله عنه هغه اخستې وو.او بيا ئې آزاد کړې وو.حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره لنګه د پيو اوښه وه. عامربن فهيره به هم دغه اوښه د څرولو دپاره دمابنامې ځنګل طرف ته بوتله.توله شپه به ئې په ځنګل کښې تيروله.اوبيا به سحرمکې ته راتله.دشپې په آخرى حصه کښې به ئې د اوښې نه پې اولوشل.اونبی کريم صلی الله علیه وسلم او ابوبکر رضی الله عنه ته به ئې اوړل .او هغوی باندې به ئې پې څکول.کله چه نبی صلی الله علیه وسلم د درې ورځو نه پس د غار ثور نه راووتل.او مدينې منورې ته روان شو.نوعامربن فهيره ورسره هم د هجرت په سفر کښې وو.اودوی دواړو حضراتو به وار په وار په خپلو خپلواښوباندې کينول. حضرت ابوبکر رضی الله عنه ښکاره خبره ده.چه په دې راضي وو.چه نبی صلی الله علیه وسلم مستقل طورپه اوښه باندې سورکړې.خو د نبی صلی الله علیه وسلم خواهش دا وو.چه ماته هم اجرملاويدل پکار دی.تردې چه درې واړه حضرات مدينې ته اورسيدل.

**قوله**: فَقُتِلَ عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ يَوْمَ بِئْرِ مَعُونَةَ: دامام بخاری رحمه الله اصلی مقصد هم دا جمله ده.چه په غزوه بئر معونه کښې حضرت عامربن فهيره شهيدکړې شوې وو.د هجرت دباقی حصې تعلق د غزوه بئر معونه سره نشته.

**قوله**: وَعَنْ أَبِي أُسَامَةَ قَالَ قَالَ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ فَأَخْبَرَنِي أَبِي قَالَ لَمَّا قُتِلَ الَّذِينَ بِبِئْرِ مَعُونَةَ إلخ: دا دماقبل سند سره دې.خودا ئې جدا ځکه ذکرکړ،چه وړاندې کومه واقعه بيانولې شی.په هغې کښې دبير معونه ذکردې.او په ماقبل کښې چه کومه واقعه بيان شوې ده.په هغې کښې صرف د هجرت ذکر دې.حضرت عامر بن فهيره د هجرت په واقعه کښې هم شريك وو.او د بئر معونه په واقعه کښې هم،البته اولنې روايت موصوله وو.او دا روايت مرسله دې. دلته هشام بن عروه د حضرت عروه نه نقل کوی. اوحضرت عروه تابعی دې.د صحابی رضی الله عنه واسطه ئې نه ده ذکرکړې.ددې دواړو دا فرق ښکاره کول هم مقصود وو.ددې وجې ی په «وعن أبي أسامة» سند سره ذکرکړو.حضرت عروه فرمائی.کله چه په بير معونه کښې اويا قاريان شهيدان کړې شول.اوعمروبن اميه ضمری رضی الله عنه قيد کړې شو،نو عامر بن طفيل يو قتيل طرف ته اشاره اوکړه.او تپوس ئې اوکړو.چه دا څوك دې؟ نو هغوی ورته اووئيل.دا عامر بن فهيره رضی الله عنه دې.عامربن طفيل اووئيل.

**قوله**: لَقَدْ رَأَيْتُهُ بَعْدَ مَا قُتِلَ رُفِعَ إِلَى السَّمَاءِ حَتَّى إِنِّي لَأَنْظُرُ إِلَى السَّمَاءِ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْأَرْضِ ثُمَّ وُضِعَ: مادې کتل کله چه دې قتل کړې شو.نودده لاش آسمان طرف ته پورته کړې شو.تردې چه ما آسمان طرف ته کتل.چه د دې لاش د آسمان او زمکې په مينځ کښې معلق دې.بيا هغه لاش په زمکه باندې کيخودې شو.

دلته د بخاى په روايت كښې دى.چه هغه لاش په زمكه باندې كيخودې شو رضي الله عنه خو بعضې اهل سيرو نقل كړى دى.چه هغه لاش بيا زمكې طرف ته رانغلو.(١)

**قوله**: أُصِيبَ يَوْمَئِذٍ فِيهِمْ عُرْوَةُ بْنُ أَسْمَاءَ بْنِ الصَّلْتِ فَسُمِّيَ عُرْوَةُ بِهِ وَمُنْذِرُ بْنُ عَمْرٍو سُمِّيَ بِهِ مُنْذِرًا : عروه بن اسماء بن الصلت په دې اويا قاريانوكښې شهيد شوې وو.نود عروه بن زبير رضي الله عنه نوم هم ددې عروه بن اسماء په نوم باندې كيخودې شو.(ځكه چه د بزرګانو په نوم باندې د تبرك دپاره دماشومانونوم كيخودې شى.خو يوه نكته بله هم ده.چه هغه عروه بن اسماء بن الصلت وو.اود عروه د مور نوم هم اسماء بنت ابى بكر وو.د هغوى د پلار نوم اسماء وو.اود دوى د مور نوم اسماء وو) دغه شان په شهيدانوكښې يو منذر بن عمرو هم وو.د حضرت زبير رضي الله عنه يوبل خوې شوې وو. هغوى دهغه نوم (ددې شهيد په نوم باندې) منذر كيخودو.

[٣٨٦٨\٣٨٧٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَنَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوعِ شَهْرًا يَدْعُو عَلَى رِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَيَقُولُ عُصَيَّةُ عَصَتِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ

[٣٨٦٩] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الَّذِينَ قَتَلُوا يَعْنِي أَصْحَابَهُ بِبِئْرِ مَعُونَةَ ثَلَاثِينَ صَبَاحًا حِينَ يَدْعُو عَلَى رِعْلٍ وَلَحْيَانَ وَعُصَيَّةَ عَصَتِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَنَسٌ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى لِنَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الَّذِينَ قُتِلُوا أَصْحَابِ بِئْرِ مَعُونَةَ قُرْآنًا قَرَأْنَاهُ حَتَّى نُسِخَ بَعْدُ بَلِّغُوا قَوْمَنَا فَقَدْ لَقِينَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَرَضِينَا عَنْهُ

[٣٨٧٠] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ الْأَحْوَلُ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ الْقُنُوتِ فِي الصَّلَاةِ فَقَالَ نَعَمْ فَقُلْتُ كَانَ قَبْلَ الرُّكُوعِ أَوْ بَعْدَهُ قَالَ قَبْلَهُ قُلْتُ فَإِنَّ فُلَانًا أَخْبَرَنِي عَنْكَ أَنَّكَ قُلْتَ بَعْدَهُ قَالَ كَذَبَ إِنَّمَا قَنَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوعِ شَهْرًا أَنَّهُ كَانَ بَعَثَ نَاسًا يُقَالُ لَهُمُ الْقُرَّاءُ وَهُمْ سَبْعُونَ رَجُلًا إِلَى نَاسٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَبَيْنَهُمْ وَبَيْنَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهْدٌ قِبَلَهُمْ فَظَهَرَ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ كَانَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهْدٌ فَقَنَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوعِ شَهْرًا يَدْعُو عَلَيْهِمْ [ر: ٩٥٧و٢٦٤٣]

د قنوت فى الصلاة په باره كښې دا هغه فيصله كن روايت دې.دكوم ذكرچه وړاندې راغلې وو.په دې تصريح ده.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د ركوع نه پس قنوت صرف يو مياشت وئيلې وو.په كوم كښې چه نبى صلى الله عليه وسلم د عربو مشركو قبيلوپه حق كښې خيرې كولې.چا چه په بئر معونه

---
(١) السيرة الحلبية (١٧٣\٣) سرية القراء إلى بئر معونة)_

کښې اويا صحابه رضی الله عنهم شهيدان کړی وو.(دقنوت متعلق فقهي اختلاف دپاره کتاب الصلاة ته مراجعت اوکړئ)

## بَاب غَزْوَةِ الْخَنْدَقِ وَهِيَ الْأَحْزَابُ

## قَالَ مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ كَانَتْ فِي شَوَّالٍ سَنَةَ أَرْبَعٍ

[۳۸۷۱] حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرَضَهُ يَوْمَ أُحُدٍ وَهُوَ ابْنُ أَرْبَعَ عَشْرَةَ سَنَةً فَلَمْ يُجِزْهُ وَعَرَضَهُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ وَهُوَ ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً فَأَجَازَهُ [ر:۲۵۲۱]

غزوه خندق: نبی ﷺ چه کله د يهودو قبيله بنو نضير د مدينې منورې نه اوويستل.نود دې قبيلې يوه ډله په خيبر کښې آباده شوه.اودمسلمانانوخلاف په سازشونوکښې لګيا شول.

کله چه مسلمانانوته په جنګ احد کښې شکست ملاؤ شو.نودوی ته ډيره ښه موقع ملاؤ شوه. نو د دوی په سردارانوکښې حيي بن اخطب،سلام بن ابی الحقيق ، کنانه بن الربيع، مکې معظمې ته لاړل.اوقريش ئې د رسول الله اود مسلمانانو خلاف په جنګ کولوباندې اماده کړل.کنانه بن الربيع د بنوغطفان خلقوته ورغلل. اوورته ئې اووئيل.چه د خيبر په قجورو کښې به مونږ تاسوته هرکال نيمې قجورې درکووخوپه دې شرط چه تاسو د مسلمانانو خلاف دجنګ دپاره تيار شئ.په دې لالچ باندې دا خلق هم د جنګ دپاره تيارشو. دغه شان بنواسد د بنوغطفان حليف وو. دوی هغوی ته هم دملګرتيا کولودپاره اووئيل. هغوی هم تيارشول.دغه شان بنو سليم او بنو سعيد هم تيارشول.[1] نودا لسو زروته نزدې لوئې لښکر تيار شو. او مدينې منورې طرف ته روان شو.په دې کښې د قريشو څلور زره کسان وو.دوی سره درې سوه اسونه اوپنځلس سوه اوښان وو.ابوسفيان د ټول لښکر قيادت کولو. او د احد سره نزدې ډيره شول.[2]

نبی کريم ﷺ ته چه کله ددې خبر ملاؤ شو.نو دوی د صحابو رضی الله عنهم سره مشوره اوکړه.حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه د خندق کنستلومشوره ورکړه.د مدينې منورې نه درې طرفونو ته کورونه او د قجورو باغونه وو.دهغه طرفونو نه حمله کول خود کافرانو دپاره ګرانه وه.صرف د شام طرف ته چه کومه حصه کهولاؤ وه.اود دشمن حمله هم ددغه طرف نه کول وو.نونبی ﷺ د حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه مشوره قبول کړه.اوهم دغه طرف ته ئې دخندق کنستلوحکم ورکړو.نبی ﷺ سره درې زره صحابه کرام رضی الله عنهم د دې خندق په کنستلوکښې شريک وو. نبی ﷺ پخپله حدود مقرر کړل. او کرښې ئې واچولې.په لسو لسو کسانوباندې ئې لس لس ګزه زمکه تقسيم کړه. د خندق ژوروالې پنځه ګزوته نزدې مقرر کړې شوې وو.اوددې اوږدوالې تقريباً درې نيم ميله وه.نبی ﷺ په خپله د خندق په کنستلوکښې شريک

[1] )الکامل لابن اثير (۱۲۲\۲) وطبقات ابن سعد(۶۵\۲) وزادالمعاد (۲۷۰\۳)-

[2] )طبقات ابن سعد(۶۶\۲)_

وو.انصاراومهاجرينو ټول په جمع باندې رجزيه اشعار وئيل.اودخپلې خپلې حصې په کنستلو کښې لګيا وو.بعضې صحابه رضي الله عنهم چه کله دخپلې حصې نه اوزګار شول.نوهغوى د نورو په حصه کښې شريك شول.(١) دغه شان د ابن سعد رحمه الله د روايت مطابق په شپږو ورځو کښې دا خندق تيارشو.(٢) په دې کښې نور روايات هم شته.دبعضو په نيز پنځلس ورځې د بعضو په نيز شل ورځې او د بعضو په نيز څلورويش ورځې.اوپه يو روايت کښې يوه مياشت هم خودلې شوې ده.علامه سمهودى فرمائى.چه په اصل کښې د خندق په کنستلو خو شپږ ورځې لګيدلې وې.البته د محاصرې مودهٔ شل ورځې وه.(٣)

دا د سختې يخنئ موسم وو.د تيزو او يخو هواګانو طوفانونه چليدل .او د قحط زمانه وه.څوورځې مسلمانان په نهره وو.پخپله دنبى صلى الله عليه وسلم په خيټه پورې ګټې تړلې شوې وې.خوداسلام دپاره د قربانئ ورکولو يوه جذبه وه.دکوم په وجه چه د دنيا هرتکليف داسلام دپاره برداشت کول هغوى ته آسان وو.

چه مسلمانان د خندق کنستلونه فارغ شو.نود کافرانو لښکرراورسيدل.اود احد سره ئې ډيره واچوله.مسلمانان مقام سلع ته نزدې ورغلل.ښځو او ماشومان ئې محفوظ قلعه ګانوته د ليږلو حکم اوکړو.اوڅه صحابه رضي الله عنهم ئې دهغوى په حفاظت باندې مقرر کړل.(٤)

دکافرانولښکرچه کله راغلل.اوخندق ئې اوليدلو.نوددې څيزسره وړاندې دهغوى چرته واسطه نه وه راغلې.ددې وجې هغوى نه پوهيدل،چه څنګه حمله اوکړى.صرف يو صورت وو.چه د غشو په ويشتلوسره حمله اوکړى.نود دواړو طرفونو نه غشى ويشتلى کيدل.په دې تيراندازئ کښې حضرت سعدبن معاذ رضي الله عنه زخمى شو.دکومې په وجه چه هغوى روسته بيا وفات شو.

دا سلسله شلو ورځو پورې اودبعضې په نيز يوې مياشتې پورې جارى وه. کافرانو څو منصوبې جوړې کړې.خويوه هم فائده منده نشوه.آخرى دا چه يوه ورځ هغوى مشوره اوکړه.چه ټول به راجمع شو.اويوه عامه او سخته حمله اوکړې شى. نو کافرانو يوه سخته حمله اوکړه.د غشو او د کاڼو باران ئې جوړ کړو.اود عربو مشهورپهلوان عمروبن عبدود، او دده سره عکرمه بن ابى جهل،نوفل بن عبدالله، اوضراربن خطاب وغيره د يوځاى نه په

---

(١) ابن اثير رحمه الله ليکلى دى.چه دخندق د تقسيم په وخت کښې د مهاجرينواوانصارو دحضرت سلمان فارسى رضي الله عنه په باره کښې اختلاف پيدا شو.هره ډله په دې باندې ټينګه وه.چه دوى خان سره شريك کړى.دمهاجرينودعوه وه.چه دې مهاجردې.نو دې به مونږ سره شريك وى.انصارو ده ته انصارى وئيل.اوخپل خان سره ئې شريکول غوستل.نو نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. ((سلمان منا أهل البيت)) سلمان زمونږ اهل بيتو نه دې.اوګورئ (الکامل لابن اثير(١٢٢\٢)_~

(٢) طبقات ابن سعد(٦٧\٢)_

(٣) سيرة مصطفى (٣١١\٢) په حواله د زرقانى (١١٠\٢)_

(٤) سيرة ابن هشام (٢٣١\٣)_

خندق واوړیدل. او مسلمانانوته ئې د مبارزت دعوت ورکړو.عمروبن عبدود په بدرکښې زخمي شوې وو.اوهغه قسم خوړلې وو.چه ترڅو پورې د مسلمانانو نه بدله وانخلم.په سر کښې به تیل نه لګوم. د عمروبن عبدود د مقابلې دپاره حضرت علی رضی الله عنه وراووتل.(۱) عمرو ورته اوونیل. ته ورکوټې ئې.تراوسه پورې تا د ژوند څه خوند نه دې اخستې،نو ته واپس لاړ شه،څوك غټ سړې زما مقابله کښې راوله.زه ستا قتلول نه خوښوم.حضرت علی رضی الله عنه ورته اوونیل.خو زه ستا قتلول خوښوم.ددې په وجه عمرو په غصه کښې راغلو. اود اس نه راکوز شو.په حضرت علی رضی الله عنه باندې ئې ګذار اوکړو.حضرت علی رضی الله عنه د هغه ګذار په ډهال سره منع کړو.خوبه تندې باندې زخمي شو.په جواب کښې حضرت علی رضی الله عنه ګذار اوکړو.اوپه اولنی ګذار باندې ئې هغه جهنم ته او رسول. او نعره تکبیر ئې اوونله.اود فتح اعلان ئې اوکړو.(۲) چه دعمرو مرګ ئې اولیدل. نو د هغه سره چه باقی کوم کسان وو.هغوی اوتختیدل.نوفل بن عبدالله په تختیدو ته کښې په خندق کښې ورپریوتل.حضرت علی رضی الله عنه ورکوز شو.هغه ئې هم په خندق کښې ختم کړو.(۳) دا ډیره سخته ورځ وه.ټول ورځ د غشو ګذارونه کیدل.کافرانود غشو او کاڼو باران جوړ کړې وو.په دغه ورځ مسلسل د نبی صلی الله علیه وسلم نه څلور مونځونه قضا شول.

محاصره هم هغه شان جاری وه.یوه ورځ نعیم بن مسعود اشجعی رضی الله عنه د نبی رضی الله عنه په خدمت کښې حاضر شو.او عرض ئې اوکړو.یارسول الله رضی الله عنه ما ایمان راوړې دې. اوزما قوم ته زما د ایمان راوړو علم نشته.که تاسو اجازت کوئ.نو زه به څه چل اوکړم.نبی صلی الله علیه وسلم ورته اجازت ورکړو.اووې فرمائیل«فإن الحرب خدعة» جنګ خوهم د حیله او تدبیرنوم دې.(۴) نعیم بن مسعود اشجعی د بنو غطفان د قبیلې سردار وو.د قریشو اویهودو دواړو په ده باندې اعتماد وو.هغوی د قریشو او یهودو په مینځ کښې د اختلاف راوستلوعجیبه تدبیر اوکړو. هغه داسې چه اول د بنو قریظۀ یهودو ته راغلل.اوهغوی ته ئې اوونیل.چه تاسوخو په جنګ

---

(۱)ابن کثیر رحمه الله لیکلی دی.چه کله عمروبن عبدود مسلمانانوته د مبارزت دعوت ورکړو.نوحضرت علی رضی الله عنه اودریدل.اود نبی صلی الله علیه وسلم نه ئې د اجازت اوغوستل.چه زه دمقابلې دپاره څم.نبی صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل.دا عمرو دې.مقصد ئې دا وو.چه ته کم عمره ئې.اودې مشهور او تجربه کارپهلوان دې.هغه دوباره مسلمانانوته دعوت ورکړو.حضرت علی رضی الله عنه دوباره اودریدل.نبی صلی الله علیه وسلم ورته دوباره هم هغه خبره اوکړه.په دریم ځل چه کله بیا عمرود مبارزت دعوت ورکړو.نو حضرت علی رضی الله عنه اودریدل.نبی صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل دا عمرو دې.حضرت علی رضی الله عنه عرض اوکړو.که دې عمرو دې.خوبیا هم زه د ده مقابله کول غواړم.نبی صلی الله علیه وسلم اجازت ورکړو.حضرت علی رضی الله عنه لاړل.اوهغه ئې قتل کړو.واپس راغلو.البدایة والنهایة (۱۰۶|۴)_

(۲)الکامل لابن اثیر(۱۲۴|۲)_

(۳)اوګورئ البدایة والنهایة (۱۰۷|۳) البته ابن سعد په طبقات (۶۸|۲) کښې لیکلی دی.چه حضرت زبیربن العوام رضی الله عنه په نوفل باندې په توره ګذار اوکړو.هغه ئې دوه ټکړې کړو.کیدې شی.چه حضرت علی رضی الله عنه اوحضرت زبیر رضی الله عنه دواړو قتل کړې وی._

(۴)سیرة ابن هشام (۲۴۰|۳) وزاد المعاد(۲۷۳|۳)_

كښې شريك شوې ئې. خو تاسودا سوچ كړې دې. كه په جنګ كښې شكست اوشو.نو قريش او بنو غطفان خويه خپلو كورونو ته واپس لاړ شي.خوتاسوبه كوم خوا ځئ.تاسوخويه هم دلته په مدينه كښې د مسلمانانو سره اوسيږئ.په دغه وخت كښې به ستاسوڅه حال وي؟ بنو قريظو ورته اووئيل.چه بيا څه كول پكار دي.حضرت نعيم بن مسعود ﷺ ورته اووئيل.اول اطمينان اوكړئ.دقريشو او بنوغطفان څه كسان خان سره ګانړه كړئ. كه هغوی خپل كسان تاسو سره ګانړه كوي.نو جنګ اوكړئ.ګنی مه كوئ.بنو قريظو ته دا خبره خوښه شوه. اوئيلواووئيل.د قريشونه د كسانو ګانړه كولومطالبه كول پكار ده.حضرت نعيم بن مسعود ﷺ دهغه خاې نه قريشوته راغلل.اوورته ئې اووئيل.تاسوته معلومه ده.چه يهود د مسلمانانو سره په جنګ كولوباندې پښيمانه شوي دي.اوهغوی محمد(ﷺ) ته پيغام ليږلې دې.كه مونږ دقريشو او بنوغطفان څه كسان ګرفتاركړو.اوتاسو ته ئې حوله كړو.نوآيا ته به راضي شې.اومحمد(ﷺ) ورسره رضا ښكاره كړې ده.نواوس د يهوديانو اراده ده.چه ستاسو نه څه كسان په ګانړه كښې واخلي.اوهغه مسلمانانوته حواله كړي.[1]

قريشو اوبنو غطفان عكرمه بن ابی جهل بنو قريظو ته اوليږل.چه د جنګ محاصره ډيره اوږده شوه.اوس تاسو بهرته راوځئ.چه يوځاې شو.اوحمله اوكړو. عكرمه چه هلته ورغلو.نوهغوی ورته اووئيل.چه مونږ به هغه وخت په جنګ كښې شركت كوو.كله چه تاسو څه كسان مونږ سره ګانړه كړئ.كله چه تاسو مونږ سره څه كسان د ګانړې په توګه كينوئ. نو مونږ ته به اطمينان اوشي.هسې نه چه تاسو مونږ يواځې پريږدئ.په دې جواب سره د نعيم بن مسعود ﷺ د خبرې دصداقت قريشواو بنوغطفان ته يقين اوشو.چه هغه چه څه وئيلي وو. هغه صحيح دي.هغوی ورته اووئيل.چه مونږ د ګانړې په توګه تاسوسره خپل كسان نشي ايسارولې.كه جنګ كوئ.خوراشئ.دغه شان د كافرانو په ډلو كښې افتراق راغلو.اوپه خپل منيځ كښې مختلف شو.

دې سره سره الله تعالى يوه تيزه سيلئ راوليږله.هغې د كافرانو د لښكر د خيمو لرګی راوېستل.اودهغې طنابونه مات شول.كټوئ او نور سامان ئې ګډ وډ شو.دڅه په وجه چه كافران بدحواسه شول.اواوويريدل.اوآخردا چه ابوسفيان اعلان اوكړو.چه بنوقريظو زمونږ ملګرتيا پريخودو.زمونږ څاروی هلاك شول.زول (تيزې هوا) زمونږ خيمې اودهغې طنابونه راوويستل.د دې وجې سمدستی واپس روان شئ.دا ئې اووئيل.اوابوسفيان په خپل اوښ سور شو.اودغه شان قريش اونور ټول خلق روان شول.[2]

چه صبا شو.نونبی ﷺ هم دا وئيل اومدينې منورې طرف ته روان شو.چه «لا إله إلا الله وحده لا شريك له، له الملك وله الحمد، وهو على كل شيء قدير، آئبون تائبون عابدون ساجدون لربنا حامدون صدق الله وعده ونصر عبده وهزم الأحزاب وحده» دا د چارشنبې ورځ وه.اود ذوالقعدې ۲۳ تاريخ وو.[3]

---

[1] )اوګورئ البداية والنهاية (٤\١١١و ١١٣) وسيرة ابن هشام (۲۴۰\۳)_~

[2] )طبقات ابن سعد(۶۹\۲)_

[3] )طبقات ابن سعد(۷۰\۲)_

په دي غزا کښې شپږ مسلمانان شهیدان شول.① حضرت سعدبن معاذ② حضرت عبدالله بن سهل③ حضرت انس بن اویس④ حضرت طفیل بن نعمان⑤ حضرت کعب بن زید
⑥ حضرت ثعلبه بن عنمه رضی الله عنهم.
دکافرانو درې کسان قتل شوی وو.① عمروبن عبدود② نوفل بن عبدالله
③ عثمان بن منبه (١)
په غزوه خندق کښې نبی ﷺ حضرت عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنه په مدینه منوره کښې خپل نائب پریخودې وو.(٢)
په غزوه خندق کښې د مسلمانانوشعار (علامتی ټکې) ﴿حم، لاینصرون﴾ (٣) وو.
دحضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه په باره کښې راځی.چه دوی په غزوه خندق کښې دهغه قلعې په حفاظت باندې مامور وو.په کومه کښې چه ښځې وې.د نبی ﷺ ترور یو یهودی د قلعې نه ګیرچاپیره چکرلګونکې اوکتل.نودوی حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه ته اووئیل.چه دې قتل کړه.چرته داسې اونشی.چه دې زمونږ جاسوسی اوکړی. حضرت حسان دهغه د قتلولونه معذرت اوکړو.حضرت صفیې رضی الله عنها په خپله دقلعې یو لرګې راوچت کړو.اوپه هغه یهودی پسې ورغله.هغه لرګي ئې د هغه سر ته راپریخودو.اوهغه ئې قتل کړو.اوبیا راغله.حضرت حسان رضی الله عنه ته ئې اووئیل.اوس دده وسله خو ترې راپرنیزه.حضرت حسان رضی الله عنه ددې نه هم معذرت اوکړو.اووې وئیل.ماته ددې ضرورت نشته.(٤)
خوعلامه سهیلی رحمه الله لیکلی دی.چه دا روایت صحیح نه دې.یوخود دې وجې چه دا منقطع الاسناد دې.دویمه دا چه حضرت حسان رضی الله عنه د قریشو شاعرانو په مذمت کښې اشعار وئیل.اوپه جواب کښې به هغوی هم اشعار وئیل.نوکه حضرت حسان رضی الله عنه دومره بزدل وې.نود هغه مخالف شاعرانوبه دهغوی خلاف په اشعاروکښې دهغه د بزدلۍ ضرور ذکرکولو. حالانکه دهغوی خلاف چه کوم اشعار وئیلی شوی دی.په هغې کښې چرته هم دهغوی د بزدلۍ ذکرنشته.(٥)
**دغزوه خندق په تاریخ وقوع کښې اختلاف:** دغزوه خندق په باره کښې ابن اسحاق،قتاده،او دعامو اهل سیرو اومغازی دا رائې ده.چه دا په ۵ ھ کال کښې واقع شوې وه.(٦) امام بخاری رحمه الله د موسی بن عقبه قول نقل کړې دې.چه دا په ۴ھ کښې واقع شوې وه.اودمحمدبن حزم

---

(١) طبقات ابن سعد(٢\٧٠) وکامل ابن اثیر(٢\١٢٤)_
(٢) البدایة والنهایة (٤\١٠٣)_
(٣) سیرة ابن هشام (٣\٢٣٧) وزادالمعاد (٣\٣٧٣)_
(٤) سیرة ابن هشام (٣\٢٣٩)_
(٥) الروض الأنف (٢\١٩٣و ١٩٤)_
(٦) زادالمعاد(٣\٢٦٩) فصل فی غزوة الخندق)_

ظاهری رحمه الله هم دا رائې ده.هم دا قول د امام مالک رحمه الله هم دې.(١) اودامام بخاری رحمه الله میلان هم دې طرف ته معلومیږی.ځکه چه دوی د موسی بن عقبه رحمه الله قول نقل کړې دې.د ابن اسحاق رحمه الله قول ئې نه دې نقل کړې.

**وجه تسمیه**: غزوه خندق ته ددې وجې غزوه خندق وائی.چه د جبل سلع مخامخ نبی ﷺ خندق کنستلې وو.روسته جبل سلع وو.اومخامخ خندق وو.اودهغې نه اخوا د مشرکانوډلې جمع شوې وې.ددشمن د مخ نیوی دپاره په عربوکښې د خندق کنستلو طریقه نه وه.البته په ایرانیانوکښې دا طریقه وه.اودحضرت سلمان فارسی رضی الله عنه تعلق چونکه د ایران سره وو.هغه ددې نه واقف وو.نوهغوی ددې مشوره ورکړه .او نبی ﷺ هغه منظور کړه.

ددې نه یوه خبره دا هم معلومه شوه.که ددشمن مغلوب کولو دپاره اودخپلې دفاع دپاره که د نورو قومونو ایجاد کړې وسله اوتدبیرونه استعمال کړې شی.نوپه دې کښې څه قباحت نشته.وښیلی شی.چه منو شهربن ابیرج افریدون دحضرت موسی علیه السلام په وخت کښې یوسړې وو.د ټولونه وړاندې هغه د خندق طریقه ایجاد کړې وه.اود هغې نه پس دا بیا په مختلفو قومونو کښې جاری شوه.(٢)

غزوه خندق ته غزوه احزاب هم وائی.احزاب ورته ددې وجې وائی.چه په دې غزوه کښې مشرکانو مختلفې قبیلې د ځان سره کړې وو.اود نبی ﷺ دمقابلې دپاره راغلی وو.چه شمارئې لس زره وو.حالانکه دهغوی په مقابله کښې دمسلمانانوټول تعداد درې زره وو. نوچونکه دکافرانود احزابو راجمع.کیدل په دې غزوه کښې شوی وو.ددې وجې دې غزوې ته غزوه احزاب هم وائی.

**قوله**: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې.چه دوی په غزوه احد کښې نبی ﷺ ته پیش شوې وو.په دغه وخت کښې دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما عمر څورلس کاله وو.نو نبی ﷺ هغه ته اجازت نه وو ورکړې.بیا دغزوه خندق په موقع دوی نبی ﷺ ته پیش شو.په دغه وخت کښې ددوی عمر پنځلس کاله وو.نو نبی ﷺ اجازت ورکړو.

امام بخاری رحمه الله دا روایت نقل کړې دې.په دې روایت کښې د غزوه احد په موقع ددوی عمر څورلس کاله خودلې شوې دې.اوغزوه احد په اتفاق سره په ٣ھ کښې شوې وه.ددې نه پس په غزوه خندق کښې د دوی عمر پنځلس کاله خودلې شوې دې.نومعلومه شوه.چه غزوه خندق په ٣ھ کښې شوې ده.امام بخاری رحمه الله د «كانت فی شوال سنة أربع» په تائید کښې دا روایت پیش کړې دې.

① خولکه ځنګه چه وښیلی شوې دی.چه دعام اهل سیراومغازی په ٥ھ کښې د دې غزوې د

---

(١) زادالمعاد (٢٦٩/٣)۔

(٢) علامه سهیلی رحمه الله لیکلی دی.((وحفر الخندق لم يكن من عادة العرب ولكن من مكائد الفرس وحروبها ـ وأول من خندق الخنادق من ملوك الفرس منوشهربن ابيرج ابن افريدون.. وانظر(الروض ا لأنف (١٨٧/٢)

واقع كيدو قائل دى.هغوى ددې روايت جواب دا كوى.چه د غزوه احد په موقع د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما عمرد څورلسم كال شروع وه.اوپه غزوه خندق كښې د دوى دعمر دپنځلسم كال آخر وو.نوپه دې طريقه به د دوو كالو فاصله شى.اوپه ٥هجرئ كښې واقع كيدو سره به د روايت باب څه تعارض رانشى.

② بعضې حضراتوددې روايت دا جواب وركړې دې.چه په غزوه خندق كښې دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما عمر دپنځلسوكالونه زيات وو.خوچونكه د جهاد د شركت دپاره پنځلس كاله عمرچونكه شرط دې.په دې وجه په روايت كښې دپنځلسوكالو ذكردې.خوددې نه دا نه لازميږى.چه د دوى عمرد پنځلسوكالونه زيات نه وو.(١)

③ دريمه خبره بعضې حضراتودا كړې ده.چه هجرت په ربيع الاول كښې شوې وو. اوهم په دغه كال دربيع الاول نه وړاندې چه كوم محرم وو.نودهغې نه د هجرى كال حساب لګولې شوې دې.هم دا دعامو عالمانوقول دې.البته د يعقوب بن سفيان وغيره خيال دې.چه دهجرى كال د شروع كولوحساب د راروان محرم نه شوې دې. يعنى دهجرت نه لس مياشتې پس چه كوم محرم وو.د هغې نه ددې هجرى كال ابتداء شوې ده.په دې لحاظ سره غزوه بدرپه اولنۍ هجرى غزوه احد په دويمه هجرى اوغزوه خندق په څلورمه هجرى كښې واقع شوى دى.نوكوم كسان چه د غزوه خندق په ۴ هجرئ كښې د واقع كيدو قائلين دى.نوهغوى د هجرى تاريخ شروع د يعقوب بن سفيان قول اختياركړې دې.اوكوم حضرات چه ددې په ٥ هجرئ كښې د واقع كيدو قائلين دى.نودهجرى كال په ابتداء كښې د جمهورو قول اختياركړې دې.نودا څه حقيقى اختلاف نه دې.د كال دوقوع په تعين كښې خو ټول متفق دى.البته د هجرى كال په ابتداء كښې د اختلاف په وجه د ۴هـ او۵هـ فرق راغلې دې.(٢)

خودهجرى كال په ابتداء كښې ديعقوب بن سفيان رائې صحيح نه معلوميږى .ځكه چه ددې په وجه د هجرت نه پس لس مياشتې دهجرى كال په مياشتوكښې نشى شماركيدې.اوددې څه معقوله وجه نشته.نوصحيح خبره هم هغه ده.چه د هجرى كال ابتداء دهجرت دمياشتې يعنى ربيع الاول نه وړاندې چه كوم محرم وو.دهغې نه اوكړې شى.(٣)

دامام مالك رحمه الله رائې دا ده.پكارده چه د هجرى كال تاريخ دې هم د ربيع الاول نه اوكړې شى.ځكه چه هم دا مياشت د هجرت ده.(٤) والله اعلم

[٣٨٧٢] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْخَنْدَقِ وَهُمْ يَحْفِرُونَ وَنَحْنُ نَنْقُلُ

---

(١) دذكرشووتوجيهاتودپاره اوګورئ (زادالمعاد (٢٧٠/٣) ودلائل بيهقى (٣٩٦/٣و ٣٩٧)_~

(٢) دتفصيل دپاره اوګورئ دلائل بيهقى (٣٩٦/٣) باب التاريخ لغزوة الخندق والبداية والنهاية (٩٣/٤و ٩٤)

(٣) البداية والنهاية (٩٤/٤)_

(٤) البداية والنهاية (٩٤/٤)_

التُّرَابَ عَلَى أَكْتَادِنَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهُمَّ لَا عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الْآخِرَةُ فَاغْفِرْ لِلْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ [ر:۳۵۸۶]

حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه فرمائي.چه په خندق كښې مونږ د رسول الله ﷺ سره وو.صحابو رضی الله عنهم به خندق كنستلو.او مونږ به خاوره په خپلو اوږو باندې ديوځاې نه بل ځاې ته اوړله.نو نبي ﷺ اوفرمائيل.

**قوله**: اللّٰهُمَّ لَا عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الْآخِرَةُ فَاغْفِرْ لِلْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ: اې الله اصلي ژوند خود آخرت دې.تاسو مهاجرين اوانصارو اوبخښې.

[۳۸۷۳\۳۸۷۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ حُمَيْدٍ سَمِعْتُ أَنَسًا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُولُ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْخَنْدَقِ فَإِذَا الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَارُ يَحْفِرُونَ فِي غَدَاةٍ بَارِدَةٍ فَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ عَبِيدٌ يَعْمَلُونَ ذٰلِكَ لَهُمْ فَلَمَّا رَأَى مَا بِهِمْ مِنَ النَّصَبِ وَالْجُوعِ قَالَ اللّٰهُمَّ إِنَّ الْعَيْشَ عَيْشُ الْآخِرَةُ فَاغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةُ فَقَالُوا مُجِيبِينَ لَهُ نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدًا عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِينَا أَبَدًا!

عبدالله بن محمد مسندي رحمه الله دامام بخاري رحمه الله استاذ دې.«حدثنا ابواسحاق» يعنى ابراهيم بن محمد بن حارث فزاري.

نبي ﷺ اوكتل.چه صحابو رضی الله عنهم د سختې يخنۍ په موسم كښې خندق كنولو.كله چه نبي ﷺ دهغوى مشقت او ولوږې ته اوكتل.نو وې فرمائيل.

اللّٰهُمَّ إِنَّ الْعَيْشَ عَيْشُ الْآخِرَةُ     فَاغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةُ

صحابو رضی الله عنهم به ددې په جواب كښې وئيل.

نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدًا     عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِينَا أَبَدًا

مونږ يو هغه خلق چا چه بيعت كړې دې د محمد ﷺ سره چه ترڅو پورې مونږ باقي او ژوندي يو.نوهميشه به ددوى په ملګرتيا كښې جهاد كوو.

[۳۸۷۳] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ جَعَلَ الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَارُ يَحْفِرُونَ الْخَنْدَقَ حَوْلَ الْمَدِينَةِ وَيَنْقُلُونَ التُّرَابَ عَلَى مُتُونِهِمْ وَهُمْ يَقُولُونَ نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدًا عَلَى الْإِسْلَامِ مَا بَقِينَا أَبَدًا قَالَ يَقُولُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُجِيبُهُمْ اللّٰهُمَّ إِنَّهُ لَا خَيْرَ إِلَّا خَيْرُ الْآخِرَةِ فَبَارِكْ فِي الْأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةِ قَالَ يُؤْتَوْنَ بِمِلْءِ كَفِّي مِنَ الشَّعِيرِ فَيُصْنَعُ لَهُمْ بِإِهَالَةٍ سَنِخَةٍ تُوضَعُ بَيْنَ يَدَيِ الْقَوْمِ وَالْقَوْمُ جِيَاعٌ وَهِيَ بَشِعَةٌ فِي الْحَلْقِ وَلَهَا رِيحٌ مُنْتِنٌ [ر:۲۶۷۹]

**قوله**: قَالَ يُؤْتَوْنَ بِمِلْءِ كَفِّي مِنَ الشَّعِيرِ فَيُصْنَعُ لَهُمْ بِإِهَالَةٍ سَنِخَةٍ تُوضَعُ بَيْنَ يَدَيِ الْقَوْمِ وَالْقَوْمُ جِيَاعٌ وَهِيَ بَشِعَةٌ فِي الْحَلْقِ وَلَهَا رِيحٌ مُنْتِنٌ: حضرت انس رضی الله عنه فرمائي.چه چونګ اوربشې به صحابو رضی الله عنهم ته وركولې شو.اوهغه اوربشې به په بدبوداره وازګه

کبنې پخولې شو.اومسلمانانوته به مخامخ کیخودې شو.هغه حضرات وږې وو.اوهغه خوراك به ئې په حلق کبنې انختل.(خود ولوږې په وجه به ئې مجبوراً خوړل) اوپه هغې کبنې به بدبوئی هم وه. «يصنع» يطبخ- اهالة، وازگې ته وائی.«بشعة» بفتح الباء وكسر الشين، د خوراك داسې سخا شوې څيز چه په حلق کبنې انخلی.«سنخة» بفتح السين وكسر النون وفتح الحاء، بدبودار څيز ته وائی.

**يوه شبه اودهغې جوابونه:** دلته يوه شبه ده.چه په قرآن کريم کبنې د نبی ﷺ په صفاتو کبنې راځی.چه ﴿وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ﴾ اودلته نبی ﷺ اشعار وائی.

① ددې جواب امام بيهقی رحمه الله دا ورکړې دې.چه په اصل کبنې دا اشعار نه دی.بلکه رجز دې.اود شعرد عالمانو په نيز رجز په اشعاروکبنې داخل نه دی. نو څکه دا د آيت خلاف نه دې.(۱)

② بعضې حضراتوفرمائيلی دی.چه په آيت کبنې چه کومه خبره شوې ده.دهغې مقصدا دې.چه د شعرجوړول د نبی ﷺ د شان مناسب نه دی.اودا دشعرجوړول نه دی.بلکه د شعر ونيل دی.نود قرآن د آيت سره ددې څه تعارض نشته.

[۳۸۷۵،۳۸۷۶] حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ أَيْمَنَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ أَتَيْتُ جَابِرًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فَقَالَ إِنَّا يَوْمَ الْخَنْدَقِ نَحْفِرُ فَعَرَضَتْ كُدْيَةٌ شَدِيدَةٌ فَجَاءُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا هَذِهِ كُدْيَةٌ عَرَضَتْ فِي الْخَنْدَقِ فَقَالَ أَنَا نَازِلٌ ثُمَّ قَامَ وَبَطْنُهُ مَعْصُوبٌ بِحَجَرٍ وَلَبِثْنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ لَا نَذُوقُ ذَوَاقًا فَأَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِعْوَلَ فَضَرَبَ فِي الْكُدْيَةِ فَعَادَ كَثِيبًا أَهْيَلَ أَوْ أَهْيَمَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ائْذَنْ لِي إِلَى الْبَيْتِ فَقُلْتُ لِامْرَأَتِي رَأَيْتُ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا مَا كَانَ فِي ذَلِكَ صَبْرٌ فَعِنْدَكِ شَيْءٌ قَالَتْ عِنْدِي شَعِيرٌ وَعَنَاقٌ فَذَبَحْتُ الْعَنَاقَ وَطَحَنَتْ الشَّعِيرَ حَتَّى جَعَلْنَا اللَّحْمَ فِي الْبُرْمَةِ ثُمَّ جِئْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْعَجِينُ قَدْ انْكَسَرَ وَالْبُرْمَةُ بَيْنَ الْأَثَافِيِّ قَدْ كَادَتْ أَنْ تَنْضَجَ فَقُلْتُ طُعَيِّمٌ لِي فَقُمْ أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَرَجُلٌ أَوْ رَجُلَانِ قَالَ كَمْ هُوَ فَذَكَرْتُ لَهُ قَالَ كَثِيرٌ طَيِّبٌ قَالَ قُلْ لَهَا لَا تَنْزِعْ الْبُرْمَةَ وَلَا الْخُبْزَ مِنْ التَّنُّورِ حَتَّى آتِيَ فَقَالَ قُومُوا فَقَامَ الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَارُ فَلَمَّا دَخَلَ عَلَى امْرَأَتِهِ قَالَ وَيْحَكِ جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ وَمَنْ مَعَهُمْ قَالَتْ هَلْ سَأَلَكَ قُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ ادْخُلُوا وَلَا تَضَاغَطُوا فَجَعَلَ يَكْسِرُ الْخُبْزَ وَيَجْعَلُ عَلَيْهِ اللَّحْمَ وَيُخَمِّرُ الْبُرْمَةَ وَالتَّنُّورَ إِذَا أَخَذَ مِنْهُ وَيُقَرِّبُ إِلَى أَصْحَابِهِ ثُمَّ يَنْزِعُ فَلَمْ يَزَلْ يَكْسِرُ الْخُبْزَ وَيَغْرِفُ حَتَّى شَبِعُوا وَبَقِيَ بَقِيَّةٌ قَالَ كُلِي هَذَا وَأَهْدِي فَإِنَّ النَّاسَ أَصَابَتْهُمْ مَجَاعَةٌ

[۳۸۷۶] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ أَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ بْنُ أَبِي سُفْيَانَ أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ مِينَاءَ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا حُفِرَ الْخَنْدَقُ رَأَيْتُ

---

(۱) السيرة النبوية والآثار المحمدية للسيد أحمد زينی دحلان (۱۰۵/۲) علی هامش السيرة الحلبية)_

بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمَصًا شَدِيدًا فَانْكَفَأْتُ إِلَى امْرَأَتِي فَقُلْتُ هَلْ عِنْدَكِ شَيْءٌ فَإِنِّي رَأَيْتُ بِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمَصًا شَدِيدًا فَأَخْرَجَتْ إِلَيَّ جِرَابًا فِيهِ صَاعٌ مِنْ شَعِيرٍ وَلَنَا بُهَيْمَةٌ دَاجِنٌ فَذَبَحْتُهَا وَطَحَنَتِ الشَّعِيرَ فَفَرَغَتْ إِلَى فَرَاغِي وَقَطَّعْتُهَا فِي بُرْمَتِهَا ثُمَّ وَلَّيْتُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ لَا تَفْضَحْنِي بِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبِمَنْ مَعَهُ فَجِئْتُهُ فَسَارَرْتُهُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ذَبَحْنَا بُهَيْمَةً لَنَا وَطَحَنَّا صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ كَانَ عِنْدَنَا فَتَعَالَ أَنْتَ وَنَفَرٌ مَعَكَ فَصَاحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا أَهْلَ الْخَنْدَقِ إِنَّ جَابِرًا قَدْ صَنَعَ سُورًا فَحَيَّ هَلًا بِكُمْ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُنْزِلُنَّ بُرْمَتَكُمْ وَلَا تَخْبِزُنَّ عَجِينَكُمْ حَتَّى أَجِيءَ فَجِئْتُ وَجَاءَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْدُمُ النَّاسَ حَتَّى جِئْتُ امْرَأَتِي فَقَالَتْ بِكَ وَبِكَ فَقُلْتُ قَدْ فَعَلْتُ الَّذِي قُلْتِ فَأَخْرَجَتْ لَهُ عَجِينًا فَبَصَقَ فِيهِ وَبَارَكَ ثُمَّ عَمَدَ إِلَى بُرْمَتِنَا فَبَصَقَ وَبَارَكَ ثُمَّ قَالَ ادْعُ خَابِزَةً فَلْتَخْبِزْ مَعِي وَاقْدَحِي مِنْ بُرْمَتِكُمْ وَلَا تُنْزِلُوهَا وَهُمْ أَلْفٌ فَأُقْسِمُ بِاللّٰهِ لَقَدْ أَكَلُوا حَتَّى تَرَكُوهُ وَانْحَرَفُوا وَإِنَّ بُرْمَتَنَا لَتَغِطُّ كَمَا هِيَ وَإِنَّ عَجِينَنَا لَيُخْبَزُ كَمَا هُوَ [ر:۳۰۷۰]

**قوله**: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ أَيْمَنَ عَنْ أَبِيهِ: د «ابيه» نه مراد ايمن حبشي دې.دا د ابن ابى عمرومخزومى آزاد كړې غلام وو.اود بخارى رحمه الله په راويانو كښې دې.دا حديث د «من افراد البخارى» څخه دې.په صحيح مسلم كښې نشته.ايمن حبشي وائي.چه زه حضرت جابر رضي الله عنه ته ورغلم.

**قوله**: فَقَالَ إِنَّا يَوْمَ الْخَنْدَقِ نَحْفِرُ فَعَرَضَتْ كُدْيَةٌ شَدِيدَةٌ: حضرت جابر رضي الله عنه فرمائي.چه مونږ په غزوه خندق كښې خندق كنستل.چه يو سخت كټ مخامخ راغلل.صحابو رضي الله عنهم دغه كټه ماته نكړې شوه.نونبى ﷺ ته راغلل.او عرض ئې اوكړو.چه دلته په خندق كښې يوه كټه راوتلې ده.(چه ماتيږى نه)نبى ﷺ اوفرمائيل.زه دركوزيږم.نو نبى ﷺ اودريدل.اود نبى ﷺ په خيټه مباركه پورې ګانړې ترلې شوې وو.د روايت الفاظ دى.«وبطنه معصوب بحجر» ابن حبان رحمه الله دا وهم ګرځولې دې.اوونيلى ئې دى.چه د لفظ «معصوب بحجر» دې.(په زاء سره) اومطلب دا دې.چه نبى ﷺ شا كلكه ترلې وه.(١) د نبى ﷺ په خيټه باندې د ګانړى د ترلو څه حاجت دې. نبى ﷺ خوبه په خپله فرمائيل.«انى أبيت يطعمنى ربى ويسقينى»

حافظ ضياء الدين مقدسى رحمه الله د ابن حبان رحمه الله ترديد كړې دې .خو د هغوى نه وړاندې علامه كرمانى رحمه الله هم د دوى ترديد كړې دې.البته كرمانى رحمه الله دابن حبان رحمه الله نوم نه دې ذكركړې.هغوى فرمائيلى دى.چه د ولوږې د سختئ په وخت كښې خيټه د شا سره لګى.

---

(١) عمدة القارى(١٧/١٨٠)_

اوشا ښکته کیږی.نوپه داسې حالت کښې په اهل حجاز کښې دا طریقه رائجه وه.چه هغوی به دلاس د ورغوی په اندازه په خیټه پورې ګانړې تړل.د دغه کانړی د یخوالی په وجه به په خیټه کښې د ولوږې حرارت کمیدل.اوشا ته به اړانه ملاویده.نوهغه به نیغه وه.(۱)

رسول الله ﷺ سره داسې قسم واقعه پیښیدل د قیاس نه لرې نه ده.تعجب دې. چه ابن حبان رحمه الله په خپل صحیح کښې په خپله د حضرت ابوایوب انصاری رضی الله عنه واقعه نقل کړې ده. چه یوځل نبی ﷺ دخپل عادت نه خلاف د ماسپخین په وخت کښې دکور نه رابهرشو. او بهر ئې دحضرت ابوبکراوحضرت عمر رضی الله عنهما سره ملاقات اوشو.هغوی ته ئې اوفرمائیل. تاسو ولې د کور نه راوتلی ئې.هغوی ورته عرض اوکړو.د ولوږې د تکلیف د وجې د کورنه رابهر شوی یو.نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.زه هم د ولوږې د تکلیف د وجې د کور نه رابهر شوې یم.ددې نه پس د درې واړه حضرات دحضرت ابوایوب انصاری رضی الله عنه کورته لاړل.اوهغه د دوی ملمستیا اوکړه.(۲)

ددې روایت نه معلومه شوه.چه نبی ﷺ ته هم د ولوږې شکایت کیدل.باقی پاتې شود نبی ﷺ ارشاد چه «إني أبيت يطعمني ربي ويسقيني» نوهغه د صوم وصال په موقع باندې دی.د عامو حالاتو په باره کښې نه دی.

**قوله**: وَلَبِثْنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ لَا نَذُوقُ ذَوَاقًا فَأَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِعْوَلَ فَضَرَبَ فِي الْكُدْيَةِ فَعَادَ كَثِيبًا أَهْيَلَ أَوْ أَهْيَمَ: حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی.چه مونږ د درې ورځو راسې څه څکلی نه وو.نبی ﷺ په کداله باندې هغه کانړې اووهل.نوهغه د شګو ډیرې شو.

د«اهيل»او«اهيم»دواړه معنی یوه ده.اومطلب دادې.لکه څنګه چه بهیدونکې شګه وی.چه په هغې باندې پښه کیخودې شی.نوهغه لاندې ځی.دغه شان د نبی ﷺ په ګذار سره هغه ګټه بهیدونکې شګه شوه.(۳)

حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی.چه ما د رسول الله ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو ،یارسول الله ماته د کور تلو اجازت راکړئ.نو کور ته راغلم.ما خپلې ښځې ته اووئیل،ما نبی کریم ﷺ په داسې حالت کښې اولیدل.،چه صبر مې اونکړې شو .تاسره د خوراك دپاره څه شته؟ ښځې اووئیل.ما سره څه جوار دی.او د چیلئ یو بچې دې.نو ما د چیلئ هغه بچې ذبح کړو،او بی بی جوار میچن کړل.تردې چه غوښه مونږ (د پخیدو دپاره) په کټوئ کښې کیخوده.

**قوله**: ثُمَّ جِئْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْعَجِينُ قَدِ انْكَسَرَ: بیا زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم.او اوړه مات شوی وو. یعنی اوړه اخکلې شوې وو.اوښه

---

(۱) اوګورئ شرح کرمانی (۱۶/۲۰)۔

(۲) اوګورئ ((الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان (۳۲٤۸) باب ذكرالأمر بتحميدالله جل وعلا عند الفراغ من الطعام على ما أسبغ وأفضل وأنعم))۔

(۳) فتح الباری(۳۹۷/۷)۔

ناوخته شوې وو.په اوړو کښې خمبیره راپورته کیدل شروع شوی وو.کله چه په اوړو کښې خمبیره راپورته شی.نودهغې پاسنې طرف ماتیدل شروع شی.اوپه هغې کښې درازونه جوړ شی.((والعجین قد انکسر)) سره هم ددې بیان کوی.

**قوله**: وَالْبُرْمَةُ بَيْنَ الْأَثَافِيِّ قَدْ كَادَتْ أَنْ تَنْضَجَ: اوکټوئ په نغری وه.اوپخیدو ته نزدې وه.

((الأثافی)) هغه درې کانړو ته وائی.کومه چه د نغری جوړولو دپاره کیخودې شی.ددې مفرد ((الأثفیة)) دې[1]

حضرت جابر رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.او عرض ئې اوکړو .لوږه غوندې روټئ ده.تاسو تشریف راوړئ.یو یا دوه کسان ځان سره راولئ.نبی ﷺ تپوس اوکړو. څومره روټئ ده.ما ورته اوخودل.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.((کثیر طیب)) اودا ئې هم اوفرمائیل. ترڅو چه زه نه یم راغلې.نو بی بی ته اووایه.چه نه کټوئ د نغری نه راکوزوی.اونه په تندور کښې روټئ لګوی.بیا نبی ﷺ اعلان اوکړو.جابر دعوت کړې دې.ټول راشئ.بل خوا حضرت جابر رضی الله عنه کورته لاړل.اوبی بی ته ئې اووئیل.((ویحك)) غرقه شي.نبی ﷺ خو مهاجرین او انصار ټول ځان سره راولی.

داخو معلومه ده.چه د حضرت جابر رضی الله عنه ښځه ناتجربه کاره نه وه.هغې د حضرت جابر رضی الله عنه نه تپوس اوکړو.چه نبی ﷺ ستا نه د روټئ په باره کښې تپوس کړې وو.حضرت جابر رضی الله عنه ورته اووئیل. آو.تپوس خو ئې رانه کړې وو.په دې باندې هغه مطمئنه شوه.چه به نبی ﷺ په خپل ځان او په الله باندې بهروسه کوی.او راځی به.([2]) نبی ﷺ صحابوﷺ ته اوفرمائیل. ((ادْخُلُوا وَلَا تَضَاغَطُوا)) یعنی دننه راځئ.خو رش مه جوړوئ.نو نبی ﷺ روټئ شوکوله.اوپه هغې باندې ئې د غوښې ټکړې کیخودلې.اود کټوئ نه غوښه او د تنور نه ئې روټئ راخستلې.اوهغه (کټوئ او تنور) به ئې بیا پټول.دغه شان به نبی ﷺ د روټو نه ټکړې جوړولې.اود کټوئ نه به ئې سمسئ راډکوله.تردې چه ټول ماړه شول.اوڅه روټئ پاتې هم شوه.بیا نبی ﷺ دحضرت جابر رضی الله عنه بی بی ته مخاطب شو.او وې فرمائیل.

**قوله**: كُلِي هَذَا وَأَهْدِي فَإِنَّ النَّاسَ أَصَابَتْهُمْ مَجَاعَةٌ: دا تاسو په خپله هم اوخورئ. اومحلې اوګاونډیانو کره هم هدیه اولیږئ.ځکه چه خلقو باندې ولوږه ده.یعنی دقحط زمانه ده.خلق په ولوږه اوتنده کښې اخته دی.

**قوله**: حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ..: په دې حدیث کښې هم د حضرت جابر رضی الله عنه د دعوت واقعه بیان شوې ده.

---

[1] )شرح الکرمانی (۳۰/۱۸)_
[2] )فتح الباری(۳۹۸/۱۷)_

**قوله**: وَلَنَا بُهَيْمَةٌ دَاجِنٌ فَذَبَحْتُهَا: داجن هغه چيلۍ ته وائى.كوم چه په كور كښې ساتلى شى.اوهغه چراګاه ته نشى ليږلې.

**قوله**: إِنَّ جَابِرًا قَدْ صَنَعَ سُورًا: ،،سور،، هغه دعوت ته وئيلى شى.كوم چه د وادهٔ په موقع باندې كولې شى.اوپه واده كښې ښكاره ده.چه لوې دعوت وى.ددې وجې دلته وئيلى شوى دى.چه جابر رضي الله عنه د يو ډير لوى دعوت اهتمام كړې دې.هسې خو ،،سور،، د قلعې ديوال ته هم وائى.خودا غيرعربى لفظ دې.(١)

**قوله**: فَحَيَّ هَلًا بِكُمْ: ((فحى هلا بكم، أى هلموا مسرعين)) يعنى ټول په جلتۍ سره زر لاړ شئ.(٢)

[٣٨٧٧] حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا إِذْ جَاءُوكُمْ مِنْ فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنْكُمْ وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ قَالَتْ كَانَ ذَاكَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ

[٣٨٧٨] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ التُّرَابَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ حَتَّى أَغْمَرَ بَطْنَهُ أَوْ اغْبَرَّ بَطْنُهُ يَقُولُ وَاللَّهِ لَوْلَا اللَّهُ مَا اهْتَدَيْنَا وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا فَأَنْزِلَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا وَثَبِّتْ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا إِنَّ الْأُلَى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا إِذَا أَرَادُوا فِتْنَةً أَبَيْنَا وَرَفَعَ بِهَا صَوْتَهُ أَبَيْنَا أَبَيْنَا [ر:٢٦٨١]

[٣٨٧٩] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي الْحَكَمُ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نُصِرْتُ بِالصَّبَا وَأُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُورِ [ر:٩٨٨]

**قوله**: حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ: عبده: دا د راوى لقب دې.ددوى نوم عبدالرحمن بن سليمان كلابى رحمه الله دې.(٣)

حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائى.چه ﴿إِذْ جَاءُوكُمْ مِنْ فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنْكُمْ﴾ (٤) ددې آيت تعلق د غزوه خندق سره دې.

---

(١) ايضاً_

(٢) فتح البارى(٣٩٩/٧)_

(٣) عمدة القارى(١٨٢/١٧)_

(٤) دا دسورة احزاب د لسم آيت حصه ده.پوره آيت داسې دې. ((إِذْ جَاءُوكُمْ مِنْ فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنْكُمْ وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا ..))
(اوياد كړئ هغه وخت)كله چه دغه خلق په تاسوراوختل.د پورته طرف نه هم او د ښكته طرف نه هم،اوكله چه سترګې وازې پاتې شوې.اوزړونه خولې ته راورسيدل.اوتاسوخلقو په الله تعالى باندې قسم قسم ګمانونه كول)_

**قوله**: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ: حضرت براء فرمائي.چه غزوه خندق کښې نبي ﷺ خاورې اوړلې.تردې چه هغې د نبي ﷺ خيټه مبارکه پټه کړې وه.د نبي ﷺ خيټه د خاورو شوې وه.د راوي شك دې.چه «اغبر» ئې وئيلي دي.اوكه «اغبر» ئې وئيلي دي.په دې موقع باندې نبي ﷺ د حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ دا اشعار وئيل.

وَاللهِ لَوْلَا اللهُ مَا اهْتَدَيْنَا وَ لَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا

فَأَنْزِلَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا وَ ثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا

إِنَّ الْأُلَى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا إِذَا أَرَادُوا فِتْنَةً أَبَيْنَا

① په الله قسم: كه چرته دالله تعالى رحمت نه وو.نو مونږ به نه هدايت بيامونديې وو.اونه به مو صدقه وركوله.اونه به مو مونځونه كول.

② اې الله په مونږ باندې سكينه نازله كړې.اودجنګ په وخت كښې مونږ ثابت قدم كړې.

③دې خلقو په مونږ باندې ظلم كړې دې.كله چه دا خلق مونږ په فتنه كښې د اچولو اراده كوى.نو مونږ به انكار كوو.

دا آخرى كلمه «أبينا» به نبي ﷺ په اوچت آواز سره بار بار وئيله.

**قوله**: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ: ابن عباس ﷺ د نبي كريم ﷺ نه روايت كوى.چه د باد صبا په ذريعه زما مدد كړې شوې دې.او د دبور په ذريعه قوم عاد تباه شوې دې.صبا د مشرق طرف نه راتلونكى باد ته وائي.اود بور د مغرب طرف نه راتلونكى باد ته وائى.[1]

چونكه په غزوه خندق كښې الله تعالى په مشرقى بادسره دنبي ﷺ او مسلمانانو مدد كړې وو.ددې وجې امام بخارى ﷺ دا روايت په دې باب كښې ذكر كړو.

[۳۸۱۰]حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ يُحَدِّثُ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ الْأَحْزَابِ وَخَنْدَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُهُ يَنْقُلُ مِنْ تُرَابِ الْخَنْدَقِ حَتَّى وَارَى عَنِّي الْغُبَارُ جِلْدَةَ بَطْنِهِ وَكَانَ كَثِيرَ الشَّعْرِ فَسَمِعْتُهُ يَرْتَجِزُ بِكَلِمَاتِ ابْنِ رَوَاحَةَ وَهُوَ يَنْقُلُ مِنْ التُّرَابِ يَقُولُ

اللَّهُمَّ لَوْلَا أَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا

فَأَنْزِلَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا وَثَبِّتْ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا

إِنَّ الْأُلَى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا وَإِنْ أَرَادُوا فِتْنَةً أَبَيْنَا

ثُمَّ يَمُدُّ صَوْتَهُ بِآخِرِهَا [ر:۲٦٨٠]

---

[1] )فيض البارى(٤\٩٩) باب غزوة الخندق(_

په دې روایت کښې هم هغه خبره شوې ده.چه نبی ﷺ په غزوه خندق کښې رجزیه اشعار وئیل. البته په دې روایت کښې یوه جمله ده.چه «وکان کثیرالشعر» یعنی د نبی ﷺ په سینه مبارکه باندې ویخته زیات وو.ددې سره په ظاهره د شمائل ترمذی روایت متعارض معلومیږی.په کوم کښې چه دی.چه نبی ﷺ «طویل المسربة» وو،، مسربه،، د ویختو هغه نرئ کرښې ته وائی.کومه چه د سینې نه تر نامه پورې ځی.نو ددې روایت تقاضا دا ده.چه ویخته کم وی.دهغه روایت تقاضا دا ده.چه ویخته کم وو:او دلته ورته «کثیرالشعر» وئیلې شوې دې.

① په دواړو روایتونوکښې یوتطبیق داسې شوې دې.چه هغه کرښه اګرچه وه نرئ لکه څنګه چه د شمائل ترمذی په روایت کښې دی.خوپه دغه نرئ کرښه کښې ویخته زیات وو.ددغه ویختو د ګنړوالی نه دلته په کثرت شعر سره تعبیر شوې دې.([1])

② دویمه خبره حضرت انورشاه کشمیری رحمه الله کړې ده.چه داسې قسم څیزونه نشی منضبط کولې.یو کس به کتلې وی.هغه به محسوس کړی دی.چه ویخته زیات دی.نو هغه «کثیر الشعر» نقل کړی دی.بل کس لیدلی دی.اوهغه کم محسوس کړی دی.نوهغه دخپلې مشاهدې مطابق روایت نقل کړې دې.اوښکاره ده چه د هرسړی مشاهده اود ده تاثرجدا جدا وی.([2])

[۳۸۸۱]حَدَّثَنِي عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ هُوَ ابْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ أَوَّلُ يَوْمٍ شَهِدْتُهُ يَوْمُ الْخَنْدَقِ

[۳۸۸۲]حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ وَأَخْبَرَنِي ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ خَالِدٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى حَفْصَةَ وَنَسْوَاتُهَا تَنْطُفُ قُلْتُ قَدْ كَانَ مِنْ أَمْرِ النَّاسِ مَا تَرَيْنَ فَلَمْ يُجْعَلْ لِي مِنْ الْأَمْرِ شَيْءٌ فَقَالَتْ الْحَقْ فَإِنَّهُمْ يَنْتَظِرُونَكَ وَأَخْشَى أَنْ يَكُونَ فِي احْتِبَاسِكَ عَنْهُمْ فُرْقَةٌ فَلَمْ تَدَعْهُ حَتَّى ذَهَبَ فَلَمَّا تَفَرَّقَ النَّاسُ خَطَبَ مُعَاوِيَةُ قَالَ مَنْ كَانَ يُرِيدُ أَنْ يَتَكَلَّمَ فِي هَذَا الْأَمْرِ فَلْيُطْلِعْ لَنَا قَرْنَهُ فَلَنَحْنُ أَحَقُّ بِهِ مِنْهُ وَمِنْ أَبِيهِ قَالَ حَبِيبُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَهَلَّا أَجَبْتَهُ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَحَلَلْتُ حُبْوَتِي وَهَمَمْتُ أَنْ أَقُولَ أَحَقُّ بِهَذَا الْأَمْرِ مِنْكَ مَنْ قَاتَلَكَ وَأَبَاكَ عَلَى الْإِسْلَامِ فَخَشِيتُ أَنْ أَقُولَ كَلِمَةً تُفَرِّقُ بَيْنَ الْجَمْعِ وَتَسْفِكُ الدَّمَ وَيُحْمَلُ عَنِّي غَيْرُ ذَلِكَ فَذَكَرْتُ مَا أَعَدَّ اللَّهُ فِي الْجِنَانِ قَالَ حَبِيبٌ حُفِظْتَ وَعُصِمْتَ قَالَ مَحْمُودٌ عَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ وَنَوْسَاتُهَا

حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی.

---

[1] )فتح الباری(۴۰۱/۷)_

[2] )فیض الباری(۹۹/۴) باب غزوة الخندق)_

**قوله**: دَخَلْتُ عَلَى حَفْصَةَ وَنَسْوَاتُهَا تَنْطُفُ: زه حضرت حفصې رضي الله عنها ته ورغلم.اودهغوی د ويختونه د اوبو څاڅکی څڅيدل.((نوساة)) د ((نوسة)) جمع ده.د ((ناس ينوس)) معنى خوزيدل دى.دلته زلفو اوويختو ته ،،نوساة،، ونيلې شوې دې.غالباً چه هغوی سر وينځلې وو.اود اوبو څاڅکی دهغې نه څڅيدل.ددې وجې په هغې باندې د((نوساة)) اطلاق شوې دې.(١)

دلته دوه نسخې دى.زمونږ په نسخه كښې ((نوساتها)) دې.اوپه بعضې نسخو كښې ((نسواتها)) دې.علامه عينى اوعلامه قسطلانى رحمهما الله هم ((نسواتها)) نقل كړې دې. خو كرمانى رحمه الله وئيلى دى.چه ((نسواتهاليس بشئ)).(٢)

امام بخارى رحمه الله هم ددې روايت په آخر كښې د عبدالرزاق نه روايت نقل كوى.په هغې كښې دى.((قال محمد عن عبدالرزاق،، نوساتها)) دى.دا تائيد امام بخارى ددې دپاره پيش كوى.چه ((نسوات)) نقل كونكى هم موجود دى.اودا نقل صحيح نه دې.نود ((نوسات)) نسخې ته به صحيح ونيلې شى.

حضرت ابن عمر رضي الله عنهما حضرت حفصې رضي الله عنها ته اووئيل.دخلقو معامله ته وينې.يعنى د امارت په باره كښې د حضرت على اوحضرت اميرمعاويه رضي الله عنهما په مينځ كښې د اختلاف تاسوته علم دې.ما سره په دې باره كښې نه څه مشوره شوې ده.اونه څه قسم خبره شوې ده.حضرت حفصې رضي الله عنها ورته اووئيل.ته لاړه شه خلق به ستا انتظار كوى.او زما ويره ده.كه ته لاړ نشې.او ايسار شې.نوپه مسلمانانوكښې به تفريق او انتشار پيدا شى.نوحضرت حفصې رضي الله عنها حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په تلو باندې مجبوره كړو.حضرت ابن عمر رضي الله عنهما هلته لاړلو.حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه خطبه وركوله او ووې وئيل.

**قوله**: مَنْ كَانَ يُرِيدُ أَنْ يَتَكَلَّمَ فِي هَذَا الْأَمْرِ فَلْيُطْلِعْ لَنَا قَرْنَهُ فَلَنَحْنُ أَحَقُّ بِهِ مِنْهُ وَمِنْ أَبِيهِ: كوم كس چه ددې خلافت په باره كښې خبره كول غواړى.نوهغه دې خپل مخ مونږ ته رابنكاره كړى.مونږ دهغه (ابن عمر رضي الله عنهما) اودهغه د پلارنه د خلافت زيات حقدار يو. په دې جمله كښې حضرت معاويه رضي الله عنه په حضرت عبدالله بن عمراودهغه په پلار رضي الله عنهما باندې تعريض كوى.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمانى.چه حضرت معاويه رضي الله عنه خود حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه ډير تعريف كولوبلكه ددوى په تعريف كښې به ئې د مبالغې نه كار اخستل.نودا خبره د هغوى د شان نه ډيره لرې ده.چه هغوى حضرت عمر رضي الله عنه باندې تعريض كړې وى.بلكه په بعضې رواياتوكښې دى.چه دا تعريض په حضرات حسنينو او حضرت على رضي الله عنه باندې وو.(٣)

---

(١) فتح البارى(٤٠٣/١٧)_

(٢) شرح الكرمانى (٣٣/١٦)_

(٣) فتح البارى(٤٠٤/١٧)_

خود عبدالرزاق په روايت كښې په حضرت عبدالله بن عمر او حضرت عمر رضي الله عنهما باندې د تعريض تصريح ده.د روايت الفاظ دا دى.«فقام معاوية عشية فأثنى على الله بما هو أهله ثم قال أما بعد فمن كان متكلماً في هذا الأمر فليطلع لي قرنه فوالله لا يطلع فيه أحد إلا كنت أحق به منه ومن أبيه قال يعرض بعبدالله بن عمر» ([1])

دغه شان وړاندې د حبيب بن مسلمه قول هم په دې روايت كښې راغى.چه هغوى حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ته اووئيل.تاسو معاويه رضي الله عنه ته جواب ولې ورنكړو.نوحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما اوفرمائيل.ما په هغه وخت كښې خپل څادر د احتباء په طريقه تړلې وو.او دا اراده مې كړې وه.چه هغه ته اووايم .«أحق بهذا الأمر من قاتلك وأباك على الإسلام» چه ددې خلافت زيات حقدار هغه څوك دې.چه تا سره او ستا د پلار سره ئې د اسلام دپاره جنګ كړې وو.خووددې ويرې د وجې چه زما په خبره به په مسلمانانو كښې انتشارپيدا شى.اووينې به توى شى.ما دهغې جواب ورنكړو.ما په دغه موقعه هغه نعمتونه ياد كړل.كوم چه الله تعالى د صبركونكو دپاره تياركړى دى.ددې نه ښكاره ده.چه دحضرت معاويه رضي الله عنه دا تعرض په حضرت عبدالله بن عمر اوحضرت عمرفاروق رضي الله عنهما باندې وو.

دا حضرت معاويه رضي الله عنه لغزش وو.هغه ته د حضرت عمر فاروق په باره كښې د داسې تعريض حق حاصل نه وو.مونږ خودا ګڼړو.چه هغه ته په حضرت على رضي الله عنه باندې هم د داسې تعريض كولو حق حاصل نه وو.ځكه چه حضرت على رضي الله عنه دخپل مقام اومرتبې اود فضائلو په اعتبار سره د حضرت معاويه رضي الله عنه نه ډير اوچت وو. باقي دا خبره چه د حضرت على رضي الله عنه اوحضرت معاويه رضي الله عنه په مينځ كښې د حضرت عثمان رضي الله عنه د قصاص په باره كښې كومه جګړا پيدا شوې وه.نوهغه بله خبره ده. خود خلافت بهرصورت حضرت على رضي الله عنه حقدار وو.اګرچه راجحه دا ده.چه د خلافت استحقاق وى.اوكه د قصاص معامله،په هغې كښې حق د حضرت على رضي الله عنه سره وو.اودحضرت معاويه رضي الله عنه دپاره دهغوى په اجتهاد كښې سره د غلطئ نه اجر دې.

په اصل كښې دحضرت معاويه رضي الله عنه په خيال كښې د خلافت زيات حقدار هغه سړې دې.څوك چه ذى رائې وى.د فضائلو په دې كښې څه اعتبار نه وى.([2]) او حضرت معاويه رضي الله عنه بهرحال د عربو په مشهورو مدبرينوكښې وو.دعربو څلور ،،دهاة،،مشهوردى.

① حضرت امير معاويه ② حضرت عمروبن العاص ③ حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنهم

④ اوزياد بن ابى سفيان.دا خلق ډير ذهين اوپه سياسى اموروكښې ډيرزيات ماهر وو.

**د ترجمة الباب سره د روايت مناسبت:** چونكه حضرت ابوسفيان او حضرت معاويه رضي الله عنهما د جنګ خندق په موقع د مسلمانانو خلاف په جنګ كښې دكافرانوپه مرسته كښې په جنګ كښې شريك وو.اوحضرت عبدالله بن عمر،اوحضرت عمراونوروصحابو رضي الله عنهم دهغوى مقابله

---

[1] )مصنف عبدالرزاق غزوة ذات السلاسل وخبر على ومعاوية رضى الله عنهما (٤٦٥/٥)_

[2] )فتح البارى (٤٠٤/٧)_

كړې وه.په روايت كښې په((أحق بهذا الأمر منك من قاتلك وأباك على الإسلام)) سره غزوه خندق ته اشاره ده.او هم په دې مناسبت سره امام بخارى رحمه الله د دې روايت تخريج كړې دې.(١) والله اعلم.

[٣٨٨٣\٣٨٨٣] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْأَحْزَابِ نَغْزُوهُمْ وَلَا يَغْزُونَنَا

[٣٨٨٣] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ سَمِعْتُ أَبَا إِسْحَاقَ يَقُولُ سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ صُرَدٍ يَقُولُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ حِينَ أَجْلَى الْأَحْزَابَ عَنْهُ الْآنَ نَغْزُوهُمْ وَلَا يَغْزُونَنَا نَحْنُ نَسِيرُ إِلَيْهِمْ

د سليمان بن صرد رضي الله عنه په بخارى كښې صرف دوه روايتونه دى.(٢) يو دا روايت دې.اوبل په ((باب صفة إبليس)) كښې دې.فرمائى.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د غزوه خندق په ورځ فرمائيلى وو. ((نغزوهم ولايغزوننا)) اوس به مونږ هغوى سره جنګيږو. اوهغوى به (اقدام نه كوى.چه) مونږ سره اوجنګيږى. نو هم داسې اوشوه.چه دغزوه خندق نه پس د كافرانو نه بيا اقدام اونشو.بلكه مسلمانانو په فتح مكه كښې اقدام اوكړو.

[٣٨٨٥] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ مَلَأَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ بُيُوتَهُمْ وَقُبُورَهُمْ نَارًا كَمَا شَغَلُونَا عَنْ صَلَاةِ الْوُسْطَى حَتَّى غَابَتِ الشَّمْسُ [ر:٢٧٧٣]

[٣٨٨٦] حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ جَاءَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ بَعْدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ جَعَلَ يَسُبُّ كُفَّارَ قُرَيْشٍ وَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا كِدْتُ أَنْ أُصَلِّيَ حَتَّى كَادَتِ الشَّمْسُ أَنْ تَغْرُبَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللَّهِ مَا صَلَّيْتُهَا فَنَزَلْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُطْحَانَ فَتَوَضَّأَ لِلصَّلَاةِ وَتَوَضَّأْنَا لَهَا فَصَلَّى الْعَصْرَ بَعْدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلَّى بَعْدَهَا الْمَغْرِبَ [ر:٥٧١]

**قوله**: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ: حضرت على رضي الله عنه فرمائى.چه نبى صلى الله عليه وسلم په غزوه خندق كښې فرمائيلى وو.الله تعالى دې د دوى كورونه او ددوى قبرونه د اور نه ډك كړى.چه دوى مونږ د صلاة وسطى نه بند كړو.تردې چه نمر پريوتلو.(اود مازيګر مونځ قضاء شو) دا روايت اودې نه مخكښې روايت په ((مواقيت الصلاة)) كښې تيرشوې دې.

[٣٨٨٧] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْأَحْزَابِ مَنْ يَأْتِينَا بِخَبَرِ الْقَوْمِ فَقَالَ الزُّبَيْرُ أَنَا ثُمَّ

---

(١) فتح البارى(١٧\٤٠٤)_
(٢) عمدة القارى(١٧\١٨٦)_

قَالَ مَنْ يَأْتِينَا بِخَبَرِ الْقَوْمِ فَقَالَ الزُّبَيْرُ أَنَا ثُمَّ قَالَ مَنْ يَأْتِينَا بِخَبَرِ الْقَوْمِ فَقَالَ الزُّبَيْرُ أَنَا ثُمَّ قَالَ إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيَّ وَإِنَّ حَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ [ر:۲٦٩١]

حضرت جابر رضي الله عنه فرمائى.چه نبى صلى الله عليه وسلم د غزوه احزاب په موقع باندې فرمائيلى وو.مونږ ته به د قوم خبر څوك راوړى.نوحضرت زبير رضي الله عنه اوفرمائيل.زه ،نبى صلى الله عليه وسلم بيا اوفرمائيل.«من يأتينا بخبر القوم» نو حضرت زبير رضي الله عنه اوفرمائيل. «أنا» نو نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.«إن لكل نبي حواريا وإن حواري الزبير» دهر پيغمبر يو حوارى (خاص مددګار) وى.اوزما حوارى زبير دې.

دصحيح مسلم په روايت كښې دى.(١) چه د قوم د خبر راوړو دپاره حضرت حذيفه رضي الله عنه لاړلو.او دلته د بخارى په روايت كښې دى.چه حضرت زبير رضي الله عنه د تلو دپاره تيار شو.

① په دواړو رواياتونوكښې دتطبيق دپاره دا وئيلى شى.چه ممكن ده.دا واقعه د يو وخت وى.اوهغه واقعه د بل وخت وى.

② خوحقيقت دا دې.چه حضرت زبير رضي الله عنه نبى صلى الله عليه وسلم د بنوقريظه د خبر راوړو دپاره ليږلې وو. اوحضرت حذيفه رضي الله عنه ئې د مكې د مشركانو اود بنو غطفان د خبر راوړو دپاره ليږلې وو.(٢)

دا دواړه بيخى جداجدا واقعات دى.نوځكه د تعارض هډو څه سوال پيدا كيدل نه دى پكار.

[۳۸۸۸] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ أَعَزَّ جُنْدَهُ وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَغَلَبَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ فَلَا شَيْءَ بَعْدَهُ

[۳۸۸۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا الْفَزَارِيُّ وَعَبْدَةُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَقُولُ دَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْأَحْزَابِ فَقَالَ اللَّهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ سَرِيعَ الْحِسَابِ اهْزِمِ الْأَحْزَابَ اللَّهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَزَلْزِلْهُمْ [ر:۲۷۷۵]

[۳۸۹۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ وَنَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَفَلَ مِنَ الْغَزْوِ أَوِ الْحَجِّ أَوِ الْعُمْرَةِ يَبْدَأُ فَيُكَبِّرُ ثَلَاثَ مِرَارٍ ثُمَّ يَقُولُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ سَاجِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ صَدَقَ اللَّهُ وَعْدَهُ وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ [ر:۱۷۰۳]

---

(١) اوګورئ صحيح مسلم باب غزوة الأحزاب كتاب الجهاد والسير رقم الحديث ٤٤٠٤)_~

(٢) فتح البارى(٧/٧١٧ ٤٠)_

# بَابُ مَرْجِعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْأَحْزَابِ وَمَخْرَجِهِ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ وَمُحَاصَرَتِهِ إِيَّاهُمْ (غزوة بنى قريظة)

ددې ځاى نه امام بخارى رحمه الله د غزوه بنى قريظه بيان كوى.د بنى قريظه د يهودو سره د مسلمانانو معاهده وه.چه د يوبل خلاف به د چا سره په جنګ كښې حصه نه اخلو.په غزوه خندق كښې چه كله قريشو د لس زره كسانو لښكرپه مدينه باندې د حملې كولوډپاره راوستل. نوپه هغه وخت كښې يهوديانو خپله معاهده ماته كړه.اود قريشو سره د مسلمانانو خلاف ملګرى شول.(١)

په ٢٣ ذى قعده ٥ هجرئ باندې كله چه احزاب د كفارو واپس لاړل.اونبى ﷺ مسلمانان واخستل مدينې ته واپس راغلل.اوټولو مسلمانانو وسلې پرانستلې.هم په دغه ورځ د ماسپخين په وخت كښې حضرت جبرئيل عليه السلام راغلو.وې وئيل.تاسو وسله پرانستله.نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.آو.حضرت جبرئيل عليه السلام اووئيل.خو فرشتو تر اوسه پورې وسلې نه دى پرانستې.اوواپس شوى نه دى.اوس سمدستى بنىٔ قريظو طرف ته وتل دى.

نو نبى ﷺ اعلان اوكړو.چه ټول صحابه ﷺ دې د مازيګر مونځ په بنى قريظه كښې اوكړى.مطلب دا وو.چه ترمازيګره پورې هلته رسيدل دى.اودهغوى محاصره كول دى.درې زره لښكروو.اوپه هغوى كښې شپږ ديرش اسونه وو. د مسلمانانودا لښكرهلته اورسيدل. اوتقريباً پنځه ويشت ورځې ئې دهغوى محاصره جارى اوساتله.(٢) د محاصرې په دوران كښې د بنى قريظه سردار كعب بن اسد هغوى راجمع كړل.او وې وئيل.زه تاسو ته درې خبرې پيش كوم.په دې كښې يوه خوښه كړئ.

① اولنۍ خبره دا ده.چه تاسوته دا خبره ښېخى ښكاره شوې ده.چه دا كس (نبى ﷺ) دالله تعالى هم هغه نبى اوپيغمبردې.دچا ذكرچه تاسو په خپل كتاب تورات كښې مومئ.نو ټول ايمان راوړئ.او دده تابع اوفرمانبردار شئ.په دې سره به ستاسو مال جان او بچى ښځې ټول محفوظ او مامون شى.

---

(١) حافظ ابن قيم رحمه الله ددې غزوه د سبب په باره كښې ليكى...
وكان سبب غزوهم أن رسول الله لما خرج إلى غزوة الخندق والقوم معه صلح جاء حيى بن اخطب إلى بنى قريظة فى ديارهم فقال قد جئتكم بعزالدهر.جئتكم بقريش على سادتها.وغطفان على قادتها وأنتم أهل الشوكة والسلاح فهلم حتى نناجز محمداً ونفرغ منه.فقال لهم رئيسهم بل جئتنى والله بذل الدهر.جئتنى بسحاب قد أراق ماءه.فهو يرعد ويبرق فلم يزل حيى يخادعه ويعده.. حتى أجابة بشرط أن يدخل معه فى حصنه .يصيبه ما أصابهم.ففعل.ونقضوا عهد رسول الله ﷺ وأظهروا سبه فبلغ رسول الله ﷺ الخبر فأرسل يستعلم الأمر فوجدهم قد نقضوا العهد فكبر وقال أبشروا يا معشرالمسلمين (وانظرزادالمعاد (١٣٠١٣)_

(٢) الكامل لابن اثير(١٢٧\٢) وفتح البارى(٤١٣\٧ ودلائل بيهقى (٢٠١٤)_

② دويم صورت دا دي.چه خپل بچي اوښځي تولې په خپله قتل کړئ.اوبيا ويرې د مسلمانانو سره ټول دجنګ کولودپاره وړاندې شئ.که په جنګ کښې شکست ملاؤ شي.نود بچو او ښځو به راسره څه فکر نه وي.اوکه فتح ملاؤ شوه.نو د ښځو څه کمې نشته.ښځې به نورې هم ملاؤ شي.اودهغوى نه به بچي هم پيدا شي.

③ دريم صورت دا دې.چه نن د خالي ورځ ده.کيدې شي.چه مسلمانان دا اوګڼري. چه د خالي ورځ د يهوديانو د احترام ورځ ده.په دې کښې به دوى جنګ جګړه نه کوي. زمونږ دحملې نه به مطمئن اوغافله وي.نو ټول ملاؤ شئ.اونن د شپې په مسلمانانو باندې حمله اوکړئ.اوددوى دغفلت نه فائده واخلئ.

خو بنو قريظه د كعب بن اسد درې واړه خبرې اونه منلې.هغوى اووئيل.نه خو مونږ خپل دين پريخودې شو.اونه خپل بچي اوښځې قتلولې شو.اونه د خالي په شپه حمله کولې شو.چه ددې محترمې ورځې بې حرمتي اوشي.ځکه چه هم ددې ورځې د بې حرمتۍ په وجه خو زمونږ د مشرانو نه شادوګانو او خنزيران جوړ شوى وو.[1] چه محاصرې نه تنګ شو.نو هغوى دې خبرې ته غاړه كيخوده.چه نبى ﷺ د دوى په باره کښې کومه فيصله کوي.هغه دوى ته منظور ده.د بنو قريظه سره د انصارو حليفانه تعلقات وو.د اوس قبيلې كسانو د نبى ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو.يا رسول الله د قبيله خزرج په درخواست سره چه تاسو د بنو نضيرسره څنګه معامله کړې وه.هغه شان زمونږ په درخواست د بنو قريظه سره هم اوکړئ.نبى ﷺ اوفرمائيل. ټيک ده.د اوس قبيلې کسان د فيصلې اختيار خپل سردار حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه ته ورکړو.اودا ئې اووئيل.چه کومه فيصله هغه اوکړى.هغه مونږ ته منظوره ده.

حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه زخمي وو.هغه راوستې شو.هغه فيصله اوكړه.چه د بنوقريظه ټول جنګجوسړى دې قتل کړې شي.اودهغوى ښځې اوبچي دې وينځې وغلامان جوړ کړې شي.اود دوى ټول مال دې په مسلمانانو کښې تقسيم کړې شي. ددې تفصيل وړاندې د بخارى په روايت کښې راځي.

نود بنو قريظه ټول کسان ګرفتار کړې شول.او مدينې منورې ته راوستې شول.اود يوې

---

[1] )سيرة ابن هشام (۳\۲۴۶و۲۴۷) والبداية والنهاية (۱۲۰\۱٤) د محاصرې په دوران کښې يهودو نبى ﷺ ته درخواست کړې وو.چه حضرت ابولبابه دوى ته راوليږه.چه هغوى دده سره مشوره اوکړي.ځکه چه د يهودو د ابولبابه سره حليفانه تعلقات وو.څضرت ابولبابه رضي الله عنه چه دننه ورغلل.نوټول ماشومان اوښځې جمع شول.اوپه ژړا شول.چه دا منظر ئې اوليدل.نود ابولبابه زړه نرم شو.بنوقريظه ابو لبابه رضي الله عنه ته اووئيل. آيا مونږ د رسول الله ﷺ حكم او فيصله اومنو.او ورته ئې اووئيل.آؤ قبلوله کړئ.او ورسره ئې مرئ طرف ته اشاره اوكړه.چه ذبح كولې به شئ.اوس ابولبابه رضي الله عنه دخپل خاى نه لا اخوا شوې هم نه وو.چه دخپلې غلطۍ اوخيانت احساس ورته اوشو.نيغ مسجد نبوى ته لاړل.اوخپل خان ئې په ستنه پورې اوتړل.اوقسم ئې اوخوړل.چه ترڅو پورې الله تعالى زما توبه قبوله کړې نه وي.نو دخپل ځاى نه به نه اخوا كيږم.ترڅې چه الله تعالى د دوى توبه په نبى ﷺ باندې نازله کړه.(سيرة ابن هشام (۲٤۱۳و ۲٤۸)_~

انصاری ښځې په کور کښې ټول بند کړې شول.دقتل ګاه په طور د هغوی دپاره خندقونه اوکنستلی شول.دوه دوه او څلور څلور به راوستې شول.اوپه دغه خندقونوکښې به دهغوی څټونه وهلی شول.دغه شان څلور سوه یهودیان قتل کړې شول.(۱) حي بن اخطب کوم چه ددې ټولو سازشونواو فتنو جوړونکې وو. مقتل ته راوستې شو.نو هغه نبی ﷺ ته اوکتل.او وې وئیل.«أما والله ما لمت نفسی فی عداوتك ولکنه من یخذل الله یخذل» (۲) په الله قسم زه خپل ځان ستا په دشمنئ باندې نه ملامته کوم.خو خبره دا ده.چه الله تعالی دچا مدد نه کوی.د هغه څوك مددګار نه وی.اوبیا خلقو ته مخاطب شو.او وې وئیل.«أیها الناس أنه لا بأس بأمر الله کتاب وقدر، وملحمة، کتبها الله علی بنی إسرائیل» اې خلقو د الله تعالی د حکم په منلوکښې څه باك نشته.دا یوه لیکلې شوې فیصله او سزا وه.کومه چه الله تعالی په بنی اسرائیلو باندې لیکلې وه.ددې نه پس دهغه څټ قلم کړې شو.(۳)

په ښځو کښې یوه هم قتل نکړې شوه.سوا د یوې ښځې نه چه د هغې نوم د سیر په کتابونو

---

(۱) په دې موقع د قتل شوو یهودیانو په تعداد کښې اختلاف دې.ابن اسحاق شپږ سوه اوابن اثیرپه خپل تاریخ ،،الکامل،، کښې د اووه سوو تعداد خودلې دې.علامه سهیلی رحمه الله لیکلی دی.چه داکثرو قول دا دی.چه د اته او نهه سوو په مینځ کښې د دوی تعداد وو.اوامام ترمذی،امام نسائی او ابن حبان په خپل صحیح سند سره د حضرت جابر رضی الله عنه نه د څلورو سوو تعداد نقل کړې دې.حافظ ابن حجر رحمه الله په دې مختلفو روایاتوکښې تطبیق کوی.اوفرمائی.ممکن ده.چه د اصلی یهودیانو تعداد څلور سوه وو.اوباقی دهغوی تابعدار وو.(اوګورئ فتح الباری (۷\۱۷ ٤١٤) وابن اثیر (۲\۱۲۷)

(۲) سیرة ابن هشام (۳\۲۵۲)_

(۳) امام مغازی ابن اسحاق د بنو قریظه په دې قیدیانو کښې د یوقیدی ،،زبیر بن باطا،،واقعه لیکلې ده.چه هغه د جاهلیت د زمانې په مشهور جنګ ،،بعاث،، کښې د انصارو په مشهور صحابی حضرت ثابت بن قیس رضی الله عنه باندې څه احسان کړې وو.زبیربن باطا په دغه وخت کښې بوډا شوې او نابینا شوې وو.ثابت بن قیس رضی الله عنه ته راغلو. او وې وئیل.ما پیژنې.هغه ورته اووئیل.ما پشان کس ستا پشان کس چرته هیرولې شی.حضرت ثابت رضی الله عنه ورته اووئیل. زه دا غوارم.چه نن ستا د احسان بدله درکړم.نو وې وئیل. ((إن الکریم یجزی الکریم)) حضرت ثابت رضی الله عنه راغلو.اود نبی ﷺ په دربار کښې ئې د زبیر د آزادئ درخواست اوکړو.نبی ﷺ د هغه په درخواست باندې هغه آزاد کړو.هغه راغلو. اوخبر ئې ورکړو.نو زبیر اووئیل.د داسې بوډا په ژوند کښې به څه مزه ده.چه د هغه اهل وعیال نه وی.حضرت ثابت رضی الله عنه لاړو.اود نبی ﷺ نه ئې دهغه د اهل وعیال د آزادئ اجازت هم واخستلو.واپس راغلو.اوهغه ته ئې اوخودله.نو هغه اووئیل.چه په حجاز کښې ئې اهل وعیال وی.خو مال ورسره نه وی.نو ژوند به څنګه تیروی.حضرت ثابت رضی الله عنه لاړو.او مال ئې هم واپس کړو.اوس روند یهودی د حضرت ثابت رضی الله عنه نه تپوس اوکړو.دکعب بن اسد څه اوشو.وې وئیل. قتل شو.بیا ئې تپوس اوکړو.حیی بن اخطب اوعزال بن شموال څه شو؟ وې فرمائیل. قتل شوی دی.بیا ئې تپوس اوکړو.د باقی کسانو څه حشراوشو.حضرت ثابت ورته اووئیل.ټول قتل کړې شول.نوبوډا یهودی اووئیل. زما د احسان بدله دا ده.چه ته ما هم د خپل قوم سره ملګرې کړه.ددې نه پس په ژوند کښې څه خیر دې.حضرت ثابت رضی الله عنه هغه وړاندې کړو.اود هغه څټ هم قلم کړې شو.(سیرة ابن هشام (۳\۲۵۳و ۲۵٤)_

کښې ،،بنانه،، خودلې شوې دې.ځکه چه هغې د چت نه د جرندې پل راګزار کړې وو.او حضرت خلادبن سوید ﷺ نې شهید کړې وو.نوځکه هغه په قصاص کښې قتل کړې شوه.(١)

[۳۸۹] حَدَّثَنِي عَبْدُاللَّهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمَّا رَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْخَنْدَقِ وَوَضَعَ السِّلَاحَ وَاغْتَسَلَ أَتَاهُ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَقَالَ قَدْ وَضَعْتَ السِّلَاحَ وَاللَّهِ مَا وَضَعْنَاهُ فَاخْرُجْ إِلَيْهِمْ قَالَ فَإِلَى أَيْنَ قَالَ هَا هُنَا وَأَشَارَ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمْ [ر:۲۶۵۸]

اولنې روایت دحضرت عائشې ﷺ دې.په دې کښې هم هغه واقعه بیان شوې ده.چه نبی ﷺ کله دخندق نه راواپس شو.نو نبی ﷺ وسله کوزه کړه.نو حضرت جبرئیل ﷺ راغلو. او وې وئیل.په الله قسم مونږ لا تراوسه پورې وسله نه ده کوزه کړې.ته بنو قریظه طرف ته لاړ شه.نو نبی ﷺ بنی قریظه طرف ته روان شو.

[۳۸۹۲] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى الْغُبَارِ سَاطِعًا فِي زُقَاقِ بَنِي غَنْمٍ مَوْكِبَ جِبْرِيلَ حِينَ سَارَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ [ر:۳۰۴۲]

حضرت انس ﷺ فرمائی.چه دحضرت جبرئیل ﷺ دشاهانه سورلۍ په وجه د بنو غنم دکوڅو دوړې لکه اوس هم زه وینم.کله چه نبی ﷺ بنی قریظه طرف ته روان شول.

**موکب جبریل علیه السلام:** ① «موکب» د «هو» محذوف خبر دې.ددې په وجه مرفوع دې.

② یا دا د «الغبار» نه بدل اوګرځولې شو.اومجرور وئیلې شی.③ دا هم ممکن ده.چه دا د «أری» وغیره فعل محذوف مفعول تسلیم کړې شی.نوپه دې صورت کښې به منصوب وی.

حضرت شاه صاحب ﷺ د «موکب» ترجمه کړې ده. شاهانه سورلی.(٢) یعنی د شاهانه سورلۍ په رفتار سره حضرت جبرئیل ﷺ د بنو غنم د کوڅو نه تیریدل.اودهغې نه دوړه الوته.اوما ورته کتل.

په دې کښې اختلاف دې.چه حضرت جبرئیل ﷺ د پیغمبر ﷺ نه سوا بل څوک کتلې شی

---

(١) دغه ښځې ته معلومه شوې وه.چه د مقتولینو په فهرس کښې ددې نوم شامل دې.خوددې باوجود د قتل نه لږ وخت مخکښې نې د حضرت عائشې سره خبرې کولې.اوپه خبره خبره به نې خندل.په دې کښې دهغې نوم واخستې شو.پاسیده اود قتل ګاه طرف ته روانه شوه.حضرت عائشې رضی الله عنها ترې تپوس اوکړو.چرته ځې.نوهغې ورته اووئیل. قتل ګاه ته ورځم.ما یو جرم کړې وو.د هغې سزا خورم.نودهغې څټ هم قلم کړې شو.حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چه د قتل نه څو لمحې وړاندې دهغه ښځې د خندا په خبرو اوس هم ماته تعجب راځی.(اوګورئ البدایة والنهایة(۱٤٩/٤)_

(٢) فیض الباری(١٠٠/٤) باب مرجع النبی ﷺ من الأحزاب)_

كه نه؟ بعضي حضرات د قول اول قائل دى.اوبعضي د قول ثاني.دلته د حديث د ظاهرنه دا معلوميږى.چه كله هغوى پورته كيدونكي دوړه اوليده.نودا ګمان ئې اوكړو.چه دا حضرت جبرئيل عليه السلام دې.د نه ليدلو وجه دا وه.اوددې وجه چه جبرئيل عليه السلام ئې نه وو ليدلې.ځكه چه حضرت جبرئيل عليه السلام په خپل اصلى شكل كښې وو.ځكه چه كله حضرت جبرئيل د چا سړى په شكل كښې متشكل شوې دې.هلته نورو هغه ليدلې دې.لكه په كتاب الايمان كښې چه تيرشوى دى.((هذا جبرئيل جاء كم يعلمكم دينكم)) (١)

[٣٨٩٣] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَسْمَاءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ بْنُ أَسْمَاءَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْأَحْزَابِ لَا يُصَلِّيَنَّ أَحَدٌ الْعَصْرَ إِلَّا فِي بَنِي قُرَيْظَةَ فَأَدْرَكَ بَعْضَهُمُ الْعَصْرُ فِي الطَّرِيقِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَا نُصَلِّي حَتَّى نَأْتِيَهَا وَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلْ نُصَلِّي لَمْ يُرِدْ مِنَّا ذَلِكَ فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُعَنِّفْ وَاحِدًا مِنْهُمْ [ر: ٩٠٣]

دا روايت هم په دې سند او متن سره په ((أبواب الخوف)) كښې په ((باب صلاة الطالب والمطلوب)) كښې تيرشوې دې.په دې روايت كښې دى.چه نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. د مازيګرمونځ هم په بنې قريظه كښې اوكړئ.اودمسلم په روايت كښې د مازيګر په ځاې د ماسپخين ذكردې.(٢) دعاموكتب حديث نه د ماسپخين د روايت تائيد معلوميږى.اواهل سيراو مغازى د مازيګرذكركوى.

په دواړو كښې تطبيق داسې كيدې شى.ممكن ده.چه لښكربه دوو حصو كښې تقسيم شوې وى. يوه حصه به د ماسپخين نه وړاندې روانه كړې شوې وى. اوهغه ته ئې وئيلى وى.چه دماسپخين مونځ به په بنو قريظه كښې كوئ.او بله حصه ئې د ماسپخين نه پس روانه كړې وى.اوهغوى ته ئې وئيلى وى.چه دمازيګر مونځ به په بنو قريظه كښې كوئ.يا داسې وئيلى شى.چه په لښكركښې داسې كسان هم وو.چاچه د ماسپخين مونځ نه وو كړې.هغوى ته ئې وئيلى وى.چه د ماسپخين مونځ هلته اوكړئ.او نور كسان چاچه دماسپخين مونځ كړې وو.هغوى ته ئې وئيلى وى.چه تاسو هلته د مازيګر مونځ اوكړئ.

**قوله**: فَأَدْرَكَ بَعْضَهُمُ الْعَصْرُ فِي الطَّرِيقِ: بعضي صحابو رضي الله عنهم په لار كښې مازيګر رالاندې كړو.يعنى د مازيګروخت پرې په لار كښې راغلو. نو بعضو اووئيل.چه مونږ خو به بنو قريظه ته خو.اوهلته به مونځ كوو.ځكه چه نبى صلى الله عليه وسلم دا فرمائيلى وو.چه په بنو قريظه

---

١ )حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائي.((واختلفوا فى رؤية جبرئيل عليه السلام هل تجوز لغيرالنبى صلى الله عليه وسلم أو لا؟ فمنهم من جوزها ومنهم من أنكرها.والظاهر من هذا اللفظ أنه لما رأى الغبار ساطعاً ولم ير راكباً ظن أنه جبريل عليه السلام وذلك إذا كان فى صورته أما إذا تمثل فى صورة رجل فقد راه أخرون أيضاً كما مر فى الإيمان ..هذا جبرئيل جاء كم يعلمكم دينكم)) (فيض البارى( ٤/١٠٠)_

٢ )صحيح مسلم كتاب الجهاد باب المبادرة بالغزو رقم الحديث (٤٣٦٥)_

كښې به مونځ کوئ. او بعضو اووئيل. چه مونږ مونځ كوو.ځكه چه د نبى ﷺ د وينا مقصد دا نه وو.كه لاره كښې درباندې د ماښگر مونځ راشى.نو هم مونځ مه كوئ.بلكه د نبى ﷺ مقصد تعجيل وو.چه زرترزره بنو قريظه ته اورسئ.بيا روسته د نبى ﷺ په وړاندې ددې ذكر اوشو.نو نبى ﷺ په چا باندې هم د خفگان اظهار اونكړو.

سوال دا دې.چه دلته دچا عمل غوره دې.په لار كښې د مونځ كونكو.او كه د هغه حضراتو څوك چه بنو قريظه ته لاړل.او مونځ ئې اوكړو.ابومحمد بن حزم ظاهرى رحمه الله فرمائى.كه مونږ په دغه ځاې كښې وو.نو كه د بنو قريظه رسيدو كښې څو كاله لگيدل.هم به مونږ د ماښگر مونځ د بنوقريظه نه وړاندې نه كولو. خوحافظ ابن قيم رحمه الله په زادالمعاد كښې د هغه كسانو فعل ته ترجيح وركړې ده.چا چه په لار كښې مونځ اوكړو.اود ماښگر مونځ ئې په خپل وخت كښې اوكړو.ځكه چه دغه كسانو دوه فضيلتونه حاصل كړل.يو فضيلت د مونځ په خپل وخت كښې د ادا كولو.او دويم فضيلت په جهاد كښې د حصې اخستلو.اوزر ترزره بنو قريظه ته د رسيدو فكر خو هغوى سره هم وو.نو هغوى په لاره كښې مونځ اوكړو.اوچه څنگه اورسيدل.نو مورچې جوړول ئې شروع كړې.ددې وجې د دوى فعل ته ترجيح وركړې شوه.([1])

[۳۸۹۳]حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ وحَدَّثَنِي خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ يَجْعَلُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّخَلَاتِ حَتَّى افْتَتَحَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيرَ وَإِنَّ أَهْلِي أَمَرُونِي أَنْ آتِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْأَلَهُ الَّذِي كَانُوا أَعْطَوْهُ أَوْ بَعْضَهُ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَعْطَاهُ أُمَّ أَيْمَنَ فَجَاءَتْ أُمُّ أَيْمَنَ فَجَعَلَتْ الثَّوْبَ فِي عُنُقِي تَقُولُ كَلَّا وَالَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ لَا يُعْطِيكَهُمْ وَقَدْ أَعْطَانِيهَا أَوْ كَمَا قَالَتْ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَكِ كَذَا وَتَقُولُ كَلَّا وَاللَّهِ حَتَّى أَعْطَاهَا حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ عَشَرَةَ أَمْثَالِهِ أَوْ كَمَا قَالَ [ر:۲۹۶۰]

حضرت انس رضي الله عنه فرمائى.چه دانصارو كسانو به د نبى ﷺ دپاره د قجورو ونې متعين كولې.(اونبى ﷺ به هغه قجورې مهاجرينوته وركولې) تردې چه د بنو قريظه او بنو نضيرقبائل فتح شول.(نو نبى ﷺ هغه قجورې دمهاجرينو نه واخستې. او انصارو ته ئې واپس كړې.اود قريظه او نضير مالونه ئې په مهاجرينوكښې تقسيم كړل) په دغه وخت كښې زما كوروالا زه د نبى ﷺ په خدمت كښې اوليږم.چه دهغه ونو په باره كښې كومې چه د كور خلقو هغوى ته وركړې دى.تپوس ترې اوكړئ. (چه هغه ونې به مونږ ته واپس كولې شى كه نه ؟) نبى ﷺ هغه ونې حضرت ام ايمن رضي الله عنها ته وركړې وې.په دې كښې حضرت ام ايمن رضي الله عنها راغله.اوزما په څټ كښې ئې څادر واچولو.او وې وئيل.هيڅ كله نه، قسم دى وى په

[1] )حافظ ابن قيم رحمه الله ليكى.((بل الذين صلوها فى الطريق فى وقتها حازوا قصب السبق،وكانوا أسعد بالفضيلتين فإنهم بادروا إلى إمتثال أمره فى الخروج وبادروا إلى مرضاته فى الصلاة فى وقتها ثم بادروا إلى اللحاق بالقوم فحازوا فضيلة الجهاد وفضيلة الصلاة فى وقتها وفهموا ما يراد منهم وكانوا أفقه من الآخرين (وانظرزاد المعاد (۱۳۱/۳)_

هغه ذات چه دهغه نه سوا بل څوك معبود نشته.نبى ﷺ به دا وونې تاته درنكړى.دا خو هغوى ماته راكړى دى.او نبى ﷺ ام ايمن ته اووئيل. مونږ به تا ته ددې په بدله كښې نورې دركړو.او هغې به وئيل.په الله قسم زه خو ئې نه واپس كوم.تردې چه نبى ﷺ حضرت ام ايمن رضي الله عنها ته دهغه وونو په لس چنده نورې وركړې.نوهله هغه د حضرت انس رضي الله عنه د وونو په واپس كولو باندې راضى شوه.

حضرت ام ايمن رضي الله عنها د نبى ﷺ رضاعيه (پئ وركونكې) وه.هغې به وركوتوالى كښې نبى ﷺ ته په خپله جولئ كښې خوراك وركړې وو.او نبى ﷺ به هغې ته مور وئيل.نودهغې قدر به ئې كولو.دې د حبشه سره تعلق ساتل.او عربى ژبه ئې سمه نشوه وئيلې.يوځل د جنګ په موقع هغې مسلمانانوته د دعا په طور اووئيل.«سبت الله أقدامكم» د ،،ثاء، په ځاې ئې ،،س،، اووئيل.ددې جملې معنى ده.الله تعالى دې ستاسو پښې كټ كړى.حالانكه هغې د غوښتل.چه الله تعالى دې ستاسو قدمونه مضبوط كړى.نبى ﷺ چه كله دا واوريدل.نو وې وئيل.«أسكتي يا أم أيمن إنك عفراء اللسان» [1] اې ام ايمن ته چپ شه.ستا ژبه ډيره سخته ده.يعنى غوارې يو څه واې بل څه.

**د روايت مذكوره نه د حضرت ګنګوهى رحمه الله استدلال:** حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى.چه انصارو دا وونې د هبې په طور وركړې وې.اونبى ﷺ وراندې حضرت ام ايمن رضي الله عنها ته هم هبه كړې وې.اوس دهغې واپسى كيږى.معلومه شوه.چه رجوع فى الهبه جائز ده.كوم چه د احنافو رحمهم الله مسلك دې.حافظ ابن حجر رحمه الله چونكه شافعى المذهب دې.ددې وجې رجوع فى الهبه ته جائز نه وائى.ددې وجې هغوى وائى.چه دا عاريت وو.[2]

حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى.كه دا عاريت وو.نو عاريت وړاندې هبه كول څنګه صحيح كيدې شى.حالانكه نبى ﷺ وړاندې دا ام ايمن رضي الله عنها ته هبه كړې وې.اوكه ته دا اووائې.چه

---

[1] دحضرت ام ايمن نوم بركته وو.ايمن ددې خوې وو.كوم چه ددې د اولنى خاوند عبيدبن زيد نه پيدا شوې وو.ايمن ته د نبى ﷺ د صحبت اوپه جنګ خيبر كښې د شهادت سعادت حاصل شوې وو.د عبيدبن زيد نه پس حضرت ام ايمن رضى الله عنها د نبى ﷺ متبنى او مشهور صحابى حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه سره نكاح اوكړه.اود هغې نه حضرت اسامه پيدا شو.حضرت ام ايمن رضى الله عنها چونكه د نبى ﷺ تربيت كړې وو.ددې وجې به نبى ﷺ وخت په وخت حضرت ام ايمن رضى الله عنها كره تشريف اوړل.كله چه نبى كريم ﷺ وفات شو..نوحضرت صديق اكبر رضي الله عنه عمر فاروق رضي الله عنه ته اووئيل.چه رسول الله ﷺ به ام ايمن رضى الله عنها كره تشريف اوړل.راځه چه نن مونږ هم هغې كره لاړ شو.كله چه دا دواړه حضرات د هغې كور ته ورداخل شول.نو ام ايمن رضى الله عنها په ژړا شوه.هغوى ورته اووئيل. ته ولې ژاړې.د الله تعالى سره چه د نبى ﷺ دپاره څه دى.هغه د دنيا نه غوره دى.نو دوى اووئيل. زه ددې وجې نه ژاړم.چه نبى ﷺ وفات شو.بلكه ددې وجې ژاړم.چه د آسمانى وحى سلسله بنده شوه.چه دا ئې واوريدل.نو حضرت ابوبكرصديق اوحضرت عمررضى الله عنهما هم په ژړا شول.دحضرت ام ايمن رضى الله عنها وفات د حضرت عثمان رضي الله عنه په دور خلافت كښې شوې وو.(دتفصيل دپاره اوګورئ) الإصابة (۴۳۲/۴)_

[2] فتح البارى(۴۱۱/۷)_

حضرت ام ايمن ﷞ ته په عاريت وركړې شوې وې.نودا خبره په پوهه كښې نه راخي.كه هغې ته د عاريت په طور وركړې شوې وې.نو بيا هغې د واپس كولونه ولې انكار كولو.د هغې انكار كول دلالت كوى.چه دا هبه وه.او هبه واپس اخستل دليل دې.ددې خبرې چه رجوع فى الهبه جائز ده.(۱) والله اعلم

[۳۸۹۵]حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا أُمَامَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ نَزَلَ أَهْلُ قُرَيْظَةَ عَلَى حُكْمِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فَأَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى سَعْدٍ فَأَتَى عَلَى حِمَارٍ فَلَمَّا دَنَا مِنْ الْمَسْجِدِ قَالَ لِلْأَنْصَارِ قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ أَوْ خَيْرِكُمْ فَقَالَ هَؤُلَاءِ نَزَلُوا عَلَى حُكْمِكَ فَقَالَ تَقْتُلُ مُقَاتِلَتَهُمْ وَتَسْبِي ذَرَارِيَّهُمْ قَالَ قَضَيْتَ بِحُكْمِ اللَّهِ وَرُبَّمَا قَالَ بِحُكْمِ الْمَلِكِ[ر:۲۸۷۸]

دا روايت د حضرت ابوسعيد خدرى ﷜ دې.دحضرت ابوسعيد خدرى ﷜ نوم سعد بن مالك ﷜ دې.فرمائى.چه «نزل أهل قريظة على حكم سعدبن معاذ ﷜» بنو قريظه د سعدبن معاذ ﷜ په حكم او فيصله باندې راكوزيدل منظور كړل.

په حقيقت كښې بنو قريظه د قلعونه راكوزيدو ته بيخى تيار نه وو.خو چه كله هغوى ته معلومه شوه.چه سعدبن معاذ ﷜ زمونږ فيصله كوى.نو راكوزيدو ته تيار شول.ځكه چه حضرت سعدبن معاذ ﷜ د اوس قبيلې سردار وو.اود اوس او بنو قريظه په مينځ كښې حليفانه تعلقات وو.بنوقريظه خيال اوكړو.چه اوس زمونږ فيصله د سعد بن معاذ ﷜ په لاس كښې دد.اوهغه به خامخا زمونږ په حق كښې د آسانو نه آسانه فيصله كوى.هغه خلق راكوز شو.نبى ﷺ د حضرت سعد بن معاذ ﷜ د راغوستلو دپاره سړې اوليږل.حضرت سعد ﷜ نزدې جمات سره يوې خيمه كښې مقيم وو.(۲) نوهغه په خر باندې سور راغلو.

**قوله: فَلَمَّا دَنَا مِنْ الْمَسْجِدِ:** كله چه هغه جمات ته نزدې شو.بعضې خلق وائى.چه دلته د جمات نه مراد مسجد نبوى دې.خودا غلطه ده.بلكه دلته د جمات نه هغه عارضى ځاې مراد دې.كوم چه د محاصرې په دوران كښې نبى ﷺ د بنو سلمه په كورونوكښې عارضى

---

(۱) حضرت گنگوهى ﷫ فرمائى.،،

قوله فأسالة الذى كاوا أعطوه فيه دلالة على على جواز الرجوع فى الهبة .وأن الموهوب له إذا وهبه الآخر لم يملك الواهب الأول ردها من الموهوب له الأول ولذلك أمر النبى ﷺ أم أيمن أن تردها إليهم ولو ملك ردها بنفسه النفسية لما إفتقر إلى ذلك .. وجواز الرجوع فى الهبة ظاهر برجوع الأنصار فيما كانوا أعطوه ولايمكن حمله على أنه كان عارية لا هبة لأنه لوكان العارية لما أعطى النبى ﷺ عطية أم أنس لأم أيمن إذ لا يجوز هبة العارية .. وانظرلامع الدرارى (۳۳۲/۸)_~

(۲) دا خيمه نبى ﷺ جمات سره نزدې د هغه دپاره لګولې وه.دې دپاره چه هغه تپوس په آسانتيا سره كوى.اوګورئ دلائل بيهقى (۲۶/۴)_~

طور جوړ كړې وو.(۱) دا ځاې بنو قريظه ته نزدې وو.بنو قريظه د مدينې منورې نه د شپږ ميله په فاصله باندې وو.(۲)

**قوله: قَالَ لِلْأَنْصَارِ قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ أَوْ خَيْرِكُمْ:** نبى ﷺ انصارو ته اوفرمائيل. دخپل سردار د تعظيم دپاره اودريږئ.يا تاسوكښې د غوره د تعظيم دپاره اودريږئ.

**د قيام تعظيم مسئله:** دچا د تعظيم دپاره ا ودريدل جائز دى كه ناجائز. په دې كښې د عالمانو ﷭ مختلف اقوال دى.امام نووى د تعظيم قيام د ثبوت دپاره يوه مستقله رساله ليكلې ده.ابن الحاج د هغوى ترديد كړې دې.اودهغوى دموقف د غلط ثابتولو كوشش ئې كړې دې.دغه شان د فريقينو د طرفه په مسئله كښې ليكلى شى.

خو قول فيصل دا دې.چه د اهل كرم او اهل فضل په تعظيم كښې اودريدل نه صرف دا چه جائز دى بلكه بهتر او غوره دى.خودا اجازت په دوو شرطونو پورې مشروط دې.

① يو دا چه د چا دپاره اودريږى.دهغه په زړه كښې دا طلب نه وى.چه خلق دې زما دپاره اودريږى.كه د هغه په زړه كښې دا خواهش وى.نو بيا اودريدل جائز نه دى.

② دويم شرط دا دې.چه د اودريدونكى په زړه كښې د اودريدو داعيه وى.كه په زړه كښې ئې هغه ته د اودريدو داعيه نه وى.صرف د خودلې اوتملق په وجه اودريدلى وى.نو بيا اودريدل جائز نه دى.(۳)

---

۱) اوګورئ فتح البارى (۷/۴۱۲)_~

۲) البدرى السارى حاشية فيض البارى (۴/۱۰۱)_

۳) دچا دپاره د اودريدو مختلف صورتونه كيدى شى.په هغې كښې صرف يو صورت د (قيام تعظيمى) په حكم كښې اختلاف دې.دباقى صورتونو حكم ښكاره او متفق عليه دې.،،

① اولنې صورت دا دې.چه سردار ناست وى.اوحاضرين دهغه په تعظيم اوتكريم كښې مسلسل ولاړ وى.دا صورت بالاتفاق ناجائز دى.

② دويم صورت دا دې.چه د راتلونكى په زړه كښې تكبر وى.دهغې په وجه هغه غواړى.چه خلق زما دپاره اودريږى.دا صورت هم په اتفاق سره ناجائز دې.

③ دريم صورت دا دې.چه د راتلونكى په زړه كښې لوې والې اوتكبر نه وى.خو دا ويره وى.چه د خلقو په اودريدو سره به دده په زړه كښې لوې پيدا شى.نو د داسې كس دپاره اودريدل مكروه دى.

④ څلورم صورت دا دې.چه د چا په راتلو د خوشحالئ د وجې انسان د هغه د استقبال دپاره اودريږى.نو دا صورت نه يواځې دا چه جائز دې.بلكه مستحب او مندوب هم دې.

⑤ پنځم صورت دا دې.چه يوكس ته د الله تعالى دطرفه څه نعمت ملاؤ شوې وى.هغه كس ته د مباركئ دپاره څوك اودريږى.نودا صورت هم مستحب اومندوب دې.

⑥ شپږم صورت دا دې.چه په چا باندې څه مصيبت راغلې وى.دهغه د تسلئ دپاره څوك هغه ته اودريږى.نودا هم مستحب اومندوب دې.

⑦ اووم صورت دا دې.چه د راتلونكى د تعظيم دپاره څوك اودريږى.خو د راتلونكى په زړه كښې د خپل ځان دپاره د دې تعظيمى اودريدو خواهش اوتمنا نه وى.،، ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه چه کله راغلو.نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل. دا خلق ستا په فیصله باندې راضی شوی دی.حضرت معاذ رضی الله عنه په دغه موقع باندې د نبی ﷺ نه دا تپوس هم اوکړو.چه زما فیصله به په چا باندې نافذ کیږی.نبی ﷺ اوفرمائیل.په ټولو به نافذ کیږی.عرض ئې اوکړو.په تاسو به هم نافذ کیږی.نبی ﷺ اوفرمائیل. آو په ما به هم نافذ کیږی.(۱) په دغه وخت کښې حضرت سعد رضی الله عنه فیصله اوکړه.چه د دوی جنګجو سړی دې قتل کړې شی.اوددوی ښځې اوماشومان دې قید کړې شی.نبی ﷺ حضرت سعد رضی الله عنه ته اوفرمائیل. تا د الله تعالی د حکم مطابق فیصله اوکړه.

مولانا شبلی رحمه الله فرمائیلی دی.چه په تورات کتاب تثنیه ،اصبحاح نمبر شل آیت نمبر لسم کښې دی.که یو قوم په محاصره کښې بندیوان کړې شی.نوپه هغوی کښې چه څومره سړی وی.هغه دې قتل کړې شی.اوکوم څیزونه چه په هغوی کښې وی.هغه ټول دې مال غنیمت شمار کړې شی.(۲) چونکه حضرت سعد رضی الله عنه د تورات دحکم مطابق فیصله اوکړه.ددې وجې نبی ﷺ هغه ته اوفرمائیل.((قضیت بحکم الله))

خوظاهره دا ده.چه په دغه وخت کښې په نبی ﷺ باندې وحی راغلې وه.اود هغې په ذریعه نبی ﷺ ته د الله تعالی فیصله خودلې شوې وه.حضرت سعد رضی الله عنه چه کله ټیك هم هغه شان فیصله اوکړه.دکومې خبر چه نبی ﷺ ته د وحی په ذریعه شوې وه.نو نبی ﷺ اوفرمائیل. ((قضیت بحکم الله)) والله اعلم.

[۳۸۶۶] حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ أُصِيبَ سَعْدٌ يَوْمَ الْخَنْدَقِ رَمَاهُ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ يُقَالُ لَهُ حِبَّانُ بْنُ الْعَرِقَةِ رَمَاهُ فِي الْأَكْحَلِ فَضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْمَةً فِي الْمَسْجِدِ لِيَعُودَهُ مِنْ قَرِيبٍ فَلَمَّا رَجَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ الْخَنْدَقِ وَضَعَ السِّلَاحَ وَاغْتَسَلَ فَأَتَاهُ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَهُوَ يَنْفُضُ رَأْسَهُ مِنْ الْغُبَارِ فَقَالَ قَدْ وَضَعْتَ السِّلَاحَ وَاللَّهِ مَا وَضَعْتُهُ اخْرُجْ إِلَيْهِمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَيْنَ فَأَشَارَ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ فَأَتَاهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

---

..دتیرمخ بقیه] نوداووم صورت مختلف فیه دې.د طرفینو دلائل وراندې په (( کتاب الاستیذان باب قول النبی ﷺ قوموا إلی سیدکم)) لاندې حافظ ابن حجر رحمه الله بیان کړی دی.انشاء الله پوره تفصیل به هلته کښې راشی.(د ذکرشوو اووه صورتونو دپاره اوګورئ تکملة فتح الملهم (۱۳۶/۳و ۱۲۷)
د حضرت شیخ الحدیث مد ظلهم په تقریر کښې د مذکوره قیام تعظیمی نه هم دا اووم صورت مراد دې،کوم ته چه د دوو شرطونو سره افضل او غوره وئیلې شوې دی.او هم دې ته مولانا ظفر احمد عثمانی رحمه الله په ،،اعلاء السنن،، کښې ،،احق بالعمل،، وئیلې دې. اوګورئ اعلاء السنن (۳۹۱/۱۷) والله اعلم.

(۱) السیرة الحلبیة (۳۳۹/۲)_

(۲) اوګورئ سیرة النبی ﷺ از شبلی نعمانی رحمه الله (۲۵۳/۱)_

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَلُوا عَلَى حُكْمِهِ فَرَدَّ الْحُكْمَ إِلَى سَعْدٍ قَالَ فَإِنِّي أَحْكُمُ فِيهِمْ أَنْ تُقْتَلَ الْمُقَاتِلَةُ وَأَنْ تُسْبَى النِّسَاءُ وَالذُّرِّيَّةُ وَأَنْ تُقْسَمَ أَمْوَالُهُمْ

**قوله**: رَمَاهُ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ يُقَالُ لَهُ حِبَّانُ بْنُ الْعَرِقَةِ، رَمَاهُ فِي الْأَكْحَلِ: حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی. چه د قریشو یو سړی چه هغه ته ئې حبان بن عرقه وئیل. حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه په تیر باندې ویشتلې وو. او تیر باندې ئې د هغه د مټ رګ ویشتلې وو. مارکولوس یو عیسائی پادری دې. هغه وائی. چه حضرت سعد رضی الله عنه یو قرظی په تیر باندې ویشتې وو. ددې وجه هغه سخته فیصله د انتقام په وجه اوکړه. خودا دروغ دی. دلته د بخاری رحمه الله په روایت کښې تصریح ده. چه حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه یو قریشی په تیر باندې ویشتې وو.

**قوله**: فَأَتَاهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَلُوا عَلَى حُكْمِهِ: نبی صلی الله علیه وسلم بنو قریظه ته راغلو. (یعنی نبی صلی الله علیه وسلم دهغوی محاصره کړې وه) نوبنو قریظه د نبی صلی الله علیه وسلم په فیصله باندې راکوز شول. چه کومه فیصله تاسو کوئ. مونږ. ته منظور ده. دا هم په روایاتوکښې راغلی دی. چه یهود اول د حضرت سعد رضی الله عنه په فیصله باندې راضی شوی وو. (١) او دلته د بخاری په روایت کښې دی. چه د نبی صلی الله علیه وسلم په فیصله باندې راضی شوی وو. په دواړه قسمه روایتونو کښې تطبیق ممکن دې. کیدې شی چه هغوی ته علم شوې وو. چه نبی صلی الله علیه وسلم فیصله په خپله نه کوی. بلکه حضرت سعد رضی الله عنه ته به ئې حواله کوی. ددې وجې دوی د نبی صلی الله علیه وسلم په فیصله باندې راضی شوی وو.

قَالَ هِشَامٌ فَأَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ سَعْدًا قَالَ اللَّهُمَّ إِنَّكَ تَعْلَمُ أَنَّهُ لَيْسَ أَحَدٌ أَحَبَّ إِلَيَّ أَنْ أُجَاهِدَهُمْ فِيكَ مِنْ قَوْمٍ كَذَّبُوا رَسُولَكَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَخْرَجُوهُ اللَّهُمَّ فَإِنِّي أَظُنُّ أَنَّكَ قَدْ وَضَعْتَ الْحَرْبَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ فَإِنْ كَانَ بَقِيَ مِنْ حَرْبِ قُرَيْشٍ شَيْءٌ فَأَبْقِنِي لَهُ حَتَّى أُجَاهِدَهُمْ فِيكَ وَإِنْ كُنْتَ وَضَعْتَ الْحَرْبَ فَافْجُرْهَا وَاجْعَلْ مَوْتَتِي فِيهَا فَانْفَجَرَتْ مِنْ لَبَّتِهِ فَلَمْ يَرُعْهُمْ وَفِي الْمَسْجِدِ خَيْمَةٌ مِنْ بَنِي غِفَارٍ إِلَّا الدَّمُ يَسِيلُ إِلَيْهِمْ فَقَالُوا يَا أَهْلَ الْخَيْمَةِ مَا هَذَا الَّذِي يَأْتِينَا مِنْ قِبَلِكُمْ فَإِذَا سَعْدٌ يَغْذُو جُرْحُهُ دَمًا فَمَاتَ مِنْهَا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ [ر: ٤٥١]

داتعلیق نه دې. بلکه د ماقبل سند سره دې. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی. چه حضرت سعد رضی الله عنه دا دعا کړې وه. اې الله تاته ښه پته ده. چه ددې خبرې نه زیاته خوښه ماته بل څه نشته. چه زه ستا په لار کښې دهغه قوم سره جهاد کوم. چا چه ستا د رسول تکذیب کړې دې. اوهغه ئې د خپل وطن نه راویستې دې. اې الله اوس زما ګمان دې. چه د هغوې او زمونږ. په مینځ کښې تاسو جنګ ختم کړې دې. خو که د قریشو سره څه جنګ باقی وی. نو ما دهغې دپاره ژوندې اوساته. تردې پورې چه زه ستا په لاره کښې دهغوی سره جهاد اوکړم. اوکه تاسو دهغوی سره

---

(١) ددې روایتونو د تفصیل دپاره اوګورئ دلائل بیهقی (١٨١٤ تا ٢٥) باب نزول بنی قریظة علی حکم سعد بن معاذ رضی الله عنه)۔

زمونږ جنګ ختم کړې وی.نوزما ددې زخم (دا وینه) اوبیوه.اوپه دې کښې زما مرګ واقع کړه.

**قوله**: فَانْفَجَرَتْ مِنْ لَبَّتِهِ فَلَمْ يَرُعْهُمْ وَفِي الْمَسْجِدِ خَيْمَةٌ مِنْ بَنِي غِفَارٍ إِلَّا الدَّمُ يَسِيلُ إِلَيْهِمْ: دسینې نه دهغه د زخم وینه روانه شوه.په جمات کښې د بنی غفاریوه خیمه وه.کله چه وینه دهغوی طرف ته اوبیدله.نوهغوی اوویریدل.

خلقو چه کله وینه اولیده.نو وې وئیل. دا وینه د کوم ځاې نه راغله.چه وې کتل نو دحضرت سعد ﷺ د زخم نه هغه روانه وه.هم دهغې د وجې هغوی وفات شو

دلته چا ته دا ګمان کیدې شی.چه حضرت سعد ﷺ چه کومه دعا کړې وه.هغه قبوله نشوه.ځکه چه هغوی دعا کړې وه.که د قریشو سره دجنګ څه سلسله باقی وی.نو ما ژوندې اوساته.نو د فتح مکه په ورځ د قریشو سره جنګ اوشو. خو حضرت سعد بن معاذ ﷺ د هغه زخم د وجې وفات شوې وو.

① دلته ددې یو جواب دا ورکړې شوې دې.چه د هرې دعا په دنیا کښې قبلیدل څه ضروری نه وی.بعضې دعاګانې په دنیا کښې نه قبلیږی.خو الله تعالی په آخرت کښې هغه د ترقۍ ذریعه جوړه کړی.دحضرت سعد ﷺ دا دعا هم الله تعالی د آخرت د ترقۍ ذریعه جوړه کړه.

② خوغوره جواب دا دې.چه دحضرت سعد ﷺ مقصد دا وو.که داسې جنګ وی.چه په هغې کښې قریش اقدام اوکړی.نو دهغه جنګ دپاره ما ژوندې اوساته.اودفتح مکې په موقع باندې قریشو اقدام نه وو کړې.بلکه مسلمانان په مکه باندې د قبضې کولو دپاره تلی وو.اوپه هغې کښې هم د قریشو سره د څه د سخت جنګ نوبت نه وو راغلې.بلکه خالد بن ولید ﷺ سره د مسلمانانو یوه وړه غوندې ډله وه.هغوی ته د کافرانو د معمولی مقابلې نوبت راغلې وو.نوالله تعالی په دنیا کښې هم د حضرت سعد بن معاذ ﷺ دعا قبوله کړې وه.اوهغه ئې خپل طرف ته اوبللو.

حافظ ابن حجر رحمه الله د مستدرك حاکم روایت نقل کړې دې.چه کله حضرت سعد بن معاذ ﷺ وفات شو.نو دهغه دپاره د آسمان ټولې دروازې پرانستې شوې. اودهغوی د روح په تلو باندې فرښتې خوشحاله شوې.([1])

اوحافظ ابن کثیر رحمه الله په ((البداية والنهاية)) کښې نقل کړی دی.چه کله حضرت سعد بن معاذ ﷺ وفات شو.نودهغوی په جنازه کښې د شرکت دپاره اویا زره فرښتې راغلې وې. کومې چه ددې نه وړاندې چرته د آسمان نه نه وې راکوزې شوې.([2]) دحضرت جابر ﷺ نه روایت دې.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.چه دحضرت سعد بن معاذ ﷺ په مرګ سره عرش خوزیدلې وو.([3])

---

[1])فتح البارى (۱۲٤\۷) باب مناقب سعد بن معاذ ﷺ_

[2])اوګورئ البداية والنهاية (۱۲۸\٤)_

[3])اوګورئ ((الإصابة ۳۷\۲) حافظ ابن کثیر په ((البداية والنهاية)) کښې داسې قسم ډیر روایات جمع کړی دی.اوګورئ (البداية والنهاية باب وفاة سعد بن معاذ ﷺ (۱۲۶\٤و ۱۳۰)_

[۳۸۹۷] حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَدِيٌّ أَنَّهُ سَمِعَ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَسَّانَ اهْجُهُمْ أَوْ هَاجِهِمْ وَجِبْرِيلُ مَعَكَ وَزَادَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ قُرَيْظَةَ لِحَسَّانَ بْنِ ثَابِتٍ اهْجُ الْمُشْرِكِينَ فَإِنَّ جِبْرِيلَ مَعَكَ [ر: ۳۰۴۱]

## بَاب= غَزْوَةِ ذَاتِ الرِّقَاعِ
## وَهِيَ غَزْوَةُ مُحَارِبِ خَصَفَةَ مِنْ بَنِي ثَعْلَبَةَ مِنْ غَطَفَانَ فَنَزَلَ نَخْلًا وَهِيَ بَعْدَ خَيْبَرَ لِأَنَّ أَبَا مُوسَى جَاءَ بَعْدَ خَيْبَرَ

رقاع د رقعه جمع ده.پټئ او چیرړې ته وائی.ددې غزوې په وجه تسمیه کښې مختلف اقوال دی.① یوه خبره په دې باره کښې دا شوې ده.چه چونکه په دې غزوه کښې د زیات مزل د وجې د صحابه کرامو رضی الله عنهم په پښو کښې پولئ راختلي وې.ددې وجې هغوی د خپلو جامو پټئ اوچیرړې په خپلو پښوباندې اوتړلې.د دې وجې دې ته ،،غزوه ذات الرقاع،، وائی.هم په دې باب کښې وړاندې د حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه روایت راخی.په هغې کښې دی.((فسميت غزوة ذات الرقاع لما كنا نعصب من الخرق على أرجلنا))

② بعضې حضراتوونیلی دی.چه دې غزوې ته ،،غزوه ذات الرقاع،، د دې وجې وائی.چه ((إنهم رقعوا راياتهم)) یعنی په دې غزوه کښې صحابو رضی الله عنهم رنګ په رنګ بیرغونه جوړ کړی وو.(1)

③ واقدی اوابن سعد رحمهما الله وئیلی دی.چه ،،ذات الرقاع،، د یوغر نوم دې.په کوم کښې چه دمختلفو رنګونو نښې وې.چونکه ددې غزوې په موقع نبی ﷺ هلته قیام کړې وو.ددې وجې ددې غزوې نوم ،،ذات الرقاع،، کیخودې شو(2)

④ ابن حبان رحمه الله فرمائیلی دی.چه ددې غزوې نوم ذات الرقاع ددې وجې کیخودې شوې دې.چه ددوی لښونه د مختلفو رنګونو وو.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه دابن حبان رحمه الله دا قول په تصحیف باندې مبنی ده.هغه ((جهل)) لره ((خيل)) وئیلی دی.(3)

⑤ بعضې مالکیانوعالمانو رحمهم الله د غزوه ذات ا لرقاع دنوم یوه عجیبه وجه بیان کړې ده.هغوی فرمائیلی دی.چه دې غزوې ته ،،غزوه ذات الرقاع،، د دوې وجې وائی.چه

---
(1) البداية والنهاية (۸۳/۴)_
(2) طبقات ابن سعد(۶۱/۲) والبداية والنهاية (۸۳/۴)_
(3) فتح الباری(۴۱۹/۷)_

صحابوﷺ په دې کښې صلاة الخوف ادا کړې وو.اوپه مانځه کښې پيوند لګولې شوې وو.چه يوې ډلې يو رکعت کړې وو.اوتلې وه.اوبيا بله ډله راغلې وه. اويو رکعت ئې کړې وو.او بيا واپس تلې وه.اوبيا اولنئ ډله راغلې وه.اوهغې مونځ پوره کړې وو.اوددې نه پس بيا دويمه ډله راغلې وه.اوهغې مونځ پوره کړې وو .نو چونکه صحابوﷺ مونځ ټکړې ټکړې او حصې حصې کړې وو.ددې وجې دې غزوې ته غزوه ذات الرقاع وائى.([1])

علامه نووى رحمه الله فرمائيلى دى.چه په دې ټولو توجيهاتوکښې څه تعارض نشته.چه ددې ټولو اسبابو او وجوهو په بناء باندې ددې غزوې نوم دا کيخودې شوې وى.([2])

**دغزوه ذات الرقاع سبب:** ددې غزوې سبب دا وو.چه نبىﷺ ته خبر ملاؤ شو.چه د بنو غطفان دوه قبيلې بنو محارب اوبنو ثعلبه لښکرجمع کوى.اودغه خلق د مسلمانانو خلاف منظم کيږى.نو نبىﷺ ددې نه وړاندې چه هغه خلق حمله اوکړى.څلور سوه صحابه ﷺ ځان سره واخستل.اوپيش قدمى ئې اوکړه.([3])

**دغزوه ذات الرقاع د تاريخ په واقع کيدو کښې اختلاف:** ددې غزوې د واقع کيدو په تاريخ کښې د اهل سير اختلاف دې.

① د يوې ډلې راې دا ده.چه دا غزوه په ۴ه کښې واقع شوې وه.

② دبعضې حضراتو خيال دې.چه دا په ۵ه کښې واقع شوې وو.([4])

③ دامام بخارى رحمه الله دا رائې ده.چه دا غزوه په ۷ه کښې د غزوه خيبر نه پس واقع شوې وه.او امام بخارى رحمه الله په دلائلو سره دا ثابته کړې ده.نوامام بخارى رحمه الله فرمائى.((وهى بعد خيبرلأن أبا موسى جاء بعد خيبر))

① دامام بخارى رحمه الله اولنې دليل دا دې.چه په دې غزوه کښې حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه شرکت کړې دې.لکه څنګه چه ددوى روايت هم په دې باب کښې راځى. بل طرف ته دا خبره متفق عليه ده.چه حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه د خيبر د فتحې نه پس مدينې ته تشريف راوړې وو.نو په غزوه ذات الرقاع کښې د دوى شرکت ددې خبرې واضح دليل دې.چه دا غزوه د فتح خيبر نه پس واقع شوې ده.

ابن سيد الناس رحمه الله د امام بخارى رحمه الله دا استدلال رد کوى. اوفرمائى. چه دحضرت ابو موسى اشعرى رضي الله عنه په دې روايت باندې چه غزوه ذات الرقاع د غزوه خيبر نه پس واقع شوې ده.څه دلالت نه کوى.حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن سيد الناس رحمه الله په دې قول باندې د تعجب اظهار کړې دې.او فرمائيلى ئې دى.چه د ابن سيد الناس د امام بخارى رحمه الله دا استدلال رد

[1] )وفى فتح البارى (٤١٩\٧) وأغرب الداودى فقال سميت ذات الرقاع لوقوع صلاة الخوف فيها فسميت بذلک لترقيع الصلاة فيها)_

[2] )فتح البارى(٤١٩\٧)_

[3] )طبقات ابن سعد(٦١\٢)_

[4] )البداية والنهاية (٨٣\٤)_

كول ټيك نه دی.د دې روايت نه د امام بخاري رحمه الله په خپله مدعا باندې استدلال ښخى ښكاره دې.(۱)

② دامام بخاري رحمه الله دويم استدلال د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت باندې دې. كوم چه وړاندې امام بخاري رحمه الله تعليقاً ذكركړې دې.خوپه ابوداود ،نسائي، طحاوي،مسند احمد او صحيح ابن حبان كښې دا روايت موصولاً منقول دې.په كومو كښې چه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په غزوه ذات الرقاع كښې د شركت ذكر دې. او حضرت ابوهريره رضي الله عنه په اتفاق سره په غزوه خيبر كښې راغلې وو.نو په غزوه ذات الرقاع كښې د دوى شركت ددې خبرې ښكاره دليل دې.چه غزوه ذات الرقاع د خيبر نه پس شوې وه.حافظ ابن قيم او تقى الدين سبكى رحمهما الله هم د امام بخاري رحمه الله تائيد كوى.

③ هغوى دا دليل وركړې دې.چه په ابوداود كښې په يو روايت كښې ددې خبرې تصريح ده.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د ټولو نه وړاندې صلاة الخوف په عسفان كښې ادا كړې وو.او غزوه عسفان د غزوه حديبيه نه پس واقع شوې ده.اودلته د بخاري په روايت كښې هم د صلاة ا لخوف ادا كول مصرح دى.ظاهره ده چه دا صلاة الخوف په غزوه عسفان كښې د صلاة الخوف نه پس شوې دې.اوكله چه غزوه عسفان د حديبيه نه پس شوې ده.نو يقيناً اوس به درې احتمالات وى.

يو خو دا چه غزوه ذات الرقاع د شپږمې هجرئ ښخى په آخره كښې اومنلې شى.چه په ٦ هجرئ كښې غزوه عسفان او حديبيه واقع شوې وې.اوپه دې كښې آخرى دا غزوه تسليم كړې شى.

دويم احتمال به دا وى.چه دا غزوه د ۷هجرئ ښخى په اوائيلو كښې په محرم كښې اومنلې شى.په دې دواړو احتمالاتوكښې به د غزوه ذات الرقاع وقوع د غزوه خيبر نه وړاندې وى.
دريم احتمال دا دې.چه دا غزوه د خيبر نه پس اومنلې شى.نودا حضرات فرمائى. چه دلته دا درې واړه احتمالات شته.خوپه دې كښې اولنى دوه احتمالات داسې دى.چه د هغې تائيد په هيڅ قسم روايت سره نشى كيدې.حالانكه د دريم روايت تائيد د حضرت ابو موسى اشعري اوحضرت ابوهريره رضي الله عنهما په رواياتو سره كيږى.نو هم دا روايت به قابل قبول وى.او ونيلې به شى.چه غزوه ذات الرقاع د خيبر نه پس واقع شوې وه.(۲)

بعضې حضرات وائى.چه په حقيقت كښې غزوه ذات الرقاع دوه دى.يوه هغه د كومې ذكر چه اهل سير او اصحاب مغازى كوى.او دويمه هغه په كومه كښې چه حضرت ابوموسى اشعري رضي الله عنه شريك وو.نود كومې ذات الرقاع ذكرچه اصحاب سير كوى.هغه د خيبر نه وړاندې واقع شوې وه.اوپه كوم كښې چه د حضرت ابوموسى اشعري رضي الله عنه شركت شوې دې. هغه د غزوه خيبر نه پس شوې ده.

---

۱ )فتح البارى(۷/٤۱۸)_
۲ )زادالمعاد (۳/۲۵۱و ۲۵۲) وفتح البارى(۷/٤۱۸)_

د غزوه ذات الرقاع په تعدد باندې دوی دا دليل پيش کوی.چه حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه چه په کوم روايت کښې په غزوه ذات الرقاع کښې دخپل شرکت ذکر کوی.په هغې کښې هغوی ونيلی دی.چه مونږ شپږ کسان وو.اوپه يو اوښ به وار په وار سوريدو.اود کومې ذات الرقاع ذکرچه اصحاب مغازی کوی.په هغې کښې د نبی ﷺ سره دځلورو سوه صحابو رضی الله عنهم ذله وه.ددې نه معلوميږی.چه دا دواړه جدا جدا غزاګانې وې.په يوه کښې شپږ اوپه بله کښې ځلور سوه کسان وو.(١)

خو د غزوه ذات الرقاع په تعدد باندې دا استدلال ډير ضعيف دې.ځکه چه د حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه دا ونيل چه مونږ به شپږ کسان وار په وار په يو اوښ باندې سوريدو.دا نه لازميږی.چه د دوی سره په لښکر کښې بل څوک نه وو. ځکه چه کله لوئې لښکر وی.نو خلق چه څې په مختلفو ټولګو کښې تقسيميږی. او بيا هغوی جدا جدا په خپلو خپلو ټولګو کښې څی.ددې وجې حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه چه دا کوم ونيلی دی.چه مونږ شپږ کسان وو.د دې دا مطلب نه دې.چه ټول شپږ وو.بلکه مطلب دا دې.چه زمونږ ټولګې د شپږو کسانو وو.(٢)

**امام بخاری رحمه الله غزوه ذات الرقاع د غزوه خيبر نه وړاندې ولې ذکر کړه؟** خو دا اشکال کيږی. چه هرکله امام بخاری رحمه الله غزوه ذات الرقاع د غزوه خيبر نه پس تسليموی.نو پکار ده چه دا ئې د غزوه خيبر نه پس ذکر کړې وه.د غزوه خيبر نه ئې وړاندې ولې ذکر کوی.

① ددې يو جواب خو دا ورکړې شوې دې.چه امام بخاری رحمه الله غزوه ذات الرقاع د غزوه خيبر نه وړاندې ځکه ذکر کړه.چه په تاريخ وقوع کښې د عامو اهل سير خبرې تسليمولو ته ئې اشاره کړې ده.

② دويمه وجه دا ده.چه امام بخاری رحمه الله نه بلکه د دوی نه د بخاری روايت کونکو روستنو راويانو دا د غزوه خيبر نه وړاندې ذکر کړې ده.(٣)

③ او دا هم ممکن دی.چه اختلاف طرف ته د اشارې کولو دپاره امام بخاری رحمه الله داسې کړې وی.والله اعلم.

**قوله**: وَهِيَ غَزْوَةُ مُحَارِبِ خَصَفَةَ مِنْ بَنِي ثَعْلَبَةَ مِنْ غَطَفَانَ: امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې دوه دعوې کړې دی.يوه دا چه غزوه ذات الرقاع د غزوه خيبر نه پس واقع شوې ده.اودويمه دعوه دا ده.چه غزوه ذات الرقاع او غزوه محارب خصفه دواړه يوه غزا ده. او د دې باب د آخره پورې امام بخاری رحمه الله دا دواړه دعوې په دلائلو سره ثابتې کړې دی.

په .محارب خصفه.کښې د محارب اضافت ..خصفه.. ته ددې وجې شوې دې.چه په عربو کښې دمحارب په نوم نورې قبيلې هم وې.محارب عبدالقيس .محارب فهر.د هغوی نه د

---

(١) فتح الباری( ٤١٨\٧) والبداية والنهاية ( ٨٣\٤)_

(٢) فتح الباری( ٤١٩\٧)_

(٣) اوګورئ د دې دواړو توجيهاتو دپاره فتح الباری (٤١٧\٧)_

فرق دپاره ئي ،،محارب خصفه،، اوونيل. (١)

**قوله**: مِنْ بَنِي ثَعْلَبَةَ مِنْ غَطَفَانَ: دا عبارت د امام بخاری رحمه الله د اوهامو څخې دی.څکه چه ددې مطلب دا راوځی.چه محارب بن خصفه د ثعلبه په اولاد کښې دی.اود ثعلبه د محارب جد امجد دې.حالانکه حقيقت ددې نه خلاف دې.ثعلبه د محارب جد نه دې.بلکه پخپله ثعلبه د غطفان په اولاد کښې داخل دې.اوغطفان اوثعلبه دواړه د تره ځامن وو.څکه چه غطفان د سعد بن قيس ورور وو.اومحارب دخصفه بن قيس خوئ وو. دغه شان خصفه او غطفان د سعد بن قيس ځامن وو.اومحارب د خصفه بن قيس په خپله مينځ کښې د تره ځامن وو.نو څکه عبارت د «من بنى ثعلبة» په ځاې په واو عاطفه «وبنى ثعلبة» سره کيدل پکار دی.هم دا وجه ده.چه حافظ ابن حجراوعلامه عينى رحمهما الله صحيح عبارت هم داسې نقل کړې دې.«مِنْ بَنِي ثَعْلَبَةَ مِنْ غَطَفَانَ» (٢)

**قوله**: فنزل نخلاً وهي غزوة محارب خصفة وبني ثعلبة من غطفان: کله چه نبى ﷺ د غزوه ذات الرقاع دپاره تشريف يوړلو.نومقام نخل ته کښې دوی نزول اوکړو.دې ځاې ته بطن نخل هم وائي.اونخل هم.دا ځاې په بلاد غطفان کښې واقع دې.او د مدينې منورې نه د دوو ورځو په فاصله باندې دې.(٣) غالباً په دې ځاې کښې د قجورو ونې زياتې وې.څکه دې ځاې ته ،،بطن نخلة،، ونيلى شو.

[٣٨٩٨] قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَقَالَ لِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ أَخْبَرَنَا عِمْرَانُ الْقَطَّانُ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى بِأَصْحَابِهِ فِي الْخَوْفِ فِي غَزْوَةِ السَّابِعَةِ غَزْوَةِ ذَاتِ الرِّقَاعِ

**قوله**: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ: عبدالله بن رجاء دوه دی.يوعبدالله بن رجاء مکى دې.اوبل عبدالله بن رجاء بصرى دې.دعبدالله بن رجاء بصرى نه دامام بخارى رحمه الله سماع شته.اود عبدالله بن رجاء مکى نه د امام بخارى رحمه الله سماع نشته.اودلته عبدالله بن رجاء بصرى مراد دې.ددوی نه دامام بخارى رحمه الله سماع شته.خود ،،قال،، صيغه امام بخارى رحمه الله د تعليق دپاره استعمالوی.ددې وجې په ظاهره دا تعليق دې.دا تعليق ابوالعباس السراج په خپل مسند کښې موصولاً نقل کړې دې.البته د بخارى ابوذرپه نسخه کښې د «وقال عبدالله بن رجاء» په ځاې «وقال لى عبدالله بن رجاء» دی.په دې صورت کښې به دا تعليق نه وی.(٤)

---

(١) فتح البارى (٤١٨/٧) وعمدة القارى (١٩٣/١٧)_
(٢) فتح البارى (٤١٨/٧) وعمدة القارى (١٩٤/١٧)_
(٣) فتح البارى (٤١٨/٧) وعمدة القارى (١٩٤/١٧)_
(٤) عمدة القارى (١٩٤/١٧)_

**قوله**: أَخْبَرَنَا عِمْرَانُ الْقَطَّانُ : دا عمران بن داود القطان رحمه الله دي.امام بخاری رحمه الله ددوی روایات صرف په استشهاد کښې ذکرکوی.دوی د قوت اوضبط په اعتبارسره د دومره اوچتې مرتبې نه دې.چه امام بخاری رحمه الله د دوی د روایت نه استدلال اوکړی.([1])

**قوله**: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى بِأَصْحَابِهِ فِي الْخَوْفِ فِي غَزْوَةِ السَّابِعَةِ غَزْوَةِ ذَاتِ الرِّقَاعِ: حضرت جابر رضي الله عنه فرمائی.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په اوومه غزوه ، غزوه ذات الرقاع کښې صحابو رضي الله عنهم ته صلاة الخوف کړې وو.

«فى غزوة السابعة»کښې دموصوف اضافت صفت طرف ته کیږی.په اصل کښې دی.«فى الغزوة السابعة» په دې روایت سره دامام بخاری رحمه الله په خپله دعوه چه «غزوه ذات الرقاع»دخیبرنه پس واقع شوې ده.استشهاد مقصود دې.ځکه چه د دې نه وړاندې شپږ لوې غزاګانې شوې وې.① غزوه بدر② غزوه احد③ غزوه خندق④غزوه بنو قریظه ⑤ غزوه مریسیع ⑥او غزوه خیبر.. اوددې نه پس اوومه غزوه ،،ذات الرقاع،، ده.

بعضې خلقو د «غزوة السابعة» اضافت ته کتلی دی.دا ئې ګڼړلی دی.چه د دې نه مراد د ۷هجرئ غزوة ذات الرقاع ده،اوهغوی وئیلی دی،چه اصلی عبارت «غزوة السنة السابعة» دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.که د «غزوه السابعة» نه «غزوه السنة السابعة» مراد واخستې شی.نویه دې صورت کښې به دا روایت په مراد باندې نص شی. (یعنی دا روایت به په دې خبره باندې ښکاره دلالت کونکې شی.چه غزوة ذات الرقاع د غزوه خیبرنه پس واقع شوې وه.ځکه چه غزوه خیبر د اوومې هجرئ په اولنئ میاشت محرم کښې پیښه شوې وه.نود غزوة الرقاع په اووم کال کښې د واقع کیدو ښکاره مطلب به دا وی.چه دا د خیبر نه پس ده) اوبیا امام بخاری رحمه الله ته د حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه وغیره په روایاتو باندې د استدلال تکلف کولوته څه ضرورت نه وو.خوامام بخاری رحمه الله د داسې قسم روایاتو نه وړاندې استدلال کوی.چه دهغې نه معلومیږی.چه ددې روایت نص بالمراد معنی «غزوة السنة السابعة» مراد نه دې.بلکه «الغزوة السابعة» مراد ده.کومه چه دامام بخاری رحمه الله په دعوی باندې نص نه دې.البته د امام بخاری رحمه الله د دعوې تائید په دې سره ضرور کیږی.ځکه چه امام بخاری رحمه الله وړاندې نور دلائل پیش کوی. ([2]) والله اعلم.

**قوله**: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَوْفَ بِذِي قَرَدٍ:
حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی.چه نبی صلى الله عليه وسلم په ،،ذی قرد،، کښې صلاة الخوف کړې وو.

---

[1] )فتح الباری(۴۱۹\۷)_
[2] )اوګورئ فتح الباری(۴۱۹\۷)_

دا تعليق دې.امام نسائى او طبرانى رحمهماالله دا موصولاً نقل کړې دې.(۱) امام بخارى رحمه الله په دعوه په ترجمة الباب سره دا کړې ده.چه غزوه ذات الرقاع او غزوه محارب خصفه دواړه يو دى.په ذکرشوى تعليق سره امام بخارى رحمه الله خپله دا دعوه ثابتوى.په دې طريقه چه په ،،ذى قرد،، کښې نبى ﷺ صلاة الخوف ادا کړې وو.،،ذى قرد،، د مدينې منورې نه د يوې ورځې په مزل باندې لرې د بلاد غطفان سره پيوست د يو ځاې نوم دې.او ذات رقاع هم د ذى قرد سره متصل په بلاد غطفان کښې د يو غر نوم دې.په ذى قرد کښې غزوه محارب خصفه شوې وو. او په ذات الرقاع کښې غزوه ذات الرقاع شوې وو.اودا دواړه ځايونه يوبل ته نزدې نزدې دى.ددې نه معلوميږى.چه دا دواړه غزوات څه جدا جدا نه دى.بلکه دواړه يو دى.يو خو ددې وجې چه ذى قرد او ذات رقاع دواړه د يو بل سره نزدې دى.او دويمه ددې وجې چه په دواړو کښې د صلاة الخوف ادا کول په رواياتو کښې ذکر دى.دا دواړه څيزونو ددې خبرې دلالت دې.چه غزوه محارب خصفه او غزوه ذات رقاع دواه يو دى.

خودامام بخارى رحمه الله دا استدلال کمزورې دې.يو خو ددې وجې چه صلاة الخوف څو څو ځله شوې دې.د دواړو غزواتو په اتحاد باندې د صلاة الخوف په ادا کولو سره به استدلال په هغه وخت کښې صحيح وو.چه دا يوځل ادا شوې وى. دويمه ددې وجې که ذى قرد او ذات رقاع دواړه د متصل ځايونو نومونه وى.نو د دې نه دا نه لازميږى.چه غزوه محارب او غزوه ذات رقاع دواړه يو دى.عين ممکن ده.چه ذى قرد مستقله غزوه وى.اوذات رقاع ځانله غزوه وى.ددې وجې دامام بخارى رحمه الله دا دليل څه قوى او مضبوط دليل نه دې.والله اعلم.

**قوله**: وَقَالَ بَكْرُ بْنُ سَوَادَةَ حَدَّثَنِي زِيَادُ بْنُ نَافِعٍ عَنْ أَبِي مُوسَى أَنَّ جَابِرًا حَدَّثَهُمْ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهِمْ يَوْمَ مُحَارِبٍ وَثَعْلَبَةَ: «وَقَالَ بَكْرُ بْنُ سَوَادَةَ» بکربن سوادد بصرى دې.اود مصر په فقهاؤ کښې د دوى شمار کيږى.حضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله دوى لره افريقې طرف ته د فقه دتعليم په غرض باندې ليږلې وو. دوى په ۱۲۸ھ کښې وفات شو.ابن معين او نسائى رحمهماالله د دوى توثيق کړې دې.د دوى کنيت ،،ابوثمامه،، دې.(۲)

**قوله**: حَدَّثَنِي زِيَادُ بْنُ نَافِعٍ: دوى مصرى دى.او په صغارو تابعينو کښې.ددوى شمار کيږى.ددې مقام نه علاوه د بخارى په بل ځاې کښې د دوى نه روايت ذکر نه دې.(۳)

«عن أبي موسى» دا ابوموسى اشعرى رضي الله عنه نه دې.بلکه د دوې نوم على بن رباح خودلې شوې دې.ددوى صرف دا يو حديث په بخارى کښې راغلې دې.(۴)

---

۱ )فتح البارى(۴۲۰۱۷) وعمدة القارى (۱۹۴۱۱۷)_

۲ )عمدة القارى (۱۹۴۱۱۷، ۱۹۵)_

۳ )فتح البارى (۴۲۰۱۷) وعمدة القارى (۱۹۵۱۱۷)_

۴ )فتح البارى(۴۲۰۱۷) وعمدة القارى (۱۹۵۱۱۷)-

**قوله**: صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهِمْ يَوْمَ مُحَارِبٍ وَثَعْلَبَةَ: ددې عبارت نه د امام بخارى رحمه الله هم هغه مقصود دې.چه نبى ﷺ په غزوه محارب او ثعلبه کښې مونځ وركړې وو.او په ذات الرقاع كښې ئې هم د صلاة خوف ذكر دې... نو معلومه شوه.چه دا دواړه غزاګانې يو دى.

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ سَمِعْتُ وَهْبَ بْنَ كَيْسَانَ سَمِعْتُ جَابِرًا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى ذَاتِ الرِّقَاعِ مِنْ نَخْلٍ فَلَقِيَ جَمْعًا مِنْ غَطَفَانَ فَلَمْ يَكُنْ قِتَالٌ وَأَخَافَ النَّاسُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا فَصَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيِ الْخَوْفِ: ددې روايت په ذكر كولو كښې دامام بخارى رحمه الله مقصود دا دې.چه د حضرت جابر رضي الله عنه ټول روايات په دې خبره متفق دى.چه نبى ﷺ په غزوه ذات الرقاع كښې صلاة الخوف ادا كړې وو.نو په كومو رواياتو كښې چه په غزوه نخل كښې د صلاة الخوف د ادا كولو ذكر راغلې دې.نو هلته به د غزوه نخل نه غزوه ذات الرقاع مراد وى.ځكه چه غزوه ذات الرقاع د غطفان دخلقو سره شوې وه.او غطفان په بطن نخل كښې اوسيدل.البته امام بخارى رحمه الله د ابن اسحاق په حوالې سره دا روايت دلته ذكر كړې دې.خو د ابن اسحاق په سيرت كښې په دې سند سره دا رايت هډو موجود نه دې.

ځنو حضراتو دا وئيلى دى.چه د امام بخارى رحمه الله نه تسامح شوې دې.ځكه چه په سيرت ابن اسحاق كښې په دې سند سره د حضرت جابر رضي الله عنه نه يو بله واقعه هم ددې غزوې موجود ده.امام بخارى رحمه الله په غلطئ سره د صلاة خوف د ادا كولو قصه ذكركړې ده.

علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه چا دامام بخارى رحمه الله تسامح ثابت كړې دې .نو آيا دهغه حافظه د امام بخارى رحمه الله د حافظې نه زياته ده.كه په سيرت ابن اسحاق كښې په دې سند سره دا واقعه ذكر شوې نه وى.نو ددې نه دا چرته لازميږى .چه په بل ځاې كښې به هم نه وى.عين ممكن ده.چه امام بخارى رحمه الله د ابن اسحاق په دې سند سره دا واقعه چرته په بل ځاې كښې ليدلې وى.([1])

**قوله**: وَقَالَ يَزِيدُ عَنْ سَلَمَةَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْقَرَدِ [ر:۳۹۰۱ وانظر:۲۷۵۳] دايزيدبن ابى عبيده دې.دې د سلمه بن الاكوع رضي الله عنه آزاد كړې غلام دې.([2]) دوى د حضرت سلمه بن اكوع رضي الله عنه نه روايت كوى.چه هغوى فرمائيلى دى.ما د رسول الله ﷺ سره په غزوه ذى قرد كښې شركت كړې وو.

دحضرت سلمه بن اكوع رضي الله عنه ددې تعليق نه د امام بخارى رحمه الله مقصد د غزوه محارب خصفه او ذات الرقاع يو ثابتول دى.په دې طريقه چه په ذى قرد كښې غزوه محارب شوې

---

[1] )عمدة القارى (۱۷\۱۹۵)_

[2] )عمدة القارى (۱۷\۱۹۵)_

وه.اوذی قرد او ذات الرقاع دواړه د متصل ځایونو نومونه دی.نو په دې سره ددې دواړو غزاګانو یو والی ثابت شو.خو لکه څنګه چه اوخودلې شو.چه دامام بخاری رحمه الله دا استدلال کمزورې دې.ځکه چه د دوو ځایونو د اتصال نه د غزواتو اتصال او اتحاد نه لازمیږی.

**دحافظ ابن حجر رحمه الله خیال:** حافظ ابن حجر رحمه الله ددې روایت نه اوددې نه وړاندې چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما کوم روایت وو.په کوم کښې چه په غزوه ذی قرد کښې د صلاة الخوف د ادا کولو ذکر دې.د امام بخاری رحمه الله دا منشاء ګڼړلې ده.چه امام بخاری غزوه ذات الرقاع او غزوه ذی قرد یوه ثابتوی.(۱)

خولکه څنګه چه اوخودلې شو.چه دامام بخاری رحمه الله مقصد د غزوه محارب خصفه او غزوه ذات الرقاع یوثابتول مقصود دی.د غزوه ذی قرد او غزوه ذات الرقاع یو ثابتول دوی منشاء او مقصود نه دی.لکه څنګه چه حافظ رحمه الله ګڼړلی دی.ځکه چه وړاندې امام بخاری رحمه الله غزوه ذی قرد مستقل بیانوی.او هلته امام بخاری رحمه الله دا تصریح کړې ده.چه ((وهی قبل خیبر بثلاث)) یعنی غزوه ذی قرد د غزوه خیبر نه درې ورځې وړاندې شوې وه.ددې وجې د حافظ رحمه الله دا وئیل چه دامام بخاری رحمه الله مقصود د غزوه ذی قرد او غزوه ذات الرقاع یو خودل دی.صحیح نه دی. والله اعلم.

[۳۸۹۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ وَنَحْنُ سِتَّةُ نَفَرٍ بَيْنَنَا بَعِيرٌ نَعْتَقِبُهُ فَنَقِبَتْ أَقْدَامُنَا وَنَقِبَتْ قَدَمَايَ وَسَقَطَتْ أَظْفَارِي وَكُنَّا نَلُفُّ عَلَى أَرْجُلِنَا الْخِرَقَ فَسُمِّيَتْ غَزْوَةَ ذَاتِ الرِّقَاعِ لِمَا كُنَّا نَعْصِبُ مِنْ الْخِرَقِ عَلَى أَرْجُلِنَا وَحَدَّثَ أَبُو مُوسَى بِهَذَا ثُمَّ كَرِهَ ذَاكَ قَالَ مَا كُنْتُ أَصْنَعُ بِأَنْ أَذْكُرَهُ كَأَنَّهُ كَرِهَ أَنْ يَكُونَ شَيْءٌ مِنْ عَمَلِهِ أَفْشَاهُ

دا د ابوموسی اشعری رضی الله عنه هم هغه روایت دې.په کوم چه امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې استدلال کړې دې.حضرت ابوموسی رضی الله عنه فرمائی.چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په یوه غزوه کښې اووتلو.مونږ شپږ کسان وو.او وار په وار به په اوښ باندې سوریدو.زما د ملګرو پښې چودې وې.د کومې د وجې چه مونږ په پښو باندې د چړرو پټې تړلې وې.حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه په دې غزوه کښې خپل شرکت خو بیان کړو.خوبیا دوی دا خوښه نکړه.چه د دوی څه نیك عمل ښکاره شی.او په هغې کښې خامخا د ریا شبه پیدا شی.

حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه د حبشې نه مدینې منورې ته د فتح خیبر نه پس راغلې وو. نوپه غزوه ذات الرقاع کښې د دوی شرکت ددې خبرې دلیل دې.چه دا غزوه د فتح خیبر نه پس شوې وه.او هم دا د امام بخاری رحمه الله مقصود دې.

---

۱) فتح الباری (۴۲۱/۷)_

[۳۹۰۰] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ عَمَّنْ شَهِدَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ ذَاتِ الرِّقَاعِ صَلَّى صَلَاةَ الْخَوْفِ أَنَّ طَائِفَةً صَفَّتْ مَعَهُ وَطَائِفَةٌ وِجَاهَ الْعَدُوِّ فَصَلَّى بِالَّتِي مَعَهُ رَكْعَةً ثُمَّ ثَبَتَ قَائِمًا وَأَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ ثُمَّ انْصَرَفُوا فَصَفُّوا وِجَاهَ الْعَدُوِّ وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى فَصَلَّى بِهِمُ الرَّكْعَةَ الَّتِي بَقِيَتْ مِنْ صَلَاتِهِ ثُمَّ ثَبَتَ جَالِسًا وَأَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ ثُمَّ سَلَّمَ بِهِمْ قَالَ مَالِكٌ وَذَلِكَ أَحْسَنُ مَا سَمِعْتُ فِي صَلَاةِ الْخَوْفِ [ر: ۳۹۰۲]

**قوله**: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ....: يزيد بن رومان د حضرت زبیربن العوام رضی اللہ عنہ ازاد کړې غلام دې.[1]

**قوله**: عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ عَمَّنْ شَهِدَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: د صالح بن خوات هم دا يو روايت په بخاری کښې راغلې دې.[2] د. ((عمن شهد بدراً)) د مصداق په باره کښې ځنې حضراتو وئيلی دی.چه حضرت سهل بن ابی حثمه مراد دې.[3] خو امام غزالی اوامام نووی رحمهما الله خوات بن جبیر ددې مصداق ګرځولی دې.کوم چه د صالح بن خوات پلار دې.حافظ ابن حجر رحمہ اللہ هم دې ته ترجيح ورکړې ده. او فرمائی.دابن منده او بيهقی په رواياتو کښې د ((صالح بن خوات عن أبيه)) تصريح ده.ددې نه دا خبره متعين کيږی.د ((عمن شهد بدراً)) مصداق دصالح بن خوات پلار حضرت خوات بن جبير دې.[4]

په دې روايت کښې په غزوه ذات الرقاع کښې د صلاة الخوف د ادا کولو کيفيت بيان شوې دې.چه اول يوې ډلې د نبی ﷺ سره صف جوړ کړو.او بله ډله د دشمن د مقابلې دپاره ولاړه وه.کومه ډله چه د دوی سره ولاړه وه.هغوی ته ئې يو رکعت اوکړو.او نبی ﷺ په خپل ځاې ولاړ وو.اوهغه ډلې خپل مونځ پوره کړو.چه دمانځه نه فارغ شو.نودا خلق راغلل د دشمن په مقابله کښې ئې صفونه جوړ کړل.او دويمه ډله راغله.نبی ﷺ دخپل مونځ باقی يو رکعت دوی ته اوکړو.او بيا نبی ﷺ په خپله قاعده کښې ناست وو.او دويمې ډلې خپل مونځ پوره کړل.اوپه التحيات کښې کيناستل.د تشهد وغيره نه چه فارغ شو.نو بيا نبی ﷺ دوی سره سلام اوګرځولو.

**قوله**: قَالَ مَالِكٌ وَذَلِكَ أَحْسَنُ مَا سَمِعْتُ فِي صَلَاةِ الْخَوْفِ: په ذکرشوی روايت کښې چه د صلاة الخوف د ادا کولو کوم کيفيت بيان شو.امام مالک رحمہ اللہ فرمائی.چه د صلاة الخوف په باره کښې چه څومره صورتونه ما اوريدلی دی.په هغو ټولو کښې دا صورت ښه

---

[1] )عمدة القاری (۱۷\۱۹۶)_

[2] )قال الحافظ وصالح تابعی ثقة ليس له فی البخاری إلا هذا الحديث الواحد .فتح الباری (۷\۴۲۲)_

[3] )فتح الباری (۷\۴۲۲) وعمدة القاری (۱۷\۱۹۷)_

[4] )فتح الباری (۷\۴۲۲)_

دي.په دې كښې چه نبى ﷺ دويم ركعت پوره كړو نو د دويمې ډلې د فارغ كيدو انتظار نې كولو.اوكله چه دويمې ډلې خپل مونځ پوره كړو.نو نبى ﷺ هغوى سره سلام اوكرځولو.
خو په دارقطنى كښې دابن وهب نه دا نقل دى.چه امام مالك رحمه الله اول دا صورت خوښولو.خو روسته د قاسم بن محمد په وجه د دوى فيصله دا وه.چه دامام دپاره د دويمې ډلې د مونځ پوره كولو انتظار نه دى كول پكار.بلكه امام دې سلام اوكرځوى.او خپل مونځ دې پوره كړى.(۱)

[۳۹۰۱]وَقَالَ مُعَاذٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَخْلٍ فَذَكَرَ صَلَاةَ الْخَوْفِ تَابَعَهُ اللَّيْثُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ أَنَّ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ حَدَّثَهُ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ بَنِي أَنْمَارٍ [ر:۳۸۹۸]
د دې نه وړاندې د معاذ روايت تيرشوې وو.امام بخارى رحمه الله فرمائى.چه د معاذ متابعت ليث كړې دې.دلته دې دا خبره ياده وى.چه د متابعت نه متابعت اصطلاحى مراد دې.بلكه ددې متابعت نه «موافقة فى صفة الصلاة» مراد دې.يعنى څنګه چه د معاذ په روايت كښې د صلاة الخوف د ادا كولو كيفيت او صورت بيان شوې دې.تيك هم هغه شان دصلاة الخوف د ادا كولو كيفيت او طريقه ليث هم په خپل روايت كښې بيان كړې ده.اصطلاحى متابعت څكه مراد نه دې.چه د معاذ روايت د حضرت جابر رضي الله عنه نه موصولاً منقول دې.او د ليث روايت مرسلاً منقول دې.اود متابعت اصطلاحى مطلب دا وى.چه د يو صحابى يو روايت دهغه نه په يو سند سره منقول وى.هم هغه روايت د دوى نه په بل سند سره منقول شى.او دلته داسې نه ده.(۲)
ددې متابعت د پيش كولو نه د امام بخارى رحمه الله مدعا دا ده.چه غزوه بنى انمار او غزوه ذات الرقاع دواړه يو دى.څكه چه غزوه بنى انمار په بلاد غطفان كښې شوې وه.او بله ددې وجې د غزوه بنى انمار او غزوه ذات الرقاع كښې په رواياتو كښې د صلاة الخوف د ادا كولو ذكر راغلې دې.(۳) خوتاسو ته خودلى شوى دى.چه دامام صاحب رحمه الله دا استدلال ضعيف دې.

[۳۹۰۲]حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيِّ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ قَالَ يَقُومُ الْإِمَامُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ وَطَائِفَةٌ مِنْهُمْ مَعَهُ وَطَائِفَةٌ مِنْ قِبَلِ الْعَدُوِّ وُجُوهُهُمْ إِلَى الْعَدُوِّ فَيُصَلِّي بِالَّذِينَ

---

(۱)سنن دارقطنى (۲/۶۱) باب صفة صلاة الخوف وأقسامها)_
(۲)د متابعت دتعريف او د دې د قسمونو د تفصيل دپاره اوګورئ (مقدمة ابن الصلاح (۳۸و ۳۹) النوع الخامس عشر،معرفة الإعتبار والمتابعات والشواهد دغه شان اوګورئ (نزهة النظرفى توضيح نخبة الفكر(ص،۵۲و ۵۳)_~
(۳)اوګورئ فتح البارى (۷/۴۲۴و ۴۲۵)_~

مَعَهُ رَكْعَةً ثُمَّ يَقُومُونَ فَيَرْكَعُونَ لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً وَيَسْجُدُونَ سَجْدَتَيْنِ فِي مَكَانِهِمْ ثُمَّ يَذْهَبُ هَؤُلَاءِ إِلَى مَقَامِ أُولَئِكَ فيجيئ أولئك فَيَرْكَعُ بِهِمْ رَكْعَةً فَلَهُ ثِنْتَانِ ثُمَّ يَرْكَعُونَ وَيَسْجُدُونَ سَجْدَتَيْنِ

حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ

حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ يَحْيَى سَمِعَ الْقَاسِمَ أَخْبَرَنِي صَالِحُ بْنُ خَوَّاتٍ عَنْ سَهْلٍ حَدَّثَهُ قَوْلَهُ [ر: ۳۹۰۰]

[۳۹۰۳، ۳۹۰۲] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمٌ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ فَوَازَيْنَا الْعَدُوَّ فَصَافَفْنَا لَهُمْ

[۳۹۰۴] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى بِإِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ وَالطَّائِفَةُ الْأُخْرَى مُوَاجِهَةُ الْعَدُوِّ ثُمَّ انْصَرَفُوا فَقَامُوا فِي مَقَامِ أَصْحَابِهِمْ أُولَئِكَ فَجَاءَ أُولَئِكَ فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَةً ثُمَّ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثُمَّ قَامَ هَؤُلَاءِ فَقَضَوْا رَكْعَتَهُمْ وَقَامَ هَؤُلَاءِ فَقَضَوْا رَكْعَتَهُمْ [ر: ۹۰۰]

[۳۹۰۵، ۳۹۰۶] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي سِنَانٌ وَأَبُو سَلَمَةَ أَنَّ جَابِرًا أَخْبَرَ أَنَّهُ غَزَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ

حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي أَخِي عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي عَتِيقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سِنَانِ بْنِ أَبِي سِنَانٍ الدُّؤَلِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَهُ أَنَّهُ غَزَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ فَلَمَّا قَفَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَفَلَ مَعَهُ فَأَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِي وَادٍ كَثِيرِ الْعِضَاهِ فَنَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَفَرَّقَ النَّاسُ فِي الْعِضَاهِ يَسْتَظِلُّونَ بِالشَّجَرِ وَنَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ سَمُرَةٍ فَعَلَّقَ بِهَا سَيْفَهُ قَالَ جَابِرٌ فَنِمْنَا نَوْمَةً ثُمَّ إِذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُونَا فَجِئْنَاهُ فَإِذَا عِنْدَهُ أَعْرَابِيٌّ جَالِسٌ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ هَذَا اخْتَرَطَ سَيْفِي وَأَنَا نَائِمٌ فَاسْتَيْقَظْتُ وَهُوَ فِي يَدِهِ صَلْتًا فَقَالَ لِي مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي قُلْتُ اللَّهُ فَهَا هُوَ ذَا جَالِسٌ ثُمَّ لَمْ يُعَاقِبْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**قوله:** حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ .... عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: حضرت جابر رضي الله عنه فرمائي چه دوی د رسول الله ﷺ سره د نجد طرف ته د غزا دپاره تلي وو. کله چه ددغه غزا نه واپسی اوشوه.

**قوله** فَأَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِي وَادٍ كَثِيرِ الْعِضَاهِ: نو د قيلولې وخت دوى په داسې خوړ كښې بيا اوموندلو. چه په هغې كښې غټې غټې ازغى دارې ونې وې. د كيكر ونې مراد دى.

((العضاة)) داسې غټې ونې ته وائى. چه په هغې كښې زيات ازغى وى.

نبى ﷺ په دغه ځاى كښې نزول اوكړو. اوخلق د لويو لويو ازغى دارو ونو لاندې د سيورى حاصلولو دپاره خوارۀ شول. نبى ﷺ د يوې لوې ونې د لاندې آرام كولو. اوتوره ئې په هغه ونه پورې زوړنده كړه. حضرت جابر رضي الله عنه فرمائى. چه مونږ څه لږ وخت اودۀ شول. چه نبى ﷺ مونږ راوغوښتلو. چه مونږ راغلو. نو د نبى ﷺ سره يو بانډيچى ناست وو. نبى ﷺ اوفرمائيل. چه دې كس زما توره نيولې وه. يعنى اول ئې توره د ونې نه راكوزه كړې وه. اود تيكى نه راويستې وه. اواودريدل. زه اودۀ ووم. كله چه زما سترګې كهولاؤ شوې. نو تياره توره دده په لاس كښې وه. وې ونيل. زه تا ته وايم. چه تا به زما نه څوك بچ كړى. نو ما ورته اوونيل. الله. اوس اوګورئ دې ناست دې. نبى ﷺ هغه معاف كړو. او هغه ته ئې سزا ورنكړه.

[٤١٣٦] وَقَالَ أَبَانُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَاتِ الرِّقَاعِ فَإِذَا أَتَيْنَا عَلَى شَجَرَةٍ ظَلِيلَةٍ تَرَكْنَاهَا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَسَيْفُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُعَلَّقٌ بِالشَّجَرَةِ فَاخْتَرَطَهُ فَقَالَ تَخَافُنِي قَالَ لَا قَالَ فَمَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي قَالَ اللَّهُ فَتَهَدَّدَهُ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَصَلَّى بِطَائِفَةٍ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ تَأَخَّرُوا وَصَلَّى بِالطَّائِفَةِ الْأُخْرَى رَكْعَتَيْنِ وَكَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعٌ وَلِلْقَوْمِ رَكْعَتَانِ

وَقَالَ مُسَدَّدٌ عَنْ أَبِي عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ اسْمُ الرَّجُلِ غَوْرَثُ بْنُ الْحَارِثِ وَقَاتَلَ فِيهَا مُحَارِبَ خَصَفَةَ

ددې نه وړاندې د حضرت جابر رضي الله عنه په روايت كښې وو. چه مونږ نجد طرف ته د غزا دپاره تلى وو او د غزوه نجد نه مراد غزوه محارب خصفه ده. اوس حضرت جابر رضي الله عنه د ذات الرقاع لفظ استعمال كړو. ددې نه د امام بخارى رحمه الله ددې دعوى تائيد كيږى. چه غزوه محارب خصفه او غزوه ذات الرقاع يوه غزوه ده. او د حضرت جابر رضي الله عنه د دې دواړو روايتونو پيش كولو نه د امام بخارى رحمه الله هم دا مقصود دې.

امام بخارى رحمه الله د ابان دا روايت دلته تعليقاً ذكر كړې دې. امام مسلم دا روايت موصولاً نقل كړې دې.[1]

**قوله** فَتَهَدَّدَهُ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: د نبى ﷺ صحابو رضي الله عنهم دغه اعرابى اوېتلو وړاندې تيرشوى دى. چه نبى ﷺ هغه معاف كړې وو. ظاهره ده. چه كله صحابو رضي الله عنهم هغه رټل نو نبى ﷺ به منع كړى وى. واقدى نقل كړى دى. چه دغه اعرابى په

[1] (فتح البارى (٧/٤٤٨)

دغه موقع باندې مسلمان شو.اوخپلې قبيلې ته لاړلو.هغوى ته ئې د اسلام دعوت وركړو.په دې سره ډير خلق په اسلام كښې داخل شول.(١)

**قوله:** فَصَلَّى بِطَائِفَةٍ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ تَأَخَّرُوا وَصَلَّى بِالطَّائِفَةِ الْأُخْرَى رَكْعَتَيْنِ وَكَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعٌ وَلِلْقَوْمِ رَكْعَتَانِ: دا روايت د ټولو دپاره د اشكال باعث جوړيږى.ځكه چه په دې خبره باندې تقريبا د ټولو امامانو اتفاق دې.چه كه امام او قوم دواړه مسافر وى.نوقوم سره به امام يو يو ركعت كوى.دغه شان به د امام هم دوه ركعته شى.اوقوم به هم باقى يو يو ركعت دامام نه جدا ځانله اوكړى.او دوه ركعته به كوى.اوكه امام او قوم دواړه مقيم وى.نوپه دې صورت كښې به امام هرې يوې ډلې ته دوه دوه ركعته كوى.دغه شان به دامام څلور ركعته شى.اود قوم به دامام سره دوه ركعته شى.او باقى دوه ركعته به هغوى د امام نه ځانله پوره كوى.

خو د بخارى په دې روايت كښې چه كوم صورت حال بيان شوې دې.په دې كښې نبى ﷺ هم مسافر وو.او قوم هم مسافر،ددې تقاضا خو دا وه.چه نبى ﷺ هرې يوې ډلې ته يو يو ركعت كړې وو.خو نبى ﷺ د يو ركعته په ځاې هرې يوې ډلې ته دوه دوه ركعته اوكړو.ددې اشكال مختلف جوابونه وركړې شوى دى.

① چونكه دامام شافعى رحمه الله په نيز اوپه يو روايت كښې د امام احمد په نيز او په يو قول كښې دامام مالك رحمه الله په نيز اقتداء د مفترض په متنفل پسې جائز ده. ددې وجې دا حضرات فرمائى.چه اولنۍ ډلې ته چه نبى ﷺ كوم دوه ركعته كړى وو .په هغې كښې نبى ﷺ مفترض وو.او اولنۍ ډله هم مفترضه وه.او دويمې ډلې ته چه نبى ﷺ كوم دوه ركعته كړى وو.په هغې كښې هغه دويمه ډله مفترضه وه.او نبى ﷺ متنفل وو.(٢)

خو په دې باندې دا اعتراض كيږى.كه نبى ﷺ اولنۍ ډلې ته دمفترض په حيثيت باندې مونځ كړې وى.اودويمې ډلې ته ئې د متنفل په حيثيت مونځ كړې وى.نو پكار ده.چه د دواړو په مينځ كښې ئې سلام گرځولې وى.دلته په روايت كښې ددې ذكر نشته.ددې په جواب كښې دا حضرات دا وائى.چه داسې روايات موجود دى.په كومو كښې چه د دوو ركعتو نه پس د نبى ﷺ د سلام ذكر شته.اګرچه په دغه كښې څنې منقطع او څنې ضعيف دى.خو چونكه د هغې طرق متعدد دى. د دې وجې په هغې سره استدلال كيدې شى. (٣)

② داحنافو رحمهم الله په نيز چونكه اقتداء د مفترض خلف المتنفل جائز نه ده.ددې وجې داجواب دهغوى په نيز نه صحيح كيږى.هغوى ددې روايت په بل انداز كښې جوابونه وركړى دى.

---

(١) اوګورئ سيرت مصطفى (٢٧٥/٢)_

(٢) شرح مسلم للنووى (٢٧٨/١) باب صلاة الخوف)_

(٣) د دارقطنى او ابوداود په رواياتو كښې : نبى ﷺ د دوو ركعتو نه پس د سلام گرځولو ذكر راغلې دې.(سنن دارقطنى (٦٠/٢) سنن أبى داود (١٧/٢) كتاب الصلاة باب من قال يصلى بكل طائفة ركعتين)

امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه دا دهغه وخت خبره وه.کله چه یو فرض دوه خله کول جائز وو.اودا د اسلام په شروع کښې وو.روسته منسوخ شو.(١)

③ بعضې حضرات فرمائی.چه دا د نبی ﷺ خصوصیت وو.چه هغوی به مفترضینو ته هم د نفلو په نیت مونځ کولو شو.(٢) خودا جواب تسلی بخش نه دی.ځکه چه د نبی ﷺ د خصوصیت د ثبوت دپاره د صریحی نص او دلیل ضرورت وی.اوداسې څه صریحی دلیل موجود نشته.چه دهغې نه د نبی ﷺ خصوصیت معلومیږی.

**قوله:** وَقَالَ مُسَدَّدٌ عَنْ أَبِي عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ اسْمُ الرَّجُلِ غَوْرَثُ بْنُ الْحَارِثِ:(٣) یعنی ددغه اعرابی نوم ،،غورث بن الحارث،، وو.چا چه توره راویستې وه.

---

(١)امام طحاوی رحمه الله لیکی.((والفريضة تصلى حينئذ مرتين فيكون كل واحدة منها فريضة وقد كان ذلك يفعل فى أول الإسلام ثم نسخ (وانظر شرح معانى الآثار للطحاوى (٢١٨١١)_

(٢)بذل المجهود (٣٦٤١٦و٣٦٧)_

(٣)دا کس مسلمان شوې وو.که نه، د واقدی په حواله سره تیر شوی وو.چه دغه اعرابی په دغه موقع اسلام قبول کړې وو.او خپلې قبیلې ته لاړلو.د اسلام دعوت ئې شروع کړې وو.د کومې په وجه چه څو کسان په اسلام کښې داخل شول.مولانا ادریس کاندهلوی رحمه الله په ،،سیرة المصطفی،، کښې هم دا لیکلی دی.خو د واقدی د روایت نه سوا بل څه قطعی روایت داسې نه دې ملاؤ شوې.چه په هغې سره ددې اعرابی د مسلمان کیدو متعلق څه یقینی خبره اوکړې شی.بلکه حافظ بیهقی په ،،دلائل النبوة،، کښې په خپل سند سره په دې باره کښې د یو روایت تخریج کړې دې.په هغې کښې ددغه کس په دغه موقع د اسلام نه قبولولو تصریح ده.د روایت الفاظ دا دی،،

فجاء رجل منهم يقال له غورث بن الحارث حتى قام على رأس رسول الله ﷺ بالسيف فقال من يمنعك منى؟ قال: الله . قال فسقط السيف من يده قال فأخذ رسول الله ﷺ السيف فقال من يمنعك منى؟ قال كن خير آخذ قال تشهد أن لا إله إلا الله وأنى رسول الله؟ قال لا،ولكن أعاهدك على أن لا أقاتلك ولا أكون مع قوم يقاتلونك فخلى سبيله .. إلخ (دلائل النبوة للبيهقى (٣٧٦١٣))،،

په دې روایت سره دا خبره بیخی بې غباره شوه.چه په دغه موقع تیندې دا اعرابی نه وو مسلمان شوې.بیا دویمه خبره دا ده.د واقدی د کوم کس د مسلمانیدو ذکر کړې دې.د هغه نوم واقدی ،،دعثور بن الحارث،، خودلې دې.(فتح البارى (٤٢٨١٧)) عین ممکن ده.چه هغه بل کس وی.او د غزوه ذات الرقاع د ذکر شوې واقعه سره دهغې څه تعلق نه وی.خود علامه ذهبی رحمه الله میلان دې طرف ته دې.چه واقدی چه کومه واقعه بیان کړې ده.اود ،،دعثوربن الحارث،، د اسلام قبلولو کوم ذکر چه ئې کړې دې.هغه هم د ذات الرقاع واقعه ده.اود ،،دعثور،، نه هم دا ،،غورث بن الحارث،، مراد دې.البته دا ده.چه حافظ ابن حجر رحمه الله د امام ذهبی رحمه الله په رائې باندې تبصره کوی.اوپه ،،الاصابة،، کښې لیکی،،

وكان الذهبى لما رأى ما فى ترجمة دعثوربن الحرث أن الواقدى ذكر له شبهاً بهذه القصة وأنه ذكر أنه أسلم فجمع بين الروايتين فأثبت إسلام غورث .فإن كان كذلك ففيما صنعه نظر من حيث أنه عزاه للبخارى وليس فيه أنه أسلم ومن حيث أنه يلزم منه الجزم بكون القصتين واحدة مع إحتمال كونهما واقعتين .إن كان الواقدى أتقن ما نقل وفى الجملة على الإحتمال (الإصابة (١٨٩١٣))..... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه.....

وَقَالَ أَبُو الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَخْلٍ فَصَلَّى الْخَوْفَ
وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ نَجْدٍ صَلَاةَ الْخَوْفِ وَإِنَّمَا جَاءَ أَبُو هُرَيْرَةَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيَّامَ خَيْبَرَ [ر: ۳۷۵۳]

دغزوه نجد نه مراد غزوه ذات الرقاع ده.حضرت ابو هريره رضي الله عنه په دې كښې شركت كړې وو.اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه د فتح خيبر نه پس مدينې منورې ته راغلې وو.نو معلومه شوه.چه غزوه ذات الرقاع د فتح خيبرنه پس شوې ده.

د صلاة الخوف سره متعلقه نور مباحث د بخارى جلد اول ((أبواب صلاة الخوف)) سره متعلق دى.هلته په دې باندې تفصيلى بيان هم شته.

## بَاب غَزْوَةِ بَنِي الْمُصْطَلِقِ مِنْ خُزَاعَةَ وَهِيَ غَزْوَةُ الْمُرَيْسِيعِ

بنو المصطلق د بنو خزاعه شاخ دې.،مصطلق،، د جذيمه بن سعدلقب دې. ،مصطلق، د ،صلق،، نه مشتق دې.چه معنى ئې،رفع الصوت،راځى.د جذيمه بن سعدآواز چونكه ډير ښه او اوچت وو.ددې وجې د ده لقب ،مصطلق،،كيخودې شو (۱)

امام بخارى رحمه الله د غزوه بنى المصطلق نوم غزوه مريسيع هم نقل كړې دې. مريسيع د چينې نوم دې.(۲) كوم ځاې كښې چه دا غزوه شوې وه.د هغه ځاې په مناسبت سره دې ته غزوه مريسيع هم وئيلى شى.او بنو المصطلق د قوم نوم دې.
كوم سره چه دا غزوه شوې وه.ددې وجې دې ته غزوه بنى المصطلق هم وائى.

غزوه بنى المصطلق او غزوه مريسيع يو دى اوكه دوه؟ امام بخارى رحمه الله خو اووئيل.چه دا يوه ده.خو ابو حاتم ابن حبان بستى رحمه الله او د دوى په اتباع كښې علامه محمد طاهر پټنى ،،صاحب د مجمع البحار، وئيلى دى.چه دا دوه جدا جدا غزاګانې دى.غزوه مريسيع په ۳ شعبان ۵ھ كښې شوې وه.اوپه غزوه بنى المصطلق په ۶ھ كښې.(۳)
خودددوى دا رائې صحيح نه ده.صحيح خبره هم هغه ده.كومه چه امام بخارى رحمه الله كوى.چه

---

،،دتيرمخ بقيه حاشيه] بعضې حضراتو د ،،غورث بن الحارث،، داسلام قبلولو په باره كښې د دلائل بيهقى په هغه روايت باندې هم استدلال كړې دې.په كوم كښې چه د هغوى په باره كښې دا الفاظ راغلى دى.((فجاء إلى قومه فقال جئتكم من عند خير الناس)) دلائل بيهقى (۳۷۶/۳)..
خوحقيقت دا دې.چه د نبى صلى الله عليه وسلم په باره كښې د ((خيرالناس)) لفظ د يو غيرمسلم د خولې نه هم وتلې شى.او وتلى دى.دا الفاظ د غورث په اسلام قبلولو كښې صريح نه دى.البته په دې سره د هغه د اسلام قبلولو تائيد ضرور كيږى.((والله اعلم بحقيقة الحال)) ~

(۱) فتح البارى (۴۳۰/۷) وفى العمدة (۲۰۱/۱۷) وأصله مصتلق فأبدلت الطاء من التاء لأجل الصاد)-
(۲) وفى الفتح (۴۳۰/۷) وأما المريسيع فبضم الميم وفتح الراء وسكون التحتانيتين بينهما مهملة مكسورة وآخره عين مهملة هو ماء لبنى خزاعة)_
(۳) اوګورئ مجمع البحار الأنوار(ن۲۶۳-۲۵۶)_~

دا دواړه د يوې غزا دوه نومونه دى.اوهم په دې باندې د ټولو اهل سيرو او مغازى اتفاق دې.
عجيبه خبره دا ده.چه ابن حبان بستى رحمه الله او محمد طاهرپټنى رحمه الله يو طرف ته خودا وائى.
چه غزوه بنى المصطلق اوغزوه مريسيع دواړه جداجدا غزاګانې دى.اوبل طرف د حضرت
جويريه بنت الحارث رضي الله عنها په باره کښې وائى.چه هغه نبى ﷺ ته په غزوه بنى المصطلق
کښې حاصل شوې وه.او بيا دواړه دا هم وائى.چه هغه نبى ﷺ ته په غزوه مريسيع کښې
حاصل شوې وه.ظاهره ده.چه دا قول په هغه وخت کښې صحيح کيدې شى.چه غزوه بنى
المصطلق او غزوه مريسيع دواړه يو اومنلې شى.([1])

**قوله**: قَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ وَذَلِكَ سَنَةَ سِتٍّ :دامام مغازى محمد بن اسحاق،ابن
جريرطبرى، خليفه بن خياط اوابو محمد بن حزم ظاهرى رحمهم الله رائې دا ده.چه دا غزوه د ۶ه
ده.([2]) د ابن سعد ، بيهقى، حاكم قتاده او عروه رحمهم الله رائې دا ده.چه دا غزوه د ۵ه ده.([3])

**قوله**: وَقَالَ مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ سَنَةَ أَرْبَعٍ: دا سبقت د قلم دې.ځکه چه حاکم، ابوسعيد
او نورو اصحاب دمغازى د موسى بن عقبه رحمه الله قول «سنة خمس» نقل کړې دې.([4]) اوټول په
دې خبره متفق دى.چه د موسى بن عقبه په نيزدا غزوه په ۵ ه کښې واقع شوې ده.

حافظ ابن حجر رحمه الله په ۵ هه کښې ددې غزوې وقوع راجح ګرځولې ده.وجه ئې ددې دا
خودلې ده.چه د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه په دې غزوه کښې شرکت په بخارى کښې ذکر
دې.بل طرف ته د احاديثو صحيحو نه دا ثابته ده.چه په غزوه بنوقريظه په زمانه کښې
حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه وفات شوې وو.دکومې تفصيل چه تير شوې دې.او غزوه بنو
قريظه په ۵ ه کښې واقع شوې وه.اوس که غزوه مريسيع په ۶ ه کښې د غزوه بنى قريظه نه
يوکال روسته تسليم کړې شى.نو په دې کښې د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه شرکت څنګه
صحيح کيدې شى.([5])

---

[1] )صاحب د مجمع بحار الانوار په پنځمه هجرئ کښې د غزوه مريسيع په باره کښې ليکى.((وفيها غزوه المريسيع فى ثانى شعبان فاقتتلوا وقتل العشرة وأسرالباقون وكانت فيهم جويرية بنت الحارث فأعتقها وتزوجها)) ددې نه پس په شپږمه هجرى کښې د غزوه بنى المصطلق په باره کښې ليکى.((ثم غزافى شعبان بنى المصطلق فهزموا فاغتم أبناء هم رنساءهم وأموالهم وأصاب جويرية بنت الحارث فتزوجها رسول الله ﷺ ) مجمع بحار الأنوار (۲۶۳/۵و ۲۶۵)_

[2] )فتح البارى (۴۳۰/۷)_

[3] )اوګورئ عمدة القارى (۲۰۱/۱۷) ودلائل بيهقى ( ۴۴/۴ ) وطبقات ابن سعد(۶۳/۲)_

[4] )اوګورئ عمدة القارى (۲۰۱/۱۷)_

[5] ) فتح البارى (۴۳۰/۷)_

**قوله**: وَقَالَ النُّعْمَانُ بْنُ رَاشِدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ كَانَ حَدِيثُ الْإِفْكِ فِي غَزْوَةِ الْمُرَيْسِيعِ: دا تعليق دې.امام بيهقي په دلائل النبوة کښې دا موصولاً ذکر کړې دې.(۱) دا ئې خودلې دى.چه په حضرت عائشه رضي الله عنها باندې د تهمت لګولو واقعه د غزوه مريسيع نه د واپسئ په وخت کښې پيښه شوې وه.

**غزوه مريسيع**: ددې د وقوع سبب دا بيان شوې دې.چه نبي ﷺ ته خبر ملاؤ شو.چه د بنو مصطلق سردار حارث بن ابی ضرار دمسلمانانو د مقابلې دپاره لښکر جمع کوى. نبي ﷺ حضرت بريده بن حصيب اسلمي رضي الله عنه د صورتحال معلومولو دپاره اوليږل. هغوى واپس راغلو. او خبر ئې ورکړو.چه خبره صحيح ده.اوهغه خلق د جنګ دپاره جمع کيږى.نبي ﷺ سمدستى د صحابو رضي الله عنهم يوه لويه ډله واخستله.او دهغوى طرف ته روان شو.د ابن سعد بيان دې چه دا د دويم شعبان ګل د ورځې پنځمې هجرئ واقعه ده.(۲) کله چه دوى اورسيدل.نو هغه خلقو خپلو څاروو ته وبه ورکولې.او بيخي غافله وو.د نبي ﷺ د ناڅاپى حملې هغوى قدرت اونه لرلو.او شکست ئې اوخوړلو.د دوو سوو کورونو خلق قيد شول.او دوه زره اسونه په مال غنيمت کښې راغلل.پنځه زره چيلئ په قبضه کښې راغلې.او تقريباً د هغوى لس کسان قتل شول.(۳)

**حضرت جويريه بنت حارث رضي الله عنهما**: په مال غنيمت کښې حضرت جويريه بنت الحارث رضي الله عنها هم وه.هغه د حضرت شماس بن قيس رضي الله عنه په حصه کښې راغلې وه.څو صحابو رضي الله عنهم نبي ﷺ ته مشوره ورکړه.چه حضرت جويريه رضي الله عنها د بنو مصطلق د سردار لور ده.هغه هم ستاسو دپاره مناسب ده.بل کس سره نه ده پکار.او په څنې رواياتو کښې راغلى دى.چه چونکه حضرت جويريه رضي الله عنها حضرت شماس بن قيس رضي الله عنه مکاتبه جوړه کړې وه.ددې وجې هغه په خپله د نبي ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه.او عرض ئې اوکړو.چه زه د سردار لور يم.په بدل کتابت کښې دې زما مدد اوکړې شى.نبي ﷺ ورته اوفرمائيل.زه تا ته يوه غوره خبره کوم.چه ستا بدل کتابت زه ادا کړم.اوددې نه پس زه تا په خپل زوجيت کښې واخلم.حضرت جويريه رضي الله عنها چه دا واوريدل. نوډيره خوشحاله شوه.اود نبي ﷺ په رائې باندې ئې دخپلې خوشحالئ اظهار اوکړو . نو نبي ﷺ د هغې بدل کتابت ادا کړو.او دا ئې آزاده کړه.اوددې نه پس ئې په خپل عقد نکاح کښې واچوله.(۴)

دحضرت جويريه رضي الله عنها پلار حارث بن ابی ضرار ډير اوښان راوستل. او د خپلې لور د آزادئ دپاره مدينې منورې ته راغلو.په هغه اوښانو کښې دوه اوښان ډيرښه وو.اول خو په دې خيال

---

(۱) عمدة القارى (۲۰۱\۱۷)_

(۲) اوګورئ طبقات ابن سعد (۶۳\۲) واقدى ليکلى دى.چه نبي ﷺ سره اووه سوه کسان وو.دلائل بيهقى (۴۶\۴)_

(۳) اوګورئ طبقات ابن سعد (۵۴\۲)_

(۴) البداية والنهاية (۱۵۹\۴)_

باندي راغلې وو.چه تول به پيش كړم.اوددې په عوض به خپله لور آزاده كړم.خوپه لار كښې ئې نيت خراب شو.او هغه دوه اوښان هغه په يوه كنده كښې پټ كړل.باقي اوښان ئې راوستل.او حاضر شو.او نبى ﷺ ته ئې خپله مدعا پيش كړه.نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.هغه دوه اوښان كوم ځاې دى.كوم چه تا په فلانئ كنده كښې پټ كړى دى.اوراغلې ئې.نو هغه اووئيل. «أشهد أنك رسول الله» يقيناً ته دالله تعالى رسول ئې.دهغه دوو اوښانو چاته علم نه وو.يقينى ده چه الله تعالى به تاسو ته د وحى په ذريعه خودلى وى.اودغه شان هغوى اسلام قبول كړو.ددې نه پس نبى ﷺ هغه ته اووئيل.ته د خپلې لور نه معلومه كړه.كه هغه تاسره په تلو باندې راضى وى.نو ټيك ده.

حارث رضي الله عنه د جويريه رضي الله عنها نه معلومه كړه.نو هغوى ورته اووئيل.چه زه الله اودهغه رسول اختياروم.اوبيا د اسلام راوړو نه د حضرت حارث رضي الله عنه هم هغه خواهش پاتې نشو.ځكه چه د هغوى دپاره ددې نه غوره خبره بله څه كيدې شوه.چه نبى ﷺ د هغه خوم شى.([1])

دحضرت عائشې رضي الله عنها بيان دې.چه ما د حضرت جويريه رضي الله عنها نه د خپل قوم په حق كښې زياته بابركته ښځه نه ده ليدلې.ځكه چه كله نبى ﷺ هغه په خپله عقد نكاح كښې واخستله.نو ټولو صحابوﷺ په بنى مصطلق كښې هغه دوه سوه كورونه چه هغوى په قيد كښې راوستى وو.دا اووئيل. اوآزاد كړل.چه «إنهم أصهار رسول الله ﷺ» دا خلق د رسول الله سخر كنئ دى.([2])

په دې غزوه كښې نبى ﷺ حضرت زيدبن حارثه رضي الله عنه په مدينه منوره كښې خپل قائم مقام كړځولې وو.په ازواج مطهراتوكښې حضرت عائشه او حضرت حفصه رضي الله عنهما د دوى سره وې.([3])

[٣٩٠٧] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ عَنِ ابْنِ مُحَيْرِيزٍ أَنَّهُ قَالَ دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَرَأَيْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ فَجَلَسْتُ إِلَيْهِ فَسَأَلْتُهُ عَنِ الْعَزْلِ قَالَ أَبُو سَعِيدٍ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ بَنِي الْمُصْطَلِقِ فَأَصَبْنَا سَبْيًا مِنْ سَبْيِ الْعَرَبِ فَاشْتَهَيْنَا النِّسَاءَ وَاشْتَدَّتْ عَلَيْنَا الْعُزْبَةُ وَأَحْبَبْنَا الْعَزْلَ فَأَرَدْنَا أَنْ نَعْزِلَ وَقُلْنَا نَعْزِلُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا قَبْلَ أَنْ نَسْأَلَهُ فَسَأَلْنَاهُ عَنْ ذَلِكَ فَقَالَ مَا عَلَيْكُمْ أَنْ لَا تَفْعَلُوا مَا مِنْ نَسَمَةٍ كَائِنَةٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ إِلَّا وَهِيَ كَائِنَةٌ [ر:٢١١٦]

حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه فرمائى.چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په غزوه بنى المصطلق كښې تلى وو.مونږ ته دعربو په قيديانو كښې څه قيديان ملاؤ شول.(چه په هغوى كښې ښځې هم وې)دبيبيانو نه دلرى والى په وجه زمونږ ښځوته رغبت پيداشو.اومجرد پاتې

[1] )اوګورئ (الإصابة فى تميز الصحابة (٢٨١/١) ترجمة الحارث بن ابى ضرار)_

[2] )دلائل بيهقى (٥٠/٤)_

[3] )طبقات ابن سعد(٦٣/٢و ٦٤)_

كيدل زمونږ دپاره ډيرګران شو مونږ عزل كول اوغوښتل (مطلب چه وينځې خو زمونږ سره وې.دوى سره به وطى كوو.اوعزل به كوو.ځكه چه د عزل نه كولو په صورت كښې دحاملې جوړيدو احتمال وو.او د ام ولده كيدو په وجه د وينځې خرڅول جائز نه دى.ددې وجې مونږ اوغوښتل.چه عزل اوكړو) نو مونږ درسول اللهﷺ نه د عزل په باره كښې تپوس اوكړو.نبى ﷺ اوفرمائيل.

**قوله**: مَا عَلَيْكُمْ أَنْ لَا تَفْعَلُوا مَا مِنْ نَسَمَةٍ كَائِنَةٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ إِلَّا وَهِيَ كَائِنَةٌ:

څه حرج نشته په دې كښې كه تاسو عزل نه كوئ.ځكه چه ترقيامته پورې چه كوم روح پيدا كيږى.هغه خو به خامخا پيدا كيږى.

مقصدا دا دې چه اصل مدارخو دالله تعالى د طرفه ليكلى شوى تقديرباندې دې.كه الله تعالى تاسو ته د اولاد دركولو اراده كړې وى.هغه اولاد به خامخا پيدا كيږى.تاسو برابره ده كه كمزورى ئې اوكه طاقتور،برابره ته كه تاسو عزل كوئ اوكه نه كوئ.ددې وجې نبى ﷺ «ماعليكم أن تفعلوا» اونه فرمائيل.بلكه دا ئې اوفرمائيل.«ماعليكم أن لا تفعلوا» مطلب هم دا دې چه كوم بچې پيدا كيږى.هغه به خامخا پيدا كيږى.ستاسو عزل كول بې فائدې دى.معلومه شوه.چه نبى ﷺ عزل نه دې خوښ كړې.

**خاندانى منصوبه بندى او ددې حكم**: دا نن صبا چه د خاندانى منصوبه بندئ سلسله روانه ده.ددې ښا ته په حقيقت كښې د انسان دا غلط فكرعامل دې چه انسان خپل ځان د رزق ذمه وار ګڼړى.درزق ذمه وارى چه الله تعالى اخستې ده.او دكوم تصريح چه په قرآن پاك كښې شوې ده.چه ﴿وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا﴾ (¹) دا يوحقيقت دې. خوجاهل انسان دا حقيقت هير كړې دې.اودغه.شان د خاندانى منصوبه بندئ په عنوان سره د انسانى پيدائش شرح كمولو دپاره يو عوامى مهم سركارى سرپرستئ كښې چلولې شى.دا شرعاً حرام او ناجائز دې.په انفرادى مخصوص صورتونوكښې او په شخصى واقعاتو كښې شريعت د عزل اجازت هم وركړې دې.مثلاً ښځه ناجوړه وى.اود هغې صحت د بچې راوړو صلاحيت نه لرى.په داسې صورت كښې كه مانع حمل تدابير اختيار كړې شى.نو جائز دى.

زمونږ اعتراض د منصوبه بندئ په دې نظام باندې دې .دكوم د خوړولو دپاره چه په ټول ملك كښې په لكهونو كروړونو روپئ خرچ كولې شى.او دا وئيلى شى.چه زمونږ وسائل، د رزق او معاش دپاره ناكافى دى.كه ژوند غواړئ.نو په خاندانى منصوبه بندئ باندې عمل اوكړئ .دا ټيك نه دى.

خاندانى منصوبه بندى څو خرابيانې پيدا كوى.ددې په وجه په معاشره كښې زناعام كيږى. بې حيائى خوريږى.تردې چه دانسان په عقيده كښې هم فساد راځى .پخپله هغه غيرمسلم قومونه چا چه په دې باندې عمل كړې دې.هغوى ددې د غلطو نتائجو څكلو نه پس په خپله غلطئ ښكاره اعتراف اواقرار كوى.بلكه په څو ملكونو كښې د شرح پيدائش زياتولو دپاره

¹)سورة هود (٦)۔

انعامات مقرر كولي شي.دمعيشت صحيح منصوبه بندي خو مونږ كوو نه..د قدرتي وسائل معاش دپاره صحيح منصوبه بندي خو مونږ كوو نه.او ټول زور په خانداني منصوبه بندئ باندې وركولې شي.

**په روايت باب باندې يو اشكال اودهغې نه جواب**:د روايت باب متعلق چاته دا اشكال كيدې شي.چه دبنو مصطلق كومې ښځې چه وينځې شوې.اود مسلمانانو په قبضه كښې راغلې.هغه مشركانې وې.اود جمهورو عالمانو په نيز د مشركانو ښځو سره وطى كول جائز نه دى.په ملك يمين سره وطى كول صرف هغې وينځې سره جائز ده.كومه چه مسلمانه يا كتابيه وى. بيا دلته مسلمانانو د بنو مصطلق د مشركانو وينځو سره وطى ولې اوكړه.ددې اعتراض مختلف جوابونه وركړې شوى دى.

① قاضي ابوالوليد باجى رحمه الله فرمائيلي دى.چه دا مشركانې نه وې.بلكه كتابيات وې.خودا جواب صحيح نه دې.هغه هم مشركانې وې.كتابيات نه وې.[1]

② ابن عبدالبرمالكى رحمه الله فرمائى.چه دا د هغه وخت واقعه ده.په كوم وخت كښې چه د مشركانو سره د وطى كولو حرمت نه وو نازل شوې.دا دنزول حرمت نه وړاندې واقعه ده.[2]

③ امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى.((ويحتمل أنهن كن أسلمن)) يعنى ممكن دد.د مسلمانانو په قبضه كښې دراتلو نه پس هغوى مسلمانانې شوې وې.هغوى اوكتل .چه اوس د عزت ژوند تيرولو دپاره هم دا صورت دې.چه اسلام قبول كړې شى.اود مسلمانيدو نه پس خو هغوى سره وطى كولو كښې څه شبه نشته.دا جواب دټولو نه راجح معلوميږى.[3]

[۳۹۰۸] حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ نَجْدٍ فَلَمَّا أَدْرَكَتْهُ الْقَائِلَةُ وَهُوَ فِي وَادٍ كَثِيرِ الْعِضَاهِ فَنَزَلَ تَحْتَ شَجَرَةٍ وَاسْتَظَلَّ بِهَا وَعَلَّقَ سَيْفَهُ فَتَفَرَّقَ النَّاسُ فِي الشَّجَرِ يَسْتَظِلُّونَ وَبَيْنَا نَحْنُ كَذَلِكَ إِذْ دَعَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجِئْنَا فَإِذَا أَعْرَابِيٌّ قَاعِدٌ بَيْنَ يَدَيْهِ فَقَالَ إِنَّ هَذَا أَتَانِي وَأَنَا نَائِمٌ فَاخْتَرَطَ سَيْفِي فَاسْتَيْقَظْتُ وَهُوَ قَائِمٌ عَلَى رَأْسِي مُخْتَرِطٌ صَلْتًا قَالَ مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي قُلْتُ اللَّهُ فَشَامَهُ ثُمَّ قَعَدَ فَهُوَ هَذَا قَالَ وَلَمْ يُعَاقِبْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:۲۷۵۳]

په دې روايت كښې چه د اعرابى كومه واقعه بيان شوې ده.هغه په تفصيل سره په ((غزوة ذات الرقاع)) كښې تيره شوې ده.دعلامه عينى رحمه الله رائې دا ده. چه دلته د كاتب د غلطئ د وجې دا ذكر شوې ده.[4] وړاندې امام بخارى رحمه الله دا واقعه په بل سند سره بيان كړې وه.اودلته

[1] )أوجزالمسلک (۱۰\۲٦٤) ما جاء فی العزل )_
[2] )اوګورئ التمهيد لابن عبدالبر (۱۳\۱۳۵)_~
[3] )فتح البارى(۹\۳۱۰) باب العزل)_
[4] )عمدة القارى (۱۷\۲۰۲)_

ني په بل سند سره بيان کړې ده. او يو حديث په مختلفو اسنادو سره بيانول دامام بخاري رحمه الله عادت او اسلوب دې. البته ددې محل غزوه ذات الرقاع وو.

## باب غزوة أنمار

[۳۹۰۹] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سُرَاقَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ أَنْمَارٍ يُصَلِّي عَلَى رَاحِلَتِهِ مُتَوَجِّهًا قِبَلَ الْمَشْرِقِ مُتَطَوِّعًا [ر: ۳۹۱]

ددې غزوې په باره کښې د بعضې حضراتو رائې دا ده چه دا غزوه امر ده. او د واقدی وغیره په نیز په ربیع الاول ۳هـ کښې پيښه شوې وه. دابن اسحاق رائې دا ده چه دا په صفر ۳هـ کښې واقع شوې وه. خو داکثر اصحاب سیر په نیز غزوه انمار او غزوه ذات الرقاع هم یوه غزوه ده. او دلته د دې ذکر بې موقعې دې. ځکه چه په غزوه مریسیع کښې د افك واقعه پيښه شوې وه. او دهغې نه پس «حديث الإفك» راځي. په مينځ کښې د غزوه انمار ذکر د ترتيب نه خلاف دې. حافظ رحمه الله ليکلی دی. «والذی يظهر أن التقديم والتأخير فی ذلك من النساخ» (1)

## باب = حديث الإفك

وَالْأَفْكُ بِمَنْزِلَةِ النِّجْسِ وَالنَّجَسِ يُقَالُ إِفْكُهُمْ /الصفات:۱۵۱) والأحقاف: ۲۸) وَأَفْكُهُمْ فَمَنْ قَالَ أَفَكَهُمْ يَقُولُ صَرَفَهُمْ عَنِ الْإِيمَانِ وَكَذَّبَهُمْ كَمَا قَالَ يُؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ أُفِكَ /الذاريات: ۹) يُصْرَفُ عَنْهُ مَنْ صُرِفَ

امام بخاری رحمه الله حديث افك درې ځايه په تفصيل سره ذکر کړې دې. يو ځاې په کتاب الشهادات کښې. بل ځاې دلته په مغازی کښې. او دريم په کتاب التفسير کښې د سورة نور په تفسير کښې ضمنا. حافظ ابن حجر رحمه الله په کتاب التفسير کښې په حديث افك باندې تفصيلی بيان کړې دې. ددې درې تفصيلی مقاماتو نه علاوه داحديث مختصراً په ډير مقاماتو کښې ذکر کړې دې. اوچه په کوم ځاې کښې ئې ذکر کړی. هلته مختلف مسائل د دوی د نظر وړاندې وی. دغه مسائل د حديث د اجزاؤ نه ثابتول ئې مقصود وی. (2)

---

(1) فتح الباری (۴۲۹/۷)_

(2) امام بخاری دا حديث په ذکرشوو درې مقاماتو کښې په تفصيل سره ذکر کړې دې. ددې درې مقاماتو نه علاوه ئې مختصراً په پنځلس مقاماتو کښې ذکر کړې دې. دغه شان ټول په اتلس مقاماتوکښې ئې دا بيان کړې دې. ددې مقاماتو تفصيل لاندې دې...

(۱) کتاب الهبة باب الهبة المرأة لغيرزوجها رقم ۲۵۹۳ (۲) کتاب الشهادات باب إذا عدل رجل رجلاً رقم الحديث ۲۶۳۷ (۳) کتاب الشهادات باب تعديل النساء بعضهن بعضاً رقم الحديث ۲۶۶۱ (٤) کتاب الشهادات باب القرعة فی المشکلات رقم الحديث ۲۶۸۸ (۵) کتاب الجهاد باب حمل الرجل إمرأته فی الغزو رقم الحديث ۲۸۷۹ (۶) کتاب المغازی باب غزوة بدر رقم الحديث ۴۰۲۵ .... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه.....

**قوله**: وَالْأَفْكِ بِمَنْزِلَةِ النِّجْسِ وَالنَّجَسِ: يعنى دا لفظ ((إفك)) دهمزه په كسره او فاء په سكون سره،هم دې.او ((أفك)) دهمزه او فاء په فتحې سره هم دې.لكه څنګه چه ((نجس)) او ((نَجَس)) دې.

**قوله**: يُقَالُ إِفْكُهُمْ وَأَفْكُهُمْ وَأَفَكَهُمْ: په دې سره امام بخاري رحمه الله مشهور لغت طرف ته اشاره اوكړه.چه په قرآن مجيد كښې آيت ﴿بَلْ ضَلُّوا عَنْهُمْ ۚ وَذَٰلِكَ إِفْكُهُمْ وَمَا كَانُوا يَفْتَرُونَ﴾ كښې مشهور قراءت بكسرالهمزة وسكون الفاء دې.البته په دې كښې ((أفكهم)) مجرد نه د ماضى صيغه،او ((أفّكهم)) د باب تفعيل نه هم د ماضى صيغه مستعمل ده. خودا دواړه قراءتونه شاذ دى.(١)

[٣٩١٠] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ وَسَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَعَلْقَمَةُ بْنُ وَقَّاصٍ وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَالَ لَهَا أَهْلُ الْإِفْكِ مَا قَالُوا وَكُلُّهُمْ حَدَّثَنِي طَائِفَةً مِنْ حَدِيثِهَا وَبَعْضُهُمْ كَانَ أَوْعَى لِحَدِيثِهَا مِنْ بَعْضٍ وَأَثْبَتَ لَهُ اقْتِصَاصًا وَقَدْ وَعَيْتُ عَنْ كُلِّ رَجُلٍ مِنْهُمُ الْحَدِيثَ الَّذِي حَدَّثَنِي عَنْ عَائِشَةَ وَبَعْضُ حَدِيثِهِمْ يُصَدِّقُ بَعْضًا وَإِنْ كَانَ بَعْضُهُمْ أَوْعَى لَهُ مِنْ بَعْضٍ قَالُوا قَالَتْ عَائِشَةُ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا أَقْرَعَ بَيْنَ أَزْوَاجِهِ فَأَيَّتُهُنَّ خَرَجَ

.....دتيرمخ بقيه] ⑦ كتاب المغازى باب حديث الإفك ⑧ كتاب التفسير باب بل سولت لكم أنفسكم أمراً فصبر جميل رقم الحديث ٤٦٩٠ ⑨ كتاب التفسير باب ﴿ إن الذين جآوا بالإفک عصبة منكم﴾ رقم الحديث ٤٧٤٩ ⑩ كتاب التفسير باب ﴿لولا إذ سمعتموه قلتم ما يكون لنا.. ﴾ رقم الحديث ٤٧٥٠ ⑪ كتاب التفسير باب ﴿ إن الذين يحبون أن تشيع الفاحشة .. ﴾ رقم الحديث ٤٧٥٧ ⑫ كتاب النكاح باب المرأة تهب يومها من زوجها لضرتها.. رقم الحديث ٥٢١٣ ⑬ كتاب الأيمان والنذور باب قول الرجل لعمرالله .. رقم الحديث ٦٦٦٢ ⑬ كتاب الأيمان والندور باب اليمين فيما لا يملک رقم الحديث (٦٦٧٩ ⑪ كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة باب قول الله تعالى ﴿ وأمرهم شورى بينهم ﴾ رقم الحديث ٧٥٠٠ ⑫ كتاب التوحيد باب قول الله تعالى﴿ يريدون أن يبدلوا كلام الله ﴾ رقم الحديث ٧٥٠٠ ⑱ كتاب التوحيدباب قول النبى ﷺ الماهر بالقرآن مع سفرة الكرام البررة وزينو القرآن بأصواتكم رقم الحديث (٧٥٤٥)..

په ذكرشوو مقاماتو كښې ③، ⑦، او ⑩ نمبر باندې امام بخاري رحمه الله حديث افك په تفصيل سره ذكر كړې دې.حافظ ابن حجر رحمه الله په دې حديث باندې په كتاب التفسير كښې د سورة نور په ضمن كښې تقريباً په اوويشتو صفحاتو باندې مشتمل تفصيلى كلام كړې دې.اوګورئ فتح البارى (٨\٤٥٥و ٤٨١)_~

(١) عمدة القارى (١٧\٢٠٣)_

سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهُ قَالَتْ عَائِشَةُ فَأَقْرَعَ بَيْنَنَا فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا فَخَرَجَ فِيهَا سَهْمِي فَخَرَجْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا أُنْزِلَ الْحِجَابُ فَكُنْتُ أُحْمَلُ فِي هَوْدَجِي وَأُنْزَلُ فِيهِ فَسِرْنَا حَتَّى إِذَا فَرَغَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَتِهِ تِلْكَ وَقَفَلَ دَنَوْنَا مِنَ الْمَدِينَةِ قَافِلِينَ آذَنَ لَيْلَةً بِالرَّحِيلِ فَقُمْتُ حِينَ آذَنُوا بِالرَّحِيلِ فَمَشَيْتُ حَتَّى جَاوَزْتُ الْجَيْشَ فَلَمَّا قَضَيْتُ شَأْنِي أَقْبَلْتُ إِلَى رَحْلِي فَلَمَسْتُ صَدْرِي فَإِذَا عِقْدٌ لِي مِنْ جَزْعِ ظَفَارٍ قَدِ انْقَطَعَ فَرَجَعْتُ فَالْتَمَسْتُ عِقْدِي فَحَبَسَنِي ابْتِغَاؤُهُ قَالَتْ وَأَقْبَلَ الرَّهْطُ الَّذِينَ كَانُوا يَرْحَلُونِي فَاحْتَمَلُوا هَوْدَجِي فَرَحَلُوهُ عَلَى بَعِيرِي الَّذِي كُنْتُ أَرْكَبُ عَلَيْهِ وَهُمْ يَحْسِبُونَ أَنِّي فِيهِ وَكَانَ النِّسَاءُ إِذْ ذَاكَ خِفَافًا لَمْ يَهْبُلْنَ وَلَمْ يَغْشَهُنَّ اللَّحْمُ إِنَّمَا يَأْكُلْنَ الْعُلْقَةَ مِنَ الطَّعَامِ فَلَمْ يَسْتَنْكِرِ الْقَوْمُ خِفَّةَ الْهَوْدَجِ حِينَ رَفَعُوهُ وَحَمَلُوهُ وَكُنْتُ جَارِيَةً حَدِيثَةَ السِّنِّ فَبَعَثُوا الْجَمَلَ فَسَارُوا وَوَجَدْتُ عِقْدِي بَعْدَ مَا اسْتَمَرَّ الْجَيْشُ فَجِئْتُ مَنَازِلَهُمْ وَلَيْسَ بِهَا مِنْهُمْ دَاعٍ وَلَا مُجِيبٌ فَتَيَمَّمْتُ مَنْزِلِي الَّذِي كُنْتُ فِيهِ وَظَنَنْتُ أَنَّهُمْ سَيَفْقِدُونِي فَيَرْجِعُونَ إِلَيَّ فَبَيْنَا أَنَا جَالِسَةٌ فِي مَنْزِلِي غَلَبَتْنِي عَيْنِي فَنِمْتُ وَكَانَ صَفْوَانُ بْنُ الْمُعَطَّلِ السُّلَمِيُّ ثُمَّ الذَّكْوَانِيُّ مِنْ وَرَاءِ الْجَيْشِ فَأَصْبَحَ عِنْدَ مَنْزِلِي فَرَأَى سَوَادَ إِنْسَانٍ نَائِمٍ فَعَرَفَنِي حِينَ رَآنِي وَكَانَ رَآنِي قَبْلَ الْحِجَابِ فَاسْتَيْقَظْتُ بِاسْتِرْجَاعِهِ حِينَ عَرَفَنِي فَخَمَّرْتُ وَجْهِي بِجِلْبَابِي وَ وَاللّٰهِ مَا تَكَلَّمْنَا بِكَلِمَةٍ وَلَا سَمِعْتُ مِنْهُ كَلِمَةً غَيْرَ اسْتِرْجَاعِهِ وَهَوَى حَتَّى أَنَاخَ رَاحِلَتَهُ فَوَطِئَ عَلَى يَدِهَا فَقُمْتُ إِلَيْهَا فَرَكِبْتُهَا فَانْطَلَقَ يَقُودُ بِي الرَّاحِلَةَ حَتَّى أَتَيْنَا الْجَيْشَ مُوغِرِينَ فِي نَحْرِ الظَّهِيرَةِ وَهُمْ نُزُولٌ قَالَتْ فَهَلَكَ فِيمَنْ هَلَكَ وَكَانَ الَّذِي تَوَلَّى كِبْرَ الْإِفْكِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ قَالَ عُرْوَةُ أُخْبِرْتُ أَنَّهُ كَانَ يُشَاعُ وَيُتَحَدَّثُ بِهِ عِنْدَهُ فَيُقِرُّهُ وَيَسْتَمِعُهُ وَيَسْتَوْشِيهِ وَقَالَ عُرْوَةُ أَيْضًا لَمْ يُسَمَّ مِنْ أَهْلِ الْإِفْكِ أَيْضًا إِلَّا حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ وَمِسْطَحُ بْنُ أُثَاثَةَ وَحَمْنَةُ بِنْتُ جَحْشٍ فِي نَاسٍ آخَرِينَ لَا عِلْمَ لِي بِهِمْ غَيْرَ أَنَّهُمْ عُصْبَةٌ كَمَا قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى وَإِنَّ كِبْرَ ذَلِكَ يُقَالُ لَهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ قَالَ عُرْوَةُ كَانَتْ عَائِشَةُ تَكْرَهُ أَنْ يُسَبَّ عِنْدَهَا حَسَّانُ وَتَقُولُ إِنَّهُ الَّذِي قَالَ فَإِنَّ أَبِي وَوَالِدَهُ وَعِرْضِي لِعِرْضِ مُحَمَّدٍ مِنْكُمْ وِقَاءُ قَالَتْ عَائِشَةُ فَقَدِمْنَا الْمَدِينَةَ فَاشْتَكَيْتُ حِينَ قَدِمْتُ شَهْرًا وَالنَّاسُ يُفِيضُونَ فِي قَوْلِ أَصْحَابِ الْإِفْكِ لَا أَشْعُرُ بِشَيْءٍ مِنْ ذَلِكَ وَهُوَ يَرِيبُنِي فِي وَجَعِي أَنِّي لَا أَعْرِفُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللُّطْفَ الَّذِي كُنْتُ أَرَى مِنْهُ حِينَ أَشْتَكِي إِنَّمَا يَدْخُلُ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُسَلِّمُ ثُمَّ يَقُولُ كَيْفَ تِيكُمْ ثُمَّ يَنْصَرِفُ فَذَلِكَ يَرِيبُنِي وَلَا أَشْعُرُ بِالشَّرِّ حَتَّى خَرَجْتُ حِينَ نَقَهْتُ فَخَرَجْتُ مَعَ أُمِّ مِسْطَحٍ قِبَلَ الْمَنَاصِعِ وَكَانَ مُتَبَرَّزَنَا وَكُنَّا لَا نَخْرُجُ إِلَّا لَيْلًا إِلَى لَيْلٍ وَذَلِكَ قَبْلَ أَنْ نَتَّخِذَ الْكُنُفَ قَرِيبًا مِنْ بُيُوتِنَا قَالَتْ وَأَمْرُنَا أَمْرُ الْعَرَبِ الْأُوَلِ فِي الْبَرِّيَّةِ قِبَلَ الْغَائِطِ وَكُنَّا نَتَأَذَّى بِالْكُنُفِ أَنْ نَتَّخِذَهَا عِنْدَ بُيُوتِنَا قَالَتْ فَانْطَلَقْتُ أَنَا وَأُمُّ مِسْطَحٍ وَهِيَ ابْنَةُ أَبِي

رُهْمِ بْنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ مَنَافٍ وَأُمُّهَا بِنْتُ صَخْرِ بْنِ عَامِرٍ خَالَةُ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ وَابْنُهَا مِسْطَحُ بْنُ أُثَاثَةَ بْنِ عَبَّادِ بْنِ الْمُطَّلِبِ فَأَقْبَلْتُ أَنَا وَأُمُّ مِسْطَحٍ قِبَلَ بَيْتِي حِينَ فَرَغْنَا مِنْ شَأْنِنَا فَعَثَرَتْ أُمُّ مِسْطَحٍ فِي مِرْطِهَا فَقَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ فَقُلْتُ لَهَا بِئْسَ مَا قُلْتِ أَتَسُبِّينَ رَجُلًا شَهِدَ بَدْرًا فَقَالَتْ أَيْ هَنْتَاهْ وَلَمْ تَسْمَعِي مَا قَالَ قَالَتْ وَقُلْتُ وَمَا قَالَ فَأَخْبَرَتْنِي بِقَوْلِ أَهْلِ الْإِفْكِ قَالَتْ فَازْدَدْتُ مَرَضًا عَلَى مَرَضِي فَلَمَّا رَجَعْتُ إِلَى بَيْتِي دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ كَيْفَ تِيكُمْ فَقُلْتُ لَهُ أَتَأْذَنُ لِي أَنْ آتِيَ أَبَوَيَّ قَالَتْ وَأُرِيدُ أَنْ أَسْتَيْقِنَ الْخَبَرَ مِنْ قِبَلِهِمَا قَالَتْ فَأَذِنَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لِأُمِّي يَا أُمَّتَاهُ مَاذَا يَتَحَدَّثُ النَّاسُ قَالَتْ يَا بُنَيَّةُ هَوِّنِي عَلَيْكِ فَوَاللَّهِ لَقَلَّمَا كَانَتْ امْرَأَةٌ قَطُّ وَضِيئَةً عِنْدَ رَجُلٍ يُحِبُّهَا لَهَا ضَرَائِرُ إِلَّا كَثَّرْنَ عَلَيْهَا قَالَتْ فَقُلْتُ سُبْحَانَ اللَّهِ أَوَلَقَدْ تَحَدَّثَ النَّاسُ بِهَذَا قَالَتْ فَبَكَيْتُ تِلْكَ اللَّيْلَةَ حَتَّى أَصْبَحْتُ لَا يَرْقَأُ لِي دَمْعٌ وَلَا أَكْتَحِلُ بِنَوْمٍ ثُمَّ أَصْبَحْتُ أَبْكِي قَالَتْ وَدَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ وَأُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ حِينَ اسْتَلْبَثَ الْوَحْيُ يَسْأَلُهُمَا وَيَسْتَشِيرُهُمَا فِي فِرَاقِ أَهْلِهِ قَالَتْ فَأَمَّا أُسَامَةُ فَأَشَارَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالَّذِي يَعْلَمُ مِنْ بَرَاءَةِ أَهْلِهِ وَبِالَّذِي يَعْلَمُ لَهُمْ فِي نَفْسِهِ فَقَالَ أُسَامَةُ أَهْلَكَ وَلَا نَعْلَمُ إِلَّا خَيْرًا وَأَمَّا عَلِيٌّ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَمْ يُضَيِّقِ اللَّهُ عَلَيْكَ وَالنِّسَاءُ سِوَاهَا كَثِيرٌ وَسَلِ الْجَارِيَةَ تَصْدُقْكَ قَالَتْ فَدَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَرِيرَةَ فَقَالَ أَيْ بَرِيرَةُ هَلْ رَأَيْتِ مِنْ شَيْءٍ يَرِيبُكِ قَالَتْ لَهُ بَرِيرَةُ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا رَأَيْتُ عَلَيْهَا أَمْرًا قَطُّ أَغْمِصُهُ أَكْثَرَ مِنْ أَنَّهَا جَارِيَةٌ حَدِيثَةُ السِّنِّ تَنَامُ عَنْ عَجِينِ أَهْلِهَا فَتَأْتِي الدَّاجِنُ فَتَأْكُلُهُ قَالَتْ فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ يَوْمِهِ فَاسْتَعْذَرَ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُبَيٍّ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِينَ مَنْ يَعْذِرُنِي مِنْ رَجُلٍ قَدْ بَلَغَنِي عَنْهُ أَذَاهُ فِي أَهْلِي وَاللَّهِ مَا عَلِمْتُ عَلَى أَهْلِي إِلَّا خَيْرًا وَلَقَدْ ذَكَرُوا رَجُلًا مَا عَلِمْتُ عَلَيْهِ إِلَّا خَيْرًا وَمَا يَدْخُلُ عَلَى أَهْلِي إِلَّا مَعِي قَالَتْ فَقَامَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ أَخُو بَنِي عَبْدِ الْأَشْهَلِ فَقَالَ أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَعْذِرُكَ فَإِنْ كَانَ مِنَ الْأَوْسِ ضَرَبْتُ عُنُقَهُ وَإِنْ كَانَ مِنْ إِخْوَانِنَا مِنَ الْخَزْرَجِ أَمَرْتَنَا فَفَعَلْنَا أَمْرَكَ قَالَتْ فَقَامَ رَجُلٌ(۱) مِنَ الْخَزْرَجِ وَكَانَتْ أُمُّ حَسَّانَ بِنْتَ عَمِّهِ مِنْ فَخِذِهِ وَهُوَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ وَهُوَ سَيِّدُ الْخَزْرَجِ قَالَتْ وَكَانَ قَبْلَ ذَلِكَ رَجُلًا صَالِحًا وَلَكِنِ احْتَمَلَتْهُ الْحَمِيَّةُ فَقَالَ لِسَعْدٍ كَذَبْتَ لَعَمْرُ اللَّهِ لَا تَقْتُلُهُ وَلَا تَقْدِرُ عَلَى قَتْلِهِ وَلَوْ كَانَ مِنْ رَهْطِكَ مَا أَحْبَبْتَ أَنْ يُقْتَلَ فَقَامَ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ وَهُوَ ابْنُ عَمِّ سَعْدٍ فَقَالَ لِسَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ كَذَبْتَ لَعَمْرُ اللَّهِ لَنَقْتُلَنَّهُ فَإِنَّكَ مُنَافِقٌ تُجَادِلُ عَنِ الْمُنَافِقِينَ قَالَتْ فَثَارَ الْحَيَّانِ الْأَوْسُ وَالْخَزْرَجُ حَتَّى هَمُّوا أَنْ يَقْتَتِلُوا وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ عَلَى الْمِنْبَرِ قَالَتْ فَلَمْ يَزَلْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَفِّضُهُمْ حَتَّى سَكَتُوا وَسَكَتَ قَالَتْ فَبَكَيْتُ يَوْمِي ذَلِكَ كُلَّهُ لَا يَرْقَأُ لِي دَمْعٌ وَلَا

أَكْتَحِلُ بِنَوْمٍ قَالَتْ وَأَصْبَحَ أَبَوَايَ عِنْدِي وَقَدْ بَكَيْتُ لَيْلَتَيْنِ وَيَوْمًا لَا يَرْقَأُ لِي دَمْعٌ وَلَا أَكْتَحِلُ بِنَوْمٍ حَتَّى إِنِّي لَأَظُنُّ أَنَّ الْبُكَاءَ فَالِقٌ كَبِدِي فَبَيْنَا أَبَوَايَ جَالِسَانِ عِنْدِي وَأَنَا أَبْكِي فَاسْتَأْذَنَتْ عَلَيَّ امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَأَذِنْتُ لَهَا فَجَلَسَتْ تَبْكِي مَعِي قَالَتْ فَبَيْنَا نَحْنُ عَلَى ذَلِكَ دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْنَا فَسَلَّمَ ثُمَّ جَلَسَ قَالَتْ وَلَمْ يَجْلِسْ عِنْدِي مُنْذُ قِيلَ مَا قِيلَ قَبْلَهَا وَقَدْ لَبِثَ شَهْرًا لَا يُوحَى إِلَيْهِ فِي شَأْنِي بِشَيْءٍ قَالَتْ فَتَشَهَّدَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ جَلَسَ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ يَا عَائِشَةُ إِنَّهُ بَلَغَنِي عَنْكِ كَذَا وَكَذَا فَإِنْ كُنْتِ بَرِيئَةً فَسَيُبَرِّئُكِ اللَّهُ وَإِنْ كُنْتِ أَلْمَمْتِ بِذَنْبٍ فَاسْتَغْفِرِي اللَّهَ وَتُوبِي إِلَيْهِ فَإِنَّ الْعَبْدَ إِذَا اعْتَرَفَ ثُمَّ تَابَ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِ قَالَتْ فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَالَتَهُ قَلَصَ دَمْعِي حَتَّى مَا أُحِسُّ مِنْهُ قَطْرَةً فَقُلْتُ لِأَبِي أَجِبْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِّي فِيمَا قَالَ فَقَالَ أَبِي وَاللَّهِ مَا أَدْرِي مَا أَقُولُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لِأُمِّي أَجِيبِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا قَالَ قَالَتْ أُمِّي وَاللَّهِ مَا أَدْرِي مَا أَقُولُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ وَأَنَا جَارِيَةٌ حَدِيثَةُ السِّنِّ لَا أَقْرَأُ مِنَ الْقُرْآنِ كَثِيرًا إِنِّي وَاللَّهِ لَقَدْ عَلِمْتُ لَقَدْ سَمِعْتُمْ هَذَا الْحَدِيثَ حَتَّى اسْتَقَرَّ فِي أَنْفُسِكُمْ وَصَدَّقْتُمْ بِهِ فَلَئِنْ قُلْتُ لَكُمْ إِنِّي بَرِيئَةٌ لَا تُصَدِّقُونِي وَلَئِنِ اعْتَرَفْتُ لَكُمْ بِأَمْرٍ وَاللَّهُ يَعْلَمُ أَنِّي مِنْهُ بَرِيئَةٌ لَتُصَدِّقُنِّي فَوَاللَّهِ لَا أَجِدُ لِي وَلَكُمْ مَثَلًا إِلَّا أَبَا يُوسُفَ حِينَ قَالَ فَصَبْرٌ جَمِيلٌ وَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَى مَا تَصِفُونَ ثُمَّ تَحَوَّلْتُ وَاضْطَجَعْتُ عَلَى فِرَاشِي وَاللَّهُ يَعْلَمُ أَنِّي حِينَئِذٍ بَرِيئَةٌ وَأَنَّ اللَّهَ مُبَرِّئِي بِبَرَاءَتِي وَلَكِنْ وَاللَّهِ مَا كُنْتُ أَظُنُّ أَنَّ اللَّهَ مُنْزِلٌ فِي شَأْنِي وَحْيًا يُتْلَى لَشَأْنِي فِي نَفْسِي كَانَ أَحْقَرَ مِنْ أَنْ يَتَكَلَّمَ اللَّهُ فِيَّ بِأَمْرٍ وَلَكِنْ كُنْتُ أَرْجُو أَنْ يَرَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّوْمِ رُؤْيَا يُبَرِّئُنِي اللَّهُ بِهَا فَوَاللَّهِ مَا رَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَجْلِسَهُ وَلَا خَرَجَ أَحَدٌ مِنْ أَهْلِ الْبَيْتِ حَتَّى أُنْزِلَ عَلَيْهِ فَأَخَذَهُ مَا كَانَ يَأْخُذُهُ مِنَ الْبُرَحَاءِ حَتَّى إِنَّهُ لَيَتَحَدَّرُ مِنْهُ مِنَ الْعَرَقِ مِثْلُ الْجُمَانِ وَهُوَ فِي يَوْمٍ شَاتٍ مِنْ ثِقَلِ الْقَوْلِ الَّذِي أُنْزِلَ عَلَيْهِ قَالَتْ فَسُرِّيَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَضْحَكُ فَكَانَتْ أَوَّلَ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا أَنْ قَالَ يَا عَائِشَةُ أَمَّا اللَّهُ فَقَدْ بَرَّأَكِ قَالَتْ فَقَالَتْ لِي أُمِّي قُومِي إِلَيْهِ فَقُلْتُ وَاللَّهِ لَا أَقُومُ إِلَيْهِ فَإِنِّي لَا أَحْمَدُ إِلَّا اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَالَتْ وَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِنْكُمْ الْعَشْرَ الْآيَاتِ ثُمَّ أَنْزَلَ اللَّهُ هَذَا فِي بَرَاءَتِي قَالَ أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ وَكَانَ يُنْفِقُ عَلَى مِسْطَحِ بْنِ أُثَاثَةَ لِقَرَابَتِهِ مِنْهُ وَفَقْرِهِ وَاللَّهِ لَا أُنْفِقُ عَلَى مِسْطَحٍ شَيْئًا أَبَدًا بَعْدَ الَّذِي قَالَ لِعَائِشَةَ مَا قَالَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ وَلَا يَأْتَلِ أُولُو الْفَضْلِ مِنْكُمْ إِلَى قَوْلِهِ غَفُورٌ رَحِيمٌ قَالَ أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ بَلَى وَاللَّهِ إِنِّي لَأُحِبُّ أَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لِي فَرَجَعَ إِلَى مِسْطَحٍ النَّفَقَةَ الَّتِي كَانَ يُنْفِقُ عَلَيْهِ وَقَالَ وَاللَّهِ لَا أَنْزِعُهَا مِنْهُ أَبَدًا قَالَتْ عَائِشَةُ وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلَ زَيْنَبَ بِنْتَ جَحْشٍ عَنْ

أَمْرِي فَقَالَ لِزَيْنَبَ مَاذَا عَلِمْتِ أَوْرَأَيْتِ فَقَالَتْ يَارَسُولَ اللَّهِ أَحْمِي سَمْعِي وَبَصَرِي وَاللَّهِ مَا عَلِمْتُ إِلَّا خَيْرًا قَالَتْ عَائِشَةُ وَهِيَ الَّتِي كَانَتْ تُسَامِينِي مِنْ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَصَمَهَا اللَّهُ بِالْوَرَعِ قَالَتْ وَطَفِقَتْ أُخْتُهَا حَمْنَةُ تُحَارِبُ لَهَا فَهَلَكَتْ فِيمَنْ هَلَكَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَهَذَا الَّذِي بَلَغَنِي مِنْ حَدِيثِ هَؤُلَاءِ الرَّهْطِ ثُمَّ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ وَاللَّهِ إِنَّ الرَّجُلَ الَّذِي قِيلَ لَهُ مَا قِيلَ لَيَقُولُ سُبْحَانَ اللَّهِ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا كَشَفْتُ مِنْ كَنَفِ أُنْثَى قَطُّ قَالَتْ ثُمَّ قُتِلَ بَعْدَ ذَلِكَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

دلته په سند کښې د ابن شهاب زهری رحمه الله څلور استاذان دی.① حضرت عروه بن زبیر② حضرت سعیدبن المسیب ③ حضرت علقمة بن وقاص④ او حضرت عبدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود .دا څلور واړو جلیل القدر تابعین دی.اوددوی شهرت ،امامت، عظمت او جلالت منلې شوې دې.ددې څلورو واړه حضراتو نه امام زهری رحمه الله حدیث افك روایت کړې دې.او دا ټول د حضرت عائشې رضی الله عنها نه روایت کوی.امام زهری رحمه الله فرمائی.چه دې څلورو واړه حضراتو د حدیث عائشې رضی الله عنها نه ددې حدیث یوه یوه حصه بیان کړې ده. مطلب دا دې.چه چا یوه حصه بیان کړې ده.اوچا بله حصه،پوره حدیث راته یو کس نه دې بیان کړې.او په دې څلور واړه حضراتوکښې څه حضرات دحضرت عائشې رضی الله عنها ددې حدیث دپاره زیات محفوظ ساتونکی وو.یعنی دوی سره ددې حدیث زیاته حصه وه.اوهغوی ډیر په پوخوالی او یقین سره دا حدیث بیانولو .یو خو ددې حضراتو عظمت او جلالت شان او بیا د حضرت امام زهری رحمه الله د دوی په باره کښې دا اعتراف اواقرار چه دا حدیث هغوی ته ښه یاد وو.او «وقد وعیت...» او بیشکه ما دا حدیث ددې حضراتو نه ښه محفوظ کړې دی.کوم چه هغوی د حضرت عائشې رضی الله عنها نه ماته بیان کړې دې.اګرچه دغه حدیث بعضې حضراتو ته د بعضو په مقابله کښې زیات ښه یاد وو.(خودا مه ګنړئ. چه د یو بیان کړې حدیث د بل د حدیث سره متعارض وو.بلکه) په دوی کښې د یوحدیث د بل دحدیث تصدیق اوتائید کوی.

خلاصه دا چه امام بخاری رحمه الله حدیث افك د امام زهری رحمه الله په سند سره پیش کړې دې.اوامام زهری رحمه الله چه دکومو څلورو استاذانو نه دا حدیث بیانوی .دهغوی په باره کښې دوی دا تصریح کړې ده.چه هغوی پوره حدیث نه بیانولو .یوه یوه حصه به ئې بیانوله.څه حصه یو استاذ بیان کړې ده.اوڅه حصه بل استاذ بیان کړې ده.دغه شان پوره حدیث ددې حضراتو د بیان نه مرتب دې.

**دحدیث افک ترجمه:** حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله د سفر اراده کوله. نو په ازواج مطهراتو کښې به ئې خسنړې اچولو..دچا نوم چه به په خسنړې کښې راووتلو. نبی صلی الله علیه وسلم به هغه د ځان سره بوتله.نو په دې غزوه کښې نبی صلی الله علیه وسلم زمونږ په مینځ کښې خسنړې واچولو.په هغې کښې زما نوم راووتلو.نو زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره راووتم.دا د نزول حجاب نه پس واقعه ده.زه به هم په کجاوه کښې ووم.چه کوزولې به شوم.اوهم په هغې کښې به ووم چه خیژولې به شوم.مونږ روان شو.تردې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې غزوې نه فارغ شو.او واپس شو.په واپسئ کښې مونږ خلق مدینې سره نزدې وو.(چه قافله به یوځاې کښې ډیره شوه)

دشپې په اخرى حصه كښې رسول الله ﷺ د روانيدو اعلان اوكړو.(د نبى ﷺ مطلب دا وو. چه خلق دخپلو خپلو ضرورتونو نه فارغ شى.اوتيارشى.څكه چه قافله تلونكې وه.چه اعلان مې واوريدل.نو زه پاسيدم.او(دقضاء حاجت دپاره) لاړم.تردې چه زه د لښكرنه تيره شوم.او ډيره لرې لاړم.نوكله چه زه د خپل ضرورت نه فارغه شوم.اوخپلې سورلۍ ته راغلم.نوماچه په خپله سينه باندې لاس اووهلو.نو زما هغه هارغورځيدلې وو. كوم چه د ،،ظفار،، دښارد مرجان (غمو) نه جوړ شوې وو.زه دخپل هار په لټون كښې واپس شوم.دهغې لټون زه ايساره كړې ووم.(او په ما باندې ناوخته شو) بل طرف ته هغه خلق چا چه به زه سوورلم.هغوى زما كيجاوه پورته كړه.او زما د سورلۍ په اوښ باندې ئې كيخوده.هغوى دا ګڼړل.چه زه په كجاوه كښې يم.څكه چه ښځې به په هغه زمانه كښې نرۍ وې.غټې او درنې به نه وې.اونه به په هغوى باندې زياته غوښه وه.څكه چه هغوى به ډير معمولى خوراك كولو.ددې وجې خلقو چه هغه اوچتوله.نودهغې د سپكوالى په وجه په څه فرق باندې پوهه نشو.بله دا چه په هغه وخت كښې زه كم عمره هم ووم.نو هغوى اوښ اوشړل.او روان شو.ما خپل هارد لښكردروانيدو نه پس بيا موندو.د ايساريدو ځاې ته چه كله زه راغلم .نو هلته نه څوك داعى وو.اونه څوك مجيب،(بلكه ټول تلې وو) ما په دې خيال هم په خپل زوړ ځاې كښې د ايساريدو اراده اوكړه.چه دغه خلق كله ما اونه موموى.نو په لټون كښې به هم دې ځاې ته راځى.زه هم په خپل ځاې باندې ناسته ووم.چه په ما باندې خوب غالب شو.او زه اوده شوم. صفوان بن معطل سلمى رضی الله عنه به د لښكر نه روسته وو.(كه د لښكر نه څه څيز پاتې شوې وى. چه هغه راوچتوى) هغه د صبا په وخت كښې زما ځاې ته راورسيدل.هغه د يو اوده انسان جوثه اوليده .كله چه هغه ماته نزدې راغلو.نو زه ئې اوپيژندم.څكه چه د پردې حكم نازليدو نه وړاندې هغه زه ليدلې ووم.زه دهغه په استرجاع ((انا لله وانا اليه راجعون)) باندې رابيداره شوم.ما خپل ځان په خپل څادر كښې پټ كړلو.په الله قسم مونږ بله يوه خبره هم نه ده كړې.اونه دهغه د استرجاع د كلمې نه ما دهغه نه بل څه اوريدلى دى.هغه دسورلۍ نه راكوز شو.اوخپله سورلۍ ئې كينوله.اودهغې مخكنۍ پښې ئې چو كړې.(چه ماته په سوريدو كښې آسانتيا وى) زه پاسيدم.او سوره شوم. نو هغه به سورلۍ د وړاندې نه راښكله.تردې چه مونږ په تكنړه غرمه كښې لښكر ته راورسيدو.اولښكر ډيره شوې وو.بس زما په باره كښې چه د چا هلاكيدل وو. هغوى هلاك شو.اوكوم كس چه په تهمت كښې لويه حصه اخستې وه.هغه عبدالله بن ابى بن سلول وو... حضرت عروه فرمائى.ماته خودلى شوى دى.چه عبدالله بن ابى به د تهمت خورول كولو.دهغه سره به دتهمت په باره كښې خبرې كيدلې.هغه به دهغې تصديق كولو.اوهغه به ئې اوريدلې.اومبالغه به ئې په كښې كوله.دغه شان د تهمت لګونكو نورو خلقو كښې صرف حسان بن ثابت،مسطح بن اثاثه، حمنه بنت جحش نومونه اخستې شوى دى.دباقى حضراتو ماته علم نشته.(چه نور كوم كسان په دې كښې شامل وو) البته دومره خبره ضرور ده.چه دا يو پوره ډله وه. لكه څنګه چه الله تعالى فرمائيلى دى.﴿إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِّنكُمْ﴾ بيشكه هغه كسان چه تهمت ئې لګولې دې.په تاسو كښې يوه ډله ده.حضرت عروه رحمه الله فرمائى.چه حضرت عائشې رضی الله عنها ته دا خبره

خوښه نه وه.چه دهغې په مخامخ حضرت حسان بن ثابت رضي الله عنه ته بد رد اووئيلى شى.فرمائيل ئې چه حسان خو دا شعر هم وئيلې دې.

فإن أبي ووالده وعرضي لعرض محمد منكم وقاء

زما پلاراوزما دپلار،بلار،اوزما عزت دې دمحمد ﷺ د عزت دپاره تاسو ته مخامخ ډهال وى.
حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى.چه بيا مونږ مدينې ته راغلومدينې ته د رارسيدونه پس زه يو مياشت بيماره ووم.البته دبيمارئ په موده كښې به دې خبره زه په شك كښې اوچولم.چه ما د بيمارئ په دوران كښې هغه مينه او محبت د نبى ﷺ نه نۀ موندلو.كوم چه به وړاندې د بيمارئ په موده كښې وو.صرف دومره وه.چه رسول الله ﷺ به ماته تشريف راوړلو.سلام به ئې واچولو.اوتپوس به ئې اوكړو .څنګه حال دې؟ او بيا به ئې واپس تشريف اوړلو.نود رسول الله ﷺ ددې طرز عمل د وجې به زما شك پيدا كيدو.خود شر ماته څه علم نه وو.كله چه زه لږه جوړه شوم.دحضرت مسطح مورسره ،،مناصع،، طرف ته اووتلم.هغه زما د قضاء حاجت ځاې وو.اومونږ به د قضاء حاجت دپاره صرف د شپې وتلو.دا دهغه وخت خبره ده.په كوم وخت كښې چه د كورونو سره نزدې د بيت الخلاء رواج نه وو.زمونږ د اولنو عربو پشان رواج وو.هغوى به د قضاء حاجت دپاره د كورونو نه لرې صحراء ته تلو.كورونوسره د بيت الخلاء په جوړلو به مونږ ته تكليف وو.نو زه او ام مسطح اووتلو.،ام مسطح،، د ابورهم بن المطلب بن عبد مناف لورده.اودهغې مور صخربن عامر لور وه.اودحضرت ابوبكر رضي الله عنه ترور وه.او مسطح بن اثاثه بن عباد بن المطلب د ام مسطح خوي دې.
نو مونږ دواړه د قضاء حاجت نه فارغ شو.او كور طرف ته راتلو.چه ام مسطح په خپل لوې څادر كښې اونخته او راپريوته.نو وې وئيل «تعس مسطح» مسطح دې هلاك شى.ما ام مسطح ته اووئيل.تا ډيره غلطه جمله استعمال كړه.ته داسې كس ته بد رد واې.چه هغه په جنګ بدر كښې شريك شوې دې.په دې باندې ام مسطح اووئيل.الله دې په نيكه كړه.تا نه دى اوريدلى.چه مسطح څه وائى.او ګرځى.نوبياهغې ماته د تهمت لګونكو خبرې بيان كړې.دهغې په وجه زما بيمارى نوره هم زياته شوه.كله چه زه كور ته واپس راغلم.نو رسول الله ﷺ ماته راغلل.او د سلام كولو نه پس ئې راته اووئيل. ستا طبيعت څنګه دې.ما هغوى ته عرض اوكړو .آيا تاسو ماته اجازت كوئ.چه زه خپل مور پلار كره لاړه شم.زما مطلب دا وو.چه دهغوى نه ددې خبرې تحقيق اوكړم.رسول الله ﷺ ماته اجازت راكړو.نو ما د خپلې مور نه تپوس اوكړو.مورې دا خلق څه وائى؟ هغې راته اووئيل لورې خفه كيږه مه، ډير كم داسې شوى دى.چه يو ښائسته ښځه د داسې كس سره وى.چه هغه ورسره محبت كوى.او دهغې بنې (د خاوند نورې ښځې) هم وى.اوبيا دې هم په هغې باندې تهمت نه لګى.ما اووئيل «سبحان الله» آيا واقعى خلق داسې خبرې كوى. نو ما په دغه شپه تر صبا پورې ژړل. ټوله شپه نه خو زما د سترګو اوښكې اودريدې .اونه ماته خوب راغلو.
بل طرف ته رسول الله ﷺ حضرت على بن ابى طالب او حضرت زيد بن اسامه رضي الله عنهما راوغوښتل. تردغه وخته پورې وحى بنده وه.(چونكه دا دواړه د كور كسان وو) نبى ﷺ د دوى دواړو نه تپوس اوكړو.اودخپلې بى بى نه د جدا كيدو (طلاق) متعلق ئې ورسره مشوره

اوكړه.اسامه بن زيد رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دهغوى د بى بى د پاكدامنۍ په باره كښې دخپل علم مطابق او د اهل بيت په باره كښې چه څه ورته علم وو.دهغې مشوره وركړه.هغوى اوفرمائيل.ستاسوبى بى ده.د دې متعلق مونږ صرف خير پيژنو.

البته حضرت على رضي الله عنه نبى صلى الله عليه وسلم ته مشوره وركوله.او ورته ئې اووئيل.الله تعالى په تاسو باندې څه تنگى نه ده راوستې.(كه د افواهگانوپه وجه مو د عائشې رضي الله عنها نه په طبعيت كښې خړوالې پيدا شوې وى نو)ښځې نورې ډيرې دې. (او ستاسودا تكدر داسې هم لرې كيدې شى.چه د وينځې (حضرت بريره رضي الله عنها) چه د حضرت عائشې رضي الله عنها وينځه پاتې شوې وه.اودهغې حالات پيژنى) نه تپوس اوكړئ.هغه به تاسو ته صحيح صحيح خبره اوكړى.نو رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت بريره رضي الله عنها راوغوستله.او تپوس ئې ترې اوكړو.بريرې! د عائشې رضي الله عنها نه تا داسې څه خبره ليدلې ده.چه هغې ته په شك كښې اچولې ئې؟ حضرت بريرې رضي الله عنها جواب وركړو.قسم دې وى په هغه ذات چه تاسو ئې په حقه پيغمبر راليږلې ئې.ما چرته هم داسې څه خبره نه ده ليدلې.چه هغه معيوبه وى.صرف دومره خبره مې ليدلې ده.چه هغه د كم عمر جينۍ ده.دخپل كور اوړه ښكاره پريږدى.او اوده شى.او چيلۍ راشى.اوړه اوخورى.(هغه خو دومره ساده باده ده.دهغې په پاكدامنۍ اوعفت كښې څه شك كيدې شى)

نونبى صلى الله عليه وسلم په دغه ورځ د عبدالله بن ابى خلاف د منبر دپاسه مدد طلب كړو.او وې فرمائيل.يا معشرالمسلمين څوك دى ، چه دهغه كس په مقابله كښې زما مدد اوكړى.چا چه ماته زما د كور والا په باره كښې تكليف رارسولې دې.په الله قسم زه د خپلې بى بى په حق كښې صرف خير پيژنم. او دوى د يو داسې كس ذكر كړې دې.د كوم په باره كښې چه هم ما ته صرف د نيكۍ اوخير علم دې.اوهغه زما كور ته داخل شوې هم نه دې.مگر زما سره.

چه د نبى صلى الله عليه وسلم دا خطاب ئې واوريدل.نوسعدبن معاذ رضي الله عنه اودريدل.او عرض ئې اوكړو.يا رسول الله زه به ستاسو مدد اوكړم.كه ددغه كس تعلق د بنو اوس سره وى.زه به دهغه څټ قلم كړم.اوكه هغه زمونږ د خزرجى ورونړو سره تعلق ساتى.نو چه تاسو څه حكم كوئ.مونږ به هغه منو.په دې باندې د خزرج قبيلې سردار حضرت سعد بن عباده اودريدلو.دحضرت حسان رضي الله عنه مور دهغه د تره لور وه. (او چونكه حضرت حسان رضي الله عنه په دې تهمت كښې شريك وو.ددې وجې حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه دا اوكنړل.چه حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه په مونږ باندې تعرض اوكړو) هغوى ددې نه وړاندې نيك سړې وو.خوپه دغه وخت كښې خاندانى حميت په هغه باندې غالب شو.هغه حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه ته اووئيل.تا غلطه اووئيله.په الله قسم نه خو ته هغه قتلولې شې.اوكه هغه (تهمت لگونكې) ستاسو د قبيلې سره تعلق ساتلو.نو تا به دهغه قتل هرگز نه غوستل.(خوچونكه دهغه تعلق زمونږ د قبيلې سره دې.ددې وجې ته د قتل خبره كوې) په دې كښې د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه د تره څوې حضرت اسيد بن حضير رضي الله عنه اودريدل.او حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه ته ئې اووئيل.غلطه خبره خو تا اوكړه.په الله قسم مونږ به هغه خامخا قتلوو.ته منافق ئې.څكه خو ته د منافقانو د طرفه جگړه كوې.ددې تو تو مېۍ مېۍ د وجې د اوس او خزرج دواړو قبيلو خلق ژاپورته شول.تردې چه دوى په خپل مينځ كښې د جنگ اراده اوكړه.رسول الله صلى الله عليه وسلم د منبر نه هغوى چپ كولو.تردې چه ټول چپ شول.او نبى صلى الله عليه وسلم هم چپ شو.

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چه په دغه ورځ هم ما ټوله ورځ مسلسل اوژړل.په دغه موده کښې نه زما د سترګو اوښکې اوچې شوې.اونه ماته خوب راغلو.د صبا په وخت کښې زما مور پلار ما سره کیناستل.او ما ژړل.په دې کښې یوې انصاری ښځې ماته د راتلو اجازت اوغوستلو.ما هغې ته د راتلو اجازت ورکړو.هغه هم راغله.او ما سره په ژړا شوه.مونږ هم په دې حالت کښې وو.چه رسول الله ﷺ مونږ ته راغلو.سلام ئې اوکړو.او وې فرمائیل.چه دکوم وخت نه په ما باندې تهمت لګولې شوې وو.دهغه وخت نه رسول الله ﷺ ما سره نه وو ناست.تریوې میاشتې پورې په نبی ﷺ زما په باره کښې څه وحی نه وه نازله شوې.. نبی ﷺ د تشریف راوړلونه پس کلمه شهادت اووئیل.اوبیائې اوفرمائیل.

اما بعد! عائشې رضی الله عنها ستا په باره کښې ماته دا خبره رارسیدلې ده.که ته بې ګناه ئې.نو الله تعالی به خامخا تا بې ګناه ثابته کړی.اوکه ستا نه څه غلطی شوې وی.نو الله تعالی ته توبه اوباسه.اواستغفار وایه.ځکه چه بنده کله د خپلو ګناهونو اقرار اوکړی.اوتوبه اوباسی.نو الله تعالی دهغه توبه قبلوی.

کله چه نبی ﷺ خپله خبره پوره کړه.نو زما اوښکې داسې اوچې شوې.چه یوه قطره مې هم محسوس نکړه.نو ما خپل پلار ته اووئیل.چه تاسو د رسول الله ﷺ د سوال جواب ورکړئ. هغه اووئیل په الله قسم زه نه پوهیږم.چه رسول الله ﷺ ته څه اووایم.بیا ما خپلې مور ته اووئیل.چه ته جواب ورکړه.هغې هم معذرت اختیار کړو.چه زه نه پوهیږم.چه رسول الله ﷺ ته څه جواب ورکړم.اوس مجبوراً ما ته پخپله خبره کول شروع کول شو.په هغه وخت کښې زه د کم عمر جینۍ وو.او قرآن شریف هم ما څه زیات نه وو ونیلې.ما اووئیل.

په الله قسم ماته معلومه شوې ده.چه تاسو خلقو دا خبره اوریدلې ده.تردې چه ستاسو په زړونو کښې کیناستلې ده.او تاسو ددې تصدیق هم (ترڅه حد پورې) کړې دې.اوس که زه تاسو ته اووایم.چه زه رښتینې یم.نو تاسو خلق به زما تصدیق اونکړئ.اوکه زه دهغه تهمت اقرار اوکړم.د کوم نه چه زه پاکه یم.الله تعالی ته ښه معلومه ده.نو تاسو خلق به اووائې.چه دې رښتیا وینا اوکړه.په الله قسم اوس زه د خپلې اوستاسو د معاملې مثال ددې نه بغیر بل څه نه وینم.کومه چه د حضرت یوسف علیه السلام پلار (حضرت یعقوب علیه السلام) چه (دخپلو ځامنو غلطه خبره ئې واوریده.) فرمائیلې وه.﴿فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ۖ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ﴾ اوس به زه صبرجمیل اختیارکړم.اوڅه چه تاسو وائې.دالله تعالی نه زه د هغې په باره کښې مدد غواړم.

چه دا مې اووئیل. نو زه لاړم.اوپه خپله بستره باندې سملاستم.او زما یقین وو.چه الله تعالی ته زما دبراءت علم دې.اوهغه به زما براءت بیانوی.خو په الله قسم چه دا خبره خو زما په وهم او ګمان کښې هم نه وه.چه الله تعالی به زما په باره کښې پخپله خبره کوی.البته زما دا امید ضرور وو.چه رسول الله ﷺ به څه خوب اووینی.چه دهغې په ذریعه به ورته الله تعالی زما براءت بیان کړی.په الله قسم چه نبی ﷺ اوس لا دخپل دغه مجلس نه پاسیدلې هم نه وو.اونه د کور په خلقو کښې څوك پاسیدلی وو.چه په نبی ﷺ باندې وحی نازلیدل شروع شو.نو په نبی ﷺ باندې هغه سختی شروع شوه.(کومه چه به د نزول وحی په وخت) په نبی ﷺ باندې شروع کیده.تردې چه د نبی ﷺ (د مخ مبارك) نه د ملغلرو پشان د خولې

نطري بهيدلې .حالانكه ورځ د يخنۍ وه.دا دهغه كلام الهی د ثقل د وجې وو.كوم چه به په نبی ﷺ باندې نازليدل.صديقه رضی الله عنها فرمائی.چه دنبیﷺ نه كله دا كيفيت ختم شو.نو نبیﷺ مسكې شو.نو د ټولو نه اولنۍ كلمه كومه چه د نبیﷺ د خولې مباركې نه وتلې وه. هغه دا وه.اې عائشې الله تعالى ستا براءت نازل كړو.نو زما مور ماته اووئيل.رسول اللهﷺ ته اودريږه.(دتعظيم دپاره) ما اووئيل. په الله قسم زه نه اودريږم.زه به صرف دالله تعالى حمد او شكر اوباسم.(چه هغه زما د براءت اعلان اوكړو)الله تعالى د ﴿إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوْ بِالْإِفْكِ﴾ لس آياتونو پورې آياتونه (زما په براءت كښې ) نازل كړو.

كله چه الله تعالى زما د براءت اعلان په دې آياتونو كښې اوكړو.نو حضرت ابوبكرصديق رضی الله عنه اووئيل.اوهغوى به په حضرت مسطح بن اثاثه باندې د قرابت او دهغوى د غريبۍ په وجه خرچ كولو.چه په الله قسم زه به په آئنده كښې په مسطح بن اثاثه باندې هيڅ خرچ نه كوم.ځكه چه هغه هم په عائشه رضی الله عنها باندې تهمت لګولې وو.په دې باندې د قرآن مجيد دا آيت﴿وَلَا يَأْتَلِ أُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ أَنْ يُؤْتُوْا أُولِي الْقُرْبٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَالْمُهٰجِرِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۖ وَلْيَعْفُوْا وَلْيَصْفَحُوْا ۗ أَلَا تُحِبُّوْنَ أَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ پورې نازل شو.ددې آيت د نزول نه پس حضرت ابوبكر صديق رضی الله عنه اوفرمائيل.ولې نه زما خو هم دا خواهش دې چه الله تعالى زما مغفرت اوكړي.نودوى دحضرت مسطح خرچه دوباره وركول شروع كړه. او وې وئيل په الله قسم چه دده دا نفقه به زه هيڅ كله بنده نكړم.

حضرت صديقه رضی الله عنها فرمائی.چه رسول اللهﷺ د حضرت زينب بنت جحش رضی الله عنها نه هم زما په باره كښې تپوس كړې وو.چه د عائشې متعلق ته څه پيژنې.نوحضرت ام المومنين زينب رضی الله عنها ورته اووئيل.((أحمی سمعی وبصری والله ما علمت إلا خيرا)) يعنى زه خپل غوږونه د داسې فضولو خبرو نه او خپلې سترګې د داسې ناخوښه مناظرو كتلو نه محفوظ ساتم.په الله قسم ماته د حضرت عائشې رضی الله عنها په باره كښې د خيراونيكۍ نه سوا بله څه خبره نه ده معلومه ...حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چه په ازواج مطهراتو كښې صرف زينب داسې وه.چه هغې زما مقابله (په حسن او جمال عقل اوذكاوت وغيره كښې ) كوله.خو الله تعالى د ورع او تقوى په وجه دهغې حفاظت اوكړو.اودهغې خور حمنه بنت جحش د هغې د طرف نه جګړه كوله.(چه زما مرتبه د نبیﷺ په نيز كمه شی.او دهغې خور زينب بنت جحش اوچته شی) نو په هلاكيدونكو كښې هغه هم هلاكه شوه.

## حديث افك كښې د بعضو جملوتشريح:

**قوله**: قَالَتْ عَائِشَةُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا أَقْرَعَ بَيْنَ أَزْوَاجِهِ: حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چه نبی ﷺ به كله د سفر اراده كوله.نو په خپلو بيبيانوكښې به ئې خسنړې اچولو.

**په ازواج مطهراتوكښې خسنړې (قرعه) اچول اوددې حكم**: په دې مسئله كښې د حضرات احنافو رحمهم الله موقف دا دې.چه چه خسنړې په نبیﷺ باندې واجب نه وو.نبیﷺبه د ازواج

مطهراتو رضی الله عنهن د تطییب قلوب دپاره خسنړې اچولو.ځکه که نبی ﷺ به په خپله خوښه باندې ځوك متعین کوله.نونورې بیبیانې به پرې خفه کیدې.چه مونږ ولې پریږدی. د شوافعو رحمهم الله نه امام غزالی رحمه الله په ،،خلاصه،، کښې هم دا اختیارکړی دی.اوعلامه زرقانی رحمه الله په ،،شرح مواهب،، کښې د اکثرو مالکیانو رحمهم الله مختارهم دا خودلې دې.

داکثروحنابلو اواکثروشوافعو رحمهم الله رائې دا ده.چه ((قسم بین الأزواج)) په نبی ﷺ باندې واجب وو.اودا خسنړې به نبی ﷺ هم د واجب په حیثیت باندې اچولو.(۱)

**قوله**: فَأَقْرَعَ بَيْنَنَا فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا فَخَرَجَ فِيهَا سَهْمِي: د ابن اسحاق او طبرانی رحمهما الله په روایت کښې دا تصریح راغلې ده.چه دا غزوه دکومې چه حضرت عائشه رضی الله عنها دلته ذکر کوی. دا غزوه مریسیع وه.(۲) کومې ته چه غزوه بنی مصطلق هم وائی.په قرعه کښې د حضرت عائشې رضی الله عنها نوم راووتلو.

**قوله**: فَخَرَجْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا أُنْزِلَ الْحِجَابُ: زه د رسول الله ﷺ سره اووتلم.دا دنزول حجاب نه پس واقعه ده.
د نزول حجاب حکم کله راغلې وو؟ په دې باره کښې مختلف اقوال دی.

① د واقدی،قتاده،ابن جریر او حافظ ابن کثیر رائې دا ده.چه دا د ۵ھ واقعه ده.

② د حافظ شرف الدین دمیاطی خیال دې.چه دا د ۴ھ واقعه ده.د حافظ ابن حجر او علامه ابن قیم رحمهما الله میلان هم دې طرف ته دې.

③ دابوعبیده رحمه الله وغیره رائې دا ده،چه دا د ۳ھ واقعه ده.(۳)

**قوله**: فَكُنْتُ أُحْمَلُ فِي هَوْدَجِي وَأُنْزَلُ فِيهِ: زه به د کجاوې سره اوچتولې شوم.اوهم په کجاوې کښې به وو.او راکوزولې به شوم.
،،هودج،،یوخاص قسم پرده وی.کوم چه په سورلۍ دپاره اچولې شی.چه ښځه په کښې په پرده کښې ناسته وی.(۴) هغه محل ته ،،هودج،، وائی.په کوم باندې چه پرده تړلې شی.

**قوله**: فَإِذَا عِقْدٌ لِي مِنْ جَزْعِ ظَفَارِ قَدْ انْقَطَعَ: ناڅاپه چه ما اوکتل.نو زما هار کوم چه د ظفارد غمو وو.هغه شلیدلې وو.

((جزع)) مرجان (یوقسم غمی دی) ته وائی.

---

(۱) ددې مسئلې دتفصیل دپاره اوګورئ فتح القدیرمع الکفایة (۲۹۹/۳) (۳۰۳) باب القسم والمغنی لابن قدامة (۲۳۸/۷)_
(۲) فتح الباری(۴۵۸/۸)_
(۳) ددې درې واړه اقوالو دپاره اوګورئ (فتح الباری(۴۳۰/۷) وفتح الباری (۴۶۲/۸)_
(۴) فتح الباری(۴۵۸/۸)-

((ظفار)) د يمن په علاقه کښې ديوښارنوم دې.چونکه دغه مرجان ددغه ځاې نه راغلى وو.ددې وجې د ((جزع)) اضافت هغې طرف ته اوشو.ابن التين د هغې قيمت دولس درهم نقل کړې دې.په بعضې نسخو کښې(من جزأظفار)راغلى دى. ((أظفار))د((ظفر)) جمع ده.او((ظفر)) يوخاص قسم خوشبوى ده.د ((جزع أظفار)) مطلب دا دې.چه د دغه خوشبو نه د غمو په شکل کښې مرجان جوړولى شو.اوبيا به د هغې نه هارجوړولې شو. (١)

**قوله**: وَكَانَ النِّسَاءُ إِذْ ذَاكَ خِفَافًا لَمْ يَهْبُلْنَ وَلَمْ يَغْشَهُنَّ اللَّحْمُ: ښځې به په هغه زمانه کښې نرئ وې.غټې به نه وې.اونه به په هغوى باندې زياته غوښه وه.بلکه هغوى به سپکې وې.

((لم يهبلن)) په باء باندې درې واړه اعراب وئيلى شوى دى.دغه شان د باب افعال او تفعيل نه هم راځي.اومعنى دلته د تپولودا ده.چه دوى درنې نه وې.(٢)

**قوله**: حَتَّى أَتَيْنَا الْجَيْشَ مُوغِرِينَ فِي نَحْرِ الظَّهِيرَةِ وَهُمْ نُزُولٌ: تردې چه مونږ په تکنړه غرمه کښې لښکرته راورسيدو.او لښکر پړاؤ اچولې وو.

((موغرين))دباب افعال اوباب تفعيل په دواړوکښې مستعمل وو.په دواړو صورتونو کښې د((موغرين)) معنى ((داخلين فى الظهيرة)) ده.او ((وغرة)) د ماسپخين وخت وائى.(٣)

**قوله**: وَيَسْتَمِعُهُ وَيَسْتَوْشِيهِ: عبدالله بن ابى به دا الزام اوريدل.اودا به ئې خوروِل.

د استثناء معنى ده.د څه مسئلې په باره کښې استفسار کول دې دپاره چه د خلقوموضوع اوګرځى.(٤)

**قوله**: فَدَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَرِيرَةَ فَقَالَ أَيْ بَرِيرَةُ هَلْ رَأَيْتِ مِنْ شَيْءٍ يَرِيبُكِ: دلته دا اشکال کيدې شى.چه حضرت بريره رضي الله عنها تر دغه وخته پورې وينځه وه.دهغې مولى هغه مکاتبه جوړه کړې وه.اوحضرت عائشې رضي الله عنها د هغې بدل کتابت ادا کړې وو.ددې نه پس به د حضرت عائشې رضي الله عنها سره اوسيدله.خو د دوى د آزادئ دا واقعه د فتح مکې نه پس راغلې وه.خو واقعه د افك په ۵ھ کښې پيښه شوې وه.د افك د واقعه په وخت کښې حضرت بريره رضي الله عنها د حضرت عائشې رضي الله عنها سره نه وه.نودهغې نه تحقيق حال ولې کولې شو؟

---

(١)فتح البارى(٤٥٩\١٨)_

(٢)فتح البارى(٤٦٠\١٨)_

(٣)عمدة القارى(٣٠٧\١٧)_

(٤)وفى شرح الكرمانى (٣٥\١٦) يستوشيه أن يستخرجه بالبحث عنه ثم يفشيه ولايدعه يخمد)_

باقی پاتې شوددې خبرې دلیل چه دحضرت بریره رضي الله عنها ازادی د فتحې مکې نه پس شوې وه.نوهغه دا ده.چه حضرت بریره رضي الله عنها کله د خیار عتق په بنیاد دخپل خاوند مغیث نه جدائی اختیارکړه.نو حضرت مغیث رضي الله عنه به د مدینې په کوڅوکښې په حضرت بریره رضي الله عنها پسې ژړل.اوګرځیدل.او وئیل به ئې.چه ته زما نه جدا والې مه اختیاروه،خو حضرت بریره رضي الله عنها د هغه سره په اوسیدو باندې نه تیاریده.په دغه وخت کښې نبی ﷺ خپل تره حضرت عباس رضي الله عنه ته اوفرمائیل .ګوره د مغیث د بریره سره څومره محبت دې.اودبریرې د مغیث سره څومره بغض دې.(۱) اوحضرت عباس رضي الله عنه د مکې د فتحې نه پس راغلې وو.معلومه شوه.چه د حضرت بریره رضي الله عنها آزادی د فتح مکې نه پس ده.نو په ۵ھ کښې په واقعه د افك کښې د حضرت عائشې رضي الله عنها په باره کښې د دې نه تحقیق حال کولوڅه مطلب دې؟

حافظ ابن قیم رحمه الله فرمائی.چه په روایت کښې د بریره نوم وهم دې.(۲) او علامه زرکشی هم د حافظ ابن قیم تائید کړې دې.(۳)

خو صحیح خبره دا ده.چه دې ته د وهم وئیلو ضرورت نشته.حضرت بریره رضي الله عنها اګرچه د واقعه افك په وخت کښې آزاده نه وه.او هم د خپل مولی سره د وینځې په حیثیت اوسیده.خو چونکه مسلمانه وه.او حضرت عائشې رضي الله عنها ته دکشروالی دوجې د تجربه کارې ښځې ضرورت وو.نو عین ممکن ده.چه هغه د خپلې مولی سره اوسیده.اوپه هغې سره سره د حضرت عائشې رضي الله عنها دمدد دپاره به دلته ورتله.ددې وجې نبی ﷺ د حضرت عائشې رضي الله عنها په باره کښې دهغې نه تپوس اوکړو.(۴)

**قوله**: غَيْرَ أَنَّهَا جَارِيَةٌ حَدِيثَةُ السِّنِّ تَنَامُ عَنْ عَجِينِ أَهْلِهَا فَتَأْتِي الدَّاجِنُ فَتَأْكُلُهُ: بس دومره خبره ده.چه هغه د کم عمرجینۍ ده.د خپل کور اوړه پرانستې پرېږدی.او اوده شی ترې،نو چیلۍ راشی هغه اوخوری.

په دې جملې سره حضرت بریره رضي الله عنها د حضرت عائشې رضي الله عنها د عفت مزید تاکید اوکړو.چه هغه څو دومره ساده باده ده.چه هغې ته د خپل کور د اوړو په باره کښې څو څوځله خیال نه پاتې کیږی.په داسې معصومه باندې دا الزام (۵)

**قوله**: فَقَامَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ فَقَالَ أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَعْذِرُكَ : نو حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه اودریدو.او وې وئیل.یارسول الله زه ستاسو مدد کوم.دلته اشکال کیږی.چه

(۱) ولفظه یا عباس ألا تعجب من حب مغیث بریرة ومن بغض بریرة مغیثاً الحدیث أخرجه البخاری فی کتاب الطلاق باب شفاعة النبی ﷺ فی زوج بریرة رقم الحدیث ۵۲۸۳_

(۲) زاد المعاد (۲۶۷/۳) فصل (ما وقع فی حدیث الإفک من الوهم)_

(۳) فتح الباری (۴۶۹/۸)_

(۴) فتح الباری (۴۶۹/۸)_

(۵) فتح الباری (۴۷۰/۸)_

حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه خو په غزوه بنى قريظه كښې وفات شوې وو.او غزوه بنى قريظه په كال ۴هـ يا ۵هـ كښې شوې وه.حالانكه د افك د واقعې تعلق د غزوه مريسيع او بنو المصطلق سره دې.كومه چه په ۶هـ كښې شوې وه.نوپه روايت كښې دحضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه نوم څنګه راغلې دې.ددې اشكال مختلف جوابونه شوى دى.

① ابن عبدالبر مالكى او قاضى ابوبكر بن العربى رحمهماالله وئيلى دى.چه دلته د حضرت سعدبن معاذ رضي الله عنه نوم غلط دې.اودا د راوى وهم دې.او د عادت مطابق قاضى ابو بكر بن العربى رحمه الله دا هم وئيلى دى.چه د سعد بن معاذ رضي الله عنه د نوم په غلطئ باندې اتفاق دې.[1]

② قاضى اسماعيل مالكى وغيره رحمهم الله فرمائيلى دى.چه غزوه مريسيع د غزوه خندق نه وړاندې پيښه شوې ده.[2] او كله چه دا تسليم كړې شى.چه غزوه مريسيع د غزوه خندق نه وړاندې شوې ده.نو په واقعه د افك كښې د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه په موجودګئ باندې هډو څه اشكال نه پاتې كيږى.

البته چه غزوه مريسيع دغزوه خندق نه وړاندې اومنلې شى.نوپه دې كښې يوبل اشكال پيدا كيږى.هغه دا چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ته چه نبى صلى الله عليه وسلم د ټولونه اول په كومه غزا كښې د شركت اجازت وركړې وو.هغه غزوه خندق وو.بل طرف ته دا ثابته ده.چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په غزوه مريسيع كښې شركت كړې وو.كه غزوه مريسيع دغزوه خندق نه وړاندې اومنلې شى.نو په غزوه مريسيع كښې به د ټولونه اوله غزا وه.چه شركت په كښې شوې وو.[3]

بعضې عالمانو رحمهم الله ددې اشكال جواب وركړې دې.اوفرمائيلى ئې دى.چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به په غزوه مريسيع كښې دخپل پلارسره تبعاً تلې وى.مستقلاً په كومه غزا كښې چه دوى شركت كړې وو.اوپه كوم كښې چه هغوى ته اجازت شوې وو.هغه غزوه خندق وه.[4]

③ امام بيهقى رحمه الله يوبل جواب وركړې دې.چه دا غزوه مريسيع د غزوه خندق نه پس اودحضرت سعدبن معاذ رضي الله عنه د وفات نه وړاندې شوې ده.حضرت سعدبن معاذ رضي الله عنه لا زخمى وو.چه په دې كښې غزوه مريسيع او واقعه دافك پيښه شوه.اودافك د واقعه نه پس دوى وفات شوى دى.[5] نوپه حديث افك كښې د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه په نوم راتلو باندې څه اعتراض پاتې نشو.

**قوله**: فَقَالَ أَبِي وَاللَّهِ مَا أَدْرِي مَا أَقُولُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

دحضرت صديق اكبر رضي الله عنه په رګونوكښې صدق داسې اخكلې شوې وو.چه د حضرت عائشې رضي الله عنها غوندې پاكدامنې لورد دفاع اودهغوى د براءت ښكاره كولوباندې اماده نه وو.څكه چه

---

[1] )فتح البارى(٤٧٢\٨)_
[2] )فتح االبارى(٤٧٢\٨)_
[3] )فتح البارى(٤٧٢\٨)_
[4] )فتح البارى (٤٧٢\٨)_
[5] )دلائل النبوة بيهقى (٨٨\٤) باب حديث الإفك)_

هغوی ته دحقیقت حال معلومات نه وو.روسته چه کله الله تعالی د حضرت عائشي صدیقې ﷞ دبراءت اعلان په قرآن کښې اوکړو.نوحضرت عائشي ﷞ خپل پلار ته اوونیل.تاسو ولې زما دطرفه عذر پیش نکړو.نو حضرت صدیق اکبر ﷜ ورته جواب ورکړو.«أی سماء تظلنی وأی أرض تقلنی إذاقلت مالم أعلم» کوم آسمان به په ما باندې سیورې کوی.اوکومه زمکه به ماته په خپل ځان باندې ځاې راکوی.چه زه هغه څه اووایم.دکوم چه ماته علم نه وی. (١)

**قوله**: فَأَخَذَهُ مَا كَانَ يَأْخُذُهُ مِنَ الْبُرَحَاءِ حَتَّى إِنَّهُ لَيَتَحَدَّرُ مِنْهُ مِنَ الْعَرَقِ مِثْلُ الْجُمَانِ وَهُوَ فِي يَوْمٍ شَاتٍ مِنْ ثِقَلِ الْقَوْلِ الَّذِي أُنْزِلَ عَلَيْهِ: نوراغله په نبی ﷺ باندې هغه سخته کومه چه د نزول وحی په وخت به په دوی باندې راتله.تردې چه د نبی ﷺ دمخ مبارك نه د غمو پشان د خولو څاڅکی څڅیدل .حالانکه د سختې یخنۍ ورځ وه.دا دهغه کلام د بوج د وجې وو.کوم چه په هغوی باندې نازلولې شو.

«البرحاء»برح دګرمۍ سختۍ ته وائی.کومه چه د تبې دوجې یا دسختې ګرمۍ د وجې د خولې وتلو سبب اوګرځی.«برحاء» (دباء په ضمه او راء په فتحه) هم دې ته وائی.(٢)

«الجمان» بضم الجيم وتخفيف الميم، ملغلرو ته وائی.(٣)

**قوله**: فَقُلْتُ وَاللَّهِ لَا أَقُومُ إِلَيْهِ فَإِنِّي لَا أَحْمَدُ إِلَّا اللَّهَ عَزَّوَجَلَّ: حضرت عائشي ﷞ قسم اوخوړلو.او وې وئیل.چه زه دهغه د شکریه ادا کولوډپاره نه اودریږم.زه صرف دالله تعالی شکراداکوم.په حضرت عائشه ﷞ باندې دبیخودې حالت شروع شوې وو.چه دالله تعالی نه سوا هرڅه ئې د نظرنه اخوا شوی وو.اوصرف په یوالله ئې نظرپاتې شوی وو.په هغې خوقیامت تیر شوې وو.اوالله تعالی د وحی په ذریعه دهغې دبراءت اعلان اوکړو.په داسې حالت کښې په یوالله باندې نظرپاتې کیدل اود غیرالله نه نظراوړیدل څه بعیده خبره نه ده.

دویمه دا چه حضرت عائشي ﷞ دا په ناز کښې وئیلی وو.اوپه ناز کښې خو وی داسې،چه په زړه کښې کوم کیفیت راسخ او مضبوط شوې وی.په ظاهردهغې نه د خلاف اظهار کیږی.د حضرت عائشي ﷞ په زړه کښې هم د نبی ﷺ بې انتهاء عظمت اومحبت موجود وو. خوپه هغوی باندې په دغه وخت کښې دناز کیفیت طاری شوې وو.اوهغوی دهغې خلاف اظهار اوکړو. په ظاهره نیاز وو،او په زړه کښې په زرچنده نیاز موجود وو(٤) ګنی په دې کښې څه شك دې.اوپخپله حضرت عائشي ﷞ هم دا خبره بنه پیژندله.چه دا هرڅه د محمد ﷺ په وجه دوی ته نصیب شو.

---

١ )فتح الباری(٤٧٧\٨)_

٢ )عمدة القاری(٢٠٩\١٧)_

٣ )عمدة القاری(٢٠٩\١٧)_

٤ ) قال ابن الجوزی:إنما قالت ذلک إدلالاً کا یدل الحبیب علی حبیبه= فتح الباری (٤٧٧\٨)_

**قوله:** قَالَتْ عَائِشَةُ وَاللَّهِ إِنَّ الرَّجُلَ الَّذِي قِيلَ لَهُ مَا قِيلَ لَيَقُولُ سُبْحَانَ اللَّهِ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا كَشَفْتُ مِنْ كَنَفِ أُنْثَى قَطُّ: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى.چه په كوم كس دا الزام لګولي شوې وو. هغه چه دا الزام واوريدل.نو وئيل به ئې.په هغه ذات مې دې قسم وى.دچا په لاس كښې چه زما روح دې.ما چرته هم دچا ښځې پرده نه ده اخستې.دهغوى نوم صفوان بن معطل رضي الله عنه وو.

دلته يواشكال دا كيږى.چه د حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه په روايت كښې ابوداود ،طحاوى، حاكم، احمد او ابن حبان نقل كړې دې.په هغې كښې دى.چه دحضرت صفوان بن معطل رضي الله عنه بى بى د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه. او شكايت ئې اوكړو.چه زه مونځ كوم.نو دې ما وهى.اوچه روزه نيسم.نودې مې رټى. او پخپله د صبا مونځ د نمر راختونه پس كوى.

نبى كريم ﷺ د حضرت صفوان بن معطل رضي الله عنه نه تپوس اوكړو.نوحضرت صفوان رضي الله عنه ورته تفصيلى صورتحال اوخودل.اوخپله صفائى ورته پيش كړه.ددې روايت نه معلوميږى.چه دده ښځه وه.نوبيا ددوى د وينا چه ((ما كشفت من كنف أنثى قط)) څنګه صحيح كيږى.ددې اشكال مختلف جوابونه وركړې شوى دى.

① ابوبكربزار رحمه الله فرمائى.چه دحضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه دا روايت منكر دې. ځكه چه دا روايت اعمش د ابوصالح نه د((عن))په صيغه سره نقل كړې دې.اود اعمش عنعنه مقبول نه ده.ځكه چه هغوى به تدليس كولو.خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلى دى.چه د ابن سعد رحمه الله په روايت كښې((عن أبي صالح)) په ځاې((سمعت أباصالح)) دى.دا د سماع تصريح ده.اواعمش داسې مدلس دې.چه كله دوى د سماع تصريح اوكړى.نومحدثين رحمهم الله ددوى روايت ته اعتبار وركوى.نود ابوبكر بزاردا وينا چه دا روايت منكر دې.اوپه دې كښې تدليس شوې دې. صحيح نه ده.[1]

علامه قرطبى رحمه الله دا جواب وركړې دې.چه دحضرت صفوان رضي الله عنه مراد دا وو.چه((ما كشفت من كنف أنثى قط على وجه الحرام)) چه ما په حرامه طريقه دچا ښځې پرده نه ده پرانستې.خو دعلامه قرطبى رحمه الله په دې جواب باندې اعتراض دې.چه دابوعوانه رحمه الله په روايت كښې داسې الفاظ راغلى دى.((ما كشفت من كنف أنثى قط على وجه الحلال وعلى وجه الحرام)) [2]

② امام بيهقى رحمه الله فرمائى.چه كومه واقعه ئې په بخارى كښې بيان كړې ده. نو دا د واده نه وړاندې وه.تردغه وخته پورې واده لا نه وو شوې.اود ابوداود واقعه روستنۍ دهغه وخت ده.چه واده شوې وو.نو څه تعارض نشته[3]

[1] )فتح البارى(٤٦٢/٨)_
[2] )فتح البارى(٤٦٢/٨)_
[3] )فتح البارى(٤٦٢/٨)_

**حضرت صفوان بن معطل رضى الله عنه:** دوى دمدينى منورې اوسيدونكې وو.خندق يا مريسيع ددوى اولنئ غزوه وه. په كوم كښې چه دوى شركت كړې وو.رسول الله ﷺ د دوى په باره كښې فرمائيلى وو.«ما علمت عليه إلا خيراً» ددوى د وفات په باره كښې مختلف اقوال دى. بعضو وئيلى دى.چه ددوى وفات د حضرت عمر رضي الله عنه په دورخلافت كښې شوې وو.ابن اسحاق ليكلى دى.چه دې په ۱۹ هجرئ كښې د آرمنيا په جهاد كښې شهيد شوې وو. بعضې حضراتو د وفات كال ۵۸ھ اوبعضو ۶۰ھ هم خودلې دې.(۱) والله اعلم.

[۳۹۱۳]حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ أَمْلَى عَلَيَّ هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ مِنْ حِفْظِهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ قَالَ لِي الْوَلِيدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ أَبَلَغَكَ أَنَّ عَلِيًّا كَانَ فِيمَنْ قَذَفَ عَائِشَةَ قُلْتُ لَا وَلَكِنْ قَدْ أَخْبَرَنِي رَجُلَانِ مِنْ قَوْمِكَ أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَأَبُو بَكْرِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ لَهُمَا كَانَ عَلِيٌّ مُسَلِّمًا فِي شَأْنِهَا فَرَاجَعُوهُ فَلَمْ يَرْجِعْ وَقَالَ مُسَلِّمًا بِلَا شَكٍّ فِيهِ وَعَلَيْهِ كَانَ فِي أَصْلِ الْعَتِيقِ كَذَلِكَ

**قوله:** حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ: دا عبدالله بن محمد مسندى دې.اوددوى كنيت ابوجعفردې.(۲)

په بنواميه كښې روستو داسې خلق راغلل.چه هغوى د حضرت على رضي الله عنه په شان كښې ادب اواحترام نه كولو.نودا وليدبن عبدالملك بن مروان د امام زهرى رحمه الله نه تپوس كوى.چه په حضرت عائشه رضي الله عنها باندې تهمت لګونكوكښې حضرت على رضي الله عنه هم شامل وو؟(۳) دامام زهرى رحمه الله جواب اوكړوئ.وې وئيل ماته داسې قسم څه خبر نه دې رارسيدلې.بلكه هم ستا د قوم دوو كسانو ابوسلمه بن عبدالرحمن او ابوبكربن عبدالرحمن ماته خودلى دى چه حضرت عائشې رضي الله عنها دې دواړو ته وئيلې وو.

**قوله:** كَانَ عَلِيٌّ مُسَلِّمًا فِي شَأْنِهَا: دا «مسلماً» اسم فاعل او اسم مفعول په دواړو طريقو سره لوستلې شوې دې. د اسم فاعل په باره كښې به ترجمه دا وى.چه حضرت على رضي الله عنه دحضرت عائشې رضي الله عنها په باره كښې چپوالې اختياركړې وو.په دې صورت كښې به ،،تسليم،، د سكوت په معنى كښې وى.(۴) اومطلب به دا وى.چه حضرت على رضي الله عنه د

---

(۱) الإصابة (۲\۹۱)_

(۲) عمدة القارى(۱۷\۲۰۹)_

(۳) وفى ترجمة الزهرى عن حلية الأولياء من طريق ابن عيينه عن الزهرى كنت عند الوليدبن عبدالملك فتلا هذه الآية ﴿ والذى تولى كبره منهم له عذاب عظيم﴾ فقال نزلت فى على بن ابى طالب قال الزهرى أصلح الله الأمير ليس الأمركذلك ..أخبرنى عروة عن عائشة أنها نزلت فى عبدالله بن أبى بن سلول (فتح البارى(۷\۴۳۷)_

(۴) عمدة القارى(۱۷\۴۳۷)_

حضرت عائشې رضي الله عنها دبراءت ذكركولو.دتهمت نه بلكه چپ به وو.اود اسم مفعول په صورت كښې به معنى دا شى.چه«كان على رضي الله عنه سالماً من الخوض فى شأنها» يعنى د حضرت عائشې رضي الله عنها په باره كښې هغوى غورفكراوخوض نه كولو.دهغوى په نيزدا معامله داسې نه وه.چه په دې باندې سوچ اوكړې شى.اوپه دې كښې غور او فكر اوكړې شى.ځكه چه دحضرت عائشې رضي الله عنها براءت دغوراوفكرمحتاج نه وو.[1] يا «مسلماً» صيغه داسم مفعول د «محفوظاً» په معنى كښې ده.يعنى هغوى د تهمت لګولونه محفوظ وو.

عبدالرزاق د معمربن راشد نه د «مسلماً» په ځاې د «مسيئاً» لفظ نقل كړې دې.[2] په دې صورت كښې به معنى دا وى.چه حضرت على رضي الله عنه دحضرت عائشې رضي الله عنها په باره كښې د ګناه ارتكاب كونكې وو.ددې نه دا مطلب راوځى.چه حضرت على رضي الله عنه والعياذبالله په تهمت لګولوكښې دلچسپى اخستله.اودا «بداهةً» غلطه ده.ددې وجې امام بخارى د عبدالرزاق د روايت په ځاې د هشام بن يوسف روايت نقل كوى.اودعبدالرزاق د روايت ترديد كوى.

په حقيقت كښې بعضې ناصبيو بنو اميه ته د نزديكت په غرض دحضرت على رضي الله عنه دشان كمولو دپاره په دې روايت كښې تحريف كړې دې.او «كان على مسلماً فى شأنها» نه ئې «كان على مسيئاً فى شأنها» جوړ كړې دې.[3] خوامام زهرى رحمه الله غوندې جليل القدر محدث ددې تصحيف ترديد كوى.او وائى.چه دا لفظ هم «مسلمٌ» دې.د وړاندې روايت الفاظ دى.

**قوله**: فَرَاجَعُوْهُ فَلَمْ يَرْجِعْ وَقَالَ مُسَلِّمًا بِلَا شَكٍّ فِيهِ: يعنى خلقو امام زهرى ته مراجعت اوكړو.چه دا لفظ «مسلماً» دې اوكه «مسيئاً» دې.نوامام زهرى رحمه الله ددې نه سوا بل څه اونه وئيل.(يعنى دمسيئاً تائيد ئې اونكړو)اودوى اوفرمائيل.دا لفظ هم «مسلماً» دې.دكرمانى اوعينى رحمه الله مطابق دا مراجعت امام زهرى ته شوې وو. او د حافظ صاحب رحمه الله خيال دې.چه دهشام بن يوسف رحمه الله شاګردانودا مراجعت دهشام نه د تحقيق په غرض باندې كړې وو.

دغه شان د بادشاد وخت د رائې خلاف امام زهرى رحمه الله حق خبره بيان كړه. اوپه روايت كښې دتصحيف كونكو كسانو تصحيف ئې په نښه كړو.«فجزاه الله عنا وعن سائر المسلمين خير الجزاء»[4]

---

[1] )عمدة القارى(١٧\٢٠٩) وشرح الكرمانى(١٦\٦١)_

[2] )فتح البارى(٧\٤٣٧)_

[3] )عمدة القارى(١٧\٢١٠)_

[4] ) د وليد بن عبدالملك پشان د هشام بن عبدالملك رائې هم دا وه.چه په حضرت عائشه رضى الله عنها باندې الزام لګونكوكښې د تولو نه لوې كرداروالعياذبالله دحضرت على رضي الله عنه وو.هشام ته بوخل مشهور محدث سليمان بن يسار رحمه الله راغلو.هشام دهغوى نه تپوس اوكړو.سليمان! لږ خودا وښايه. چه د «والذى تولى كبره» مصداق څوك دې؟سليمان اووئيل.عبدالله بن ابى هشام بغيرڅه سوچ نه اووئيل.دروغ، ددې مصداق على (رضي الله عنه) دې.سليمان اووئيل..... [بقيه حاشيه په راروان مخ..

[٣٩١٢] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ قَالَ حَدَّثَنِي مَسْرُوقُ بْنُ الْأَجْدَعِ قَالَ حَدَّثَتْنِي أُمُّ رُومَانَ وَهِيَ أُمُّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَتْ بَيْنَا أَنَا قَاعِدَةٌ أَنَا وَعَائِشَةُ إِذْ وَلَجَتْ امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَتْ فَعَلَ اللَّهُ بِفُلَانٍ وَفَعَلَ فَقَالَتْ أُمُّ رُومَانَ وَمَا ذَاكَ قَالَتْ ابْنِي فِيمَنْ حَدَّثَ الْحَدِيثَ قَالَتْ وَمَا ذَاكَ قَالَتْ كَذَا وَكَذَا قَالَتْ عَائِشَةُ سَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ نَعَمْ قَالَتْ وَأَبُو بَكْرٍ قَالَتْ نَعَمْ فَخَرَّتْ مَغْشِيًّا عَلَيْهَا فَمَا أَفَاقَتْ إِلَّا وَعَلَيْهَا حُمَّى بِنَافِضٍ فَطَرَحْتُ عَلَيْهَا ثِيَابَهَا فَغَطَّيْتُهَا فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا شَأْنُ هَذِهِ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَخَذَتْهَا الْحُمَّى بِنَافِضٍ قَالَ فَلَعَلَّ فِي حَدِيثٍ تُحُدِّثَ بِهِ قَالَتْ نَعَمْ فَقَعَدَتْ عَائِشَةُ فَقَالَتْ وَاللَّهِ لَئِنْ حَلَفْتُ لَا تُصَدِّقُونِي وَلَئِنْ قُلْتُ لَا تَعْذِرُونِي مَثَلِي وَمَثَلُكُمْ كَيَعْقُوبَ وَبَنِيهِ وَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَى مَا تَصِفُونَ قَالَتْ وَانْصَرَفَ وَلَمْ يَقُلْ شَيْئًا فَأَنْزَلَ اللَّهُ عُذْرَهَا قَالَتْ بِحَمْدِ اللَّهِ لَا بِحَمْدِ أَحَدٍ وَلَا بِحَمْدِكَ [ر: ٢٢٥٣]

**قوله**: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ: دابوعوانه نوم وضاح بن عبدالله يشكرى دې.(١)

**قوله**: اذ وَلَجَتْ امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ.. قالت ابْنِي فِيمَنْ حَدَّثَ الْحَدِيثَ: دلته اشكال كيږى.چه دافك خبروكونكوكښې يوپه انصاروكښې حسان بن ثابت رضی الله عنه وو.اوبل عبدالله بن ابى منافق وو.اوپه دوى كښې ديوكس هم په دغه وخت كښې مور موجود نه وه.نوبيا دغه انصارى ښځې دا څنګه اووئيل.چه زما ځوى هم د افك خبرې كړې دى.ددې جواب دا وركړې شوې دې.چه ممكن ده د رضاعت د تعلق په وجه انصارى ښځې ورته خپل ځوې ونيلې وى.

په دې رضاعت باندې يوبل اشكال كيږى.چه دا روايت مسروق بن الاجدع د حضرت ام رومان رضی الله عنها نه نقل كوى.اومسروق بن اجدع تابعى دې.حالانكه د ام رومان وفات د نبى صلی الله علیه وسلم په ژوند كښې شوې وو.نوبيا دمسروق اجدع ملاقات دې سره څنګه شوې وو.نوخطيب بغدادى اونورو ځو حضراتو رحمهم الله دا روايت منقطع ګرځولې دې.

......بقيه حاشيه] ((أمير المؤمنين أعلم بما يقول)) په دې كښې امام زهرى رحمه الله راغلو.هشام دهغه نه هم دا تپوس اوكړو.((يا ابن شهاب من الذى تولى كبره ؟)) زهرى رحمه الله اوفرمائيل.عبدالله بن ابى هشام اووئيل ((كذبت)) ددې مصداق على (رضی الله عنه) دې.امام زهرى رحمه الله ورته څه ښه جواب وركړو.وې فرمائيل.((أنا أكذب لاأبا لک والله لونادى مناد من السماء إن الله أحل الكذب ما كذبت)) تباه نشې.زه دروغ وايم.په الله قسم كه ځوك دآسمان نه دا آواز اوكړى.چه الله تعالى دروغ ونيل حلا ل كړل.نو بيا به هم زه دروغ اونه وايم.(فتح البارى(٢٣٧/٧)

(١)عمدة القارى(١١٧/٢١٠)_

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه خصیب بغدادی او نورو حضراتو چه په دې روایت باندې د انقطاع کوم حکم لګولې دې.دا په حقیقت کښې د واقدی په کلام باندې مبنی دې.چه هغوی وئیلی دی.د ام رومان وفات د نبی ﷺ په ژوند کښې شوې وو.اوواقدی ددې درجې سړې نه دې.چه دهغه په وجه صحیح روایات معلول اوګرځولی شی.نو په روایت باندې د انقطاع حکم قابل قبول نه دې.ددې وجه دا ده.چه امام بخاری رحمه الله په تاریخ کبیر اوتاریخ اوسط کښې نقل کړی دی.چه دام رومان وفات په ۱۵ھ کښې شوې وو.نو که مسروق تابعی دې.هم دده ملاقات د ام رومان سره کیدې شی.(۱)

[۴۱۴۴] حَدَّثَنِي يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ نَافِعِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا كَانَتْ تَقْرَأُ إِذْ تَلِقُونَهُ بِأَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُولُ الْوَلْقُ الْكَذِبُ قَالَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ وَكَانَتْ أَعْلَمَ مِنْ غَيْرِهَا بِذَلِكَ لِأَنَّهُ نَزَلَ فِيهَا [ر:۴۲۴۷]

**قوله**: يَحْيَى....:دا یحی بن جعفر بن اعین دې.ابوزکریا ئې کنیت دې.اود بخارا بیکند اوسیدونکې وو.(۲)

**قوله**: عَنْ نَافِعِ بْنِ عُمَرَ:دا نافع دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما خوې نه دې.بلکه دوی د عمربن عبدالله حجمی قریشی خوې دې.(۳)

د قرآن شریف آیت ﴿إِذْ تَلَقَّوْنَهُ بِأَلْسِنَتِكُمْ﴾ کښې مشهور قراءت ((تَلَقَّوْنَهُ)) د قاف په تشدید سره دې.خوحضرت عائشې رضی الله عنها به دا ﴿تَلِقُونَهُ﴾ په تخفیف وئیل.اوفرمائیل به ئې چه د ..ولق.. معنی دروغ ده.دآیت معنی به شی. کله چه تاسو خپلو ژبو باندې دا دروغ خبره کوله.ابن ابی ملیکه به فرمائیل. چونکه دا آیت د حضرت عائشې رضی الله عنها په حق کښې نازل شوې دې.ددې وجې هغوی ته ددې په باره کښې زیات علم وو.نوکه هغوی دا ﴿تَلِقُونَهُ﴾ وئیلی وی.نوهم ټیک او صحیح ده.(۴)

---

(۱) اوګورئ فتح البارى(۸۱۷/۳) علامه ابن القيم رحمه الله هم په زاد المعاد کښې دا خبره راجحه کړې ده.چه دام رومان وفات د نبی دوفات نه پس شوې دې.(زادالمعاد(۳/۲۶۶و ۲۶۸)_

(۲) عمدة القارى(۲۱۱/۱۷)_

(۳) عمدة القارى(۲۱۱/۱۷)_

(۴) دحضرت عائشې رضی الله عنها قراءت ټیک اوصحیح خومخامخا دې.خوراجح مشهور قراءت دې.باقی د ابن ابی ملیکه رحمه الله دا قول چه دا آیت د حضرت عائشې رضی الله عنها په باره کښې نازل شوې دې.نوددې د قراءت په باره کښې به هغې ته زیات علم وی.دا څه قوی خبره نه ده.ځکه چه د حضرت عائشې رضی الله عنها په باره کښې ددې آیت نزول دې خبرې لره مستلزم نه دې.چه دهغوی علم به هم د دې آیت په باره کښې زیات وی.مولانا رشید احمد ګنګوهی رحمه الله فرمائی((قوله لأنه نزل فيها)) وأنت تعلم أن نزولها فيها لايستلزم مزية فى علمها بها) اوګورئ لامع الدرارى (۳۳۷/۸)_

[٣٩١٣] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ ذَهَبْتُ أَسُبُّ حَسَّانَ عِنْدَ عَائِشَةَ فَقَالَتْ لَا تَسُبَّهُ فَإِنَّهُ كَانَ يُنَافِحُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَتْ عَائِشَةُ اسْتَأْذَنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هِجَاءِ الْمُشْرِكِينَ قَالَ كَيْفَ بِنَسَبِي قَالَ لَأَسُلَّنَّكَ مِنْهُمْ كَمَا تُسَلُّ الشَّعَرَةُ مِنَ الْعَجِينِ وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ فَرْقَدٍ سَمِعْتُ هِشَامًا عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَبَبْتُ حَسَّانَ وَكَانَ مِمَّنْ كَثَّرَ عَلَيْهَا [ر:٣٣٣٨]

حضرت هشام دخپل پلارحضرت عروه رحمه الله نه نقل كوى.چه هغوى اوفرمائيل .ما د حضرت عائشي رضي الله عنها سره د حسان بن ثابت رضي الله عنه په باره كښې غلطې خبرې شروع كړې.نوحضرت عائشي رضي الله عنها اوفرمائيل.ته د هغه په باره كښې بد رد مه وايه.ځكه چه هغوى به د نبى ﷺ د طرفه دفاع كوله.يوخل هغوى د نبى ﷺ نه د مشركانو دهجوې بيانولواجازت اوغوستلو. نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.زما د نسب سره به څه كوې؟ ځكه چه د قريشو د ټولو بطونو او شاخونو سره زما رشته دارياني دى. په دې باندې حضرت حسان بن ثابت رضي الله عنه اووئيل.

**قوله**: <u>قَالَ لَأَسُلَّنَّكَ مِنْهُمْ كَمَا تُسَلُّ الشَّعَرَةُ مِنَ الْعَجِينِ</u>: زه به تاسو د هغوى نه داسې اوباسم.لكه څنګه چه د اوړو نه ويخته ويستلې شى.

يعنى څنګه چه د اوړو نه ويخته اوباسى.اوپه ويخته باندې د اوړو څه اثرنه وى.دغه شان به زه تاسوددغه هجويه اشعارونه پاك اوباسم.چه په تاسوبه ددغه هجوې اومذمت څه اثرنه وى.

**حضرت حسان بن ثابت رضى الله عنه**: حضرت حسان بن ثابت رضي الله عنه يوجليل القدرصحابى رضي الله عنه دې.د دوى تعلق د انصارو د خزرج قبيلې سره وو.حافظ ابن حجر رحمه الله په ((الإصابة)) كښې د ابو عبيده رحمه الله قول نقل كړې دې.چه هغوى فرمائيل.((فضل حسان بن ثابت رضي الله عنه على الشعراء بثلاث كان شاعر الأنصار فى الجاهلية وشاعر النبى ﷺ فى أيام النبوة وشاعر اليمن كلها فى الإسلام)) [1]

د نبى ﷺ دوفات نه پس يوځل دوى په مسجد نبوى كښې ناست وو. او اشعار ئې وئيل. حضرت عمر رضي الله عنه راغلو.هغوى ده ته په غصه كښې اوكتل.او وې وئيل. ((أوفى مسجد رسول الله ﷺ تنشد الشعر)) ته په مسجد نبوى كښې اشعار وابې. حضرت حسان بن ثابت رضي الله عنه ورته جواب وركړو.((قد كنت أنشد وفيه من هو خير منك)) يعنى ما به په مسجد نبوى كښې اشعار وئيل.اوپه دې كښې ستانه غوره انسان (نبى ﷺ) تشريف فرما وو.نبى كريم ﷺ د دوى دپاره په مسجدنبوى كښې يومنبر جوړ كړې وو.دوى به په هغې باندې كيناستل.اودمكې دمشركانو د قصيدو جواب به ئې وركولو.اونبى ﷺ به ددوى دپاره دعا كوله.((اللهم أيده بروح القدس)) [2]

---

[1] )الإصابة فى تميز الصحابة (٣٦٢/١)_

[2] )الإصابة فى تميز الصحابة (٢٢٦/١)_

حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه د مکې دمشرکانوښه مذمت کړې دې.اوهغوی په خپلو اشعارو کښې ددوی په ډیربلیغ انداز سره د هغوی هجو بیان کړې ده.اوکمال دا وو.چه په نبی ﷺ باندې ددغه هجو اومذمت سیورې هم نه وې لګیدلې.د دوی د تره خوې ابوسفیان بن حارث بن عبدالمطلب وو.دهغه د نبی ﷺ سره په ورکوتوالی اوځوانۍ کښې ښه دوستانه وه.خو کله چه نبی ﷺ د نبوت اعلان اوکړو.نوهغه د نبی ﷺ په آزارولوپسې شو.اوچونکه شاعروو. ځکه به ئې دنبی ﷺ په شان کښې د مذمت او هجو اشعار وئیل.هغه د ډیر تکلیف رسولو نه روسته د مکې د فتحې په موقع باندې مسلمان شو.اوبیا هغه د خپلو ټولو کوتاهیانو او غلطیانو تلافی اوکړه.([1])

حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه یوځل دهغه هجو اوکړه.د هغه په هجو کښې ګرانه دا وه.چه هغه د نبی ﷺ د تره خوې وو.دشاعرکار دا وی.چه کله هغه دچا هجو او مذمت کوی.نوبیا پلار نیکه ټول راګیروی.کله چه حسان بن ثابت رضی الله عنه د ابوسفیان د هجویه قصائدو جواب ورکولو. نو ددې خبرې ضرورت وو.چه دهغه هجو هم اوشی.اوپه نبی ﷺ باندې هم څه اثر پرېونځی.دا ډیرګران کار وو.خوحضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه هم دغه شان اوکړو.او وې خودل.

وإن سنام المجد من آل هاشم بنوبنت مخزوم ووالدك العبد

ومن ولدت أبناء زهرة منكم كرام ولم يقرب عجائزك المجد

① بیشکه ډیرعزت او شرافت په بنوهاشم کښې بنو بنت مخزوم ته حاصل دې. او اې ابوسفیان ستا پلار غلام دې.

② اودزهره اولاد ته نه ئې زیږولې.ځکه چه هغه خو شریفان خلق وو.خوستاسو بوډیګانو (امهات) دغه بزرګی مسه کړې هم نه ده.

د بنومخزوم نه د نبی ﷺ نیا فاطمه بنت عمروبن عائذبن عمران بن مخزوم مراد دې.کومه چه د نبی ﷺ د پلارحضرت عبدالله اوابوطالب مور وه.حضرت حسان فرمائی.چه په شرافت اوبزرګی په بنومخزوم یعنی فاطمې په اولاد کښې ده.اوابوسفیان بن حارث ته ئې اووئیل.((ووالدك العبد)) په حقیقت کښې دابوسفیان پلارحارث دهغه د مور نوم ،،سمیه،، وو. دهغه د ،،موهب،، لور وه.موهب د بنوعبدمناف غلام وو.نودغه شان د ابوسفیان د پلار په نسب کښې غلامی موجود ده.په ((ووالدك العبد)) سره حضرت حسان رضی الله عنه دغه طرف ته اشاره کوی.پخپله د ابوسفیان د مور هم دا حال وو.چه دهغې پلار (دابوسفیان دمور دطرفه نیکه) غلام وو.دغه شان د ابوسفیان په ماماګانواوترونو دواړو کښې د غلامۍ ذکر دې.

حضرت حسان رضی الله عنه په خپل قول ((ولم يقرب عجائزك المجد)) کښې هم دا مراد ده.چه ستا ماماګانو اوترونوته نزدې هم بزرګی اوشرافت نه دې تیرشوې.اود نبی ﷺ د ماماګانوتعلق د ،،بنوزهره،، سره دې.اوبنو زهره ټول احراراو آزاد وو.ددې وجې د هغوی ټول اولاد کرام دی.

[1] )وړاندې د فتحې مکې په موقع به ددوی تذکره راشی.)~

اود بزرګئ په صفاتوباندې متصف دی.([1])
ليکلی شوی دی.چه کله ابوسفيان بن حارث په خپله هجوه کښې دا قصيده واوريده.نو وې وئيل.((هذا شعرلم يغب عنه ابن ابي قحافة)) ([2])يعنی دا قصيده هم د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په موجودګئ کښې وئيلې شوې ده.ځکه چه حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د قريشود نسبونو لوئ عالم وو.اوحضرت حسان رضی الله عنه ته نبی صلی الله عليه وسلم فرمائيلی وو.دمکې د قريشوپه باره کښې چه شعر وائې.نود حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه د انسابو تحقيق کوه.
دحضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه د وفات په کال کښې روايات مختلف دی.په بعضې رواياتو کښې ددوی دوفات کال ۴۰ھ خودلې شوې دې.اوپه بعضوکښې ۵۰ھ اوپه بعضو کښې ۵۴ ھ خودلې شوې دې.([3]) حافظ ابن حجر رحمه الله په ((الإصابة)) کښې ليکلی دی.چه د دوی يوسل اوشل کاله عمروو.([4])

[۳۹۱۵]حَدَّثَنِي بِشْرُبْنُ خَالِدٍأَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍعَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ دَخَلْنَا عَلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وَعِنْدَهَا حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ يُنْشِدُهَا شِعْرًا يُشَبِّبُ بِأَبْيَاتٍ لَهُ وَقَالَ

حَصَانٌ رَزَانٌ مَا تُزَنُّ بِرِيبَةٍ　　　وَتُصْبِحُ غَرْثَى مِنْ لُحُومِ الْغَوَافِلِ

فَقَالَتْ لَهُ عَائِشَةُ لَكِنَّكَ لَسْتَ كَذَلِكَ قَالَ مَسْرُوقٌ فَقُلْتُ لَهَا لِمَ تَأْذَنِينَ لَهُ أَنْ يَدْخُلَ عَلَيْكِ وَقَدْ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى وَالَّذِي تَوَلَّى كِبْرَهُ مِنْهُمْ لَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ فَقَالَتْ وَأَيُّ عَذَابٍ أَشَدُّ مِنْ الْعَمَى قَالَتْ لَهُ إِنَّهُ كَانَ يُنَافِحُ أَوْ يُهَاجِي عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[ر:۳۳۷۷و۳۳۷۸]

حضرت مسروق فرمائی.چه حضرت عائشې رضی الله عنها ته ورغلم.هلته حضرت حسان رضی الله عنه موجود وو.اوحضرت ام المومنين رضی الله عنها ته ئې اشعار وئيل.هغه د تشبيب اشعار وئيل.دتشبيب اشعار هغه وی.کوم چه دقصيدې په اول کښې شاعر وائی.په هغې کښې دمحبوب دحسن اوجمال اودخوانئ دمحبت قصې وی. نوحضرت حسان رضی الله عنه دتشبيب اشعار وئيل.دا شعر ئې اووئيل.

حَصَانٌ رَزَانٌ مَا تُزَنُّ بِرِيبَةٍ　　　وَتُصْبِحُ غَرْثَى مِنْ لُحُومِ الْغَوَافِلِ

د((حصان)) معنی عفيف اوپاکدامن ده.

((رزان)) باوقارته وائی.((إمرأة رزان)) باوقاره ښځه.

[1] )دذکرشوی تفصيل دپاره اوګورئ شرح نووی علی صحيح مسلم (۳۰۰) باب فضائل حسان بن ثابت رضی الله عنه)-
[2] )شرح ديوان حسان بن ثابت الانصاری رضی الله عنه لعبدالرحمن البرقوقی (ص.۲۱۷)_
[3] )الإصابة فی تميزالصحابة(۱/۳۲۶)_
[4] )الإصابة فی تميزالصحابة (۱/۳۲۶)_

د ((غرثى)) معنى ((جائعة)) ده.

دشعرمعنى ده.زما محبوبه پاكدامن او ډيره باوقارده.په هغې باندې څه شك اوشبهې تهمت نشي لګولې.اوهغه صبا كوى په داسې حال كښې چه هغه وږې وى. د بې خبره ښځو د غوښې نه،يعني كومې ښځې چه د زنا اود اسبابود زنانه بې خبره وى.هغه د دغه ښځوغيبت نه كوى.

حضرت صديقه رضي الله عنها چه دا شعرواوريدو.نوحضرت حسان رضي الله عنه ته ئې اووئيل.ته خوداسې نه ئې. (ځكه چه حضرت حسان رضي الله عنه په حضرت عائشه رضي الله عنها باندې تهمت لګونكو كښې شامل شوې وو)

حضرت مسروق وائى.ما حضرت عائشې رضي الله عنها ته عرض اوكړو.((لم تأذن له أن يدخل عليك)) ته ده خپل ځاې ته د راتلو اجازت ولې وركوې؟ حالانكه الله تعالى فرمائيلى دى.﴿وَالَّذِىْ تَوَلّٰى كِبْرَهٗ مِنْهُمْ لَهٗ عَذَابٌ عَظِيْمٌ۝﴾ په دې باندې حضرت عائشې رضي الله عنها اوفرمائيل.((وأى عذاب أشد من العمى)) د نابينا كيدونه بل عذاب سخت شته.حضرت حسان رضي الله عنه په آخرى عمركښې نابينا شوې وو.

دحضرت عائشې رضي الله عنها دا جواب على سبيل التنزل دې.ځكه چه د﴿وَالَّذِىْ تَوَلّٰى كِبْرَهٗ مِنْهُمْ لَهٗ عَذَابٌ عَظِيْمٌ۝﴾ مصداق عبدالله بن ابى دې.حضرت حسان رضي الله عنه نه دې.حضرت عائشې رضي الله عنها مسروق ته على سبيل التنزل جواب وركړو.بالفرض كه ستا خبره اومنلې شى.چه حضرت حسان رضي الله عنه د ﴿وَالَّذِىْ تَوَلّٰى كِبْرَهٗ مِنْهُمْ لَهٗ عَذَابٌ عَظِيْمٌ۝﴾ مصداق دې.نود ړوندوالى نه بل سخت بل كوم يوعذاب كيدې شى.([1])

## باب=غَزْوَةِ الْحُدَيْبِيَةِ

### وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾([2])

حافظ ابن حجر رحمه الله د كتاب الشروط په پنځم جلد كښې د غزوه حديبيه باندې ډيره تفصيل سره بحث كړې دې.ددې وجې دا ده.چه امام بخارى رحمه الله د غزوه حديبيه واقعه په كتاب الشروط كښې ډيره تفصيل سره بيان كړې ده.([3]) دې ته غزوه حديبيه اوعمرة الحديبيه وائى.دسفر ابداء د عمرې دپاره وه.ددې وجې ورته ((عمرة الحديبية)) وائى.اووړاندې دبيعة الرضوان واقعه راغله.اودجنګ نقشه جوړه شوه.ددې وجې دې ته ((غزوة الحديبية)) هم وائى.

د غزوه حديبيه تفصيل دا دې.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم خوب اوليدو.چه زه اوزما د صحابو رضي الله عنهم يوه ډله په امن سره مكې مكرمې ته داخل شو.اوعمره مو اوكړه.نبى صلى الله عليه وسلم چه كله دا خوب

---

[1] )لامع الدرارى (٤٣٨\٨)_

[2] )الفتح:١٨)_

[3] )حافظ ابن حجر رحمه الله تقريباً شل صفحو باندې مشتمله په حديث حديبيه باندې تفصيلى كلام كړې دې.اوګورئ لامع الدرارى (٣٥٢\٥) باب الشروط فى الجهادوالمصالحة مع أهل الحرب وكتابة الشروط)_

صحابو رضی الله عنهم ته بیان کړو.نوصحابه کرام رضی الله عنهم چه د وړاندې نه مکې مکرمې اود بیت الله په محبت کښې ددې خبرې خواهشمند وو.چه هلته لاړ شی.اوطواف اوعمره اوکړی.هلته تلوته لیواله شول.نو نبی ﷺ په یکم ذی قعده د ګل په ورځ ٦ھ صحابه کرام رضی الله عنهم خان سره واخستل اودعمرې په قصد باندې دمکې مکرمې طرف ته روان شول.(١) هشام بن عروه د شوال په میاشت کښې ددوی روانیدل ذکرکړی دی.(٢) خودا صحیح نه ده.صحیح قول اولنې دې.

دنبی ﷺ سره څومره صحابه کرام رضی الله عنهم وو.په دې باره کښې روایات مختلف دی. د دیارلس سوو نه واخله تراتلس سوو پورې تعدادمنقول دی.په خپله په بخاری کښې دحضرت جابربن عبدالله رضی الله عنه په روایت کښې څوارلس سوه اود حضرت عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه په روایت کښې ددیارلس سوو عدد منقول دې.البته مشهور قول د څورلسو سوو دې.

چه ذوالحلیفه ته اورسیدل.نواحرام ئې اوتړل.اوبسربن سفیان رضی الله عنه دوی جاسوس جوړ کړو.او وړاندې ئې اولیږل.چه هغه د قریشو دحالاتو خبر واخلی. او مونږ ته اوښائی.چه په هغوی باندې زمونږ ددې سفر ردعمل څه دې؟ کله چه دی «غدیراشطاط» ته اورسیدل.نو بسربن سفیان رضی الله عنه راغلو.نو نبی ﷺ ته ئې د قریشو دلښکرجمع کولوخبر ورکړو.چه هغوی دا فیصله کړې ده.چه تاسودمکې مکرمې داخلیدو ته نه پریږدی.(٣) قریشو دمقدمة الجیش په توګه خالدبن ولید ته د دوو سوو کسانو دسته ورکړه.اومسلمانانوطرف ته ئې راولیږل. خالدبن ولید چه کله مقام غمیم ته راورسیدو.نو نبی ﷺ ته دهغه د راتلوعلم اوشو.نو نبی ﷺ هغه لاره پریخوده.اوپه بله لار باندې ئې سفر شروع کړو.

مکې مکرمې ته نزدې چه یوځاې ته نبی ﷺ اورسیدل.نوهلته د نبی ﷺ اوښه ،،قصوا،، کیناستله.دهغې دپاسولوډیر کوشش اوکړې شو.خو هغه دخپل ځاې نه نه پاسیده. صحابو رضی الله عنهم اووئیل.«خلأت القصواء، خلأت القصواء»یعنی قصواء لټه شوه .نبی ﷺ اوفرمائیل.«ماخلأت القصواء وماذاك لها بخلق ولکن حبسها حابس الفیل» (٤) د دې نه پس نبی ﷺ اوفرمائیل.په الله قسم زه به د قریشو هره هغه خبره منم.په کومه کښې چه د حرم تعظیم وی.ددې نه پس ئې قصواء پاسوله.نوهغه پاسیده.اوروانه شوه.اوپه حدیبیه کښې نبی ﷺ قیام اوکړو.(٥)

په حدیبیه کښې یوکوهې وو.په هغې کښې لږې غوندې اوبه وې.هغه د مسلمانانوپه اولنی استعمال سره ختمې شوې وې.اوبه کمې شوې.اودسختې ګرمئ زمانه وه.صحابو رضی الله عنهم نبی ﷺ ته د اوبود کم والی شکایت اوکړو.نبی ﷺ دخپل ترکش نه یوغشې راوویستهٔ،

---

(١) البدایة والنهایة (١٦٤\٤) وسیرة الحلبیة(٩\١٣)_

(٢) البدایة والنهایة (١٦٤\٤) وسیرة الحلبیة(٩\١٣)_

(٣) عدة القاری(٢٢٥\١٧)_

(٤) زادالمعاد(٢٨٩\٤) ودلائل النبوة بیهقی (١٠٠\٤)_

(٥) صحیح بخاری کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد رقم الحدیث (٢٢٣١)_

اووې فرمائیل.دا په دې کوهی کښې بنخ کړئ. صحابوﷺ د حکم تعمیل اوکړو.دهغې په وجه په دغه کوهی کښې دومره اوبه راغلې.چه ټول خلق هډوب شول.(۱)

دحدیبیه نه حضرت خراش بن امیه خزاعیؓ نبی دمکې خلقوته اولیږل.چه لاړ شه.هغوی ته اووایه.مونږ صرف دعمرې دپاره راغلی یو.جنګ کول زمونږ مقصود نه دې.دنبیﷺ مطلب دا وو.چه په بیت الله باندې خو د چا اجاره داری نه ده.آخرټول عرب راځی.حج اوعمره کوی.نوکه مونږ هم دعمرې دپاره راغلو.نود منع کولوڅه وجه ده؟ خراش بن امیهؓ چه مکې ته لاړل.نو قریشو دهغه اوښ ذبح کړو.اودهغه قتلول ئې اوغوښتل.خویه مینځ کښې څه کسانو بچ بچاؤ اوکړو. اوهغه ئې خلاص کړو.هغه په څه طریقه باندې اووتل.اونبیﷺ ته اورسیدل.ټوله واقعه ئې ورته بیان کړه.(۲)

ددې نه پس نبیﷺ حضرت عمرؓ مکې مکرې ته لیږل اوغوښتل.خوحضرت عمرؓ معذرت پیش کړو.اووې فرمائیل.یارسول الله د مکې دخلقو چه زما سره کوم بغض او دشمنی ده.هغه تاسوته معلومه ده.اوپه مکه کښې زما داسې څوک رشته دار نشته.چه هغه سره زه پناه واخلم.که حضرت عثمانؓ تاسو اولیږئ.نو زیاته غوره به وی.ځکه چه په مکه کښې دهغوی ډیرخپلوان دی.نبیﷺ حضرت عثمانؓ ته پیغام ورکړو.او وې لیږلو.(۳)

حضرت عثمانؓ تشریف یوړو.اوپه مکه کښې د ابان بن سعید سره ډیره شو.دقریشوسره ئې خبره اوکړه.خوقریش د نبیﷺ مکې معظمې ته په داخلیدو باندې راضی نشو.البته هغوی حضرت عثمانؓ ته اووئیل.که ته غواړې.نو طواف کولې شې.خوحضرت عثمانؓ ورته اووئیل .زه دنبیﷺ نه بغیرطواف نه کوم. قریشو حضرت عثمانؓ په مکه کښې ایسار کړو.اوعام طوردا خبرمشهور شو.چه هغه شهید کړې شو.(۴)

**بیعت رضوان**: نبیﷺ ته چه کله دا خبر اورسیدو.نونبیﷺ ډیر خفه شو.اووې فرمائیل. د حضرت عثمانؓ د وینې قصاص اخستل ضروری دی.دا ئې اووئیل.اوهلته د کیکر دیوې وونې لاندې کیناستو.اونبیﷺ دصحابوﷺ نه دځان قربانولوبیعت واخستلو. ټولو صحابوﷺ ډیر په جوش او جذبې د نبیﷺ سره بیعت اوکړو.اودا عهد ئې اوکړو.چه ترڅو پورې په بدن کښې ساه وی.مونږ به د کافرانو سره جهاد اوقتال جاری ساتو.دا داسلامی

---

(۱) دلائل النبوة للبیهقی (۱۱۲\۴) باب ما ظهر فی البئر التیٔ دعا فیها رسول اللهﷺ وهی الحدیبة ممن دلالات النبوة)_

(۲) طبقات ابن سعد(۹۶\۲)_

(۳) سیرة ابن هشام (۳۲۹\۳)_

(۴) سیرة ابن هشام (۳۲۹\۳) بعضې صحابوﷺ په حدیبیه کښې رسول اللهﷺ ته اووئیل.چه حضرت عثمانؓ چه مکې ته لاړو.نوهغه به طواف کړې وی.نبیﷺ اوفرمائیل.نه عثمان به زمونږ نه بغیرطواف اونکړی.کله چه حضرت عثمانؓ د مکې نه حدیبیه ته راغلو.نو صحابوﷺ ترې پوښتنه اوکړه.چه ته طواف اوکړو.دوی ورته اوفرمائیل.که زه تریوکاله پورې په احرام کښې باقی پاتې وم.هم به ما د رسول اللهﷺ نه بغیر طواف نه ووکړې.(السیرة الحلبیة (۱۶\۳)_~

تاريخ يوه لويه واقعه ده.دټولونه وړاندې ابوسنان اسدي رضي الله عنه بيعت اوکړو.(۱) کله چه ټول صحابه رضي الله عنهم دبيعت نه فارغ شول.نو نبي ﷺ خپل ښي لاس په ګس لاس باندې کېخودو. اووې فرمائيل.دا بيعت عثمان د طرفه دې.(۲)

دحضرت عثمان رضي الله عنه په مکه کښې د ايسارولووجه دا وه.چه قريشوخپل پنځوس کسان په دې سازش باندې لګيا کړي وو.چه هغوی نبي ﷺ ته نزدې ورشي. اوچه موقع ورته ملاو شي.نو(معاذالله) نبي ﷺ قتل کړي.دا کسان په دې انتظار کښې ناست وو.چه دنبي ﷺ محافظ حضرت محمدبن مسلمه رضي الله عنه هغه ټول ګرفتار کړل.اود نبي ﷺ په خدمت کښې ئې پيش کړل.هلته چه قريشو ته دخپلو پنځوسو کسانود ګرفتارئ خبرملاو شو.نوهغوی حضرت عثمان رضي الله عنه ايسارکړو.

درسول الله ﷺ دصحابو رضي الله عنهم نه د بيعت اخستلو خبر چه کله قريشوته اوشو. نو هغوی ډيرمرعوبه شول.اومصالحت اومفاهمت طرف ته مائيله شول.(۳) د خزاعه قبيلې سردار دخپلې قبيلې څوکسان ځان سره واخستل.اود نبي ﷺ په خدمت کښې حاضر شول. بنوخزاعه قبيله اګرچه تراوسه پورې اسلام نه وو قبول کړې.خود اسلام اومسلمانانو خيرخواه وه.دمکې مشرکانوچه به د مسلمانانوخلاف کومې منصوبې اوسازشونه جوړول.ددې قبيلې کسانوبه نبي ﷺته دهغې خبرورکولو.بديل بن ورقاء نبي ﷺ ته عرض اوکړو.چه دمکې قريش پوره طاقت سره دمقابلې دپاره راوتلي دي .اوهغوی اخوا ديخوا چه د اوبوځومره چينې دي.په هغې باندې قبضه کړې ده.هغه خلق به هرګز تاسو د مکې معظمې داخليدو ته پرې نږدي.نبي ﷺ ورته اوفرمائيل .چه مونږ چا سره دجنګ په اراده نه يو راغلي.مونږ صرف دعمرې په نيت راغلي يو.څوجنګونو قريش کمزوري کړي دي.که دوی غواړي.نودځه

---

(۱) دلته دا اشکال کيږي.چه دا بيعت د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت خبر ورکولوباندې شروع شوې وو.چه د قريشوکافرانونه به د هغوی قصاص اخستې شي.نوبيا دحضرت عثمان رضي الله عنه دطرفه نبي ﷺ څنګه بيعت اوکړو.څکه چه بيعت خود ژوندی دطرفه کيږي.دمړي د طرفه خوممکن نه وي،،
ددې جواب علامه حلبي رحمه الله دا ورکړې دې.چه دحضرت عثمان رضي الله عنه دطرفه نبي ﷺ په هغه وخت کښې بيعت اخستې وو.کله چه نبي ﷺ ته دا معلومه شوه.چه د حضرت عثمان رضي الله عنه دشهادت خبر صحيح نه وو.اوهغه ژوندې دې،،
خوبيا اشکال واردېږي.چه ددې بيعت سبب د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت خبر ملاويدو نه پس دهغه قصاص اخستل وو.نوهرکله چه دا تصديق اوشو.چه هغه ژوندې دې.نوبيا دحضرت عثمان رضي الله عنه دطرفه په کوم څيزباندې بيعت اخستې شو،،
علامه حلبي رحمه الله فرمائي.چه ددې بيعت سبب صرف دحضرت عثمان قصاص اخستل نه وو.بلکه دحضرت عثمان رضي الله عنه سره لس صحابه رضي الله عنهم هم مکې ته تلي وو.اودهغوی په باره کښې هم دا خبر ملاو شوې وو.چه هغوی هم شهيدان کړې شوي دي.دهغوی قصاص اخستل هم په دې بيعت کښې شامل وو.کله چه نبي ﷺ ته دا خبر ملاو شو.چه حضرت عثمان رضي الله عنه ژوندې دې.نودحضرت عثمان رضي الله عنه د طرفه نې دهغه دملګرو قصاص دپاره بيعت واخستلو.والله اعلم (السيرة الحلبية (۱۷۱۳))_~
(۲) السيرة الحلبية (۱۹۱۳)_
(۳) السيرة الحلبية(۱۹۱۳)_

مودې پورې به دوی سره صلح اوکړو.اومونږ او نور عرب دې پرېږدی.که نور عرب په مونږ باندې غالب راشی.نو دوی به په خپل کورناست وی.اومراد به ئې پوره شی.اوکه مونږ ته غلبه حاصله شوه.نو دوی ته به اختیاروی.که اسلام قبلوی.اوکه مونږ سره جنګ کوی. اوپه دغه موده کښې به دوی خپل قوت جمع او مرتب کړی.خوکه قریش دا خبره نه منی.نوپه هغه ذات مې دې قسم وی.چه د هغه په قدرت کښې زما روح دې.چه زه به دوی سره ترهغه وخته پورې جهاد اوقتال کوم.ترڅو چه زما د تن نه سرقلم شوې نه وی.(۱)
بدیل د نبی ﷺ دخدمت نه پاسیدل.اوقریشو ته ورغلل.اود نبی ﷺ خبرد رسول ئې غوستل. د قریشوجذباتی ځوانانو خو اول دده دڅه خبرې اوریدو نه انکار اوکړو.خوسنجیده او باوقاره کسانو اووئیل.چه خبره اوریدل خو پکار دی.نو بدیل د نبی ﷺ د راتلو مقصد هغوی ته اوخودل. اودنبی ﷺ هغه خبره ئې ورته هم اوکړه. کومه چه قریشو سره دصلحې په باره کښې نبی ﷺ کړې وه.قریشو اووئیل.بیشکه هغه دجنګ په نیت باندې نه دې راغلې.خو مونږ هغه دمکې داخلیدو ته نه پرېږدو.(۲)
دثقیف قبیلې سردارعروه بن مسعود اووئیل.محمد (ﷺ) چه کومه خبره کړې ده.هغه ستاسود بهترئ اوخیګړې ده.دا قبوله کړئ.اوماته اجازت راکړئ.چه زه په دې باره کښې هغه سره خبره اوکړم.هغه د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو. او د هغوی پیغام ئې ورته اورسول.او ورته ئې اووئیل.بالفرض که ته د قریشو خاتمه هم اوکړې.نودا کومه ښه خبره ده.تا چرته اوریدلی دی.چه یوکس خپل قوم هلاك کړې دې.ددې په خلاف که د جنګ رخ بدل شو.اوقریشو ته غلبه اوشوه.نود ګیرچاپیره خوشی تشی چه ستا نه راجمع شوی دی.زیات وخت به لانه وی تیر چه دوی به تا پرېږدی.حضرت ابوبکر ﷺ ته د عروه په دې بدګمانئ باندې ډیره سخته غصه ورغله.اوعروه ته ئې کنځل اوکړل.«أمصص بظراللات نفرعنه وندعه» ته لاړ شه دخپل لات شرمګاه اوڅټه.مونږ به محمد ﷺ پرېږدو.او تختو به ترې او لات د ثقیف قبیلې د لوې بت نوم وو.د عربو په نیزد ډیره سخته ګنځل وه.عروه د نبی ﷺ نه تپوس اوکړو.چه دا څوك دې؟نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.دا ابوبکر ﷺ دې.عروه اووئیل .دده د دې سختې خبرې جواب به مې ضرور ورکړې وو.خو دده یواحسان په ما باندې دې.دکومې بدله چه تراوسه پورې ماورنکړې شوه.(۳)
عروه به د خبروپه دوران کښې د نبی ﷺ ږیرې ته لاس وراوړل.دا په بې تکلفانه خبرو کښې د عربو طریقه وه.دعروه وراره حضرت مغیره بن شعبه ﷺ ته د خپل تره دا جراءت ښه ښکاره نشو.چه دا پلیت لاس دې پاکې ږیرې ته اورسی.مغیره بن شعبه ﷺ به د تورې

(۱) سیرة ابن هشام (۳/۲۳۵)_
(۲) البدایة والنهایة (۱۶۶/۴)_
(۳) هغه احسان دا وو.چه حضرت ابوبکر ﷺ یوځل ددیت په سلسله کښې لس اوښان ورکړی وو. اود عروه مدد ئې کړې وو(فتح الباری(۳۴۰/۵)-~

لاسکې د عروه لاس ته وراوړل.چه دهغه لاس د نبی ﷺ ږیرې ته اونه رسی.حضرت مغیره چونکه په خود اوزغره کښې پټ وو.ددې وجې عروه هغه نه پیژندل.عروه تپوس اوکړو.دا څوك دې؟ اوخودلې شو ورته چه دا ستا وراره مغیره دې.عروه چه کله اوپیژندل.نو وې وئیل.اې غداره! تاته پته نشته.چه ما ستا دغدارئ تلافی کړې ده.
ددې واقعه داسې وه.چه دمقوقس بادشاه دربار ته حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه او څه نور کسان یوځاې لاړل.شاه مقوقس څه تحفې ورکړې.بادشاه دمغیره په نسبت دهغه ملګرو ته څه تحفې زیاتې ورکړې.حضرت مغیره رضی الله عنه په دې باندې ډیر په غصه شو.په واپسئ کښې ټول په یوځاې کښې ایسارشول.خوراك څکاك ئې اوکړو.اوشراب ئې ښه اوڅکل.حضرت مغیره رضی الله عنه په دغه موقع باندې ټول قتل کړل. اودهغوی مال ئې واخستل.مدینې کښې د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.نبی ﷺ ددوی اسلام خو قبول کړو.او مال ئې ورته واپس کړو. اووې وئیل.چه دا د غدر اودهوکې مال دې.ددغه مقتولینو فدیه عروه دخپل طرف نه ورکړه.عروه خپله جمله اووئیله. او غدار ئې ورته اووئیل.دغه طرف ته ئې اشاره اوکړه.
عروه بن مسعود دخپلو خبرو په دوران کښې په نبی ﷺ باندې د ملګرود خان قربانولومشاهده کوله.تردې که نبی ﷺ به لاړې توکلې.نوهغه به هم صحابو رضی الله عنهم په خپلو لاسونو باندې اخستلې.اوپه مخونو به ئې راښکلې.کله چه به نبی ﷺ اودس کولو.نوصحابه کرامو رضی الله عنهم به ورمنډه کړه.اوهغه اوبه به ئې واخستلې.اوپه خپلو مخونو به ئې مګلې.کله چه نبی ﷺ خبره شروع کوله.نو صحابه کرام رضی الله عنهم به خاموش شول.اوپه پوره توجه سره به نبی ﷺ ته متوجه شول.عروه چه کله په دربار رسالت نبوت کښې د آدابو اوقربانئ د آثار اوکتل.نوډیر متاثره شو.او چه واپس لاړلو.نو قریشو ته ئې اووئیل.
((یامعشرقریش إنی قد جئت کسری فی ملکه وقیصر فی ملکه والنجاشی فی ملکه وإنی والله ما رأیت ملکاً فی قومه قط مثل محمد فی أصحابه ولقد رأیت قوماً لا یسلمونه لشیء أبداً فروْا رأیکم)) [1]
اې قریشوزه د کسری اوقیصراونجاشی دربارونوته تلې یم.خوپه الله قسم چه ما هیڅ یو بادشاه په خپل قوم کښې داسې معزز نه دې موندې.څنګه چه محمد (ﷺ) په خپلو ملګرو کښې معزز دې.ماهغه سره داسې قوم اولیدو.چه هغوی به هغه په هیڅ حالت کښې یواځې پرې نږدی.نوتاسو سوچ اوکړئ.اوفیصله اوکړئ.
ددې نه پس د قریشو حلیف یوحبشی سردار حلیس بن علقمه هم اوغوښتل .چه د نبی ﷺ سره ملاقات اوکړی.او اوګورئ چه دهغوی څه اراده ده.دې خلقو به د قربانئ دځاروو ډیر تعظیم کولو.اونبی ﷺ ته معلومه وه.کله چه نبی ﷺ اوکتل.چه حلیس راځی.نو صحابو رضی الله عنهم ته ئې اوفرمائیل.چه دقربانئ ځاروی کوم چه تاسو د مدینې منورې نه راوستی دی.ټول په قطار کښې اودروئ.حلیس چه کله د قربانئ ځاروی په قطارکښې اولیدل.نود نبی ﷺ سره دملاویدو نه بغیر د لارې نه واپس شو.اوقریشو ته ئې اووئیل.په الله قسم هغه خلق خو

[1] البداية والنهاية (۱۶۸/۴)_

دعمرې ادا کولو په نیت باندې راغلی دی.دهغوی سره د قربانۍ څاروی موجود دی.دوی مکې ته د داخلیدو نه هرګز منع کول نه دی پکار.بعضې کسانوهغه ته اوونیل.چه ته حبشي اوځنګلي سړې ئې.په خبره نه پوهیږې.هغه غریب چونکه حبشي وو.ځکه د قریشو مغروره خلقودهغه بې عزتي اوکړه.حلیس هغوی ته اوونیل.چه مونږ تاسو سره معاهده او حلف ددې دپاره نه وو کړې.چه تاسوبه خلق د بیت الله د طواف نه منع کوئ.که تاسو محمد(ﷺ) د عمرې کولونه منع کړل.نو زه به خپل ټول کسان ځان سره ددې ځای نه بوځم.اوزمونږ او ستاسوبه مینځ کښې به څه معاهده نه وی.دده دا خفګان چه ئې اوکتل.نود قریشو بعضې سنجیده خلقو هغه ته اوونیل.ته کینه خفه کیږه مه.سوچ اوفکرکولې شی.نوهغه کیناستل.(¹)

آخردا چه قریشو دصلحې دپاره د نبی ﷺ په خدمت کښې سهیل بن عمرو راولیږل.اوهغه ته ئې اوونیل.چه صرف په دې شرط باندې کیدې شی.چه محمد(ﷺ) په دې کال واپس لاړ شی.دې دپاره چه د عربو په قبیلوکښې دا خبره مشهوره نشی.چه مسلمانان په زوره مکې ته داخل شو.کله چه نبی ﷺ سهیل په راتلو باندې اولیدل.نوصحابوﷺ ته ئې اوونیل.

«قدسهل الله لکم من أمرکم» اوس الله تعالی ستاسو معامله څه آسانه کړه.نبی ﷺ د دده دنوم نه ښه فال اوویستل.(²)

**صلحه حدیبیه اوددې شرطونه:** سهیل بن عمرو دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضرشو.اوپه ادب سره کیناستل.د دواړو طرفو نه خبرې اترې شروع شوې.سهیل د قریشو پیغام نبی ﷺ ته واورول. چه قریشو د صلحې دپاره د ټولو نه اولنې شرط دا کینبودې دې.چه مسلمانانوته په دې کال کښې د عمرې کولواجازت نشته.زیات صحابه کرام ﷺ په دې باندې راضی نه وو.چه د عمرې کولونه بغیراحرام پرانیزی.اومدینې ته واپس لاړ شی. صحابوﷺ د سهیل سره سختې خبرې اوکړې.په مینځ کښې آوازونه د طرفینو بنکته پورته شول.(³) عباد بن بشر ﷺ سهیل اورټل.چه د نبی ﷺ مخامخ آواز مه اوچتوه.د اوږدو خبرو نه پس د صلحې شرطونه مقرر شول.نبی ﷺ حضرت علی ﷺ راغوښتل.چه هغه صلحنامه اولیکی.نبی ﷺ حضرت علی ﷺ ته اوفرمائیل.اولیکه «بسم الله الرحمن الرحیم» سهیل اوونیل.زمونږ په نیز «الرحمن» او«الرحیم» نه دې مستعمل.زمونږ د زړې طریقې مطابق به «باسمك» لیکې.

نبی ﷺ حضرت علی ﷺ ته اوفرمائیل.هم داسې اولیکه.اووړاندې فقره پرې نبی ﷺ دا اولیکله.چه «هذا ما قاضی علیه محمد رسول الله» یعنی دا هغه معاهده ده.چه په کومه باندې چه محمد دالله تعالی رسول صلح کوی.سهیل په دې جمله باندې هم اعتراض اوکړو.چه صرف «محمد بن عبدالله» اولیکه.نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.«أنا محمد رسول الله وأنا محمدبن عبدالله

¹)سیرة ابن هشام (۳۲۶|۳) ودلائل النبوة (۱۰۴|۴)_

²)سیرة ابن هشام (۳۳۱|۳)_

³)سیرة ابن هشام (۳۳۱|۳)_

اكتب محمد بن عبدالله» يعني صرف زما نوم اوليكه.او د «رسول الله» لفظ وروان كړه.خو حضرت علي رضي الله عنه ورته عرض اوكړو.زه ستاسو نوم هزګزنشم وراتولي[1]

حضرت علي رضي الله عنه په ظاهره د نبي ﷺ دحكم نافرماني اوكړه.خودا مخالفت چه په كومه پاكه جذبه اودكو عظيم عقيدت او محبت په بنياد سره كولې شو.دهغې محبت قدراوقيمت پيژندونكي پيژني.چه دا بې ادبي نه وه.په دې كښې اختلاف دې.چه «الأمرفوق الأدب» صحيح دې.او«الأدب فوق الأمر» صحيح دې.بعضې حضرات«الأمرفوق الأدب» ته غوره وائي.او بعضې د «الأدب فوق الأمر» د اولويت قائل دى.خوپه دې كښې دا ضروري ده.چه د ادب خيال ساتلوكښې د آمر د خفګان ويره نه وى.حضرت ابوبكر رضي الله عنه هم (چه كله مونځ وركولو.او نبي ﷺ دامامتئ په دوران كښې تشريف راوړو.نو نبي ﷺ هغوى ته د مونځ جاري ساتلو اشاره كړې وه) په «الأدب فوق الأمر» باندې عمل كړې وو.دواړو طرفونو ته دلائل دى.دلته حضرت علي رضي الله عنه د «الأمرفوق الأدب» په ځاي په «الأدب فوق الأمر» باندې عمل اوكړو.دحضرت علي رضي الله عنه په انكارباندې نبي ﷺ خفه نشو.البته هغه ته ئې اووئيل.ته ماته اوښايه.چه زما نوم كوم ځاې دې؟ حضرت علي رضي الله عنه په هغه ځاې باندې ګوته كيخوده.نو نبي ﷺ په خپل لاس سره د «رسول الله» تكې وران كړو.[2] ددې نه پس په رواياتوكښې اختلاف دې.چه «محمد بن عبدالله» نبي ﷺ په خپله اوليكه.اوكه حضرت علي رضي الله عنه رضي الله عنه اوليكل.دقاضي عياض رحمه الله رائې ده.چه نبي ﷺ د معجزې په طور پخپله باندې اوليكل.اوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه حضرت علي رضي الله عنه اوليكل.اوپه«فكتب رسول الله ﷺ»كښې نبي ﷺ ته مجازاً نسبت شوې دې.لكه څنګه چه په«كتب إلى قيصر وكسرى»كښې مجازي نسبت شوې دې.په كومو شرطونو چه صلح شوې وه.هغه دا دى.

① مسلمانان به دې كال واپس ځي.دعمرې دپاره به په راروان كال باندې راځي. او صرف درې ورځې به قيام كوى.واپس به ځي.جنګي وسله به نه راوړى.دعاموعربو مسافروښان به په تيكي كښې بندو تورو سره راځي.

② په قريشوكښې كه څوك د خپل ولي يا آقا د اجازت نه بغيرمدينې ته لاړشي. نو هغه به واپس كولې شي.برابره ده كه هغه مسلمان وى اوكه كافر وى.خوكه په مسلمانانوكښې څوك د مدينې نه مكې ته لاړ شي نو هغه به واپس كولې نشي.

③ نورو قبيلوته به اختيار وى چه هغوى په فريقينوكښې دچا سره په معاهده كښې شريكيږى. شريك دې شى.دا صلح به د لسو كالودپاره وى.[3]

---

[1] سيرة حلبية (٢٠١٣) وصحيح مسلم كتاب الجهاد باب صلح الحديبية رقم الحديث (٤٣٩٥)_

[2] سيرة حلبية (٢٠١٣)_

[3] د ذكرشوو شرطونو دپاره اوګورئ (البداية والنهاية (١٦٨/٤و ١٦٩)_

نوبنوخزاعه د نبی ﷺ په عهد کښې اوبنوبکرد قریشو په عهد کښې شریك شول.دغه شان بنوخزاعه د نبی ﷺ حلیف شول.اوبنوبکرد قریشو حلیف شول.

چونکه دا شرطونه په ظاهره د مسلمانانو خلاف وو.ددې وجې مسلمانان سخت پریشانه وو. اوس لا معاهده لیکلې شوه.چه دسهیل بن عمروځوی ابوجندل (۱) دې مسلمان شوې وو.او په مکه کښې قید وو.دوی ته قسم قسم سخت تکلیفونه ورکولی شو.په څه طریقه باندې اوتختیدو.په پښوکښې ئې بیړۍ وې. او نبی ﷺ ته مخامخ راغلو.راؤغوزیدو.اود نبی ﷺ ته نه ئې پناه اوغوښتله.څه مسلمانان رامخکې شو.اودې ئې په خپله پناه کښې واخستلو. سهیل اووئیل (محمد! ﷺ) د معاهدې مطابق دې راوپس کړه.نبی ﷺ ورته اووئیل. تراوسه پورې خو معاهده پوره لیکلې شوې نه ده.مطلب دا وو.چه صلحنامه پوره اولیکلې شی. اود فریقینو دسخطونه پرې اوشی.نوبیا په دې باندې عمل کول پکار دی.خوسهیل اووئیل،که ابوجندل نه واپس کوئ.نودا صلح نامنظوره ده.نبی ﷺ ابوجندل رضی الله عنه د خپل ځان سره ایسارولو دپاره ډیراصرار اوکړو.خوهغه نه منل.چه ډیره مجبوره شو.نونبی ﷺ ابوجندل رضی الله عنه کافرانوته حواله کړو.په ابوجندل رضی الله عنه باندې چه کافرانوکوم ظلم اوزیاتی کړې وو.دهغې څه نښې اوس هم د ابوجندل رضی الله عنه په بدن موجود وې. هغوی مسلمانانوته خپل زخمونه اوخودل. اود سلګونه په ډك آواز کښې ئې مسلمانانوته چغه کړه.((یامعشرالمسلمین إرد إلی المشرکین یفتنونی فی دینی)) (۲) دا ډیر دلسوزمنظروو.یوطرف ته دصلحې په شرطونو دمسلمانانو جذبات ډیر مجروح شوی وو.بل طرف ته د عمرې نه بغیرواپس تلل وو.بل طرف ته دابوجندل رضی الله عنه داسې واپسی.په هغه باندې کولی شوی ظلمونه،اوبیا چه هغه مسلمانانوته چغه کړې. نو د هغه په دردناك آواز سره به د صحابو رضی الله عنهم دجذباتوڅه حالت وو.ددې اندازه لګول څه ګران کارنه دې.ټول مسلمانانو په دغه وخت کښې (دډیرغم اوغصې نه) پړقونه وهل. (تاویدل) (۳) دا موقعه دمسلمانانودپاره ډیره سخته وه.یوطرف ته مسلمانان د صلحې په شرطونو خفه وو.بل طرف ته د ابوجندل په بیړو راتلل وو.دهغه دمظلومیت داستان ،اود مسلمانانونه پناه

---

(۱) دابوجندل نوم ،،عاص،، وو.حافظ ابن حجر رحمه الله ددوی نوم ،عبدالله،، لیکلې دې.دوی په سابقین اولینوکښې وو.اوپه هغه صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې وو.چاته چه داسلام قبلولوپه وجه سخت تکلیفونه رسولی شو.دوی د صلح حدیبیه په وخت کښې مکې ته واپس کړې شو.خوڅه وخت پس دوی د مکې نه اووتلو.اوابوبصیر رضی الله عنه سره ملګرې شو.اود سمندرغاړې سره ډیره شو.دوی به د قریشوپه تجارتی قافلوباندې ډاکه اچوله.ددې نه تنګ شو.اوپخپله دمکې خلقواووئیل.چه دا خلق دې دمدینې منورې مسلمانو سره اوسیږی.حضرت ابوجندل رضی الله عنه د اته ځلویښت کالوپه عمرکښې په جنګ یمامه کښې شهید شو.(الإصابة(۳۴۱٤) وسیرة حلبیة (۲۳۱۳)_

(۲) البدایة والنهایة (۱۶۹۱٤)_

(۳) وئیلی شی.چه ابوجندل رضی الله عنه کله واپس کړې شو.نو حضرت عمرفاروق رضی الله عنه هغه سره سره نزدې روان شو.اوخپله توره ئې هغه ته نزدې کړه.اووې وئیل.((إن دم الکافرعندالله کدم الکلب)) حضرت عمر رضی الله عنه غوښتل.چه ابوجندل رضی الله عنه توره واخلی.اوسهیل قتل کړی.خوابوجندل رضی الله عنه دخپل پلارسهیل دقتلولو وس نه لرلو.(البدایة والنهایة (۱۶۹۱٤) وتاریخ الخمیس(۲۲۱۲)_~

غوستل.اوهغه چغې مسلمانان ډير زيات خفه كړل.خونبى كريم ﷺ په خپله معاهده باندې برقرار پاتې شو.اوابوجندل رضي الله عنه ته ئې اوفرمائيل.

((ياأبا جندل إصبر: واحتسب، فإن الله جاعل لك ولمن معك من المستضعفين فرجاً ومخرجاً إنا عقدنا بيننا وبين قومنا صلحاً وإنا لانغدر بهم))

ابوجندل اصبر كوه.اودالله تعالى نه د ثواب اميد ساته.الله تعالى به ستا دپاره او ستا د نورو مظلومو ملګرو دپاره څه لار راوباسى.چونكه زمونږ او ددوى په مينځ كښې صلح شوې ده.ددې وجې اوس مونږ وعده خلافى نشو كولې.

دصلح كولونه پس نبى ﷺ صحابه كرامو رضي الله عنهم ته د قربانۍ كولواوسرونو خرئيولو حكم اوكړو.خوصحابه كرام رضي الله عنهم دومره د زړه نه خفه وو.چه نبى ﷺ درې خله حكم اوكړو.خوڅوك هم پانه سيدل.د دې په وجه نبى ﷺ خفه شو.

په دې سفركښې په ازواج مطهراتوكښې حضرت ام سلمه رضي الله عنها د نبى ﷺ سره وه.دوى هغې ته تشريف يوړو.اودخپل خفګان اظهار ئې ورته اوكړو.حضرت ام سلمې رضي الله عنها ډيره مفيده اوښه مشوره وركړه.عرض ئې اوكړو.يارسول الله دا صلح مسلمانانوته ډيره سخته ده.ددې په وجه دوى خفه او زړه ماتى دى.ددې وجې تاسو دوى ته څه مه وائې.بهرته لاړ شئ.اوخپل خلق اوكړئ.احرام پرانيزئ .نو صحابه رضي الله عنهم به په خپله ستاسواتباع اوكړى.نو نبى ﷺ دهغې په مشوره باندې عمل اوكړو.اول ئې خپل سره اوخرئيل.اوقربانى ئې ذبح كړه.صحابه كرامو رضي الله عنهم چه كله اوكتل.نو ټول پاسيدل.اوحلق اوقربانى ئې اوكړه.نبى ﷺ د ټولودپاره دعا اوكړه.[1]

نبى كريم ﷺ په مقام حديبيه كښې تقريباً شل ورځې قيام كړې وو.[2] اوددې نه پس نبى ﷺ دمدينې منورې رخ اوكړو.په لاره كښې كله چه واپسى كيده. نو حضرت عمر رضي الله عنه نبى ﷺ ته ورغلو.او ورته ئې عرض اوكړو.يارسول الله آيا تاسو دالله تعالى په حقه پيغمبرنه ئې؟ نبى ﷺ اوفرمائيل.ولې نه يم.حضرت عمر رضي الله عنه اوونيل.آيا مونږ په حق اوهغه خلق په باطل نه دى.نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.ولې نه.حضرت عمر رضي الله عنه بيا عرض اوكړو.آيا زمونږ مقتولين به په جنت كښې اودهغوى مقتولين به په جهنم كښې نه وى.نبى ﷺ اوفرمائيل. ولې نه.په دې باندې حضرت عمر رضي الله عنه اوونيل. بيا په دين كښې ولې مونږ ذلت برداشت كوو.

نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.((وأنا عبدالله ورسوله لن أخالف أمره ولن يضيعنى)) زه دالله تعالى بنده اودهغه رسول يم.اودالله تعالى دحكم نافرمانى نشم كولې.الله تعالى به هركز ما رسوا نكړى. حضرت عمر رضي الله عنه اوونيل.يارسول الله ولې تاسو مونږ ته نه وو وئيلى.چه مونږ به بيت الله ته څو.اود بيت الله طواف به كوو.نبى ﷺ اوفرمائيل.بيشكه دا مې فرمائيلى وو.خودا مې نه وو وئيلى.چه هم په دې كال كښې به دا كارونه كوو.حضرت عمر رضي الله عنه ابوبكر رضي الله عنه ته ورغلو.اوهغوى ته ئې هم هغه شان خبرې اوكړې.حضرت ابوبكر رضي الله عنه ورته اوفرمائيل.اې دالله

---

[1] )صحيح بخارى كتاب الشروط فى الجهاد رقم الحديث (٢٧٣٢)_

[2] )طبقات ابن سعد(٩٨\٢)_

بنده محمد ﷺ دالله تعالی رسول دي.هغه چه څه فیصلې کوی.دالله تعالی دحکم مطابق ئې کوی.ددې وجې هم دهغه رکاب اونیسه.(۱)

حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی.چه روستو ماته په خپلودې گستاخانه خبرو باندې ډیرافسوس کیږی.اومسلسل توبه اواستغفار وایم.مونځونه کوم.اود تلافئ دپاره صدقات ورکوم.(۲) هم ددې واپسئ په سفرکښې سورة فتح نازل شو.﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا﴾ حضرت عمربن الخطاب رضی الله عنه عرض اوکړو.یارسول الله ولې دا فتح ده؟ نبی ﷺ اوفرمائیل.قسم دې وی په هغه ذات چه زما روح دهغه په قدرت کښې دې.دا فتح مبین ده.(۳) دا خود دغزوه حدیبیه تاریخی تفصیل وو.

**د صلح حدیبیهٔ په نتائجو یوه نظر**: دصلح حدیبیه واقعه دنبی ﷺ د فراست یوه روښانه واقعه ده. په دغه وخت کښې کله چه نبی ﷺ مکې ته نزدې اورسیدل.نوددوی اوښه ،،قصواء،، کیناسته.په هغه وخت کښې نبی ﷺ ډیر په اعتماد سره دا وئیلی وو.که قریشو داسې څه تجویز پیش کړو.چه په هغې کښې دالله تعالی د حدودو اوحرماتوتعظیم وی.اوهغه د شعائرالله د ادب سره منافی نه وی.زه به ضرور هغه قبلوم.بس دا وئیل.چه اوښه پاسیده. او نبی ﷺ دمکې په ځاې حدیبیه طرف ته روان شو.اوبیا صلح اوشوه.کومه چه په ظاهره په کمزورئ خودلو سره اوشوه.صحابه کرام رضی الله عنهم ډیردلگیر وو.اوحضرت عمر رضی الله عنه درسول الله سره د محبت جوش داسلام دعظمت په وجه په قابوکښې پاتې نشو.هغوی خو نبی ﷺ ته وئیل.چه تاسو خو وئیل.چه مونږ په حق یو.نوبیا ولې دخپل دین دپاره ددې صلحې په وجه مونږ ذلت برداشت کوو.چونکه د صلحې په شرطونو کښې دا هم وو.چه مسلمانان به بغیرعمرې واپس ځی.او راروان کال ته به د عمرې دپاره راځی.بل طرف ته ابوجندل رضی الله عنه واپس کول وو.دا هم نبی ﷺ اومنل.که یومسلمان دمکې نه مدینې ته لاړ شی.هغه به بیرته کافرانوته واپس کولې شی.اوکه د مدینې نه څوك مرتد شی.اومکې ته لاړشی.هغه به نشی واپس کولې.

کله چه نبی ﷺ صلح اوکړه.نودا اگرچه په ظاهره باندې په کمزورئ سره شوې وه.خوددې شانداراوحیرانکونکی نتائج ښکاره شول.

اول خو سیاسی طور قریش چه دمسلمانانو ئې څه قانونی حیثیت نه منل.د هغوی خیال وو.چه دا څوسروهلی بروهلی خوانان دی.دوی انتشاراوافراتفری جوړه کړې ده.پلاردخوې سره اوښځه دخاوند سره اووروردوروسره جنگوی.دوی دهشت گردی شروع کړه.په څوورځو کښې به خپل انجام ته اورسی.اوختم به شی.اوس د صلحې په ذریعه دقریشوکافرانو مسلمانان خپل مد مقابل یوه ډله تسلیم کړه. او باقاعده ئې صلح اوکړه.

دویمه ددې صلحې په ذریعه دمسلمانانو په شمارکښې ډیره زیاته اضافه اوشوه.دعمرې

(۱)بخاری کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد رقم الحدیث (۲۷۳۲)_

(۲)زادالمعاد(۲۹۵\۳)_

(۳)دلائل النبوة للبیهقی (۳۳۹\۴) باب غزوة خیبر)_

دپاره دوى سره څوارلس يا پنځلس سوه صحابه ﷺ وو.دومره يا د دې نه كم اوزيات نور مسلمانان وو.كوم چه په دې سفركښې ورسره ملګرى نه وو.خوصرف د دوو كالونو نه په كمه موده كښې د نبى ﷺ سره كله چه هغوى د فتح مكې دپاره د سفركولو.نولس زره لښكرد دوى سره وو.بيا د تبوك په موقع په ۹ ه كښې دنبى ﷺ سره ديرش زره يا ددې نه هم زيات مجاهدين وو.اوددې نه يوكال پس په ۱۰ ه كښې په حجه الوداع كښې يولاكهه پنځه ويشت زره كسان شريك وو.دصلح حديبيه واقعه د ۶ ه ده.ديارلس كاله د مكې شپږ كاله د مدينې ،په دې كښې د مسلمانانوتعداد درې يا څلور زرو ته رسيدل.خود صلح حديبيه نه پس صرف په څلورو كالوكښې د مسلمانانوتعداد لكهونوته اورسيدل.وجه دا وه.چه دصلحې نه وړاندې د جنګ حالت وو.په خپل مينځ كښې د بدئ اونفرت په وجه ددوى په مينځ كښې د ګډون نوبت نه راتلو.اوكه كله به داسې موقع راغله هم.نودنفرتونو په وجه په صحيح طريقه باندې به سوچ اوفكرنشوكولې.يوځواول په صلحې سره په خپل مينځ كښې نفرتونو كم شول.اود ګډون مواقع پيښې شوې.مسلمانان مكې ته تلل.اوكافران مدينې ته راتلل شروع شو.كله چه داسې اوشو.نو كافرانو اوكتل.اوباربار ئې اوكتل.چه دا زمونږ ورونړه د اسلام په دائره كښې د داخليدو نه پس بيخى بدل شوى دى.په دوى كښې خو عجيبه انقلاب پيدا شوې دې.دوى خود صدق اووفا مجسمې جوړې شوى دى.امانت اوديانت خو د دوى په رګ رګ كښې داخل شوې دې.شرافت اوعظمت خوددوى نښه اوپيژندګلو ګرځيدلې ده.دوى د ضعيفانواوكمزور مددګاران جوړ شوى دى.اود ظالمانواو سركشو دختمولودپاره طاقتوراو مضبوط دى.نوددې مشاهدې نه پس هغوى اسلام طرف ته مائل شول.اوډير په اسلام كښې داخل شول.

دريم د صلح حديبيه دواقعه نه وړاندې صورتحال دا وو.چه دمدينې منورې په جنوب كښې مكه وه.اوهلته قريش داسلام دشمنان اوسيدل.چاسره چه څو جنګونه هم شوى وو.اوشمال ته خيبر وو.كوم ځاې كښې چه يهود آباد وو.داهل كتاب كيدو په وجه هغوى هم خپلې لوې په ګمان كښې پراته وو.اودخپل ځان نه سوا د بل چا دپاره د سيادت اوقيادت منلوته تيار نه وو. بل طرف د مدينې منورې نه د بنو نضيرود ويستلوواقعه پيښه شوه.اودا خلق د مدينې نه اووتل.اوپه خيبر كښې آباد شول.د بنوقريظو د غدر په وجه په مدينه منوره كښې دهغوى د قتل عام واقعه پيښه شوې وه.نويوطرف ته دمكې قريش دمسلمانانو دسردشمنان وو.چاسره چه د بدر،احد اوخندق غوندې جنګونه شوى وو.اوهغوى دبدراوخندق د شكست غم نه وو هيركړې.بل طرف ته د خيبريهود وو.دوى د بنونضيروجلاوطنئ اود بنو قريظو دقتل عام غم خوړل.اوداسلام ترقى هغوى په هيڅ صورت كښې نشوه برداشت كولې.بيا په قريشواويهوديانوكښې مسلمانانوخلاف اتحاد هم كيدو لكه څنګه چه د بدرنه پس يهودو قريش د جنګ دپاره آماده كړى وو.اود احد واقعه راغله.بيا دخندق په موقع باندې هم د خيبر يهوديانواوبنوقريظه د مسلمانانو خلاف سازش كړې وو.په دغه حالاتوكښې نبى ﷺ سوچ اوكړو.چه مدينه مينځ كښې ده.اودواړو طرفونو شمال اوجنوب ته دشمنان موجود دى.دا هم ويره وه.چه دا دواړه ملګرى شى.اوپه يوځل په مدينه حمله اوكړى.اوپه دې صورت

كنبې دا هم ممكن نه وه.چه نبی ﷺ په مكه باندې حمله اوكړى.اودقريشو څه بندوبست اوكړى .څكه چه په دغه صورت كنبې دخيبرد يهودو دحملې ويره وه.چه هغوى مدينه خالى اوګورى.اوپه مدينه حمله اوكړى.اوكه نبی ﷺ د يهودو د شر دفع كولودپاره په خيبر باندې حمله كوله.نوويره وه.چه قريش مدينه خالى اوګورى.اوپه مدينه حمله اوكړى.عجيبه دپريشانئ حالت وو.ددې وجې نبی ﷺ فيصله اوكړه.چه په دواړوكنبې ديوفريق سره صلح اوكړى.برابره ده چه هغه په هرصورت كنبې وى. او دهرخومره مودې دپاره وى.دوى د صلحې دپاره قريشوته ترجيح وركړه.اول خو د دې وجې چه هغوى سره خپلولئ وې.هغوى د يو وطن هم وو.دهغوى خبث باطن هم كيدې شى د يهودو نه څه كم وو.د يهودو نه وړاندې غدر هم ثابت شوې وو. او خيال ئې دا وو.چه ددې صلحې نه سمدستى روسته خوپه دې شرط چه دحرمات الله په تعظيم كنبې څه فرق نه راځى.په يهودو باندې حمله اوكړى.اودهغوى د شرنه دحفاظت انتظام اوكړې شى.اوبيا قريش پاتې شى.نوچه تر څوپورې هغوى د صلحې پابندى كوى.صحيح ده.صلح به وى.اوكه هغوى د صلحې خلاف ورزى اوكړى.نوبيا دهغوى انتظام كول به هم څه ګران نه وى.نوددې مصلحتونو په رڼا كنبې نبی ﷺ د كمزورئ اظهاراوكړو.اوصلح اوكړه.او اوس ددې صلحنامې سياهى هم لا وچه شوې نه وه.چه نبی ﷺ دمكې نه واپس راغلو.نوپه محرم كنبې په صلح حديبيه كنبې چه كوم صحابه كرام شريك وو.هغوى څان سره واخستل.اوپه خيبر ئې حمله اوكړه.اويهود ئې داسې برابر كړو.چه هغوى بيا سرنشو پورته كولې.د ذوالقعده په آخركنبې صلح حديبيه شوې ود.اويوه مياشت په مينځ كنبې هم نه وه تيره شوې.چه په محرم كنبې ئې په يهوديانو باندې فتح حاصله كړه.اوس قريش پاتې شول.څه وخته پورې هغوى د صلحې پابندى كوله.دوه كاله هم نه وو تير شوى .چه هغوى د صلحې خلاف ورزى اوكړه.اونبی ﷺ په رمضان ٨ھ كنبې په مكه باندې حمله اوكړه.اومكه ئې داسې فتح كړه.لكه چه دا هډو څه ګران كار نه وو. او دغه شان ئې ټول عرب سره د يمن نه دارالاسلام جوړ كړو.ددې وجې دفتح مبين مصداق د فتح مكې په ځاى صلح حديبيه اوګرځولې شو.چونكه هم دا صلح په حقيقت كنبې دفتح مكې يو تمهيد وو.اوپه نورومصالحوباندې هم دا مشتمله وه.

[٣٩١٦] حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ حَدَّثَنِي صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فَأَصَابَنَا مَطَرٌ ذَاتَ لَيْلَةٍ فَصَلَّى لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا فَقَالَ أَتَدْرُونَ مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قُلْنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ فَقَالَ قَالَ اللَّهُ أَصْبَحَ مِنْ عِبَادِي مُؤْمِنٌ بِي وَكَافِرٌ بِي فَأَمَّا مَنْ قَالَ مُطِرْنَا بِرَحْمَةِ اللَّهِ وَبِرِزْقِ اللَّهِ وَبِفَضْلِ اللَّهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ بِي كَافِرٌ بِالْكَوْكَبِ وَأَمَّا مَنْ قَالَ مُطِرْنَا بِنَجْمِ كَذَا وَكَذَا فَهُوَ مُؤْمِنٌ بِالْكَوْكَبِ كَافِرٌ بِي [ر: ٨١٠]

دا خالد بن مخلد بجلي رحمه الله دي.د كوفي اوسيدونكي وو.اود امام مسلم استاذ هم وو.دا روايت په كتاب الصلاة كښې تيرشوې دې.(١)

[٣٩١٧]حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَخْبَرَهُ قَالَ اعْتَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ عُمَرٍ كُلَّهُنَّ فِي ذِي الْقَعْدَةِ إِلَّا الَّتِي كَانَتْ مَعَ حَجَّتِهِ عُمْرَةً مِنَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي ذِي الْقَعْدَةِ وَعُمْرَةً مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ فِي ذِي الْقَعْدَةِ وَعُمْرَةً مِنَ الْجِعْرَانَةِ حَيْثُ قَسَمَ غَنَائِمَ حُنَيْنٍ فِي ذِي الْقَعْدَةِ وَعُمْرَةً مَعَ حَجَّتِهِ [ر:١٦٨٧]

دا روايت په كتاب الحج كښې دحسان بن ثابت رضي الله عنه په طريق سره تيرشوې دې.(٢)

[٣٩١٨]حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ الرَّبِيعِ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ قَالَ انْطَلَقْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فَأَحْرَمَ أَصْحَابُهُ وَلَمْ أُحْرِمْ [ر:١٧٢٥]

دا سعيد بن الربيع عامرى دې.ذعلى بن مبارك بصرى رحمه الله نه روايت كوى.اودوى د يحى بن ابى كثيريمامى طائي نه نقل كوى.

**قوله**: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ...: حضرت ابوقتاده رضي الله عنه صحابى دې.دانصارو بنو خزرج قبيلې سره تعلق ساتى. د دوى د نوم په باره كښې اختلاف دې.امام واقدى اوكلبى رحمهما الله ددوى نوم نعمان خودلې دې.بعضې حضراتو ،،عمرو،، وئيلې دې.خوزيات مشهور قول دا دې.چه دده نوم ،حارث،، دې.دده د پلارنوم ربعى وو.دوى ته ،،فارس رسول الله،، وئيلى شى.وئيلى شى.چه اوياكالوته نزدې عمرئې وو.په كوفه يا مدينه كښې دحضرت على رضي الله عنه يا حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه په زمانه كښې وفات شوې وو.(٣) دا حديث په ((أبواب العمرة)) كښې په تفصيل سره تيرشوې دې.

[٣٩١٩\٣٩٢٠]حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ تَعُدُّونَ أَنْتُمُ الْفَتْحَ فَتْحَ مَكَّةَ وَقَدْ كَانَ فَتْحُ مَكَّةَ فَتْحًا وَنَحْنُ نَعُدُّ الْفَتْحَ بَيْعَةَ الرِّضْوَانِ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ عَشْرَةَ مِائَةً وَالْحُدَيْبِيَةُ بِئْرٌ فَنَزَحْنَاهَا فَلَمْ نَتْرُكْ فِيهَا قَطْرَةً فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَاهَا فَجَلَسَ عَلَى شَفِيرِهَا ثُمَّ دَعَا بِإِنَاءٍ مِنْ مَاءٍ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ مَضْمَضَ وَدَعَا ثُمَّ صَبَّهُ فِيهَا فَتَرَكْنَاهَا غَيْرَ بَعِيدٍ ثُمَّ إِنَّهَا أَصْدَرَتْنَا مَا شِئْنَا نَحْنُ وَرِكَابَنَا

**قوله**: تَعُدُّونَ أَنْتُمُ الْفَتْحَ فَتْحَ مَكَّةَ وَنَحْنُ نَعُدُّ الْفَتْحَ بَيْعَةَ الرِّضْوَانِ: حضرت براء بن

---

١ )بخارى كتاب الصلاة باب قول الله عزوجل ﴿ وتجعلون رزقكم إنكم تكذبون ﴾ (١٤١١١)_

٢ ) بخارى كتاب الحج أبواب العمرة باب كم إعتمر النبى صلى الله عليه وسلم (٢٣٩١١)_

٣ )الإصابة فى تميزالصحابة (١٥٨١٤) بخارى أبواب العمرة باب جزاء الصيد (٢٤٥١١)_

عازب رضي الله عنه اوفرمائيل.تاسوخلق فتح مكې ته فتح وائې.او مونږ بيعة الرضوان فتح شمارو.په حقيقت كښې هم صلح حديبيه د اسلام د لوئ اشاعت اوتبلغ دپاره مقدمه شوه.ددې نه وړاندې ټول عمرعرب داسلام د اوچتو اقدارونه بيخي خبر نه وو.هره ورځ دمسلمانانواواهل مكې په مينځ كښې دجنګونې مقابلوپه وجه دعربو عامو قبيلو ته مسلمانانوته د نزديكيدو او د مسلمانانو د اخلاقو مواقع كمې ملاويدې.كله چه صلح حديبيه اوشوه.اولارې په امن شوې.نود عربوقبيلوته براه راست د مسلمانانومعاشرت،د دوى اخلاق، اوژوندتيرولوطور طريقود ليدو موقع ملاؤ شوه.اوهغوى د اسلام اومسلمانانونه متاثره شول.اوډلې ډلې په اسلام كښې داخليدل.هم دا وجه ده.چه دغزوه حديبيه په موقع دنبى صلى الله عليه وسلم سره صرف څورلس سوه صحابه كرام رضي الله عنهم وو.خودوه كاله پس كله چه دمكې دفتحې په اراده باندې نبى صلى الله عليه وسلم تلل.نود دوى سره د عربو د قبيلوپه لس زره كسانوباندې مشتمل لښكروو.كله چه د فتح مكې په موقع د بيت الله شريف چابيانې د نبى صلى الله عليه وسلم لاس ته ورغلې.نو نبى صلى الله عليه وسلم ټولوصحابو رضي الله عنهم ته اوبيا خاص كرحضرت عمر رضي الله عنه ته خطاب اوكړو.اووې فرمائيل.دا هغه فتح ده.كومه چه ما تاسوته وئيل.حضرت عمر رضي الله عنه عرض اوكړو.بيشكه دصلح حديبيه نه بله لويه فتح نه وه.

**قوله**: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ عَشْرَةَ مِائَةً: حضرت براء بن عازب رضي الله عنه ((ألفا وأربع مائة)) نه دى وئيلى.بلكه ((أربع عشرة مائة)) ئې وئيلى دى.كوم چه دعام اسلوب نه خلاف دې.عالمانو رحمهم الله ليكلى دى. چه په اصل كښې صحابه كرام رضي الله عنهم په ،،مئات،، كښې تقسيم وو.دسلر يوه ډله وه. اودسلو بله ډله وه.نود ،،مئات،، دې تقسيم طرف ته داشاره كولو دپاره دا تعبير اختياركړې شوې دې.كه ((ألفاً وأربع مائة)) ئې فرمائيلى وو.نود ،،مئات،، دې تقسيم طرف ته به اشاره نه وه.(١)

مخكښې فرمائى.چه حديبيه يو كوهى وو.مونږ دهغې نه اوبه راوويستلې. (چونكه څوارلس سوه كسان وو.اوپه هغې كښې اوبه كمې وې) يوه قطره هم مونږ په هغې كښې پرې نخودې.نبى صلى الله عليه وسلم ته ددې خبر ملاؤ شو.نبى صلى الله عليه وسلم كوهى ته راغلو. او د كوهى په غاړه باندې كيناستل.بيا نبى صلى الله عليه وسلم د اوبو لوښې راوغوښتل.اوبيا ئې اودس اوكړو.اوپه خوله كښې ئې اوبه واچولې.اودعا ئې اوكړله.او هغه د اودس اوخولې اوبه به ئې په كوهى كښې ورواچولې.

**قوله**: فَتَرَكْنَاهَا غَيْرَ بَعِيدٍ: نومونږ لږ وخت دپاره هغه كوهي پريخودل.يعنى سمدستى موترې اوبه راويستل شروع نكړل.په يو روايت كښې دى.چه نبى صلى الله عليه وسلم صحابو رضي الله عنهم ته اوفرمائيل.((دعوها ساعة)) دلږ ساعت دپاره دا پريږدئ.(٢)

**قوله**: ثُمَّ إِنَّهَا أَصْدَرَتْنَا مَا شِئْنَا نَحْنُ وَرِكَابُنَا: بيادغه كوهى مونږ ته دومره اوبه

(١) عمدة القارى (١٧\٢١٤) وشرح كرمانى (١٦\٦٦)_

(٢) فتح البارى (٧\٤٤٢)_

راكړلې. اوواپس شو.چه څومره مونږ غوښتلې.اوزمونږ سورلو غوښتلې.د «أصدرتنا» معنی «أرجعتنا» ده.وئیلې شي. «أصدرته أي أرجعته فرجع» (١)«صادرالماء» هغه کس ته وائي.چه څوك چه د ګودرنه واپس راځي.ددې جملې مقصد دا دې.چه د نبي ﷺ دخولې اوبو غورځولو نه پس په هغې کښې دومره اوبه راغلې.کومې چه زمونږ د ضرورت دپاره بس وې. او زمونږ د سورلو ضرورت هم په هغې پوره شو.دا دنبي ﷺ معجزه وه.

[٣٩٢٠]حَدَّثَنِي فَضْلُ بْنُ يَعْقُوبَ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَعْيَنَ أَبُو عَلِيٍّ الْحَرَّانِيُّ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ أَنْبَأَنَا الْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّهُمْ كَانُوا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ أَلْفًا وَأَرْبَعَ مِائَةٍ أَوْ أَكْثَرَ فَنَزَلُوا عَلَى بِئْرٍ فَنَزَحُوهَا فَأَتَوْا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَى الْبِئْرَ وَقَعَدَ عَلَى شَفِيرِهَا ثُمَّ قَالَ ائْتُونِي بِدَلْوٍ مِنْ مَائِهَا فَأُتِيَ بِهِ فَبَصَقَ فَدَعَا ثُمَّ قَالَ دَعُوهَا سَاعَةً فَأَرْوَوْا أَنْفُسَهُمْ وَرِكَابَهُمْ حَتَّى ارْتَحَلُوا[ر:٣٣٨٣]

دحضرت براء بن عازب رضي الله عنه اولنې روايت امام بخاري رحمه الله د عبدالله بن موسى په طريق سره نقل کړې وو.اودلته ئې د فضيل بن يعقوب په طريق سره نقل کوی.

[٣٩٢١\٣٩٢٢]حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ عَطِشَ النَّاسُ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا ثُمَّ أَقْبَلَ النَّاسُ نَحْوَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لَكُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ لَيْسَ عِنْدَنَا مَاءٌ نَتَوَضَّأُ بِهِ وَلَا نَشْرَبُ إِلَّا مَا فِي رَكْوَتِكَ قَالَ فَوَضَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ فِي الرَّكْوَةِ فَجَعَلَ الْمَاءُ يَفُورُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِهِ كَأَمْثَالِ الْعُيُونِ قَالَ فَشَرِبْنَا وَتَوَضَّأْنَا فَقُلْتُ لِجَابِرٍ كَمْ كُنْتُمْ يَوْمَئِذٍ قَالَ لَوْ كُنَّا مِائَةَ أَلْفٍ لَكَفَانَا كُنَّا خَمْسَ عَشْرَةَ مِائَةً

[٣٩٢٣]حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ قَتَادَةَ قُلْتُ لِسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ بَلَغَنِي أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ كَانَ يَقُولُ كَانُوا أَرْبَعَ عَشْرَةَ مِائَةً فَقَالَ لِي سَعِيدٌ حَدَّثَنِي جَابِرٌ كَانُوا خَمْسَ عَشْرَةَ مِائَةً الَّذِينَ بَايَعُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ قَالَ أَبُو دَاوُدَ حَدَّثَنَا قُرَّةُ عَنْ قَتَادَةَ تابعه محمد بن بشار حدثنا أبوداود وحدثنا شعبة

[٣٩٢٤]حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ أَنْتُمْ خَيْرُ أَهْلِ الْأَرْضِ وَكُنَّا أَلْفًا وَأَرْبَعَ مِائَةٍ وَلَوْ كُنْتُ أُبْصِرُ الْيَوْمَ لَأَرَيْتُكُمْ مَكَانَ الشَّجَرَةِ تَابَعَهُ الْأَعْمَشُ سَمِعَ سَالِمًا سَمِعَ

---

(١) عمدة القاري(١٧\٢١٤)_

جَابِرًا أَلْفًا وَأَرْبَعَ مِائَةٍ [ر: ٣٣٨٣]

[٣٩٢٣] وَقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا كَانَ أَصْحَابُ الشَّجَرَةِ أَلْفًا وَثَلَاثَ مِائَةٍ وَكَانَتْ أَسْلَمُ ثُمُنَ الْمُهَاجِرِينَ تَابَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ

**قوله**: حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى: دا يوسف بن عيسى مروزى رحمه الله دې.ددوى لقب ابويعقوب دې.اودا دامام مسلم رحمه الله استاذ هم دې.[1]

حضرت جابر رضي الله عنه فرمائى.چه د غزوه حديبيه په موقع خلق تګى شول.اود نبى ﷺ مخامخ يود ،،ركوه،، يعنى د څرمنې يو لوښې موجود وو.په كوم كښې چه څه اوبه وې.نبى ﷺ دهغې نه اودس اوكړو.بيا نبى ﷺ طرف ته (داوبودپاره) متوجه شول. نبى ﷺ خلقوته اوكتل.او وې فرمائيل ((مالكم؟)) په تاسو څه اوشو؟هغوى اووئيل. مونږ سره اوبه نشته.چه مونږ پرې اودسونه اوكړو.اووې څكو.سوا دهغه اوبو نه.كومې چه ستاسو په ،،ركوه،، (دڅرمنې په لوښى كښې) دى.نبى ﷺ خپل لاس په هغه لوښى كښې كيخودو.نو د نبى ﷺ د ګوتود مينځ نه داسې اوبه راوتې.لكه څنګه چه دچينې نه راوځى.نومونږ اوبه اوڅكلې. او اودسونه موٚاوكړل.ما (سالم) د حضرت جابر رضي الله عنه نه تپوس اوكړو.په دغه وخت كښې تاسو څومره وئ.نوهغوى راته اوفرمائيل.كه مونږ لاكه هم وو.نوبيا به هم هغه زمونږ دپاره كافى وې.هسې خو مونږ پنځلس سوه وو.

**يوسوال اودهغې جواب**: دلته يوسوال كيږى.چه دحضرت جابر رضي الله عنه حديث د ماقبل حضرت براء بن عازب رضي الله عنه د حديث سره په ظاهرمتعارض دې.ځكه چه په هغې كښې دى.چه نبى ﷺ په كوهى كښې دخولې اوبه ورواچولې.دهغې نه پس په هغې كښې اوبه راغلې.اود حضرت جابر رضي الله عنه په دې روايت كښې د نبى ﷺ د ګوتود مينځ نه د اوبو راوتو ذكردې.

① ددې جواب وركړې شوې دې.چه دحضرت جابر رضي الله عنه دا روايت په كتاب الاشربه كښې مفصل دې.ددې نه دا معلوميږى.چه دحضرت جابر رضي الله عنه د روايت واقعه د ماز يګروخت ده. اود حضرت براء بن عازب رضي الله عنه د روايت د مانځه په وخت كښې نه وه.دا دوه جدا جدا واقعات دى.نو څه تعارض په كښې نشته.[2]

② اودويم جواب دا هم هم وركولې شى.چه نبى ﷺ كله خپل لاس په لوښى كښې كيخودو. اود نبى ﷺ د ګوتونه اوبه روانې شوې.نوصحابو رضي الله عنهم ددغه اوبو نه خپل ضرورت پوره كړو.ددې نه پس نبى ﷺ حكم اوكړو.چه كومې اوبه بچ شوى وى.هغه په دې كوهى كښې ورواچوئ.نوكله چه هغه په كوهى كښې ورواچولولې شوې.نوهغه وچ كوهې د اوبو نه ډك شو.نودا واقعه هم د يو وخت ده.البته د معجزې ښكاره كيدل دوه ځله شوى دى.دحضرت

---

[1] (عمدة القارى(١٧\٢١٤)_
[2] (فتح البارى (٧\٤٤٢)_

جابر رضي الله عنه په روايت كښي د اولنئ معجزې ذكردې.اودحضرت براء بن عازب رضي الله عنه په روايت كښي د دويمې معجزې ذكردې.ددې وجې په دواړو رواياتوكښې څه تعارض پاتې نشو.[1]

**داصحاب حديبيه په تعداد كښې اختلاف د رواياتواوددې حل:** دحضرت جابر رضي الله عنه په روايت كښي په صلح حديبيه كښې د صحابو رضي الله عنهم شمار پنځلس سوه خودلې شوې دې.اوددې روايت سره متصل په وړاندينى روايت كښې هم د حضرت جابر رضي الله عنه په روايت كښې د څوارلس سوه عدد منقول دې.دحضرت براء بن عازب رضي الله عنه په روايت كښې هم د څورلس سوو ذكروو.او وړاندې دحضرت عبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنه روايت راځى.په هغې كښې د ديارلس سوو عدد منقول دې.

امام نووى رحمه الله تطبيق كوى.اوفرمائى.چه اصلى تعداد د څورلس سوو نه زيات وو.لكه څنګه چه د حضرت براء رضي الله عنه په روايت كښې د((الفا واربعمائة)) نه پس ((أوأكثر)) لفظ راغلې دې.نوچا چه كسر پوره كړې دې.هغه پنځلس سوه ذكركړى دى.اوچا چه د كسراعتبارنه دې كړې.هغه څورلس سوه وئيلى دى.دا خود جمع بين الروايتين صورت وو.كوم چه امام نووى رحمه الله اختياركړې دې.[2] امام بيهقى رحمه الله د ترجيح طريقه اختياركړې ده.او فرمائيلى ئې دى.چه د څورلس سوه روايت راجح دې.[3]

ترڅويورې چه د حضرت عبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنه د روايت تعلق دې.په كوم كښې چه ديارلس سوه دى.نودهغې مطابق دا وئيلى شى.چه هغوى دخپل علم مطابق دا وئيلى وى.اوچه چا ته د ديارلس سوو نه د زيات علم وو.هغه د خپل علم مطابق روايت كړې دې.يا دا سې وئيلى شى.چه د مدينې منورې نه د وتلو په وخت كښې شمارديارلس سوه وو.خو روستو بيا تعداد زيات شو.نوعبدالله بن ابى اوفى رضي الله عنه د مدينې منورې نه د وتلوپه وخت كښې تعداد خودلې دې.اودا هم وئيلى شى. چه په اصل كښې دمجاهدينوتعداد خو ديارلس سوه وو.اوچه په كومو رواياتو كښې د ددې نه د زيات ذكردې.نو په هغې كښې دخادمانو ښځو اوماشومانو اعتبارهم شوې دې.[4]

**قوله: حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ:** دحضرت جابر رضي الله عنه روايت د دې نه وړاندې دحضرت يوسف بن عيسى په طريق سره راغلې وو.او اوس امام بخارى رحمه الله دحضرت جابر رضي الله عنه روايت د ..الصلت بن محمد،، په طريق سره بيانوى.دا صلت بن محمدبصرى دې.په دې روايت كښې دپنځلس سوو ذكردې.

**قوله: تَابَعَهُ أَبُودَاوُدَ:** يعنى ابوداود طيالسى رحمه الله دصلت بن محمد متابعت كړې دې.دا

[1] )فتح البارى(٤٤٢/٧)_
[2] )شرح الكرمانى(٦٧/١٦)_
[3] )دلائل بيهقى(٩٨/٤)_
[4] )فتح البارى(٤٤٠/٧)_

متابعت اسماعیلی موصولا ذکرکړې دې.(۱)

**قوله**: تَابَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ: حافظ ابن حجر رحمه الله دا متابعت دلته نقل کړې دې.خوپه دې خای کښې ئې په دې باندې څه کلام نه دې کړی.علامه عینی رحمه الله دلته دا هډو نقل کړې دې. خوزمونږ په نسخوکښې دا موجود دې.مطلب دا دې چه د ابوداود طیالسی رحمه الله پشان محمدبن بشار رحمه الله هم ددې متابعت کړې دې.

**قوله**: حَدَّثَنَا علي حدثنا سفيانُ: دحضرت جابر رضی الله عنه روایت امام بخاری رحمه الله په یوبل طریق سره بیانوی.په دې روایت کښې تعداد څورلس سوه خودلې شوې دې.

**قوله**: تَابَعَهُ الْأَعْمَشُ سَمِعَ سَالِمًا سَمِعَ جَابِرًا: د «تابعه» ضمیر «سفیان» طرف ته راجع کیږی.یعنی اعمش رحمه الله د سفیان بن عیینه رحمه الله متابعت کړې دې.سفیان روایت کوی«عمروبن دینارعن جابر رضی الله عنه» او اعمش رحمه الله نقل کوی«سالم عن جابر رضی الله عنه» نه.

**قوله**: وَقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ: دا تعلیق دې.دا تعلیق ابونعیم په ،،مستخرج علی مسلم،، کښې موصولا نقل کړې دې.(۲)

**قوله**: وَكَانَتْ أَسْلَمُ ثُمُنَ الْمُهَاجِرِينَ: حضرت عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه فرمائی.چه په صلح حدیبیه کښې د اسلم قبیلې خلق د مهاجرینوپه اتمه حصه وو.اوس چه د مهاجرینو رضی الله عنهم تعداد معلوم وی.نوهله د بنواسلم دتعداد چه اتمه حصه ده.دهغې پته لګیدې شی.البته واقدی نقل کړی دی.چه د بنو اسلم تعداد یوسل وو.په دې لحاظ سره د مهاجرینوتعداد به اته سوه وی.(۳)

[۳۹۲۳] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عِيسَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ أَنَّهُ سَمِعَ مِرْدَاسًا الْأَسْلَمِيَّ يَقُولُ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ يُقْبَضُ الصَّالِحُونَ الْأَوَّلُ فَالْأَوَّلُ وَتَبْقَى حُفَالَةٌ كَحُفَالَةِ التَّمْرِ وَالشَّعِيرِ لَا يَعْبَأُ اللَّهُ بِهِمْ شَيْئًا [ر:۶۰۷۰]

قیس بن حازم رحمه الله د مرداس رضی الله عنه نه روایت کوی.امام بخاری،امام ابوحاتم رازی، اوامام مسلم رحمه الله دا روایت په ،،وحدان،، کښې شمارلې دې.مطلب دا دې چه دحضرت مرداس اسلمی رضی الله عنه نه دا روایت د قیس بن حازم رحمه الله نه سوا بل نقل کونکې نشته.خوحافظ جمال الدین مزی او حافظ شمس الدین ذهبی رحمهما الله فرمائی.چه دا روایت دمرداس اسلمی نه روایت کونکې،،زیادبن علاقه،، هم دې. نوددې روایت شمیرپه ،،وحدان،، کښې نه کیږی. خوحافظ ابن حجر رحمه الله د حافظ مزی اوحافظ ذهبی رحمهما الله د قول تردید کوی.

(۱)عمدة القاری(۱۷\۲۱٤)-
(۲)فتح الباری(۷\٤٤٤)_
(۳)عمدة القاری(۱۷\۲۱۶)_

اوفرمائی.(۱) چه مرداس دوه دی.یومرداس اسلمی دې.چه دلته ئې ذکردې.اوبل مرداس بن عروه دې.زیادبن علاقه د ،،مرداس ابن عروه نه روایت کوی.د مرداس اسلمی نه روایت نه کوی.نود مرداس اسلمی نه روایت کونکې صرف قیس بن حازم دې.اودا روایت په ،،وحدان ،، کښې دې.لکه څنګه چه حافظ ابن منده.ابن ابی حاتم.اوامام بخاری رحمه الله فرمائیلی دی. باقی پاتې شوه دا خبره چه مرداس اسلمی اومرداس بن عروه دواړه جدا جدا کسان دی.اوکه دا یودی.حافظ ابن حجر رحمه الله په «الإصابة فی تمیز الصحابة» کښې تحقیق کړې دې.خو خودلی ئې دی.چه دا دوه دی یو نه دې.(۲) حضرت مرداس اسلمی رضی الله عنه د اصحاب حدیبیه څنی دې.هم په دې مناسبت سره ئې دا روایت دلته نقل کړې دې.دوی فرمائی.چه کوم کسان نیکان دی.هغوی د «الأول فالأول» قاعدې مطابق د دنیا نه رخصتیږی.اولکه څنګه چه د قجورو اود اوربشو ردی اوبې کاره بهوس روستو پاتې شی.دغه شان به سړی هم په آخرکښې ردی اوبیکاره پاتې شی.الله تعالی د داسې کسانو څه پرواه نه کوی.

[۳۹۳۶] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ مَرْوَانَ وَالْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي بِضْعَ عَشْرَةَ مِائَةً مِنْ أَصْحَابِهِ فَلَمَّا كَانَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ قَلَّدَ الْهَدْيَ وَأَشْعَرَ وَأَحْرَمَ مِنْهَا لَا أُحْصِي كَمْ سَمِعْتُهُ مِنْ سُفْيَانَ حَتَّى سَمِعْتُهُ يَقُولُ لَا أَحْفَظُ مِنَ الزُّهْرِيِّ الْإِشْعَارَ وَالتَّقْلِيدَ فَلَا أَدْرِي يَعْنِي مَوْضِعَ الْإِشْعَارِ وَالتَّقْلِيدِ أَوِ الْحَدِيثَ كُلَّهُ [ر:۱۶۰۸]

داعلی بن عبدالله مدینی رحمه الله دې.دامام بخاری اوامام مسلم رحمهما الله شیخ دې.په روایت کښې دی.کله چه نبی ﷺ مقام ذوالحلیفه ته اورسیدل.نوهدی ته ئې غاړکۍ واچوله. اواشعار ئې اوکړو.اود هغه ځاې نه نبی ﷺ احرام اوتړل.

**قوله**: لَا أُحْصِي كَمْ سَمِعْتُهُ مِنْ سُفْيَانَ: دا دعلی بن مدینی رحمه الله قول دې.دوی فرمائی.چه زه نشم شمارلې چه ما دا حدیث د سفیان نه څوځله اوریدلې دې.ددې جملې دوه مطلبونه بیان شوی دی.

① یومطلب دا دې.چه علی بن مدینی رحمه الله فرمائی.ما دا حدیث د سفیان رحمه الله نه دومره په کثرت سره اوریدلې دې.چه ماته صحیح تعداد یاد نه دې.مقصود دا دې.چه ډیرزیات مې اوریدلې دې.

② دویم مطلب علامه کرمانی رحمه الله بیان کړې دې.چه حضرت مدینی رحمه الله دا وئیل غواړی.چه سفیان رحمه الله د اصحاب حدیبیه څومره تعداد بیان کړې دې. ماته یاد نه دې.خودا مطلب صحیح نه دې.ځکه چه دابن شهاب زهری رحمه الله نه دا روایت په متعددو طرقو سره

(۱) حافظ ابن حجر رحمه الله دا تردید دابن سکن په حواله سره کړې دې.اوګورئ فتح الباری(۷/۴۴۵)_
(۲) اوګورئ (الإصابة فی تمیز الصحابة (۳/۴۰۱)_

مروی دې.اوپه ټولو طرقو کښې ((بضع عشرة مائة)) لفظ منقول دې.بیا داوئیل چه ماته یاد نه دی.چه زما استاذ څومره تعداد بیان کړې دې.نشی صحیح کیدې.(١)

**قوله**: حَتَّى سَمِعْتُهُ يَقُولُ لَا أَحْفَظُ مِنَ الزُّهْرِيِّ الْإِشْعَارَ وَالتَّقْلِيدَ: علی بن مدینی رحمه الله فرمائی.چه ما دسفیان رحمه الله نه دا اوریدلې دی.چه وئیل ئې.چه ماته د زهری نه اشعاراوتقلید یاد نه دې.یعنی په دې حدیث کښې چه د ((قلد الهدی وأشعر)) کوم الفاظ راغلی دی.دا ماته دزهری نه یاد نه دی.

**قوله**: فَلَا أَدْرِي يَعْنِي مَوْضِعَ الْإِشْعَارِ وَالتَّقْلِيدِ أَوْ الْحَدِيثَ كُلَّهُ: علی بن مدینی رحمه الله فرمائی.چه زه نه پوهیږم.چه ددې نه د حضرت سفیان رحمه الله په دې حدیث کښې صرف اشعار اوتقلید مراد دې.اوکه پوره حدیث، یعنی سفیان چه څه وئیلی دی.چه ماته د زهری رحمه الله نه اشعار او تقلید یاد نه دې.نوعلی بن مدینی رحمه الله فرمائی.چه ماته دا معلومه نه ده.چه په دې سره سفیان رحمه الله د ټول حدیث دعدم حفظ تصریح کوی.یا صرف د اشعار اوتقلید په باره کښې ښائی.چه دا ورته یاد نه دی.باقی حدیث ورته یاد دې.علی بن مدینی رحمه الله خودلته دا فرمائیلی دی.خو وړاندې هم دا روایت د عبیدالله بن محمد جعفی رحمه الله په طریق سره راغلې دې.په هغې کښې سفیان رحمه الله فرمائی. چه ((حفظت بعضه وثبتنی معمر)) یعنی ددې حدیث بعضې حصه خو ماته یاده ده.اوبعضې حصه راته معمر رحمه الله رایاده کړه.په دې سره دا خبره بې غباره کیږی. چه سفیان رحمه الله د پوره حدیث په باره کښې نه بلکه دبعضې حصې په باره کښې فرمائی.د عبیدالله بن محمدجعفی رحمه الله په روایت سره د علی بن مدینی رحمه الله په روایت کښې چه کوم تردد دې.هغه لرې کیږی.(٢)

[٣٩٢٧] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ خَلَفٍ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ وَرْقَاءَ عَنْ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي لَيْلَى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَآهُ وَقَمْلُهُ يَسْقُطُ عَلَى وَجْهِهِ فَقَالَ أَيُؤْذِيكَ هَوَامُّكَ قَالَ نَعَمْ فَأَمَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَحْلِقَ وَهُوَ بِالْحُدَيْبِيَةِ لَمْ يَتَبَيَّنْ لَهُمْ أَنَّهُمْ يَحِلُّونَ بِهَا وَهُمْ عَلَى طَمَعٍ أَنْ يَدْخُلُوا مَكَّةَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ الْفِدْيَةَ فَأَمَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُطْعِمَ فَرَقًا بَيْنَ سِتَّةِ مَسَاكِينَ أَوْ يُهْدِيَ شَاةً أَوْ يَصُومَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ [ر:١٧١٩]

حسن بن خلف واسطی رحمه الله دامام بخاری رحمه الله په صغارو شیوخوکښې دې.امام بخاری رحمه الله چه د کومو استاذانو نه استفاده کړې ده.په هغوی کښې دې د ټولونه کم عمر اوکشروو.اوبه

---

(١) وأغرب الكرمانی فحمل قول علی بن المدینی ..لاأحصیٌ کم سمعته من سفیان.. علی أنه شک فی العدد الذی سمع منه .. ویکفی فی التعقب علیه أن حدیث سفیان هذا لیس فیه تعریض للتردد فی عددهم بل الطرق کلها جازمة بأن الزهری قال فی روایته ..کانوا بضع عشرة مائة.. وانظرفتح الباری(٤٤٥/٧)_

(٢) فتح الباری(٤٤٥/٧)_

بخارى كښې ددوى نه صرف دا روايت دې.(۱) دا روايت په كتاب الحج كښې د «باب النسك شاة» لاندې تيرشوې دې.(۲)

[۳۹۲۸] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ إِلَى السُّوقِ فَلَحِقَتْ عُمَرَ امْرَأَةٌ شَابَّةٌ فَقَالَتْ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ هَلَكَ زَوْجِي وَتَرَكَ صِبْيَةً صِغَارًا وَاللَّهِ مَا يُنْضِجُونَ كُرَاعًا وَلَا لَهُمْ زَرْعٌ وَلَا ضَرْعٌ وَخَشِيتُ أَنْ تَأْكُلَهُمُ الضَّبُعُ وَأَنَا بِنْتُ خُفَافِ بْنِ إِيمَاءَ الْغِفَارِيِّ وَقَدْ شَهِدَ أَبِي الْحُدَيْبِيَةَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَقَفَ مَعَهَا عُمَرُ وَلَمْ يَمْضِ ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا بِنَسَبٍ قَرِيبٍ ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى بَعِيرٍ ظَهِيرٍ كَانَ مَرْبُوطًا فِي الدَّارِ فَحَمَلَ عَلَيْهِ غِرَارَتَيْنِ مَلَأَهُمَا طَعَامًا وَحَمَلَ بَيْنَهُمَا نَفَقَةً وَثِيَابًا ثُمَّ نَاوَلَهَا بِخِطَامِهِ ثُمَّ قَالَ اقْتَادِيهِ فَلَنْ يَفْنَى حَتَّى يَأْتِيَكُمُ اللَّهُ بِخَيْرٍ فَقَالَ رَجُلٌ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَكْثَرْتَ لَهَا قَالَ عُمَرُ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ وَاللَّهِ إِنِّي لَأَرَى أَبَا هَذِهِ وَأَخَاهَا قَدْ حَاصَرَا حِصْنًا زَمَانًا فَافْتَتَحَاهُ ثُمَّ أَصْبَحْنَا نَسْتَفِيءُ سُهْمَانَهُمَا فِيهِ

زيد بن اسلم د خپل پلاراسلم نه روايت كوى.اسلم د حضرت عمر رضي الله عنه آزاد كړې غلام وو. دوى د يمن په قيديانوكښې راغلې وو.حضرت عمر رضي الله عنه دوى په مكه كښې واخستل.اوبيا ئې آزاد كړو.(۳)

په دې روايت كښې چه كومه واقعه بيان شوې ده.هغه دا ده.چه حضرت اسلم رحمه الله فرمائى. زه دحضرت عمر رضي الله عنه سره بازار طرف ته لاړم.هلته يوه ځوانه ښځه حضرت عمر رضي الله عنه سره ملاؤ شوه.او وې وئيل.زما خاوند مړشوې دې.اوهغه واړه واړه ماشومان پريخودى دى.زه په دغه ماشومانو د فقراوفاقې نه ويريږم.زه د «خفاف بن ايماء غفارى» لور يم.او زما پلار په صلح حديبيه كښې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره شريك وو.حضرت عمر رضي الله عنه چه كله دا واوريدۀ.نودهغه ښځې سره اودريدل.اومخكښې لانړلو.بيا دوى خپل اوښ طرف ته وړاندې شو.اودوه بورۍ ئې په هغې باندې بار كړې.په كوموكښې چه د خوراك،خرچ كولوسامان،او جامې وغيره وې.اود اوښ مهارئې ښځې ته په لاس كښې وركړو.او ورته ئې اووئيل.ته دا يوسه.دا به لا ختم نه وى .چه الله تعالى به تاته نور مال دراورسوى.مطلب دا وو.چه ددې مال ختميدو پورې به مونږ نور مال تاته دراوليږو.يوسړى حضرت عمر رضي الله عنه ته اووئيل امير لمومنين تا دې ښځې ته ډير څه وركړو.امير المومنين اوفرمائيل.«ثكلتك أمك» ستا مور دې تا ورك كړى.په الله قسم زه ګورم.(يعنى نن هم هغه منظر زما د ستركووړاندې دې) چه ددې ښځې پلار او

---

(۱)عمدة القارى ۲۱۷\۱۷)_

(۲)كتاب الحج بخارى (۲٤٤\۱۱)_

(۳)عمدة القارى(۲۱۸\۱۷)_

وور د یوې قلعې محاصره کړې وه. د یوې زمانې پورې.اوهغوی دغه قلعه فتح کړه.(۱) اوبیا مونږ په داسې حال کښې صبا کړو.چه مونږ په هغه قلعه کښې خپلې حصې حاصلولې.مطلب دا دې.چه هغوی کومه قلعه فتح کړې وه.هغه د مال غنیمت په طور سره تقسیم شوه.اومونږ تراوسه پورې دهغه قلعې نه فائده اخلو.نوکه دې ښځې ته مونږ څه زیات ورکړو نو دا خبره مونږ ته بده نه دی معلومیدل پکار،

دترجمة الباب سره ددې حدیث مناسبت دا دې میرمن دا قول دې.چه ((وقد شهد الحديبية مع النبي ﷺ)) یعنی زما پلار په غزوه حدیبیه کښې شریك شوې وو.د روایت لاندینو جملو باندې هم لږ ځان پوهه کړئ.

**قوله**: وَاللّٰهِ مَا يُنْضِجُونَ كُرَاعًا وَلَا لَهُمْ زَرْعٌ وَلَا ضَرْعٌ: په الله قسم هغه ماشومان کراع (د چیلئ پښې) نشی پخولې.اونه دهغوی پټی شته.اونه پئ.

ددې جملې دوه مطلبه کیدې شی.یومطلب دا دې.چه هغه ماشومان دومره فقیران او غریبانان دی.چه د چیلئ د سوی په پخولو هم قادر نه دی.نوددې نه دهغوی دغریبئ اندازه لګولې شی.اوددې جملې دویم مطلب دا هم کیدې شی.چه هغه ماشومان دومره دکم عمر دی.چه هغوی ته د پخلی طریقه هم دخپلې کم عمرئ په وجه نه ورځی.حالانکه پانچو(پښو) په پخلوکښې دځه کاریګرئ ضرورت هم نه وی.داولنئ معنی په اعتبارسره د ماشومانو غربت مقصوددې.اود دویمې معنی په لحاظ سره د بچو کم عمری خودل مقصود دی.(۲)

**قوله**: وَخَشِيتُ أَنْ تَأْكُلَهُمُ الضَّبُعُ: ((الضبع)) د ضاد به فتحې او باء په ضمې سره،کوګ، (یوځناور دې.چه ځټ ئې کوګ وی.او انسان ماتوی) په اصل کښې ((ضبع)) قحط سالئ ته وائی.په قحط سالئ کښې خلق ډیرمری.د کثرت موتی په وجه د دې نوبت نه راځی.چه د ټولو دپاره دکفن دفن انتظام اوشی.لاشونه بهرپراته وی.نودا کوګ راشی.اوددې لاشونو غوښې خوری.ددې په مناسبت سره ده ته هم ((ضبع)) وئیلی شی.(۳)

**قوله**: مَرْحَبًا بِنَسَبٍ قَرِيبٍ: دا جمله حضرت عمر رضی الله عنه فرمائیلې ده.په دې سره دې خبرې ته اشاره ده.چه تاسو د بنو غفارسره تعلق ساتئ.اومونږد قریشو سره تعلق ساتو.اود قریشو اوبنوغفارنسب وړاندې په ،،کنانه،، باندې یوبل سره ملاویږی.(۴)

**قوله**: بَعِيرٍ ظَهِيرٍ: دا هغه اوښ ته وائی.چه د مضبوطې شا والا او طاقتور وی.

(۱) حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی.چه دا معلومه نشوه.چه دا دکومې غزا واقعه ده.ممکن ده.چه د غزوه خیبر واقعه وی.ځکه چه د قلعو محاصره هم په خیبر کښې شوې وه.(فتح الباری(۷/۴۴۶)_

(۲) عمدة القاری(۱۷/۲۱۸)_

(۳) عمدة القاری(۱۷/۲۱۸)_

(۴) فتح الباری(۷/۴۴۶)_

[٣٩٢٩/٣٩٣٢] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ بْنُ سَوَّارٍ أَبُو عَمْرٍو الْفَزَارِيُّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ لَقَدْ رَأَيْتُ الشَّجَرَةَ ثُمَّ أَتَيْتُهَا بَعْدُ فَلَمْ أَعْرِفْهَا

قال ابوعبدالله قال محمود ثم أنسيتها بعد

سعيد بن مسيب رحمه الله دخپل پلار مسيب نه روايت كوى.چه هغوى فرمائيلى دى.چه ما هغه وونه ليدلې وه (د كومې لاندې چه د صلح حديبيه په موقع نبى ﷺ بيعت اخستې وو) روسته زه هغه وونې ته راغلم.نوهغه مې اونه پيژندله.چه هغه د كيكر وونه كومه ده.دكومې دلاندې چه نبى ﷺ بيعت اخستې وو.

**قوله**: قال محمود ثم أنستها بعد: دا محمود بن غيلان رحمه الله دامام بخارى رحمه الله شيخ دې.په دې كنبې د«لقد رأيت الشجرة ثم أتيتها بعد فلم أعرفها» په خاې «لقد رأيت الشجرة ثم أنسيتها بعد» دى.

[٣٩٣٠] حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ طَارِقِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ انْطَلَقْتُ حَاجًّا فَمَرَرْتُ بِقَوْمٍ يُصَلُّونَ قُلْتُ مَا هَذَا الْمَسْجِدُ قَالُوا هَذِهِ الشَّجَرَةُ حَيْثُ بَايَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْعَةَ الرِّضْوَانِ فَأَتَيْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ سَعِيدٌ حَدَّثَنِي أَبِي أَنَّهُ كَانَ فِيمَنْ بَايَعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ قَالَ فَلَمَّا خَرَجْنَا مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ أُنْسِينَاهَا فَلَمْ نَقْدِرْ عَلَيْهَا فَقَالَ سَعِيدٌ إِنَّ أَصْحَابَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَعْلَمُوهَا وَعَلِمْتُمُوهَا أَنْتُمْ فَأَنْتُمْ أَعْلَمُ

[٣٩٣١] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ حَدَّثَنَا طَارِقٌ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ كَانَ مِمَّنْ بَايَعَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَرَجَعْنَا إِلَيْهَا الْعَامَ الْمُقْبِلَ فَعَمِيَتْ عَلَيْنَا

[٣٩٣٢] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ طَارِقٍ قَالَ ذُكِرَتْ عِنْدَ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ الشَّجَرَةُ فَضَحِكَ فَقَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي وَكَانَ شَهِدَهَا

**قوله**: حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ....: طارق بن عبدالرحمن بجلى رحمه الله فرمائى.چه زه د حج دپاره تلې ووم.نود يو قوم په خوا كنبې تيرشوم.چه هغوى مونځ كولو.ما تپوس اوكړو.چه دا كوم جمات دې؟ خلقو راته اووئيل.دا هغه وونه ده.د كومې لاندې چه نبى ﷺ د صحابو رضي الله عنهم نه بيعت رضوان اخستې وو(يعنى چونكه دا مقدم مقام دې.ددې وجې د تبرك په وجه خلق دلته مونځ كوى) بيا زه سعيدبن مسيب رحمه الله ته راغلم. ما هغوى ته دا واقعه بيان كړه.نوسعيد ماته اووئيل. زما پلار ماته وئيلى وو.چه زه په هغه كسانو كنبې شامل وم.چا چه ددې لاندې د رسول الله ﷺ سره بيعت كړې وو.زما پلار اوفرمائيل.چه كله مونږ په راروان كال (دوباره دغه خاې ) لاړو.نو زمونږ نه هغه وونه هيره شوه.اود لټون اوتلاش باوجود مونږ ته دهغې وونې پته اونه لګيده.بيا سعيد بن مسيب رحمه الله اوفرمائيل.چه دمحمد ﷺ صحابو رضي الله عنهم خو هغه وونه پيژندله نه.اوتاسونې پيژنئ.(چه هلته مو جمات جوړ كړې دې.اومونځونه كوئ)

ددې مطلب خو دا شو.چه تاسو دنبى ﷺ د صحابو رضي الله عنهم نه ښه پیژنئ.
دا وونه الله تعالى د صحابه كرامو رضي الله عنهم نه هیره كړه.اوهغوى د ښه لټون باوجود هغه بیا نه مونده.په دې كښې دا حكمت خودلې شوې دې.كه دا وونه متعین او موجود وه.نو دا ویره وه.هسې نه خلق ددې سجده شروع كړى.اود شریعت د حدودو نه تجاوز اوكړى.څكه چه په عربو كښې دا رواج هم وو.چه هغوى به بعضې وونې متبرك ګڼړلې.اوبیا به د هغې په سجده كښې لګیا كیدل.ددې وجې الله تعالى د هغه وونې پیژندګلو د زړونو نه اوویستله.

خو هم په دې باب كښې د حضرت جابر رضي الله عنه روایت تیرشوې دې.«ولوكنت أبصر اليوم لرأيتكم الشجرة» ددې نه معلومیږى.چه حضرت جابر رضي الله عنه د ډیرې زمانې تیریدو باوجود د هغه وونې ځاې پیژندل.اوبیا روسته خو هلته جمات هم جوړ كړې شو.لكه څنګه چه په دې روایت كښې د جمات ذكردې.ددې وجې د سعید بن مسیب رحمه الله دا انكار محل دنظر دې.
ابن سعد رحمه الله په صحیح سند سره دحضرت عمر رضي الله عنه نه نقل كړى دى.چه حضرت عمر رضي الله عنه ته ددې خبرې اطلاع ملاؤ شوه.چه څه خلق دغه وونې ته ورځى. اوهلته مونځ كوى.حضرت عمر رضي الله عنه هغه خلق اورټل.اودهغه وونې د كټ كولو حكم ئې اوكړو.نوهغه پرې كړې شوه.([1])
فاروق اعظم رضي الله عنه د كټ كولو دا حكم هم ددې ویرې د وجې وركړې وو.چه هسې نه خلق د وونې عبادت شروع كړى.والله اعلم.

[۳۹۳۳]حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَاهُ قَوْمٌ بِصَدَقَةٍ قَالَ اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِمْ فَأَتَاهُ أَبِي بِصَدَقَتِهِ فَقَالَ اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ أَبِي أَوْفَى [ر:۱۴۲٦]

**قوله**: وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ..: ددې روایت هم دا جزء د ترجمة الباب سره متعلق دې.اودا روایت په كتاب الزكاة كښې تیر شوې دې.([2])

[۳۹۳۴]حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ عَنْ أَخِيهِ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ الْحَرَّةِ وَالنَّاسُ يُبَايِعُونَ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْظَلَةَ فَقَالَ ابْنُ زَيْدٍ عَلَى مَا يُبَايِعُ ابْنُ حَنْظَلَةَ النَّاسَ قِيلَ لَهُ عَلَى الْمَوْتِ قَالَ لَا أُبَايِعُ عَلَى ذَلِكَ أَحَدًا بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ شَهِدَ مَعَهُ الْحُدَيْبِيَةَ [ر:۲۷۹۹]

**قوله**: وَكَانَ شَهِدَ مَعَهُ الْحُدَيْبِيَةَ: یعنى عبدالله بن زید رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره په حدیبیه كښې موجود وو.

[1] )طبقات ابن سعد (۱۰۰/۲)_
[2] )بخارى كتاب الزكاة باب صلاة الإمام دعائه لصاحب الصدقة (۲۰۳/۱)_

ددې اخری جملې په وجه ئې داروایت دلته ذکرکړو.دا روایت په کتاب الجهاد کښې تیرشوې دې.(۱) په دې روایت کښې ددې روایت د سند خصوصیت دا دې.چه ددې ټول راویان مدنی دی.(۲) ددې روایت کښې د ،،حره،، دواقعې څه ذکردې.دکومې تفصیل چه تیرشوې دې. دلته ددې بیان دې.چه خلقو د عبدالله بن حنظله په لاس باندې بیعت کولو.نو عبدالله بن زید تپوس اوکړو.دا حنظله په څه خبره باندې بیعت کوی.هغه ته اوخودلی شو.چه په مرګ باندې بیعت کوی.نوحضرت عبدالله بن زید بن عاصم رضی الله عنه اوفرمائیل.چه زه د رسول الله ﷺ نه پس د بل چا په لاس باندې د مرګ دپاره بیعت کولوته تیار نه یم.دوی په حدیبیه کښې د نبی ﷺ سره شریك وو.

[۳۹۳۵] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يَعْلَى الْمُحَارِبِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنَا إِيَاسُ بْنُ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ قَالَ كُنَّا نُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجُمُعَةَ ثُمَّ نَنْصَرِفُ وَلَيْسَ لِلْحِيطَانِ ظِلٌّ نَسْتَظِلُّ فِيهِ

دایحیی بن یعلی کوفې دې.دامام بخاری په پخوانو شیوخو رحمهم الله کښې داخل دې.په ۲۱۶ھ کښې وفات شوې وو.(۳)

دا روایت د حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه نه دې.دوی فرمائی. چه مونږ د نبی ﷺ سره د جمعې مونځ کولو.اوبیا به واپس راتلو.نو د دیوالونو به دومره سیورې نه وو.چه په هغې کښې به کیناستو.او دمه به مو کړې وه.چونکه حجازد خط استواء سره نزدې دې.ددې وجې هلته د زوال په وخت کښې سایه أصلی ډیره کمه وی.په کوم کښې چه په کیناستو سره دمه نشود کولې.

امام احمدبن حنبل رحمه الله ددې روایت نه استدلال کوی.چه دجمعې مونځ د زوال نه وړاندې کولې شی.خوجمهور امامان رحمهم الله دهغوی استدلال نه قبلوی. هغوی وائی.چه ددې روایت مقصود صرف دومره دې.چه مونږ به د جمعې په مانځه باندې تعجیل کولو.دا مطلب نه دې.چه دا به مو د زوال نه وړاندې کولو(۴)

[۳۹۳۶] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ قَالَ قُلْتُ لِسَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ عَلَى أَيِّ شَيْءٍ بَايَعْتُمْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ قَالَ عَلَى الْمَوْتِ [ر:۲۸۰۰]

دحضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه نه تپوس اوشو.چه تاسو خلقو په حدیبیه کښې د نبی ﷺ سره په کومه خبره بیعت کړې وو.نو هغوی اوفرمائیل.((علی الموت)) چه مونږ په مرګ باندې بیعت

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب البیعة فی الحرب (۴۱۵/۱)_
(۲) عمدة القاری (۲۲۰/۱۷)_
(۳) عمدة القاری(۲۲۱/۱۷)_
(۴) فتح الباری(۴۵۰/۷)_

كړې وو.په بعضې رواياتوكښې راځي.چه مونږ بيعت كړې وو.((على أن لا نفر)) چه مونږ به نه تختو.په دواړو رواياتوكښې څه تعرض نشته.د نه تختيدو مطلب هم دا دې.چه مړه به شو. خو ستا ملګرتيا به پرې نږدو.(١)

[٣٩٣٧] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ إِشْكَابٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ الْعَلَاءِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ لَقِيتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فَقُلْتُ طُوبَى لَكَ صَحِبْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَايَعْتَهُ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَقَالَ يَا ابْنَ أَخِي إِنَّكَ لَا تَدْرِي مَا أَحْدَثْنَا بَعْدَهُ

حضرت مسيب رحمه الله فرمائي.چه زه حضرت براء بن عازب رضي الله عنه سره ملاو شوم .اوهغوى ته مې اووئيل.((طوبى لك صحبت النبى صلى الله عليه وسلم وبايعته تحت الشجرة)) مبارك شې. تاسو درسول الله صلى الله عليه وسلم سره صحبت كړې دې.او د ونې د لاندې درته د بيعت كولو شرف حاصل شوې دې.نوحضرت براء رضي الله عنه اوفرمائيل ((إنك لا تدرى ما أحدثنا بعده)) يعنى تا ته معلومه نه ده.چه مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پس كوم نوى نوى څيزونه راوويستل.

دا دحضرت براء رضي الله عنه تواضع اوعاجزى وه.چه هغوى اووئيل.مونږ روسته كوتاهيانې كړې دى.مونږ روستو تقصيرات كړې دى.معلومه نه ده.چه د صحبت او بيعت كوم فضائل چه مونږ ته حاصل وو.هغه به باقى پاتې هم شى او كه نه.او دا په اصل كښې هغه واقعاتو ته اشاره ده.كوم چه د حضرت عائشې اوحضرت على رضي الله عنهما په مينځ كښې اوحضرت معاويه او حضرت على رضي الله عنهما په مينځ كښې واقع شوى وو.اګرچه په صحابه كرامو رضي الله عنهم كښې دهريو نيت حمايت حق اوحفاظت دين وو.خودا ده چه مقابله هم شوې ده.اوتصادم هم.اوپه هغې كښې كسان هم مړۀ شوى دى.ددې وجې حضرت براء رضي الله عنه به فرمائيل.((إنك لا تدرى ما أحدثنا بعده))

[٣٩٣٨] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ هُوَ ابْنُ سَلَّامٍ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِي قِلَابَةَ أَنَّ ثَابِتَ بْنَ الضَّحَّاكِ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ بَايَعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ [ر: ٣٥٦٢]

[٣٩٣٩] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ إِسْحَاقَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا قَالَ الْحُدَيْبِيَةُ قَالَ أَصْحَابُهُ هَنِيئًا مَرِيئًا فَمَا لَنَا فَأَنْزَلَ اللَّهُ لِيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ قَالَ شُعْبَةُ فَقَدِمْتُ الْكُوفَةَ فَحَدَّثْتُ بِهَذَا كُلِّهِ عَنْ قَتَادَةَ ثُمَّ رَجَعْتُ فَذَكَرْتُ لَهُ فَقَالَ أَمَّا إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَعَنْ أَنَسٍ وَأَمَّا هَنِيئًا مَرِيئًا فَعَنْ عِكْرِمَةَ [٣٥٥٣]

قتاده بن دعامه دحضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت كوى.چه هغوى فرمائيلى دى.﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا﴾ نه مراد ،،حديبيه،، ده.چونكه په دې آيت كښې خطاب نبى عليه السلام ته دې.د دې

---

(١) فتح البارى (١٧/٤٥٠)_

وجې صحابه کرامو ﷺ نبی ته اووئيل.((هنيئا مريئاً فمالنا)) يعنی تاسوته دې مبارك شي.بنه دې وی.خكه چه الله تعالى د سورة فتح د اولنى آيت نه پس نبی ﷺ ته زيرې ورکړې دې.

﴿لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ﴾ نوصحابو ﷺ عرض اوکړو.((فمالنا)) يعنى زمونږ دپاره څه دی.زمونږ په حق کښې خو څه زيرې رانغلو.نوپه دې باندې الله تعالى دا آيت نازل کړو.

﴿لِيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ ([1]) نود مومنانو دپاره هم زيرې راغلو.

د قتاده رحمه الله شاګرد شعبه رحمه الله فرمائی.چه دا حديث چه مې د قتاده رحمه الله نه واوريدل.نو زه کوفې ته لاړم.اوپوره حديث مې دهغې سنده يعنی ((قتادة عن أنس رضي الله عنه)) سره بيان کړو.بيا چه کله زه قتاده رحمه الله ته راغلم.اودا حديث مې هغوی ته ذکرکړو.نوپه هغه وخت کښې قتاده رحمه الله اووئيل.چه د ﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا﴾ تفسيرما براه راست د حضرت انس رضي الله عنه نه بلاواسطه اوريدلې دې.او((هنيئا مريئاً فمالنا)) زه د عکرمه رحمه الله په واسطه سره روايت کوم.

په اصل کښې قتاده رحمه الله اول تدليس کړې وو.ددې حديث دوه حصې دی. په اولنۍ حصه کښې د ﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا﴾ تفسير بيان شوې دې.چه د دې نه مراد صلح حديبيه ده.اوپه دويم جزء کښې د ﴿لِيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ﴾ سبب نزول بيان شوې دې.چه صحابو ﷺ عرض اوکړو.چه زمونږ دپاره خو څه زيرې نه دې نازل شوې.نوالله تعالى دا آيت نازل کړو.دحديث اولنۍ حصه قتاده رحمه الله براه راست دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت کوله.اودويمه حصه ئې براه راست د حضرت انس رضي الله عنه نه نه روايت کوله.بلکه په مينځ کښې دعکرمه رحمه الله واسطه وه. قتاده چه په اول خل دا حديث شعبه ته بيان کړې وو.نود عکرمه رحمه الله واسطه ئې په کښې نه وه ذکرکړې.بيا چه کله هغه دوباره قتاده رحمه الله ته ورغلو.نوهغوی اووئيل.چه دحديث دا دويمه حصه زه د عکرمه رحمه الله نه روايت کوم.

قتاده رحمه الله په مدلسينوکښې مشهور دې.خوامام بخاری اوامام مسلم رحمهما الله ددې مدلسينو هغه روايت نقل کوی.په کوم کښې چه د سماع تصريح وی.

[٣٩٣٠]حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ مَجْزَأَةَ بْنِ زَاهِرٍ الْأَسْلَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ وَكَانَ مِمَّنْ شَهِدَ الشَّجَرَةَ قَالَ إِنِّي لَأُوقِدُ تَحْتَ الْقِدْرِ بِلُحُومِ الْحُمُرِ إِذْ نَادَى مُنَادِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَاكُمْ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ وَعَنْ مَجْزَأَةَ عَنْ رَجُلٍ مِنْهُمْ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ اسْمُهُ أُهْبَانُ بْنُ أَوْسٍ وَكَانَ اشْتَكَى رُكْبَتَهُ فَكَانَ إِذَا سَجَدَ جَعَلَ تَحْتَ رُكْبَتِهِ وِسَادَةً

دمجزاه بن زاهر اسلمی رحمه الله په بخاری کښې صرف دوه روايتونه دی.يودا او يو دې سره

[1] )سورة الفتح (٥)_

متصل مخکښې روایت دې.[1] دوی دخپل پلار زاهر اسلمی رضی الله عنه نه روایت کوی.((وکان ممن شهد الشجرة)) اوهغوی دصلح حدیبیه په شریکانو کښې وو.هم ددې جملې په مناسبت سره امام بخاری رحمه الله دلته دا ذکرکوی.په روایت کښې د لحوم حمر(دخرو د غوښې ) حرمت بیان شوې دې.ددې تفصیل به وړاندې د غزوه خیبر په بیان کښې راشی.ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم دلحوم حمر د حرمت اعلان په غزوه خیبر کښې کړې وو.

**قوله**: وَعَنْ مَجْزَأَةَ عَنْ رَجُلٍ مِنْهُمْ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ اسْمُهُ أُهْبَانُ بْنُ أَوْسٍ: دا دماقبل سند سره متصل دې.مجزاه دیوبل سړی نه روایت کوی.کوم چه د اصحاب الشجره نه وو.دهغه نوم ،،اهبان بن اوس،، دې.[2] ددوی په زنګون کښې تکلیف وو.نوسجدې په وخت کښې به ئې دزنګون لاندې بالخ کیخودو .اوښکاره ده چه دعذر په وجه په داسې کولو کښې څه حرج نشته.

[۳۹۳۲]حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سُوَيْدِ بْنِ النُّعْمَانِ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ أُتُوا بِسَوِيقٍ فَلَاكُوهُ تَابَعَهُ مُعَاذٌ عَنْ شُعْبَةَ [ر:۲۰۶]

حضرت سویدبن نعمان رضی الله عنه چه د ((اصحاب الشجرة)) ځنې وو.فرمائی.چه نبی صلی الله علیه وسلم ته ستوان راغلل.نو نبی صلی الله علیه وسلم هغه په اوبو کښې ګډ کړل.اووې ځکل.

**قوله**: تَابَعَهُ مُعَاذٌ عَنْ شُعْبَةَ: یعنی معاذ د شعبه نه روایت کړې دې.اود ابن ابی عدی متابعت کوی.دا متابعت اسماعیلی موصولاً نقل کړې دې.[3]

[۳۹۳۳]حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيعٍ حَدَّثَنَا شَاذَانُ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي جَمْرَةَ قَالَ سَأَلْتُ عَائِذَ بْنَ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ هَلْ يُنْقَضُ الْوِتْرُ قَالَ إِذَا أَوْتَرْتَ مِنْ أَوَّلِهِ فَلَا تُوتِرْ مِنْ آخِرِهِ

د،،شاذان، معنی ،،فرحان،، راځی.دا لقب دې. ددوی نوم ،،اسود بن عامر ،، دې.[4] دوی دشعبه نه نقل کوی.چه شعبه د ،،ابوجمره،، نه روایت کوی.د ،،ابوجمره،، نوم نصربن عمران،، دې.دوی د عائذبن عمرو نه تپوس اوکړو.او دوی د اصحاب الشجره ځنې دې.چه آیا نقض وتر کولې شی؟ نو هغوی جواب ورکړو.کله چه د شپې په اوله حصه کښې تا وتر کړې وی.نو په آخری حصه کښې وتر مکوه.

---

[1] )عمدة القاری(۱۷\۲۲۳)_

[2] )اهبان (بضم الهمزة وسکون الهاء) بن أوس الأسلمی وکان ابتنی داراً فی الکوفة ومات بها فی صدر أیام معاویة رضی الله عنه .. یقال أنه هوالذی کلمه الذنب (وانظرعمدة القاری(۱۷\۲۲۳)_

[3] )فتح الباری(۷\۴۵۲)_

[4] )عمدة القاری (۱۷\۲۲۴)_

**مسئله د نقض وتر** اسحاق بن راهويه رحمه الله دنقض وتر قائل دې.اود بعضې صحابورضي الله عنهم نه هم نقض وتر منقول دی.خواحناف رحمهم الله فرمائی.چه نقض وتر څه څيز نه دې.اود امام مالك اوامام شافعي رحمهما الله په نيز هم نقض وتر څه څيز نه دې.امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی.چه اصل هم دا دې.چه نقض وتر به نشي كولې.خوكه څوك ئې اوكړي.نو زما خيال دې.چه دده دپاره به په جواز كښې گنجائش راوځي.ځكه چه دبعضې صحابورضي الله عنهم نه نقض وتر منقول دی.(١) د نقض وتر مطلب دا دې.چه د شپې اول كښې يوكس وتر اوكړي.اوبيا د شپې په آخر كښې دهغه سترگې اوغړيدې.اوهغه تهجد كول غواړي.نو څونكه نبى صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دی.«اجعلوا آخر صلاتكم بالليل الوتر» (٢)(په شپه كښې وتر آخرې مونځ اوگرځوئ) ددې وجې چه د شپې په اول كښې ئې كوم وتر كړې وی.هغه دې مات كړې شی.اودا نقض وتر به داسې وی.چه د تهجدوكولونه وړاندې دې يو ركعت د ماخسوتن نه پس چه ئې كوم درې ركعته وتر كړې وی.هغې سره د ملاوهلو په نيت سره اوكړي.نودا څلور ركعتونه به نفل شی.اود شپې په اول كښې چه ئې كوم وتر كړې وی.هغه به مات شی.

په روايت باب كښې د نقض وترنفي منقول ده.باقي د«اجعلوا آخر صلاتكم بالليل وترا» مطلب دا دې.كه دچا يقين وی.چه دې به دتهجدو په وخت كښې پاسی.نوهغه دې وتر دهغه وخت دپاره پريږدی.اود تهجدو نه پس دې هغه اوكړي. خوكه يوكس د شپې په اول كښې وتر كړې وی.نودتهجدو په وخت كښې دې دوباره نه كوی.ځكه چه دطلق بن علي رضي الله عنه روايت په ابوداود كښې موجود دې.اوهغه نسائی اوترمذی رحمهما الله هم نقل كړې دې.امام ترمذی رحمه الله هغې ته حسن وئيلې دې.اوابن حبان او ابن خزيمه رحمهما الله هغه صحيح گرځولې دې.چه نبى صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دی.«لا وتران في ليلة» (٣)يعنى په يوه شپه كښې دوه وتره نشته.

[٤٣٠٣] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسِيرُ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ وَعُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَسِيرُ مَعَهُ لَيْلًا فَسَأَلَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عَنْ شَيْءٍ فَلَمْ يُجِبْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ سَأَلَهُ فَلَمْ يُجِبْهُ ثُمَّ سَأَلَهُ فَلَمْ يُجِبْهُ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا عُمَرُ نَزَرْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ

---

(١) په مسند احمد كښې د حضرت ابن عمررضي الله عنهما نه نقض وتر منقول دی.اوگورئ مجمع الزوائد (٢\٢٤٦)_

(٢) صحيح بخاری باب ليجعل آخر صلاته وتراً كتاب الصلاة (١\١٣٦) وصحيح مسلم باب صلاة الليل وعدد ركعات النبى صلى الله عليه وسلم (١\٢٥٧)_

(٣) رواه أبوداودرقم ١٤٣٩ فى الصلاة باب فى نقض الوتر رقم ٤٥٠، والترمذى فى الصلاة باب ماجاء لا وتران فى ليلة والنسائى (٢٢٩و ٢٣٠) فى قيام الليل باب نهى النبى صلى الله عليه وسلم عن الوتر فى ليلة وانظر تفصيل المسئلى فى الفتح (٢\٤٨١) كتاب الوتر)_

مَرَّاتٍ كُلَّ ذٰلِكَ لَا يُجِيبُكَ قَالَ عُمَرُ فَحَرَّكْتُ بَعِيرِي ثُمَّ تَقَدَّمْتُ أَمَامَ الْمُسْلِمِينَ وَخَشِيتُ أَنْ يَنْزِلَ فِيَّ قُرْآنٌ فَمَا نَشِبْتُ أَنْ سَمِعْتُ صَارِخًا يَصْرُخُ بِي قَالَ فَقُلْتُ لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ يَكُونَ نَزَلَ فِيَّ قُرْآنٌ وَجِئْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ لَقَدْ أُنْزِلَتْ عَلَيَّ اللَّيْلَةَ سُورَةٌ لَهِيَ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ ثُمَّ قَرَأَ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا [ر: ۴۸۳۳ ، ۴۵۵۳]

حضرت اسلم رضی الله عنه فرمائی.چه رسول الله ﷺ په یوسفرباندې تشریف اوړلو.دلته د سفر تعین نشته.دطبرانی رحمه الله په روایت کښې تصریح ده.چه دا د حدیبیه سفر وو.(١) نبی ﷺ د حدیبیه نه واپس راتلو.حضرت عمر رضی الله عنه ورسره روان وو.د شپې وخت وو.حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د نبی ﷺ نه د څه خبرې تپوس اوکړو.نبی ﷺ ورته جواب ورنکړو.جواب ددې وجې نبی ﷺ ورنکړو.چه په ذکرقلبی کښې مشغول وو. اوالتفات ئې اونشو اودا هم ممکن ده.چه په دغه وخت کښې په نبی ﷺ باندې وحی نازلیده.ځکه ئې جواب ورنکړو.حضرت عمر رضی الله عنه دا اوګڼړل.چه نبی ﷺ تپوس نه دې اوریدلې.نودوباره ئې تپوس اوکړو.خو نبی ﷺ جواب ورنکړو.په دریم ځل تپوس کولوباندې هم نبی ﷺ جواب ورنکړو.کله چه ئې درې ځله تپوس اوکړو.او دنبی ﷺ نه جواب ملاؤ نشو.نوحضرت عمر رضی الله عنه اوونیل.

**قوله: ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا عُمَرُ نَزَرْتَ (٢) رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ كُلَّ ذٰلِكَ لَا يُجِيبُكَ:** عمره! ستا مور دې تا ورك كړى.تا د رسول الله ﷺ نه درې ځله (دسوال د جواب دپاره) اصرار اوكړو.خو رسول الله په يوځل هم تا ته جواب درنكړو.حضرت عمر رضی الله عنه ته تشويش اوپريشانى شوه.حضرت عمر رضی الله عنه فرمائى.چه ما خپل اوښ ته پونده وركړه(يعنى تيز مې كړو) او د مسلمانانو ته وړاندې لاړم.حضرت عمر رضی الله عنه ددې نه وړاندې چونكه څه جذباتى خبرې د رسول الله ﷺ او حضرت ابوبكر رضی الله عنه سره كړې وې.ددې وجې اوويريدل.او دا ويره شوه ورسره.چه زما په باره كښې به د قرآن پاك څه آيت نازل شى. حضرت عمر رضی الله عنه فرمائى.چه اوس لږ غوندې وخت تيرشوې وو.چه ما د يوآواز كونكى آواز واوريدو.هغه ماته آواز كولو.وائى.چه ما سره ويره شوه.چه زما په باره كښې به قرآن پاك نازل شوې وى.(اوپه هغې كښې به په ما باندې عتاب راغلى وى)نوزه نبى ﷺ ته راغلم.او سلام مې واچولو.نبى ﷺ اوفرمائيل .په نن شپه كښې ما باندې داسې سورت نازل شوې دې.چه هغه ماته دهرهغه څيزنه زيات محبوب دې.په كوم باندې چه نمر راختلى وى.مطلب دا دې.چه هغه څيزماته د دنيا دهريوڅيز نه زيات خوښ اومحبوب دې.ددې نه پس نبى ﷺ د سورة فتح تلاوت اوكړو.

[۴۲۴۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ حِينَ حَدَّثَ هٰذَا الْحَدِيثَ حَفِظْتُ بَعْضَهُ وَثَبَّتَنِي مَعْمَرٌ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ وَمَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ يَزِيدُ

---

(١) فتح البارى (٥٨٣/٨)_
(٢) نزرت (بفتح النون وتشديد الزاء) أى الححت وضيقت عليه حتى احرجته (عمدة القارى (٢٢٥/١٧)_

أَحَدُهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ قَالَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي بِضْعَ عَشْرَةَ مِائَةً مِنْ أَصْحَابِهِ فَلَمَّا أَتَى ذَا الْحُلَيْفَةِ قَلَّدَ الْهَدْيَ وَأَشْعَرَهُ وَأَحْرَمَ مِنْهَا بِعُمْرَةٍ وَبَعَثَ عَيْنًا لَهُ مِنْ خُزَاعَةَ وَسَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى كَانَ بِغَدِيرِ الْأَشْطَاطِ أَتَاهُ عَيْنُهُ قَالَ إِنَّ قُرَيْشًا جَمَعُوا لَكَ جُمُوعًا وَقَدْ جَمَعُوا لَكَ الْأَحَابِيشَ وَهُمْ مُقَاتِلُوكَ وَصَادُّوكَ عَنِ الْبَيْتِ وَمَانِعُوكَ فَقَالَ أَشِيرُوا أَيُّهَا النَّاسُ عَلَيَّ أَتَرَوْنَ أَنْ أَمِيلَ إِلَى عِيَالِهِمْ وَذَرَارِيِّ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ يُرِيدُونَ أَنْ يَصُدُّونَا عَنِ الْبَيْتِ فَإِنْ يَأْتُونَا كَانَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ قَطَعَ عَيْنًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَإِلَّا تَرَكْنَاهُمْ مَحْرُوبِينَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللَّهِ خَرَجْتَ عَامِدًا لِهَذَا الْبَيْتِ لَا تُرِيدُ قَتْلَ أَحَدٍ وَلَا حَرْبَ أَحَدٍ فَتَوَجَّهْ لَهُ فَمَنْ صَدَّنَا عَنْهُ قَاتَلْنَاهُ قَالَ امْضُوا عَلَى اسْمِ اللَّهِ [ر: ۱۶۰۸]

**قوله:** حَفِظْتُ بَعْضَهُ وَثَبَّتَنِي مَعْمَرٌ: ددې جملې متعلق په تفصیل سره کلام تیرشوې دې.

**قوله:** وَبَعَثَ عَيْنًا لَهُ مِنْ خُزَاعَةَ: دهغه خزاعی جاسوس نوم ما ، بسربن سفیان، خودلې وو.([1]) بعضې حضراتو بشربن سفیان دهغه نوم نقل کړې دې.([2])

**قوله:** حتی كان بغدير الأشطاط أتاه عينه....: دابن اسحاق بیان دې چه په مقام عسفان کښې جاسوس راغلې وو.([3]) اود بخاری ددې روایت نه معلومیږی چه په غدیرا شطاط کښې جاسوس راغلې وو.خو په دې کښې څه تعارض نشته.امام احمدبن حنبل چه کوم روایت نقل کړې دې.د هغې نه وضاحت کیږی.((أتاه عينه بغدير الأشطاط وهو قريب من عسفان)) چونکه غدیراشطاط او عسفان دواړه نزدې نزدې وو.ددې وجې ئې په یو روایت کښې د یو نوم او په بل کښې د بل مقام نوم ذکر کړې دې.([4])

**یواشکال اود هغې جواب** دلته دا اشکال کیږی.چه د بخاری د کتاب الشروط د روایت نه خو دا پته لګی.چه نبی ﷺ په مقام غمیم کښې د خالد بن ولید د راتلو خبر صحابوﷺ ته ورکړې وو.([5]) حضرت شیخ الحدیث په ((جزء الحج والعمرة)) کښې هم دا نقل کړی دی.چه د نبی ﷺ ته اطلاع علی الغیب په طور الله تعالی دا خبره اوخودله.اوترکومې پورې چه د جاسوس خبره ده.نوهغه صرف د قریشو د جمع کیدو نبی ﷺ ته خبر ورکړو.دخالدبن ولید د

---

[1] عمدة القاری(۱۷\۲۲۵و ۲۲۶)_

[2] فتح الباری (۷\۴۵۴)_

[3] سیرة ابن هشام (۳\۳۲۲)_

[4] فتح الباری (۵\۳۳۴)_

[5] د بخاری دکتاب الشروط د په روایت کښې دی.((حتی إذا كانوا ببعض الطريق قال النبی ﷺ إن خالد بن وليد بالغميم في خيل لقريش طليعة فخذوا ذات اليمين ... )) صحیح البخاری کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد رقم ۲۷۳۱)_

راتلو خبر هغه نه وو ورکړې.خود ابن اسحاق په روايت کښې دا صراحت موجود دې.چه جاسوس د خالد بن وليد د راتلو خبر هم ورکړو.او د قريشو دجمع کيدو اطلاع هم ورکړه.(۱)

په دې رواياتو کښې د تطبيق صورت هم دا کيدې شي.چه په اصل کښې هغه جاسوس نبی ﷺ ته د دواړو خبرو خبر ورکړې وو.او هغه د خبر ورکولونه پس نبی ﷺ صحابه کرامو ؓ ته هغه خبره بيان کړه.نو په کومو رواياتو کښې چه دی.چه نبی ﷺ دخالد بن وليد د راتلو خبر صحابه کرامو ؓ ته ورکړو.نود هغې مطلب دا دې.چه د جاسوس د خبر ورکولو نه پس نبی ﷺ صحابو ؓ ته وئيلی وی.والله اعلم.

**قوله:** وَقَدْ جَمَعُوا لَكَ الْأَحَابِيشَ :«احابيش»د«أحبوش» جمع ده.(۲) بعضې حضرات فرمائی. چه په اصل کښې احبوش ډلې ته وائی.نود«أحابيش»معنی شوه ،،ډلې،، اوابن دريد ؒ فرمائی. چه ،،حبشی،، ذ يو غر نوم دې.دهغې لاندې جمع شوی وو.مختلفو قبيلو دا معاهده کړې وه.چه د مسلمانانو خلاف به په شريکه جنګ کوو.ددې ،،حبشی،، غر په مناسبت سره دې خلقو ته ،،احابيش،، وئيلی شی.(۳)

«الأشطاط»دا لفظ دبخاری په اکثرونسخو کښې نشته.اوبه ظاهره معلوميږی . چه دا د راوی وهم دې.که دا صحيح اومنلې شی.نو بيا به دې وئيلو ته ضرورت پيښيږی.چه دا د «شطط» جمع ده.او ددې معنی تجاوز راځی.(۴)

د«الأحابيش الأشطاط» معنی به وی.دا ډلې چه هغوی د تعداد او شمار نه تير شوی دی.اودا به کنايه وی.د هغوی د کثرت نه،نو معنی به شی.«جمعوالك الجماعات الكثيرة»

**قوله:** فَقَالَ أَشِيرُوا أَيُّهَا النَّاسُ عَلَيَّ أَتَرَوْنَ أَنْ أَمِيلَ إِلَى عِيَالِهِمْ وَذَرَارِيِّ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ يُرِيدُونَ أَنْ يَصُدُّونَا عَنِ الْبَيْتِ: نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل.خلقو ماته مشوره راکړئ.ستاسو څه خيال دې.دا کوم خلق چه مونږ د بيت الله نه منع کول غواړی.آيا ددوی د بچو او عيال طرف ته لاړ شم.

**قوله:** فَإِنْ يَأْتُونَا كَانَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ قَطَعَ عَيْنًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ :نوکه دا خلق مونږ ته (د خپلو بچو د حفاظت په غرض) راشی.نو الله تعالی به د مشرکانو نه يو ډله جدا کړی.اوکه دغه خلق مونږ ته رانغلل.نومونږ به دوی ته شکست ورکړو.

---

۱ ،اوګورئ (سيرة ابن هشام (۳۲۲/۳)_
۲ ،تعليقات لامع الدراری للشيخ زکريا ؒ (۳۴۷/۸)_
۳ ،اوګورئ النهاية لابن الأثير (۳۳۰/۱۱)_
۴ ، وفی مختار الصحاح (۳۳۷و ۳۳۸) الشطط بفتحتين مجاوزة القدر فی کل شئ وفی الحديث ((لها مهرمثلها لا وکس ولا شطط)) أی لانقصان ولا زيادة)_

((عين)) معنى جاسوس راځي.دغه شان ددې معنى ډله هم راځي.دلته دواړه معاني مراد كيدې شي.دلته د جملې مختلف مطلبونه بيان شوى دى.

① يو مطلب ددې دا دې.چه قريشو سره ډيرې قبيلې جمع شوى دى.او روسته دهغوى اهل وعيال غير محفوظ دى.نومونږ به ددې قبيلو په كورونو باندې حمله اوكړو.چه د حملې خبر دې قبيلو ته اورسى.نو دوى خو به يا دخپلو بچو د حفاظت دپاره مونږ سره دجنګ دپاره راځى..نوقريش به كمزورى شى.ځكه چه دهغوى جمع شوې لښكربه منتشر شى.او هم دا مطلب دې د ((كان الله عزوجل قد انقطع عيناً من المشركين)) يعنى ((كان الله عزوجل قطع من المشركين جماعة)) يعنى الله تعالى د مشركانو نه يو جماعت او ډله قطع او جدا كړه.اوكه دغه خلق دخپل اهل وعيال د حفاظت دپاره رانشى.نو مونږ به هغوى شكست خوړلې پريږدو.ځكه چه دهغوى په بچو، ښځو او كورونو به مو قبضه كړې وى.

په دې صورت كښې د ((عين)) معنى ډله اخستې شوې ده.دا مطلب په زاد المعاد كښې حافظ ابن قيم د امام احمد بن حنبل رحمه الله په حوالې سره متعين كړې دې.هلته د روايت الفاظ دا دى.((وان يجيئوا تكن عنقا قطعها الله))([1]) ((عنق)) ډلې ته وائى.اوچونكه د ((عين)) معنى د ډلې هم راځى.([2]) ځكه ددې روايت په بناء باندې به دلته هم د ((عين)) نه ډله مراد وى.اوهم دا مطلب مولانا رشيد احمد ګنګوهى رحمه الله په ((لامع الدرارى)) كښې بيان كړې دې.هغوى فرمائى ((ومعنى قوله قطع عيناً من المشركين أى جماعة من المشركين فإن الكفار لما رجعوا إلى أهليهم لم يبق مع أهل مكة منهم أحد فتقل جماعتهم..)) ([3])

② خوكه په ((قطع عيناً من المشركين)) كښې د ((عين)) نه مراد جاسوس واخستې شى.نو په دغه وخت كښې به مطلب دا وى.چه كله مونږ ددې كافرانو په كورونو باندې حمله اوكړواوهغوى دخپل اهل وعيال دحفاظت دپاره مونږ ته راشى.نوبيا به مونږ ته اهل مكه طرف ته د جاسوس ليږلو ضرورت نه وى.ځكه چه جاسوس د دشمن د تعداد وغيره معلوملو دپاره ليږلې شى.اوهركله چه مونږ ته معلومه شى. چه هلته صرف قريش دى.باقى قبيلې تلى دى. نود جاسوس ضرورت به باقى پاتې نشى.د((قطع عيناً من المشركين)) مطلب به وى.الله تعالى مشركانو طرف ته د جاسوس ليږلو ضرورت زمونږ نه ختم او قطع كړو.

③ اوصاحب د لامع الدرارى رحمه الله فرمائى.((ويمكن أن يكون المعنى أنهم إذا رجعوا إليهم لم تحتج إلى بعث جاسوس، إلى مكة ليعلم لنا علم من اجتمع فيها من الكفار، إذ لا يبقى هناك غير قريش، فلا يحتاج إلى بعث

---

[1] زاد المعاد (۲۸۹\۳)_
[2] تعليقات لامع الدرارى (۳۴۵\۸)_
[3] لامع الدرارى (۳۴۶\۸و ۳۴۷)_

جاسوس، لحصول العلم بأنه ليس فيها أحد ممن سواهم»[1] په «قطع عينا من المشركين» كښې ،،عيناً،، د جاسوس په معنى كښې اخلى. د دې جملې معنى علامه عينى،قسطلانى او محشى هم بيان كړې ده.اوهغه دا كه دا مشركانو د جنګ كولو دپاره مونږ ته راشى.نو په دغه صورت كښې كه مونږ هغوى ته جاسوس اوليږو.ددې به څه فائده نه وى.دجاسوس د خبر راوړو نه پس هم كه د مشركانو سره د جنګ نوبت راشى.نوددې مطلب به دا وى.چه مونږ هډو جاسوس ليږلې نه وو.الله تعالى زمونږ جاسوس كوم چه مونږ د مشركانو خبر راوړو دپاره ليږلې وو.قطع كړو.يعنى بې فائدې او بې اثره كړو.[2]

خو ددې جملې دا مطلب صحيح نه دې.ځكه چه ددې مطلب بنياد په دې مفروضه باندې دې.چه د جاسوس فائده د جنګ نه بچ كيدل دى.نوكه جنګ اوشو.نو د جاسوس څه فائده اونشوه.خودا مفروضه صحيح نه ده.ځكه چه ډيركرته د جاسوس ليږلو باوجود جنګ اوشى.خود جاسوس په خبرونو سره په نورو احتياطى تدبيرونو كښې مدد ملاويږى.او دجاسوس فائده وى.

[۳۹۳۵]حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا يَعْقُوبُ حَدَّثَنِي ابْنُ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهِ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّهُ سَمِعَ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ يُخْبِرَانِ خَبَرًا مِنْ خَبَرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي عُمْرَةِ الْحُدَيْبِيَةِ فَكَانَ فِيمَا أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ عَنْهُمَا أَنَّهُ لَمَّا كَاتَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُهَيْلَ بْنَ عَمْرٍو يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ عَلَى قَضِيَّةِ الْمُدَّةِ وَكَانَ فِيمَا اشْتَرَطَ سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو أَنَّهُ قَالَ لَا يَأْتِيكَ مِنَّا أَحَدٌ وَإِنْ كَانَ عَلَى دِينِكَ إِلَّا رَدَدْتَهُ إِلَيْنَا وَخَلَّيْتَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُ وَأَبَى سُهَيْلٌ أَنْ يُقَاضِيَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا عَلَى ذَلِكَ فَكَرِهَ الْمُؤْمِنُونَ ذَلِكَ وَامَّعَضُوا فَتَكَلَّمُوا فِيهِ فَلَمَّا أَبَى سُهَيْلٌ أَنْ يُقَاضِيَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا عَلَى ذَلِكَ كَاتَبَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَدَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَا جَنْدَلِ بْنَ سُهَيْلٍ يَوْمَئِذٍ إِلَى أَبِيهِ سُهَيْلِ بْنِ عَمْرٍو وَلَمْ يَأْتِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَدٌ مِنَ الرِّجَالِ إِلَّا رَدَّهُ فِي تِلْكَ الْمُدَّةِ وَإِنْ كَانَ مُسْلِمًا وَجَاءَتِ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ فَكَانَتْ أُمُّ كُلْثُومٍ بِنْتُ عُقْبَةَ بْنِ أَبِي مُعَيْطٍ مِمَّنْ خَرَجَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ عَاتِقٌ فَجَاءَ أَهْلُهَا يَسْأَلُونَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَرْجِعَهَا إِلَيْهِمْ حَتَّى أَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى فِي الْمُؤْمِنَاتِ مَا أَنْزَلَ

[۳۹۳۶]قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَأَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْتَحِنُ مَنْ هَاجَرَ

---

[1] لامع الدرارى (۸\۲۴۶و ۲۴۷)_

[2] عمدة القارى (۱۷\۲۲۶)_

مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ بِهَذِهِ الْآيَةِ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ وَعَنْ عَمِّهِ قَالَ بَلَغَنَا حِينَ أَمَرَ اللَّهُ رَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَرُدَّ إِلَى الْمُشْرِكِينَ مَا أَنْفَقُوا عَلَى مَنْ هَاجَرَ مِنْ أَزْوَاجِهِمْ وَبَلَغَنَا أَنَّ أَبَا بَصِيرٍ فَذَكَرَهُ بِطُولِهِ

**قوله**: حدثني اسحاق .. حدثني ابن أخي بن شهاب: دابن شهاب د وراره نوم ،،محمد بن عبدالله،، دي.

**قوله**: فَكَرِهَ الْمُؤْمِنُونَ ذَلِكَ وَامَّعَضُوا فَتَكَلَّمُوا فِيهِ: ((امعضوا))اصل كښې((انمعضوا))وو.دنون په ميم كښې ادغام اوشو، ((امعضوا))ترې جوړ شو.ددې معنى ده.بې مزې،ناخوښول.مطلب دا دې.چه اهل ايمان په دې صلح بې خونده شول.او هم په زړه كښې دننه دننه ئې خفگان كولو.

**قوله**: وَجَاءَتِ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ ....: مسلماناني ښځې د صلح حديبيه نه پس نبى ﷺ ته راغلې.مشركانو د دوى د واپسئ مطالبه اوكړه.خو نبى ﷺ د دوى د واپس كولو نه انكار اوكړو.يو خو ددې وجې چه په صلح كښې د ((رجل)) لفظ وو.نو ښځه د صلحې د شرائطو په پابندئ كښې داخله نه وه.او دويم د دې وجې چه قرآن كريم حكم وركړې وو.چه ﴿فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ إِلَى الْكُفَّارِ﴾ (1)

دلته دا سوال كيږى.چه د ﴿فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ﴾ حكم د صلح په عام حكم كښې تخصيص وو.او كه د.صلحې دحكم نسخ وه.په دې باره كښې د ابن عربى او د نورو حضراتو رائې دا ده.چه دقرآنى حكم په وجه د صلح په عام حكم كښې تخصيص اوشو.البته د بعضې نورو حضراتو رائې ده.چه حكم قرآنى ددې حكم ناسخ دې.

په دې صورت كښې دا مسئله پيدا كيږى.چه آيا قرآن د سنت دپاره ناسخ كيدې شي؟دامام شافعى رحمه الله مشهور قول دا دې.چه قرآن د سنت دپاره ناسخ نشى كيدې.خو نور حضرات فرمائى، چه لكه څنگه د قرآن يو آيت د بل آيت دپاره ناسخ جوړيدې شى.دغه شان قرآن د حديث دپاره هم ناسخ كيدې شى.(2)

[۴۱۸۳/۴۱۸۴] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا خَرَجَ مُعْتَمِرًا فِي الْفِتْنَةِ فَقَالَ إِنْ صُدِدْتُ عَنِ الْبَيْتِ صَنَعْنَا كَمَا صَنَعْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَهَلَّ بِعُمْرَةٍ مِنْ أَجْلِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ

[۴۱۸۵] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ أَهَلَّ وَقَالَ إِنْ حِيلَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ لَفَعَلْتُ كَمَا فَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ حَالَتْ كُفَّارُ قُرَيْشٍ

---

1) سورة الممتحنة:۱۰)_

2) اوگورئ كشف الأسرار على أصول فخر الإسلام (۳/۱۷۵و۱۷۶) باب تقسيم الناسخ)_

بَيْنَهُ وَتَلَا لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ

[٣٩٣٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَسْمَاءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ وَسَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ أَخْبَرَاهُ أَنَّهُمَا كَلَّمَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ بَعْضَ بَنِي عَبْدِ اللَّهِ قَالَ لَهُ لَوْ أَقَمْتَ الْعَامَ فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ لَا تَصِلَ إِلَى الْبَيْتِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ دُونَ الْبَيْتِ فَنَحَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدَايَاهُ وَحَلَقَ وَقَصَّرَ أَصْحَابُهُ وَقَالَ أُشْهِدُكُمْ أَنِّي أَوْجَبْتُ عُمْرَةً فَإِنْ خُلِّيَ بَيْنِي وَبَيْنَ الْبَيْتِ طُفْتُ وَإِنْ حِيلَ بَيْنِي وَبَيْنَ الْبَيْتِ صَنَعْتُ كَمَا صَنَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ مَا أُرَى شَأْنَهُمَا إِلَّا وَاحِدًا أُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ أَوْجَبْتُ حَجَّةً مَعَ عُمْرَتِي فَطَافَ طَوَافًا وَاحِدًا وَسَعْيًا وَاحِدًا حَتَّى حَلَّ مِنْهُمَا جَمِيعًا [ر: ١٥٥٨]

**قوله**: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ: حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د فتنې په زمانه كښې د عمرې په اراده روان شو.(د فتنې نه د حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنهما او حجاج بن يوسف قضيه مراد ده) وې فرمائيل.كه مونږ د بيت الله د تګ نه منع كړې شو.نو بيا به هم هغه طريقه اختياروو،كومه چه رسول الله ﷺ اختيار كړې وه.نو دوى د عمرې احرام اوتړلو.ځكه چه نبى ﷺ هم د حديبيه په كال د عمرې احرام تړلې وو.

**قوله**: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ:په دې روايت كښې هم د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د عمرې واقعه ذكر ده.

**قوله**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ: دا په دريم سند سره امام بخارى رحمه الله د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما واقعه ذكر كوى.اودا تفيصلى دې.

[٣٩٥٠/٣٩٥١] حَدَّثَنِي شُجَاعُ بْنُ الْوَلِيدِ سَمِعَ النَّضْرَ بْنَ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا صَخْرٌ عَنْ نَافِعٍ قَالَ إِنَّ النَّاسَ يَتَحَدَّثُونَ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ أَسْلَمَ قَبْلَ عُمَرَ وَلَيْسَ كَذَلِكَ وَلَكِنْ عُمَرُ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ أَرْسَلَ عَبْدَ اللَّهِ إِلَى فَرَسٍ لَهُ عِنْدَ رَجُلٍ مِنْ الْأَنْصَارِ يَأْتِي بِهِ لِيُقَاتِلَ عَلَيْهِ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَايِعُ عِنْدَ الشَّجَرَةِ وَعُمَرُ لَا يَدْرِي بِذَلِكَ فَبَايَعَهُ عَبْدُ اللَّهِ ثُمَّ ذَهَبَ إِلَى الْفَرَسِ فَجَاءَ بِهِ إِلَى عُمَرَ وَعُمَرُ يَسْتَلْئِمُ لِلْقِتَالِ فَأَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَايِعُ تَحْتَ الشَّجَرَةِ قَالَ فَانْطَلَقَ فَذَهَبَ مَعَهُ حَتَّى بَايَعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهِيَ الَّتِي يَتَحَدَّثُ النَّاسُ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ أَسْلَمَ قَبْلَ عُمَرَ

شجاع بن الوليد داامام بخارى رحمه الله د زمانې وو.اودهغوى په بخارى كښې صرف دا يو روايت دې.[1] دوى د نضربن محمد نه روايت كوى.د نضربن محمد هم په بخارى كښې صرف دا يو روايت دې.[2]

[1] عمدة القارى(١٧\٢٢٨)_

[2] عمدة القارى(١٧\٢٢٨)_

نافع وائي.چه خلق دا وائي،چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د حضرت عمر رضي الله عنه نه وړاندې مسلمان شوې دې.حال دا چه دا خبره صحيح نه ده،بلكه داسې شوې وه.چه حضرت عمر رضي الله عنه د صلح حديبيه په موقع باندې حضرت ابن عمر رضي الله عنهما يو انصارى د خپل اس راوستو دپاره اوليږلو.په دغه دوران كښې نبى صلى الله عليه وسلم د ونې لاندې بيعت اخستل شروع كړو.حضرت عمر رضي الله عنه ته لا معلومه نه وه.چه د بيعت سلسله شروع شوې ده.حضرت عبدالله اول بيعت اوكړو.او بيا د اس راوستو دپاره لاړو .كله چه دوى حضرت عمر رضي الله عنه ته اس راوستلو.نو دوى د جنګ دپاره زغره اغوستله.حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ورته اووئيل.چه نبى صلى الله عليه وسلم بيعت اخلى.نو حضرت عمر رضي الله عنه لاړلو.نو د نبى صلى الله عليه وسلم سره ئې بيعت اوكړو.بس دومره خبره وه،اوخلقو مشهوره كړه.چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د حضرت عمر رضي الله عنه نه وړاندې مسلمان شوې دې.

[۳۹۵۱]وَقَالَ هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْعُمَرِيُّ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّاسَ كَانُوا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ تَفَرَّقُوا فِي ظِلَالِ الشَّجَرِ فَإِذَا النَّاسُ مُحْدِقُونَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا عَبْدَ اللَّهِ انْظُرْ مَا شَأْنُ النَّاسِ قَدْ أَحْدَقُوا بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَهُمْ يُبَايِعُونَ فَبَايَعَ ثُمَّ رَجَعَ إِلَى عُمَرَ فَخَرَجَ فَبَايَعَ

دا تعليق دې.اسماعيلى دا موصولاً نقل كړې دې.(١)

حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائي.چه د نبى صلى الله عليه وسلم سره په حديبيه كښې كوم كسان وو.هغوى هلته د ونو په سيورى كښې خوارۀ وارۀ شول.ناڅاپه ما اوكتل.چه خلق دنبى صلى الله عليه وسلم نه ګيرچاپيره راتاو شوى دى.نوحضرت عمر رضي الله عنه اووئيل.عبدالله لږ اوګوره ،چه دا څه قصه ده؟ ابن عمر رضي الله عنهما چه كله لاړلو.او وې كتل.چه خلق بيعت كوى. نو هغوى پخپله بيعت اوكړو.او بيا راغلو.حضرت عمر رضي الله عنه ته ئې خبر وركړو.نو هغوى هم لاړلو.او بيعت ئې اوكړو.

ددې نه په وړاندينى روايت كښې وو.چه حضرت عمر رضي الله عنه عبدالله رضي الله عنه ته اووئيل.چه انصارى سره زما اس دې.هغه راوله.او په دې روايت كښې دى.چه حضرت عمر رضي الله عنه اووئيل.لږ اوګوره. چه دا خلق د نبى صلى الله عليه وسلم نه ګيرچاپيره ولې راجمع كيږى؟

خو په دې دواړو خبرو كښې څه تعارض نشته.كيدې شى،حضرت عمر رضي الله عنه ابن عمر رضي الله عنهما ته دواړه خبرې كړې وى.چه اس راوله.او اوګوره چه دا خلق ولې راجمع كيږى.يو راوى دا خبره بيان كړې ده.اوبل راوى دويمه خبره ذكر كړې ده.(٢)

[۳۹۵۱]حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا يَعْلَى حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ اعْتَمَرَ فَطَافَ فَطُفْنَا مَعَهُ وَصَلَّى وَصَلَّيْنَا مَعَهُ وَسَعَى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَكُنَّا نَسْتُرُهُ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ لَا يُصِيبُهُ أَحَدٌ بِشَيْءٍ

---

(١) عمدة القارى (٢٢٩/١٧)_

(٢) فتح البارى (٤٥٦/٧)_

دامحمدبن عبدالله بن نميردي.فرمائي.چه حضرت عبدالله بن ابى اوفى فرمائي.چه مونږ د رسول الله ﷺ سره د عمرة القضاء ادا كولو دپاره تلى وو.نبى ﷺ طواف اوكړو.مونږ هم د دوى سره طواف اوكړو.نبى ﷺ مونځ اوكړو. مونږ هم دوى سره مونځ اوكړو.بيا نبى ﷺ د صفا مروه په مينځ كښې سعى اوكړه.مونږ نبى ﷺ د اهل مكه د شراو دهغوى د ضرر رسولو د ويرې د وجې پټ كړې وو.يعنى نبى ﷺ مونږ په خپله ګيره كښې اخستې وو.او روان وو.چه نبى ﷺ ته څوك تكليف اونه رسوى.

په دې روايت كښې د عمرة القضاء واقعه ده.ددې تعلق په ظاهره د صلح حديبيه سره نشته.خوهركله چه د عمرة القضاء فيصله د صلح حديبيه په موقع شوې وه.ددې مناسبت په وجه امام بخارى رحمه الله دا روايت دلته ذكر كړو.

[۳۹۵۳]حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ إِسْحَاقَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا حَصِينٍ قَالَ قَالَ أَبُووَائِلٍ لَمَّا قَدِمَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ مِنْ صِفِّينَ أَتَيْنَاهُ نَسْتَخْبِرُهُ فَقَالَ اتَّهِمُوا الرَّأْيَ فَلَقَدْ رَأَيْتُنِي يَوْمَ أَبِي جَنْدَلٍ وَلَوْ أَسْتَطِيعُ أَنْ أَرُدَّ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْرَهُ لَرَدَدْتُ وَاللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ وَمَا وَضَعْنَا أَسْيَافَنَا عَلَى عَوَاتِقِنَا لِأَمْرٍ يُفْظِعُنَا إِلَّا أَسْهَلْنَ بِنَا إِلَى أَمْرٍ نَعْرِفُهُ قَبْلَ هَذَا الْأَمْرِ مَا نَسُدُّ مِنْهَا خُصْمًا إِلَّا انْفَجَرَ عَلَيْنَا خُصْمٌ مَا نَدْرِي كَيْفَ نَأْتِي لَهُ[ر:۱۵۲۳]

دحسن بن اسحاق په بخارى كښې صرف دا يو روايت راغلې دې.(۱)

**قوله**: قَالَ قَالَ أَبُو وَائِلٍ لَمَّا قَدِمَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ مِنْ صِفِّينَ أَتَيْنَاهُ نَسْتَخْبِرُهُ: د ابو وائل نوم شقيق بن سلمه دې.فرمائى،كله چه سهل بن حنيف د صفين نه راغلو.نو مونږ هغه ته ورغلو.چه دحالاتو تپوس ترې اوكړو.

**يواشكال او دهغې جواب**: دلته يو اشكال كيږى.چه ددې روايت نه په ظاهره دا معلوميږى.چه ابووائل په جنګ صفين كښې شريك نه وو،حضرت سهل بن حنيف په جنګ كښې شريك وو.كله چه هغه د جنګ صفين نه واپس شو.نودهغه نه د حالاتو معلومولو دپاره ابو وائل هغه ته ورغلو.حال دا چه امام بخارى رحمه الله دا روايت په كتاب الجهاد كښې نقل كړې دې.په هغې كښې ذا تصريح ده.چه ابووائل په جنګ صفين كښې په خپله شريك وو.(۲) او په بعضې روايا توكښې دا هم راغلى دى.چه د سهل بن حنيف نه ابو وائيل تپوس هم په جنګ صفين كښې كړې وو.

---

(۱)،وكان حسن بن اسحاق من أصحاب ابن المبارك ومات سنة أحدى وأربعين ومائتين وماله فى البخارى سوى هذا الحديث وانظرفتح البارى (۷\۴۵۸)_

(۲)،د روايت الفاظ دا دى.((الأعبش قال :سألت أبا وائل، شهدت صفين ؟ قال:نعم... كتاب الجهاد باب إثم من عاهد ثم غدر رقم الحديث:۳۱۸۱)_

ددې اشكال جواب دا دې.چه په جنګ صفين كښې ابووائل شريك وو.په دې كښې څه شك نشته.دغه شان په كومو رواياتوكښې چه راغلى دى.چه د سهل بن حنيف نه ابووائل هم په جنګ صفين كښې تپوس كړې وو.هغه هم صحيح دى.البته دلته په روايت باب كښې د حضرت ابو وائل دا وينا چه كله سهل بن حنيف د جنګ صفين نه راواپس شو.نو مونږ دهغه نه تپوس اوكړو.ددې په باره كښې تاسو دا ونيلې شئ:چه د جنګ د واپسۍ نه پس د ابو وائل دهغه نه تپوس كول د نورو خلقو اورولو دپاره وو.په خپله خو هغوى د دوى نه هم په جنګ صفين كښې سوال كړې وو.خو اوس سوال ددې وجې كوى.چه نور خلق هم سوال او جواب واورى.

په اصل كښې په حضرت سهل بن حنيف باندې د حضرت علىؓ د ملګرو.دا اعتراض وو.چه ته په قتال كښې د اهل شام په مقابله كښې د زياتې دلچسپۍ مظاهره نه كوې.[1] دا تپوس چه كله د حضرت سهل بن حنيف نه اوشو.نو هغه اووئيل.

**قوله**: اتَّهِمُوا الرَّأْيَ فَلَقَدْ رَأَيْتُنِي يَوْمَ أَبِي جَنْدَلٍ وَلَوْ أَسْتَطِيعُ أَنْ أَرُدَّ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْرَهُ لَرَدَدْتُ وَاللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ: تاسو خپله رائې متهمه اوګنړئ.ما په يوم ابى جندل (صلح حديبيه) كښې ځپل ځان ليدلې دې.كه په دغه ورځ زما دپاره د نبىﷺ فيصله رد.كول ممكن وو.نو ما به خامخا رد كړې وه.خوالله اودهغه رسول ښه پوهيږى.(چه فائده په كوم ځيز كښې ده)

دحضرت سهل بن حنيفؓ ددې جواب مطلب او پس منظر دا دې.چه ملګرو ته د حضرت علىؓ او حضرت اميرمعاويهؓ په مينځ كښې جنګ شروع شو.نو په جنګ كښې حضرت علىؓ ته غلبه حاصله شوه.دحضرت اميرمعاويه ؓ ملګرى زيات قتليدل.او نزدې وه چه هغوى پوره ماتې خوړلې وو.په دغه دوران كښې حضرت عمروبن العاصؓ حضرت امير معاويه ؓ ته مشوره وركړه.چه يو صورت داسې دې.كه مونږ هغه اختيار كړو.نودا د وينې تويدل به اودريږى.اود هغوى غلبه به موقوف شى.هغه دا چه حضرت علىؓ ته قرآن اوليږه.او ورته اووايه.چه دا به زمونږ او ستاسو په مينځ كښې فيصله كوى. زما اميد دې.چه حضرت علىؓ به دا پيشكش قبول كړى.اودغه شان به جنګ موقوف شى.

نوحضرت معاويه ؓ دحضرت عمروبن العاصؓ په مشوره باندې عمل اوكړو.اوحضرت علىؓ ته ئې اووئيل.چه زمونږ او ستاسو په مينځ كښې به فيصله قرآن كوى.حضرت علىؓ اووئيل.ددې نه غوره بله كومه فيصله كيدې شى.په دې موقع باندې د حضرت علىؓ بعضې ملګرو دهغوى سره اختلاف اوكړو.او وې وئيل.چه ته په دې وخت كښې قرآن حكم مه منه.په دې وخت كښې جنګ جارى ساتل پكار دى.ځكه چه زمونږ تله درنه ده.او مونږ پوره غلبه حاصلولې شو.په دې باندې حضرت سهل بن حنيفؓ خلقو ته خطاب اوكړو.او وې وئيل.((أيها الناس إتهموا أنفسكم...)) يعنى تاسو ځپل ځان (او ځپله رائې) هم

[1] عمدة القارى (۱۷\۲۳۰)_

متهمه اوګڼئ.دا مه ګڼئ.چه صرف ستاسو رائې صحيح ده.کيدې شي.چه د فريق مخالف رائې صحيح وي.ځکه چه په صلح حديبيه کښې زه موجود ووم.اوپه هغه وخت کښې زما هم دا رائې وه.چه جنګ کيدل پکار دي.صلح نه ده پکار،خوپه هغه وخت کښې مونږ خپله رائې پريخوده.او د نبي ﷺ په رائې مو عمل اوکړو .دهغې نتيجه ښه او انجام د خير شو.حال دا چه هلته معامله د کفر او داسلام وه. اودلته خود مسلمانانو په خپل مينځ کښې مسئله ده.نو په دې کښې هم خپله رائې صحيح ګڼړل اود مسلمانانو قتل بې دريغه جارې ساتلو باندې اصرار کول نه دي پکار.
ددې روايت دا تفصيل امام احمد بن حنبل رحمه الله په خپل مسند کښې بيان کړې دې.دلته د بخاری روايت مختصر دې.(۱)

**قوله**: وَمَا وَضَعْنَا أَسْيَافَنَا عَلَى عَوَاتِقِنَا لِأَمْرٍ يُفْظِعُنَا (۲) إِلَّا أَسْهَلْنَ بِنَا إِلَى أَمْرٍ نَعْرِفُهُ قَبْلَ هَذَا الْأَمْرِ مَا نَسُدُّ مِنْهَا (۳) خُصْمًا إِلَّا انْفَجَرَ عَلَيْنَا خُصْمٌ مَا نَدْرِي كَيْفَ نَأْتِي لَهُ: اومونږ خپلې اوږې د يو داسې کار دپاره کوم چه مونږ په ويرې کښې واچوې. تورې نه دي اوچتې کړې.خو ددې دپاره چه دا تورې هغه معامله زمونږ دپاره آسانه کړي.خود جنګ صفين دا معامله دومره ګرانه او مشکله جوړه شوې وه.چه اوس مونږ ددې يو طرف لا بند (اوصحيح) کړې نه وي،چه بل طرف ئې شليږي.په پوهه کښې نه راځي.چه څنګه به دا معامله حل کړو.
د حضرت سهل بن حنيف د دې جملې مقصد دا دې.چه دحضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت نه پس چه په مسلمانانو کښې د فتنې کومه دروازه پرانستې شوې ده.په پوهه کښې نه راځي.چه دا دروازه به څنګه بنده کړې شي.ددې نه وړاندې چه به کله مونږ د جهاد دپاره توره اوچتوله.او د کومې فتنې د ختمولو دپاره به تلو. نو هغه فتنه به ختمه شوه.خود موجوده فتنې نوعيت دهغې نه بيخې مختلف دې.
چونکه په دې روايت کښې حضرت سهل بن حنيف رضي الله عنه په صلح حديبيه کښې د خپلې موجودګۍ ذکر کړې دې.هم ددې مناسبت په وجه امام بخاری رحمه الله دا روايت دلته تخريج کړې دې.والله اعلم.

[۲۹۵۴/۳۹۵۵] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ ابْنِ أَبِي لَيْلَى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَتَى عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

(۱) اوګورئ تعليقات لامع الدراری (۳۵۰/۸)_
(۲) الأمر الفظيع: الشنيع الشديد، وقوله : يفظعنا أي : يوقعنا في أمر فطيع شديد علينا. خصماً : الخصم: الطرف، وخصم كل شئ طرفه- والظر جامع الأصول (۳۳۱/۸)_
(۳) دمنها ضمير،،الامر،،طرف ته راجع دې.دقواعده په لحاظ سره په ظاهره ،،منه،، پکاروو.هم دا وجه ده.چه په يو روايت کښې ،،منه،، دې.عمدة القاری (۲۲۰/۱۷)_

زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ وَالْقَمْلُ يَتَنَاثَرُ عَلَى وَجْهِي فَقَالَ أَيُؤْذِيكَ هَوَامُّ رَأْسِكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَاحْلِقْ وَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ أَوْ أَطْعِمْ سِتَّةَ مَسَاكِينَ أَوِ انْسُكْ نَسِيكَةً قَالَ أَيُّوبُ لَا أَدْرِي بِأَيِّ هَذَا بَدَأَ

[٣٩٥٥] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ هِشَامٍ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحُدَيْبِيَةِ وَنَحْنُ مُحْرِمُونَ وَقَدْ حَصَرَنَا الْمُشْرِكُونَ قَالَ وَكَانَتْ لِي وَفْرَةٌ فَجَعَلَتِ الْهَوَامُّ تَسَاقَطُ عَلَى وَجْهِي فَمَرَّ بِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَيُؤْذِيكَ هَوَامُّ رَأْسِكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ وَأُنْزِلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ [ر: ١٧١٩]

# بَاب = قِصَّةِ عُكْلٍ وَعُرَيْنَةَ

[٣٩٥٦/٣٩٥٧، ٥٣٦٩] حَدَّثَنِي عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حَدَّثَهُمْ أَنَّ نَاسًا مِنْ عُكْلٍ وَعُرَيْنَةَ قَدِمُوا الْمَدِينَةَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَكَلَّمُوا بِالْإِسْلَامِ فَقَالُوا يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّا كُنَّا أَهْلَ ضَرْعٍ وَلَمْ نَكُنْ أَهْلَ رِيفٍ وَاسْتَوْخَمُوا الْمَدِينَةَ فَأَمَرَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَوْدٍ وَرَاعٍ وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَخْرُجُوا فِيهِ فَيَشْرَبُوا مِنْ أَلْبَانِهَا وَأَبْوَالِهَا فَانْطَلَقُوا حَتَّى إِذَا كَانُوا نَاحِيَةَ الْحَرَّةِ كَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ وَقَتَلُوا رَاعِيَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَاقُوا الذَّوْدَ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ الطَّلَبَ فِي آثَارِهِمْ فَأَمَرَ بِهِمْ فَسَمَرُوا أَعْيُنَهُمْ وَقَطَعُوا أَيْدِيَهُمْ وَتُرِكُوا فِي نَاحِيَةِ الْحَرَّةِ حَتَّى مَاتُوا عَلَى حَالِهِمْ قَالَ قَتَادَةُ بَلَغَنَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ كَانَ يَحُثُّ عَلَى الصَّدَقَةِ وَيَنْهَى عَنِ الْمُثْلَةِ وَقَالَ شُعْبَةُ وَأَبَانُ وَحَمَّادٌ عَنْ قَتَادَةَ مِنْ عُرَيْنَةَ وَقَالَ يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ وَأَيُّوبُ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ قَدِمَ نَفَرٌ مِنْ عُكْلٍ

۶ھ کښې د عکل او عرینه واقعه پیښه شوه.د اتو کسانو ډله د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه.په دغې کښې د څلورو تعلق د قبیله عرینه سره وو.او د دریو تعلق د عکل سره وو.او یو کس د بلې یوې قبیلې وو.(۱) هغوی راغلل.او په مدینه منوره کښې ئې اسلام قبول کړو.اوهلته ئې استوګنه شروع کړه.خود مدینې منورې اوبه پرې موافق رانغلې.اودا خلق ناجوړه شول.نبی ﷺ ته ئې شکایت اوکړو. نبی ﷺ ورته د مدینې نه بهر خپل اوښانو ته د تګ وینا اوکړه.او ورته ئې اوفرمائیل د اوښانو پئ او متیازې څکئ.نوصحیح به شئ.دا کسان لاړل.اود پیو او متیازو په څکلو سره بیخی صحتمند شول.

کله چه هغوی صحتمند شول.نو د اوښانو محافظ اود رسول الله ﷺ راعی حضرت

(۱) فتح الباری (۳۳۷/۱) باب أبوال الإبل)_

یسار ﷺ هغوی قتل کړلو.او اوښان ئې اوتختول.نبی ﷺ ته چه کله ددې واقعې خبر اوشو. نو نبی ﷺ شل کسان د حضرت کرزبن جابرفهری ﷺ په قیات کښې دهغوی په تعاقب کښې روان کړل.حضرت کرزبن جابر فهری ﷺ هغوی ټول بندیوان کړل.رسول الله ﷺ دهغوی د قتلولو حکم اوکړلو.نودهغوی په سترګو کښې ګرم سیخونه راښکلي شول. او دهغوی لاسونه او پښې کټ کړې شول.اوپه حره(یو کاڼړی ژنه زمکه) په یو طرف کښې هغوی واچولې شول.او دغه شان ټول هلته مړه شول.([1])

**قوله**: وَاسْتَوْخَمُوا الْمَدِينَةَ :یعنی مدینه هغوی دخپل ځان دپاره د آب هوا په اعتبار سره موافق بیا نه مونده .((أرض وخيمة)) هغه زمکې ته وائی،چه د هغې آب هوا موافق نه وی.

**قوله**: إِنَّا كُنَّا أَهْلَ ضَرْعٍ وَلَمْ نَكُنْ أَهْلَ رِيفٍ : مونږاهل ضرع وو،اهل ریف نه وو.،،ضرع،، غولاونځې ته وائی.او ،،ریف،، شین پټی ته وائی.

مطلب دا دې.چه مونږ د ځنګل او دباندو اوسیدونکی یو.هلته څاروی څروو اودهغې په پیو ګذاره کوو.ښاریان نه یو.چه پټی او کاشتکاری کوو.(دمدینې منورې خلقو به زمینداری کوله)

**قوله**: فَسَمَرُوا أَعْيُنَهُمْ وَقَطَعُوا أَيْدِيَهُمْ :دلته اشکال کیږی.چه په اسلام کښې،مثله،، جائز نه ده.نبی ﷺ د ،،مثله،، نه منع کړې ده.نوبیا ددې کسانو،،مثله،، ولې اوکړې شوه؟ ددې مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.

① ابن شاهین ددې سوال په جواب کښې فرمائی.چه دا واقعه د مثله د حرمت نه وړاندې وه.تراوسه پورې د مثله د حرمت اعلان نه وو شوې.روسته مثله حرامه اوګرځولې شوه.([2])

② علامه ابن الجوزی رحمه الله فرمائی.چه تر دغه وخته پورې عامه مثله خو منسوخه شوې وه.خو تر اوسه پورې دمثله په بدله کښې د مثله جواز برقرار وو. اوچونکه دې کسانو د رسول الله ﷺ راعی قتل کړې وو.او دهغه مثله ئې کړې وه. ددې وجې قصاصاً دهغوی مثله هم اوکړې شوه.روسته قصاصاً مثله هم حرامه کړې شوه.او اوس مثله په هیڅ صورت کښې هم جائز نه ده.([3])

**قوله**: قَالَ ابو عبدالله وَقَالَ شُعْبَةُ وَأَبَانُ وَحَمَّادٌ عَنْ قَتَادَةَ مِنْ عُرَيْنَةَ: امام بخاری رحمه الله فرمائی.چه شعبه،ابان او حماد رحمهم الله د قتاده نه صرف ((من عرينة)) نقل کړی دی.د عکل قبیلې نوم دې حضراتو نه دې اخستې.د شعبه تعلیق امام بخاری په کتاب الزکاة

---

[1] د تفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری (۳۳۷/۱۰۱) د واقدی په نیز دا دشوال ۶ھ اود ابن اسحاق په نیز د جمادی الثانیه ۶ھ واقعه ده.)_

[2] فتح الباری (۳٤۱/۱۱)_

[3] فتح الباری (۳٤۰/۱۱و۳٤۱)_

كښې موصولاً ذكر كړې دې.د ابان بن زيد تعليق ابن ابى شيبه موصولاً نقل كړې دې.او دحماد تعليق امام ابوداود موصولاً نقل كړې دې.(۱)

**قوله**: وَقَالَ يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ وَأَيُّوبُ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ قَدِمَ نَفَرٌ مِنْ عُكْلٍ: يحيى او ايوب چه د حضرت انس رضي الله عنه نه د ابوقلابه په واسطه باندې كوم روايت نقل كړې دې.په هغې كښې صرف د عكل قبيلې ذكر دې.د عرينه نوم نشته.د يحيى بن كثير دا تعليق امام بخارى په كتاب المحاربين كښې موصولاً نقل كړې دې.(۲) او د ايوب روايت امام بخارى په كتاب الطهارة كښې موصولاً نقل كړې دې.(۳)

[۳۹۶۷] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ أَبُو عُمَرَ الْحَوْضِيُّ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ وَالْحَجَّاجُ الصَّوَّافُ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو رَجَاءٍ مَوْلَى أَبِي قِلَابَةَ وَكَانَ مَعَهُ بِالشَّامِ أَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ اسْتَشَارَ النَّاسَ يَوْمًا قَالَ مَا تَقُولُونَ فِي هَذِهِ الْقَسَامَةِ فَقَالُوا حَقٌّ قَضَى بِهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَضَتْ بِهَا الْخُلَفَاءُ قَبْلَكَ قَالَ وَأَبُو قِلَابَةَ خَلْفَ سَرِيرِهِ فَقَالَ عَنْبَسَةُ بْنُ سَعِيدٍ فَأَيْنَ حَدِيثُ أَنَسٍ فِي الْعُرَنِيِّينَ قَالَ أَبُو قِلَابَةَ إِيَّايَ حَدَّثَهُ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ
قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ مِنْ عُرَيْنَةَ وَقَالَ أَبُو قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ مِنْ عُكْلٍ ذَكَرَ الْقِصَّةَ [ر:۲۳۱]

**قوله**: حَدَّثَنِي أَبُو رَجَاءٍ مَوْلَى أَبِي قِلَابَةَ: په دې سند باندې اشكال كيږى.چه د حماد بن زيد دوه استاذان دى.ايوب او حجاج صواف.نود «حدثنى» په ځائې «حدثانى» د تثنيه صيغه پكار وه.علامه عينى ددې اشكال جواب وركوى اوفرمائى،چه د ايوب په باره كښې اختلاف دې. چه آيا هغوى دا روايت د ابو قلابه نه بلا واسطه نقل كوى.اوكه د ابو رجاء په واسطه ئې نقل كوى.اودحجاج صواف په باره كښې دا خبره متعينه ده.چه هغوى د ابو رجاء په واسطه سره نقل كوى.د دې وجې ئې د مفرد صيغه استعمال كړه.چه ضمير حجاج طرف ته راجع دې.ايوب په دې كښې شامل نه دې.والله اعلم

**قوله**: وَكَانَ مَعَهُ بِالشَّامِ: يعنى ابو رجاء د ابو قلابه سره په شام كښې وو.دا روايت دلته ډير په اختصار سره نقل شوې دې.وړاندې په كتاب الديات كښې به مفصل راشى.ان شاء الله هلته به په دې باندې تفصيلى خبره كيږى.

---

۱) عمدة القارى (۱۷\۲۳۲)_
۲) صحيح بخارى كتاب الردة والمحاربين باب لم يحسم النبى ﷺ المحاربين من أهل الردة حتى هلكوا رقم الحديث ۶۸۰۳)_
۳) صحيح بخارى كتاب الطهارة باب أبوال الإبل رقم ۲۳۳)_

# بَاب=غَزْوَةِ ذِی قَرَدَ

## وَهِیَ الْغَزْوَةُ الَّتِی أَغَارُوا عَلَی لِقَاحِ النَّبِیِّ صَلَّی اللَّهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ خَیْبَرَ بِثَلَاثٍ

((ذی قرد)) یا ((ذات قرد)) د یوې چینې نوم دې.کومه چه د مدینې منورې نه د یوې ورځې په فاصله باندې په بلاد غطفان کښې واقع ده.

دا غزوه کله پیښه شوې وه؟ د اهل سیر او مغازی په دې باندې اتفاق دې.چه غزوه ذی قرد په ۶ھ کښې د حدیبیه نه وړاندې پیښه شوې وه.ابن سعد په طبقات کښې په ربیع الاول کښې[1] بعضې حضراتو په جمادی الاولی۶ھ کښې او محمدبن اسحاق په شعبان ۶ھ کښې ددې وقوع بیان کړې ده[2] دا ټول اقوال په دې باندې دلالت کوی.دا ټول اقوال په دې باندې دلالت کوی.چه غزوه ذی قرد د حدیبیه نه وړاندې ده.ځکه چه حدیبیه په ذی قعده ۶ھ کښې واقع شوې وه.اوکله چه غزوه ذی قرد وقوع د حدیبیه نه وړاندې ده.نو ظاهره ده.چه د خیبر نه به هم وړاندې وی.ځکه چه غزوه خیبرد حدیبیه نه پس په ۷ھ کښې پیښه شوې وه.

خو امام بخاری رحمه الله فرمائی.چه دا غزوه د غزوه خیبر نه صرف درې ورځې وړاندې واقع شوې ده.ددې ښکاره مطلب دا دې.چه امام بخاری دا د حدیبیه نه پس منی.حافظ ابن قیم او علامه بیهقی رحمه الله هم د امام بخاری رحمه الله مطابقت کړې دې.هغوی هم دا د حدیبیه نه پس اود د خیبر نه وړاندې گنړی.[3] امام مسلم دحضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه یو مفصل روایت ذکرکړې دې.د هغې نه هم ددې خبرې تائید کیږی.چه دا دخیبر نه درې ورځې وړاندې ده.[4]

① ابوالعباس قرطبی رحمه الله تطبیق کړې دې اوفرمائی.چه دحضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه په تفصیلی روایت کښې چه د کوم خیبر ذکر دې.ممکن ده.چه هغه مشهوره غزوه خیبر نه وی.ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم خیبر طرف ته څو ځله لښکر روان کړې وو. خو دهغوی خبره ددې وجې وزنی نه ده.چه په دغه روایت کښې دا هم ذکر دی.چه حضرت علی رضی الله عنه مرحب یهودی سره مقابله اوکړه.اودا مشهوره مقابله هم په غزوه خیبر کښې شوې وه.نودا بغیر دځه دلیل

---

[1] طبقات ابن سعد (۸۰\۱ و ۸۱) غزوة رسول الله صلی الله علیه وسلم الغابة)_

[2] فتح الباری (۶۰\۱۷ ۳)_

[3] قال ابن القیم هذه الغزوة کانت بعد الحدیبیة وقد وهم فیها جماعة من أهل المغازی والسیر فذکرو أنها کانت قبل الحدیبیة)) وانظر زاد المعاد(۲۷۹\۳) امام بیهقی رحمه الله هم دا د حدیبیه نه روسته ذکر کړې ده.اوگورئ دلائل بیهقی (۱۷۸\٤)_

[4] ځکه چه د دغه روایت په آخر کښې دی.((فرجعنا .. أی من غزوة ذات قرد .. إلی المدینة ،فوالله ما لبثنا بالمدینة إلا ثلاث لیال حتی خرجنا إلی خیبر صحیح مسلم کتاب الجهاد والسیر باب غزوة ذی قرد وغیرها)

نه په بله غزوه باندې محمول کول صحیح نه دی.([1])

② حافظ ابن حجرپه دواړه قسم روایاتوکښې دتطبیق دپاره په ځائې د دې چه غزوه خیبرمتعدد اوګڼړی.غزوه ذی قردمتعدد ګڼړلې ده.هغوی فرمائی.چه عبد الرحمن بن حفص فزاری په مقام ذی قرد کښې د نبی ﷺ په اوښانو باندې څو ځله د شپې حمله کړې وه.نو کومه ذی قرد چه عام اهل سیر ذکر کوی.هغه دحدیبیه نه وړاندې پیښه شوې وه.او امام بخاری رحمه الله چه کومه غزوه ذی قرد د خیبر نه درې ورځې وړاندې بیان کړې ده.هغه بله واقعه ده.اودا دحدیبیه نه پس واقع شوې وه.نو اوس په دواړه قسم اقوالوکښې څه تعارض نه پاتې کیږی.([2])

د غزوه ذی قرد تفصیل په وړاندینی روایت کښې راځی.

[۳۹۵۸] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَلَمَةَ بْنَ الْأَكْوَعِ يَقُولُ خَرَجْتُ قَبْلَ أَنْ يُؤَذَّنَ بِالْأُولَى وَكَانَتْ لِقَاحُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرْعَى بِذِي قَرَدٍ قَالَ فَلَقِيَنِي غُلَامٌ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ فَقَالَ أُخِذَتْ لِقَاحُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ مَنْ أَخَذَهَا قَالَ غَطَفَانُ قَالَ فَصَرَخْتُ ثَلَاثَ صَرَخَاتٍ يَا صَبَاحَاهُ قَالَ فَأَسْمَعْتُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْ الْمَدِينَةِ ثُمَّ انْدَفَعْتُ عَلَى وَجْهِي حَتَّى أَدْرَكْتُهُمْ وَقَدْ أَخَذُوا يَسْتَقُونَ مِنْ الْمَاءِ فَجَعَلْتُ أَرْمِيهِمْ بِنَبْلِي وَكُنْتُ رَامِيًا وَأَقُولُ: أَنَا ابْنُ الْأَكْوَعْ وَالْيَوْمُ يَوْمُ الرُّضَّعْ

وَأَرْتَجِزُ حَتَّى اسْتَنْقَذْتُ اللِّقَاحَ مِنْهُمْ وَاسْتَلَبْتُ مِنْهُمْ ثَلَاثِينَ بُرْدَةً قَالَ وَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ قَدْ حَمَيْتُ الْقَوْمَ الْمَاءَ وَهُمْ عِطَاشٌ فَابْعَثْ إِلَيْهِمْ السَّاعَةَ فَقَالَ يَا ابْنَ الْأَكْوَعِ مَلَكْتَ فَأَسْجِحْ قَالَ ثُمَّ رَجَعْنَا وَيُرْدِفُنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى نَاقَتِهِ حَتَّى دَخَلْنَا الْمَدِينَةَ [ر:۲۸۷۶]

حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه په دې روایت کښې د غزوه ذی قرد واقعه بیانوی .چه زه دصبا د اذان نه وړاندې د مدینې منورې نه بهر غابه (صحرا) طرف ته اووتم .اود رسول الله ﷺ اوښې په ذی قرد کښې څریدلې.نو دعبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه غلام ماته ملاؤ شو.دلته ئې دغلام نوم نه دې بیان کړی.د مسلم په روایت کښې دغلام نوم ..رباح.. راغلې دې.خود مسلم په روایت کښې ئې هغه ته د رسول الله ﷺ غلام وئیلې دې.خوپه دې کښې څه تعارض نشته.ځکه چه ممکن ده.غلام د عبدالرحمن بن عوف وو.خود رسول الله ﷺ دخدمت دپاره هم حاضریدل.ددې وجې هغه ته د رسول الله ﷺ غلام هم وئیلې شوې دې.([3])

رباح اووئیل، چه د رسول الله ﷺ اوښې اونیولې شوې.ما اووئیل.چا؟ هغه اووئیل غطفان،

---

[1] فتح البارى(۱۷/۴۶۰و۴۶۱)۔

[2] فتح البارى(۱۷/۴۶۱)۔

[3] فتح البارى(۱۷/۴۶۰)۔

نو ما درې خله په اوچت آواز سره ((یاصباحاه)) اووئیل.اود مدینې د شګلوړې زمکې ټولې آبادئ ته ما خپل آواز اورسولو.(کیدې شی.چه د دوی آواز ډیراوچت وو.یا کیدې شی.چه دا ددوی کرامت وو)او بیا زه مخکښې طرف ته روان شوم.تردې چه ما هغه د شپې حمله ګربیا رالاندې کړل.هغوی اوبه څکلې. نو ما په هغوی باندې د غشی ورول شروع کړل.زه ډیربنه غشی ویشتونکې ووم.اودا رجز مې هم وئیل.

**قوله**: أَنَا ابْنُ الْأَكْوَعْ وَالْيَوْمُ يَوْمُ الرُّضَّعْ :زه د اکوع څوې یم.نن د سپکو خلقو د بربادئ ورځ ده.

((رضع))دا د((راضع)) جمع ده.راضع پئ څکونکی ته وائی.خود کمینه او ذلیل په معنی کښې هم استعمالیږی.په دې معنی کښې د استعمال پس منظر دا دې.چه یو بخیل کس به خپله خوله د اوښانو په تیوباندې لګولې وه.او پئ به ئې څکل. هغه سره دا ویره وه.که پئ په لوښی کښې لوشلی شی.نو هسې نه چه ګاونډیان د پیو لوشلو آواز واوری.او پئ اوغواړی.نودغه شان پئ څکل یو ذلیله حرکت وو. د دې وجې ،،راضع،، دکمینه په معنی کښې هم استعمال شو.(١)

حضرت سلمه ﷺ وائی.ما دا رجز وئیل.او د هغوی نه مې ټولې اوښې خلاصې کړې.او دیرش څادرې هم ما د هغوی نه واخستې.(د بدحواسئ په حالت کښې څادرې هم هغوی ته بوج ښکاریدې.ددې وجې ئې څادرونه پریخودل.او اوتختېدل) په دې کښې نبی کریم ﷺ او صحابه راغلل.ما اووئیل.اې دالله رسوله ما هغه کسان اوبوڅکلو ته پرې نخودل.اوهغوی تګی دی.تاسو هغوی طرف ته اوس لښکر اولیږئ.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.((یا ابن الاكوع ملكت فاسجح))اې ابن ا لاکوع هرکله چه تا غلبه حاصله کړه.نو اوس د نرمئ نه کار واخله.فرمائی. بیا مونږ راواپس شو. رسول الله ﷺ د شفقت په وجه زه خپل ردیف جوړ کړم(خپل ځان پسې ئې په سورلئ سور کړم) تردې چه مونږ مدینې ته داخل شو.

## بَاب=غَزْوَةِ خَيْبَرَ

د غزود خیبر په باره کښې دعام اهل سیر او مغازی رائې دا ده.چه دا په ۷ھ کښې واقع شوې ده.نبی کریم ﷺ چه کله د حدیبیه نه واپس شو.نو د ذی الحجه او محرم په اوائلو کښې نبې ﷺ په مدینه کښې پاتې شو.او د محرم په آخر کښې دوی د خیبر طرف ته خروج اوکړو. (٢) خیبر د مدینې نه اته منزل (یعنی تقریباً دوه سوه میله) په فاصله باندې شام طرف ته واقع د یو څائې نوم دې.(٣)

---

[1] ،فتح البارى(۷\۴۶۲)_

[2] ،البداية والنهاية (۱۴\۱۸۱)_

[3] ،طبقات ابن سعد (۲\۱۰۶) وسیرت النبی (۱\۲۷۵) بعضې حضراتو ۹۶میله او بعضو ۱۸۴ کلومیټره یعنی تقریباً پنځویش دپاسه سل میله فاصله لیکلې ده)۔

**دغزوه خيبر سبب:** يهود چه كله نبی ﷺ د مدينې منورې نه جلا وطن كړل.نودا خلق خيبر كښې آباد شو.اود مسلمانانو خلاف په سازشونو كښې مشغول شول.يوطرف ته خو دوی د مكې مشركان د مسلمانانو خلاف جنګ كولو ته د اماده كولو كوشش كولو ،او بل طرف ته ئې په مدينه كښې منافقانو ته د مسلمانانو خلاف ډاډ وركولو.د دې وجې اوس ضرورت وو.چه په هغوی باندې حمله اوكړی.اوهغوی طاقت ختم كړې شی.اود دعوت اسلام په باب كښې د هغوی د ركاوټونوسدباب اوكړې شی.كله چه نبی ﷺ د حديبيه نه واپس تشريف راوړلو.نو په لاره كښې سورة فتح نازل شو . ﴿وَعَدَكُمُ اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً تَأْخُذُوْنَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ﴾ د«هذه»اشاره غزوه خيبر طرف ته وه.([1])

**د نبی ﷺ روانيدل:** چونكه نبی ﷺ څان سره شپاړس سوه صحابه اخستی وو.په هغوی كښې دوه سوه سوارۀ وو.او څوارلس سوه پيدل وو.([2]) دې غزوې ته د روانيدو نه وړاندې الله تعالى د وحی په ذريعه نبی ﷺ ته حكم كړې وو.چه منافقانوته په دې سفر كښې د تلو اجازت مه وركوه.ځكه چه په صلح حديبيه كښې داكسان تاسوسره نه وو تلی.بعضو معذرت كړې وو. او بعضو ښكاره انكار كړې وو.ددې وجې په دې غزوه كښې منافقان شامل نكړې شو.([3]) په ازواج مطهراتو كښې نبی ﷺ څان سره ام سلمه رضي الله عنها بوتلې وه.([4]) او په مدينه منوره كښې دصحيح روايت مطابق حضرت سباع بن عرفطه ئې خپل قائم مقام مقرر كړو.([5])

نبی ﷺ لاړلو او په «رجيع» كښې ئې ډيره واچوله.دا مقام د خيبر او عطفان ترمينځ واقع دې.دلته د قيام وجه دا وه.چه عطفانی د اهل خيبر حليف وو.او هغوی د خيبر د يهودو د مدد دپاره لښكر هم جمع كړې وو.كه مسلمانان نيغ تلی وو.او په خيبر باندې ئې حمله كړې وه.نو دا كسان به د مسلمانانو خلاف د يهودو مدد ته رارسيدلی وو.د هغوی د مرغوب كولو دپاره رسول الله ﷺ په رجيع كښې قيام اوكړو.اوهغه خلقو سره دا ويره شوه.كه موږ د يهودو د مدد دپاره خيبر ته لاړ شو.نو مسلمانان به د شانه زموږ په كورونو باندې حمله اوكړی.نودې خلقو خپله ويره محسوس كړه.او واپس شو.اود خيبر د يهودو د مدد اراده ئې پريخودده.([6])

كله چه نبی ﷺ خيبرته نزدې اورسيدلو.نو د داخليدونه وړاندې ئې صحابو رضي الله عنهم ته اوفرمائيل. اودريږئ.اودا دعا ئې اوكړه.«اللهم رب السماوات وما أظللن،ورب الأرضين وما أقللن،ورب الشياطين وما أضللن ورب الرياح وما أذرين ، نسألك خير هذه القرية وخير أهلها وخير ما فيها

---

[1] دلائل النبوة بيهقی (۱۹۷\٤)_
[2] سيرت النبی ﷺ (٤١٥\٣) په حواله د زرقانی (۲۱۷\۲)_
[3] اوګورئ الدرالمنثور فی التفسير الماثور (۷۳\۶)_
[4] طبقات ابن سعد (۱۰۶\۲)_
[5] طبقات ابن سعد (۱۰۶\۲)_
[6] الكامل لابن اثير (۱٤۷\۲)_

ونعوذبك من شرها وشر أهلها وشر ما فيها، أقدموا بسم الله» په روایاتو کښې ددې الفاظو نه مختصر الفاظ هم راغلی دی.خوابن اثیر مذکوره الفاظ نقل کړی دی.(۱)

**په خیبر باندې حمله او محاصره**.خیبر ته نبی ﷺ د شپې په وخت کښې اورسیدلو.اوچونکه د نبی ﷺ د شپې د حملې کولو عادت نه وو.بلکه نبی ﷺ به د صبا انتظار کولو.که نبی ﷺ ته به د صبا د اذان آواز ترغوږ و شو.نو حمله به ئې نه کوله.اوکه د اذان آواز به ئې واونریدلو. نو حمله به ئې کوله.ددې وجې نبی ﷺ د صبا انتظار اوکړو.چه د اذان آواز ئې واونریدل.نو نبی ﷺ دحملې اراده اوکړه.یهودیان صبا دخپلو باغونو اوپټو ته دکاردپاره اووتل .کله چه ئې نبی ﷺ اولیدل.نوچغې ئې کړې.«محمد والخميس»او لاړل په قلعو کښې محصور شول.نبی ﷺ په دې موقع باندې اوفرمائیل.«الله أكبر خربت خيبر،إنا إذا نزلنا بساحة قوم فساء صباح المنذرين»(۲)

په خیبر کښې څو قلعه ګانې وې.نبی ﷺ هغه قلعو طرف ته روان شو.اوهغه ئې پرله پسې فتح کولې.ددغه قلعو دتعداد اودهغې د فتح کولو په ترتیب کښې روایات مختلف دی.خواکثر اهل مغازی د شپږوقلعو تعداد ذکر کړې دې.

① د تولونه اولنۍ قلعه ،،ناعم،، فتح شوه.ددې قلعې په فتح کښې یو صحابی محمود بن سلمه رضی الله عنه شهید شو.حضرت محمود بن سلمه رضی الله عنه ډیر په مړانه او دلاورئ سره حمله اوکړه.او ډیر وخته پورې جنګیدلو.چه ستړې شو.نو د څه وخته پورې د آرام کولو دپاره د دیوال په سیوری کښې کیناستلو.کنانه به ربیع د قلعې د فصیل نه د جرندې پل په هغه باندې راګوزار کړلو.اوهغه شهید شو.خودا قلعه ډیره زر فتح شوه.(۳)

② د ،،ناعم قلعه،، نه پس مسلمانان ،،قموص،، قلعې طرف ته وروړاندې شو.دا قلعه په ټولو قلعو کښې دټولو نه زیاته مضبوطه او مستحکمه وه.د یهودو مشهور پهلوان ،،مرحب،، هم په دې قلعه کښې وو.کوم چه د زرو سورو برابر ګڼړلې شو.د دې قلعې محاصره تقریباً شلو ورځو پورې جاری وه.نبی ﷺ د درد شقیقه (دنیم سر درد) د وجې پخپله میدان ته نشو راتلې.نبی ﷺ حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته بیرغ ورکړو.او وې لیږلو.خوپه دغه ورځ قلعه فتح نشوه.بیا نبی ﷺ په بله ورځ حضرت فاروق أعظم رضی الله عنه ته بیرغ ورکړو.او روان ئې کړو.خوپه دغه ورځ هم د سخت جنګ باوجود قلعه فتح نشوه.یوه ورځ د مابنامې نبی ﷺ اوفرمائیل.«أما والله لأعطيها غدا رجلا يحب الله ورسوله ويحبه الله ورسوله يأخذها عنوة» په الله قسم صبا به زه داسې کس ته بیرغ ورکوم.چه هغه به دالله اودهغه د رسول سره محبت کوی. اوالله اودهغه رسول به هغه سره هم محبت کوی.هغه به دا قلعه په زور سره فتح کوی.په دغه

---

۱ الکامل لابن الأثیر (۱۴۷/۲)۔

۲ البدایة والنهایة (۱۸۳/۴)۔

۳ الکامل لابن أثیر (۱۴۸/۲)۔

شپه هرصحابی ته انتظار وو.چه نبی ﷺ به چا ته بیرغ ورکوی.اود هریوکس خواهش وو.چه بیرغ ده ته ملاؤ شی.په راروان ورځ نبی ﷺ حضرت علی رضی الله عنه راوغوستل .حضرت علی رضی الله عنه دسترګو د بیمارئ دوجې هلته موجود نه وو.نبی ﷺهغوی راوغوښتل .او د هغوی په سترګو ئې د خولې لیاړې اومګلې.دهغې په وجه الله تعالی دهغه سترګو ته شفا ورکړه.بیا نبی ﷺ هغه ته بیرغ ورکړو.د یهودو مشهور پهلوان د رجز وئیل. اومیدان ته راکوز شو.

قد علمت خيبر أني مرحب شاكي السلاح بطل مجرب

خیبر ته معلومه ده.چه زه مرحب یم،سلاح پوش او تجربه کاریم.

دحضرت سلمه بن الاکوع رضی الله عنه ورور حضرت عامربن الاکوع دهغه په مقابله کښې دا رجز وئیل او راووتل.

قد علمت خيبر أني عامر شاكي السلاح بطل مغامر

مرحب په هغه باندې ګزار ا وکړو.حضرت عامر په خپل ډهال سره منع کړو.بیا عامر رضی الله عنه په هغه باندې ګذاراوکړو.توره راتاؤ شوه.اوخپله دده په پنډئ کښې ورننوته.دهغې نه هغوی شهید شو.

ددې نه پس حضرت علی رضی الله عنه دا رجز وئیل اودمرحب د مقابلې دپاره پخپله راوتلو.

أنا الذي سماني أمي حيدره كليث غابات كريه المنظره

زه هغه یم.چه زما مور زما نوم حیدر(زمرې) کیخودې دې.دځنګل د زمری پشان ډیر مهیب یم. مرحب ډیر په زور سره راغلو.خو حضرت علی رضی الله عنه دومره په زور سره د تورې ګذار اوکړوچه دهغه سرئې دوه ټکړې کړو.بیادمرحب ورور،،یاسر،،راغلو .د مسلمانانو دپاره حضرت زبیر رضی الله عنه هغه قتل کړو.دغه شان آخر الله تعالی د حضرت علی رضی الله عنه په لاس باندې د قموص دا مضبوطه قلعه فتح کړه.([1])

ددې قلعې نه مسلمانانو ته ډیر قیدیان په لاس راغلل.هم په دې قیدیانو کښې د بنونضیر د سردار حیی بن اخطب لور حضرت صفیه رضی الله عنها وه.کومه چه روسته د نبی ﷺ په عقد نکاح کښې راغله.([2])

③ د ،،قموص،،قلعې فتح کولو نه پس مسلمانان ،،قلعه صعب بن معاذ،، طرف ته ور. وراندې شو.دا قلعه د خوراك څخاك د څيزونو په اعتبار سره د ټولو قلعه ګانو نه لويه وه. دلته یهودو دخوراك ډیره لویه ذخیره جمع کړې وه.مسلمانانو په آسانئ سره هغه هم فتح کړه.اوپه دې سره په اسلامی لښکر کښې دخوراك څخاك دڅيزونو دکمی شکایت لرې شو([3])

---

[1] ،اوګورئ البدایه والنهایه (۱۸٤\٤و ۱۹۰) البدایه والنهایه کښې داذکر نشته.چه کومه قلعه حضرت علی رضی الله عنه فتح کړې وه.هغه قموص وه.بلکه ابن اثیر لیکلی دی.چه دا قلعه ،،وطیح وسلالم،، وه. البته حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه حضرت علی رضی الله عنه کومه قلعه فتح کړې وه.هغه قموص وه.هغوی لیکی.((وکان إسم الحصن الذی فتحه علی رضی الله عنه ،،القموص،،وهو من أعظم حصونهم (فتح الباری(٤٧٨\٧)_

[2] ،فتح الباری(٤٧٨\٧)_

[3] ،سیره ابن هشام (۳٤۶\۳)_

④ ددې نه پس مسلمانان د ،،قله،، نومې قلعې طرف ته وړاندې شو.دا د غر په سوکه باندې واقع وه.ددې وجې ورته ،،حصن قله،،وئیله.دا قلعه هم ډیره مضبوطه وه.دړې ورځو پورې د دې محاصره جاری وه.په دې دوران کښې يو یهودی نبی ﷺ ته راغلو. او عرض ئې اوکړو.که ته يوه میاشت هم ددوی محاصره اوکړې.بیا هم دا قلعه نشی فتح کیدې.ځکه چه دخوراك ذخيره دوی سره په کافی مقدار کښې موجود ده.او اوبهٔ دا خلق د شپې راکوزیږی. اود غربه لمن کښې د واقع چینې نه اوبه ډکوی.او اوړی.نو که ته قلعه فتح کول غواړې.نو د دوی د اوبو لاره بنده کړه. نو نبی ﷺ دهغوی اوبه بندې کړې.د هغې په وجه هغوی مجبوره شو.او جنګ دپاره رابهرشو.جنګ اوشو.تقریباً لس یهودیان مړهٔ شول.اوبعضې مسلمانان هم شهیدان شول.او په قلعه باندې آخر دا چه مسلمانانو قبضه اوکړه.([1])

⑤ ددې نه پس مسلمانانو نورې وړې قلعې هم فتح کړې.او د ټولو نه په آخر کښې ،،قلعه وطیح،، او ،،قلعه سلالم،، طرف ته متوجه شو.یهودیان د نورو قلعو نه راوتلی وو.اوپه دې دوو قلعو کښې جمع شوی وو.مسلمانانو تقریباً څوارلس ورځې ددې دواړو قلعو محاصره جاری اوساتله.آخردا چه یهودیان مجبوره شو.او سلام بن ابی الحقیق ئې د صلح دپاره د نبی ﷺ په خدمت کښې راولیږلو.نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.صلح کیدې شی.خو په دې شرط چه خیبر به خالی کول وی.دویم شرط دا دې.چه ددې خائې نه به نه سرهٔ زر او نه سپین زر ځان سره اوړی.دریم شرط دا دې.چه څه وسله او د جنګ سامان به ځان سره د اوړلو اجازت نه وی.اونه به د څه څیز پټولو اجازت وی.([2])

د نبی ﷺ دا ټولې خبرې یهودیانو قبولې کړې.خوپه مینځ کښې یهودیانو وعده خلافی اوکړه.اود کالو يوه تیلۍ ئې چرته پټه کړې وه.نبی ﷺ کنانه بن الربیع راغوښتلو.او دهغه تیلۍ په باره کښې ئې ترې تپوس اوکړو.هغه اووئیل.هغه خو په جنګ کښې خرچ شوه.نبی ﷺ ورته اووئیل.په هغې کښې مال زیات وو.اود جنګ موده دومره اوږده نه ده.دغه شان نبی ﷺ د نورو دوو یهودیانو نه تپوس اوکړو.خو چا هم حقیقت ښکاره نکړو.نو نبی ﷺ يو انصاری صحابی ته حکم اوکړو.چه لاړ شه په فلانی خائې دیوې ونې جرړه اوکنه.تیلۍ هلته ده.هغه لاړلو.اوزمکه ئې اوکنسته .نود لس زرو دیناروقیمت باندې مشتمله د کالو تیله دهغه خائې نه رابهر شوه. چونکه دغه خلقو مال پټ کړې وو.اود صلح د شرطونو نه ئې مخالفت اوکړو. .ددې وجې هغوی قتل کړې شو.کنانه بن ربیع خو ددې وجې هم د قتل مستحق وو.چه هغه د قلعه ناعم د فتحې په موقع محمود بن سلمه رضی الله عنه شهید کړې وو.([3])

اهل فدك ته چه کله خبر اوشو.چه نبی ﷺ خیبر فتح کړو.نوهغوی د محیصه بن مسعود په ذریعه نبی ﷺ ته پیغام راولیږلو.په هغې کښې هغوی په ذکر شوو شرطونو باندې دصلحې

---

[1] دلائل النبوة للبیهقی (۱۴\۲۲۴)_

[2] دلائل النبوة للبیهقی (۱۴\۲۲۶)_

[3] سیرۃ حلبیة (۳\۴۲)_

دپاره امادګي ښكاره كړه.نبي ﷺ اهل فدك سره په نصف اموال باندې صلح اوكړه.او وې فرمائيل.چه كله هم مونږ اوغواړو.تاسو به اوباسو .اودغه شان فدك هم فتح شو.[1]

په غزوه خيبركښې تقريباً څوارلس پنځلس صحابه شهيدان شو.او۳۹ يهوديان قتل شو.[2]

[۳۹۵۹]حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ أَنَّ سُوَيْدَ بْنَ النُّعْمَانِ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ خَيْبَرَ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِالصَّهْبَاءِ وَهِيَ مِنْ أَدْنَى خَيْبَرَ صَلَّى الْعَصْرَ ثُمَّ دَعَا بِالْأَزْوَادِ فَلَمْ يُؤْتَ إِلَّا بِالسَّوِيقِ فَأَمَرَ بِهِ فَثُرِّيَ فَأَكَلَ وَأَكَلْنَا ثُمَّ قَامَ إِلَى الْمَغْرِبِ فَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ[ر:۲۰۶]

په كتاب الوضوء كښې دا روايت تيرشوې دې.

[۳۹۶۰]حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى خَيْبَرَ فَسِرْنَا لَيْلًا فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ لِعَامِرٍ يَا عَامِرُ أَلَا تُسْمِعُنَا مِنْ هُنَيْهَاتِكَ وَكَانَ عَامِرٌ رَجُلًا شَاعِرًا فَنَزَلَ يَحْدُو بِالْقَوْمِ يَقُولُ

اللَّهُمَّ لَوْلَا أَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا ... وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا

فَاغْفِرْ فِدَاءً لَكَ مَا أَبْقَيْنَا ... وَثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا

وَأَلْقِيَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا ... إِنَّا إِذَا صِيحَ بِنَا أَبَيْنَا

وَبِالصِّيَاحِ عَوَّلُوا عَلَيْنَا

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ هَذَا السَّائِقُ قَالُوا عَامِرُ بْنُ الْأَكْوَعِ قَالَ يَرْحَمُهُ اللَّهُ قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ وَجَبَتْ يَا نَبِيَّ اللَّهِ لَوْلَا أَمْتَعْتَنَا بِهِ فَأَتَيْنَا خَيْبَرَ فَحَاصَرْنَاهُمْ حَتَّى أَصَابَتْنَا مَخْمَصَةٌ شَدِيدَةٌ ثُمَّ إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى فَتَحَهَا عَلَيْهِمْ فَلَمَّا أَمْسَى النَّاسُ مَسَاءَ الْيَوْمِ الَّذِي فُتِحَتْ عَلَيْهِمْ أَوْقَدُوا نِيرَانًا كَثِيرَةً فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا هَذِهِ النِّيرَانُ عَلَى أَيِّ شَيْءٍ تُوقِدُونَ قَالُوا عَلَى لَحْمٍ قَالَ عَلَى أَيِّ لَحْمٍ قَالُوا لَحْمِ حُمُرِ الْإِنْسِيَّةِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْرِيقُوهَا وَاكْسِرُوهَا فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَوْ نُهَرِيقُهَا وَنَغْسِلُهَا قَالَ أَوْ ذَاكَ فَلَمَّا تَصَافَّ الْقَوْمُ كَانَ سَيْفُ عَامِرٍ قَصِيرًا فَتَنَاوَلَ بِهِ سَاقَ يَهُودِيٍّ لِيَضْرِبَهُ وَيَرْجِعُ ذُبَابُ سَيْفِهِ فَأَصَابَ عَيْنَ رُكْبَةِ عَامِرٍ فَمَاتَ مِنْهُ قَالَ فَلَمَّا قَفَلُوا قَالَ سَلَمَةُ رَآنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ آخِذٌ بِيَدِي قَالَ مَا لَكَ قُلْتُ لَهُ فَدَاكَ أَبِي وَأُمِّي زَعَمُوا أَنَّ عَامِرًا حَبِطَ عَمَلُهُ

---

[1] دلائل النبوة للبيهقي (۲۲۶/٤) فدك د حجاز په شمال كښې دمديني منورې نه د دوو دريو ورځو په فاصله باندې خيبر ته نزدې د يهوديانو يو كلې وو.اوګورئ معجم البلدان (۲۳۸/٤)_

[2] سيرة مصطفى (٤٢٤/٢)_

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَبَ مَنْ قَالَهُ إِنَّ لَهُ لَأَجْرَيْنِ وَجَمَعَ بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ إِنَّهُ لَجَاهِدٌ مُجَاهِدٌ قَلَّ عَرَبِيٌّ مَشَى بِهَا مِثْلَهُ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ قَالَ نَشَأَ بِهَا [ر:۲۳۴۵]

دا روایت دحضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه دي.وړاندې په روایت کښې دحضرت عامر بن اکوع رضی الله عنه دشهادت واقعه بیانولې شی.حضرت عامربن الاکوع د حضرت سلمه بن اکوع ورور نه وو.بلکه د هغه تره وو.دحضرت سلمه د پلار نوم ،،عمرو،، وو.عمروبن الاکوع د حضرت عامر بن الاکوع ورور وو.خوعام طور د حضرت سلمه نسبت دهغه نیکه.،اکوع،،ته کولې شي.اوسلمه بن الاکوع به نې وئیل. ،،الاکوع ،،لقب دې.اود ده نوم ،،سنان،، وو.([1])

**قوله**: أَلَا تُسْمِعُنَا مِنْ هُنَيْهَاتِكَ: هنیهات،دهنیهة،،جمع ده.او هنیهة د ،،هنة،، تصغیر دې. لکه څنګه چه ،،سنیهة ،د ،،سنة،، تصغیر دې.دا لفظ د کنایه په طور استعمالیږی. لکه څنګه چه ،،فلان بن فلان،، کنایه ده.دغه شان ،،هن بن هن،، او ،،هنته بن هنته،، هم اهل عرب استعمالوی.دلته د ،،هنیهات،، نه مراد رجزیه اشعار دی.([2])

حضرت عامربن الاکوع ته یو کس اووئیل.ته مونږ ته رجزیه اشعار نه وائي.نو حضرت عامرد سورلۍ نه راکوز شو.اود قوم مخامخ ئې خدی خوانی شروع کړه.

اللَّهُمَّ لَوْلَا أَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا

فَاغْفِرْ فِدَاءً لَكَ مَا أَبْقَيْنَا وَثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا

وَأَلْقِيَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا إِنَّا إِذَا صِيحَ بِنَا أَبَيْنَا

وَبِالصِّيَاحِ عَوَّلُوا عَلَيْنَا

اې الله که ستا توفیق نه وې.نومونږ به په هدایت نه وو.اونه به مونږ صدقه ورکوله. ونه به مونځ کولو.

اومونږ چه کوم ګناهونه خپل شا ته پریخودی دی.هغه معاف کړه.او دجنګ په وخت کښې زمونږ قدمونه مضبوط کړه.زمونږ ځانونه ستا د رضا دپاره قربان دی.

دمسلم شریف په روایت «ما ابقینا» په ځائې «ما اقتفینا» دی.([3])اوهم دا په دې رجز کښې اشهرالروایات ګرځولې شوې دې.د«اقتفاء»معنی اتباع ده.د «اقتفینا» معنی به وی «ماتبعنا من الخطایا وما ارتکبنا من الذنوب»

یعنی د کومو ګناهونو شاته چه مونږ تلی یو.اود کومو معاصیو چه مونږ ارتکاب کړې دې.اې الله ته هغه معاف کړه.([4])

---

[1] ،عمدة القاری (۲۳۵\۱۷وفتح الباری(۴۶۵\۷)_

[2] ،عمدة القاری(۲۳۵\۱۷)_

[3] ،صحیح مسلم باب غزوة خیبر رقم الحدیث (۴۴۳۲)_

[4] ،فتح الباری(۴۶۵\۷و ۴۶۶)_

او په مونږ باندې سکينه نازل کړه.که څوك دخپل مدد دپاره چيغې وهي.اومونږ راوغواړي.
نو مونږ به سمدستی د مدد دپاره ورځو.په بعضې رواياتوکښې د «أتينا» په ځائې «أبينا»
دی.په دې صورت کښې به معنی وی.که دا کافرشور پکړ جوړکړی.اوکفر طرف ته واپس
کيدو باندې مونږ مجبوره کړی.نو مونږ به انکار کوو.([1])اومونږ د مدد دپاره دراغوښتونکو
په خپل آواز باندې اعتماد دې.يعنی کوم کسان چه مونږ د مدد دپاره رابلی. دهغوی دا
اعتماد او بهروسه وی.چه مونږ به د هغوی د مدد دپاره حاضريږو.په دې صورت کښې
،عولو،،د تعويل نه ماخوذ دې.د تعويل معنی اعتماد او بهروسه ده.علامه خطابی
«وبالصياح عولوعلينا»معنی په «أجلبوا علينا بصوت» بيان کړې دې.يعنی دغه کافران په زور او
شورسره زمونږ خلاف جنګ دپاره نن راځی.په دې صورت کښې به دا قول د «عويل» نه
ماخوذ وی.اود ،،غويل،، معنی شور او رفع الصوت ده.خو ابن التين په دې باندې اعتراض
کړې دې.اوفرمائيلی ئې دی.که دا د«عويل»نه ماخوذ وی.نو بيا ،،اعولو ،،کيدل پکار وو.
حال دا چه په روايت کښې «عولوا» دې.([2]) يوه ترجمه د دې دا کيدې شی.چه دغه کافرانو شور
جوړ کړو.او زمونږ خلاف ئې مدد اوغوښتلو.د ،،عول،، په صله کښې چه کله ،،حرف
باء،، راشی.نو ددې معنی مدد طلب کول دی.نو«بالصياح عولوا علينا» مطلب به
وي.«استغاثوبالصياح من أعدائنا علينا»والله اعلم.

**يواشکال اودهغې جوابونه**:دلته ئې په دويم شعر کښې «فداء لك» وئيلی دی.په دې باندې
اشکال کيږی.چه تفديه هلته وی.کوم ځائې کښې چه فناء او مرګ متصور وی.کله چه وئيلی
شی. (زه په تا قربان يم.) نو مطلب دا دې.چه په تا باندې د مرګ راتلو په ځائې دې په ما
باندې مرګ راشی.او زما ژوند دې تاسو ته ملاؤ شی.اودا خبره مسلمه ده.چه د الله تعالی
دپاره نه مرګ تصور شته او نه د فناء.نو بيا «فداء لك» وئيل څنګه صحيح دی؟ ددې
اشکال مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.

① يو جواب دا ورکړې شوې دې.چه د «فداءلك» ظاهری معنی دلته مراد نه ده. بلکه دلته
د الله تعالی سره دخپل محبت اظهار اود الله جل شانه تعظيم بيانول مقصود دی.([3])

② دويم جواب علامه مازری ورکړې دې.چه «فداءلك» کښې مضاف محذوف دې. «أی،
فداءلرضاك» ستا درضا دپاره دې زمونږ ځانونه قربان وی.اود الله تعالی رضا فوت کيدې شی
څومره کافران دی.چه دالله تعالی رضا ورته حاصله نه ده. دهغوی په حق کښې د الله تعالی

---

[1] فتح الباري(٤٦٦\٧)_
[2] فتح الباري(٤٦٦\٧)_
[3] فتح الباري(٤٦٥\٧) وعمدة القاري(٢٣٥\١٧)_

رضا فوت شوې ده.(١)

④ دريمه خبره په دې باره کښې دا وئيلې شوې ده.چه په «فداءلك» کښې خطاب الله تعالى ته نه دې.بلکه سامع ته دا خطاب د جمله معترضه په طور وئيلې شوې دى.د سامع توجه خپل طرف ته راړولو دپاره شاعران داسې کوى.(٢) والله اعلم

په کوم وخت کښې چه حضرت عامر رضي الله عنه دا رجزيه اشعار وئيل.په هغه وخت کښې رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.«من هذا السائق »دا داوښانو راښکونکې څوك دې. خلقو اووئيل.عامر دې.نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.«رحمه الله»الله تعالى دې په ده باندې رحم اوکړى.اود اياس بن سلمه په روايت کښې الفاظ دى.«غفرلك ربك»

**قوله**: قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ وَجَبَتْ يَانَبِيَّ اللّٰهِ لَوْلَا أَمْتَعْتَنَا بِهِ: په قوم کښې يو کس اووئيل.دا حضرت عمر رضي الله عنه وو.لکه څنګه چه د حضرت اياس په روايت کښې تصريح ده.(٣) اې دالله نبى! جنت دده دپاره واجب شو.تاسو دده د بهادرئ نه د نورې فائدې اخستلو موقع مونږ ته ولې رانکړه.د جهاد وغيره په موقع چه به کله نبى صلى الله عليه وسلم د چا په باره کښې داسې الفاظ اووئيل.نو ددې مطلب به دا وو.چه دې به شهيد کيږى.نو حضرت عمر رضي الله عنه ته دا خبره معلومه وه.ددې وجې هغوى نبى صلى الله عليه وسلم ته دا جمله اووئيله.نوهرکله چه قوم صفونه جوړ کړل.نو عامر يو يهودى په پنډئ باندې وهلو دپاره خپله توره اوچته کړه.تيره وړه وه.کله چه ئې هغه اوچته کړه.نو دهغې نوکه واپس د حضرت عامر رضي الله عنه په پنډئ کښې په اړخ کښې ورننوته. دهغې په وجه د هغوى انتقال اوشو.

حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه فرمائى.کله چه صحابه رضي الله عنهم د خيبر نه واپس راغلل. نو رسول الله صلى الله عليه وسلم زه (غمګين )بيا موندم.زما لاس ئې اونيولو،او وې فرمائيل څه خبره ده؟ ما عرض اوکړو. زما مور پلار دې په تاسو قربان وى.خلق وائى.چه د عامر رضي الله عنه عمل حبط (ضائع) شو.(څکه چه هغه خودکشئ اوکړه) نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. چا چه دا وئيلى دى.هغه غلط وئيلى دى.عامر ته خو به دوه ثوابونه ملاويږى.دواړه ګوتې نبى صلى الله عليه وسلم جمع کړې او اشاره ئې اوکړه. چه هغه ته به دوه اجرونه ملاويږى.هغه خو د کافرانو په مقابله کښې مشقت اوچتونکې او يو مجاهد سړې وو.

---

(١)فتح البارى(٤٦٥\١٧) وعمدة القارى (٢٣٥\١٧)_

(٢)فتح البارى (٤٦٥\١٧) وعمدة القارى (٢٣٥\١٧) دلته چاته دا اشکال کيدې شى.چه په کتاب الجهاد کښې تير شوى دى.چه دا اشعار د عبدالله بن رواحه دى.او د روايت باب نه معلوميږى.چه دا اشعار د عامر رضي الله عنه دى.ددې جواب دا دې.چه ممکن ده.دواړو ته توارد شوې وى.او داسې کيږى.چه بعضې وخت کښې يو شاعر داسې اشعار نظم کوى.کوم چه بل د وړاندې نه نظم کړى وى.او دويم جواب حافظ ابن حجر رحمه الله دا ورکړې دې.چه ممکن ده.حضرت عامر په خپلو دې اشعارو کښې د حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه اشعار هم شامل کړى وى.يعنى په دې کښې څه اشعار خو د حضرت عامر رضي الله عنه دى.او باقى د حضرت ابن رواحه دى.(فتح البارى (٤٦٥\١٧)_

(٣)فتح البارى(٤٦٦\١٧)_

**قوله** قَلَّ عَرَبِيٌّ مَشَى بِهَا مِثْلَهُ: دا سې عربي چه په زمکه باندې کرځي .د عامر په شان ډير کم دى اوپه بعضي نسخو کښې دى ((مشابها مثله)) يعنى بل عربى د عامر سره مشابه او مماثل نشته هغه خو به مثاله سړې وو.په دې سره دهغه فضيلت او فوقيت بيانول مقصود وو.[1]

[[illegible]] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى خَيْبَرَ لَيْلًا وَكَانَ إِذَا أَتَى قَوْمًا بِلَيْلٍ لَمْ يُغِرْ بِهِمْ حَتَّى يُصْبِحَ فَلَمَّا أَصْبَحَ خَرَجَتِ الْيَهُودُ بِمَسَاحِيهِمْ وَمَكَاتِلِهِمْ فَلَمَّا رَأَوْهُ قَالُوا مُحَمَّدٌ وَاللَّهِ مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيسُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرِبَتْ خَيْبَرُ إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ

((المساحى)) د ((مسحاة)) جمع دہ.کدال ته وائى.

((المكاتل)) د ((مكتل)) جمع دہ.ټوکرئ ته وائى.

((قالوا: محمداً والله محمد والخميس))

يعنى محمد (ﷺ) دخپل لښكر سره راغلې دې.لښكر ته ..خميس.. وائى. ځکه چه لښكر په پنځو حصو باندې تقسيم وى.① ميمنه② ميسره③ قلب ④ مقدمه ⑤ اوساقه[2]

[[illegible]] أَخْبَرَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ صَبَّحْنَا خَيْبَرَ بُكْرَةً فَخَرَجَ أَهْلُهَا بِالْمَسَاحِي فَلَمَّا بَصُرُوا بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا مُحَمَّدٌ وَاللَّهِ مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيسُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّهُ أَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ فَأَصَبْنَا مِنْ لُحُومِ الْحُمُرِ فَنَادَى مُنَادِي النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يَنْهَيَانِكُمْ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ فَإِنَّهَا رِجْسٌ [ر: [illegible]]

د ..حمر..دوه قسمونه دى.يو اهليه اوانسيه.او بل وحشيه .د حمر وحشيه غوښه په اتفاق سره جائز دہ.د حمر اهليه غوښه د جمهورو صحابو رضي الله عنهم او ائمه په نيز حرامه دہ.البته د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او امام مالک رحمه الله نه په يو روايت کښې ددې حلت منقول دې.د طرفينو رحمهما الله دلائل به وړاندې په ..کتاب الصيد والذبائح.. کښې د ..باب لحوم الحمر الاهلية.. لاندې راشى.

په حمر اهليه کښې . د حرمت لحم صحابو رضي الله عنهم مختلف علتونه بيان کړى دى. چا ددې علت دا بيان کړې دې.چه دا د بوج اوړلو ځناور دې.که ددې غوښه حلاله کړې شى.نو د سورلئ او بوج اوړو په کار کښې به مشکل پيښ شى.چا وئيلى دى. چه دې گندگى

---

[1] عمدة القارى (١٧\٢٣٧)_

[2] عمدة القارى (١٧\٢٣٧)_

خوری.ددې وجې حرام ګرځولې شوې دی.خو اصل علت هم هغه دې.کوم چه په حدیث کښې ذکر شوې دې.((فإنها رجس)) چه دا پلیت دې.ددې وجې حرام دې.(١)

[۳۹۶۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَهُ جَاءٍ فَقَالَ أُكِلَتِ الْحُمُرُ فَسَكَتَ ثُمَّ أَتَاهُ الثَّانِيَةَ فَقَالَ أُكِلَتِ الْحُمُرُ فَسَكَتَ ثُمَّ أَتَاهُ الثَّالِثَةَ فَقَالَ أُفْنِيَتِ الْحُمُرُ فَأَمَرَ مُنَادِيًا فَنَادَى فِي النَّاسِ إِنَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يَنْهَيَانِكُمْ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ فَأُكْفِئَتِ الْقُدُورُ وَإِنَّهَا لَتَفُورُ بِاللَّحْمِ [ر:۵۲۰۸ وانظر:۳۶۳]

په دې روایت کښې دی.چه رسول الله ﷺ ته یو سړې راغلو.او دوه خله ئې د دوی نه د خرو د غوښې خوړلو تپوس اوکړو.خو نبی ﷺ چپ پاتې شو.په دریم خل چه کله راغلو.نو نبی ﷺ ددې د حرمت اعلان اوکړو.

په اول خل او دویم ځل د چپ پاتې کیدو وجه دا کیدې شی.چه په دغه وخت کښې نبی ﷺ په څه کار کښې مشغول وو.دهغه تپوس طرف ته التفات اونشو.او دا هم کیدې شی.چه تر دغه وخته پورې وحی نه وه نازل شوې.ددې وجې نبی ﷺ چپ پاتې شو.روسته د وحی په ذریعه ددې حرمت راغلو.نو نبی ﷺ اعلان اوکړو.

[۳۹۶۴/۳۹۶۵] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ قَرِيبًا مِنْ خَيْبَرَ بِغَلَسٍ ثُمَّ قَالَ اللَّهُ أَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ فَخَرَجُوا يَسْعَوْنَ فِي السِّكَكِ فَقَتَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُقَاتِلَةَ وَسَبَى الذُّرِّيَّةَ وَكَانَ فِي السَّبْيِ صَفِيَّةُ فَصَارَتْ إِلَى دَحْيَةَ الْكَلْبِيِّ ثُمَّ صَارَتْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا فَقَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ لِثَابِتٍ يَا أَبَا مُحَمَّدٍ آنْتَ قُلْتَ لِأَنَسٍ مَا أَصْدَقَهَا فَحَرَّكَ ثَابِتٌ رَأْسَهُ تَصْدِيقًا لَهُ

[۳۹۶۵] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ سَبَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفِيَّةَ فَأَعْتَقَهَا وَتَزَوَّجَهَا فَقَالَ ثَابِتٌ لِأَنَسٍ مَا أَصْدَقَهَا قَالَ أَصْدَقَهَا نَفْسَهَا فَأَعْتَقَهَا [ر:۳۶۳]

**قوله**: حدثنا سليمان بن حرب.. فجعل عتقها صداقها: نبی ﷺ دحضرت صفیه رضی الله عنها عتق ،لره مهر مقرر کړو.د احنافو رحمهم الله د مذهب په لحاظ سره ددې تاویل دا کیدې شی.چه اول ئې هغه مکاتبه ګرځولې وی.او بیا ئې بدل کتابت ددې مهر ګرځولې وی.او دا د رسول الله ﷺ په خصوصیت باندې محمول کولې شی.دا بحث به په کتاب النکاح کښې راشی.

---

(١) زاد المعاد (۳/۳٤۲و۳٤۳)_

[٣٩٦٦] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْتَقَى هُوَ وَالْمُشْرِكُونَ فَاقْتَتَلُوا فَلَمَّا مَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى عَسْكَرِهِ وَمَالَ الْآخَرُونَ إِلَى عَسْكَرِهِمْ وَفِي أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ لَا يَدَعُ لَهُمْ شَاذَّةً وَلَا فَاذَّةً إِلَّا اتَّبَعَهَا يَضْرِبُهَا بِسَيْفِهِ فَقِيلَ مَا أَجْزَأَ مِنَّا الْيَوْمَ أَحَدٌ كَمَا أَجْزَأَ فُلَانٌ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ أَنَا صَاحِبُهُ قَالَ فَخَرَجَ مَعَهُ كُلَّمَا وَقَفَ وَقَفَ مَعَهُ وَإِذَا أَسْرَعَ أَسْرَعَ مَعَهُ قَالَ فَجُرِحَ الرَّجُلُ جُرْحًا شَدِيدًا فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَوَضَعَ سَيْفَهُ بِالْأَرْضِ وَذُبَابَهُ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ ثُمَّ تَحَامَلَ عَلَى سَيْفِهِ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَخَرَجَ الرَّجُلُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ قَالَ وَمَا ذَاكَ قَالَ الرَّجُلُ الَّذِي ذَكَرْتَ آنِفًا أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَأَعْظَمَ النَّاسُ ذَلِكَ فَقُلْتُ أَنَا لَكُمْ بِهِ فَخَرَجْتُ فِي طَلَبِهِ ثُمَّ جُرِحَ جُرْحًا شَدِيدًا فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَوَضَعَ نَصْلَ سَيْفِهِ فِي الْأَرْضِ وَذُبَابَهُ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ ثُمَّ تَحَامَلَ عَلَيْهِ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذَلِكَ إِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ الْجَنَّةِ فِيمَا يَبْدُو لِلنَّاسِ وَهُوَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ النَّارِ فِيمَا يَبْدُو لِلنَّاسِ وَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ [ر: ٢٧٤٢]

[٣٩٦٧] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ شَهِدْنَا خَيْبَرَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ مِمَّنْ مَعَهُ يَدَّعِي الْإِسْلَامَ هَذَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَلَمَّا حَضَرَ الْقِتَالُ قَاتَلَ الرَّجُلُ أَشَدَّ الْقِتَالِ حَتَّى كَثُرَتْ بِهِ الْجِرَاحَةُ فَكَادَ بَعْضُ النَّاسِ يَرْتَابُ فَوَجَدَ الرَّجُلُ أَلَمَ الْجِرَاحَةِ فَأَهْوَى بِيَدِهِ إِلَى كِنَانَتِهِ فَاسْتَخْرَجَ مِنْهَا أَسْهُمًا فَنَحَرَ بِهَا نَفْسَهُ فَاشْتَدَّ رِجَالٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ صَدَّقَ اللَّهُ حَدِيثَكَ انْتَحَرَ فُلَانٌ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَقَالَ قُمْ يَا فُلَانُ فَأَذِّنْ أَنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا مُؤْمِنٌ إِنَّ اللَّهَ يُؤَيِّدُ الدِّينَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ تَابَعَهُ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ شَبِيبٌ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي ابْنُ الْمُسَيَّبِ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبٍ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ شَهِدْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُنَيْنًا وَقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَابَعَهُ صَالِحٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ الزُّبَيْدِيُّ أَخْبَرَنِي الزُّهْرِيُّ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ كَعْبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ كَعْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مَنْ شَهِدَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ قَالَ الزُّهْرِيُّ وَأَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ وَسَعِيدٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**قوله**: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا .... سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: په دې روايت كښې حضرت سهل بن سعد ساعدى رضي الله عنه د يو كس د خودكشئ واقعه نقل كوى.او

ددې روايت سره متصل وړاندې روايت کښې حضرت ابوهريره رضي الله عنه هم د يو کس د خودکشۍ واقعه نقل کوی.چه دواړه روايتونه مخې ته کيخودې شی.نو ښکاره معلوميږی.چه د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه په روايت کښې د ،خيبر،ذکر نشته.اود حضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت کښې د «شهدنا خيبر» تصريح موجوده ده.

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه د روايت په باره کښې د ابن التين رائې دا ده.چه دا واقعه د غزوه خيبرسره تعلق نه ده.دا د بلې غزوې واقعه ده.علامه ابن الجوزی رحمه الله په مشکل الصحيحين کښې ددې تصريح کړې ده.چه د حضرت سهل د روايت دا واقعه د جنګ احد سره متعلق ده.خود حافظ ابن حجر رحمه الله د رائې نه معلوميږی.چه د حضرت سهل د روايت واقعه هم د غزوه خيبر سره متعلق ده. هغوی فرمائی.دحضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت سهل په روايتونوکښې په حقيقت کښې هم يوه واقعه بيان شوې ده.کومه چه خيبر سره متعلق ده.البته په دواړو رواياتو کښې معمولی غوندې فرق دا دې.چه د حضرت سهل په روايت کښې دی. چه دغه کس په توره باندې خودکشی اوکړه.اودحضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت کښې دی.چه هغه په غشی سره خپل ځان ختم کړو.خو حافظ فرمائی.چه کيدې شی.اول هغه په غشی باندې دخودکشۍ کوشش کړې وی.کله چه په هغې کښې ورته کاميابی اونشوه.نو بيا ئې په توره خپل ځان ختم کړو.په يو حديث کښې د يو څيز ذکراوشو.او په بل کښې د بل څيز.(١)

امام بخاری رحمه الله دحضرت سهل رضي الله عنه روايت په غزوه خيبر کښې بيان کړې دې. ددې نه معلوميږی.چه د دوی رجحان هم دې طرف دې.چه دا واقعه د خيبر ده.والله اعلم.

**قوله**: فَقِيلَ مَا أَجْزَأَ مِنَّا الْيَوْمَ أَحَدٌ كَمَا أَجْزَأَ فُلَانٌ:

**دحضرت شيخ الهند رحمه الله استدلال**: حضرت شيخ الهند رحمه الله چه به کله دې مقام ته راورسيدل. نو تبسم به ئې کولو،اوددې نه پس به وړاندې تلو.يوځل ئې د دې تبسم وجه بيان کړه، چه په حديث کښې راځی.«لاتجزی صلاة إلا بفاتحة الكتاب»شوافع حضرات رحمهم الله دا حديث نص فی ايجاب الفاتحه ګرځوی.او وائی.چه دنبی صلی الله عليه وسلم ددې ارشاد مقصد دا دې.چه مونځ د فاتحې نه بغير نه کيږی.احناف حضرات رحمهم الله فرمائی.چه په «لاتجزی صلاة»کښې د اجزاء نه ،اجزاء کامل مراد ده.او مطلب دا دې.چه مونځ بغيرد فاتحې نه کامل نه دې.داحنافو دا توجيه په حديث الباب کښې دټولو په نيز متفق عليه ده.دلته ټول دا وائی.چه په «مااجزأمنا» کښې چه د کوم اجزاء ذکر دې. د هغې نه اجزاء کامل مراد دې.ځکه چه ګنی قتال خو نورو کسانو هم کړې وو. يهوديان نورو کسانو هم قتل کړی دی.خو دلته مطلب دا دې.چه څنګه په پوره بهادرۍ سره دې کس قتال کړې وو.په مونږ کښې بل چا داسې نه وو کړې.(٢)

---

(١) فتح الباری(٤٧٣/٧)_

(٢) فيض الباری(١٣٣/٤)_

كوم كس چه خودكشي كړې وه.د هغه نوم ،،قزمان ظفرى،، وو.اودهغه كنيت ،،ابوالغيداق،، وو.(١) دكتاب المغازى په شروع كښې د جهاد په اغراضو او مقاصدو كښې ما دا قصه تاسو ته بيان كړې وه.

**قوله** فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ أَنَا صَاحِبُهُ: ددې كس نوم حافظ ابن حجر رحمه الله «اكثم بن ابى الجون خزاعى» بيان كړې دې.(٢) هغه اووئيل.زه به ددې سړى سره يم.

**قوله** حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ..... إِنَّ اللَّهَ يُؤَيِّدُ الدِّينَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ: كه دفاجر نه مراد فاسق وى.نو خبره آسانه ده.يوګناهګار سړې فاسق وى.خو الله تعالى د خپل دين خدمت دهغه نه اخلى.ددې نه دا هم معلومه شوه.كه يو كس د دين په خدمت كښې لګيا وى.نو ضرورى نه ده.چه هغه به د الله تعالى په نيز مقبول وى. اوكه د فاجر نه مراد كافر وى.نو بيا خبره ډيره سخته ده.يعنى هغه كس چه كله به هم جنت ته نه ځى.الله تعالى د هغه نه هم دخپل دين كار اخلى.ددې وجې ډير ويريدل پكار دى.چه د دين كه څه خدمت زمونږ او ستاسو نه اخستې شى.نودا ضرورى نه ده.چه دا د الله تعالى په نيز د مقبوليت دليل دې.هغه خو دخپل دين تائيد په كافرانو او فاسقانو سره هم كولې شى.

**قوله** تَابَعَهُ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ: د دې نه وړاندې روايت شعيب د زهرى نه نقل كړې وو.امام بخارى رحمه الله فرمائى.چه شعيب د معمر متابعت كړې دې.معمر هم دا روايت د زهرى نه نقل كړې دې.دا متابعت امام بخارى په ابواب القدر كښې موصولاً نقل كړې دې.په كتاب الجهاد كښې هم دا متابعت امام بخارى رحمه الله موصولاً ذكر كړې دې.البته هلته د زهرى نه معمر خانله روايت نه كوى.بلكه معمراو شعيب دواړه د زهرى نه روايت كوى.(٣)

**قوله** وَقَالَ شَبِيبٌ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ.... أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ شَهِدْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُنَيْنًا: په دې تعليق سره امام بخارى رحمه الله دا خودل غواړى.چه د ابن الشهاب زهرى نه يونس بن يزيد هم د حضرت ابوهريره رضي الله عنه ذكر شوې روايت نقل كړې دې. خو ديونس روايت د شعيب عن الزهرى او معمر عن الزهرى دواړو د رواياتو نه خلاف دې.ځكه چه شعيب او معمر دواړو په خپلو روايتونو كښې د ،،خيبر،، تصريح كړې ده.اود يونس په دې روايت كښې د ،،خيبر،، په ځائې د ،،حنين،، تصريح ده.

**قوله** وَقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ددې نه وړاندې تعليق د «شبيب عن يونس» وو.اودا تعليق د «ابن

---

(١) فتح البارى(٤٧٢/٧)_
(٢) فتح البارى(٤٧٣/٧)_
(٣) عمدة القارى (٢٤٠/١١٧)_

المبارك عن يونس» دې. البته هغه موصولاً وو. اودامرسلاً دې. ځکه چه د سعيد نه پس د صحابى رضي الله عنه ذكر نشته.

دامام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه لکه څنګه د شبيب عن يونس په روايت کښې د ,,حنين،، ذکردې. دغه شان د ابن المبارك عن يونس په روايت کښې هم د ,,حنين،، ذکر دې.

**قوله**: تَابَعَهُ صَالِحٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ: يعنى د ابن المبارك متابعت صالح بن كيسان کړې دې. مطلب دا دې چه د ابن المبارك عن يونس عن الزهرى روايت مرسلاً منقول دې. نو دغه شان د زهرى نه صالح هم دا روايت مرسلاً ذكر كوى. دا متابعت امام بخارى په خپل تاريخ کښې موصولاً نقل کړې دې.[1]

**قوله**: وَقَالَ الزُّبَيْدِيُّ أَخْبَرَنِي الزُّهْرِيُّ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ كَعْبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ كَعْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مَنْ شَهِدَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ:

ددې نه وړاندې يو تعليق «قال شبيب» تيرشوې وو. امام بخارى رحمه الله په «قال الزبيدى» سره ددواړو په مينځ کښې فرق بيانول غواړى. په اولنى روايت کښې عبدالرحمن بن عبدالله بن كعب دې. او د زبيدى په دې تعليق کښې عبدالرحمن بن كعب دې. عبدالله کوم چه د عبدالرحمن والد دې. دهغه نوم ئې د اختصار د وجې حذف کړې دې. حال دا چه عبدالرحمن بن عبدالله بن كعب وئيل پكار وو. دغه شان په هغه تعليق کښې عبدالرحمن براه راست د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه نقل كوى. او دلته دعبيدالله بن كعب نه نقل كوى. دغه شان هلته د ابوهريره د نوم تصريح ده. او دلته د يو صحابى د نوم تصريح نشته. بلكه «من شهد مع النبى صلى الله عليه وسلم خيبر» ئې وئيلى دى. البته هلته د حنين تصريح ده. او دلته د خيبر تصريح ده.

**قوله**: قَالَ الزُّهْرِيُّ وَأَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ وَسَعِيدٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بعضو د عبيدالله بن عبدالله په ځائې عبدالله بن عبدالله نقل کړى دى. دا دواړه د حضرت عمر رضي الله عنه د خوى ځامن (نمسى) وو. دا روايت هم مرسل دې.

په دې تعليقاتو سره امام بخارى رحمه الله د دې روايت طرق مختلفه ته اشاره كوى. د معمر او شعيب روايت ته ترجيح ورکول غواړى. دمعمر او شعيب په روايت کښې د خيبر تصريح راغلې ده. د «يونس عن الزهرى» په روايت کښې د ,,حنين،، ذکر دې. د يونس دغه روايت د عبدالرحمن په واسطه سره دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه موصولاً منقول دې. امام بخارى ددې نه پس د زبيدى تعليق ذکر کړې دې. په کوم کښې چه عبدالرحمن د خيبر تصريح کړې ده. نو په کومو رواياتو کښې چه د حنين ذکر راغلې دې. هغه موصولاً هم منقول دى. او مرسلاً هم. بيا په دې کښې په بعضې طرقو کښې د حنين په ځائې د ,,خيبر،، ذکر راغلې دې. نو ځکه د

[1] فتح البارى (٢٧٣/٧)_ک

معمر او شعيب روايت هم صحيح او راجح دي.علامه ذهلي هم د معمر او شعيب روايت راجح ګرځولې دې.(۱) اوامام نووی د مسلم شريف په شرح کښې د قاضي عياض رحمه الله قول نقل کړې دې.چه دحنين په ځائې هم خيبر صحيح دې.(۲) امام بخاري د حنين روايات تعليقاً ذکر کړل.اود حنين په غلطئ باندې ئې تنبيه وکړه.

[۳۹۶۸] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا غَزَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ أَوْ قَالَ لَمَّا تَوَجَّهَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْرَفَ النَّاسُ عَلَى وَادٍ فَرَفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ بِالتَّكْبِيرِ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْبَعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ إِنَّكُمْ لَا تَدْعُونَ أَصَمَّ وَلَا غَائِبًا إِنَّكُمْ تَدْعُونَ سَمِيعًا قَرِيبًا وَهُوَ مَعَكُمْ وَأَنَا خَلْفَ دَابَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعَنِي وَأَنَا أَقُولُ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ فَقَالَ لِي يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ قَيْسٍ قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى كَلِمَةٍ مِنْ كَنْزٍ مِنْ كُنُوزِ الْجَنَّةِ قُلْتُ بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ فَدَاكَ أَبِي وَأُمِّي قَالَ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ [ر: ۲۸۳۰]

حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه فرمائی.چه کله نبی صلی الله علیه وسلم د خيبر نه مدينې منورې ته واپس راتلو.نو په لاره کښې صحابو رضی الله عنهم په يو وادئ کښې په اوچت آواز سره تکبير وئيل شروع کړل.نو نبی صلی الله علیه وسلم هغوی ته اوفرمائيل.((اربعوا (۳) أنفسکم إنکم لاتدعون أصم ولاغائباً إنکم تدعون سميعاً قريباً وهومعکم)) يعنی خپلو نفسونو سره نرمی اوکړئ.(په زيات زور سره نعره مه وهئ) ځکه چه تاسو کونړ يا غائب نه رابلئ.کوم ذات چه تاسو رابلئ هغه سميع او نزدې دې.او هغه تاسو سره دې.

حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه فرمائی.زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سورلئ نه روسته ووم. رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کله زما نه ((لاحول ولا قوة إلا بالله)) واوريدل.نو وې فرمائيل. عبدالله بن قيس! زه تاته داسې کلمه اونه ښائم.کومه چه دجنت د خزانو نه يوه خزانه ده.ما عرض اوکړو. ولې نه يا رسول الله! نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل.((لاحول ولا قوة إلا بالله)) په يو بل روايت کښې راځی چه د.((لاحول ولا قوة إلا بالله)) وظيفه د يو کم سل بيمارو علاج دې.اوپه هغې کښې معمولی او د ټولو نه وړه بيماری ،،هم،، دې.(۴) په کومه کښې چه سړې پريشانه وی.اود سړی د زړه سکون ختميږی.د ،،هم،، په وجه نورې هم ډيرې بيمارئ پيدا کيږی.نبی صلی الله علیه وسلم دې ته دجنت

(۱) فتح الباري(۱۷/۴۷۴)_
(۲) شرح مسلم للنووی (۱۱/۷۳)_
(۳) اربعوا: معناه ارفقوا.. يقال: ربع عليه يربع ربعاً إذا کف عنه. واربع على نفسه کف عنها وارفق بها (عمدة القاري(۱۷/۲۱)_
(۴) اوګورئ مستدرک حاکم (۱۱/۵۴۲) دغه شان اتحاف السادة المتقين (۹/۴۶۶)_

خزانه ونیلې ده.دا ډیر لوی خیز دی.

په دې روایت کښې د «لما توجه رسول الله ﷺ» نه خیبر طرف ته متوجه کیدل مراد نه دی.بلکه د خیبر فتح کولو نه مدینې منورې طرف ته متوجه کیدل مراد دی.ځکه چه حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه فرمائی.زه د رسول ا لله ﷺ د سورلئ د شاته ووم.او په دې باندې د ټولو اتفاق دې.چه حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه د خیبر نه پس د حبشې نه راغلې وو.لکه څنګه چه وړاندې روایت راځی.ددې وجې په روایت کښې «توجه إلی خیبر» مراد اخستل صحیح نه دی. (۱)

[۳۹۶۹] حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ قَالَ رَأَيْتُ أَثَرَ ضَرْبَةٍ فِي سَاقِ سَلَمَةَ فَقُلْتُ يَا أَبَا مُسْلِمٍ مَا هَذِهِ الضَّرْبَةُ فَقَالَ هَذِهِ ضَرْبَةٌ أَصَابَتْنِي يَوْمَ خَيْبَرَ فَقَالَ النَّاسُ أُصِيبَ سَلَمَةُ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَفَثَ فِيهِ ثَلَاثَ نَفَثَاتٍ فَمَا اشْتَكَيْتُهَا حَتَّى السَّاعَةِ

حضرت یزید بن ابی عبید وائی.چه ما د حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه په پنډۍ کښې د تورې د ګزار نښه اولیدله.نو دهغه نه ما تپوس اوکړو.چه دا د کوم خیز نښه ده.؟ وې فرمائیل.په جنګ خیبر کښې د تورې دا ګزار راته لګیدلې وو.په هغه وخت کښې خلقو اووئیل. سلمه زخمی شو.(یعنی اوس بچ کیدل ګران دی.د دې زخم نه به پاتې نشی) زه د نبی ﷺ خدمت ته حاضر شوم.نبی ﷺ درې ځله په هغې باندې دم واچولو.نو زما تکلیف داسې ختم شو.چه ترننه ورځې پورې ما بیا چرته تکلیف نه دې محسوس کړې.

[۳۹۷۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ الْتَقَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُشْرِكُونَ فِي بَعْضِ مَغَازِيهِ فَاقْتَتَلُوا فَمَالَ كُلُّ قَوْمٍ إِلَى عَسْكَرِهِمْ وَفِي الْمُسْلِمِينَ رَجُلٌ لَا يَدَعُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ شَاذَّةً وَلَا فَاذَّةً إِلَّا اتَّبَعَهَا فَضَرَبَهَا بِسَيْفِهِ فَقِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا أَجْزَأَ أَحَدٌ مَا أَجْزَأَ فُلَانٌ فَقَالَ إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَقَالُوا أَيُّنَا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ إِنْ كَانَ هَذَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ لَأَتَّبِعَنَّهُ فَإِذَا أَسْرَعَ وَأَبْطَأَ كُنْتُ مَعَهُ حَتَّى جُرِحَ فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَوَضَعَ نِصَابَ سَيْفِهِ بِالْأَرْضِ وَذُبَابَهُ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ ثُمَّ تَحَامَلَ عَلَيْهِ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَجَاءَ الرَّجُلُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ فَقَالَ وَمَا ذَاكَ فَأَخْبَرَهُ فَقَالَ إِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فِيمَا يَبْدُو لِلنَّاسِ وَإِنَّهُ لَمِنْ أَهْلِ النَّارِ وَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ فِيمَا يَبْدُو لِلنَّاسِ وَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ [ر: ۲۷۴۲]

[۳۹۷۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَعِيدٍ الْخُزَاعِيُّ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ الرَّبِيعِ عَنْ أَبِي عِمْرَانَ قَالَ نَظَرَ أَنَسٌ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَرَأَى طَيَالِسَةً فَقَالَ كَأَنَّهُمُ السَّاعَةَ يَهُودُ خَيْبَرَ

(۱) عمدة القاری (۱۷/۲۴۱)_

د محمد بن سعيد خزاعى په بخارى كښې صرف دوه روايتونه دى.يو دا او بل په كتاب الجهاد كښې تيرشوې دې.(١) او دزياد بن ربيع صرف دا يو روايت په بخارى كښې دې.

**قوله** نَظَرَ أَنَسٌ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَرَأَى طَيَالِسَةً فَقَالَ كَأَنَّهُمُ السَّاعَةَ يَهُودُ خَيْبَرَ: حضرت انس رضي الله عنه د جمعې په ورځ خلقو ته اوكتل.چه ټولو څادرې راخستى دى.وې فرمائيل. دا خلق په دې وخت كښې د خيبر د يهودو پشان ښكارى.

،طيالسة،،د،،طيلسان،جمع ده.څادر ته وائى.چونكه يو خاص قسم تور څادر وو.كوم چه يهودو اچول.ددې وجې حضرت انس رضي الله عنه ته دا خبره ښه ښكاره نشوه.چه دهغوى سره مسلمانان مشابهت اختيار كړى.تركومې پورې چه د مطلق څادر د استعمال تعلق دې.نو په هغې كښې څه حرج او كراهت نشته.

[٣٩٧٢] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تَخَلَّفَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي خَيْبَرَ وَكَانَ رَمِدًا فَقَالَ أَنَا أَتَخَلَّفُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَحِقَ بِهِ فَلَمَّا بِتْنَا اللَّيْلَةَ الَّتِي فُتِحَتْ قَالَ لَأُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ غَدًا أَوْ لَيَأْخُذَنَّ الرَّايَةَ غَدًا رَجُلٌ يُحِبُّهُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ يُفْتَحُ عَلَيْهِ فَنَحْنُ نَرْجُوهَا فَقِيلَ هَذَا عَلِيٌّ فَأَعْطَاهُ فَفُتِحَ عَلَيْهِ [ر: ٢٨١٢]

په دې روايت كښې نې حضرت على رضي الله عنه ته د جنډې وركولو واقعه نقل كړې ده.ددې تفصيل د قلعه قموص په فتح كښې تير شوې دې.

[٣٩٧٣] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ خَيْبَرَ لَأُعْطِيَنَّ هَذِهِ الرَّايَةَ غَدًا رَجُلًا يَفْتَحُ اللَّهُ عَلَى يَدَيْهِ يُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيُحِبُّهُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ قَالَ فَبَاتَ النَّاسُ يَدُوكُونَ لَيْلَتَهُمْ أَيُّهُمْ يُعْطَاهَا فَلَمَّا أَصْبَحَ النَّاسُ غَدَوْا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّهُمْ يَرْجُو أَنْ يُعْطَاهَا فَقَالَ أَيْنَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ فَقِيلَ هُوَ يَا رَسُولَ اللَّهِ يَشْتَكِي عَيْنَيْهِ قَالَ فَأَرْسَلُوا إِلَيْهِ فَأُتِيَ بِهِ فَبَصَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي عَيْنَيْهِ وَدَعَا لَهُ فَبَرَأَ حَتَّى كَأَنْ لَمْ يَكُنْ بِهِ وَجَعٌ فَأَعْطَاهُ الرَّايَةَ فَقَالَ عَلِيٌّ يَا رَسُولَ اللَّهِ أُقَاتِلُهُمْ حَتَّى يَكُونُوا مِثْلَنَا فَقَالَ انْفُذْ عَلَى رِسْلِكَ حَتَّى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ وَأَخْبِرْهُمْ بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ مِنْ حَقِّ اللَّهِ فِيهِ فَوَاللَّهِ لَأَنْ يَهْدِيَ اللَّهُ بِكَ رَجُلًا وَاحِدًا خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ يَكُونَ لَكَ حُمْرُ النَّعَمِ [ر: ٢٧٨٣]

---

١) فتح البارى (٤٧٥١٧)_

((أنفذ على رسلك))هم دغه شان په خپل حال باندې څه.((ثم أدعهم إلى الإسلام))بيا دوى ته د اسلام دعوت وركړه.

**دجهاد نه وړاندې د اسلام دعوت:** په دې مسئله كښې د امامانو اختلاف دې.چه كافرانو سره د اسلام د دعوت وركولو نه وړاندې جهاد كول جائز دې كه نه،عام طور په دې مسئله كښې درې مذاهب بيانولى شى.

① دعوت الى الاسلام مطلقاً واجب دې.ترهغه وخته پورې كافرانو سره قتال كول جائز نه دې.ترڅوچه هغوى ته د اسلام دعوت نه وى وركړې شوې.برابره ده چه هغه ته ددې نه وړاندې داسلام دعوت رسيدلې وى اوكه نه،حافظ ابن حجر رحمه الله او د امام مالك رحمه الله مذهب دې.

② دعوت الى الاسلام مطلقاً واجب نه دې.يعنى برابره ده كه د اسلام دعوت كافرانو ته رسيدلى وى اوكه نه وى.خو دوى سره د قتال كولو نه وړاندې د اسلام دعوت وركول ضرورى نه دى.دا مذهب د امام شافعى رحمه الله نه په يو روايت كښې منقول دې.

③ دريم مذهب د جمهورو امامانو دې.اوهغه دا كه يو قوم ته د قتال نه وړاندې داسلام دعوت نه وى رسيدلې،په داسې صورت كښې دعوت الى الاسلام واجب دې.او د دعوت نه بغير قتال جائز نه دې.اوكه دغه قوم ته ئې د اسلام دعوت د قتال نه وړاندې وركړې وو.نو دقتال نه وړاندې هغه ته د اسلام دعوت وركول مستحب دى.هم دا صحيح روايت دې.اود جمهور مذهب دې.

تنبيه: حافظ ابن حجر د احنافو حضراتو دا مذهب نقل كړې دې.چه د هغوى په نيز دعوت الى الاسلام مستحب دې.([1]) خوحافظ صاحب د احنافو مذهب صحيح نه دې نقل كړې،د احنافو مذهب هم هغه دې،كوم چه د جمهورو دې،صاحب د هدايه تصريح كړې ده.((لا يجوز أن يقاتل من لم تبلغه الدعوة إلى الإسلام إلا أن يدعوه .. ويستحب أن يدعو من بلغته الدعوة))([2]) والله اعلم.

[٣٩٧٦/٣٩٧٣]حَدَّثَنَا عَبْدُ الْغَفَّارِ بْنُ دَاوُدَ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ ح وحَدَّثَنِي أَحْمَدُ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الزُّهْرِيُّ عَنْ عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَدِمْنَا خَيْبَرَ فَلَمَّا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْحِصْنَ ذُكِرَ لَهُ جَمَالُ صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيِّ بْنِ أَخْطَبَ وَقَدْ قُتِلَ زَوْجُهَا وَكَانَتْ عَرُوسًا فَاصْطَفَاهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ فَخَرَجَ بِهَا حَتَّى بَلَغْنَا سَدَّ الصَّهْبَاءِ حَلَّتْ فَبَنَى بِهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَنَعَ حَيْسًا فِي نِطَعٍ صَغِيرٍ ثُمَّ قَالَ لِي آذِنْ مَنْ حَوْلَكَ فَكَانَتْ تِلْكَ وَلِيمَتَهُ عَلَى صَفِيَّةَ ثُمَّ

---

[1] ،حافظ ليكى.((لا يجوز من لم تبلغه الدعوة إلى الإسلام إلا أن يدعوه .. ويستحب أن يدعو من بلغته الدعوة)) (،هدايه كتاب السير بشرح فتح القدير(١٩٧\٥)_

[2] ،هدايه كتاب السير بشرح فتح القدير (١٩٧\٥)_

خَرَجْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَوِّي لَهَا وَرَاءَهُ بِعَبَاءَةٍ ثُمَّ يَجْلِسُ عِنْدَ بَعِيرِهِ فَيَضَعُ رُكْبَتَهُ وَتَضَعُ صَفِيَّةُ رِجْلَهَا عَلَى رُكْبَتِهِ حَتَّى تَرْكَبَ

[۳۹۷۵] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي أَخِي عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ يَحْيَى عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقَامَ عَلَى صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ بِطَرِيقِ خَيْبَرَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ حَتَّى أَعْرَسَ بِهَا وَكَانَتْ فِيمَنْ ضُرِبَ عَلَيْهَا الْحِجَابُ

[۳۹۷۶] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ أَبِي كَثِيرٍ قَالَ أَخْبَرَنِي حُمَيْدٌ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ أَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ خَيْبَرَ وَالْمَدِينَةِ ثَلَاثَ لَيَالٍ يُبْنَى عَلَيْهِ بِصَفِيَّةَ فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِينَ إِلَى وَلِيمَتِهِ وَمَا كَانَ فِيهَا مِنْ خُبْزٍ وَلَا لَحْمٍ وَمَا كَانَ فِيهَا إِلَّا أَنْ أَمَرَ بِلَالًا بِالْأَنْطَاعِ فَبُسِطَتْ فَأَلْقَى عَلَيْهَا التَّمْرَ وَالْأَقِطَ وَالسَّمْنَ فَقَالَ الْمُسْلِمُونَ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ أَوْ مَا مَلَكَتْ يَمِينُهُ قَالُوا إِنْ حَجَبَهَا فَهِيَ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ وَإِنْ لَمْ يَحْجُبْهَا فَهِيَ مِمَّا مَلَكَتْ يَمِينُهُ فَلَمَّا ارْتَحَلَ وَطَّأَ لَهَا خَلْفَهُ وَمَدَّ الْحِجَابَ

**قوله**: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْغَفَّارِ...: دا روايت او دې سره وړاندې دوه روايتونه دحضرت انس رضی الله عنه نه مروي دی.په دې درې واړه رواياتو کښې حضرت انس رضی الله عنه د حضرت صفيه رضی الله عنها د نبی ﷺ سره د نکاح واقعه بيان کړې ده.

**حضرت صفيه رضى الله عنها**: دا د بنو نضيرو د سردار حيی بن اخطب لور وه.اول ددې نکاح د سلام بن مشکم نومې يهودی سره شوې وه.د هغه د انتقال نه پس د کنانه بن ابی الحقيق په نکاح کښې راغلې وه.کله چه قلعه قموص فتح شوه.نو حضرت صفيه رضی الله عنها هم د نورو قيديانو سره قيد کښې راغله.کنانه ورستو دخپل عهد خلافئ په وجه قتل کړې شوې وو. (تفصيل ئې وړاندې تير شوې دې) حضرت دحيه کلبی د نبی ﷺ نه يوه وينځه اوغوښتله.نو نبی ﷺ حضرت صفيه رضی الله عنها هغه ته حواله کړه.خو صحابوو رضی الله عنهم نبی ﷺ ته اووئيل.چه حضرت صفيه رضی الله عنها د سردار لور ده.اود حسن او جمال په اعتبار سره هم ممتاز ده.نودا تاسو خان سره اوساتئ.نو نبی ﷺ حضرت دحيه کلبی رضی الله عنه ته بله وينځه ورکړه.او د حضرت صفيه رضی الله عنها سره نبی پخپله نکاح اوکړه.([1])

په واپسئ کښې چه مقام صهباء ته نبی ﷺ راورسيدل.نو حضرت صفيه دماهوارئ نه پاکه شوه.په دې مقام باندې نبی ﷺ هغې سره د واده شپه تيره کړه.او درې ورځې ئې هلته قيام اوکړو.ساده وليمه اوکړې شوه.دسترخوان خور کړې شو.اودقجورو،پنيراو غوړو نه جوړشوې ،،حيس،، صحابوو رضی الله عنهم اوخوړلو.

حضرت صفيه ډيره عاقله،حليمه او فاضله ميرمن وه.حافظ ابن حجر په ،،الاصابة،، کښې ليکلی دی.چه نبی ﷺ د مقام صهباء نه وړاندې حضرت صفيه ته تشريف يوړو.دحضرت

[1] السيرة الحلبية (۴۳\۳)_

صفیه رضی الله عنها خواهش وو.چه په دې وخت کښې نبی ﷺ دې ته تشریف راوړي.نو نبی ﷺ واپس شو.روسته چه کله د دې نه ددې تپوس اوشو.نو وې وئیل.چونکه دغه مقام د خیبر د یهودیانو سره نزدې وو.چه نبی ﷺ ئې زما سره نزدې لیدلې وو.نو یهودیانو د دوی خلاف سازش کولې شو.ددې خطرې په وجه ما اوغوښتل.چه نبی ﷺ ما سره په دغه ځائې کښې نزدې نه اوسیږي.(۱)

امام احمد بن حنبل رحمه الله په خپل مسند کښې روایت نقل کړې دې.چه نبی ﷺ حضرت صفیه رضی الله عنها ته اختیار ورکړې وو.که هغه غواړي.نو آزاده به شی.او خپل کور ته به واپس شی.او که غواړي.نود نبی ﷺ په نکاح کښې راتلل دې قبول کړي.حضرت صفیه رضی الله عنها دویم صورت غوره کړو.اود نبی ﷺ په نکاح کښې راتلل ئې خوښ کړو.(۲)

ابن اسحاق نقل کړې دی.چه حضرت صفیه د غزوه خیبر نه وړاندې خوب لیدلې وو.چه سپوږمئ زما په غیږ کښې راپریوته.چه دا خوب ئې خپل خاوند کنانه ته واورولو.نوهغه په پړق باندې اووهله.او وې وئیل.ته د د مدینې د بادشاه (محمد ﷺ) خواهش کوې.ددې پړق نبه دحضرت صفیه په مخ باندې وو.رسول الله ﷺ ددغه نښې په باره کښې تپوس اوکړو.نوهغې ورته دا واقعه واوروله.(۳)

کله چه نبی ﷺ په مرض الوفات کښې وو.نو ټولې ازواج مطهرات د نبی ﷺ نه ګیرچاپیره جمع شوې.حضرت صفیه رضی الله عنها چه د نبی ﷺ تکلیف اولیدلو. نو وې وئیل.((والله یا نبی الله لوددت أن الذی بك بی))اې دالله نبی په الله زه غواړم.چه تاسوباندې کوم تکلیف وی.دا په ما شی.په دې جمله وئیلو باندې نورو بیبیانو دې ته په بد نظر سره اوکتل.نبی ﷺ د نورو بیبیانو دا په بد نظر سره کتل خوښ نکړل.او وې فرمائیل.((والله إنها لصادقة)) د نبی ﷺ مطلب دا وو.چه دا جمله دې څه د تصنع دپاره نه ده وئیلې.بلکه رښتیا ئې وئیلی دی.او د زړه نه ئې وئیلی دی.(۴)

دحضرت صفیه رضی الله عنها وفات په ۵۰ھ یا ۵۲ ھ کښې د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه په دور خلافت کښې شوې وو.(۵)اوس لږ دروایاتو ګرانو الفاظو ته اوګورئ.

**قوله: فَاصْطَفَاهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ:** د دې جملې یو مطلب دا دې.چه رسول الله ﷺ حضرت صفیه په مال غنیمت کښې د خپل ځان دپاره منتخب کړه. عامو مسلمانانوته چه په مال غنیمت کښې څومره حصه ملاویدله.نو رسول الله ﷺ ته هم د

---

۱)الإصابة فی تمییز الصحابة (۳۴۷\۴)_
۲)مسند احمد بن حنبل (۱۳۸\۳)_
۳)سیرة ابن هشام (۳۵۰\۳و ۳۵۱)_
۴)الإصابة فی تمییز الصحابة (۳۴۷\۴و ۳۴۸)_
۵)الإصابة فی تمیز الصحابة (۳۴۷\۴، ۳۴۸)_

خمس نه سوا هغه هومره حصه ملاویده.نو کومه حصه چه د خیبر په عام مال غنیمت کښې نبی ﷺ ته ملاویده.هم په هغې کښې نبی ﷺ د حضرت صفیه انتخاب اوکړو.او دویم مطلب دا هم کیدې شی.نو نبی ﷺ د ،،صفی،، په طور دا دخپل ځان دپاره متعینه کړه. رسول الله ﷺ د تقسیم غنیمت نه وړاندې دا اختیار وو.چه کوم څیز د هغوی خوښ وو.هغه نبی ﷺ واخلی.کوم ته چه په اصطلاح کښې ،صفی،، وائی.حافظ رحمه الله په فتح الباری کښې لیکلی دی.چه دحضرت صفیه رضی الله عنها نوم زینب وو.کله چه رسول الله ﷺ د ،،صفی،، په طور ددې انتخاب د خپل ځان دپاره اوکړو.نو د هغه وخت نه ددې نوم ،،صفیه رضی الله عنها،، شو.[1]

**قوله**: ثُمَّ صَنَعَ حَيْسًا فِي نِطَعٍ صَغِيرٍ: ،حیس،،د قجورو، پینړ اوغوړو نه تیار شوې مخصوص خوراک ته وائی. کوم چه عربیان زیات خوښولو.((نطع)) د څرمن دسترخوان ته وائی.ددې جمع ((أنطاع))راځی.

**قوله**: فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَوِّي لَهَا وَرَاءَهُ بِعَبَاءَةٍ: یعنی ما اوکتل.چه نبی ﷺ د حضرت صفیه رضی الله عنها دپاره خپلې شا ته د څادر په ذریعه ځائې جوړوی.مطلب دا چه نبی ﷺ خپل ځان پسې روستو کینولو دپاره په څادر باندې ځائې برابرولو.دې دپاره چه هغه په دې باندې کینی.د ((يحوى لها)) معنی ده ((يجعل لها حوية)) ،،حویه،، هغه څادر ته وائی.کوم چه په اوښ وغیره باندې سور سړې خپل ګیرچاپیره خوروی.[2] د ((عباءة))نه مراد هم څادر دې.

[٣٩٧٧]حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ ح وحَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا وَهْبٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مُحَاصِرِي خَيْبَرَ فَرَمَى إِنْسَانٌ بِجِرَابٍ فِيهِ شَحْمٌ فَنَزَوْتُ لِآخُذَهُ فَالْتَفَتُّ فَإِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَحْيَيْتُ[ر:٢٩٨٣]

حضرت عبدالله بن مغفل رضی الله عنه فرمائی.چه چه مونږ د خیبر محاصره کړې وه.یو کس تیلئ اوغورځوله. په هغې کښې وازګه وه.دهغې د راخستلو دپاره ما وړټوپ کړې.چه مې اومتل.نو نبی ﷺ نزدې تشریف فرما وو.نو زه اوشرمیدم.چونکه د لوږې شکایت عام وو.ددې وجې حضرت عبدالله د وازګې دغه تیلئ ته وړټوپ کړې.ددې روایت نه دا معلومه شوه.که د خوراک څکاك د څیزونو چا ته ضرورت وی.نو د مال غنیمت د تقسیم نه وړاندې د ضرورت مطابق اخستل جائز دی.دغه شان وسله وغیره که جهاد کښې د استعمال دپاره د مال غنیمت د تقسیم نه وړاندې واخستې شی.نو څه حرج نشته.خو روسته به هغه واپس کول وی.

[1] فتح الباری (٤٨٠/١٧)_
[2] فتح الباری(٤٨٠/١٧)_

[٣٩٧٨] حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ أَبِي أُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ وَسَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ أَكْلِ الثُّومِ وَعَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ نَهَى عَنْ أَكْلِ الثُّومِ هُوَ عَنْ نَافِعٍ وَحْدَهُ وَلُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ عَنْ سَالِمٍ [ر: ...وانظر: ...]

دا روايت عبيدالله د نافع او سالم نه نقل كوى.وړاندې چه خى نو دوى بيانوى .چه د اكل ثوم مسئله ما د نافع نه روايت كړې ده.اود لحوم الحمر الاهليه مسئله مې د سالم نه روايت كړې ده. دواړه ئې چونكه وړاندې جمع كړى وو.نو چا ته شك كيدې شو.چه د دواړو نه دواړه مسئلې منقول دى.نوځكه ئې وړاندې وضاحت اوكړو.

دجمهورو په نيز باندې اوګه خوړل جائز دى.البته ددې خبرې احتياط كول پكار دې.چه پخه كړې شى.نو ددې استعمال پكار دې.دې دپاره چه بدبوئى ئې د اذيت سبب نشى.

[٣٩٧٩] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ وَالْحَسَنِ ابْنَيْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ أَبِيهِمَا عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ مُتْعَةِ النِّسَاءِ يَوْمَ خَيْبَرَ وَعَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْحُمُرِ الْإِنْسِيَّةِ

دا روايت دحضرات اهل بيت نه منقول دې.دحضرت ابن شهاب نه پس ټول راويان د اهل بيت سره تعلق ساتى.

**نكته**:ددې روايت يو راوى حضرت محمد بن على ،، دې.د هغه د مور نوم ،،حنفيه،، وو. اودا د حضرت على رضي الله عنه خوئې دې.عام طور مور طرف ته منسوب كولې شى.او ده ته محمد بن حنفيه وائى.حنفيه د حضرت على رضي الله عنه وينځه وه.

رافضى دوى ته ((اله اصغر)) وائى.عجيبه خبره ده.چه محمد بن حنفيه د كومې وينځې نه پيدا شوې وو.هغه د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په زمانه كښې په جهاد كښې په مال غنيمت كښې راغلې وه.اوحضرت على رضي الله عنه ته ملاو شوې وه.بيا دهغې نه د حضرت على رضي الله عنه خوئې محمد بن حنفيه پيدا شو.نو العياذبالله ثم العياذ بالله حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه كه په حق نه وې.او معاذ الله هغه د ايمان نه خارج وو.او هغه ظالم او غاصب وو.نو بيا به دهغه جهاد ته هم اسلامى جهاد نشى وئيلې.اوپه دغه جهاد كښې چه كوم مال غنيمت راشى هغې ته هم اسلامى غنيمت نشى وئيلې.نوپه دې غنيمت كښې وينځه ملاويږى. په هغې باندې هم ملك يمين صحيح نه ثابتيږى.نودغه شان كمه د اله اصغر نسب مشكوك شى.ددې وجې روافضو ته پكار دى.چه د حضرت ابوبكر په شان كښې د بدو ردو وئيلو نه مآل او انجام به څه راوځى.د دوى د اله اصغر په نسب كښې په دې سره د طعن موقع پيدا كيږى.

**حرمت متعه**: په دې روايت كښې د متعه حرمت بيان شوې دې.دا خبره خو به بيا روسته راشى.چه متعه په خيبر كښې حرامه ګرځولې شوې وه.كه په فتح مكه كښې كه په غزوه اوطاس كښې كه په حجة الوداع كښې،اوكه په تبوك كښې،البته د متعه حرمت كوم چه په اجماع دامت يوه متفق عليه مسئله ده.په دې باره كښې څو خبرې پيش كول دى.

**د روافضو په نيز متعه او ددې مرتبه:** د اهل تشيع او روافضو په نيز متعه نه يواځې دا چه حلاله ده بلکه عظيم الشان عبادت دې.ددوى دا نظريه ده.که يو سړې يو ځل متعه اوکړى. نودهغه درجه د حضرت حسين رضي الله عنه برابريږى.اوکه دا سعادت هغه ته دوباره حاصل شى.نو هغه د حضرت حسن رضي الله عنه د مرتبې برابريږى.اوچه څوك درې ځله متعه اوکړى.نودهغه درجه دحضرت على رضي الله عنه د مرتبې سره برابريږى.اوڅوك چه څلور ځله متعه اوکړى،نودهغه درجه نعوذ بالله د نبى ﷺ د درجې سره برابريږى. وائى.چه متعه کونکې کله د متعې نه پس غسل کوى.نو دغسل په دوران کښې چه کوم څاڅکى غورځيږى.د هريو څاڅکى نه يوه فرشته پيدا کيږى.اوهغه د دغه متعه کونکې دپاره د مغفرت او رفع درجات دعا کوى.د متعه دا فضيلت دهغوى په خپلو کتابونو کښې موجود دې.(١)

**د روافضو متعه خالصه زنا ده:** د روافضو په نيز چه کومه متعه رائج ده.دا خالصه زنا ده.د دوى په متعه کښې ګواهان نه وى.ولى نه وى.نفقه نه وى واجب،سکنى،عدت،ميراث او نسب نومې هيڅ څه څيز ثابت نه وى.بس يو سړې د يوې ښځې نه د تمتع حاصلولو دپاره د اجرت په بدله کښې معاهده کوى.(٢) اوښکاره ده چه هم دې خپل مينځ کښې رضا مندئ سره زنا هم کيږى.دا بيله خبره ده. چه په زنا کښې د اجرت مقرر کول څه ضرورى نه وى.زنا بغير اجرته هم کيږى.او اجرت سره هم کيږى.اوپه متعه کښې اجرت وى.په هيڅ يو آسمانى دين کښې کله هم زنا نه ده حلاله شوې.نودغه شان د روافضو مذکوره متعه هم حلاله نه ده.

**د حلت متعه دپاره په ايت قرانى باندې د روافضو غلط استدلال:** متعه په حلت باندې روافض د قرآن مجيد په دې آيت باندې استدلال کوى.

﴿فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهِ مِنْهُنَّ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ فَرِيضَةً ۚ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَاضَيْتُمْ بِهِ مِنْ بَعْدِ الْفَرِيضَةِ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا﴾ (٣)

روافض وائى.چه په دې آيت کښې د متعه ذکر هم شته.او د اجرت هم،دغه شان دحضرت ابى بن کعب اوحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په قراءت کښې د «إلى أجل مسمى»اضافه هم شته.

---

١ ،د شيعه ګانو مشهور کتاب ،،تفسير منهاج الصادقين،، چه شيعه ګان ورته تفسير کبير وائى.او د دې مفسر فتح الله کاشانى شيعه مجتهد دې.په دې کښې د متعه فضائل بيانوى.او رسول الله ﷺ ته منسوب دا روايت نقل کوى.چه نبى ﷺ فرمائيلى دى.((من تمتع مرة كان درجته كدرجة الحسن، ومن تمتع مرتين فدرجته كدرجة الحسن،ومن تمتع ثلاث مرات كان درجته كدرجة على بن ابى طالب ومن تمتع أربع مرات فدرجته كدرجتى –(منهاج الصادقين:٤٩٣)،

دغه شان شيعه مجتهد سيد ابوالقاسم په خپل کتاب ،،برهان المتعه،، کښې دامام جعفر صادق نه دا روايت نقل کوى.

((قال ابوعبدالله :ما من رجل تمتع ثم اغتسل إلا خلق الله من كل قطرة تقطر منه سبعين ملكاً يستغفرون له إلى يوم القيامة ) شيعيت کا اصلى رو پ‌صفحه ٣٠ په حواله د برهان المتعه:٥٠)_

٢ ،اوګورئ شيعيت کا اصلى رو پ(٢٩٨) په حواله د تهذيب الاحكام (٤٥١\٥و ٤٥٥و ٤٥٦) طبع تهران)

٣ ،سورة النساء (٢٤)_

د دوی قراءت دې.((فما استمتعتم به منهن إلى أجل مسمى..)) ([1]) كښې د اجل، متعه او اجرت درې واړوخيزونو ذكر دې.او ددې نوم متعه ده.نو دمتعه ثبوت په قرآن كښې موجود دې.

**د ايت صحيح مفهوم:** خوداتلبيس دې.كه د قرآن كريم د آيت په سياق او سباق كښې غور اوكړې شى.نو خبره به بې غباره كيږى.چه د آيت كريمه صحيح مفهوم ښكاره كيږى.ددې آيت نه وړاندې آيت كښې الله تعالى د محرماتو تفصيل بيان كړې دې.﴿ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهٰتُكُمْ وَبَنٰتُكُمْ﴾ الخ) ددې نه پس متصل په دويم آيت كښې د هغه ښځو خودنه شوى ده.چا سره چه نكاح حلاله او جائز ده.نوفرمائى.﴿ وَأُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ أَنْ تَبْتَغُوْا بِأَمْوَالِكُمْ مُّحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ﴾ يعنى د ذكر شوو محرماتو نه علاوه باقى ښځو سره نكاح جائز ده.بيا په ((وَأُحِلَّ لَكُمْ)) باندې تفريع كوى.او فرمائى.﴿فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ﴾ الخ. يعنى كله چه په تاسو په دې حلالو ښځوكښې د چا سره نكاح اوكړه.اودهغې نه مو استمتاع هم اوكړه.نو دهغې پوره مهر هغې ته وركړئ.ددې سياق او سباق كتلو نه دا خبره ښه ښكاره معلوميږى.چه په .﴿فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ﴾ سره د څه مستقل څيز نشى وركولې.بلكه دا په ماقبل كلام باندې تفريع او د هغې تتمه ده.

پاتې شوه دا خبره چه په دې كښې د((أُجُوْرَهُنَّ)) لفظ راغلې دې.نو اطلاعاً عرض دې.چه دلته ((أجورهن)) په اتفاق سره د ((مهورهن)) په معنى كښې دې.د مهر دپاره قرآن په نورو آياتونو كښې هم د ،،اجر،، لفظ استعمال كړې دې.لكه ﴿فَانْكِحُوْهُنَّ بِإِذْنِ أَهْلِهِنَّ وَاٰتُوْهُنَّ أُجُوْرَهُنَّ﴾([2]) او ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ إِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ أُجُوْرَهُنَّ﴾ ([3]) په دې آياتونو كښې((أُجُوْرَهُنَّ)) په اتفاق سره د ((مهورهن)) په معنى كښې دې.

د مهر دپاره داجرت د لفظ د استعمال وجه دا ده.چه مهرد ښځې دمنافعو عوض وى.د هغې د ذات عوض نه وى.اوكوم څيز چه د منافعو عوض وى.هغې ته اجرت وائى.

تركومې پورې چه د حضرت عبدالله بن عباس او ابى بن كعب رضي الله عنهم د قراءت تعلق دې.نو د دوى دا قراءت شاذه دې.چه استدلال ترې نشى كيدې.([4])

((فمااستمتعم به..))نه كه د رافضيانو متعه مراد واخستې شى.نو په دې سره يو بله خرابى دا لازميږى.چه دآيت په اولنۍ او آخرنۍ حصه كښې به تعارض پيدا شى.څكه چه د آيت په اولنۍ حصه كښې ونيلى شوى دى.چه دمحرماتو نه سوا چه د كومو ښځو سره تاسو نكاح كوى.چه په دغه نكاح سره د عفت او پاكدامنۍ طلبګار شئ.د نكاح نه د شهوت پوره كول

---

[1] ) اوګورئ الجامع لأحكام القرآن للقرطبى (١٣٠/٥) ومعالم السنن للخطابى (١٩/٣)_

[2] ) سورة النساء ٢٥_

[3] ) سورة الممتحنة ١٠_

[4] ) د تفصيلى بحث دپاره اوګورئ تفسير قرطبى (١٢٩/٥و ١٣٤)_

مقصد جوړول نه دى پكار.نو فرمائيلى شوى دى.((محصنين غير مسافحين..)) اوس كه ((فما استمتعتم به..)) نه د روافضو متعه مراد شى.نوهغه خو ده د شهوت پوره كولو دپاره،او ددې نه وړاندې ممانعت شوې دې.نودغه شان به د كلام په اول او آخر كښې تعارض پيدا شى.

**په حرمت متعه باندې قرانى اياتونه** د حديث نه علاوه د قران كريم هم ګڼړ آياتونه د متعه په حرمت باندې دلالت كوى.په سورة معارج كښې فرمائيلى شوى دى.

﴿وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حٰفِظُونَ۝ إِلَّا عَلٰى أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ۝ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَأُولٰئِكَ هُمُ الْعٰدُونَ۝﴾ (١)

په دې آياتونوكښې دوه قسمه ښځو سره دهمبسترئ اجازت وركړې شوې دې .يوازواج يعنى هغه ښځې دكومو نه چه دعقد نكاح په ذريعه انسان تمتع حاصلولې شى.اودويم چه دملك يمين په ذريعه دانسان په ملكيت كښې راتلونكې وينځې.ددې دوو نه سوا د بل چا نه خپل شهوت پوره كونكو باره كښې وئيلې شوى دى.چه داسې خلق سركش او باغيان دى.اوښكاره ده چه د كومې ښځې سره متعه كولې شى.هغه د دې دوو قسمونو نه په يو كښې هم نه ده داخله.هغې ته تهٔ ښځه نشى وئيلې.ځكه چه زوجې دپاره ميراث، سكنى، عدت، او ددې نه د پيدا شوى بچى نسب ثابتيږى.حال دا چه په متعه كښې د ښځې دپاره په ذكر شوو څيزونو كښې روافض د هيڅ څيز ثبوت نه منى.دغه شان په دې باندې د وينځې اطلاق هم نشى كيدې.ځكه چه وينځه خرڅولې شى.خوچه كومې ښځې سره متعه كولې شى.هغه نشى خرڅولې.ددې وجې متعه كونكى خلق په﴿ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَأُولٰئِكَ هُمُ الْعٰدُونَ۝﴾ كښې داخل دى.او ددې آيت نه د متعه حرمت بيخى ښكاره ثابتيږى.

دغه شان د سورة نساء د دې آيت نه هم حرمت متعه ثابتيږى﴿وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِى الْيَتٰمٰى فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾(٢)

دلته هم يا دنكاح اجازت دې اويا د ملك يمين،اومتعه نه نكاح ده اونه په دې كښې د ملك يمين صورت موندلې شى.دغه شان دلته دا قيد دې چه نكاح په يو وخت كښې صرف د څلورو ښځو سره كيږى.عدد مقرر دې.اومتعه په يو وخت كښې د روافض په نيز د لسو ښځو سره هم كولې شى.بلكه زرو ښځو سره هم كولې شى.(٣)

دغه شان د قرآن پاك ددې آيت نه هم حرمت متعه ثابتيږى.﴿وَلْيَسْتَعْفِفِ الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ نِكَاحًا حَتّٰى يُغْنِيَهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ﴾ (٤) اوخوك چه د نكاح قدرت نه لرى.هغوى دې خپل ځان په قابو

---

١ ،سورة المعارج (٢٩و ٣٠ز ٣١)_

٢ ،سوة النساء (٣)_

٣ ، د شيعه ګانو په كتاب ،،تهذيب الاحكام،، كښې دى((تزوج منهن ألفاً فإنهن مستاجرات)) ص.٤٥٢)_

٤ ،سورة النور:٣٣)_

كښې ساتي.تردې چه الله تعالى په خپل فضل سره غنيان كړي.(نو بيا دې نكاح كوى)
دا آيت ښكاره ښائى.كه د يو كس مالى طاقت دومره نه وى.چه هغه د نكاح اونفقې وغيره اخراجات برداشت كړى.نودهغه دپاره دا حكم دې.چه هغه دې د پاكدامنه اوسيدو كوشش كوى.او خپل نفس دې په ضبط او قابو كښې ساتي.كله چه الله تعالى دده مالى حالت مستحكم كړى.نو بيا دې نكاح كوى.كه دمتعه د جواز څه صورت په اسلام كښې جائز وو.
نو په آيت كښې د دې اسلوب اختيارولو څه ضرورت وو.د غناء نه وړاندې به ده ته د عفيف اوېه قابو كښې د اوسيدو په ځائې د متعه حكم وركړې شوې وو.(١)
دغه شان د قرآن پاك د سورة فرقان آيت .﴿وَهُوَ الَّذِىْ خَلَقَ مِنَ الْمَآءِ بَشَرًا فَجَعَلَهٗ نَسَبًا وَّصِهْرًا﴾(٢)
كښې نسب او مصاهرت د الله تعالى د نعمتونو په سلسله كښې شمارلې شوى دى.اوښكاره ده چه د نسب او مصاهرت ترتب په نكاح باندې كيږى.په متعه باندې نه كيږى.بيا كه چرته متعه د روافضو د قول مطابق لوئې عبادت وى.نو لكه څنګه چه په نكاح كښې اظهار او اعلان كيږى.تهنيئت او مباركى پيش كولې شى.نودا خلق په متعه كښې داسې ولې نه كوى.تر نن ورځې پورې د هيڅ يو رافضى نه چا په فخر سره دا نه دى اوريدلى.چه هغه د خپلې مور يا خور د متعو ذكر كړى وى.او د دې عظيم عبادت په اظهار باندې ئې د خوشحالئ اظهار كړې وى.
حقيقت دا دې.چه د دوى زړه په خپله دننه په دې باندې مطمئن نه دې.نو د شهوت پوره كولو اود دين اسلام نه د ډډې او انحراف په وجه دوى خالص زنا ته د متعه نوم وركړې دې.او ددې د جواز ډنډورا وهل ئې شروع كړى دى.الله تعالى دې مونږ ته د دين اسلام د صحيح پوهې توفيق راكړى.اود شيطان د چالونو نه دې مونږ بچ كړى.(آمين)
**په ابتداءا اسلام كښې چه كومه متعه حلاله وه.هغه په حقيقت كښې نكاح موقت وه:** دلته چه په روايت كښې د كومې متعه حرمت ذكر دې.چه رسول الله ﷺ د متعه نه ممانعت اوكړو.ددې نه د رافضيانو متعه مراد نه ده.لكه څنګه چه بيان شو.چه د رافضيانو متعه زنا ده.اود زنا اجازت په اسلام كښې هيڅ كله هم نه دې وركړې شوې.په ابتداء اسلام كښې چه د كومې متعه اجازت وو.هغه په حقيقت كښې نكاح موقت وه.نكاح موقت د زنا اود صحيح نكاح په مينځ كښې يو څيز دې.په نكاح موقت باندې نه د صحيح نكاح اطلاق صحيح دې.اونه دې ته زنا وئيلې شى.نكاح صحيح ورته ځكه نشى وئيلې.چه په نكاح صحيح كښې

١) خود قرآن ددې حكم بيخى په عكس باندې دې د ايران د صدر دا حكم اوكتې شى.د ايران صدر مسټرعلى اكبر هاشمى رفسنجانى په ايران كښې ټولو كونډو او پيغلو جينكو ته دا مشوره وركړې ده.چه دوى د جنسى خواهش پوره كولو دپاره د عارضى مودې دپاره غيررسمى ودونه اوكړى.ده دا خبره د تهران په يونيورسټى كښې د جمعې په خطبه كښې كړې وه.هغه دا هم وئيلى دى.چه دا ودونه دې صرف هغه كسان كوى.چه هغوى غيرشادى شده وى.(شيعيت كا اصلى روپ په حواله د روزنامه خادم وطن سندهى مورخه دسمبر ١٩٩٠ھ اردو ترجمه)۔

٢)سورة الفرقان: ٥٤۔

میراث.اود فرقت نه پس عدت وی.او نکاح موقت کښې دا څیزونه نه وی.خو دې ته زنا هم نشی وئیلې.ځکه چه دا عقد د ګواهانو په موجودګئ کښې کیږی.اوپه دې کښې استبراء هم وی.دغه شان د ولی اجازت په کښې هم وی.ددې وجې دې ته زنا نشی وئیلې.

**په نکاح موقت اود روافضو په متعه کښې فرق** دا خبره خو ستاسو په علم کښې راغله، چه په ابتداء داسلام کښې د کومې متعه جواز وو هغه نکاح موقت وه.خوکومه متعه چه په روافضو کښې رائج ده.دا نکاح موقت نه ده.زنا ده.په نکاح موقت او متعه روافض کښې فرق دا دې.

چه په نکاح موقت کښې ګواهان وی.د ولی اجازت وی.استبراء (بحیضة واحدة) وی.اوپه روافضوکښې چه کومه متعه ده.په دې کښې نه ګواهان وی.اونه د ولی اجازت اونه استبراء.

د متعه یا نکاح موقت جواز په ابتداء د اسلام کښې بیخی هم داسې وو.لکه څنګه چه د سود او شرابو جواز په ابتداء د اسلام کښې وو.نولکه څنګه چه د سود اوشرابو د حرمت نه پس ددې د جواز څه صورت پاتې نشو. دغه شان د نکاح موقت او متعه د جواز هم ددې د حرمت د اعلان نه پس څه صورت پاتې نشو.

**حضرت ابن عباس رضی الله عنهما طرف ته د جواز متعه نسبت** حضرت ا بن عباس رضی الله عنهما ته په بعضې روایاتوکښې دا خبره منسوب ده.

چه هغوی دمتعه د جواز قائل وو.خو هغوی ته ددې نسبت دهغوی د اقوال شاذه په بنیاد باندې دې.نو ددې اعتبار به نشی کولې.دغه شان دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه رجوع هم ثابته ده.[1]

حضرت سعید بن جبیر رحمه الله یو ځل حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ته اووئیل .چه تا څه فتوی ورکړې ده.«سارت بها الرکبان وقالت فیها الشعراء»یعنی ستا دې فتوې ته خلق شهرت ورکوی.شاعرانو هم ددې فتوې په بارد کښې شاعری کړې ده.حضرت ابن عباس رضی الله عنهما اووئیل.شاعرانو څه ووئیلی دی.نو سعید بن جبیر رحمه الله د یو شاعر دا اشعار واورول.

| | |
|---|---|
| وقد قلت للشیخ لما طال محبسه | یا صاح هل لك فی فتیا ابن عباس |
| هل لك فی رخصة الأطراف آنسة | تکون مثواك حتی مصدر الناس |

**ترجمه**: ما شیخ ته اووئل.کله چه د هغه استوګنه ډیره اوږده شوه.چه صاحبه! تا ته د (دجواز متعه په باره کښې) د ابن عباس په فتوی کښې څه دلچسپی شته.او آیا نرم او نازکو اندامو پیغله کښې ستا څه رغبت شته.چه هغه دخلقو د تلو نه پس ستا ټکانه شی.(اوته هغې سره متعه اوکړې)

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما چه کله دا اشعار واوریدل.نو د استغفار وئیلو نه پس ئې اوفرمائیل.

«وما هی إلا کالمیتة والدم ولحم الخنزیر»[2]

---

[1] امام ترمذی فرمائی.((وإنما روی عن ابن عباس رضی الله عنهما شیٔ من الرخصة فی المتعة ثم رجع عن قوله حیث أخبر عن النبی صلی الله علیه وسلم)) الجامع الصحیح للترمذی (٢١٣/١١) باب ما جاء فی نکاح المتعة)_

[2] اوګورئ التعلیق الصبیح علی مشکاة المصابیح (٢٦/٤و٢٧) ومعالم التنزیل للخطابی (١٩/٣)_

پاتې شوه دا چه د متعه د جواز هغه په ابتداء کښې ولې قائل وو.نو ددې وجه دا وه.چه نبی ﷺ کله د متعه د حرمت اعلان کړې وو.په هغه وخت کښې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د کم عمر وو.ددې وجې هغه ته ددې خبر اونشو.دې سره سره دا خبره دې یاده وی.چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د کومې متعه د جواز قائل وو.هغه نکاح موقت وه.د رافضیانو متعه نه وه.

**قوله**: نهی رسول الله ﷺ عن متعة النساء یوم خیبر: دحضرت علی رضی الله عنه په دې روایت کښې د غزوه خیبر په موقع باندې د متعه حرمت بیان شوې دې.د نسخ په روایاتو خو اتفاق دې.چه متعه منسوخ شوې ده.البته په دې کښې روایات مختلف دی.چه کله او په کومه موقع دا منسوخ شوې ده.د بعضې روایاتونه په غزوه خیبر کښې ([1]) اود بعضې نه په فتح مکه کښې ([2]) د بعضې نه په غزوه اوطاس کښې ([3]) دبعضې نه په تبوک کښې ([4])اودځه روایاتو نه په حجة الوداع کښې ([5]) ددې د حرمت اعلان معلومیږی.

خود تبوك روایات د ضعف د وجې قابل اعتبار نه دی.([6]) په کومو روایاتو کښې چه دحجة الوداع په موقع باندې د متعه د حرمت د اعلان ذکر دې.هغه روایات صحیح دی.خوچونکه د حجة الوداع په موقع باندې د مسلمانانو ډیره لویه جمع وه.ددې وجې خلقو ته د خبر ورکولوډپاره نبی ﷺ ددې د حرمت دوباره اعلان اوکړو.دحرمت اعلان خو نبی ﷺ وړاندې کړې وو.په دې موقع ئې د تحریم سابق نه خبرلو دپاره دوباره اعلان اوکړو.([7])

ترکومې پورې چه دهغه روایاتو تعلق دې.د کومو نه چه معلومیږی.چه په غزوه اوطاس کښې د متعه د حرمت اعلان شوې وو.نو په دغه روایاتو کښې د غلط فهمئ دخل دې.چونکه غزوه اوطاس د فتح مکې نه پس متصل واقع شوې وه.ځکه بعضې راویانو د فتح مکې په ځائې د غزوه اوطاس ذکر کړې دې.([8])

اوس دوه قسمه روایات باقی پاتې کیږی.په هغې کښې د بعضو نه په غزوه خیبر کښې ددې د حرمت اعلان معلومیږی.او په بعضوکښې د فتح مکه په موقع د متعه د حرمت د

---

[1] )لکه ځنګه چه په حدیث کښې باب کښې دی۔

[2] )په کنزالعمال کښې روایت دې.((عن سبرة أن رسول الله ﷺ نهی عن متعة النساء فی حجة الوداع)) کنز العمال (۵۲۵\۱۶) رقم ۴۵۷۳۷)۔

[3] )حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه فرمائی.((رخص النبی ﷺ عام أوطاس فی المتعة ثلاثا ثم نهی عنها(صحیح مسلم (۴۵۱\۱۱) باب ما جاء فی متعة النکاح)۔

[4] )وفی روایة إسحاق بن راشد عن الزهری .. أن النبی ﷺ نهی فی غزوة تبوک عن نکاح المتعة (فتح الباری (۱۶۸\۹)۔

[5] ) عن محمد بن حنفیة قال تکلم علی وابن عباس فی متعة النساء قال له علی إنک إمرأ تأته إن رسول الله نهی عن متعة النساء فی حجة الوداع ) کنز العمال (۶۲۸\۱۶)۔

[6] )اوګورئ فتح الباری(۱۷۰\۹)۔

[7] )فتح الباری (۱۷۰\۹)۔

[8] )فتح الباری (۱۷۰\۹)۔

اعلان ذکر دی.
دامام شافعي رحمه الله او بعضې نور ملګرو رائې دا ده.چه د متعه حرمت اول په غزوه خیبر کښې شوې وو.د دې نه پس د فتح مکه په موقع د درې ورځو دپاره دا مباح ګرځولې شوې وه.او د درې ورځو نه پس همیشه دپاره دا حرام کړې شوه .دغه شان ددې حرمت او اباحت دواړه مکرر دی.او د قبلې پشان په دې کښې هم دوه ځله نسخ شوې ده.[1]
امام نووي رحمه الله دا راجح او مختار ګرځولې ده.[2] والله اعلم

[٣٩٨٠/٣٩٨١] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ

[٣٩٨١] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ وَسَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ [ر:٣٩٧٨]

[٣٩٨٢] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرٍو عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ وَرَخَّصَ فِي الْخَيْلِ [ر:٥٢٠١و٥٢٠٤]

[٣٩٨٣/٣٩٨٦] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا عَبَّادٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَصَابَتْنَا مَجَاعَةٌ يَوْمَ خَيْبَرَ فَإِنَّ الْقُدُورَ لَتَغْلِي قَالَ وَبَعْضُهَا نَضِجَتْ فَجَاءَ مُنَادِي النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَأْكُلُوا مِنْ لُحُومِ الْحُمُرِ شَيْئًا وَأَهْرِقُوهَا قَالَ ابْنُ أَبِي أَوْفَى فَتَحَدَّثْنَا أَنَّهُ إِنَّمَا نَهَى عَنْهَا لِأَنَّهَا لَمْ تُخَمَّسْ وَقَالَ بَعْضُهُمْ نَهَى عَنْهَا الْبَتَّةَ لِأَنَّهَا كَانَتْ تَأْكُلُ الْعَذِرَةَ

[٣٩٨٤] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ عَنِ الْبَرَاءِ وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ أَنَّهُمْ كَانُوا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَصَابُوا حُمُرًا فَطَبَخُوهَا فَنَادَى مُنَادِي النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْفِئُوا الْقُدُورَ

[٣٩٨٥] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ وَابْنَ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ يُحَدِّثَانِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ يَوْمَ خَيْبَرَ وَقَدْ نَصَبُوا الْقُدُورَ أَكْفِئُوا الْقُدُورَ

حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ

---

[1] زاد المعاد (٣\٣٤٤)_
[2] اوګورئ شرح مسلم للنووي (١١\٤٥٠)_

[٣٩٨٦] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ أَخْبَرَنَا عَاصِمٌ عَنْ عَامِرٍ عَنْ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ أَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ خَيْبَرَ أَنْ نُلْقِيَ الْحُمُرَ الْأَهْلِيَّةَ نِيئَةً وَنَضِيجَةً ثُمَّ لَمْ يَأْمُرْنَا بِأَكْلِهِ بَعْدُ

[٣٩٨٧] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي الْحُسَيْنِ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ عَاصِمٍ عَنْ عَامِرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ لَا أَدْرِي أَنَهَى عَنْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَجْلِ أَنَّهُ كَانَ حَمُولَةَ النَّاسِ فَكَرِهَ أَنْ تَذْهَبَ حَمُولَتُهُمْ أَوْ حَرَّمَهُ فِي يَوْمِ خَيْبَرَ لَحْمَ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ

**قوله**: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ .....وَرَخَّصَ فِي الْخَيْلِ: د اس د غوښې په باره كښې د امامانو اختلاف دې.

① دامام شافعی امام ابویوسف امام محمد او اکثرو عالمانو ﷭ په نیز دده غوښه جائز او مباح ده.[1]

② دامام ابوحنیفه او امام مالك﷫ په نیز مکروه ده.[2] بعضې مالکیانو دې ته مکروه تحریمی وئیلی ده.او بعضو مکروه تنزیهی.[3] په احنافو کښې صاحب د هدایه د لحم خیل مکروه تحریمي کیدو طرف ته مائل دې.او دامام ابوبکر جصاص میلان کراهت تنزیهی طرف ته دې.[4]

دجمهورو استدلال په حدیث باب باندې دې.اود امام اعظم او امام مالك رحمهما الله استدلال دحضرت خالد بن ولید ﷛ په روایت باندې دې.کوم چه امام ابوداود .امام نسائی،او ابن ماجه ﷭ روایت کړې دې.((نهى رسول الله ﷺ عن أكل لحوم الخيل والبغال والحمر...))[5]

دامام ابوحنیفه﷫ نه د صاحبینو رحمهما الله قول طرف ته رجوع هم منقول ده.[6]

[٣٩٨٨] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ إِسْحَاقَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ لِلْفَرَسِ سَهْمَيْنِ وَلِلرَّاجِلِ سَهْمًا قَالَ فَسَّرَهُ نَافِعٌ فَقَالَ إِذَا كَانَ مَعَ الرَّجُلِ فَرَسٌ فَلَهُ ثَلَاثَةُ أَسْهُمٍ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ فَرَسٌ فَلَهُ سَهْمٌ [ر:٢٧٠٨]

---

[1] اوګورئ شرح مهذب (٤١٩)_
[2] شرح المهذب (٤١٩)_
[3] اوګورئ اوجز المسالک (١٨٠١٩)_
[4] اوجز المسالک (١٨١١٩)_
[5] إعلاء السنن (١٤٤١١٧)_
[6] اوجز المسالک (١٨٠١٩)_

**قوله: قَسَمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ لِلْفَرَسِ سَهْمَيْنِ وَلِلرَّاجِلِ سَهْمًا:** دا مشهوره اختلافي مسئله ده.

① دجمهورو اوصاحبینو ﷺ په نیز د فارس دپاره درې حصې دی.دوه حصې د اس او یوه حصه د فارس خپله،اود راجل دپاره یوه حصه ده.

② دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د فارس دپاره دوه او د راجل دپاره یوه حصه ده.[1]

**دخیبر دغنیمتونو تقسیم**. دخیبر د غنیمت نه اول شپږ دیرش حصې جوړې کړې شوې.په کومو کښې چه اتلس حصې د مسلمانانود عامو ضروریاتو دپاره مختص کړې شوې.او باقی اتلس حصې په مجاهدینو باندې تقسیم کړې شوې.[2]
په مجاهدینو کښې دا اتلس حصې څنګه تقسیم کړې شوې.په دې کښې روایات مختلف دی.مشهوره دا ده.چه ټول څوارلس سوه صحابه وو.په دې کښې دوه سوه فارسان وو.د څوارلس سوه صحابو رضی الله عنهم څوارلس حصې شوې.په یو حصه کیښې سل کسان شریك شو.او باقی څلور حصې د اسونو شوې.څکه چه دهر یو اس دوه حصې وې.نود دوو سوو اسونو څلور سوه حصې شوې.دغه شان دا اتلس حصې تقسیم شوې.[3]
دا تقسم د جمهورو او صاحبینو ﷺ د مذهب مطابق دې.چه فارس ته درې او راجل ته یوه حصه ملاؤ شوه.خوامام ابوداود په خپل سنن کښې د مجمع بن جاریه رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې.چه په خیبر کښې د مجاهدینو تعداد پنځلس سوه وو.په هغوی کښې درې سوه سوارهٔ وو.نبی ﷺ هریو سور ته دوه دوه حصې ورکړې.او هرپیدل ته یوه یوه حصه ورکړه.نو په اتلس حصو کښې شپږ حصې درې سوه فارسانو ته ملاؤ شوې.او باقی دولس حصې دولس سوه راجلینو ته ملاؤ شوې.[4]
ددې روایت مطابق د خیبر د غنیمت تقسیم د امام اعظم رحمه الله د مذهب مطابق شوې دې.ددې مسئلې مکمل تحقیق او د طرفینو دلائل په کتاب الجهاد باب سهام الفرس کښې تیر شوی دی.

[٣٩١٩] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّ جُبَيْرَ بْنَ مُطْعِمٍ أَخْبَرَهُ قَالَ مَشَيْتُ أَنَا وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا أَعْطَيْتَ بَنِي الْمُطَّلِبِ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ وَتَرَكْتَنَا وَنَحْنُ بِمَنْزِلَةٍ وَاحِدَةٍ مِنْكَ

---

[1] بذل المجهود فی حل أبی داود (١٢\٣٣٤) دغه شان فتح البارى (٦\٦٨) کتاب الجهاد باب سهام الفرس)
[2] وفی زاد المعاد (٣\٣٢٨) وقسم رسول الله ﷺ خيبر على ستة وثلاثين سهماً جمع كل سهم مائة سهم فكانت ثلاثة آلاف وستمأة سهم فكان لرسول الله ﷺ وللمسلمين النصف من ذلک وهو ألف وثمان مائة سهم وعزل النصف الآخر وهو ألف وثمان مائة سهم لنوائبه وما ينزل به من أمور المسلمين)۔
[3] زاد المعاد (٣\٣٣٠)۔
[4] سنن ابی داود کتاب الجهاد باب فی من أسهم له سهم رقم ٢٧٣٦)۔

فَقَالَ إِنَّمَا بَنُو هَاشِمٍ وَبَنُو الْمُطَّلِبِ شَيْءٌ وَاحِدٌ قَالَ جُبَيْرٌ وَلَمْ يَقْسِمِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبَنِي عَبْدِ شَمْسٍ وَبَنِي نَوْفَلٍ شَيْئًا [ر:٢٩٧١]

حضرت جبیربن مطعم رضی الله عنه فرمائی، چه زه اوحضرت عثمان دواړه د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، اوهغوی ته مونږ وئیله اوکړه. چه تاسو د خیبر په مال خمس کښې بنوالمطلب ته حصه ورکړه. او مونږ مو پریخودو. حال دا چه مونږ او هغوی تاسو سره په قرابت کښې برابر یو.

په اصل کښې د عبد مناف څلور خامن وو. ① هاشم ② مطلب ③ عبدشمس ④ نوفل. نبی ﷺ د هاشم په اولاد کښې وو. حضرت جبیر رضی الله عنه نوفل په اولاد کښې وو. او حضرت عثمان رضی الله عنه د عبدشمس په اولاد کښې وو. نود رشته داری او قرابت په لحاظ سره بنو هاشم ته بنو المطلب، بنو عبدالشمس اوبنو نوفل یوشان وو. ددې وجې جبیر او عثمان رضی الله عنهما راغلل. او ګیله ئې اوکړه. چه هرکله په قرابت کښې مونږ ټول برابر یو. نو بیا مونږ ته هم په مال خمس کښې حصه ملاویدل پکار وو. خو رسول الله ﷺ اوفرمائیل.

**قوله**: إِنَّمَا بَنُو هَاشِمٍ وَبَنُو الْمُطَّلِبِ شَيْءٌ وَاحِدٌ: دابوداود وغیره په روایت کښې ددې نه پس دا زیادت هم شته. «أنا وبنوالمطلب لم نفترق فی جاهلیة ولا فی إسلام» دا دې طرف ته اشاره وه. چه کله قریشو د بنو هاشم سره مقاطعه اوکړه. نوپه دغه وخت کښې بنو المطلب د بنو هاشم سره ملګرتیا کړې وه. او بنو نوفل او بنو عبد شمس ملګرتیا نه وه کړې. نو چونکه بنو هاشم او بنو المطلب د قرابت سره سره په نصرت او مدد کښې هم په خپلو کښې شریک وو. ددې وجې نبی ﷺ دوی «شئ واحد» اووئیل. (١)

[٣٩٩٠/٣٩٩٢] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَلَغَنَا مَخْرَجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ بِالْيَمَنِ فَخَرَجْنَا مُهَاجِرِينَ إِلَيْهِ أَنَا وَأَخَوَانِ لِي أَنَا أَصْغَرُهُمْ أَحَدُهُمَا أَبُو بُرْدَةَ وَالْآخَرُ أَبُو رُهْمٍ إِمَّا قَالَ بِضْعٌ وَإِمَّا قَالَ فِي ثَلَاثَةٍ وَخَمْسِينَ أَوْ اثْنَيْنِ وَخَمْسِينَ رَجُلًا مِنْ قَوْمِي فَرَكِبْنَا سَفِينَةً فَأَلْقَتْنَا سَفِينَتُنَا إِلَى النَّجَاشِيِّ بِالْحَبَشَةِ فَوَافَقْنَا جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ فَأَقَمْنَا مَعَهُ حَتَّى قَدِمْنَا جَمِيعًا فَوَافَقْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ وَكَانَ أُنَاسٌ مِنْ النَّاسِ يَقُولُونَ لَنَا يَعْنِي لِأَهْلِ السَّفِينَةِ سَبَقْنَاكُمْ بِالْهِجْرَةِ وَدَخَلَتْ أَسْمَاءُ بِنْتُ عُمَيْسٍ وَهِيَ مِمَّنْ قَدِمَ مَعَنَا عَلَى حَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَائِرَةً وَقَدْ كَانَتْ هَاجَرَتْ إِلَى النَّجَاشِيِّ فِيمَنْ هَاجَرَ فَدَخَلَ عُمَرُ عَلَى حَفْصَةَ وَأَسْمَاءُ عِنْدَهَا فَقَالَ عُمَرُ حِينَ رَأَى أَسْمَاءَ مَنْ هَذِهِ قَالَتْ أَسْمَاءُ بِنْتُ عُمَيْسٍ قَالَ عُمَرُ الْحَبَشِيَّةُ هَذِهِ الْبَحْرِيَّةُ هَذِهِ قَالَتْ أَسْمَاءُ نَعَمْ قَالَ سَبَقْنَاكُمْ بِالْهِجْرَةِ فَنَحْنُ أَحَقُّ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْكُمْ فَغَضِبَتْ وَقَالَتْ كَلَّا وَاللَّهِ كُنْتُمْ مَعَ

---

(١) فتح البارى (٢٤٥/٦)_

رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطْعِمُ جَائِعَكُمْ وَيَعِظُ جَاهِلَكُمْ وَكُنَّا فِي دَارٍ أَوْفِي أَرْضِ الْبُعَدَاءِ الْبُغَضَاءِ بِالْحَبَشَةِ وَذَلِكَ فِي اللَّهِ وَفِي رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَايْمُ اللَّهِ لَا أَطْعَمُ طَعَامًا وَلَا أَشْرَبُ شَرَابًا حَتَّى أَذْكُرَ مَا قُلْتَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ كُنَّا نُؤْذَى وَنُخَافُ وَسَأَذْكُرُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَسْأَلُهُ وَاللَّهِ لَا أَكْذِبُ وَلَا أَزِيغُ وَلَا أَزِيدُ عَلَيْهِ فَلَمَّا جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّ عُمَرَ قَالَ كَذَا وَكَذَا قَالَ فَمَا قُلْتِ لَهُ قَالَتْ قُلْتُ لَهُ كَذَا وَكَذَا قَالَ لَيْسَ بِأَحَقَّ بِي مِنْكُمْ وَلَهُ وَلِأَصْحَابِهِ هِجْرَةٌ وَاحِدَةٌ وَلَكُمْ أَنْتُمْ أَهْلَ السَّفِينَةِ هِجْرَتَانِ قَالَتْ فَلَقَدْ رَأَيْتُ أَبَا مُوسَى وَأَصْحَابَ السَّفِينَةِ يَأْتُونِي أَرْسَالًا يَسْأَلُونِي عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ مَا مِنَ الدُّنْيَا شَيْءٌ هُمْ بِهِ أَفْرَحُ وَلَا أَعْظَمُ فِي أَنْفُسِهِمْ مِمَّا قَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَبُو بُرْدَةَ قَالَتْ أَسْمَاءُ فَلَقَدْ رَأَيْتُ أَبَا مُوسَى وَإِنَّهُ لَيَسْتَعِيدُ هَذَا الْحَدِيثَ مِنِّي

[٣٩٩١] قَالَ أَبُو بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَعْرِفُ أَصْوَاتَ رُفْقَةِ الْأَشْعَرِيِّينَ بِالْقُرْآنِ حِينَ يَدْخُلُونَ بِاللَّيْلِ وَأَعْرِفُ مَنَازِلَهُمْ مِنْ أَصْوَاتِهِمْ بِالْقُرْآنِ بِاللَّيْلِ وَإِنْ كُنْتُ لَمْ أَرَ مَنَازِلَهُمْ حِينَ نَزَلُوا بِالنَّهَارِ وَمِنْهُمْ حَكِيمٌ إِذَا لَقِيَ الْخَيْلَ أَوْ قَالَ الْعَدُوَّ قَالَ لَهُمْ إِنَّ أَصْحَابِي يَأْمُرُونَكُمْ أَنْ تَنْظُرُوهُمْ

**قوله**: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ....: په دې روايت کښې حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه دخپل هجرت واقعه بيان کړې ده.چه د رسول الله ﷺ د هجرت خبرمو واوريدل.نو زه او زما سره دوه ورونړه مدينې ته د هجرت په اراده باندې راووتل.خو په درياب کښې سفر کولو کښې درياب مونږ حبشه طرف ته بوتلو.هلته مو دحضرت جعفرطيار رضی الله عنه سره ملاقات اوشو.اوبيا مونږ ټول مدينې ته راغلو.اود فتح خيبرنه پس مو د نبی ﷺ سره ملاقات اوشو. په دې سفر کښې د حضرت جعفرطيار رضی الله عنه بی بی حضرت اسماء بنت عميس رضی الله عنها هم وه.هغه د هجرت نه پس دحضرت حفصې رضی الله عنها سره د ملاقات په غرض لاړه.په دې کښې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه حضرت حفصې رضی الله عنها ته راغلو .چه حضرت اسماء ئې اوليدله. نو تپوس ئې اوکړو. ((من هذه)) دا څوك ده؟ حضرت حفصې رضی الله عنها ورته اووئيل.اسماء بنت عميس رضی الله عنها حضرت عمر رضی الله عنه اووئيل .((الحبشية هذه؟ البحرية؟)) يعنی دا هغه ده.چه دحبشه نه ئې بحری سفر کړې دې. حضرت اسماء رضی الله عنها ورته اووئيل.اوجی،حضرت عمر رضی الله عنه ورته اووئيل. ((سبقناكم بالهجرة فنحن أحق برسول الله منكم)) دحضرت عمر رضی الله عنه په دې جمله باندې حضرت اسماء ډيره غصه شوه.او وې وئيل،هرګز داسې نه ده.تاسو خلق خو د رسول الله ﷺ سره وئې.په تاسو کښې په اوږې باندې به هغه روټۍ خوړله.او ناواقفه ته به ئې وعظ نصيحت کولو.((وكنا فى دار البعداء البغضاء بالحبشة)) حال دا چه مونږ په حبشه کښې د دښمن په لرې زمکه کښې وو.اودا ټول

تكليفونه مونږ د الله او د هغه د رسول ﷺ دپاره برداشت كړي دي.
ددې نه پس حضرت اسماء ﷞ رسول الله ﷺ ته د حضرت عمر ﷛ د دې قول ذكر اوكړو.نو نبى ﷺ اوفرمائيل.تاسوخلقو دوه هجرتونه كړي دى.ستاسوحق په دې اعتبار سره زيات جوړيږى.

**قوله**: وَمِنۡهُمۡ حَكِيمٌ إِذَا لَقِيَ الۡخَيۡلَ أَوۡ قَالَ الۡعَدُوَّ قَالَ لَهُمۡ إِنَّ أَصۡحَابِي يَأۡمُرُونَكُمۡ أَنۡ تَنۡظُرُوهُمۡ: اوپه دې اشعريينو كښې يو صاحب حكيم دې.(حكيم يا خو دده نوم دې يا صفت دې)كله چه هغه د سوررو سره ملاويږى.نوهغوى ته وائى.زما ملګرې تاسو ته حكم كوى.چه تاسو دهغوى انتظار كوئ.

كه د ((خيل))نه مراد د دشمنانو لښكر وى.لكه څنګه چه په بعضې رواياتو كښې د((اذا لقى الخيل))په ځائې ((اذالقى العدو))لفظ راغلې دې.نو په دې صورت كښې ددې جملې دوه مطلبه كيدې شى.

① يو دا چه كله هغه حكيم د دشمنانو سره ملاويږى.نو هغوى ته غيرت وركوى. چه زما ملګرى وائى.چه اودريږئ.چرته تختئ.يعنى هغه حكيم دومره مړنې دې.چه جنګ باندې آماده كولو دپاره دشمنانو ته غيرت وركوى.(١)

② اودويم دا چه د دشمنانو د مرعوب كولو دپاره هغه هغوى ته خطاب كوى،او وائى.چه زما د ملګرو حكم دې.چه مه تختئ.ايسار شئ.مونږ هم راځو.په دې جملې سره هغه دشمنانو ته دا تاثر وركول غواړى.چه زه يواځې نه يم.زما ملګرى هم راروان دى.

او كه د ((خيل)) نه مراد د دشمنانو لښكر نه وى،بلكه ((خيل المسلمين)) مراد وى.نو په دې صورت كښې به مطلب دا وى،چه اې مسلمانانو اس سورو زما پيدل ملګرى تاسو ته دا درخواست كوى.چه تاسو دهغوى انتظار اوكړئ.هغوى ځان سره بوځئ.په سورلو باندې يواځې وړاندې مه ځئ.(٢) والله اعلم.

[٣٩٩٣]حَدَّثَنِي إِسۡحَاقُ بۡنُ إِبۡرَاهِيمَ سَمِعَ حَفۡصَ بۡنَ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا بُرَيۡدُ بۡنُ عَبۡدِ اللَّهِ عَنۡ أَبِي بُرۡدَةَ عَنۡ أَبِي مُوسَى قَالَ قَدِمۡنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ بَعۡدَ أَنِ افۡتَتَحَ خَيۡبَرَ فَقَسَمَ لَنَا وَلَمۡ يَقۡسِمۡ لِأَحَدٍ لَمۡ يَشۡهَدِ الۡفَتۡحَ غَيۡرَنَا [ر:٢٩٦٧]

حضرت ابو موسى اشعرى ﷛ فرمائى.چه مونږ د فتح خيبر نه پس رسول الله ﷺ ته راغلو. نبى ﷺ مونږ ته حصه راكړه.او زمونږ نه سوا بل داسې هيڅ يو كس ته ئې حصه ورنكړه.كوم چه په فتح خيبر كښې شريك نه وو.

**د جهاد نه پس د راتلونكى كس په غنيمت كښې حصه** : كه يوكس په جهاد كښې شريك وى. نوهغه خو په غنيمت كښې حصه اخلى . دغه شان د جهاد ختمېدو نه وړاندې كه يوكس

---
(١) فتح البارى (٤٨٧\٧)_
(٢) فتح البارى (٤٨٧\٧) وعمدة القارى (٢٥٣\١٧) وتعليقات لامع الدرارى (٣٥٦\٨٧)_

غانمینو سره راشي ملاؤ شي.نو په اتفاق سره دهغه هم په مال غنیمت کښې حصه کیږی. خوکه یو کس دجهاد ختمیدونه پس اومال غنیمت تقسیمیدو نه وړاندې راشي.نو هغه ته به هم په مال غنیمت کښې حصه ورکولې شي که نه ؟ په دې کښې اختلاف دې.د امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهما الله دوه قولونه دی.یو قول دا دې.چه دې کس ته به حصه نشي ورکولې.ځکه چه ده په جهاد کښې شرکت نه دې کړې.دویم قول دا دې.چه ده ته به حصه ملاویږی.ځکه چه دې د مال غنیمت نه وړاندې رارسیدلې دې.([1]) خو دشوافعو رحمهم الله مشهور قول اولنې دې.

د احنافو حضراتو مسلك دا دې.چه ترڅو پورې مال غنیمت د دارالاسلام سرحدونو ته داخل شوې نه وی.د دې نه وړاندې وړاندې که څوك راشي.غانمینو سره ملاؤ شي.نوهغه ته به حصه ورکولې شی کنی نه.([2])

داحنافو رحمهم الله په مسلك باندې د حدیث باب د وجې اشکال کیږی.چه په دې کښې وئیلی شوی دی.((ولم یقسم لأحد لم یشهد الفتح غیرنا)) ددې نه معلومیږی .چه کوم کسان د جهاد د ختمیدو نه پس اود مال غنیمت د تقسیم نه وړاندې خیبر ته راغلی وو.نبی صلی الله علیه وسلم هغوی ته حصه نه وه ورکړې.

داحنافو رحمهم الله د طرفه دا جواب ورکړې شوې دې،چه ممکن ده، د کومو خلقوپه باره کښې چه حضرت ابوموسي اشعری رضی الله عنه فرمائی،چه هغوی ته حصه ورنکړې شوه،چه هغوی د دارالاسلام حدودو ته د رارسیدو نه پس راغلی وی.او دا هم ممکن ده.چه نبی صلی الله علیه وسلم هغوی ته حصه ورکړې وی، خوابو موسی اشعری رضی الله عنه ته علم نه وی شوې.ددې وجې هغوی ((ولم یقسم لأحد)) وئیلی دی.([3]) والله اعلم

---

[1] ، فتح الباری (۴۴۲\۶) کتاب فرض الخمس وبذل المجهود باب من جاء بعد الغنیمة .کتاب الجهاد (۳۱۶\۱۲)وعمدة القاری (۲۵۳\۱۷)_

[2] ،عمدة القاری (۲۵۳\۱۷) وبذل المجهود (۳۲۰\۱۲)_

[3] ، حضرت سهارنپوری رحمه الله فرمائی.چه کومو حضراتو ته په مال غنیمت کښې څه نه وو ورکړې شوې.په حقیقت کښې دا حضرات د فتح خیبر نه پس راغلی وو.او خیبر د فتح نه پس دارالاسلام اوګرځیدو.او په دارالاسلام کښې غنیمت صرف غانمینو ته ملاویږی.کوم کسان چه په جهاد کښې شریك شوی نه وی.هغوی ته نه ملاویږی.
په دې باندې اشکال کیږی.چه حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه هم د فتح خیبر نه پس راغلې وو.که خیبر دارالاسلام ګرځیدلې وو.نو بیا هغه ته حصه څنګه ملاؤ شوه.
ددې جواب حضرت سهارنپوری رحمه الله دا ورکړې دی.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته په خمس کښې ورکړې وه.په مال غنیمت کښې نه وه ورکړې.اودا هم کیدې شي.چه د غانمینو په رضا سره ئې ورته د عام مال غنیمت نه ورکړې وی.اوکله چه غانمین راضي.نوداسې کس ته په غنیمت کښې حصه ورکول جائزدی.چه په جهاد کښې شریك شوې نه وی.(بذل المجهود (۳۲۰\۱۲) باب من جاء بعد الغنیمة)

[۳۹۹۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ قَالَ حَدَّثَنِي ثَوْرٌ قَالَ حَدَّثَنِي سَالِمٌ مَوْلَى ابْنِ مُطِيعٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ افْتَتَحْنَا خَيْبَرَ وَلَمْ نَغْنَمْ ذَهَبًا وَلَا فِضَّةً إِنَّمَا غَنِمْنَا الْبَقَرَ وَالْإِبِلَ وَالْمَتَاعَ وَالْحَوَائِطَ ثُمَّ انْصَرَفْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى وَادِي الْقُرَى وَمَعَهُ عَبْدٌ لَهُ يُقَالُ لَهُ مِدْعَمٌ أَهْدَاهُ لَهُ أَحَدُ بَنِي الضِّبَابِ فَبَيْنَمَا هُوَ يَحُطُّ رَحْلَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَهُ سَهْمٌ عَائِرٌ حَتَّى أَصَابَ ذَلِكَ الْعَبْدَ فَقَالَ النَّاسُ هَنِيئًا لَهُ الشَّهَادَةُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّ الشَّمْلَةَ الَّتِي أَصَابَهَا يَوْمَ خَيْبَرَ مِنَ الْمَغَانِمِ لَمْ تُصِبْهَا الْمَقَاسِمُ لَتَشْتَعِلُ عَلَيْهِ نَارًا فَجَاءَ رَجُلٌ حِينَ سَمِعَ ذَلِكَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشِرَاكٍ أَوْ بِشِرَاكَيْنِ فَقَالَ هَذَا شَيْءٌ كُنْتُ أَصَبْتُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شِرَاكٌ أَوْ شِرَاكَانِ مِنْ نَارٍ

**قوله**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ...: دا روایت دحضرت ابوهریره ﷜ دې.دوی فرمائی، چه مونږ خیبر فتح کړو،په مال غنیمت کښې هلته مونږ ته سره او سپین زر نه وو ملاؤ شوې.بلکه غواګاني ،اوښان،د کور سامان او باغونه وغیره ملاؤ شوی وو.بیا مونږ د نبی ﷺ سره وادی قری طرف ته واپس شو.د رسول الله ﷺ یو غلام وو.چه ،،مدعم،، ورته وئیلی شو هغه د بنو ضباب یوکس نبی ﷺ ته هدیه ورکړې وو.(د دغه کس نوم رفاعه بن زید بن وهب خزاعی نقل شوې دې[1])هغه غلام د رسول الله ﷺ کجاوه راکوزوله،چا ناڅاپه یو سهم غائر راغلو.اوهغه پرې اولګیدلو.(سهم غائر هغه غشی ته وائی.چه دهغې ویشتونکې معلوم نه وی) د هغې په وجه هغه وفات شو.خلقو اووئیل.((هنئیا له الشهادة)) نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل.((کلا والذی نفسی بیده أن الشملة التی أصابها یوم خیبر من المغانم لم تصبها المقاسم لتشتغل علیه ناراً))

یعنی هرګز نه دې،په هغه ذات مې قسم دې، دچا په قبضه کښې چه زما ساه ده، هغه څادر کوم چه ده په خیبر کښې د مال غنیمت د تقسیم نه وړاندې اخستې وو ،هغه دده دپاسه اورجوړ شوې دې.اوبلیږی.

دلته زمونږ په نسخو کښې د ((کلا)) په ځائې ((بل)) دې.د حموی او سرخسی په روایت کښې ((بل)) دې.حافظ ابن حجر او قسطلانی رحمهما الله ((بل))صحیح ګرځولې دې.د موطا امام مالك په روایت کښې ((کلا)) دې.([2])

[1] ،فتح الباری (۴۸۹\۷) وعمدة القاری (۲۵۴\۱۷و ۲۵۵)_
[2] ،فتح الباری (۴۸۹\۷) وعمدة القاری (۲۵۵\۱۷)_

د «كلا» او «بل» د دواړو صورتونو کښې مفهوم او معنى صحيح کيږى.خود «بلى» په صورت کښې معنى نه صحيح کيږى.ځکه چه رسول الله ﷺ د خلقو هغه ته د شهادت مبارکۍ ورکولو ترديد کول غوښتل.او ښکاره ده،چه دغه ترديد د «کلا» او «بل» په صورت کښې کيدې شى. د لفظ د «بلى» که چرته وى.نو دا ترديد نه دې بلکه تائيد دې.اودا د نبى ﷺ د مدعا او مقصد نه خلاف دې.ددې وجې په کومونسخو کښې چه «بلى» دې.هغه وهم گرخولې شوې دې.

د.مدعم،، په باره کښې نبى ﷺ چه کله دا جمله اوونيله،نو يو صحابى د پنړې يوه يا دوه تسمې راوړې،او د نبى ﷺ په خدمت کښې ئې پيش کړې.او وې وئيل.چه ما دمال غنيمت د تقسيم نه وړاندې دا اخستې وې.نبى ﷺ اوفرمائيل.دا يوه يا دوه تسمې هم اور دې.مطلب دا که تا دا نه وې ورکړې.نو ددې نه به هم اور جوړ شوې وو،اوته به ئې سوزولې وې.

**يواشكال اودهغې جواب:** دلته په روايت باب کښې حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائى.چه «أفتتحنا خيبر» دا د جمعې متکلم صيغه ده.حال دا چه حضرت ابوهريره رضی الله عنه د فتحې خيبر نه پس راغلې وو.په فتح خيبر کښې شريك شوې نه وو.ځکه امام دارقطنى د موسى بن هارون نه نقل کړى دى.چه «أفتتحنا خيبر» الفاظ وهم دې.(١)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى،چه دا د «افتتح المسلمون الخيبر» په معنى کښې دې.(٢) لکه څنګه چه د ذواليدين په قصه کښې حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائيلى دى .«صلينا خلف رسول الله ﷺ» حال دا چه دغه قصه د بدر نه وړاندې وه.او حضرت ابوهريره رضی الله عنه په دغه وخت کښې شريك صلاة نه وو.هلته هم د «صلينا» معنى ده «صلى المسلمون» د مسلمانانو د فعل نه کله حضرت ابوهريره رضی الله عنه د جمع متکلم په صيغې سره تعبير کوى.

[٣٩٩٤] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ أَخْبَرَنِي زَيْدٌ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ سَمِعَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ أَمَا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْلَا أَنْ أَتْرُكَ آخِرَ النَّاسِ بَبَّانًا لَيْسَ لَهُمْ شَيْءٌ مَا فُتِحَتْ عَلَيَّ قَرْيَةٌ إِلَّا قَسَمْتُهَا كَمَا قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ وَلَكِنِّي أَتْرُكُهَا خِزَانَةً لَهُمْ يَقْتَسِمُونَهَا

[٣٩٩٥] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَوْلَا آخِرُ الْمُسْلِمِينَ مَا فُتِحَتْ عَلَيْهِمْ قَرْيَةٌ إِلَّا قَسَمْتُهَا كَمَا قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ [ر:٢٢٠٩]

حضرت عمربن الخطاب رضی الله عنه چه کله د کافرانو ښارونه فتح کول.نو هغوى به زمکې په

---

١) فتح البارى (٤٨٨/٧)_

٢) فتح البارى (٤٨٨/٧)_

غانمینو کښې نه تقسیمولی.دهغوی خیال وو.که زه زمکې په غانمینو باندې تقسیموم نو. چه کوم کلې یا کومه زمکه د چا په حصې کښې راشی.نوهم هغه به د هغې مالك شی.اودهغه نه پس به بیا هغه دهغه وارثانو ته ملاویږی.اود نورو خلقو به په هغې کښې څه حق نه وی.ددې وجې هغوی هغه دهمیشه دپاره وقف کولې،چه ترقیامته پورې ددې د آمدن نه ټول مسلمانانو ته فائده رسی.(۱)

د ټولو نه وړمبې د شام په فتح کښې دا واقعه پیښه شوه.د شام د زمکو په باره کښې د حضرت عمر رضی الله عنه رائې دا وه.چه دا تقسیم نکړې شی.دحضرت بلال رضی الله عنه اصرار وو.چه تاسو تقسیم اوکړئ.حضرت عمر رضی الله عنه فرمائیل.بې شکه لکه څنګه چه نبی صلی الله علیه وسلم د خیبر زمکې په غانمینو کښې تقسیم کړې وې.ما به هم هغه شان ټولې زمکې په غانمینو کښې تقسیم کړې وې.خو ماته د راتلونکو مسلمانانو خیال دې. نن که په غانمینو کښې دا زمکې تقسیم شوې.نو دوی به ئې مالکان شی.او روسته چه کوم مسلمانان راځی.هغوی به ددې زمکو نه فائده نشی اخستې.

د حضرت بلال رضی الله عنه اصرار وو.چه فتح خو مونږ کړې ده.او ته دا زمکې وقف کوې.او غانمینوته حصه نه ورکوې.حضرت عمر رضی الله عنه تنګ شو.او دعا ئې اوکړله .«اللهم اکفنی بلالاً وأصحابه» اې الله ته د بلال او دهغه د ملګرو د طرفه زما دپاره کافی شې.د راوی بیان دې.

چه «ماحال حول ومنهم عین تطرف» چه اوس لا یو کال هم نه وو شوې.چه حضرت بلال رضی الله عنه اودهغه په ملګرو کښې د یو کس سترګه هم د خوزیدو دپاره باقی نه وه.ټول الله تعالی ته خوښ شو.(۲)

دحضرت عمر رضی الله عنه دعا قبوله شوه.حضرت بلال رضی الله عنه هم په حق باندې وو.او حضرت عمر رضی الله عنه هم په حق باندې وو.دحضرت بلال رضی الله عنه په نظر کښې د غانمیو فائده وه.اود حضرت عمر رضی الله عنه په نظر کښې د ټول امت فائده وه.او دالله تعالی په نیز هغه کس زیات محبوب وی،څوك چه د ټول انسانیت او د ټول امت فائده غواړی.دهغه کس په مقابله کښې چه د یو فرد یا یوې ډلې فائده غواړی.د حضرت عمر رضی الله عنه په زړه کښې د ټول امت غم او فکر وو.

**فائده:**«ببان» په اوله باء باندې فتحه ده.او په دویمه باء باندې تشدید دې.ددې معنی برابر یا یوشان یا محتاج یا نادار ده.علامه خطابی رحمه الله فرمائی.دا لفظ د عربئ ژبې نه دې. بعضې خلقو دې ته د یمنی ژبې لفظ وئیلې دې.

---

(۱) د روایت الفاظ دا دی.((لولا أن أترک آخرالناس ببانا لیس لهم شئ ..قا ل العینی قوله بباناً معناه شیأ واحداً وقال الخطابی ولا أحسب هذه اللفظة عربیة .. قال الأزهری بل هی لغة صحیحة لکنها غیر فأشیة وقال صاحب العین :یقال هم علی ببان واحد أی علی طریقة واحدة قال الطبری :لولا أن أترکهم فقراء معدومین لا شئ لهم أی متساویین فی الفقر (وانظر التفصیل فی عمدة القاری (۱۷\۲۵۵)_

(۲) السنن الکبری للبیهقی (۹\۱۳۸) کتاب السیر باب من رای قسمة الأراضی المغنومة ومن لم یرها)_

[٣٩٩٦/٣٩٩٧] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ وَسَأَلَهُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ أُمَيَّةَ قَالَ أَخْبَرَنِي عَنْبَسَةُ بْنُ سَعِيدٍ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ قَالَ لَهُ بَعْضُ بَنِي سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ لَا تُعْطِهِ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ هَذَا قَاتِلُ ابْنِ قَوْقَلٍ فَقَالَ وَاعَجَبَاهُ لِوَبْرٍ تَدَلَّى مِنْ قَدُومِ الضَّأْنِ

وَيُذْكَرُ عَنْ الزُّبَيْدِيِّ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَنْبَسَةُ بْنُ سَعِيدٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يُخْبِرُ سَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَانَ عَلَى سَرِيَّةٍ مِنْ الْمَدِينَةِ قِبَلَ نَجْدٍ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ فَقَدِمَ أَبَانُ وَأَصْحَابُهُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخَيْبَرَ بَعْدَ مَا افْتَتَحَهَا وَإِنَّ حُزْمَ خَيْلِهِمْ لَلِيفٌ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَا تَقْسِمْ لَهُمْ قَالَ أَبَانُ وَأَنْتَ بِهَذَا يَا وَبْرُ تَحَدَّرَ مِنْ رَأْسِ ضَالٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَانُ اجْلِسْ فَلَمْ يَقْسِمْ لَهُمْ

[٣٩٩٨] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ أَخْبَرَنِي جَدِّي أَنَّ أَبَانَ بْنَ سَعِيدٍ أَقْبَلَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا قَاتِلُ ابْنِ قَوْقَلٍ وَقَالَ أَبَانُ لِأَبِي هُرَيْرَةَ وَاعَجَبًا لَكَ وَبْرٌ تَدَأْدَأَ مِنْ قَدُومِ ضَأْنٍ يَنْعَى عَلَيَّ امْرَأً أَكْرَمَهُ اللَّهُ بِيَدِي وَمَنَعَهُ أَنْ يُهِينَنِي بِيَدِهِ [ر٢٦٧٣]

**قوله: حدثنا علي بن عبدالله ...:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه د نبي ﷺ په خدمت کښې حاضرشو. اود خيبرپه غنيمتونو کښې ئې د خپل ځان دپاره د حصې مطالبه اوکړه. نود سعيد بن العاص رضي الله عنه يو ځوئي (ابان) نبي کريم ﷺ ته اووئيل. «لاتعطه» ده ته مه ورکوه. نو حضرت ابوهريره رضي الله عنه اووئيل. دا د نعمان بن قوقل قاتل دې. دده خبره مه منئ. نو ابان اووئيل.

**قوله: واعجباً لوبر تدلى من قدوم الضان:** حيرانتيا ده بلونګړي لره، چه د غر د سوکې راغلې دې.

وبر (بفتح الواو وسکون الراء) دپيشوپشان يوځناوردې. چه په پښتوکښې ورته بلونګړې وائي.

«تدلى» په دې روايت کښې د «تدلى من قدوم» نه دې. د دې نه په وړاندينى تعليق کښې «تحدر من قدوم الضان» دې. اود موسى بن اسماعيل په روايت کښې «تدأد من قدوم الضان» دې. معنى تقريباً د ټولو د غورزيدو، راکوزيدواو زوړنديدو ده.

«قدوم» سوکه، طرف. «الضان» دا د دوس قبيلې په علاقه کښې د يو غر نوم دې. (١)

حضرت ابوهريره رضي الله عنه چه کله د ابان بن سعيد په باره کښې اووئيل. چه دا د نعمان بن قوقل قاتل دې، ځکه چه ابان بن سعيد په جنګ احد کښې حضرت نعمان بن قوقل انصارى بدرى رضي الله عنه شهيد کړې وو. په هغه وخت کښې ابان اسلام نه وو راوړې. نود ابوهريره رضي الله عنه په دې جمله

---

(١) فتح البارى (٤٩٢\٧) وعمدة القارى (٢٥٦\١٧)۔

باندې ابان ته غصه ورغله.او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه تحقير ئې اوکړو.او وې وئيل.((واعجباً لوبر،تدلی من قدوم الضان))اود موسی بن اسماعيل په روايت کښې دا زيادت هم شته.((ينعى على امرأ أكرمه الله بيدي،ومنعه أن يهينني بيده)) يعنی دې په ما باندې د يو داسې کس په باره کښې عيب لګوی.چه هغه ته الله تعالی زما په لاس باندې عزت (شهادت) ورکړو.اوهغه ئې منع کړو.چه ما په خپل لاس باندې ذليل کړی.

دحضرت ابان بن سعيد رضي الله عنه مطلب دا وو.که ما په خپله زمانه کفر کښې نعمان بن قوقل رضي الله عنه شهيد کړې دې.نو هغه ته د هغې په وجه د شهادت مرتبه ملاؤ شوه.او ورسره ورسره د الله تعالی دا فضل او احسان اوشو.چه زه ئې دهغه نه بچ کړم.که هغه په هغه وخت کښې زه قتل کړې ووم.نو په آخرت کښې زه به ذليل ووم.خو الله تعالی زه د دغه ذلت نه بچ کړم.نو په دې کښې د پيغور ورکولو څه خبره ده.

دا حضرت ابان بن سعيد رضي الله عنه هم هغه کس دې.چه د صلح حديبيه په موقع ئې حضرت عثمان رضي الله عنه ته په مکه مکرمه کښې پناه ورکړې وه.او هغه ئې خپل ځان سره ميلمه ساتلې وو.دوی د صلح حديبيه نه پس په اسلام کښې داخل شوی وو.([1])

**قوله**: وېذكر عن الزبيدي....:دا تعليق دې.امام ابوداود دا په خپل سنن کښې موصولاً نقل کړې دې.([2]) په هغې کښې دی.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ابان بن سعيد رضي الله عنه د مدينې منورې نه نجد طرف ته د څه خاص مهم دپاره ليږلې وو.ابوهريره رضي الله عنه فرمائی.

**قوله**: فَقَدِمَ أَبَانُ وَأَصْحَابُهُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخَيْبَرَ بَعْدَ مَا افْتَتَحَهَا وَإِنَّ حُزُمَ خَيْلِهِمْ لَلِيفٌ: يعنی ابان او دهغه ملګری د فتح خيبر نه پس د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې ددغه مهم نه واپس حاضر شو.په داسې حال کښې چه د هغوی د اسونو رسۍ د قجورو د پوستکی نه جوړې شوې وې.

,,حزم،،(بضم الحاء وسكون الزاء) د ،،حزام،، جمع ده.حزام هغه رسۍ ته وائی کومه چه دشا سره تړلې شي.او ,,ليف،، د قجورو شاخ او پوستکی ته وائی مطلب دا دې.چه د اس د خيټې نه چه کومه رسۍ شا طرف ته تړلې شی.هغه د قجورو د پوستکو نه جوړه شوې وه.او بيخی په بې سروسامان او خراب حالت کښې دا کسان د نبی صلى الله عليه وسلم خدمت ته راغلل.

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائی.چه ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ته اووئيل.يا رسول الله! ده ته په غنيمت کښې څه حصه مه ورکوه.نوپه دې باندې ابان حضرت ابوهريره رضي الله عنه ته اووئيل... ((وأنت بهذا يا وبر تحدر من رأس الضان)) رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.ابان! کينه،اوهغه ته ئې په غنيمت کښې حصه ورنکړه.

---

[1] ،عمدة القاری (۱۷\۲۵۶)_

[2] ،سنن أبی داود كتاب الجهاد باب من جاء بعد الغنيمة لا سهم له رقم ۲۷۲۳)_

دلته اشكال كيږي.چه د زبيدي ددې تعليق نه خو معلوميږي.چه ابان حصه غوستې وه.او حضرت ابوهريره ﷺ رسول الله ﷺ ته د حصې نه ورکولو وئيلي وو.او ددې نه وړاندې د علي بن عبدالله د روايت نه معلوميږي.چه حضرت ابوهريره ﷺ حصه غوستې وه.او ابان نبي ﷺ ته وئيلي وو.چه مه ورکوه.په ظاهره په دواړو روايتونو کښې تعارض دې.

د محمد بن يحيى ذهلي رحمه الله رائې دا ده.چه د زبيدي روايت راجح دې.په کوم کښې چه د ابوهريره ﷺ منع کول مذکور ده.([1])اوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي .ممکن ده.چه دواړو دپاره منع کړې وی.د ابان دپاره حضرت ابوهريره ﷺ دا دليل ورکړې وو.چه دې د ابن قوقل قاتل دې.او د ابوهريره ﷺ دپاره ابان ﷺ دا دليل پيش کړې وو.چه دې د جنګ او جهاد لائق نه دې.ده ته دې حصه نشي ورکولې.([2]) نو په دواړو رواياتو کښې څه تعارض نشته.

تنبيه:امام ابوداود دا روايت نقل کړې دې.او په هغې کښې دابان په ځائې ،سعيد بن العاص، نوم دې.د سعيد بن ا لعاص ﷺ حضرت ابوهريره ﷺ ته د حصې ورکولو نه منع کړې وو.([3])خود سعيد نوم صحيح نه دې.دا مغالطه يا د امام ابوداود نه شوې ده.اويا د هغه د استاذ نه،صحيح روايت د بخاری دې.په کوم کښې چه د ابان ذکر دې.

دويمه خبره دا زده کړئ.چه د بخاری په دې رواياتو کښې د «من قدوم الضان» الفاظ راغلی دی.او ابوعبيد بکری رحمه الله په خپل معجم کښې د همدانی د روايت په حوالې سره د «ضان» په ځائې د «ضال» لفظ نقل کړې دې.اوهم دا ئې صحيح ګرځولې دې.([4]) «ضال» ځنګلی بنړ ته وائی.په کوم کښې چه غټه مره اوسيږی.

خود محققينو رائې دا ده.چه هم «ضان» صحيح دې.اودا د دوس قبيلې په علاقه کښې د يو غر نوم دې.دکوم ځائې نه چه حضرت ابوهريره ﷺ راغلې وو.والله اعلم.

[٣٩٩٨] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَام بِنْتَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْسَلَتْ إِلَى أَبِي بَكْرٍ تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْهِ بِالْمَدِينَةِ وَفَدَكٍ وَمَا بَقِيَ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ إِنَّمَا يَأْكُلُ آلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْمَالِ وَإِنِّي وَاللَّهِ لَا أُغَيِّرُ شَيْئًا مِنْ صَدَقَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ حَالِهَا الَّتِي كَانَ عَلَيْهَا فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَأَعْمَلَنَّ فِيهَا بِمَا عَمِلَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَبَى أَبُو بَكْرٍ

---

[1] فتح البارى (٧\٤٩٢)_

[2] فتح البارى (٧\٤٩٢و ٤٩٣) دغه شان بذل المجهود (١٢\٣٢٠)_

[3] سنن أبي داود كتاب الجهاد باب من جاء بعد الغنيمة لا سهم له رقم ٢٧٢٤)_

[4] عمدة القارى (١٤\١٢٥) كتاب الجهاد باب الكافر يقتل المسلم )_

أَنْ يَدْفَعَ إِلَى فَاطِمَةَ مِنْهَا شَيْئًا فَوَجَدَتْ فَاطِمَةُ عَلَى أَبِي بَكْرٍ فِي ذَلِكَ فَهَجَرَتْهُ فَلَمْ تُكَلِّمْهُ حَتَّى تُوُفِّيَتْ وَعَاشَتْ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّةَ أَشْهُرٍ فَلَمَّا تُوُفِّيَتْ دَفَنَهَا زَوْجُهَا عَلِيٌّ لَيْلًا وَلَمْ يُؤْذِنْ بِهَا أَبَا بَكْرٍ وَصَلَّى عَلَيْهَا وَكَانَ لِعَلِيٍّ مِنَ النَّاسِ وَجْهٌ حَيَاةَ فَاطِمَةَ فَلَمَّا تُوُفِّيَتْ اسْتَنْكَرَ عَلِيٌّ وُجُوهَ النَّاسِ فَالْتَمَسَ مُصَالَحَةَ أَبِي بَكْرٍ وَمُبَايَعَتَهُ وَلَمْ يَكُنْ يُبَايِعُ تِلْكَ الْأَشْهُرَ فَأَرْسَلَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ أَنِ ائْتِنَا وَلَا يَأْتِنَا أَحَدٌ مَعَكَ كَرَاهِيَةً لِمَحْضَرِ عُمَرَ فَقَالَ عُمَرُ لَا وَاللَّهِ لَا تَدْخُلُ عَلَيْهِمْ وَحْدَكَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ وَمَا عَسَيْتَهُمْ أَنْ يَفْعَلُوا بِي وَاللَّهِ لَآتِيَنَّهُمْ فَدَخَلَ عَلَيْهِمْ أَبُو بَكْرٍ فَتَشَهَّدَ عَلِيٌّ فَقَالَ إِنَّا قَدْ عَرَفْنَا فَضْلَكَ وَمَا أَعْطَاكَ اللَّهُ وَلَمْ نَنْفَسْ عَلَيْكَ خَيْرًا سَاقَهُ اللَّهُ إِلَيْكَ وَلَكِنَّكَ اسْتَبْدَدْتَ عَلَيْنَا بِالْأَمْرِ وَكُنَّا نَرَى لِقَرَابَتِنَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَصِيبًا حَتَّى فَاضَتْ عَيْنَا أَبِي بَكْرٍ فَلَمَّا تَكَلَّمَ أَبُو بَكْرٍ قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَرَابَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ أَصِلَ مِنْ قَرَابَتِي وَأَمَّا الَّذِي شَجَرَ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ مِنْ هَذِهِ الْأَمْوَالِ فَلَمْ آلُ فِيهَا عَنِ الْخَيْرِ وَلَمْ أَتْرُكْ أَمْرًا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُهُ فِيهَا إِلَّا صَنَعْتُهُ فَقَالَ عَلِيٌّ لِأَبِي بَكْرٍ مَوْعِدُكَ الْعَشِيَّةَ لِلْبَيْعَةِ فَلَمَّا صَلَّى أَبُو بَكْرٍ الظُّهْرَ رَقِيَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَتَشَهَّدَ وَذَكَرَ شَأْنَ عَلِيٍّ وَتَخَلُّفَهُ عَنِ الْبَيْعَةِ وَعُذْرَهُ بِالَّذِي اعْتَذَرَ إِلَيْهِ ثُمَّ اسْتَغْفَرَ وَتَشَهَّدَ عَلِيٌّ فَعَظَّمَ حَقَّ أَبِي بَكْرٍ وَحَدَّثَ أَنَّهُ لَمْ يَحْمِلْهُ عَلَى الَّذِي صَنَعَ نَفَاسَةً عَلَى أَبِي بَكْرٍ وَلَا إِنْكَارًا لِلَّذِي فَضَّلَهُ اللَّهُ بِهِ وَلَكِنَّا نَرَى لَنَا فِي هَذَا الْأَمْرِ نَصِيبًا فَاسْتَبَدَّ عَلَيْنَا فَوَجَدْنَا فِي أَنْفُسِنَا فَسُرَّ بِذَلِكَ الْمُسْلِمُونَ وَقَالُوا أَصَبْتَ وَكَانَ الْمُسْلِمُونَ إِلَى عَلِيٍّ قَرِيبًا حِينَ رَاجَعَ الْأَمْرَ الْمَعْرُوفَ [ر: ٢٩٢٦]

دا روايت متفق عليه دې.امام مسلم هم په كتاب الجهاد كښې د محمد بن رافع نه ددې روايت كړې دې.([1]) محمد بن رافع د حجين نه روايت كوى.او حجين د ليث نه روايت كوى. په ليث بن سعدباندې دبخارى اومسلم د دواړو سندونه ملاويږى.حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى.

**قوله**: أَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ بِنْتَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْسَلَتْ إِلَى أَبِي بَكْرٍ تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْهِ بِالْمَدِينَةِ وَفَدَكٍ وَمَا بَقِيَ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ:د نبى كريم ﷺ د وفات نه پس د نبى ﷺ لور بى بى حضرت فاطمې رضي الله عنها حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته اووئيل.چه رسول الله ﷺ ته كوم غنيمت په مدينه او فدك كښې ملاو شوى وو.او د خيبر په خمس كښې څه پاتې شوى دى.په هغې كښې ددې حصه ميراث راكړه.

دحضرت فاطمې رضي الله عنها د ميراث غوښتلو سبب د مال محبت نه وو.بلكه د تبركات نبوى

[1] صحيح مسلم كتاب الجهاد باب قول النبى ﷺ لا نورث ما تركنا فهو صدقة رقم ٤٣٤٣)_

حاصلول مقصود وو.خكه چه ددغه مالونو نسبت رسول الله ﷺ ته وو.اودا متروكات په حقيقت كښې تبركات نبوى وو.ددې وجې د حضرت فاطمې رضي الله عنها خواهش پيدا شو.چه دا تبركات د دې په حصه كښې راشي.نوځكه هغوى د ميراث مطالبه اوكړه.

د نبى ﷺ په تصرف كښې درې قسمه مالونه وو.يو په مدينه كښې اموال بنى نضيركوم چه الله تعالى دوى ته د فئ په طور وركړى وو.او په دويم نمبر د فدك زمكې،د اهل فدك سره رسول الله ﷺ په نصف زمكه باندې صلح كړې وه.نصف زمكې اهل فدك سره پاتې شوې وې.او نصف رسول الله ﷺ ته ملاوْ شوې وې. او چونكه دا مال فئ وو.ددې وجې د فدك نصف زمكې د نبى ﷺ په تصرف كښې وې. په دريم نمبر دخيبر هغه زمكې او باغونه كوم چه په خمس كښې پاتې شوى وو.او پخپله د نبى ﷺ حصه كومه چه دعامو مسلمانانو پشان هغوى ته ملاوْ شوې وه.([1])

دخيبراو فدك د زمكو چه به كوم آمدن وو.هغه به رسول الله ﷺ د عامو مسلمانانو په ضرورتونو او مصلحتونو كښې خرچ كول،او په مدينه منوره كښې اموال بنو نضير كوم چه نبى ﷺ ته د فئ په طور ملاوْ شوى وو.په هغې باندې به ئې عام طور د ازواج مطهراتو نفقه وغيره انتظام كولو.

كله چه نبى ﷺ وفات شو.نو حضرت فاطمې رضي الله عنها د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه نه دميراث مطالبه اوكړه.حضرت ابوبكر رضي الله عنه اووئيل. رسول الله ﷺ فرمائيلى دى.«لا نورث ما تركنا صدقة» زمونږ څوك وارث نه جوړيږى.څه چه پريږدو.هغه صدقه وى.البته آل محمد به دهغې نه خپل ضروريات پوره كوى.اوبه الله قسم زه د رسول الله ﷺ صدقه كړې مال كښې د خپل طرف نه تصرف نشم كولې.اولكه څنګه چه د نبى ﷺ په ژوند كښې وو.هم هغه شان به ئې ساتم.او هم هغه به كوم څه چه رسول الله ﷺ كړى وو.نو حضرت فاطمې رضي الله عنها ته د ميراث وركولو نه حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه انكار اوكړو.

**قوله**: فَوَجَدَتْ فَاطِمَةُ عَلَى أَبِي بَكْرٍ فِي ذَلِكَ فَهَجَرَتْهُ فَلَمْ تُكَلِّمْهُ حَتَّى تُوُفِّيَتْ:

نوحضرت فاطمه رضي الله عنها دحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه نه خفه شوه.اودهغه سره ئې ترك تعلق اوكړو.نوتر وفاته پورې ئې هغه سره خبرې اونكړې.

**يو اشكال اودهغې جوابونه**: دلته دا اشكال كيږى.چه حضرت فاطمې رضي الله عنها د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه نه د ميراث مطالبه اوكړه.حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د ارشاد مبارك په وجه هغې ته د ميراث وركولو نه انكار اوكړو.چه د نبيانو په مال كښې ميراث نه جارى كيږى.او وې فرمائيل.چه زه به په دې مالونوكښې هم هغه شان تصرف كوم،څنګه چه رسول ا لله ﷺ كړې وو.او زه به هم هغه شان عمل كوم.څنګه چه د رسول الله ﷺ په خپل ژوند كښې معمول وو.نود حضرت ابوبكر رضي الله عنه خبره صحيح وه.اود رسول الله ﷺ د ارشاد مبارك د وجې ئې د ميراث وركولو نه انكار اوكړو.په دې كښې د هغه څه

[1] عمدة القارى (٢٥٨\١٧)۔

ذاتي فائده نه وه.نوبه دې باندې حضرت فاطمه رضي الله عنها ولې خفه شوه.اوبيا خاص كركله چه هغوى ورته د نبى ﷺ صريح ارشاد مبارك «لانورث ماتركنا صدقة» هم بيان كړو.ددې نه پس د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه نه د خفګان څه جواز شته.چه هغه سره ئې تعلق پريخودو.اوتر وفاته پورې ئې ورسره خبرې اونكړې؟ ددې اشكال مختلف جوابونه وركړې شوى دى.

① د «وجدت فاطمة على أبي بكر» معنى بعضې حضراتو «حزنت فاطمة» بيان كړې ده.لكه څنګه چه د «وجدت» معنى غصه كيدل او خفه كيدل راځى.دغه شان غمګين كيدل هم راځى.هغوى فرمائى.چه حضرت فاطمې رضي الله عنها كله د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه نه ميراث طلب كړو.او په جواب كښې حضرت صديق رضي الله عنه د نبى ﷺ ارشاد نقل كړو.نود نبى ﷺ د دې ارشاد نه د ناواقفيت په وجه حضرت فاطمه رضي الله عنها غمژنه شوه.اوهغې ته دكه اودرد ملاؤ شو.چه د نبى ﷺ د ارشاد نه د لاعلمئ په وجه ولې ما د ميراث مطالبه اوكړه.(1)

خو په دې باندې اشكال كيږى.چه وړاندې جملې «فهجرته فلم تكلمه حتى توفيت» نه ددې معنى تائيد نه كيږى.نو ددې متعلق حضرت شاه انور شاه كشميرى رحمه الله فرمائى.چه د «هجرته» ضمير د مطالبه ميراث طرف ته راجع دې.اومطلب دا دې.چه فاطمې رضي الله عنها د ميراث مطالبه د نبى ﷺ د ارشاد مبارك اوريدو په وجه پريخوده.او تروفاته پورې ئې د ميراث په باره كښې بيا څه خبره نه ده كړې.(2)

البته د بخارى په يو روايت كښې د «وجدت فاطمة» په ځائې «غضبت فاطمة» راغلى دى.ددې نه معلوميږى.چه دلته «وجدت» په معنى د «غضبت» دې.

مولانا رشيد احمد ګنګوهى په لامع الدرارى كښې فرمائيلى دى.چه په حقيقت كښې راوى د خپلې پوهې مطابق روايت بالمعنى كړې دې.او «غضبت فاطمة» ئې ونيلى دى.(3)

ددې توجيه تائيد د هغه روايت نه هم كيږى،كوم چه عمربن شبه په تاريخ مدينه كښې نقل كړې دې.دهغې الفاظ دادى.«فلم تكلمه في ذلك المال حتى ماتت» (4) ددې نه ښكاره معلوميږى.چه حضرت فاطمې رضي الله عنها تروفاته پورې د دغه مال او ميراث په باره كښې مطالبه اونكړه.دا مطلب نه دې.چه حضرت فاطمې رضي الله عنها دحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه سره مطلقاً قطع كلامى اوكړه.

② دبعضې عالمانو خيال دې، چه «وجدت فاطمة على أبي بكر...الخ» د اصل روايت حصه نه ده.بلكه دا دامام زهرى رحمه الله د طرف نه مدرج دې.او امام زهرى رحمه الله په ادراج كښې مشهور دې.هغوى حديث بيانوى او په مينځ كښې په كښې خپله رائې داخلوى.او ددې وضاحت

(1) خود «وجدت» په صله كښې د «على» موجودګى ددې معنى تائيد نه كوى.-
(2) فيض البارى (١٤/٤١١)_
(3) لامع الدرارى (٧/٢٩٠) باب ما يكره من ذبح الإبل)_
(4) تاريخ المدينة لإبن شيبه (١/١٩٧)_

بعضې وخت كښې هغه نه كوى.د هغې د وجې د هغه ادراج هم د اصل روايت حصه ګڼړلې شى.دامام مالك شيخ ربيعه الرائى به د زهرى رحمه الله نه تپوس اوكړو.((يا أبا بكر إذا حدثت الناس برأيك فاخبرهم أنه رأيك، وإذا حدثت الناس بشئ من السنة فاخبرهم أنه سنة فلا يظنون أنه رأيك)) [1] حافظ هم په ((النكت على ابن الصلاح)) كښې ليكلى دى.((وكذا كان الزهرى يفسر الأحاديث كثيراً وربما أسقط أداة التفسير)) [2]

ددې ا لفاظو د ادراج دليل دا دې.چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته د حضرت فاطمې رضي الله عنها دميراث په باره كښې مراجعت تقريباً په شپږ ديرش طرقو سره مروى دې.په دې شپږ ديرش طرقو كښې د پنځويشتو مدار په امام زهرى رحمه الله دې.او يوولس طرق دامام زهرى رحمه الله نه علاوه د نورو راويانو نه مروى دى.د امام زهرى رحمه الله نه علاوه چه نورڅومره طرق دى.په هغې كښې په يو كښې هم د حضرت فاطمې د خفګان اوحضرت ابوبكر رضي الله عنه سره د قطع كلامئ ذكر نشته.دامام زهرى نه هم په نهو طرقو كښې هم د حضرت فاطمې رضي الله عنها د خفګان ذكر نشته. البته د زهرى په باقى شپاړس طرقو كښې د حضرت فاطمې د خفګان ذكر شته. نودغه شان په شلو طرقو كښې د خفګان ذكر نشته.او چه په كوموكښې دى.هغه صرف د امام زهرى مرويات دى.ددې وجې ظاهره هم دا ده.چه دا د امام زهرى ادراج دې. ګنى ددې نه علاوه چه په كومو يوولسو طرقوكښې داقصه منقول ده.په هغې كښې په يوه كښې هم ددې ذكر نشته.[3]

اوس كه دا ادراج امام زهرى رحمه الله د خپل طرف نه كړې وى.نوبيا خو ددې څه اعتبار نشته.او كه هغوى د چا نه اوريدلى وى.نو په دې صورت كښې به دا ارسال وى.او مراسيل زهرى د محدثينو په نيز څه زيات قوى او معتبر نه دى.بيا خاص كر چه د هغې خلاف روايات موجود وى.[4]

ابن سعد په،طبقات،كښې اومحب طبرى په ،،الرياض النضرة،، كښې روايت نقل كړې دې. په هغې كښې تصريح ده،چه ((أن فاطمة لم تمت إلا راضية عن أبى بكر)) دغه شان بيهقى په خپل ،،سنن،، كښې هم ددې مفهوم روايت د ،،شعبى،، نه نقل كړې دې.[5] نوچه دا روايات موجود وى.د زهرى د ادراج څه اعتبار نه پاتې كيږى.

---

[1] الفقيه والمتفقه للخطيب البغدادى (١٤٨/٢)_

[2] النكت على ابن الصلاح (٨٢٩/١)_

[3] مولانا محمد نافع صاحب زيدمجدهم كتاب ،،رحماء بينهم،، (١٢٦/١و١٢٧)_

[4] تهذيب التهذيب (٤٥١/٩)_

[5] اوګورئ طبقات ابن سعد (٢٧/٨) والرياض النضرة (١٥٤/١) او د بيهقى د روايت الفاظ دا دى.((لما مرضت فاطمة أتاه أبوبكر الصديق فاستأذن عليها، فقال علي يا فاطمة هذا أبوبكر يستأذن عليك. فقالت أتحب أن آذن له ؟ قال نعم، فأذنت له، فدخل عليها يترضاها وقال والله ما تركت الدار والمال والأهل والعشيرة إلا إبتغاء مرضاة الله ومرضاة رسوله ومرضاتكم أهل البيت ثم ترضاها حتى رضيت)) سنن بيهقى (٣٠١/٦) كتاب قسم الفئ والغنيمة)_

④ د «وجدت فاطمة على أبي بكر» يوه توجيه دا هم شوې ده، چه د حضرت فاطمې رضي الله عنها خيال وو. چه د انبياؤ په مال کښې د وراثت نه جاري کيدو مطلب په مال منقول (درهم، دينار وغيره) کښې نه جاري کيدل دي. په يو روايت کښې دا الفاظ راغلي دي. «لايقتسم ورثتي ديناراً ولا درهماً» [1] خو دلته خبره د مال غير منقول (زمکې) وه. ددې وجې کيدې شي. چه د حضرت فاطمې رضي الله عنها دا خيال وو. چه په دې کښې ميراث جاري کيدې شي. او حضرت ابوبکر رضي الله عنه دا عام حکم گنړلو. ددې وجې هغوی ددې تقسيم صحيح نه گنړلو. [2]

④ خوچه ټول روايات وړاندې کړې شي. او کومه خبره زړه راښکونکې او فيصله کن معلوميږي. هغه دا ده. چه حضرت فاطمې رضي الله عنها اول د ميراث مطالبه اوکړه. اوچه کله حضرت ابوبکر رضي الله عنه هغې ته د نبي صلی الله علیه وسلم ارشاد واورولو. نو هغې د ميراث د مطالبې نه لاس واخستلو. خوهغوی د مالونو د توليت مطالبه کوله. چه د بنو نضيروغيره مالونو نه به رسول الله صلی الله علیه وسلم سالانه د اهل بيتو دپاره کوم نفقات خرچ کول. اود اهل بيتود ضرورياتو چه څنگه اهل بيتو ته علم کيدو شو. نورو ته هغومره نشو کيدې. ددې وجې روسته د حضرت فاطمې رضي الله عنها د ابوبکر رضي الله عنه نه مطالبه د دې وه. چه تاسو ددې مالونو توليت، ددې انتظام او خسمانه حضرت علي او عباس رضي الله عنهما ته حواله کړئ [3] خو حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه هغوی ته د توليت حواله کولو نه انکار اوکړو. چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات حادثه اوس تازه وه. دهغوی خيال وو. که اهل بيت ددې مالونو منتظمين جوړ شي. نو د لرې خاني خلق به په دې غلط فهمۍ کښې مبتلا شي. چه د نبي صلی الله علیه وسلم ميراث تقسيم شو. خلق ددې مغالطې نه لرې بچ کولو دپاره هغوی اهل بيتو ته د توليت سپارلو نه انکار اوکړو. او دا ئې اوفرمائيل. چه لکه څنگه به رسول الله صلی الله علیه وسلم د اهل بيتو ضروريات ددې نه پوره کول. زه به هم په هغه نهج او طريقې مطابق د اهل بيتو اخراجات پوره کوم.

دتوليت سپارلو نه د انکار په وجه حضرت فاطمه رضي الله عنها د حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه خفه شوه. د حضرت فاطمې رضي الله عنها دا خيال وو. چه دخليفه رسول صلی الله علیه وسلم دپاره ددې خبرې گنجائش اوجواز شته. چه هغه زمونږ جائز خواهش پوره کړي. خو حضرت ابوبکر رضي الله عنه دا دذکرشوی مصلحت نه خلاف گنړلو. دواړه په خپلو رائې کښې مجتهد وو. اود دواړو دپاره خپل خپل عذر وو. او دواړه په حق وو.

خود حضرت فاطمې رضي الله عنها خفگان داسې نه وو، لکه څنگه چه دلته د امام زهری رحمه الله په ادارج کښې دې. چه تروفاته پورې ئې خبرې اونکړې. بلکه کله چه په څه مسئله کښې د اجتهادی رائې د اختلاف په وجه بعضې وخت د انسان په زړه کښې لږ شان خفگان پيدا کيږي. بس ددې خفگان حيثيت هم د دې نه زيات نه وو.

---

[1] اوگورئ التمهيد لابن عبدالبر (۱۸۳/۸)_
[2] المرتضى للشيخ أبي الحسن على الندوی (ص: ۱۳۷)_
[3] البداية والنهاية (۲۸۹/۵)_

خود دوارو جهانونو د خوږې لور دې معمولي غوندې خفگان هم حضرت ابوبکر رضي الله عنه بې قراره کړې وو. اوحضرت ابوبکر رضي الله عنه چه ترڅو پورې هغه راضي کړې نه وه. ترهغه وخته پورې په اطمینان سره نه وو ناست. د ابن شاهين په روايت کښې حافظ ابن کثير په، البداية والنهاية کښې او شاه ولي الله رحمه الله په ، ، ازالة الخفاء کښې نقل کړی دی. چه ((إن أبا بكر قال لفاطمة يا بنت رسول الله ﷺ ما خير عيش حياء أعيشها وأنت علي ساخطة ، فإن كان عندك في ذلك عهد من رسول الله ﷺ فأنت الصادقة المصدقة المامونة على ما قلت، قال فما قام أبوبكر حتى رضيت ورضي))[1]

دغه شان بيهقي په خپل ، ، سنن ، ، کښې ابن سعد په طبقات کښې او محب طبري په ، ، الرياض النضرة ، ، کښې هغه روايات نقل کړی دی. په کومو کښې چه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه حضرت فاطمې رضي الله عنها له د راضي کولو تصريح شوې ده.[2] اوهم دا خبره د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه د لوړ مقام، اوخاندان نبوت سره د هغوی غيرمعمولي محبت او وفادارئ سره موافق او لائق دې. اود کوم اعلان چه هغوی د حضرت علي رضي الله عنه په وړاندې کړې وو. او فرمائيلې ئې وو. ((والذي نفسي بيده لقرابة رسول الله ﷺ أحب إلي أن أصل من قرابتي، وأما الذي شجر بيني وبينكم من هذه الأموال فإني لم آل فيها عن الخير، ولم أترك أمراً رأيت رسول الله ﷺ يصنعه فيها إلا صنعته))[3]

بيا د حضرت فاطمې رضي الله عنها د حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه د راضي کيدو ذکر صرف دا نه چه د اهل سنت په کتابونو کښې دې. بلکه د رافضيانو او شيعه گانو د معتبرو عالمانو په کتابونوکښې داسې روايات نقل دی. په کوموکښې چه د حضرت فاطمې رضي الله عنها د راضي کيدو تصريح ده. ابن ابي الحديد او ابن ميثم بحراني دواړه شيعه عالمانو د نهج البلاغة په شرح کښې ددې رواياتو تخريج کړې دې.[4] بلکه ابن ابي الحديد د نهج البلاغة په شرح کښې د شيعه گانو د مشهور امام زيد بن علي دا قول هم نقل کړې دې. چه ((لو رجع الأمر إلي لقضيت فيها بقضاء أبي بكر))[5]

دلته دې دا خبره هم ياده وی. چه حضرت علي رضي الله عنه هم په خپل دور خلافت کښې دا اراضي په اهل بيتو باندې نه ووتقسيم کړی. ددې نه ښکاره معلوميږی. چه حضرت علي رضي الله عنه هم د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه پشان ((لا نورث ما تركنا صدقة)) عام گڼړل. او هغوی د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په بيان کړی حديث باندې اعتماد کولو.

---

[1] البداية والنهاية (۲۸۹\۵)_
[2] سنن بيهقي (۳۰۱\۶) وطبقات ابن سعد (۲۷\۸) والرياض النضرة (۱۵۶\۱)_
[3] لکه څنګه چه د روايت باب په آخر کښې دا الفاظ راځي.
[4] شرح نهج البلاغة لإبن ابي الحديد (۷۹\۴) وشرح نهج البلاغة لإبن ميثم البحراني (۱۰۷\۵)_
[5] شرح نهج البلاغة لإبن أبي الحديد (۸۲\۴)_

رافضي وائي.چه حضرت علي رضي الله عنه په خپل دور خلافت کښې دغه مالونه ځکه تقسيم نکړل.چه دغه مالونه حضرت ابوبکرصديق او حضرت عمر رضي الله عنهما په خپل دور خلافت کښې غصب کړي وو.اوکوم څيز چه به غصب شو.نوامام معصوم به هغه واپس نه اخستو.
سوال دا دې.چه بيا امام معصوم لره پکار وو.چه د هغې توليت ئې هم نه وو قبول کړې.ځکه چه لکه څنګه دمالك جوړيدو نه پس انسان تصرف کوی.دغه شان د متولي جوړيدو نه پس هم کوی.حال دا چه حضرت علي رضي الله عنه د دغه مالونو توليت قبول کړې وو.دغه شان بيا پکاردا ده، چه حضرت علي رضي الله عنه خلافت هم نه وو قبول کړې.ځکه چه د روافضو په نيز حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما خلافت غصب کړې وو.نو د روافضو د قول مطابق که امام معصوم غصب شوې څيز واپس نه اخلی.نو خلافت بيا هغه ولې قبول کړو؟

خرد کا نام جنوں رکھ دیا جنوں کا نام خرد جو چاہے آپ کا حسنِ کرشمہ ساز کرے

**قوله**: فلما توفيت ،دفنها زوجها علي رضي الله عنه ليلاً: حضرت فاطمې رضي الله عنها وصيت کړې وو.چه ما د شپې په وخت کښې دفن کړئ.ځکه چه د ورځې په نسبت په شپه کښې تستر (پرده) زيات وی.او د شپې په وخت کښې په دفن کولو کښې د حضرت فاطمې رضي الله عنها هم دا مقصد وو.لکه څنګه چه حافظ په فتح الباری کښې تصريح کړې ده.بلکه په بعضې رواياتو کښې دی.چه هغوی ددې وصيت هم کړې وو.چه زما د جنازې دپاره دې جنازه پټونکې څيز(زمونږ په علاقوکښې ورته ډولۍ وائی) اوبيا دې دهغې دپاره څادر واچولې شی.دې دپاره چه څوك زما د قدوقامت او بدن اندازه اونکړې شی.[1] ددې نه د حضرت فاطمې رضي الله عنها د حيا د اوچت مقام اندازه کولې شی.

**قوله**: ولم يؤذن بها أبا بكر: حضرت علي رضي الله عنه حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته د حضرت فاطمې رضي الله عنها د وفات خبر ورنکړو.ددې وجې نه،چه حضرت علي رضي الله عنه خفه وو.بلکه ددې وجې د حضرت علي رضي الله عنه يقين وو.چه د وفات د حادثې خبر به هغوی ته شوې وی.او ددې دليل دا دې.چه د حضرت فاطمې د بيمارئ نه واخله تر وفاته پورې چه لکه څنګه حضرت علي رضي الله عنه ددې تيمارداری کوله.دغه شان د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه بی بی اسماء بنت عميس رضي الله عنها هم برابر دهغې تيمارداری او خدمت کولو.تردې چه د وفات نه پس د حضرت فاطمې رضي الله عنها د وصيت مطابق دهغې نعش ته حضرت علي رضي الله عنه اوحضرت اسماء بنت عميس رضي الله عنها غسل ورکړو.حاکم په مستدرك کښې [2]ابن سعد په طبقات کښې [3] عبدالرزاق په مصنف کښې [4] او بيهقی په خپل سنن کښې [5] هغه روايات نقل کړی دی.په کومو کښې چه د حضرت

---

[1] فتح الباری (۷\۴۹۴)_
[2] مستدرک حاکم (۳\۱۶۲)_
[3] طبقات ابن سعد (۸\۲۸)_
[4] مصنف عبدالرزاق (۳\۴۱۰)_
[5] سنن بيهقی (۳\۳۹۶)_

اسماء بنت عمیس د حضرت فاطمې تیمارداری اودهغې د وفات نه پس هغې ته دغسل ورکولو ذکر دې.بلکه پخپله شیعه عالم ابوجعفر طوسی په ،،امالی،، کښې لیکی .((وکان علی رضی الله عنه یمرضها بنفسه وتعینه علی ذلك أسماء بنت عمیس علی إستمرار بذلك))[1] باقر مجلسی هم په ،،جلاء العیون،، کښې ددې تصریح کړې ده.[2]

اوس ښکاره ده، چه د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه بی بی د تیمارداریٔ نه واخله تر وفاته پورې په ټولو مراحلو کښې شریکه وه.نو حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه ته د وفات خبر کیدل یو بدیهی او یقینی خبره وه.ددې وجې حضرت علی رضی الله عنه په دې خیال چه هغوی ته به خبر شوی وی.د خپل طرف زیاتی مستقله اطلاع اونکړه.

دغه شان په روایاتو کښې دا هم دی.چه حضرت علی رضی الله عنه به د حضرت فاطمې رضی الله عنها د بیماریٔ په دوران کښې پنځه وخته مونځونو دپاره جمات ته راتلو.او حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضی الله عنهما به مسلسل دهغه نه دفاطمې رضی الله عنها دبیمارپرسیٔ اودهغې دحالت تپوس کولو.[3]

**قوله:** وصلی علیها علی رضی الله عنه: دحضرت فاطمة الزهراء رضی الله عنها جنازه چا کړې وه.په دې کښې روایات مختلف دی.دلته خو دی.چه حضرت علی رضی الله عنه ددې جنازه کړې وه.اوپه بعضې روایاتو کښې دی.چه حضرت عباس رضی الله عنه د دې جنازه کړې وه.[4] او په ډیرو روایاتو کښې دی،چه خلیفه رسول صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د دې جنازه کړې وه.

ابن سعد په طبقات کښې روایت نقل کړې دې.چه دحضرت فاطمې رضی الله عنها وفات د مابنام او ماخسوتن ترمینځه اوشو.چه د وفات خبرئې واوریدو،نو حضرت ابوبکر،حضرت عمر حضرت زبیر،حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنهم تشریف راوړل.کله چه نعش د جنازې دپاره راوړې شو.نو حضرت علی رضی الله عنه حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته اووئیل.چه جنازه ئې اوکړئ.هغوی ورته اووئیل.ستاسو په موجودګیٔ کښې؟ حضرت علی رضی الله عنه جواب ورکړو.آو وړاندې شئ.په الله قسم ستاسو نه سوا بل څوك به مونځ نه ورکوی.نو حضرت ابوبکر رضی الله عنه مونځ اوکړو.او هم په شپه کښې تدفین اوشو.[5]

د طبقات نه علاوه امام بیهقی په ،،جنائز،، کښې د خطیب بغدادی په حواله سره،علی متقی په.کنزالعمال،،کښې اومحب طبری په ،،الریاض النضرة،، کښې داسې روایات نقل کړی دی.په کوموکښې چه د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په باره کښې دی.چه دحضرت فاطمې رضی الله عنها د جنازې مونځ هغوی ورکړې وو.[6]

---

[1] الامالی (۱\۱۰۷)_
[2] جلاء العیون :۱۷۲)_
[3] تکملة فتح الملهم (۳\۱۰۲) په حواله د کتاب سلیم بن قیس العامری (۲۲۴و۲۲۵)_
[4] د طبقات ابن سعد روایت دې.((صلی العباس بن عبدالمطلب علی فاطمة بنت رسول ا لله صلی الله علیه وسلم (طبقات ابن سعد (۸\۲۸)_
[5] طبقات ابن سعد (۸\۲۹)_
[6] سنن بیهقی (۴\۲۹) و کنز العمال (۶\۳۱۸)رقم ۵۲۹۹ والریاض النضرة(۱\۱۵۶)_

ابونعيم په حلية الاولياء كښې د ميمون بن مهران په تذكره كښې روايت نقل كړې دې.په هغې كښې دحضرت صديق اكبر رضي الله عنه په باره كښې دى.((وكبرابوبكرعلى فاطمة أربعاً))[1]
اود قياس تقاضا هم دا ده.چه دجنازې مونځ حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه وركړې وى.څكه چه بنو هاشمو به ددې خبرې اهتمام كولو.چه دهغوى د مړوجنازې خليفه او د ښار والي اوكړى. د ابوسفيان بن الحارث رضي الله عنه جنازه حضرت عمر رضي الله عنه كړې وه.([2])دحضرت عباس رضي الله عنه جنازه حضرت عثمان رضي الله عنه كړې وه.([3]) دحضرت حسن جنازه حضرت سعيدبن العاص رضي الله عنه كړې وه([4]) دې په هغه وخت كښې د مدينې امير وو.اودمحمد بن حنفيه جنازه د مدينې امير ابان بن عثمان كړې وه([5]) ددې وجې په دې پس منظر كښې هغه روايات زيات راجح معلوميږى. په كومو كښې چه د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه د جنازې مونځ وركولو ذكر دې. والله اعلم.

**قوله:** ولم يكن يبايع تلك الأشهر: حضرت فاطمه رضي الله عنها د نبى كريم ﷺ د وفات نه پس شپږ مياشتې ژوندئ وه.راوى وائى.چه په دغه شپږو مياشتو كښې حضرت على رضي الله عنه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه سره بيعت نه وو كړې.
امام بيهقى په خپل كتاب ،،الاعتقاد على مذهب السلف،، كښې تصريح كړې ده.چه دا جمله د زهرى ده.د اصل روايت سره د دې څه تعلق نشته.روستو راويانو دا جمله د اصل روايت سره درج كړې ده.([6])
ددې وجه دا ده.چه ابوداود طيالسى، ابن سعد ،ابن جرير،ابن ابى شيبه، بيهقى اوابن حبان رحمهم الله روايات نقل كړى دى.په هغې كښې تصريح ده.چه د سقيفه بن ساعده د بيعت په بله ورځ په مسجد نبوى كښې عام بيعت اوشو.په هغه وخت كښې حضرت على رضي الله عنه بيعت كړې وو.حافظ ابن كثير په ،،البداية والنهاية،، اوشاه ولى الله په،ازالة الخفاء،، كښې هم دا واقعه ذكر كړې ده.چه كله عام بيعت كيدلو.نو حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه اوكتل.چه حضرت على او حضرت زبير رضي الله عنهما دواړه حضرات موجود نه وو.دوى دا دواړه راطلب كړل.دې دواړو حضراتو تشريف راوړلو.هغوى اوئيل.چه ددې نه سوا زمونږ بله څه ګيله نشته.چه پرون په سقيفه بنى ساعده كښې خبره اوشوه.او نن په مسجد نبوى كښې بيعت كيږى.خو په دې باره كښې مونږ سره څه مشوره نه ده شوې.او مونږ پوهيږو.چه د خلافت د ټولو نه زيات حق د

---

[1] ،حلية الأولياء (٤\٩٦)_
[2] ،اسدالغابة (٥\٢١٤و ٢١٥)_
[3] ،الإستيعاب (٣\١٠٠و١٠١)_
[4] ،الإستيعاب (١١\٣٧٣)_
[5] ،طبقات ابن سعد (٥\٩١)_
[6] ،والذى روى أن علياً لم يبايع أبا بكر ستة أشهر ليس من قول عائشة رضى الله عنها إنما هو من قول الزهرى فأدرجه بعض الرواة فى الحديث عن عائشة رضى الله عنها فى قصة (وانظر الإعتقاد على مذهب السلف للبيهقى (١٨٠)_

حضرت ابوبكر رضي الله عنه دي.دحضرت على رضي الله عنه يو قول ملا علي قاري رحمه الله په شرح شمائل كښې هم نقل كړې دي.((أن رسول الله ﷺ رضي أبا بكر لديننا أفلا نرضاه لدنيانا)) دغه شان ابن حبان د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه روايت نقل كړې دي.((أن علياً بايع أبابكر في أول الأمر))
داټول روايات او اقوال په دې باندې صراحت سره دلالت كوى.چه حضرت علي رضي الله عنه د حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره په بيعت كولو كښې تاخير نه دې كړې.بلكه په بله ورځ د عامو خلقو سره دوى بيعت كړې وو.
پاتې شوه دا خبره چه كله ئې يو ځل بيعت اوكړو.نو بيا د حضرت فاطمې رضي الله عنها د وفات نه پس د دوباره بيعت كولو څه مقصد وو؟نو ددې وجه دا وه.چه دحضرت على رضي الله عنه د بيمارئ په دوران كښې حضرت على رضي الله عنه د هغې په تيمارداريئ كښې مشغول وو.او د حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره ئې په ربط او ملاقات كښې كمې راغلې وو.ددې وجې د اولنى بيعت د توثيق او تجديد دپاره دوى دوباره بيعت اوكړو.د اكثرو اهل علمو رجحان دې طرف ته دې.اوهم دا حافظ ابن كثير په ،،البداية والنهاية،، كښې حق او حقيقت ګرځولې دې.(١)
البته دومره خبره باقي پاتې كيږى.چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه د حضرت على رضي الله عنه سره د بيعت په سلسله كښې مشوره ولې اونكړه.نو ددې وجې دا ده،چه د رسول الله ﷺ د وفات نه پس صورتحال ډير سخت اومشكل وو.حضرات انصار په سقيفه بنى ساعده كښې د وړاندې نه جمع شوى وو.او نزدې وه چه په اوس او خزرج كښې د يوې قبيلې د سردار په لاس باندې بيعت شوې وو.اودغه شان د مسلمانانو اتفاق او اتحاد ختم شوې وو.ځكه چه په اوس او خزرج كښې چه د كومې په لاس كښې هم كه واړې راغلې وې.نو بله به په هغې باندې راضى نه وه.
حضرت عمر رضي الله عنه د خپل خداداد صلاحيت ،بصيرت،بالغ نظرئ او ژور نظر سره ددې نازك صورتحال اندازه واخستله.اوپه دې باندې پوهه شو.چه مسلمانان په كوم نازك صورتحال كښې مبتلا دى.په دې كښې د يوې ورځې د تاخير ګنجائش هم نشته.حضرت عمر رضي الله عنه دا هم پيژندله.چه د جزيره عرب خلق به صرف قريش خپل سرداران منى.ځكه چه د قريشو د سردارئ صلاحيتونه منلى شوى وو.ددې وجې هغوى په ډيره بيړه كښې د خپل خداداد صلاحيت نه كار واخستلو.او په ثقيفه بنى ساعده كښې ئې انصار د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په بيعت باندې راجمع كړل.او په بله ورځ په مسجدنبوى كښې عام بيعت اوشو.چونكه صورتحال ډير نازك او پيچيده شكل اختيار كړې وو.ددې وجې د حضرت على رضي الله عنه او نورو څو صحابو رضي الله عنهم سره دمشورې ګولو موقع ملاؤ نشوه.والله اعلم ،وړاندې په روايت كښې د حضرت على رضي الله عنه د دوباره بيعت كولو ذكر دې.

**فائده:** دنبى ﷺ ارشاد چه ((لا نورث ما تركنا صدقة)) كښې څه حكمت دې؟ ددې يوه وجه خو ښكاره ده.چه انبياء عليهم السلام به په ټول ژوند كښې دا اعلان كولو.((لا أسئلكم عليه أجراً)) مونږ چه ستاسو كوم خدمت كوو.تاسو صراط مستقيم طرف ته رابللو.اودې ته د راوستلو

---

١) البداية والنهاية (٢٤٩/٥) دغه شان (٣٠٢/٦)_

دپاره کوم کوشش او سعی کوو.دا د څه عوض او دنیوی منفعت دپاره نه ده.د حضرات انبیاء دا طریقه پاتې شوې ده.او هم دهغې مطابق نبی ﷺ د خپل وفات نه پس د میراث تقسیمولونه منع کړې ده.اووې فرمائيل.چه د انبیاء علیهم السلام میراث نه جاری کیږی.[1] او ورسره ورسره دا خبره هم ده.چه په کوم منصب باندې هغه فائز کیږی.هغه د خلقو د محبت مرکز وی.ددې وجې خلق تحفې،عطیات او هدیې دهغوی په خدمت کښې زیاتې پیش کوی.که دغه هدایا او تحفې هغه جمع کوی.اودهغوی د انتقال نه پس هغه د هغوی په وارثانو کښې تقسیمولې شی.نودشمنانو ددې وینا موقع په لاس ورتلې شوه.چه د نبوت کاروبار ددې دپاره جاری وو.چه د نبوت په زمانه کښې د راجمع شوی مالونو نه روستنی نسلونه اسوده مالداران شی.اود هغوی د پرورش یو معقول بندوبست او انتظام اوشی.[2] نو څنګه چه به د نبی ﷺ په ژوند کښې څه راغلل.هغه به نې تقسیم کړل.دغه شان کوم مالونه چه الله تعالی دوی ته ورکړی وو.د هغې په باره کښې نبی ﷺ وصیت کړې وو.چه هغه دې زما د وفات نه د مسلمانانو په مصالحو کښې خرچ کړې شی.اود میراث په طور دې هغه نه تقسیمیږی.
دویمه خبره دا ده.چه د انبیاء علیهم السلام حیثیت د ټولو امت دپاره د ابوت درجه لری.نو که میراث تقسیمیږی.پکار ده چه په ټول امت باندې وی.اوښکاره ده.چه دا ممکن نه ده.نو ددې وجې هغه مالونه دعامو مسلمانانو د ضروریاتو دپاره وقف پاتې کیږی.[3]
دریمه خبره دا ده.چه د انبیاء علیهم السلام شان د الله تعالی سره د تعلق په اعتبار سره داسې وی.چه هغه په څه څیز باندې خپل ملکیت نه تصور کوی.څکه چه په هریو څیز باندې حقیقی ملکیت الله تعالی ته حاصل وی.زمونږ نه دالله تعالی د ملکیت هغه تصور ډیر کرته پاتې کیږی.خو د انبیاء علیهم السلام د نظر نه هغه تصور هیڅ کله نه لرې کیږی.«الأنبياء لا يشهدون لأنفسهم ملكاً مع الله» نو چه دکومو څیزونو هغوی مالکان جوړ کړې شی.نو هغوی دا ګڼړی.چه زمونږ قبضه په دې باندې د متولی په حیثیت باندې ده.د مالك په حیثیت نه ده.د دې وجې هغوی منع کړې ده.چه زمونږ د وفات نه پس دې زمونږ هیڅ مال په میراث کښې نشی تقسیمولې.

په قرآن شریف کښې «وورث سليمان داود» او «رب هب لي من لدنك وليا يرثني» راغلی دی.په دې سره د انبیاء علیهم السلام دمیراث ثبوت کیږی.خود اکثرو عالمانو خیال دې.چه په دې آیاتونو کښې د وراثت نه وراثت د علم او حکمت مراد دې.د مال وراثت مراد نه دې.[4]

[۳۹۹۹] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا حَرَمِيٌّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عُمَارَةُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ قُلْنَا الْآنَ نَشْبَعُ مِنَ التَّمْرِ

---

[1] فتح البارى (۸\۱۱۲)_
[2] فتح البارى (۸\۱۱۲)_
[3] فتح البارى (۹\۱۱۲)_
[4] التمهيد لابن عبدالبر (۸\۱۷٤و ۱۷۵) وفتح البارى (۸\۱۱۲)_

[٤٠٠٠] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ حَدَّثَنَا قُرَّةُ بْنُ حَبِيبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ مَا شَبِعْنَا حَتَّى فَتَحْنَا خَيْبَرَ

## بَاب= اسْتِعْمَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَهْلِ خَيْبَرَ

[٤٠٠١] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الْمَجِيدِ بْنِ سُهَيْلٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ وَأَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعْمَلَ رَجُلًا عَلَى خَيْبَرَ فَجَاءَهُ بِتَمْرٍ جَنِيبٍ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هَكَذَا فَقَالَ لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا لَنَأْخُذُ الصَّاعَ مِنْ هَذَا بِالصَّاعَيْنِ بِالثَّلَاثَةِ فَقَالَ لَا تَفْعَلْ بِعْ الْجَمْعَ بِالدَّرَاهِمِ ثُمَّ ابْتَعْ بِالدَّرَاهِمِ جَنِيبًا

رسول اللهﷺ په خیبر باندې یو کس عامل جوړ کړو.دا د قبیله بنی عدی حضرت سواد بن غزیه وو.(١) دوی د نبیﷺ په خدمت کښې یو خاص قسم قجورې چه،جنیب،، ورته وائی. او ډیرې ښې وی.هغه راوړلې.نبیﷺ اوفرمائیل. آیا دخیبر ټولې قجورې هم داسې دی؟ هغوی عرض اوکړو.نه مونږ د داسې قسم ښو قجورو یو صاع د نورو قجورو په دوو صاعو په بدله کښې اخلو.اودوه صاع د درې صاعو په بدله کښې اخلو.مطلب دا چه دا قجورې چونکه ښې دی.ددې وجې ددې یو صاع د نورو معمولی قجورود دوو صاعو سره برابر وی. دغه شان کله چه مونږ دوه صاع اخلو.نونورې قجورې درې صاع ورکول وی. نبیﷺ اوفرمائیل.داسې مکوئ. (ځکه چه دا خو سود دې.په متحد الجنس کښې تفاضل جائز نه دې) بلکه ناقصې قجورې اول د دوو درهمو په عوض خرڅې کړئ.او بیا په هغې دراهم باندې عمده قجورې واخلئ.

**قوله**: وَقَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ عَبْدِ الْمَجِيدِ عَنْ سَعِيدٍ أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ وَأَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَاهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ أَخَا بَنِي عَدِيٍّ مِنْ الْأَنْصَارِ إِلَى خَيْبَرَ فَأَمَّرَهُ عَلَيْهَا: دا تعليق ابوعوانه او دارقطنی موصولاً نقل کړې دې.

**قوله**: وَعَنْ عَبْدِ الْمَجِيدِ عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي سَعِيدٍ مِثْلَهُ: دا هم د عبدالعزیز د سند سره دې.هلته د عبدالمجید سعید بن المسیب نه نقل کوی.اودلته د ابوصالح سمان نه نقل کوی.

---

(١) فتح البارى (٣٩٦/٧) وعمدة القارى (٢٦٠/١٧)_

## بَاب= مُعَامَلَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلَ خَيْبَرَ

[٤٠٠٢] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَعْطَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ الْيَهُودَ أَنْ يَعْمَلُوهَا وَيَزْرَعُوهَا وَلَهُمْ شَطْرُ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا [ر: ٢٢٨٥]

نبی کریم ﷺ د فتح خيبر په موقع دا فيصله کړې وه.چه يهود به خيبر خالى کوى.کله چه خيبر فتح شو.او نبى ﷺ يهودو ته د خيبر نه د وتلو دپاره اووئيل.نو هغوى درخواست اوکړو،چه ته مونږ ته د خيبر په زمکو او باغونو کښې د کار کولواجازت راکړه.او چه کوم پيداوار کيږى. هغه به مونږ او تاسو تقسيموو.دې معاملې ته ،مخابره،وائى.څکه چه د خيبر نه د دې ابتداء شوې وه.د کټ کولو په وخت کښې به نبى ﷺ حضرت عبدالله بن رواحه ؓ ليږلو.هغه به پيداوار په ۲وو حصوکښې تقسيمولو.او يهودو ته به ئې اختيار ورکولو،چه کومه حصه هغوى خوښوى.هغه دې اخلى.يهودو چه به دا انصاف اوکتل.نو وئيل به ئې.زمکه او آسمان هم ددې عدل په وجه قائم دى.(١)

## بَاب= الشَّاةِ الَّتِي سُمَّتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخَيْبَرَ رَوَاهُ عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[٤٠٠٣] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِي سَعِيدٌ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاةٌ فِيهَا سُمٌّ [ر: ٢٩٩٨]

د خيبر د فتحې نه پس رسول الله ﷺ څو ورځې هم په خيبر کښې قيام اوکړو،په دې دوران کښې د سلام بن مشکم ښځې زينب بنت حارث يو ورته شوې چيلۍ نبى ﷺ ته د هديه په طور راوليږله.اوپه هغې کښې ئې زهر ملاؤ کړې وو.نبى ﷺ چه کله اوخکله.نو وې فرمائيل. اودريږئ.په دې کښې زهراچولې شوى دى. البته بشربن براء څه خوړلې وه.زينب ئې راغوښتله.او ددې سازش تپوس ئې ترې اوکړو.نو هغې اقرار اوکړو.او وې وئيل.چه دا زهر مې ددې وجې ګډ کړى وو.چه زما خيال وو،که ته په حق پيغمبر ئې.نو الله تعالى به تا خبر کړى.اوکه ته په حق پيغمبر نه ئې.نو خلقو ته به ستا نه نجات ملاؤ شى.

نبى ﷺ د خپل ذات دپاره د چا نه هم انتقام نه اخستلو.ددې وجې تبى ﷺ زينب ته څه اونه وئيل.خو روسته چه کله د هغې د زهرو د اثر نه حضرت بشربن براء ؓ وفات شو.نو زينب د بشر بن براء وارثانو ته حواله کړې شوه.او هغوى دا په قصاص کښې قتل کړه.(٢)

په حديث باب کښې حضرت ابوهريره ؓ هم دا واقعه بيان کړې ده.دا روايت په تفصيل سره هم په دې سند په کتاب الجزيه کښې تير شوې دې.(٣)

---

١) سنن ابى داود (٢٦٣\٣) رقم الحديث ٣٤٢٠ باب فى المساقات كتاب البيوع)_

٢) فتح البارى (٤٩٧\٧) وزاد المعاد (٣٣٥\٣و ٣٣٦)_

٣) كتاب الجزية والموادعة باب إذا غدر المشركون بالمسلمين هل يعفى عنهم رقم ٣١٦٩)_

# باب = غزوة زيد بن حارثة

[١٠٠٣] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ أَمَّرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُسَامَةَ عَلَى قَوْمٍ فَطَعَنُوا فِي إِمَارَتِهِ فَقَالَ إِنْ تَطْعَنُوا فِي إِمَارَتِهِ فَقَدْ طَعَنْتُمْ فِي إِمَارَةِ أَبِيهِ مِنْ قَبْلِهِ وَايْمُ اللَّهِ لَقَدْ كَانَ خَلِيقًا لِلْإِمَارَةِ وَإِنْ كَانَ مِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ وَإِنَّ هَذَا لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ بَعْدَهُ [ر: ٣٥٢٣]

حضرت زيد بن حارثه ﷺ نبى ﷺ په څو مواقعو كښې امير مقرر كړې وو.(١) د دې وجې دا تعيين ګران دې. چه دلته امام بخارى ﷫ د كومې غزا ذكر كوى. دا په كوم كال كښې واقع شوې وه.اودا كومه غزا ده؟ په ظاهره دا معلوميږى.چه دا د رمضان ٦ھ كښې پېښه شوې واقعه ده.په كومه كښې چه د بنو فزاره سره مقابله شوې وه.په دې غزا كښې ،،ام قرفه،، قتل كړې شوې وه. ،،ام قرفه،، د فزاره قبيلې سرداره وه.حضرت زيد بن حارثه ﷺ د تجارت په غرض شام ته تلې وو.د صحابو ﷺ مال هم ورسره وو.په واپسئ كښې بنى فزاره حمله اوكړه.ټول مال ئې ترې واخستل.اودې ئې زخمى كړو.حضرت زيد ﷺ مدينې ته راغلو.نو رسول الله ﷺ دهغه په امارت كښې يو لښكر روان كړو.هغې په بنو فزاره باندې حمله اوكړه.څه كسان ئې قتل كړل.په هغې كښې د هغوى سرداره ،،ام قرفه،، هم وه.(٢) د ،،ام قرفه،، د قتل ذكرڅوځايونو كښې راغلې دې.حافظ ابن حجر﷫ په ،،التلخيص الحبير، كښې نقل كړې دى.چه رسول الله ﷺ ،،ام قرفه،، قتل كړه.اوپه بعضې رواياتو كښې راځى. چه حضرت ابوبكرصديق ﷺ په ،،يوم الردة،، كښې ،،ام قرفه،، د قتل حكم وركړې وو. او په ذكرشوې غزوه بنى فزاره كښې هم د ،،ام قرفه،، دقتل ذكر دې.كيدې شى چه د ،،ام قرفه، نومې څو ښځې وى.كومې چه په مختلفو وختونو كښې مسلمانانو قتل كړې وى.

---

(١) وقد تتبعت ما ذكره أهل المغازى من سرايا زيد بن حارثة فبلغت سبعا كما قاله سلمة , وإن كان بعضهم ذكر ما لم يذكره بعض , فأولها : فى جمادى الأخيرة سنة خمس قبل نجد فى مائة راكب , والثانية فى ربيع الآخر سنة ست إلى بنى سليم , والثالثة : فى جمادى الأولى منها فى مائة وسبعين فتلقى عيرا لقريش وأسروا أبا العاص بن الربيع , والرابعة : فى جمادى الآخرة منها إلى بنى ثعلبة , والخامسة : إلى حسمى بضم المهملة وسكون المهملة مقصور فى خمسمائة إلى أناس من بنى جذام بطريق الشام كانوا قطعوا الطريق على دحية وهو راجع من عند هرقل , والسادسة : إلى وادى القرى , والسابعة : إلى ناس من بنى فزارة , وكان خرج قبلها فى تجارة فخرج عليه ناس من بنى فزارة فأخذوا ما معه وضربوه فجهزه النبى صلى الله عليه وسلم إليهم فأوقع بهم وقتل أم قرفة بكسر القاف وسكون الراء بعدها فاء وهى فاطمة بنت ربيعة بن بدر زوج مالك بن حذيفة بن بدر عم عيينة بن حصن بن حذيفة وكانت معظمة فيهم , فيقال ربطها فى ذنب فرسين وأجراهما فتقطعت , وأسر بنتها وكانت جميلة , ولعل هذه الأخيرة مراد المصنف والنظر فتح البارى (٤٩٨\٧ و ٤٩٩)

(٢) فتح البارى (٤٩٨\٧) وعمدة القارى (٢٦١\١٧)_

امام بخاري رحمه الله چه په دې باب کښې کوم روايت ذکر کړې دې.په دې کښې د ،جيش اسامه،، ذکر دې.چه رسول الله ﷺ د خپل وفات نه يو څو ورځې وړاندې حضرت اسامه بن زيد د يو لښکر امير جوړ کړواو وې ليږلو.په دې باندې بعضې کسانو اعتراض اوکړو.چه دا کم عمر هلك دې.(د حضرت اسامه عمر ؓ په دغه وخت کښې يوويشت کاله وو) اودې په لويو صحابو باندې امير جوړ کړې شو.دا خبره نبي ﷺ ته راورسيده.نو نبي ﷺ خفه شو.او خطبه ئې اووئيله.او ارشاد ئې اوفرمائيلو.«ان تطعنوا فى امارته فقد طعنتم فى امارة ابيه من قبله» نن تاسو داسامه په امارت باندې اعتراض کوئ.ددې نه وړاندې تاسو د ده د پلار (حضرت زيد بن حارثه ؓ) په امارت باندې هم اعتراض کولو.حالانکه هغه ماته په خلقو کښې زيات خوښ وو.اودهغه نه پس دې زمازيات خوښ او محبوب دې.

چونکه په دې روايت کښې د حضرت زيد بن حارثه ؓ د امارت ذکر هم ضمناً راغلې دې.په دې مناسبت سره امام بخاري دا روايت په دې باب کښې ذکر کړو. والله اعلم.

## بَاب=عُمْرَةِ الْقَضَاءِ ذَكَرَهُ أَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[٤٠٠٥] حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا اعْتَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذِي الْقَعْدَةِ فَأَبَى أَهْلُ مَكَّةَ أَنْ يَدَعُوهُ يَدْخُلُ مَكَّةَ حَتَّى قَاضَاهُمْ عَلَى أَنْ يُقِيمَ بِهَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَلَمَّا كَتَبُوا الْكِتَابَ كَتَبُوا هَذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ قَالُوا لَا نُقِرُّ لَكَ بِهَذَا لَوْ نَعْلَمُ أَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ مَا مَنَعْنَاكَ شَيْئًا وَلَكِنْ أَنْتَ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ فَقَالَ أَنَا رَسُولُ اللَّهِ وَأَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ ثُمَّ قَالَ لِعَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ امْحُ رَسُولَ اللَّهِ قَالَ عَلِيٌّ لَا وَاللَّهِ لَا أَمْحُوكَ أَبَدًا فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكِتَابَ وَلَيْسَ يُحْسِنُ يَكْتُبُ فَكَتَبَ هَذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ لَا يُدْخِلُ مَكَّةَ السِّلَاحَ إِلَّا السَّيْفَ فِي الْقِرَابِ وَأَنْ لَا يَخْرُجَ مِنْ أَهْلِهَا بِأَحَدٍ إِنْ أَرَادَ أَنْ يَتْبَعَهُ وَأَنْ لَا يَمْنَعَ مِنْ أَصْحَابِهِ أَحَدًا إِنْ أَرَادَ أَنْ يُقِيمَ بِهَا فَلَمَّا دَخَلَهَا وَمَضَى الْأَجَلُ أَتَوْا عَلِيًّا فَقَالُوا قُلْ لِصَاحِبِكَ اخْرُجْ عَنَّا فَقَدْ مَضَى الْأَجَلُ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَبِعَتْهُ ابْنَةُ حَمْزَةَ تُنَادِي يَا عَمِّ يَا عَمِّ فَتَنَاوَلَهَا عَلِيٌّ فَأَخَذَ بِيَدِهَا وَقَالَ لِفَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَام دُونَكِ ابْنَةَ عَمِّكِ حَمَلَتْهَا فَاخْتَصَمَ فِيهَا عَلِيٌّ وَزَيْدٌ وَجَعْفَرٌ قَالَ عَلِيٌّ أَنَا أَخَذْتُهَا وَهِيَ بِنْتُ عَمِّي وَقَالَ جَعْفَرٌ ابْنَةُ عَمِّي وَخَالَتُهَا تَحْتِي وَقَالَ زَيْدٌ ابْنَةُ أَخِي فَقَضَى بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِخَالَتِهَا وَقَالَ الْخَالَةُ بِمَنْزِلَةِ الْأُمِّ وَقَالَ لِعَلِيٍّ أَنْتَ مِنِّي وَأَنَا مِنْكَ وَقَالَ لِجَعْفَرٍ أَشْبَهْتَ خَلْقِي وَخُلُقِي وَقَالَ لِزَيْدٍ أَنْتَ أَخُونَا وَمَوْلَانَا وَقَالَ عَلِيٌّ أَلَا تَتَزَوَّجُ بِنْتَ حَمْزَةَ قَالَ إِنَّهَا ابْنَةُ أَخِي مِنَ الرَّضَاعَةِ [ر:١٦٨٩]

امام بخاري رحمه الله د عمرة القضاء باب دلته په کتاب المغازي کښې ذکر کړو،حال دا چه دا د کتاب الحج سره متعلق دې.هلته ددې ذکرکول پکار وو.

ددې وجې دا بيان شوې ده.چه چونكه د غزوه حديبيه په نتيجه كښې د عمرة القضاء نوبت راغلې وو.غزوه حديبيه هم ددې عمرې سبب جوړ شوې وو.ددې وجې امام بخارى په كتاب المغازئ كښې ددې ذكر كړې دې.(١)
خودويم سوال دا پيدا كيږى،چه په داسې صورت كښې خودابيادغزوه حديبيه سره يوځائې ذكركول پكاروو.نو ددې جواب دا دې.چه چونكه دا په ٧ﻫ كښې واقع شوې وه.او غزوه حديبيه په ٦ﻫ كښې،ددې وجې ئې د حديبيه سره دا ذكر نكړه.د ٧ﻫ په واقعاتو كښې ئې دا ذكر كړه.دا عمره په څلورو نومونو باندې مشهوره ده.
① ددې يو نوم ،،عمرة القضاء،، دې.چونكه نبى ﷺ د حديبيه په كال باندې عمره ادا نكړې شوه.دا عمره د هغې د قضاء په طور باندې نبى ﷺ ادا كړې وه.ددې وجې دې ته ،،عمرة القضاء،، وائى.بعضې حضرات ددې وجه دا بيانوى،چه دلته قضاء د اداء په مقابله كښې نه ده.بلكه د قضاء معنى فيصله ده.اومطلب دا دې.چه ددې عمرې فيصله د حديبيه په موقع باندې شوې وه.چه په راروان كال به نبى ﷺ د عمرې دپاره تشريف راوړى.ددې وجې دې ته عمرة القضاء وائى.(٢)
② ددې دويم نوم،عمرة القصاص،، دې.د قصاص معنى بدل ده.اودا عمره چونكه دعمرة الحديبيه په بدل كښې وه.ددې وجې دې ته ،،عمرة القصاص،، هم وائى (٣)
③ دريم نوم ،عمرة الصلح،، دې.ځكه چه په صلح حديبيه كښې ددې عمرې فيصله شوې وه.(٤) ④ ددې څلورم نوم ،، عمرة القضيه،، دې.د قضيه معنى هم فيصله ده.او دا عمره د فيصلې مطابق شوې وه.(٥)
په صلح حديبيه كښې د مكې د كافرانو سره معاهده شوې وه.چه راروان كال ته به رسول الله ﷺ مكې ته راځى.او عمره به كوى.اودرې ورځې قيام به كوى.او واپس به ځى.بله دا چه مسلمانان به خان سره وسله نه راوړى.نبى كريم ﷺ چه د ذى قعدې مياشت څنګه اوليده.نو د عمرې ادا كولو اعلان ئې اوكړو،اودا ئې هم اووئيل.چه كوم كسان په حديبيه كښې شريك وو.په هغوى كښې دې څوك هم نه پاتې كيږى.(٦) نبى ﷺ د احتياط دپاره خان سره وسله هم يوړه.كه چرته د مشركانو دطرفه د جنګ نوبت راشى.نو مسلمانان به خالى لاس نه وى.د مكې مكرمې نه د اته ميله په فاصله باندې ،،بطن ياجج، كښې دجنګ هغه

---

١ ،فتح البارى (٥٠٠/١٧)_
٢ ،فتح البارى (٥٠٠/١٧) والروض الأنف (٢٥٤/١٣)_
٣ ، علامه سهيلى رحمه الله دا راجح نوم ګرځولې دې.هغوى فرمائى.(( يقال لها عمرة القصاص،وهذا الإسم أولى بها لقوله تعالى :الشهر الحرام بالشهر الحرام والحرمات قصاص)) وهذه الآية فيها نزلت فهذا الإسم أولى بها)
٤ ،عمدة القارى (٢٦٢/١٧)_
٥ ،عمدة القارى (٢٦٢/١٧)_
٦ ،عمدة القارى (٢٦٢/١٧)_

وسله نبی ﷺ پریخوده .او دهغې د حفاظت دپاره ئې د دوو سوو کسانو ډله مقرر کړه.(۱)
نبی ﷺ لبیك وئیل .چه په حرم مکه باندې ورداخل شو.مشهور انصاری صحابی رضی الله عنه
حضرت عبدالله بن رواحه رضی الله عنه په اوچت آواز سره دا شعر وئیل.

خلوابنی الکفار عن سبیله — الیوم نضربکم علی تنزیله

ضربا یزیل الهام عن مقیله — ویذهل الخلیل عن خلیله

حضرت عمر رضی الله عنه چه دهغه نه دا اشعار واوریدل.نو وې وئیل.د الله اودهغه د رسول ﷺ وړاندې اویه حرم کښې ته شاعری کوې.نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.پریږ ئې ده. دا اشعارددې کافرانو دپاره د غشو نه هم زیات تکلیف ناك دی.(۲)

دقریشو سردارانو د بغض او دشمنۍ په وجه دمکې په حرم کښې د مسلمانانو د راتلو دا منظر نشو لیدې.ددې وجې اکثرو خلقو مکه پریخوده.او غرونو ته لاړل .اوددرې ورځو نه پس قریشو د نبی ﷺ په خدمت کښې څوکسان دې پیغام سره راولیږل.چه محمد (ﷺ) ته اووایه. د معاهدې موده پوره شوه.ته اوځه.نو نبی ﷺ د معاهدې مطابق په هغه وخت کښې روان شو.(۳) په دې عمره کښې تقریباً دوه زره صحابه رضی الله عنهم د نبی ﷺ سره دعمرې ادا کولو سعادت حاصل کړې وو.(۴)

**قوله**: فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكِتَابَ وَلَيْسَ يُحْسِنُ يَكْتُبُ فَكَتَبَ هَذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ:

**ایا رسول الله ﷺ په لیکلو لوستلو پوهیدلو؟**: دجمهورو عالمانو دا رائې ده.چه رسول الله ﷺ چونکه امی وو.لیکل لوستل ئې نه پیژندل.ددې وجې د لیکلو نسبت چه دلته کوم شوې دې.دا اسناد مجازی دې. نبی ﷺ په خپله کتابت نه وو کړې.خوچونکه دوی د لیکلو حکم ورکړې وو.ددې وجې نسبت دوی ته اوشو.دغه شان په نورو څو روایاتوکښې راځی.چه «کتب النبی ﷺ إلی قیصر وکسری..» په دې ټولو کښې نبی ﷺ ته نسبت مجازی دې.(۵)

البته ابوالولید باجی رحمه الله د روایت د ظاهر نه استدلال کوی.او وائی،چه نبی ﷺ بیشکه امی وو.خود معجزې په طور نبی ﷺ کاتب هم وو.او قاری هم وو.(۶)

دابوالولیدباجی سره نزدې اوسیدونکو عالمانو ددې رائې سره سخت اختلاف کړې وو. ابوبکر بن الصائغ،عبدالله بن سهل، ابومحمد بن مسعود وغیره عالمانو په ده باندې تنقید

---

۱) السیرة الحلبیة (۳\۶۲) عمرة القضاء ودلائل النبوة للبیهقی (۳\۳۲۱)_
۲) شمائل ترمذی باب ما جاء فی صفة کلام رسول الله ﷺ فی الشعر ۱۶ _
۳) السیرة الحلبیة (۳\۶۴)_
۴) السیرة الحلبیة (۳\۶۲) وفتح الباری (۷\۵۰۰)_
۵) فتح الباری (۷\۵۰۴)_
۶) فتح الباری (۷\۵۰۳)_

کړې دي.تردي چه بعضې عالمانو په ده باندې د زندیق فتوی هم لګولې وه.او وئیلی وو،چه دا د قرآن د آیت ﴿وَمَا كُنتَ تَتْلُوا مِن قَبْلِهِ مِن كِتَابٍ وَلَا تَخُطُّهُ بِيَمِينِكَ إِذًا لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُونَ﴾ ([1]) نه صریح مخالفت دې.بعضو دده خلاف دا شعر هم وئیلی وو.

برئت ممن شری دنیا بآخرة وقال أن رسول الله قد کتبا

وئیلی شي.چه دهغه وخت امیر ابوالولید باجي او دده مخالفین راجمع کړل. مناظره اوشوه. اوباجي دخپلو دلائلو په وجه غالب پاتې شو.باجي اووئیل. زما رائې د قرآن نه مخالف نه ده.د قرآن د آیت نه د نبی ﷺ امیت ثابت دې.خود امیت باوجود او د څه تعلیم حاصلولو نه بغیر په لیکلو او لوستلو د نبی ﷺ قدرت د نبوت یوه بله معجزه ده.ابوذرهروی، ابوالفتح نیسابوری او بعضې نورو عالمانو د دوی تائید هم اوکړلو.دا حضرات د عون بن عبدالله په هغه روایت سره هم استدلال کوی.کوم چه ابن ابی شیبه نقل کړې دې.«ما مات رسول الله ﷺ حتی کتب وقرأ»([2])

خو امام بیهقی رحمه الله په دې روایت باندې دوه اعتراضه کړی دی.یو دا چه د دې په سند کښې مجاهیل او ضعفاء دی.اودویم دا چه په دې کښې انقطاع ده. طبرانی دې روایت ته منکر وئیلی دی.څکه دا قابل استدلال نه دې.([3])

بعضې حضراتو وئیلی دی.چه ذکرشوی روایت کښې د«حتی کتب وقرأ» ضمیر رسول الله ﷺ ته نه دې راجع،بلکه دا د ،،عون،، والد ،،عبدالله بن عتبه،، ته راجع دې.او مطلب دا دې.چه عبدالله بن عتبه د رسول الله ﷺ د وفات نه وړاندې هوښیار او پوهیدونکې شوې وو.او لیکل لوستل ئې زده کړی وو.

د امام تقی الدین بن دقیق العید وړاندې چه کله د ابوالولید باجی نقطه نظر پیش کړې شو.نو هغوی دې طرف ته څه خاص التفات اونکړو.او وې وئیل.چه د باجی سره په خپله دې نظریه باندې څه مضبوط دلیل نشته.څکه دا قابل قبول نه دې.

حافظ شمس الدین ذهبی رحمه الله په ،،میزان الاعتدال،، کښې نقل کړی دی ،چه رسول الله ﷺ امی وو.خوچونکه نبی ﷺ ته به ډیر خطونه او تحریرونه راتلل.دذې وجې نبی ﷺ خپل نوم لیکل زده کړی وو.ډیر امیان خلق خپل دستخط زده کولې شي.نو د صلح حدیبیه په موقع د نبی ﷺ په خپله خپل نوم لیکلو له دا نه لازمیږی .چه نبی ﷺ امی نه وو.اونه دا په معجزه باندې محمول کولې شی.([4])

نبی ﷺ امی وو.اوهم امی پاتې شوې وو.دا خو هم هغه خبره وه.چه ددې په وجه دمخالفینو

---

[1] ،سورة العنکبوت :۴۸)_

[2] ،فتح الباری (۵۰۳/۷و ۵۰۴)_

[3] ،سنن کبری للبیهقی (۵۰۳/۷و ۵۰۴)_

[4] ، د میزان الاعتدال په ټولو ممکن ځایونو کښې لټون باوجود احقر ته د علامه ذهبی دا قول ملاؤ نشو.والله اعلم.



ملاګانې ماتې شوې وې.چه یو داسې کس چه لیکل لوستل نه پیژني.څلوېښت کاله ئې هم په داسې حال کښې تیر کړی دی.او ناڅاپه اوس هغه د علومو سمندر بیوی. حقائق بیانوی،د حکم ،معارفو،او رموز تلقین کوی.هغه نه څه کتاب لوستې دې.اونه هغوی په مطالعه باندې پوهیدل.خودهغوی هره خبره دعلم او معرفت چینه وه.

نګار من بمکتب نرفت وخط نه نوشت بغمزه مسئله آموز صد مدرس شد

زما محبوب (محمد ﷺ) چه نه چرته مکتب ته تلې دې.اونه ئې چرته لیکل کړی دی.خو په یوه اشاره کښې به هغوی په سوونو مدرسین په مسائلو پوهول.

**قوله**: فتبعته إبنة حمزة تنادي یا عم یا عم: نبی ﷺ چه کله د مکې مکرمې نه روان شو. نو د حضرت حمزه رضی الله عنه وړه لور نبی ﷺ پسې شا شا ته راروانه شوه.او وئیل ئې.«یاعم یاعم» دا په رشته کښې د نبی ﷺ د تره لور وه.ددې باوجود ورته «یاعم» وئیل د عربو د محاورې مطابق وو. کشر مشرته ,,عم،، وائی.([1]) اود ,,عم،، وئیلو یوه وجه دا هم کیدې شی. چه حضرت حمزه رضی الله عنه نسبی اعتبار سره اګرچه د نبی ﷺ تره وو.خود رضاعت په تعلق سره هغه د نبی ﷺ ورور وو.ددې وجې د هغوی لور نبی ﷺ ته ,,یاعم،، سره آواز اوکړو.([2])

**قوله**: فاختصم فیها علي وزید وجعفر: حضرت علی رضی الله عنه اووئیل.دا زما د تره لور ده. زه ددې زیات حقدار یم.حضرت جعفر رضی الله عنه اووئیل.دا زما د تره لورده.او ددې ترور (دمور خور) زما بی بی ده. نو دا به زه اخلم.حضرت زید رضی الله عنه اووئیل. حمزه رضی الله عنه زما دینی ورور وو. په دې رشتې سره دا زما وریره ده.دا زما حق جوړیږی.نبی ﷺ د حضرت جعفر رضی الله عنه د بی بی حضرت اسماء بنت عمیس په حق کښې فیصله واوروله.او وې وئیل. ترور د مور سره برابر وی.

د ټولو امامانو په دې خبره باندې اتفاق دې،چه په باب د حضانت (پالنې) کښې د ,,عمه،، (دپلار خور) په مقابله کښې ،، خاله،، (دمور خور) ته ترجیح ده.

د حضرت حمزه رضی الله عنه ددې لور نوم په باره کښې مختلف اقوال دی.① عماره② فاطمه ③ امامه ④ امة الله ⑤ سلمی،دا پنځه نومونه ذکر شوی دی.خو مشهور اولنې قول دې.([3])

**قوله**: وقال لجعفر: أشبهت خلقي وخلقي: حضرت جعفر رضی الله عنه ته نبی ﷺ اوفرمائیل. ته د اخلاقو په اعتبار سره هم زما پشان ئې.اوما سره تاته بدنی مشابهت هم حاصل دې.او دا ډیر لوې فضیلت او منقبت دې.

وائی چه.په عربو کښې د نبی ﷺ په شکل او صورت کښې مشابهت لرونکی دیارلس صحابه رضی الله عنهم وو.په هغوی کښې د نبی ﷺ د وفات نه پس څلور پاتی شوی وو .اوباقی د الله تعالی خوښ شوی وو.(یعنی وفات شوی وو) ([4])

---

[1] فتح الباری (٥٠٥\٧ ) وعمدة القاری (٣٦٤\١٧)_
[2] فتح الباری (٥٠٥\٧) وعمدة القاری (٣٦٤\١٧)_
[3] فتح الباری (٥٠٥\٧)_
[4] فتح الباری (٥٠٥\٧)_

[۴۰۰۶] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ حَدَّثَنَا سُرَيْجٌ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ ح وحَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مُعْتَمِرًا فَحَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْبَيْتِ فَنَحَرَ هَدْيَهُ وَحَلَقَ رَأْسَهُ بِالْحُدَيْبِيَةِ وَقَاضَاهُمْ عَلَى أَنْ يَعْتَمِرَ الْعَامَ الْمُقْبِلَ وَلَا يَحْمِلَ سِلَاحًا عَلَيْهِمْ إِلَّا سُيُوفًا وَلَا يُقِيمَ بِهَا إِلَّا مَا أَحَبُّوا فَاعْتَمَرَ مِنْ الْعَامِ الْمُقْبِلِ فَدَخَلَهَا كَمَا كَانَ صَالَحَهُمْ فَلَمَّا أَنْ أَقَامَ بِهَا ثَلَاثًا أَمَرُوهُ أَنْ يَخْرُجَ فَخَرَجَ [ر: ۲۵۵۳]

[۴۰۰۷] حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ دَخَلْتُ أَنَا وَعُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ الْمَسْجِدَ فَإِذَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا جَالِسٌ إِلَى حُجْرَةِ عَائِشَةَ ثُمَّ قَالَ كَمْ اعْتَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَرْبَعًا ثُمَّ سَمِعْنَا اسْتِنَانَ عَائِشَةَ قَالَ عُرْوَةُ يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ أَلَا تَسْمَعِينَ مَا يَقُولُ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْتَمَرَ أَرْبَعَ عُمَرٍ فَقَالَتْ مَا اعْتَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُمْرَةً إِلَّا وَهُوَ شَاهِدُهُ وَمَا اعْتَمَرَ فِي رَجَبٍ قَطُّ [ر: ۱۶۶۵]

داروايت په ابواب العمرة اوغزوة الحديبية کښې تيرشوې دې.زمونږ په نسخو کښې دی.((کم إعتمرالنبی ﷺ؟ قال أربعاً)) په مصری نسخو کښې د ((أربعاً)) نه پس د ((إحداهن فی رجب)) زيادت دې.که دااضافه نه وی.نو وراندې چه حضرت عائشې رضی الله عنها دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په بيان باندې کوم انکار کړې دې.هغه به صحيح نه وی.زمونږ په هندوستانی نسخو کښې دا سقم (غلطی) ده.او مصری نسخې صحيح دی.ځکه چه حضرت عائشې رضی الله عنها د حضرت عبدالله رضی الله عنه په روايت کښې د ((إحداهن فی رجب)) د الفاظو ترديد کړې دې.حال دا چه زمونږ په نسخو کښې د حضرت عبدالله رضی الله عنه نه دا الفاظ هډو منقول نه دی.([1])

[۴۰۰۸] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ سَمِعَ ابْنَ أَبِي أَوْفَى يَقُولُ لَمَّا اعْتَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَتَرْنَاهُ مِنْ غِلْمَانِ الْمُشْرِكِينَ وَمِنْهُمْ أَنْ يُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۱۵۲۳]

[۴۰۰۹] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ فَقَالَ الْمُشْرِكُونَ إِنَّهُ يَقْدَمُ عَلَيْكُمْ وَفْدٌ وَهَنَهُمْ حُمَّى يَثْرِبَ وَأَمَرَهُمْ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَرْمُلُوا الْأَشْوَاطَ الثَّلَاثَةَ وَأَنْ يَمْشُوا مَا بَيْنَ الرُّكْنَيْنِ وَلَمْ يَمْنَعْهُ أَنْ يَأْمُرَهُمْ أَنْ يَرْمُلُوا الْأَشْوَاطَ كُلَّهَا إِلَّا الْإِبْقَاءُ عَلَيْهِمْ قَالَ أَبُو عَبْد اللَّهِ وَزَادَ ابْنُ سَلَمَةَ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ

[1] ) مونږ چه کومه نسخه د ډاکټر مصطفی ديب البغا اختيار کړې ده.په دې تحقيقی نسخه کښې هم د ((إحداهن فی رجب)) الفاظ نشته.البته د حافظ او عينی په نسخو کښې شته.

ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَامِهِ الَّذِي اسْتَأْمَنَ قَالَ ارْمُلُوا لِيَرَى الْمُشْرِكُونَ قُوَّتَهُمْ وَالْمُشْرِكُونَ مِنْ قِبَلِ قُعَيْقِعَانَ [ر۱۵۲۵]

دا روایت په کتاب الحج کښې تیرشوې دې. (۱)

[۴۰۱۰] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ عَنْ سُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عَطَاءٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ إِنَّمَا سَعَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَيْتِ وَبَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ لِيُرِيَ الْمُشْرِكِينَ قُوَّتَهُ [ر:۱۵۶۶]

[۴۰۱۱] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَيْمُونَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ وَبَنَى بِهَا وَهُوَ حَلَالٌ وَمَاتَتْ بِسَرِفَ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَزَادَ ابْنُ إِسْحَاقَ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ وَأَبَانُ بْنُ صَالِحٍ عَنْ عَطَاءٍ وَمُجَاهِدٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ تَزَوَّجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَيْمُونَةَ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ [ر:۱۷۴۰]

په دې روایت کښې دمحرم دنکاح مسئله راغلې ده.اوپه کتاب الحج کښې تیره شوې ده.(۲)

## بَاب غَزْوَةِ مُؤْتَةَ مِنْ أَرْضِ الشَّامِ

،موته،،د شام په ملك کښې بلقاء نومې ځائې کښې د يو مقام نوم دې.(۳) کوم ځائې کښې چه دا غزا پيښه شوې وه.

نبی ﷺ چه کله د مختلفو اميرانو او بادشاهانو په نوم باندې ددعوت اسلام خطونه اوليږل،نويوخط ئې حضرت حارث بن عمير رضی الله عنه ته ورکړو،اوقيصر روم طرف ته ئې اوليږلو، دعربو او شام په سرحدی علاقو کښې چه کوم سرداران حکمرانان وو.په هغوی کښې يو شرحبيل بن عمرو هم وو.دې د بلقاء د علاقې سردار وو.اود قيصر ماتحت وو.شرحبيل د رسول الله ﷺ سفير حضرت حارث رضی الله عنه شهيد کړو.(۴)

رسول الله ﷺ ته چه کله ددې خبر اوشو.نودهغه د قصاص دپاره ئې د درې زره کسانو لښکر اوليږل.او حضرت زيد بن حارثه ئې په هغوی باندې امير مقرر کړو. او وې فرمائيل. که زيد قتل شی نو جعفربن ابی طالب به امير وی.او که جعفر رضی الله عنه هم قتل شی.نو عبدالله بن رواحه به امير وی.او که هغه هم قتل شی.نو بيا به مسلمانانو ته اختيار وی.چه څوك غواړی.خپل امير دې جوړ کړی.(۵)

---

۱) صحيح بخاری کتاب الحج باب کيف کان بدء الرمل (۱۱\۲۱۸)_

۲) صحيح بخاری کتاب الحج باب تزويج المحرم (۱۱\۲۴۸)_

۳) فتح الباری (۷\۵۱۱) نن صبا دا علاقه د اردن په مملکت کښې شامل ده_

۴) فتح الباری (۷\۵۱۱) والسيرة الحلبية (۳\۶۶)_

۵) طبقات ابن سعد (۲\۶۶)_

حضرت زيدبن حارثه رضي الله عنه ته رسول الله ﷺ يوه سپينه جنډا ورکړه.او تر..ثنية الوداع..
پورې ده سره پخپله لاړلو،اوهغه ته ئې وعظ نصيحت اوکړو.اوددې نه پس ئې رخصت کړو.(١)
بل طرف ته شرحبيل ته چه کله د مسلمانانو د لښکر علم اوشو.نو هغه تقريباً يو لاکھ فوځ
دمسلمانانو دمقابلې دپاره جمع کړل.اوهرقل نوريولاکھ فوځ راواخستل .په خپله د شرحبيل
د مدد دپاره راورسيدلو.مقام معان ته چه کله اورسيدو.نو مسلمانانو ته خبر اوشو چه دوه
لاکھ فوځ د مسلمانانو د مقابلې دپاره راغلي دي. نو مسلمانان متردد شو.چه د درې زره لږ
غوندې لښکر دپاره هغوی سره مقابلې دپاره تلل پکار دي که نه؟ اسلامي لښکر تر دوو
ورځو پورې په معان کښې ايسار شو.او مشوره ئې کوله.د اکثرو صحابو رضي الله عنهم رائې دا وه.چه
رسول الله ﷺ د صورتحال نه خبرول پکاردي.اود هغوی د حکم انتظار پکار دې.خو حضرت
عبدالله بن رواحه رضي الله عنه صحابه په جنګ باندې د اماده کولو دپاره يو جوشي تقرير اوکړو.په
هغې کښې دوی اووئيل. زمونږ د جنګ داررومدار په قوت او تعداد باندې نه دې.بلکه د
هغه دين په بنياد باندې دې.په کوم باندې چه الله تعالى مونږ کامياب کړي يو.او عزت ئې
راکړې دې.بس روانيږئ.په دوو نيکو کښې خو به يوه ضرور حاصله شي.يا به په کافرانو
باندې غلبه حاصله شي.او يا به د شهادت کاميا.بی حاصله شي.ابن اثير د تقرير الفاظ
داسې نقل کړي.دي.

«ياقوم، والله إن التي تكرهون للتي خرجتم أياها تطلبون الشهادة، وما نقاتل الناس بعدد ولا قوة ولا كثرة، ما نقاتلهم إلا بهذا الدين الذي أكرمنا الله به فانطلقوا فما هي إلا إحدى الحسنيين، إما ظهور وإما شهادة»(٢)

خلقوچه د دوی تقرير واوريدل.نو وې وئيل «صدق والله» او په درې زره کسانو باندې
مشتمل لښکر د دوه لاکھ ملخانو طرف ته روان شو.(٣)

---

(١) اصحاب سير ليکلي دی.چه کله رسول الله ﷺ حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه رخصتولو.نو هغه
په ژړا شو.خلقو تپوس اوکړو.نو وې وئيل.زه د دنيا سره د محبت يا عشق د وجې نه ژاړم.بلکه ددې
وجې ژاړم.چه ما د رسول الله ﷺ نه د دې آيت تلاوت واوريدلو،«وإن منكم إلا واردها كان على ربك
حتماً مقضياً» يعنی په تاسو کښې داسې څوك نشته.چه هغه به په جهنم نه تيريږی.دا د الله تعالی
يقيني او اټله فيصله ده.معلومه نه ده.چه په هغې باندې تيريدل دی. نو زما به څه کيږی؟
مسلمانانو ورته تسلي ورکړه.اووې وئيل.الله تعالی دې تا مونږ ته صحيح سالم راواپس کړی.په دې
باندې حضرت عبدالله دا اشعار اووئيل.په کومو کښې چه هغوی د خپل ځان دپاره د شهادت دعا
کړې ده.

لكنني أسأل الرحمن مغفرة ... وضربة ذات فزع تقذف الزبدا
أو طعنة بيدي حران مجهزة ... بحرية تنفذ الأحشاء والكبدا
حتى يقولوا : إذا مروا على جدثي ... أرشدك الله من غاز وقد رشداً

اوګورئ الكامل لابن اثير (١٥٤\٢) وتاريخ طبرى (٣١٩\٢)_

(٢) الكامل لابن اثير(١٥٩\٢)_

(٣) الكامل لابن الاثير (١٥٩\٢)_

د موته په ميدان كښې د جنګ شروع اوشوه.د اسلام جنډا د حضرت زيد رضي الله عنه په لاس كښې وه.هغه وراندې شو.او په جنګيدو جنګيدو شهيد شو.د هغوى نه پس حضرت جعفر رضي الله عنه جنډا اوچته كړه.كله چه دشمن د څلورو واړه طرفونو نه حمله اوكړه.نو هغه د اس نه راكوز شو.او ډير په مړانه باندې جنګيدل په غشو او.تورو او نيزو باندې سيورى سيورى شو.او راپريوتلو.هم په دې باب كښې د بخارى روايت دې، چه دهغه بدن كښې د لس كم سلو نه زيات زخمونه وو.او ټول د مخې طرف نه وو.د شا طرف نه يو زخم هم نه وو.دحضرت جعفر رضي الله عنه نه پس حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه جنډا اوچته كړه.او وړاندې شو.د څو ګهړو دپاره متردد شو. خو ددې نه پس ئې توره راواخستله.په كافرانو كښې ورننوتل.اود بهادرئ ثبوت ئې وركړو،او شهيد شو.دهغوى د شهادت نه پس حضرت ثابت بن ارقم انصارى رضي الله عنه جنډا په لاس كښې واخستله.اومسلمانانو ته ئې اووئيل.«يا معشر المسلمين إصطلحوا على رجل منكم» اې مسلمانانوپه خپلو كښې په يو كس باندې اتفاق اوكړئ.خلقو اووئيل.هم په تا باندې مونږ راضى يو.هغه اووئيل.زه دا كار نشم كولې. مسلمانانو حضرت خالدبن وليد رضي الله عنه امير مقرر كړو.هغوى اسلامى جنډا واخستله وړاندې شو. او ډير په بهادرئ باندې جنګيدلو.([1]) هم په دې باب كښې د دوى نه روايت دې. چه په ،،موته،، كښې په جنګيدو جنګيدو زما په لاس كښې نهه تورې ماتې شوې وې.

حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه د ميدان جنګ په پوهيدو او لښكرته ترتيب وركولو كښې ډير لوې مهارت او صلاحيت لرلو.د جنګ په دويمه ورځ هغه د لښكر په حصو كښې مختلفې تبديلئ اوكړې.او يوه ډله ئې د ميدان جنګ نه بهر اوساتله .چه دا به د جنګ په دوران كښې داسې ميدان كښې راګډه شي.چه دشمن ته دا خيال اوشي.چه نوې امداد او مدد راورسيدل.نو هم دغه شان اوشو.چه په لښكر كښې ئې تبديلى اوليدله.اوچه كومه ډله ئې مقرر كړې وه.د هغې په ليدو سره دشمن اوګنړل.چه كيدې شي دوى ته نوې مدد راورسيدل. ددې وجې مرعوب شو. اوميدان ئې پريخودل.حضرت خالد رضي الله عنه په هغوى پسې تلل مناسب اونه ګنړل.اود مسلمانانو ډله ئې واخسته. واپس مدينې ته راغلو.دغه شان خالد بن وليد رضي الله عنه د مسلمانانو په بچ كولو كښې كامياب شو.او هم دا خبره د ټولو نه لويه فتح وه.([2]) په روايت كښې دى.چه د غزوه موته نه كله خلق واپس شو.نو د مدينې منورې حضرات دهغوى استقبال دپاره بهرته راوتلى وو.اوهغوى ته ئې اووئيل.«أنتم الفرارون» تاسو د شكست خوړلو نه پس راوتختيدئ.نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.«بل أنتم العكارون»([3]) نه تاسو راتختيدلى نه ئې.بلكه تاسو د دوباره حملې كولو دپاره څان تيارولو دپاره راغلى ئې. داروايت چه مولانا شبلى نعمانى مرحوم اوكتل.نو فيصله ئې اوكړه.چه په غزود موته كښې

---

[1] الكامل لابن الأثير (١٦٠١٢)، وتاريخ طبرى (٣٢١١٢ و ٣٢٢)_

[2] فتح البارى (٥١٣١٧)_

[3] البداية والنهاية (٢٤٨١٤)_

مسلمانانو ته شکست شوې وو.(١) په اصل کښې يوې دستې ته شکست شوې وو.او
خوحقيقت دادې.چه داخبره صحيح نه ده.په اصل کښې يوې دستې ته شکست شوې وو.او
هغه تختيدلې وه.دويمه دسته د مسلمانانو هغه هم وه.چه هغې د غنيمت مال حاصل کړې
وو. او هغې د کافرانو يوې ډلې ته شکست ورکړې وو. مطلقاً دا وئيل چه په غزوه موته
کښې مسلمانانو ته شکست شوې وو.صحيح نه ده.(٢)
غزوه موته په جمادى الاولى ٨ھ کښې پيښه شوې وه.د ابن اسحاق او موسى بن عقبه رائې
دا ده.چه د خليفه بن خياط خيال دې.چه دا په ٧ ھ کښې واقع شوې وه.خو راجح هم اول قول
دې.(٣) په دې غزا کښې تقريباً دولس مسلمانان شهيدان شوى وو.(٤)

[٤٠١٢/٤٠١٣] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ أَبِي هِلَالٍ قَالَ وَأَخْبَرَنِي نَافِعٌ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ وَقَفَ عَلَى جَعْفَرٍ يَوْمَئِذٍ وَهُوَ قَتِيلٌ فَعَدَدْتُ بِهِ خَمْسِينَ بَيْنَ طَعْنَةٍ وَضَرْبَةٍ لَيْسَ مِنْهَا شَيْءٌ فِي دُبُرِهِ يَعْنِي فِي ظَهْرِهِ

د حضرت جعفر رضی الله عنه دشهادت نه پس حضرت ابن عمر رضی الله عنهما لاړلو،هغوى سره اودريدل.ابن
عمر رضی الله عنهما فرمائى،چه ما دهغوى په بدن کښې د غشو او نيزو پنځوس زخمونه شمار کړل.او
يو هم د شا طرفه نه وو.

[٤٠١٣] أَخْبَرَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ حَدَّثَنَا مُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ أَمَّرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ مُؤْتَةَ زَيْدَ بْنَ حَارِثَةَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ قُتِلَ زَيْدٌ فَجَعْفَرٌ وَإِنْ قُتِلَ جَعْفَرٌ فَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَوَاحَةَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ كُنْتُ فِيهِمْ فِي تِلْكَ الْغَزْوَةِ فَالْتَمَسْنَا جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ فَوَجَدْنَاهُ فِي الْقَتْلَى وَوَجَدْنَا مَا فِي جَسَدِهِ بِضْعًا وَتِسْعِينَ مِنْ طَعْنَةٍ وَرَمْيَةٍ

ددې نه په وړاندينى روايت کښې «خمسين بين طعنة وضربة» وو.په دواړو کښې په ظاهره
تعارض دې.① ددې يو جواب دا دې.چه عدد اقل د عدد اکثر نفى نه کوى.
② دويم جواب دا دې.چه کيدې شى.پنځوس نښې خو بيخى مخامخ وې.اوباقى بنى او گس
طرف ته وې.په اولنى روايت کښې صرف مخامخ نښې شمارلې شوى دى.اوپه دويم روايت
کښې د بدن ټول زخمونه بيان شوى دى.(٥)
③ دريم جواب دا دې.چه په اولنى روايت کښې د «طعنة» او «ضربة» ذکر وو.اوپه دې روايت

---

[١] اوګورئ سيرت النبى ﷺ (شبلى نعمانى مرحوم، (٢٩٢/١)_
[٢] د تفصيل دپاره اوګورئ البدايه والنهايه (٢٤٨/٤)_
[٣] فتح البارى (٥١١/٧) وعمدة القارى (٢٦٨/١٧)_
[٤] سيرت مصطفى (٤٦١/٢)_
[٥] فتح البارى (٥١٢/٧)_

کښې د ((طعنة)) سره د ((رمية)) ذکردې.ددې مطلب دا دې.چه په اولنی روايت کښې صرف د نيزو او تورو سره لګيدلې زخمونوبيان شوې دې.او په دې روايت کښې د نيزو.او تورو سره سره د غشو سره راغلې زخمونه ئې هم ذکر شامل کړې دې.ددې وجې عدد ((بضعا ستين)) شو. (۱) والله اعلم.

[۴۰۱۳] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ وَاقِدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَى زَيْدًا وَجَعْفَرًا وَابْنَ رَوَاحَةَ لِلنَّاسِ قَبْلَ أَنْ يَأْتِيَهُمْ خَبَرُهُمْ فَقَالَ أَخَذَ الرَّايَةَ زَيْدٌ فَأُصِيبَ ثُمَّ أَخَذَ جَعْفَرٌ فَأُصِيبَ ثُمَّ أَخَذَ ابْنُ رَوَاحَةَ فَأُصِيبَ وَعَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ حَتَّى أَخَذَ الرَّايَةَ سَيْفٌ مِنْ سُيُوفِ اللَّهِ حَتَّى فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ [ر:۱۱۸۹]

حضرت انس رضي الله عنه فرمائي.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د حضرت زيد ،حضرت جعفراو حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنهم د شهادت خبر صحابو رضي الله عنهم ته ورکولو اووې فرمائيل.زيد بيرغ واخستلو، او شهيدشو.اوبيا جعفربيرغ واخستو،او شهيدشو.بيا ابن رواحه بيرغ واخستو،اوشهيد شو. تردې چه د الله تعالی په تورو کښې يوې تورې بيرغ واخستو،او الله تعالی هغه ته فتح ورکړه.ددې نه مراد حضرت خالدبن ولد رضي الله عنه دې.هم ددې خائې نه د هغوی لقب ((سيف الله)) اوګرځيدو.

**فائده: کشف نبوت او کشف ولايت کښې فرق:** په دې روايت کښې د کشف نبوت ذکر دې.يو کشف ولايت وی.او بل کشف نبوت وی.دحضرت محمد قاسم نانوتوی رحمه الله نه د هغوی خادم ، ،الله داد ، ، تپوس اوکړو.حضرت په دې خبره نه پوهيږم.چه کشف انبياء عليهم السلام ته هم کيږی.اواولياء کرام ته هم،خو د انبياء عليهم السلام کشف بيخی صحيح وی.په هغې کښې څه تبديلي او تغير نه کيږی.اود اولياء الله په کشف کښې خبره وړاندې روسته کيږی. نوکه د اولياء الله کشف صحيح نه وی.نودا بيا ولې بيانوی.او که صحيح وی.نو بيا په دې کښې غلطی ولې کيږی.؟

حضرت نانوتوی رحمه الله ته الله تعالی ډير ذکاوت ورکړې وو.کله چه دغه کس دحضرت نه دا تپوس اوکړو.په دغه وخت کښې هغوی دخپل يو دوست ملاويدو دپاره تلو.کوم چه دجيل خانې منتظم وو.اوجيل خانه څه فاصله باندې مخامخ وه. حضرت اوفرمائيل.الله داد! چرته څې.هغه عرض اوکړو.حضرت تاسو سره جيل خانې طرف ته ځم.وې فرمائيل.جيل خانه کوم خائې ده؟ وې وئيل هغه مخامخ ده. وې فرمائيل څومره فاصله ورته ده.عرض ئې اوکړو.دوه سوه قدمه فاصله به وی. دې فرمائيل دوه سوه قدمونه يقينی دی.که کم او بيش په کښې هم ممکن دی.وې وئيل کمې بيشې به يقينی وی.ددې نه پس وړاندې لاړل.کله چه جيلخانه صرف د څلورو قدمونو فاصله پاتې شوه.وې فرمائيل اوس جيلخانه څومره لرې ده؟ عرض ئې اوکړو.صرف د څلور قدمه،وې فرمائيل کمې بيشې کيدې شی.عرض ئې اوکړو.نه. فاصله هم څلور قدمه ده.وې فرمائيل.بس هم دا فرق دې په کشف نبوت اوکشف ولايت

---

(۱) فتح الباري (۵۱۲/۷)_

كښي،نبي د ډير نزدې نه كتل كوى.ددې وجې بيخي صحيح او ټيك وائي.او ولى څه فاصلې نه كتل كوى.او د لرې نه كتل كوى.نو په اندازه لګولو كښې كله غلطى كيږى.ددې وجې هم د اولياؤ په كشف كښې غلطى كيږى. اودغه شان ئې په يو حسى مثال سره يوه باريكه مسئله هغه ته اوخودله.

مولانا قاسم نانوتوى رحمه الله به په حسى مثالونو سره ډير دقيق مسائل خودل .يوځل ئې دمظفر نګر په استيشن باندې دګاډى انتظار كولو،په رياضئ (د حساب مضمون) كښې د مولانا ډير لوې شهرت وو.او حقيقت هم دا وو،چه مولانا په رياضئ كښې غيرمعمولى مهارت لرلو.هلته يو هندو ته كوم چه د خپلې علاقې د رياضئ ډير ماهر وو.معلومه شوه.چه مولانا محمد قاسم نانوتوى رحمه الله دلته په استيشن كښې موجود دې.نوخيال ئې اوكړو.چه مولانا سره ملاويدل پكار دى.چه څه استفاده ترې اوكړم.نوهغه راغلو.او مولانا سره ئې ملاقات اوكړو.او وې وئيل. كه اجازت وى چه يو تپوس اوكړم؟ حضرت ورته اوفرمائيل.آو تپوس اوكړه .هغه تپوس اوكړو.تاسو مسلمانان وائې.چه الله تعالى يو لوح محفوظ پيدا كړې دې.او په هغې كښې د ټول «ماكان ومايكون» ټول اعمال درج دى.دا په پوهه كښې نه راځى.چه الله تعالى دومره لويه تختئ په كوم ځائې كښې كيخودې ده.مثلاً زه يو سړې يم.زما عمر پنځوس كاله دې.ماته د ماشوموالى نه تر ننه پورې خپل ټول واقعات ياد دى.كه زما د ژوند دغه ټول واقعات په كاغذ باندې اوليكلى شى.نو ترميلونو پورې به هغه كاغذ خور شى.او زه خو يو سړې يم.اوتاسو وائې.چه په لوح محفوظ كښې د ټولو انسانانو ټول واقعات ليكلى شوى دى.كه دا واقعات اوليكلى شى.نو ددې دپاره به الله خبر چه دڅومره لوې ځائې ضرورت وى.نودغه تختئ او لوح محفوظ آخر په كوم ځائې كښې راغلې ده.مولانا صاحب ورته اووئيل.ته به دخپل ژوند دا واقعات د كوم ځائې نه منتقل كوې.هغه اووئيل. زما په دماغو كښې محفوظ دى.وې فرمائيل.بس هم دا ستا د سوال جواب دې.ستا وركوټې غوندې سر دې.په دې سر كښې دماغ كوم چه ستا لوح محفوظ دې.هغه به نور هم وركوټې وى.اوپه دې كښې ستا د ژوند واقعات كوم چه كه چرته په كاغذ باندې اوليكلى شى.نو تر ميلونو پورې به خور شى.په دې وركوټى شان ډبى كښې بند دى.نو كه د الله تعالى په لوح محفوظ كښې ټول واقعات موجود وى.او ا لله تعالى هغه په آسمانونو كښې كيخودې وى.نوپه دې كښې څه استبعاد او اشكال دې؟چه دا ئې واوريدو.نو هغه هندو اووئيل.خبره باندې بيخي پوهه شوم.

[۴۰۱۵] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ قَالَ أَخْبَرَتْنِي عَمْرَةُ قَالَتْ سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا تَقُولُ لَمَّا جَاءَ قَتْلُ ابْنِ حَارِثَةَ وَجَعْفَرِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَوَاحَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ جَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْرَفُ فِيهِ الْحُزْنُ قَالَتْ عَائِشَةُ وَأَنَا أَطَّلِعُ مِنْ صَائِرِ الْبَابِ تَعْنِي مِنْ شَقِّ الْبَابِ فَأَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ أَيْ رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ نِسَاءَ جَعْفَرٍ قَالَتْ وَذَكَرَ بُكَاءَهُنَّ فَأَمَرَهُ أَنْ يَنْهَاهُنَّ قَالَ فَذَهَبَ الرَّجُلُ ثُمَّ أَتَى فَقَالَ قَدْ نَهَيْتُهُنَّ وَذَكَرَ أَنَّهُ لَمْ يُطِعْنَهُ قَالَ فَأَمَرَ أَيْضًا فَذَهَبَ ثُمَّ أَتَى فَقَالَ وَاللَّهِ لَقَدْ غَلَبْنَنَا

فَزَعَمَتْ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاحْثُ فِي أَفْوَاهِهِنَّ مِنْ التُّرَابِ قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ أَرْغَمَ اللَّهُ أَنْفَكَ فَوَاللَّهِ مَا أَنْتَ تَفْعَلُ وَمَا تَرَكْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ الْعَنَاءِ[ر:۱۲۳۷]

حضرت عائشه ﷞ فرمائی.کله چه د حضرت زید بن حارثه،جعفربن ابی طالب او عبدالله بن رواحه﷢ د شهادت خبر راغلو، نونبی ﷺ په جمات کښې ناست وو،اوپه مخ باندې ئې د غم او حزن آثار معلومیدل.حضرت صدیقه ﷞ فرمائی.ماد دروازې د سورې نه کتل.چه یو سړې نبی ﷺ ته راغلو.او وې وئیل (ددغه سړی نوم معلوم نشو.چه څوك وو؟(۱) یارسول الله ﷺ د جعفر د کور زنانه ژاړی.نبی ﷺ هغه ته حکم اوکړو.چه لاړ شه.هغوی منع کړه.هغه لاړلو.او بیا راغلو .وې وئیل ما هغوی منع کړې.خو هغه ښځو خبره اونه منله.نبی ﷺ بیا حکم ورکړو .چه لاړ شه هغوی منع کړه.هغه لاړلو.او واپس راغلو، وې وئیل، په الله قسم هغه ښځې خو په مونږ باندې غالبې راغې.او خبره نه مني.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.لاړه شه دهغوی په خولو کښې ته خاورې واچوه.حضرت عائشې ﷞ فرمائی.ما په زړه کښې دهغه کس دپاره اووئیل.

**قوله**: أرغم الله أنفك ما أنت تفعل وما تركت رسول الله ﷺ من العناء:الله دې ستا پوزه په خاورو ککړه کړی.نه خو ته د رسول الله ﷺ په حکم باندې عمل کوې.اونه رسول الله ﷺ د مشقت نه بچ کوې.یعني هرکله چه ته د رسول الله ﷺ د حکم په تعمیل باندې قادر نه ئې.نو ولې نه راځې.چه ښکاره ورته اووائې.چه زه دا کار نشم کولې.تاسو بل څوك اولیږئ.چه نبی ﷺ د بار بار حکم کولو د مشقت نه محفوظ شی.علامه نووی ﷬ ددې جملې هم دا مقصود بیان کړې دې.(۲)

**یو شبه او دهغې جوابونه**: دلته چاته دا شبه کیدې شی.چه د نبی ﷺ حکم ئې واوریدو.نو د حضرت جعفرد کور ښځو د نبی ﷺ دحکم تعمیل ولې اونکړو.

① د نه منلو یوه وجه دا هم کیدې شی.چه هغه کس نبی ﷺ ته د ممانعت نسبت نه وو ذکر کړې.ددې وجې هغوی تعمیل اونکړو.(۳)

② یووجه دا هم بیان شوې ده.چه دغه ښځودا نهی او ممانعت په تنزیه باندې محمول کړې وو.ددې وجې ئې ژړا بنده نکړه.(۴)

③ یوه توجیه دا هم شوې ده.چه د شدت غم د وجې هغوی د ژړا په بندولو قادرې نه وې.ځکه ئې ژړا موقوف نکړه.دا ژړا د هغوی په اختیار کښې نه وه.اود قرآن کریم آیت دې

---

۱) حافظ لیکی.((ألم أقف علی إسمه)) فتح الباری (۵۱۴|۷)_~

۲) قال النووی معنی کلام عائشة رضی الله عنها إنک قاصر عن القیام بما أمرت به من الإنکار ،فینبغی أن تخبر النبی ﷺ بقصورک عن ذلک لیرسل غیرک وتستریح أنت من العناء (فتح الباری (۵۱۵|۷)_

۳) اوګورئ فتح الباری (۵۱۴|۷)_

۴) فتح الباری ۵۱۴|۹)_

﴿لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آتَاهَا﴾ (١)

④ اوځلورمه وجه دا بیان شوې ده.چه کیدې شی.هغوی دجاهلیت د ویر طریقه خو پریخودې وه.خونفس بکاء باقی وه.اودې کس غوښتل.چه دوی بیخی ژړا بنده کړی.او راغلو،نبی ﷺ ته ئې وئیل.چه هغوی نه منی.حال دا چه هغوی د نبی ﷺ د حکم تعمیل کړې وو.اود ویر مروجه طریقه ئې پریخودې وه.او مطلقاً ژړا په اسلام کښې ممنوع نه ده. ددې وجې هغه ښځو دنبی ﷺ د حکم مخالفت نه وو کړې.(٢) والله اعلم.

[٤٠١١] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ عَنْ عَامِرٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا حَيَّا ابْنَ جَعْفَرٍ قَالَ السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا ابْنَ ذِي الْجَنَاحَيْنِ [ر:٣٥٠٦]

دا روایت په ابواب المناقب کښې تیرشوې دې.(٣) په دې کښې دی.چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما چه به د حضرت جعفرخوی ته سلام کولو، نو وئیل به ئې.«السلام علیك یا ابن ذی الجناحین» اودا به ئې ددې وجې وئیل.چه د ترمذی په روایت کښې دی.چه دحضرت جعفر دواړه لاسونه په جنګ موته کښې کټ شوی وو.نو الله تعالی دهغه د دواړو لاسونو په بدله کښې ورته دوه وزرې ورکړې.په هغې سره هغه دجنت په باغونوکښې چرته چه غواړی الوزی. ددې وجې حضرت ابن عمر رضی الله عنهما به دحضرت جعفر رضی الله عنه خوئې ته «ابن ذی الجناحین» وئیل.

علامه سهیلی رحمه الله فرمائی.چه حضرت جعفر رضی الله عنه ته د جناحینو ورکولو مطلب دا دې.چه الله تعالی هغه ته صفت ملکیت ورکړو.چه هغه کله غواړی.خپلو لاسونو ته حرکت ورکوی.او الوتل شروع کوی.په حقیقت کښې د لاسونو په ځائې جناح ورکول مراد نه دی.ددې وجې دا ده.چه الله تعالی ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ﴾ فرمائیلی دی.نوځنګه شکل او صورت چه الله تعالی انسان ته ورکړې دې.داسې ښه او بهترین شکل ئې بل نشی کیدې.نوداسې به وئیلی شی. چه د هغه کوم لاسونو په دنیا کښې کټ شوی وو.هغه ورته په جنت کښې ملاؤ شو.اوپه دغه لاسونو کښې الله تعالی دا قدرت پیدا کړو.چه هغه د وزرو پشان هغه په هوا کښې اوچتوی.(٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه دا په حقیقت باندې محمولو کولو کښې څه اشکال نشته.که دحضرت جعفر رضی الله عنه شکل په خپل صورت باقی وی.اود لاسونو په ځائې ورته وزرې ورکړې شوې وی.نوپه دې کښې څه استحاله او اشکال دې.؟(٥)

خوحافظ د علامه سهیلی په خبره نه دې پوهه شوې.اشکال خو په دې وجه دې.چه د لاسونو

---

١) فتح الباری(٧/٥١٤)_
٢) فتح الباری(٧/٥١٤)_
٣) صحیح بخاری کتاب فضائل الصحابة باب مناقب جعفربن ابی طالب رقم الحدیث ٣٧٠٩)_
٤) الروض الأنف للسهیلی(٢/٢٥٩)_
٥) فتح الباری(٧/٥١٦)_

پښان جناح داسې ښکلې نه معلومېږي.لکه څنګه چه لاسونو معلومېږي.د پښو په ځائې که لرګی اولګولې شي.نوهغه به دپښو پښانْ ښکلې نه وي.اګرچه هغه دهغې رنګ روغن څومره ښکلې وي.دعلامه سهيلي رحمه الله مقصد دا دی.چه الله تعالی په انسانی بدن کښې کوم اندامونه پيدا کړي دي.هغه په خل ځائې دومره ښکلې او ښانسته دي.که په هغې کښې د کوم يو اندام په ځائې بل څيز اولګولې شي.نو ښائست ختمېږي.ددې وجې هغوی فرمائيلي دي.چه حضرت جعفر رضي الله عنه ته د جناحين ورکولو نه مراد هغوی ته د صفت ملکيت ورکول دي.چه هغه يدين ته حرکت ورکوي.اودی جناحين پښان الوزي.او چکر لګوي.والله اعلم.

تنبيه:دا روايت حاکم په مستدرك کښې د عمربن علي په طريق سره نقل کړې دې.او عمر دا د اسماعيل بن ابی خالد نه نقل کړې دې.دلته بخاری کښې امام بخاری دا د عمربن علي نه او عمرين علي د اسماعيل بن ابی خالد نه نقل کوي.حاکم ددې روايت نقل کولو نه پس فرمائي.((صحيح على شرط الشيخين ولم يخرجاه)) اوحافظ شمس الدين ذهبی رحمه الله هم د دوی تائيدکړې دې.(١) خو ددې دواړو حضراتو نه تسامح شوې دې.دلته په بخاری کښې دا روايت موجود دی.

[٤٠١٧/٤٠١٨] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ يَقُولُ لَقَدْ انْقَطَعَتْ فِي يَدِي يَوْمَ مُؤْتَةَ تِسْعَةُ أَسْيَافٍ فَمَا بَقِيَ فِي يَدِي إِلَّا صَفِيحَةٌ يَمَانِيَةٌ

[٤٠١٨] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنِي قَيْسٌ قَالَ سَمِعْتُ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ يَقُولُ لَقَدْ دُقَّ فِي يَدِي يَوْمَ مُؤْتَةَ تِسْعَةُ أَسْيَافٍ وَصَبَرَتْ فِي يَدِي صَفِيحَةٌ لِي يَمَانِيَةٌ

خالدبن وليد رضي الله عنه فرمائي.چه په جنګ موته کښې زما په لاس کښې نهه تورې ماتې شوې وې.صرف،صفيحه يمانيه،زما په لاس کښې پاتې شوې وه. ،،صفيحه ، پلنې تورې ته وائي. ددې روايت نه معلومېږي.چه په جنګ موته کښې مسلمانانو په زيات تعداد کښې کافران قتل کړي وو.حال دا چه په مسلمانانوکښې صرف دولس صحابه کرامو شهادت موندې وو.

[٤٠١٩/٤٠٢٠] حَدَّثَنِي عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عَامِرٍ عَنْ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ أُغْمِيَ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَوَاحَةَ فَجَعَلَتْ أُخْتُهُ عَمْرَةُ تَبْكِي وَاجَبَلَاهْ وَاكَذَا وَاكَذَا تُعَدِّدُ عَلَيْهِ فَقَالَ حِينَ أَفَاقَ مَا قُلْتِ شَيْئًا إِلَّا قِيلَ لِي آنْتَ كَذَلِكَ

حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه فرمائي.چه حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه بيهوشه شو.نو دهغه خور عمروبنت رواحه په ژړا شروع کړه.او په ((واجبلاه وا کذا)) وغيره الفاظو سره ئې دهغه صفتونه بيانول.عبدالله بن رواحه چه کله په هوش کښې راغلو.نو خور ته ئې اووئيل.چه تا به

(١) مستدرك حاکم (٤١١٣) کتاب المغازی،ذکر فضيلة جعفر رضي الله عنه)۔

څه ونيل.ما نه به تپوس کولې شو.چه واقعي ته داسې نې.ايا ته واقعي غر نې.سمندر نې.اوبنکارده ده چه زه نه غر ووم.اونه سمندر.ددې وجې زه شرمنده او حجالت شوم.د ابونعيم په روايت کښې دا زيادت دې.«فنهاها عن البكاء عليه»(١)
په ظاهره ددې روايت د ترجمة الباب سره څه جوړ اومناسبت نه معلوميږي. ځکه چه باب د غزوه موته متعلق دې.اود روايت تعلق د غزوه موته سره نه دہ.خوپه اصل کښې امام بخاري دا روايت د وړاندې روايت دپاره د تمهيد په طور ذکر کوي.او د وړاندې راتلونکي روايت تعلق د غزوه موته سره دې.

[٤٠٢٠] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْثَرٌ عَنْ حُصَيْنٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ أُغْمِيَ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَوَاحَةَ بِهَذَا فَلَمَّا مَاتَ لَمْ تَبْكِ عَلَيْهِ

په دې روايت کښې دعبدالله به رواحه رضي الله عنه د بيهوشۍ واقعه ذکرده.البته په دې کښې دا زيادت دې.چه «فلما مات لم تبك عليه» يعنې دحضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه په جنګ موته کښې انتقال اوشو.نو دهغه خور پرې اونه ژړيدله.ځکه چه هغوی منع کړې وه.
په دې روايت کښې چونکه د حضرت عبدالله بن رواحه رضي الله عنه د وفات ذکر دې.اودهغوی وفات په غزوه موته کښې شوې وو.په دې مناسبت سره امام بخاري دا روايت دلته ذکر کړو.والله اعلم.

تنبيه:دا روايت هم امام حاکم په مستدرک کښې نقل کړې دې.او وئيلې نې دی. «صحيح على شرط الصحيحن ولم يخرجاه» اوحافظ شمس الدين ذهبي رحمه الله هم د دوی تائيد اوتقليد کړې دې.حال دا چه دا روايت په بخاري کښې موجود دې.(٢)

## بَابُ بَعْثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ إِلَى الْحُرُقَاتِ مِنْ جُهَيْنَةَ

حرقات د ،،حرقه،، طرف ته منسوب دې.حرقه د يو کس لقب ګرځيدلې وو. چه نوم نې جهيش بن عامربن ثعلبه بن مودعه بن جهينه وو.هغه په يو جنګ کښې بعضې کسان سوزولي وو.ددې وجې دهغه لقب حرقه کيخودې شو.بيا وړاندې دهغه اولادته ،،حرقات،، ونيل شروع شو.(٣)
هغوی طرف ته رسول الله صلى الله عليه وسلم اسامه بن زيد رضي الله عنه د لښکر امير جوړکړو او اوليږلو .دامام بخاري د اسلوب او عادت نه معلوميږي.چه حضرت اسامه هم ددې لښکر امير وو.خوداهل سير او مغازي په نيز ددې لښکر امير ،غالب بن عبدالله ليثي رضي الله عنه وو.اوهغوی دا د ،،سرية

١) فتح البارى(٥١٧/٧)_
٢) المستدرک للحاکم التلخيص للذهبي (٤٢/٣) کتاب المغازی ذکر فضيلة جعفر رضي الله عنه_
٣) فتح البارى (٥١٧/٧)_

غالب بن عبدالله ليثي،، په نوم سره ليکي.اوس سوال دا پيدا کيږي.چه دا سريه غالب بن عبدالله ليثي اوګرځولې شي.او که سريه اسامه بن زيد،دسريه غالب بن عبدالله په باره کښې د اهل سير رائې دا ده.چه دا د رمضان ٧ھ واقعه ده. [١]

امام بخاري رحمه الله دا د غزوه موته نه پس ذکر کوي.او غزوه موته په ٨ھ کښې شوې وه.نودا واقعه د امام بخاري رحمه الله په نيز د ٧ھ نه ده.بلکه د ٨ھ ده.حضرت اسامه به زيد نبي ﷺ د دهغه د پلار زيد بن حارثه په حيات کښې چرته هم د يو لښکر امير نه وو جوړ کړې.کله چه زيد بن حارثه رضي الله عنه په جمادي الاولى ٨ھ کښې شهيد شو.نو د دې نه پس نبي ﷺ حضرت اسامه د مختلفو سرايو امير جوړ کړې وو.او ليږلې وو.دعام اهل سره په خلاف دامام بخاري رحمه الله رائې دا ده.چه د دې لښکر امير حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه وو.اودا د ٨ھ واقعه ده. [٢] اوښکاره ده چه امام بخاري په دې باب کښې د چا مقلد نه دې.

[٤٠٢١] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ أَخْبَرَنَا أَبُو ظَبْيَانَ قَالَ سَمِعْتُ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَقُولُ بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْحُرَقَةِ فَصَبَّحْنَا الْقَوْمَ فَهَزَمْنَاهُمْ وَلَحِقْتُ أَنَا وَرَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ رَجُلًا مِنْهُمْ فَلَمَّا غَشِينَاهُ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ فَكَفَّ الْأَنْصَارِيُّ عنه فَطَعَنْتُهُ بِرُمْحِي حَتَّى قَتَلْتُهُ فَلَمَّا قَدِمْنَا بَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا أُسَامَةُ أَقَتَلْتَهُ بَعْدَ مَا قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ قُلْتُ كَانَ مُتَعَوِّذًا فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا حَتَّى تَمَنَّيْتُ أَنِّي لَمْ أَكُنْ أَسْلَمْتُ قَبْلَ ذَلِكَ الْيَوْمِ [ر:٦٤٧٨]

حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه فرمائي.چه رسول الله ﷺ مونږ د قبيله حرقه طرف ته اوليږلو.مونږد صبا په وخت کښې په هغوی حمله اوکړه.اوهغوی ته موشکست ورکړو.په دې دوران کښې زه او يو انصاري صحابي دهغې قبيلې يو کس سره ملاؤ شو.کله چه مونږ هغه د قتل کولو او وژلو دپاره راګير کړو.نو هغه اوونيل .((لااله الا الله)) انصاري چه واوريدل.نو اودريدو.خوما هغه په نيزه باندې اووهل.او قتل مې کړو.ددې نه پس کله چه مونږ مدينې ته راغلو.او رسول الله ﷺ ته ددې خبر اوشو.نو نبي ﷺ اوفرمائيل.((يااسامة أقتلته بعد ما قال لا اله الا الله)) اې اسامه د لااله الا الله وئيلو باوجود تا هغه قتل کړو.ما اوونيل.هغه خود ځان بچ کولو دپاره کلمه وئيله.خو نبي ﷺ مسلسل دا وئيل.((أقتلته بعد ما قال لا اله الا الله))

**قوله**: حَتَّى تَمَنَّيْتُ أَنِّي لَمْ أَكُنْ أَسْلَمْتُ قَبْلَ ذَلِكَ الْيَوْمِ: تردې چه ما دا تمنا اوکړه.چه د نن نه وړاندې ما اسلام راوړې نه وې.

ددې جملې مطلب دا دې.چه د نبي ﷺ د بار بار وئيلو نه حضرت اسامه ته دخپلې غلطۍ د سختوالي احساس اوشو.او هغه تمنا اوکړه.چه کاش زه اوس مسلمان شوې ووم.چه د

---

[١] فتح الباري(٥١٧/٧)_

[٢] فتح الباري(٥١٧/٧)_

«الإسلام يهدم ما كان قبله» مطابق زما ددې غلطئ کفاره او تدارك شوې وې.دا مطلب نه دې.چه حضرت اسامه بن زید رضی الله عنه العياذبالله د کفر تمنا کړې وه.چه زه اول کافر وې.او اوس مې روسته اسلام راوړې وې.په دې تمنا سره ئې دخپلې لوئې غلطئ تدارك مقصود وو.داسې نه چه د کفر،دواړه خبرې جدا جدا دی.[1]

[۴۰۲۲/۴۰۲۳] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَلَمَةَ بْنَ الْأَكْوَعِ يَقُولُ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ وَخَرَجْتُ فِيمَا يَبْعَثُ مِنَ الْبُعُوثِ تِسْعَ غَزَوَاتٍ مَرَّةً عَلَيْنَا أَبُو بَكْرٍ وَمَرَّةً عَلَيْنَا أُسَامَةُ وَقَالَ عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَلَمَةَ يَقُولُ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ وَخَرَجْتُ فِيمَا يَبْعَثُ مِنَ الْبَعْثِ تِسْعَ غَزَوَاتٍ عَلَيْنَا مَرَّةً أَبُو بَكْرٍ وَمَرَّةً أُسَامَةُ

**قوله**: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ...: حضرت سلمة بن اکوع رضی الله عنه فرمائی.«غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ وَخَرَجْتُ فِيمَا يَبْعَثُ مِنَ الْبَعْثِ تِسْعَ غَزَوَاتٍ» ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په اووه غزواتو کښې شرکت کړې دې.او نهه داسې غزواتو کښې مې شرکت کړې دې.په کومو کښې چه نبی صلی الله علیه وسلم لښکر لیږلې دې.اونبی صلی الله علیه وسلم په خپله په هغې کښې نه وو تلې.

حضرت سلمه رضی الله عنه چه په کومو اووه غزاګانو کښې د نبی صلی الله علیه وسلم سره شرکت کړې وو.په هغې کښې اوله غزوه خیبر ،دویمه حدیبیه،دریمه حنین، څلورمه ذی قرد پنځه فتح مکه شپږمه طائف او اوومه غزوه تبوك وه.[2] اوپه نهه سریو کښې دوی شرکت کړې وو.سریه هغه لښکرته وائی.په کوم کښې چه نبی صلی الله علیه وسلم په خپله شریك شې نه وی.خودا د متاخرینو اصطلاح ده.د متقدمینو په اصطلاح کښې که نبی صلی الله علیه وسلم تشریف اوړې وی اوکه نه،په دواړو باندې غزوې اطلاق کیږی.ددې وجې دلته «تسع غزوات» د«تسع سريات» په معنی کښې دی.وړاندې حضرت سلمه رضی الله عنه فرمائی .چه په دې نهو غزواتوکښې کله نبی صلی الله علیه وسلم په مونږ باندې حضرت ابوبکر رضی الله عنه (غوندې جلیل القدر او معمرصحابی) امیر جوړ کړې وو.اوکله اسامه بن زید (غوندې کم عمر او نوې زلمې) امیر مقرر کړې وو.

**قوله**: وَقَالَ عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ...: داولنی روایت د تائید دپاره امام بخاری دا روایت نقل کړې دې.

[۴۰۲۳] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ وَغَزَوْتُ مَعَ ابْنِ حَارِثَةَ اسْتَعْمَلَهُ عَلَيْنَا

د ابن حارثه نه مراد حضرت اسامه بن زیدبن حارثه دې.

---

[1] ) لامع الدراری (۳۶۰/۸)_

[2] ) فتح الباری(۵۱۸/۷)_

[٣٠٢٤] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ مَسْعَدَةَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ فَذَكَرَ خَيْبَرَ وَالْحُدَيْبِيَةَ وَيَوْمَ حُنَيْنٍ وَيَوْمَ الْقَرَدِ قَالَ يَزِيدُ وَنَسِيتُ بَقِيَّتَهُمْ وَنَسِيتُ بَقِيَّتَهُمْ اى بقية غزواتهم

او اوس وړاندې په ماقبل کښې هغه باقی غزوات بيان کړې شوې.

## بَاب غَزْوَةِ الْفَتْحِ

### وَمَا بَعَثَ بِهِ حَاطِبُ بْنُ أَبِي بَلْتَعَةَ إِلَى أَهْلِ مَكَّةَ يُخْبِرُهُمْ بِغَزْوِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

امام بخارى رحمه الله دوه ترجمې قائمې کړې دى.يوه ((باب غزوة الفتح)) او بله ددې نه پس ((باب غزوة الفتح فى رمضان)) په اولنى باب کښې خو امام بخارى نفس غزوه بيانول غواړى.اوددې ابتدائى امورو طرف ته اشاره کول مقصود دى.او په دويم باب کښې ددې تاريخ طرف ته اشاره کول مقصود دى.اول تاسو ددې غزوې تاريخى تفصيل واورئ.ددې نه پس به ان شاء الله په روايات بخارى باندې بحث کيږى.

رسول الله ﷺ د حضرت ابراهيم گده نشين او د هغوى د کار د تړلو نه لوئې داعى وو حضرت ابراهيم عليه السلام د توحيد په بنياد باندې په مکه مکرمه کښې د خانه کعبې بنياد کيخودې وو.خوهغه خانه کعبه چه د توحيد په بنيادونو باندې قائمه شوې وه.د ٣٦٠ بتانو نه ډکه وه.نبى ﷺ چه کله الله تعالى د نبوت په دولت باندې کامياب کړو.نونبى ﷺ د توحيد اعلان شروع کړو.اودوى غوښتل، چه دټولې دنيا نه دکفر او شرک د بنيادونو خاتمه اوکړى.خو چه په مکه کښې د استوګنې په دوران کښې نبى ﷺ ته د قريشو د مخالفت اوعربو د دشمنو په وجه دومره موقع ملاؤ نشوه،چه خانه کعبه د بتانو د ګندګئ نه پاکه کړى.ترڅو چه الله تعالى دوى ته د هجرت اجازت ورکړو.او هجرت ئې اوکړو مدينې منورې ته ئې تشريف يوړو .نو تريو زمانې پورې د قريشو په پرله پسې حملو کولو په مدافعت کښې مشغول وو.او نبى ﷺ د کعبې طرف ته توجه نشوه کولې.په ٦ھ نبى د عمرې په نيت باندې کعبې طرف ته لاړو.نو قريش رکاوټ شو.او آخردا چه صلح حديبيه واقع شوه.لکه څنګه چه وړاندې په تفصيل سره خبره تيره شوې ده.چه په دې صلح کښې د عربو عامو قبيلو ته اختيار ورکړې شوې وو.چه کومه قبيله دچا سره ملاويدل غواړى .هغوى سره دې ملګرى شى.نو څه قبيلې رسول الله ﷺ سره شوې اوڅه د مکې قريشو سره ملګرې شوې.په دې قبيلو کښې بنو خزاعه قبيله د مسلمانانو سره شوه.او د دوى حليف شوه.اوقبيله بنو بکر د قريشو حليف جوړه شوه.خودا صلح قريشو سره زياتې مودې پورې پاتې نشوه.د صلح حديبيه نه وړاندې قريش څه چه ټول عرب نبى ﷺ طرف ته متوجه وو.او د نبى ﷺ خلاف په قسم قسم سازشونو کښې مشغول وو.خوچه کله صلح اوشوه.نود ساه اخستو موقع ملاؤ شوه.بل طرف ته مسلمانانوته د دعوت اسلام او تبليغ يوه ډيره ښه موقع په لاس ورغله.اوبل طرف ته د عربو قبيلو ته خپلې خانه جنګئ وربه يادې شوې.

بنو خزاعه او بنوبکرکښې د پخوا زمانې راسې دشمنئ راروانې وې.خود ظهور اسلام نه پس د دې دواړو توجه اسلام او مسلمانانو ته گرځیدلې وه.ددې په وجه ددوی په خپله مینځ کښې جنګ سوړ شوې وو.د صلح حدیبیه نه پس د جنګ شغلې دوباره تازه شوې.او بنو بکر په بنو خزاعه باندې حمله اوکړه.د قریشو ډیرو کسانو په دې حمله کښې بنو بکر سره امداد اوکړو.عکرمه بن ابی جهل، صفوان بن امیه و سهیل بن عمرو وغیره پخپله په دې حمله کښې شریك شو.خزاعه په حرم کښې پناه واخستله.خوهلته هم هغوی ته پناه ملاؤ نشوه.اوهغوی قتل کړې شو.او لوټ کړې شو.(١)

قریشو دا د صلح حدیبیه ښکاره خلاف ورزی اوکړه.ځکه چه د صلح حدیبیه په شرطونو کښې دا خبره شامله وه،چه نه به مسلمانان د قریشو حلیفو قبیلو سره جنګ کوی.او نه به قریش د مسلمانانو حلیف قبیلو خلاف د جنګ کاروائی کښې برخه اخلی.دلته قریشو ددې شرط خلاف ورزی اوکړه.اود مسلمانانو حلیف بنو خزاعه خلاف ئې باقاعده په جنګ کښې حصه واخسته.اودغه شان د لسو کالو دپاره چه کومه معاهده شوې وه.هغه ئې ماته کړه.

عمروبن سالم د څلویښتو کسانو یو وفد واخستل.اود قریشو د معاهده صلح د خلاف ورزئ ګیلې اود نبی ﷺ نه د مدد طلب کولو په غرض مدینه منورې ته حاضر شو.او ډیر دردناك اشعار ئې اووئیل.او د نبی ﷺ نه ئې مدد اوغوښتل.(٢)

نبی ﷺ قریشوته پیغام اولیږلو،چه په درې خبرو کښې یوه خوښه کړئ.① د بنو خزاعه د مقتولینو دیت ادا کړئ.② یا د بنو بکر د معاهدې نه جدا شئ.③ یاد صلحې دمعاهدې د منسوخ کیدو اعلان اوکړئ.

قرطه بن عمرو د قریشو دطرفه جواب ورکړو،او وې وئیل.چه مونږ دریمه خبره اختیاروو.نو قاصد دهغه جواب راوړو ،او مدینې منورې ته واپس شو.د قاصدد روانیدو نه سمدستی روسته قریشو په خپل بیوقوفتوب باندې پښیمانتیا او ندامت ورغلو.(٣)

---

(١) اوګورئ سیرت ابن هشام مع الروض الانف (٢\٢٦٤) زاد المعاد (٣٩٤\١٤و ٣٩٥)_

(٢) په سیرت ابن هشام کښې هغه اشعار داسې منقول دی.

یا رب إنی ناشد محمدا ... حلف أبینا وأبیه ألا تلدا
قد کنتم ولدا وکنا والدا ... ثمت أسلمنا فلم ننزع یدا
فانصر هداک الله نصراً اعتدا ... وادع عبادالله یاتوا مددا
فیهم رسول الله قد تجردا ... إن سیم خسفا وجهه تربدا
فی فیلق کالبحر مزبدا ... إن قریشاً أخلفوک الموعدا
ونقضوا میثاقک المؤکدا ... وجعلوا إلی فی کداء رصدا
وزعموا أن لست أدعو أحدا ... وهم أذل وأقل عددا
هم بیتونا بالوتیر هجدا ... وقتلونا رکعاً وسجداً

سیره ابن هشام مع الروض الأنف (٢\٢٦٥)_

(٣) زرقانی (٢\٢٣٦)_

**د قريشو د طرفه د تجديد معاهدې كوشش:** قريشو ابو سفيان د معاهدې د تجديد دپاره مدينې منورې ته د نبى ﷺ په خدمت كښې راوليږل.ابو سفيان راغلو.اود نبى ﷺ په خدمت كښې حاضر شو. خو اول خپلې لور ام المومنين حضرت ام حبيبه ﷞ كره ورغلو.په كور كښې د نبى ﷺ بستره خوره شوې وه.ام المومنين هغه بستره راغونډه كړه.ابو سفيان ډير په حيرانتيا سره تپوس اوكړو.بچې تا دا بستره راغونډه كړه.دا بستره دې زما قابله اونه ګنړله.اوكه زه دې د دې بسترې قابل اونه ګنړلم.ام المومنين اووئيل.ته مې ددې بسترې قابل اونه ګنړلې.دا د رسول الله ﷺ بستره ده.په دې باندې يو مشرك څنګه كيناستې شى؟ ابو سفيان چه دا غير متوقع جواب واوريدو.نو وې وئيل.په الله قسم لورې ته زمانه پس په شر كښې اخته شوې ئې.ام المومنين اوفرمائيل.په شر كښې نه.بلكه د كفر دتيرې نه رابهر شوې يم.اوپه اسلام كښې داخل شوې يم.(١) بيا ابو سفيان مسجد نبوى ته داخل شو.او نبى ﷺ ته ئې د تجديد معاهدې خبره اوكړه.نبى ﷺ خاموش شو.كله چه د دربار رسالت نه څه جواب ملاؤ نشو.نو دې حضرت ابوبكر ﷛ ته ورغلو.حضرت ابوبكر ﷛ اووئيل. زه څه نشم كولې.حضرت فاروق ﷛ ته ورغلو.اود تجديد معاهدې سفارش ئې اوكړو.هغه اووئيل.

**قوله:** أنا أشفع لكم إلى رسول الله ﷺ؟ والله لو لم أجد الا الذر لجاهدتكم به: زه رسول الله ﷺ ته ستا سفارش اوكړم؟كه زما سره تاسو سره د جنګ دپاره هيڅ هم نه وى.نو هم به تاسو سره جهاد كوم.

چه ددې ځائې نه مايوسه شو.نو بيا حضرت على ﷛ ته ورغلو.حضرت على ﷛ ورته اووئيل.چه رسول الله ﷺ كوم قصد او اراده كړې ده.اوس په چا كښې دا جرات نشته.چه هغه نبى ﷺ سره په هغه باره كښې خبره اوكړى.ابوسفيان حضرت على ﷛ ته منت اوكړو.چه ماته خو څه طريقه اوښايه.چه زه اوس څه اوكړم.حضرت على ﷛ ورته اووئيل.زما په ذهن كښې خو صرف دومره خبره راځى.كه ته مناسب ګنړې.نو داسې اوكړه.چه جمات ته لاړ شه.او اعلان اوكړه.چه زه د صلح د تجديد دپاره راغلې يم.(٢) نو ابو سفيان راغلو.او اعلان ئې اوكړو.او واپس مكې مكرمې ته راړلو.دمكې خلقو ته چه كله صورتحال معلوم شو.نو هغوى اووئيل.نه خودا صلح ده.چه مونږ غلى كينو.او نه دا د جنګ خبر دې.چه مونږ دې دپاره تيارى اوكړو.

**دمكې د فتحې تيارى:** رسول الله ﷺ د ابوسفيان د واپسئ نه پس د فتح مكه تيارى شروع كړه.او صحابو ﷡ ته ئې اووئيل.چه دا پټه ساتئ.ددې ښكاره كول نه دى پكار.په دغه دوران كښې حضرت حاطب بن ابى بلتعه د اهل مكه په نوم يو خط اوليكل.په هغې كښې د رسول الله ﷺ د مكې د فتحې د تيارئ اطلاع وركړې شوې وه.دا خط د يوې ښځې په لاس مكې

---

(١) السيرة الحلبية (٧٢\٣) والكامل لابن الأثير (١٦٣\٢)_

(٢) سيرة ابن هشام مع الروض الأنف (٢٦٥\٢) والكامل لابن الأثير (١٦٣\٢؛) وزاد المعاد (٣٩٧\٣و ٣٩٨) والسيرة الحلبيى (٧٣\٣)_

ته روان کړې شوې وو.خو الله تعالی دوحی په ذریعه نبی ﷺ ته خبرورکړو.اوهغه خط اونیوې شو. د دې تفصیل وړاندې تیر شوې دې.

**د اسلامی لښکر روانیدل:** رسول الله ﷺ د لس زره لښکر سره مکې مکرمې ته روان شو.دا د رمضان لسم تاریخ۸ھ د جنورئ ٦٣٠ ء واقعه ده.(۱) په ازواجو کښې حضرت ام سلمه او حضرت میمونه رضی الله عنهما د نبی ﷺ سره وې.په مقام ذوی الحلیفه یا مقام جحفه کښې حضرت عباس د خپل اهل وعیال سره مدینې منورې ته هجرت کونکی ملاؤ شو.حضرت عباس وړاندې ایمان راوړې وو.خو د رسول الله په حکم سره په مکه کښې اوسیدو.حضرت عباس رضی الله عنه سامان مدینې منورې ته اولیږل.اوپه خپله داسلامی لښکر سره شو.اود قریشو خبرونه به ئې نبی ﷺ ته رارسول.(۲) په مقام ابواء کښې د نبی ﷺ د تره خوئې حضرت ابوسفیان بن حارث او د تررو (دپلار خور) خوئې حضرت عبدالله بن ابی امیه د مکې نه مدینې منورې ته هجرت کولو چه نبی ﷺ سره ملاؤ شو.او د نبی ﷺ په لاس باندې مشرف په اسلام شو.(۳) د مدینې منورې نه د روانیدو په وخت کښې ټولو صحابه روژه دار وو.چه مقام کدید ته اورسیدل.نو نبی ﷺ د صحابو رضی الله عنهم د مشقت د وجې روژه ماته کړه.او صحابو رضی الله عنهم هم د نبی ﷺ په اتباع کښې روژه ماته کړه.(۴) د مقام کدید نه لاړل او د ماخستون اسلامی لښکر مرالظهران ته اورسیدل.هلته ډیره شو.نبی ﷺ حکم ورکړو.چه ټولې قبیلې دې خپلې خپل اورونه جدا جدا اولګوی.دغه شان ټوله صحراء د رڼاګانو یوه نظاره شوه.(۵)

قریشو سره د خپلې وعده خلافئ په وجه دا فکر شوې وو.چه په هر وخت کښې مسلمانان په مکه باندې حمله کولې شی.ددې وجې د شپې د تحقیق حال دپاره ابوسفیان ، بدیل بن ورقاء ،او حکیم بن حزام د مکې نه راووتل.چه مقام مر الظهران ته اورسیدل.او اورونه ئې اولیدل.ابوسفیان اووئیل.دا اور دلته څنګه دې؟ بدیل اووئیل. د بنو خزاعه دې.ابوسفیان اووئیل.د خزاعه دومره لښکر دکوم ځائې نه راغلو.اوس لا دې کسانو داور په باره کښې تخمینې لګولې.چه د رسول الله ﷺ په حفاظت باندې مقرر څو صحابو رضی الله عنهم دوی اولیدل. اواونیول.حضرت عباس رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په خچر باندې سور ګیرچاپیره ګرځیدلو.چه ابوسفیان طرف ته راغلو.هغه ئې خپل ځان پسې روسته کینولو.او د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو.او دنبی ﷺ نه ئې د هغه دپاره پناه ا وغوښتله.حضرت عمرچه ابو سفیان اولیدل.نو توره ئې راواخستله.او په هغه پسې شو.اود رسول الله ﷺ نه ئې د هغه د ځټ وهلو اجازت اوغوښتلو.حضرت عباس اووئیل.یارسول الله ده ته ما پناه ورکړې ده.حضرت

---

۱) البدایة والنهایة (۳۷۸\٤)_ وسیرة النبی ﷺ (۲۹٤\۱)و طبقات ا بن سعد (۱۳۵\۲)_
۲) سیرة مصطفی (۱۳\۳) والکامل لابن الأثیر (۱٦٤\۲)_
۳) البدایة والنهایة (۲۸۷\٤)_
٤) البدایة والنهایة (۲۸٦\٤)_
۵) طبقات ابن سعد (۱۳۵\۲)_

عمر ﷺ چه کله د ابوسفیان په قتل باندې اصرار اوکړو.نو عباس ﷺ اووئیل. عمرا که دې د بنو عدی ځنې وو.نوتا به دده په مرګ باندې هیڅ کله دومره اصرار نه وو کړې.خوچونکه دې د بنو عبد مناف سره تعلق ساتی.ځکه ته دده په قتل باندې دومره اصرار کوې.حضرت عمر ﷺ اووئیل.

**قوله**: مهلا یا عباس،فوالله لإسلامك یوم أسلمت کان أحب إلی من إسلام الخطاب لوأسلم،وما بی إلا أنی قد عرفت أن إسلامك كان أحب إلی رسول الله من إسلام الخطاب: [1] اودریږه عباسه ستا اسلام په الله قسم دې چه ماته (دخپل پلار) خطاب د اسلام راوړو نه زیاته خوښ وو.ځکه چه ماته معلومه وه.چه رسول الله ﷺ ته ستا اسلام راوړل د خطاب داسلام راوړو نه زیات خوښ وو.

رسول الله ﷺ عباس ته اووئیل. ننه شپه ابوسفیان خپلې خیمې ته بوځه، او صبا د صحر نې ماته راوله.ابوسفیان دحضرت عباس ﷺ سره خیمې ته لاړل.او حکیم بن حزام او بدیل بن ورقاء دواړه د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.اوپه اسلام مشرف شو.

په راروان صبا ابوسفیان د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.او اسلام نې راوړو..په شروع شروع کښې ابوسفیان ته د اسلام په باره کښې تذبذب وو،خوبیا هغه تذبذب ختم شو،او د اسلام دپاره دوی لوئې قربانیانې ورکړې.[2]

حضرت عباس ﷺ رسول الله ﷺ ته اووئیل. یارسول الله ابوسفیان د مکې سردار دې. ته ده ته څه امتیاز ورکړه.رسول الله ﷺ اوفرمائیل.اعلان اوکړئ.کوم کس چه د ابوسفیان کور ته داخل شو.هغه به په امن وی.ابوسفیان اووئیل. یارسول الله زما په کور کښې تول کسان چرته راتلې شی.نبی ﷺ اوفرمائیل.کوم کس چه مسجد حرام ته داخل شو.هغه دپاره هم امن دې.ابوسفیان اووئیل.په جمات کښې هم دومره ګنجائش نشته.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.بنه ده چه کوم کس د خپل کور دروازه بنده کړی.او په کو رکښې کینی.دهغه دپاره هم امن دې.[3]

بیا رسول الله ﷺ حضرت عباس ته اوفرمائیل.ابوسفیان دې دغر سر ته بوځی. اواودرولې شی.په کومه چه اسلامی لښکرې تیریږی.دې دپاره چه دې ښه ددې مشاهده اوکړی.

په بله ورځ د مکې طرف ته د روانیدو اعلان اوشو.د لسو زره قدسیانو پاکبازو جمعیت مکې طرف ته روان شو.ابوسفیان به تپوس کولو،.دا څوك دی؟ حضرت عباس ﷺ به ورته بیانول چه دا قبیله غفار ده.دا سعدبن هذیم ده.دا سلیم ده.بیا یو لوئې لښکر راغلو.چه د وادئ (خوړ) نه تیریدل.ابوسفیان چه هغه اولیدل.نو حیران شو اوتپوس ئې اوکړو.دا څوك دی؟ حضرت عباس ﷺ اووئیل. دا انصار دی.دانصارو بیرغ د حضرت سعد بن عباده ﷺ سره وه.چه ابوسفیان ئې اولیدل.نو د حضرت سعد حمیت په جوش کښې راغلو.اودهغه د

---

[1]) د تفصیل دپاره اوګورئ البدایة والنهایة (٢٨٩\١٤و ٢٩٠) وزد المعاد (٣٠٢\٣)_

[2]) الکامل لابن الأثیر (١٦٥\٢) والبدایة والنهایة (٢٨٩\١٤)_

[3]) دلائل النبوة للبیهقی (٣٢\٥) باب نزول رسول الله ﷺ بمر الظهران)_

ژبې نه دا جمله اووتله.((الیوم یوم الملحمة الیوم تستحل الکعبة)) نن د جنګ ورځ ده.نن به کعبه د قتل وقتال دپاره حلاله کړې شي.چه دا جمله ئې واوریده.نود ابوسفیان زړه اوویریدل.هغه حضرت عباس رضي الله عنه ته اووئیل. ابوالفضل تا واوریده.چه سعد بن عباده اوس څه اووئیل.په دې کښې د رسول الله ﷺ ډله د ابوسفیان په خواه کښې تیریده .ابوسفیان اووئیل.یارسول الله تاسو واوریدل.چه سعد څه اووئیل.نبی ﷺ اوفرمائیل .څه ئې اووئیل.ابوسفیان ورته خبره دوباره اوکړه.نوددواړو جهانو سردار اوفرمائیل .((کذب سعد ولکن هذا الیوم یعظم الله فیه الکعبة ویوم تکسی فیه الکعبة)) سعد صحیح نه دی وئیلی.په نن ورځ خو به الله تعالی د کعبې د تعظیم انتظام اوکړي.او کعبې ته به غلاف واچولې شي.

ددې نه پس نبی ﷺ حکم ورکړو.چه د سعد بن عباده رضي الله عنه نه دې بیرغ واخستې شي.اودهغه خوئې قیس بن سعد رضي الله عنه ته دې ورکړې شي.(۱) دا حکم نبی ﷺ ددې دپاره ورکړو.چه حضرت سعد ته تنبیه اوشي.خودا حکم د حضرت سعد رضي الله عنه د خفګان سبب نه وو.ځکه چه بیرغ هم په خپل کور کښې پاتې شوه.دخپل لاس په ځائې د خوې په لاس کښې شوه.

ابوسفیان چونکه د مکې سردار وو.ددې وجې هغه سره د اهل مکې فکر وو. په تلوارد اسلامی لښکر نه وړاندې اووتل.او مکې ته داخل شو.او اعلان ئې اوکړو .چه اسلامی لښکر راروان دې.اسلام راوړئ.نو محفوظ به شئ.یا زما کور ته داخل شئ.یا دخپلو کورونو دروازې بندې کړئ.اویا مسجد حرام ته لاړ شئ.نو په امن به شئ.چه د ابوسفیان دا اعلان ئې واوریده.نودهغه ښځه هنده راغله.او ابوسفیان ئې د ګیرې نه اونیولو او وې وئیل.((یاآل غالب: اقتلوا هذا الشیخ الأحمق)) ابوسفیان ښځې ته اووئیل.((ارسلي لحیتي واقسم لئن لم تسلمي أنت لتضربن عنقك أدخلي بیتك))(۲) زما ږیره پریږده.زه قسم خوروم.او وایم.که تا اسلام قبول نکړو. نو ستا څټ به قلم کولې شي.کور ته ننوځه.

**مکې مکرمې ته داخلیدل:** دمکې مکرمې پورتنی طرف ته ,,کداء ((بضم الکاف والمد)) وئیلی شي.او ښکتنی طرفته ,,کدی,, (بضم الکاف والقصر) وئیلې شي.(۳) نبی کریم ﷺ د ,,کداء,, طرف نه مکې ته داخل شو.او حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه ته ئې د انصارو یوه ډله ورکړه.د ,,کدی,, طرف نه ئې ورته د داخلیدو حکم اوکړو.(۴) اوهغه ته نبی ﷺ فرمائیلی وو.چه چاته به تعرض نشی کولې.خوکه څوك مقابلې ته راشي.نو ((فاحصدوهم حصداً حتی توافوني علی الصفاء))(۵)

---

(۱) اوګورئ دلائل النبوة للبیهقي (۵\۳۸) والبدایة والنهایة (۱۴\۲۹۰) وصحیح بخاری کتاب المغازی باب أین رکز النبی ﷺ الرایة یوم الفتح رقم الحدیث ۴۲۸۰_

(۲) الکامل لابن الأثیر (۲\۱۶۶)_

(۳) الروض الأنف (۲\۲۷۰)_

(۴) البدایة والنهایة (۴\۲۹۲) وعمدة القاری (۱۷\۲۸۰)_

(۵) زاد المعاد (۳\۴۰۴)_

حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه چه د کوم طرف نه داخلیدو.هلته د قریشو څو (اوباش) خوشاباری (لوفران) جمع شوی وو.او مقابله کول ئې شروع کړو.حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه کوشش اوکړو. چه دجنګ نوبت رانشی.خوهغه خلق نه منع کیدل .اوورکوټي غوندې جنګ اوشو.په هغې کښې دوه مسلمانان او د یو روایت مطابق درې مسلمانان شهیدان شو.په هغې کښې حضرت کرزبن جابر فهری،حضرت حبیش بن اعشر او حضرت مسلمه بن المیلاء شامل وو.اود کافرانو دولس (١)اود یو روایت مطابق څلوریشت کسان قتل شول.(٢) کله چه نبی صلی الله علیه وسلم توری پرقیدونکي اولیدې.اوصورتحال ئې معلوم کړو.نو حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه پوره خبره بیان کړه.نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل.څه چه په تقدیر کښې وو.په هغې کښې خیر دې.(٣)

دنبی صلی الله علیه وسلم دپاره نن ورځ د خوشحالئ او مسرت ورځ وه.دکوم زمکې نه چه په دوی باندې د غرونو پشان ظلمونه شوی وو.او دوی ویستلی شوی وو.چرته چه د دوی مظلومان ملګری په سوزونکی شګه باندې سملولی شول.اوچرته چه د توحید آواز اوچتول خپل مرګ ته دعوت ورکول وو.نن الله تعالی د اوږد او د صبر د مراحلو طې کولو نه پس دوی ته په دغه زمکې کښې فاتحانه شان باندې د داخلیدو موقع ورکړه.اوهغه وخت راغلو.چه نبی صلی الله علیه وسلم حرم مکه د کفراو شرك د ګندګو نه پاك کړی.او د الله تعالی په دې کور کښې بیا د توحید آوازونه اوچت شی.دکوم ځائې مقدس فضاګانې چه د صدو پورې د توحید د آوازونو نه معمور وې.اواوس هغه د (٣٦٠) بتانو میله جوړه شوې وه.خو د دواړو جهانو سردار حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دخوشحالئ او مسرت په دې موقع د فخراوغرور طریقه اختیار نکړه.بلکه د انکسارئ او عاجزئ ئې دا حالت وو.چه په اوښه باندې سور وو.زړه ئې د شکر د جذباتو نه ډك وو.او په ژبه ئې د سورة فتح تلاوت جاری وو.او سر مبارك ئې د عاجزئ د وجې ټیټ د پردې لرګی سره لګیدل.(یعنی هغه لرګې چه په هغې کښې ئې پرده اویزانده کړې وه) (٤)

چه مکې مکرې ته داخل شو.نو د ټولو نه وړاندې ئې د حضرت ابوطالب لور حضرت ام هانی کور ته تشریف یوړو.غسل ئې اوکړو.او اته رکعته مونځ ئې اوکړو .د اهل علم په اصطلاح کښې دې مونځ ته ،،صلاة الفتح،، وائی.(٥)

د نبی صلی الله علیه وسلم دقیام دپاره په هغه شعب ابی طالب کښې خیمه اولګولې شوه.چرته چه په ابتداء د اسلام کښې قریشو او بنو کنانه په شریکه بنو هاشم او بنو المطلب محصور کړی وو.

**مسجد حرام ته داخلیدل:** ددې نه پس نبی صلی الله علیه وسلم مسجد حرام ته راغلو.اود خانه کعبې طواف ئې اوکړو.او د خانه کعبې نه ګیرچاپیره چه د درې سوه او شپیته بتانو کوم انبار لګیدلې

---

١) زاد المعاد (٣\٤٠٥) وسیرت ابن هشام مع الروض الأنف (٢\٢٧٢) دسیرت ابن هشام په روایت کښې د دیارلسو کسانو ذکر هم شته۔

٢) سیرت حلبیة (٣\٨٣)_

٣) فتح الباری(٨\١١)_

٤) السیرة الحلبیة (٣\٨٤)_

٥) زاد المعاد (٣\٤١٠)_

وو. نبی ﷺ به یو یو بت ته د خپل شل (ورکوټې لرګې) په سوکه باندې اشاره کوله. او د قرآن کریم دا ایت به ئې لوستل.﴿وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ ۖ إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا﴾ [1]
دطواف د فراغت نه پس ئې عثمان بن طلحه راغوښتل.او د خانه کعبې کنجیانې ئې ترې واخستې.بیت الله ئې کهولاؤ کړو.اوپه دې کښې دننه جوړ شوی څو تصویرونه وو.دټولو د ورانولو حکم ئې اوکړو.حضرت عمر رضی الله عنه دننه لاړل.اوچه څومره تصویرونه وو.هغه ټول ئې وران کړل.بیا نبی ﷺ حضرت بلال او حضرت اسامه ځان سره واخستل.او دننه ورننوتل.اود تکبیر مقدسو آوازونو باندې ئې د هغې فضاګانې منورې کړې.[2]
چه بهرته راووتل.نو مسجد حرام ټول ډک وو.اود ښځې کیخودو ځائې نه وو.د خلقو انتظار وو.چه نن به نبی ﷺ د خپلو هغه مخالفینو په باره کښې څه حکم کوی.چا چه دخپل ژوند ټول قوتونه دوی په تکلیف ورکولو اود دین اسلام د تبلیغ په لار کښې ئې د رکاوټ جوړلو دپاره وقف کړی وو.نبی ﷺ هغه خطبه اوونیله. کومه چه د جاهلیت د رسمونو د باطلوالی اوحتمولو او د انسانی مساوات په درس باندې مشتمله وه.د خطبې نه پس نبی ﷺ د مکې قریشو طرف ته اوکتل.او وې وئیل.«یامعشرقریش ما ترون أنی فاعل بکم» ستاسو څه خیال دې چه زه به تاسو سره څه کوم.؟ قریشو اووئیل. «خیرا أخ کریم وابن أخ کریم» دنیکئ ته شریف ورور ئې اود شریف ورور خوئې ئې.نبی ﷺ اوفرمائیل.«لا تثریب علیکم الیوم اذهبوا فأنتم الطلقاء» په تاسو نن څه ملامتیا نشته.ځئ تاسو ټول آزاد ئې.

**د کعبې په چهت باندې اذان:** دچه ماسپخین د مانځه وخت شو.نو نبی کریم ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته حکم اوکړو،چه د کعبې د چهت ته اوخیژه او اذان اوکړه،د څو لمحو تیریدو نه پس د حضرت بلال رضی الله عنه داذان آوازونه د مسجد حرام په پاکو فضاګانو کښې غریدل .عتاب بن اسید او خالد بن اسید د کعبې په صحن کښې ناست وو،چه اذان ئې واوریدل.نو وې وئیل. الله تعالی زمونږ د پلار عزت کړې دې.چه ددې آواز د اوریدو نه وړاندې ئې هغه د دنیا نه رخصت کړې دې.رسول الله ﷺ چه کله دهغوی طرف ته تیرشو،نوورته ئې اووئیل.څه چه تاسو اووئیل.الله تعالی ماته د هغې خبر راکړو،اوهغوی چه څه وئیلی وو.هغه ئې ورته بیان کړو. عتاب بن اسیدچه کله خپله خبره درسول الله ﷺ د ژبې نه واوریده.نو په اسلام مشرف شو.[3]

---

[1] ) الأسراء :۸۱) اوګورئ زاد المعاد (۴۰۶\۳) وصحیح مسلم کتاب الجهاد رقم الحدیث ۴۳۸۹)_
[2] ) فتح الباری (۱۷\۸) و زاد المعاد (۴۰۶\۳ و ۴۰۷)_
[3] ) زاد المعاد (۴۱۰\۳) وسیرت ابن هشام (۴۱۳\۲)..
د سیرت په کتابونوکښې خطبه داسې منقول ده،
لاإله إلا الله وحده لا شریک له،صدق وعده ، ونصر عبده، وهزم الأحزاب وحده، ألا کل مأثرة أو مال أو دم ،فهو تحت قدمی هذا إلا سدانة البیت وسقایة الحجاج. ألا وقتل الخطا شبه العمد السوط والعصا، ففیه الدیة مغلظة مائة من الإبل أربعون منها فی بطونها أولادها ،یا معشر قریش إن الله قد ذهب عنکم نخوة الجاهلیة وتعظمها بالأباء ،الناس من آدم وآدم من تراب، ثم تلا هذه الآیة.... [بقیه حاشیه په راروانه صفحه....

رسول الله ﷺ هغه د مكې والى جوړ كړو.او ترمرګه پورې هم د مكې والى وو.د دوى وفات هم په هغه ورځ شوې وو،په كومه ورځ چه حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه وفات شوې وو.(١)
د غزوه حنين نه په واپس راتلو كښې د حضرت ابومحذوره د مسلمانيدو مشهوره واقعه پيښه شوه.چه دحضرت بلال رضي الله عنه د اذان آواز ئې واوريدو،نوهغه د ټوقو په طرز د اذان نقل كولو.رسول الله ﷺ دهغه د حاضرولو حكم اوكړو.چه هغه راغلو،نو نبى ﷺ په هغه باندې اذان اوكړو،اوهغه په اسلام مشرف شو.نبى ﷺ دې د مسجد حرام موذن مقرر كړو.(٢)
**عام بيعت:** بيا رسول الله ﷺ د سړواو ښځو نه بيعت اخستل شروع كړو.د سړو نه به ئې په اسلام اوجهاد باندې بيعت اخستل،اود ښځو نه به ئې د هغه كارونو بيعت اخستل.دكومو ذكر چه په سورة ممتحنه كښې د بيعت النساء په آيت كښې مذكور دې﴿يَآأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ يُبَايِعْنَكَ عَلٰى أَن لَّا يُشْرِكْنَ بِاللهِ شَيْئًا﴾(الخ) (٣)
**د هنده سره بيعت:** په دغه ښځو كښې د بيعت دپاره د رئيس العرب عتبه لور اود حضرت امير معاويه مور حضرت هنده رضي الله عنها هم راغلې وه.دا هم هغه هنده ده.چا چه د حضرت حمزه د قتل حكم وركړې وو.اود هغه سينه ئې شلولې وه،او اينه (كليجى) ئې چيچلې وه.خو الله تعالى دهغې په زړه كښې داسلام ابدى سعادت ليكلې وو.د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه.رسول الله ﷺ ورته د بيعت په وخت كښې اوفرمائيل.
دالله سره څوك مه شريكوه.
**هنده:** دا اقرار تاسو د سړو نه خو نه دې اخستې.خوبيا هم ماته منظور دې.
رسول الله ﷺ : غلا مه كوه.
**هنده:** زه دخپل خاوند ابوسفيان د مال نه څه غلا كوم.معلومه نه ده چه دا هم په غلا كښې راځي كه نه؟ رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل.دخپلويچو دپاره په اندازه د ضرورت اخستې شې.
رسول الله ﷺ: زنا مكوه.
**هنده:** آيا يوه شريفه ښځه زنا كولې شي.
رسول الله ﷺ : اولاد مه قتلوه.
**هنده:** ((ربيناهم صغاراً ،وقتلتهم يوم بدر كباراً،فأنت وهم أعلم)) يعنى مونږ دخپل اولاد په ماشوموالى كښې تربيت كړې وو.اوپه جنګ بدر كښې تا هغوى قتل كړل. اوس ته اوهغوى

.....دتيرمخ بقيه] ((يا أيها الناس إنا خلقناكم من ذكر وأنثى وجعلناكم شعباً وقبائل لتعارفوا.إن كرمكم عندالله أتقاكم. إن الله عليم خبير)) الحجرات:١٣ ) ثم قال يا معشر قريش ما ترون أنى فاعل بكم؟ قالوا: خيراً أخ كريم وابن أخ كريم قال فإنى أقول لكم كما قال يوسف لأخوته ، ((لا تثريب عليكم اليوم ،إذهبوا فأنتم الطلقاء)) وانظر زاد المعاد (٣\٤٠٧و ٤٠٨) وابن هشام (٢\٤١٢)_
(١) الاصابه فى تميز الصحابه (٢\٤٥١) د دوى د وفات په باره كښې ابن حجردويم قول دا نقل كړې دې.چه د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په آخرى ورځو كښې د دوى وفات شوې دې.والله اعلم.)_
(٢) د تفصيل دپاره اوګورئ سيرت مصطفى (٣\٣٢)_
(٣) سورة الممتحنة :١٢) الكامل لابن الأثير(٢\١٧١)_

په خپلو كښې سره پيش شي چه حضرت عمر ﷺ دا واوريدل.نوپه خندا شو.
رسول الله ﷺ : د نيكئ په كار كښې نافرماني اودحكم مخالفت مكوه.
هنده: مونږ چه دې مجلس ته راغلي يو.نو ستا د نافرمانئ خيال قدرې مو نه دې راوړې.
د بيعت نه پس رسول الله ﷺ د دې دپاره دمغفرت دعا اوكړه.هندة اووئيل. يا رسول الله ﷺ د اسلام نه وړاندې ستاسو د مخ نه زياته مبغوض ماته بل مخ نه وو.او اوس ستاسو دمخ نه زيات بل مخ ماته محبوب نشته.نبي ﷺ ورته اوفرمائيل.اوس به په محبت كښې نور هم زيادت كيږى.(١)
**مباح الدم ګرځولى شوى مجرمان**: دفتحې په وخت كښې څه حضرات داسې وو.چه نبي ﷺ هغوى لره مباح الدم ګرځولى وو.دهغوى په تعداد كښې د ارباب سير روايات مختلف دى. عام اهل سير لس،ابن اسحاق اته،د ابوداود او دارقطنى په روايت كښې د شپږو كسانو ذكر دې.(٢) اوحافظ مغلطائى پنځلس نومونه په مختلفو حوالو سره ذكر كړى دى.په دغه پنځلسو كښې خو اته دنبي ﷺ په خدمت كښې حاضر شو.توبه ئې اوويستله.او اسلام ئې قبول كړو.پنځه قتل كړې شول.يو نجران ته اوتختيدل .اوهلته په حالت د كفر كښې مردار شو.اودد يو په اسلام راوړلواوقتل كولوكښې اختلاف دې.په دې ترتيب سره دا ټول پنځلس كسان شو.
كوم اته كسان چه د نبي ﷺ په خدمت كښې حاضر شواو اسلام ئې قبول كړلو.د هغوى نومونه دا دى.
① **حضرت عكرمه بن ابى جهل رضى الله عنه**: دې داسلام په سختو دشمنانوكښې وو.او دخپل پلار ابوجهل پشان به د اسلام خلاف سازش كښې دهرچا نه وړاندې وو.رسول الله ﷺ دې مباح الدم ګرځولى وو. د مكې دفتحې نه پس دې يمن ته تختيدلې وو.دده ښځې ام حكيم بنت حارث اسلام قبول كړو.اودربارنبوى كښې حاضره شوه. د نبي ﷺ نه ئې د خپل خاوند دپاره امان طلب كړو.بل طرف ته حضرت عكرمه ته د حسن اتفاق سره دا واقعه پيښه شوه.چه كله هغه د ساحل نه په كشتئ باندې سور شو.نو طوفان كشتئ راګيره كړه.عكرمه دخپل مدد دپاره لات او غزى راوبلل.په كشتئ كښې چه كوم موجود خلق وو ،هغوى اووئيل..دلته د لات او عزى څه فائده نه وركوى.دا خبره د حضرت عكرمه زړه ته پريوته،

---

(١) الكامل لابن الأثير (١٧١\٢و ١٧٢) وسيرت مصطفى (٣٥\٣و ٣٦)_
(٢) ابن سعد په طبقات كښې ليكى.((وامر بقتل ستة نفر وأربع نسوة...)) اوګورئ طبقات ابن سعد (١٣٦\٢) ابن اسحاق اته نومونه شمارلى دى.اوګورئ سيرت ابن هشام (٧٣\٢و ٧٤) امام ابوداود په كتاب الجهاد كښې باب قتل الاسير كښې د شپږو كسانو ذكر كړې دې.چه په هغوى كښې څلور سړى اودوه ښځې شامل دى.(اوګورئ سنن ابو داود (٥٩\٣) كتاب الجهاد باب قتل الاسير رقم ٢٦٨٣) علامه ابن اثير دولس كسان ذكر كړى دى.په هغوى كښې اته سړى او څلور ښځې شامل دى.(اوګورئ الكامل لابن الأثير ١٦٨\٢و ١٧٠) دارقطنى شپږ كسان ذكر كړى دى.(اوګورئ الاصابة فى تميز الصحابة (٤٩٧\٢) ترجمه عكرمة أبى جهل)_

دوی اوونیل.، که په دریاب کښې دوی څه فائده نشي ورکولې.نو په اوچه بهم هم فائده نشي ورکولې.اوهم په هغه وخت کښې دوی دا عزم اوکړو.که د طوفان نه ورته الله تعالی نجات ورکړو.نو د رسول اللهﷺ په خدمت کښې به حاضریږم.او اسلام به قبلوم.
دعکرمه ښځه ام حکیم د خپل خاوند په لټون کښې یمن طرف ته اووتله.اوپه ساحل باندې هغه سره ملاؤ شوه.عکرمه ته ئې اووئیل.،ستا دپاره ما د رسول اللهﷺ نه امان حاصل کړې دې.،حضرت عکرمه د هغې سره د نبیﷺ په خدمت کښې حاضر شو.او په اسلام مشرف شو[۱] اوبیا د اسلام دپاره دوی ډیرې نه هیرونکې قربانیانې ورکړې.ټول عمر ئې د اسلام د ترقئ دپاره جهاد اوکړو.د اسلامی تاریخ په مشهور جنګ یرموك کښې دوی.اعلان اوکړو، څوك ماسره بیعت علی الموت کوی؟ څلور سوو کسانو ورسره بیعت علی الموت اوکړو، اود مجاهدینو دغه څلورو سوو کسانو په دشمن باندې زبردسته حمله اوکړه.تردې چه ټول شهیدان شو.کله چه اوکتلی شو، نو حضرت عکرمهؓ په بدن باندې د غشو او تورو د اویا نه زیاتې نښې وې.[۲] رضی الله عنه ورضی عنه.

② **حضرت عبدالله بن سعد بن ابی سرح:** دې اول مسلمان شوې وو.او د رسول اللهﷺ کاتب وحی وو.خوبیا مرتد شوې وو او مکې ته راغلې وو.دې دحضرت عثمانؓ رضاعی ورور وو.دمکې دفتحې نه پس حضرت عثمانؓ دې د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر کړو.او دوباره په اسلام مشرف شو.[۳] دوی هم روسته داسلام دپاره ډیرې قربانیانې ورکړې دی. د حضرت عثمانؓ په دور خلافت کښې د افریقې په جهاد کښې دوی زبردست مجاهدانه کردار ادا کړې وو.دحضرت معاویهؓ په زمانه کښې دوی وفات شوی وو.[۴]

③ **کعب بن زهیر:** دې دعربو مشهور شاعر وو.د اسلام نه وړاندې به ئې د رسول اللهﷺ په دجو کښې اشعار وئیل.دې د مکې نه تخیدلې وو.روسته مدینې منورې ته راغلو.او د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شو،په اسلام مشرف شو.اود نبی ﷺ په مدح کښې ئې هغه مشهوره قصیده اوونیله.دکومې نه چه نن هم د عربی ادب صحراء ګونجیږی.اوکومه چه د ..قصیده بانت سعاد.، په نوم باندې مشهوره ده.[۵] دهغې مطلع دا ده.

بانت سعاد، فقلبی الیوم متبول — متیم اِثرها،لم یفد مکبول

④ **بهاء بن الاسود:** ده حضرت زینب بنت رسول اللهﷺ د هجرت په وخت کښې په نیزه باندې وهلې وه.دهغه په وجه هغه په کاڼرې باندې راپریوتله،اوحمل ئې ضائع شو.او هم په دغه بیمارئ کښې روسته هغه وفات شوه.دې هم مباح الدم ګرځولې شوې وو.خو روسته د

[۱] اوګورئ السیة الحلبیة (۳\۹۲و ۹۳) دغه شان البدایة والنهایة (۱۴\۲۹۸) وسیرة مصطفی (۳\۴۳و ۴۵)_
[۲] الإصابة فی تمیز الصحابة (۲\۴۹۶و ۴۹۷)_
[۳] البدایة والنهایة (۱۴\۲۹۸) دغه شان مستدرک حاکم (۳\۴۵و ۴۶) کتاب المغازی)_
[۴] د تفصیل دپاره اوګورئ الإصابة فی تمیز الصحابة (۲\۳۱۷)_
[۵] الإصابة فی تمییز الصحابة (۳\۲۹۵) ترجمة کعب بن زهیر)_

نبى ﷺ په خدمت كښې حاضرشو،او اسلام ئې راوړو.اوتوبه ئې اوويستله.([1])

⑤ **حضرت وحشى بن حرب:** دوى حضرت حمزه رضي الله عنه شهيد كړې وو.ده هم د فتح مكې په موقع اسلام راوړې وو.ددې تفصيل په غزوه احد كښې تيرشوې دې.

⑥ **عبدالله بن زبعرى:** دې دعربو مشهور شاعر وو.د نبى ﷺ په مذمت كښې به ئې اشعار وئيل.توبه ئې اوويسته.اود نبى ﷺ په خدمت كښې حاضر شو،اسلام ئې قبول كړو.([2])

⑦ **هنده بنت عتبه:** دا هم مباح الدم ګرځولې شوې وه.خوبيا د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه.او اسلام ئې قبول كړو.تفصيل ئې اوس تيرشوې دې.

⑧ **فرتنى:** دا د عبدالله بن خطل وينځه وه.د رسول الله ﷺ خلاف به ئې اشعار وئيل.مباح الدم ګرځولې شوې وه.د فتح مكې په وخت كښې تخيدلې وه.ورسته د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه.او اسلام ئې راوړو.د حضر عمر رضي الله عنه يا حضرت عثمان رضي الله عنه په دوره خلافت كښې وفات شوې وه.([3])

**قتل كړې شوې مجرمان:** كوم كسان چه مباح الدم ګرځولى شوى وو،په هغوى كښې چه كوم پنځه قتل كړې شوى دى.د هغوى تفصيل دا دې.

① **عبدالله بن خطل:** دې اول مسلمان شوې وو.رسول الله ﷺ عامل جوړ كړو،اود صدقو اخستلو دپاره ئې ليږلې وو.ده سره يو غلام هم وو.په لار كښې ئې په يو ځائې كښې غلام ته د روټئ تيارولو دپاره اووئيل.غلام په څه وجه اوده شو.اوروټئ ئې تياره نكړه.ابن خطل په غصه كښې راغلو،غلام ئې قتل كړو.اود صدقو اوښان ئې واخستل مرتد شو،اومكې ته راغلو.چه دلته راغلو د نبى ﷺ په هجو كښې به ئې اشعار وئيل.دده دوه وينځې وې.د سندرو مجلسونه به ئې منعقد كول،اوبه هغوى باندې به ئې د نبى ﷺ په هجو كښې اشعار وئيل.يوخودې د ناحق وينې قاتل مجرم وو.او دويم جرم ئې دارتداد وو.او دريم جرم ئې د نبى ﷺ خلاف اشعار وئيل وو.په دې درې واړو كښې د هر جرم سزا قتل دې.

دفتحې په ورځ دې د كعبې په غلاف پورې انختې وو.نبى ﷺ ته خبر اوكړې شو،چه ابن خطل د كعبې په غلاف پورې انختې دې.نبى ﷺ اوفرمائيل دې هم دغلته قتل كړئ.نو حضرت ابوبرزه اسلمى رضي الله عنه او حضرت سعدبن حريث رضي الله عنه لاړل.او دې ئې قتل كړو.([4]) دده د قتل دا واقعه روسته د بخارى په روايت كښې راځى.

② **مقيس بن صبابه:** دې اول مسلمان شوې وو.بيا مرتد شوې وو او مكې ته راغلې وو.نميله بن عبدالله ليثى رضي الله عنه ده لره قتل كړو([5])

---

[1]) الإصابة فى تميز الصحابة (٣\٥٩٧،و ٥٩٨)_
[2]) اوګورئ سيرت مصطفى (٣\٤٧)_
[3]) الكامل لابن الأثير(٢\١٧٠)_
[4]) السيرة الحلبية (٣\٩١)_
[5]) الكامل لابن الأثير(٢\١٦٩)_

④ **حويرث بن نقيد:** ده به د رسول الله ﷺ په شان كښې ګستاخانه اشعار وئيل.ددې وجې مباح الدم ګرځولې شوې وو.حضرت علي رضي الله عنه ده لره ختم كړو.(١)

④ **حارث بن طلاطل:** ده به هم د نبي ﷺ په هجو كښې اشعار وئيل.د دې وجې دده وينه هدر شوه.او حضرت علي رضي الله عنه ده لره قتل كړو.(٢)

⑤ **قريبه:** دا د ابن خطل وينځه وه.د رسول الله ﷺ خلاف به ئې اشعار وئيل.د غزوه فتح په موقع قتل كړې شوه.(٣)

په مباح الدم ګرځولې شوو پنځلسوكسانوكښې ،،هبيره بن وهب،، هم وو. دې د فتح مكې په وخت كښې نجران طرف ته تختيدلې وو.اوهلته د كفر په حالت كښې مړ شو.(٤)

په دې پنځلسو كښې ،ساره،، نومې يوه ښځه هم وه.دهغې متعلق بعضې وائي.چه قتل كړې شوې وه. (٥)اوبعضې وائي.چه اسلام ئې راوړې وو.او دحضرت عمر رضي الله عنه د زمانې پورې ژوندئ وه.دا هم هغه ښځه وه.چه د حضرت حاطب بن ابى بلتعه رضي الله عنه خط ئې اوړې وو.او مكې ته تله،(٦)

دغه شان د ټول پنځلس كسان شو.چه اته په كښې مسلمانان شوى وو.پنځه قتل كړې شوى وو.يو د كفر په حالت كښې مړ شوې وو.او د يو په اسلام راوړلواو قتل كښې روايات مختلف دى.

خودا ټول تفصيل د حافظ مغلطائي د تحقيق مطابق دې.د بعضې مؤرخينو خيال دې.چه صرف دوه كسان قتل كړې شوى دى.يو ابن خطل او بل مقيس بن صبابه ،اودا دواړه په قصاص كښې قتل كړې شوى وو.د دوى نه سوا به څوك نه دى قتل شوې.په كومو رواياتو كښې چه ددې دوو نه سوا د نورو كسانو د قتل ذكر دې.هغه روايات د سند په اعتبار سره يا ضعيف دى يا منقطع،نودهغې څه اعتبار نشته.(٧) والله اعلم

[٤٠٢٥] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ قَالَ أَخْبَرَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ سَمِعَ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي رَافِعٍ يَقُولُ سَمِعْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَالزُّبَيْرَ وَالْمِقْدَادَ فَقَالَ انْطَلِقُوا حَتَّى تَأْتُوا رَوْضَةَ خَاخٍ فَإِنَّ بِهَا ظَعِينَةً مَعَهَا كِتَابٌ فَخُذُوا مِنْهَا قَالَ فَانْطَلَقْنَا تَعَادَى بِنَا خَيْلُنَا حَتَّى أَتَيْنَا الرَّوْضَةَ فَإِذَا نَحْنُ

---

١) الكامل لابن الأثير (٢\١٦٩)_
٢) سيرت مصطفى (٣\٤٧)_
٣) الكامل لابن الأثير (٢\١٧٠)_
٤) الكامل لابن الأثير (٢\١٦٩)_
٥) الكامل لابن الأثير (٢\١٧٠)_
٦) فتح البارى (٨\١١)_
٧) شبلي نعماني مرحوم او مولانا سيد سليمان ندوى په دلائلو سره ددې رواياتو ضعف ثابت كړې دې.اوګورئ سيرة النبى ﷺ (١\٣٠١و ٣٠٣)_

بِالظَّعِينَةِ قُلْنَا لَهَا أَخْرِجِي الْكِتَابَ قَالَتْ مَا مَعِي كِتَابٌ فَقُلْنَا لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ أَوْ لَنُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ قَالَ فَأَخْرَجَتْهُ مِنْ عِقَاصِهَا فَأَتَيْنَا بِهِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا فِيهِ مِنْ حَاطِبِ بْنِ أَبِي بَلْتَعَةَ إِلَى نَاسٍ بِمَكَّةَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ يُخْبِرُهُمْ بِبَعْضِ أَمْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا حَاطِبُ مَا هَذَا قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَا تَعْجَلْ عَلَيَّ إِنِّي كُنْتُ امْرَأً مُلْصَقًا فِي قُرَيْشٍ يَقُولُ كُنْتُ حَلِيفًا وَلَمْ أَكُنْ مِنْ أَنْفُسِهَا وَكَانَ مَنْ مَعَكَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ مَنْ لَهُمْ قَرَابَاتٌ يَحْمُونَ أَهْلِيهِمْ وَأَمْوَالَهُمْ فَأَحْبَبْتُ إِذْ فَاتَنِي ذَلِكَ مِنَ النَّسَبِ فِيهِمْ أَنْ أَتَّخِذَ عِنْدَهُمْ يَدًا يَحْمُونَ قَرَابَتِي وَلَمْ أَفْعَلْهُ ارْتِدَادًا عَنْ دِينِي وَلَا رِضًا بِالْكُفْرِ بَعْدَ الْإِسْلَامِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا إِنَّهُ قَدْ صَدَقَكُمْ فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ دَعْنِي أَضْرِبْ عُنُقَ هَذَا الْمُنَافِقِ فَقَالَ إِنَّهُ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ اللَّهَ اطَّلَعَ عَلَى مَنْ شَهِدَ بَدْرًا فَقَالَ اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ فَأَنْزَلَ اللَّهُ السُّورَةَ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءَكُمْ مِنَ الْحَقِّ إِلَى قَوْلِهِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ [ر: ٢٨٤٥]

# بَاب = غَزْوَةِ الْفَتْحِ فِي رَمَضَانَ

[٤٠٢٦/٤٠٢٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَا غَزْوَةَ الْفَتْحِ فِي رَمَضَانَ

قَالَ وَسَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ يَقُولُ مِثْلَ ذَلِكَ

وَعَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَخْبَرَهُ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ صَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى إِذَا بَلَغَ الْكَدِيدَ الْمَاءَ الَّذِي بَيْنَ قُدَيْدٍ وَعُسْفَانَ أَفْطَرَ فَلَمْ يَزَلْ مُفْطِرًا حَتَّى انْسَلَخَ الشَّهْرُ

ددې ترجمة الباب نه د امام بخارى رحمه الله مقصدا دا دې.چه د فتحې مکې واقعه په رمضان کښې راغلې وه.په دې باره کښې تاريخى روايات مختلف دى. چه رسول الله ﷺ د فتحې مکې دپاره د مدينې منورې نه په کوم تاريخ روان شوې وو.واقدى وغيره ليکلى دى،چه د رمضان په لسم تاريخ باندې نبى ﷺ روان شوې وو.د مسلم شريف په روايات کښې د ١٣او ١٦و ١٨ تاريخ ذکر دې.اوپه يو روايت.کښې په تردد سره د ١٧ او ١٩ ذکر هم شته.(١)
حقيقت دا دې.چه په دې رواياتو کښې تطبيق ډير گران دې.البته د واقدى روايت مشهور

---

١) فتح البارى (٤١٨) دغه شان صحيح مسلم كتاب الصوم باب جواز الصوم والفطر.فى شهر رمضان للمسافر(١١/٣٥٦)_

دي.اوهم په دې باندې مونږ اعتماد کړې دې په اول کښې مو وئيلي وو.چه نبﷺ په ١٠ رمضان باندې روان شوې وو.امام نووی هم په شرح د مسلم کښې ليکلی دی.چه رسول الله ﷺ په، ١٠ رمضان د مدينې منورې نه روان شوې وو.او په ٩ ارمضان مکې ته داخل شوې وو.(١)

[٤٠٢٦]حَدَّثَنِي مَحْمُودٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ قَالَ أَخْبَرَنِي الزُّهْرِيُّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ فِي رَمَضَانَ مِنْ الْمَدِينَةِ وَمَعَهُ عَشَرَةُ آلَافٍ وَذَلِكَ عَلَى رَأْسِ ثَمَانِ سِنِينَ وَنِصْفٍ مِنْ مَقْدَمِهِ الْمَدِينَةَ فَسَارَ هُوَ وَمَنْ مَعَهُ مِنْ الْمُسْلِمِينَ إِلَى مَكَّةَ يَصُومُ وَيَصُومُونَ حَتَّى بَلَغَ الْكَدِيدَ وَهُوَ مَاءٌ بَيْنَ عُسْفَانَ وَقُدَيْدٍ أَفْطَرَ وَأَفْطَرُوا

**قوله**: ومعه عشرة آلاف..: د بخاری په دې روايت کښې د نبی ﷺ سره د فتحې مکې د روانيدو په وخت کښې لس زره تعداد بيان کړې شوې دې.دابن اسحاق او ابن عائذ وغيره په رواياتو کښې راغلی دی.چه نبی ﷺ سره ١٢ زره کسان وو.حاکم په ..الاکليل.. کښې اوابوسعد په ..شرف المصطفی.. کښې هم دا ليکلی دی.(٢) خودا تعارض په دې طريقه لرې کيدې شی.چه د مدينې منورې نه د روانيدو په وخت کښې د نبی ﷺ سره دکسانو تعداد لس زره وو.اوباقی نور خلق په لاره کښې دمختلفو قبائلو نه ورسره شامل شو.نو دا تعداد روسته زيات شواو دولس زره شو.(٣)

**قوله**: وَذَلِكَ عَلَى رَأْسِ ثَمَانِ سِنِينَ وَنِصْفٍ مِنْ مَقْدَمِهِ الْمَدِينَةَ: دمعمرپه روايت کښې هم داسې واقع دی.خودا وهم دې.څکه چه رسول الله ﷺ د هجرت کولونه پس اونيم کاله پس روان شوې وو.څکه چه هجرت په ربيع الاول کښې شوې وو.اوهم ددغه کال د محرم نه هجری کال شمارلې شی.نوپه دې اعتبارسره د هجرت نه پس د فتحې مکې پورې دا موده اووه نيم کاله جوړيږی. اته نيم کاله نه جوړيږی.په روايت کښې اته نيم کاله بيانولې شی.دا وهم دې.(٤) حافظ ابن حجر رحمه الله څه توجيهات کړی دی.(٥) خو حقيقت دا دې.چه په داسې قسم رواياتو کښې داسې مختصر قسم وهمونه واقع کيدل څه لرې خبره نه ده.

---

(١) شرح مسلم للنوی (١١\٢٥٦) کتاب الصوم .امام نووی په دې رواياتو کښې تطبيق کول غوښتلو.خو هغوی هم تطبيق اونکړې شو.هم دا وجه ده چه د ((ووجه الجمع بين هذه الرويات ...)) ليکلو نه پس بياض دې.)_

(٢) فتح الباری (٨\٤)_

(٣) عمدة القاری (١٧\٢٧٦) وفتح الباری (٨\٤)_

(٤) عمدة القاری (١٧\٢٧٦) وفتح الباری (٨\٥)_

(٥) اوګورئ فتح الباری (٨\٤)_

**قوله**: قَالَ الزُّهْرِيُّ وَإِنَّمَا يُؤْخَذُ مِنْ أَمْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْآخِرُ فَالْآخِرُ: دا د زهري قول دې.لکه څنګه چه امام بخاري ددې تصريح کړې ده.هم دا روايت په کتاب الجهاد صفحه (٣١٥) باندې تيرشوې دې.(١) مطلب دا دې.چه د سفر په اول کښې د نبي ﷺ روژه وه.روسته نبي ﷺ افطار اوکړو.نو آخرى عمل د نبي ﷺ افطار فى السفر وو.نو هم دا به اختيارولې شى.د بعضې حضراتو دا وئيل که سفردرمضان په ابتداء کښې شوى وى.نو بيا هم په دغه رمضان کښې د سفر شروع کولو نه پس افطار جائز نه دې.غلطه ده.دا حديث د هغوى خلاف حجت دې.

[٤٠٢٨] حَدَّثَنِي عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ إِلَى حُنَيْنٍ وَالنَّاسُ مُخْتَلِفُونَ فَصَائِمٌ وَمُفْطِرٌ فَلَمَّا اسْتَوَى عَلَى رَاحِلَتِهِ دَعَا بِإِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ أَوْ مَاءٍ فَوَضَعَهُ عَلَى رَاحَتِهِ أَوْ عَلَى رَاحِلَتِهِ ثُمَّ نَظَرَ إِلَى النَّاسِ فَقَالَ الْمُفْطِرُونَ لِلصُّوَّامِ أَفْطِرُوا

وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ

وَقَالَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[٤٠٢٩] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَافَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ فَصَامَ حَتَّى بَلَغَ عُسْفَانَ ثُمَّ دَعَا بِإِنَاءٍ مِنْ مَاءٍ فَشَرِبَ نَهَارًا لِيُرِيَهُ النَّاسَ فَأَفْطَرَ حَتَّى قَدِمَ مَكَّةَ

قَالَ وَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ صَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السَّفَرِ وَأَفْطَرَ فَمَنْ شَاءَ صَامَ وَمَنْ شَاءَ أَفْطَرَ [ر:١٨٣٢]

**قوله**: حَدَّثَنِي عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيدِ..... خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ إِلَى حُنَيْنٍ: دا وهم دې،څکه چه رسول الله ﷺ دحنين دپاره په رمضان کښې نه وو تلې. بلکه په شوال کښې تلې وو.بعضې خلقو تاويل کړې دې او وئيلى ئې دى چه «الى حنين» تصحيف دې.په اصل کښې «الى خيبر» وو.خودا تاويل صحيح نه دې.څکه چه د غزوه خيبر دپاره هم نبي ﷺ په رمضان کښې نه وو تلې.په محرم کښې تلې وو.(٢) ددې وجې صحيح دا ده،چه دلته د ،،حنين،، په ځائې د ،،مکې،، لفظ پکار دې.اودا تاويل هم کيدې شى،چه

(١) صحيح بخارى كتاب الجهاد باب الخروج فى رمضان (٤١٥\١)_
(٢) فتح البارى (٨\٥) وعمدة القارى (١٧\٢٧٧)_

چونکه خروج الى مکه د حنين پيش خيمه وه.او مکې ته خروج په رمضان کښې وو.نو لکه چه حنين طرف ته خروج هم مجازاً په رمضان کښې شوې وو.(١)

## باب=أَيْنَ رَكَزَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّايَةَ يَوْمَ الْفَتْحِ

يعنى رسول اللهﷺ د فتحې مکه په ورځ خپله جنډا په کوم ځائې کښې اودرولې وه.دوه لفظونه استعماليږى،،رايه،،او،،لواء،رايه غټې جنډې ته وائى .او،لواء،،وړې جنډې ته وائى.بعضو ددې په عکس وئيلى دى.اوبعضې حضراتو دې ته مترادف ګرځولى دى.والله اعلم (٢)

[٤٠٣٠] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ لَمَّا سَارَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ فَبَلَغَ ذَلِكَ قُرَيْشًا خَرَجَ أَبُو سُفْيَانَ بْنُ حَرْبٍ وَحَكِيمُ بْنُ حِزَامٍ وَبُدَيْلُ بْنُ وَرْقَاءَ يَلْتَمِسُونَ الْخَبَرَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقْبَلُوا يَسِيرُونَ حَتَّى أَتَوْا مَرَّ الظَّهْرَانِ فَإِذَا هُمْ بِنِيرَانٍ كَأَنَّهَا نِيرَانُ عَرَفَةَ فَقَالَ أَبُو سُفْيَانَ مَا هَذِهِ لَكَأَنَّهَا نِيرَانُ عَرَفَةَ فَقَالَ بُدَيْلُ بْنُ وَرْقَاءَ نِيرَانُ بَنِي عَمْرٍو فَقَالَ أَبُو سُفْيَانَ عَمْرٌو أَقَلُّ مِنْ ذَلِكَ فَرَآهُمْ نَاسٌ مِنْ حَرَسِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَدْرَكُوهُمْ فَأَخَذُوهُمْ فَأَتَوْا بِهِمْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْلَمَ أَبُو سُفْيَانَ فَلَمَّا سَارَ قَالَ لِلْعَبَّاسِ احْبِسْ أَبَا سُفْيَانَ عِنْدَ حَطْمِ الْخَيْلِ حَتَّى يَنْظُرَ إِلَى الْمُسْلِمِينَ فَحَبَسَهُ الْعَبَّاسُ فَجَعَلَتِ الْقَبَائِلُ تَمُرُّ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَمُرُّ كَتِيبَةً كَتِيبَةً عَلَى أَبِي سُفْيَانَ فَمَرَّتْ كَتِيبَةٌ قَالَ يَا عَبَّاسُ مَنْ هَذِهِ قَالَ هَذِهِ غِفَارُ قَالَ مَا لِي وَلِغِفَارَ ثُمَّ مَرَّتْ جُهَيْنَةُ قَالَ مِثْلَ ذَلِكَ ثُمَّ مَرَّتْ سَعْدُ بْنُ هُذَيْمٍ فَقَالَ مِثْلَ ذَلِكَ وَمَرَّتْ سُلَيْمُ فَقَالَ مِثْلَ ذَلِكَ حَتَّى أَقْبَلَتْ كَتِيبَةٌ لَمْ يَرَ مِثْلَهَا قَالَ مَنْ هَذِهِ قَالَ هَؤُلَاءِ الْأَنْصَارُ عَلَيْهِمْ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ مَعَهُ الرَّايَةُ فَقَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ يَا أَبَا سُفْيَانَ الْيَوْمَ يَوْمُ الْمَلْحَمَةِ الْيَوْمَ تُسْتَحَلُّ الْكَعْبَةُ فَقَالَ أَبُو سُفْيَانَ يَا عَبَّاسُ حَبَّذَا يَوْمُ الذِّمَارِ ثُمَّ جَاءَتْ كَتِيبَةٌ وَهِيَ أَقَلُّ الْكَتَائِبِ فِيهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ وَرَايَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ فَلَمَّا مَرَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَبِي سُفْيَانَ قَالَ أَلَمْ تَعْلَمْ مَا قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ قَالَ مَا قَالَ قَالَ كَذَا وَكَذَا فَقَالَ كَذَبَ سَعْدٌ وَلَكِنْ هَذَا يَوْمٌ يُعَظِّمُ اللَّهُ فِيهِ الْكَعْبَةَ وَيَوْمٌ تُكْسَى فِيهِ الْكَعْبَةُ قَالَ وَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُرْكَزَ رَايَتُهُ بِالْحَجُونِ قَالَ عُرْوَةُ

---

١) وأجاب المحب الطبرى .. بأى يكون المراد من قوله: ،،خرج النبىﷺ فى رمضان إلى حنين،، أنه قصد الخروج إليها وهو فى رمضان فذكر الخروج وأراد القصد بالخروج ومثل هذا ذائع فى الكلام (عمدة القارى ٢٧٧\١٧)_

٢) مجمع بحار الانوار (٥١٦\٤)_ و(٤١٢\٢)_

وَأَخْبَرَنِي نَافِعُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ سَمِعْتُ الْعَبَّاسَ يَقُولُ لِلزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ يَا أَبَا عَبْدِ اللَّهِ هَا هُنَا أَمَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَرْكُزَ الرَّايَةَ قَالَ وَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ أَنْ يَدْخُلَ مِنْ أَعْلَى مَكَّةَ مِنْ كَدَاءٍ وَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ كُدًا فَقُتِلَ مِنْ خَيْلِ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَوْمَئِذٍ رَجُلَانِ حُبَيْشُ بْنُ الْأَشْعَرِ وَكُرْزُ بْنُ جَابِرٍ الْفِهْرِيُّ [ر: ٢٨١٣]

**قوله**: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ ...فأسلم أبو سفيان ...: په اول کښې ابوسفيان ظاهری طور مسلمان شوې وو.خو روسته د اسلام په حقانيت باندې دهغوی شرح صدر اوشو.اوپه خپل اسلام کښې مخلص شو. د ابوسفيان نوم صخربن حرب بن اميه دې.د ٨٨ کالو په عمر کښې په مدينه منوره کښې په ٣١ھ کښې وفات شوې وو.اوحکيم بن حزام د حضرت خديجې ورارهٔ وو. په ٥٤ھ کښې دوی هم په مدينه منوره کښې وفات شوی وو.

**قوله**: عند حطم الجبل....: يعنی په کوم ځائې کښې چه د اسونو رش وی.مراد ددې نه تنګ ځائې دې.د حاشيه نسخه ده.«عند خطم الجبل» يعنی د غر د سوکې سره.په اولنی صورت کښې به مطلب دا وی.چه چرته د اسونو رش وی.هلته ابوسفيان اودروئ.اود اسونو رش په تنګ ځائې کښې زيات وی.لکه څنګه چه غاښې وی.يعنی دغاښې سره نزدې دې اودروئ.اود اسلامی لښکر خودنه ورته اوکړئ.اوپه دويم صورت کښې به مطلب دا وی.چه دغر په سوکه باندې دې ايسار کړئ. د اسلامی لښکر مشاهده ورته اوکړئ.

**قوله**: فقال سعد بن عبادة رضی اللہ عنہ يا أبا سفيان اليوم يوم الملحمة :اليوم تستحل الكعبة: سعدبن عباده رضی اللہ عنہ اووئيل.اې ابوسفيان نن د جنګ ورځ ده.نن به په کعبه کښې قتل او قتال حلال وی.

**قوله**: فقال أبوسفيان ياعباس حبذا يوم الذمار:په دې باندې ابوسفيان اووئيل.د قريشو د بربادئ او تباهئ بنه ورځ راغله.

**قوله**: وأمر رسول الله يومئذ خالد بن وليد أن يدخل من أعلى مكة من كداء:رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم خالدبن وليد رضی اللہ عنہ ته دمکې د پورته طرف يعنی کداء نه د داخليدو حکم کړې وو.خوم دا وهم دې.ځکه چه نور ټول روايات په دې باندې متفق دی.چه رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم پخپله د پورتنی طرف د مکې نه داخل شوې وو.او خالد ته ئې د ښکته طرف نه د داخليدو حکم کړې وو.(١)

---

١) فتح البارى (١٠١٨) وعمدة القارى (٢٨٠١١٧)_

**قوله:** فقتل من خيل خالد يومئذ رجلان: دا دوه كسان حضرت حبيش بن اشعر او حضرت كرزبن جابر رضي الله عنهما وو.د بخارى په روايت كښې خو د دوو كسانو ذكر دې.خو په نورو رواياتو كښې د درې كسانو ذكر دې.دريم كس مسلمه بن الميلاء دې.دا درې صحابه رضي الله عنهم په دغه ورځ شهيدان شوى وو.(1) اوداين سعد د بيان مطابق د مشركانو څلورويشت كسان قتل شوى وو.(2)

[۴۰۳۱] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مُغَفَّلٍ يَقُولُ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ عَلَى نَاقَتِهِ وَهُوَ يَقْرَأُ سُورَةَ الْفَتْحِ يُرَجِّعُ وَقَالَ لَوْلَا أَنْ يَجْتَمِعَ النَّاسُ حَوْلِي لَرَجَّعْتُ كَمَا رَجَّعَ [ر: ۴۵۵۵، ۴۷۴۷، ۴۷۶۰، ۷۱۰۲]

**قوله:** وَهُوَ يَقْرَأُ سُورَةَ الْفَتْحِ يُرَجِّعُ...: يعنى دفتح مكې په ورځ رسول الله ﷺ سورة فتح لوستلو.او ترجيع ئې كولو.يو ترجيع فى الاذان وى.چه شهادتين دوه څله په مزه او دوه څله په اوچت آواز سره لوستل وى.او يو ترجيع فى القرآن وى.د ترجيع فى القرآن معنى دا ده.چه د قرآن تلاوت كولې شى او په آواز كښې امتداد او پورته والې ښكته والې موجود شى.ددې كيفيت د بخارى شريف كتاب التوحيد په روايت كښې د معاويه بن قره نه داسې منقول دې...آ.ء آ. ءآ. (دهمزه مفتوحه نه پس الف اوږدول) (3)

چونكه نبى په اوښ باندې سور وو.د دې د وجې د نبى ﷺ په آواز كښې ښكته والې پورته والې راتلو.(4) بعضې حضرات فرمائى.چه په روايت كښې ((يرجع)) نه امتداد پيدا كول مراد نه دى.بلكه ددې معنى دا ده.چه نبى ﷺ به يو يو آيت بار بار وئيلو.ځكه چه د ترجيع معنى په لغت كښې د واپس كولو هم راځى.(5) او بعضو وئيلى دى.چه د ((يرجع)) معنى په خوش آوازئ سره نبى ﷺ تلاوت كولو (6)

دا خبره خو د ټولوعالمانو په نيز متفق عليه ده.چه په ښكلى آواز سره د قرآن تلاوت كول مستحب دى.خودا په دغه وخت كښې چه كله په خوش آوازئ سره د قرآن په حروفو كښې كمې زياتې نه راځى.اوپه مخارجو باندې اثر نه غورځيږى. خوكه د سندرو د راګونو پشان آواز اوچت كړى اوپه آواز كښې خوش آوازى پيدا كوى.نو دا جائزنه ده.

---

(1) فتح البارى (۸\۱۰)_
(2) طبقات ابن سعد (۲\۱۳۶)_
(3) اوګورئ كتاب التوحيد باب ذكر النبى ﷺ و رواية عن ربه (۲\۱۱۲۵)_
(4) فتح البارى (۱۳\۵۱۵)( كتاب التوحيد )_
(5) معجم الوسيط (۱\۳۳۱)_
(6) فتح البارى (۹\۹۲) كتاب فضائل القرآن باب الترجيع)_

[٤٠٢٢] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سَعْدَانُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي حَفْصَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ أَنَّهُ قَالَ زَمَنَ الْفَتْحِ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيْنَ تَنْزِلُ غَدًا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهَلْ تَرَكَ لَنَا عَقِيلٌ مِنْ مَنْزِلٍ ثُمَّ
قَالَ لَا يَرِثُ الْمُؤْمِنُ الْكَافِرَ وَلَا يَرِثُ الْكَافِرُ الْمُؤْمِنَ
قِيلَ لِلزُّهْرِيِّ وَمَنْ وَرِثَ أَبَا طَالِبٍ قَالَ وَرِثَهُ عَقِيلٌ وَطَالِبٌ

حضرت اسامه بن زيد د فتحې مکې په موقع د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو ،چه صبا ته به تاسو په کوم ځائې کښې قيام کوئ؟ نبى ﷺ اوفرمائيل، عقيل زمونږ دپاره څه کور هم پريخودې نه دې.

د رسول الله ﷺ د نيکه عبدالمطلب د وفات نه پس دهغه د جائيداد مالك او وارث دهغه ځامن او د نبى ﷺ تره ابوطالب وو.د ابوطالب څلور ځامن وو. طالب، حضرت عقيل، حضرت جعفر،حضرت على ﷺ ،اولنى دوه حضرات خو په سابقين اولين کښې وو.عقيل د فتحې مکې نه پس اسلام قبول کړې وو.اوطالب په بدر کښې د کفر په حالت کښې قتل شوې وو.

چونکه د کافر وارث مسلمان نه وى.او حضرت جعفر اوحضرت على ﷺ دواړه د ابو طالب د وفات په وخت کښې مسلمانان شوى وو.ددې وجې دوى د ابوطالب وارثان جوړ نشو.طالب او عقيل د هغه د ميراث وارثان جوړ شوى وو.روسته عقيل هغه ټول کورنه په ابوسفيان باندې خرڅ کړل.د «وهل ترك لنا عقيل من منزل؟» نه د رسول الله ﷺ دې طرف ته اشاره وه.(١)

**قوله**: قَالَ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَيْنَ تَنْزِلُ غَدًا فِي حَجَّتِهِ وَلَمْ يَقُلْ يُونُسُ حَجَّتِهِ وَلَا زَمَنَ الْفَتْحِ: دا روايت د زهرى نه درې راويانو نقل کړې دې.

① محمدبن ابى حفصه ② معمر ③ او يونس،دمحمد بن ابى حفصه په روايت کښې خو دا تصريح دد.چه حضرت اسامه بن زيد ﷺ دا سوال د رسول الله ﷺ نه چه «أين تنزل غدا؟» د فتحې مکې په موقع کړې وو.او دمعمر په روايت کښې دى.چه هغوى دا سوال د حجة الوداع په موقع باندې کړې وو.او د يونس په روايت کښې د فتح مکې او حجة الوداع دواړو ذکر نشته.

نواصلى تعارض دمعمر او محمد بن ابى حفصه په روايتونو کښې دې.که موازنه اوکړې شى، نود معمر روايت ارجح دې.ځکه چه معمر د ابن ابى حفصه په مقابله کښې اوثق او اتقن دې.نودا روايت په دې ځائې کښې د ذکر کولوپه ځائې په کتاب الحج کښې ذکر کول

---

(١) د تفصيل دپاره اوګورئ فتح البارى (٤٥٣\٣) کتاب الحج باب توريث دور مكة وبيعها وشرائها.

پكار وو.اوامام بخارى رحمه الله دا روايت په كتاب الحج كښې هم ذكر كړې دې.([1]) خوچونكه د محمد بن ابى حفصه په روايت كښې د ((من الفتح)) تصريح موجود ده. امام بخارى ددې احتمال د وجې دا دلته هم ذكر كړو.چه ممكن ده د حجة الوداع پشان د فتح مكې په موقع باندې هم دا سوال شوې وى.والله اعلم

[۴۰۳۲/۴۰۳۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْزِلُنَا إِنْ شَاءَ اللَّهُ إِذَا فَتَحَ اللَّهُ الْخَيْفُ حَيْثُ تَقَاسَمُوا عَلَى الْكُفْرِ

والخيف (بفتح الخاء وسكون الياء) دغر لاندينۍ حصه كومه چه په نالۍ باندې بنده وى.په منى كښې جمات د غر په لاندينۍ حصه كښې وو.ددې وجې دې ته مسجد خيف وائى. ،،الخيف،، د ،،منزلنا،، خبر دې.

[۴۰۳۴] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ أَرَادَ حُنَيْنًا مَنْزِلُنَا غَدًا إِنْ شَاءَ اللَّهُ بِخَيْفِ بَنِي كِنَانَةَ حَيْثُ تَقَاسَمُوا عَلَى الْكُفْرِ [ر:۱۵۱۲]

[۴۰۳۵] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ مَكَّةَ يَوْمَ الْفَتْحِ وَعَلَى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ فَلَمَّا نَزَعَهُ جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ ابْنُ خَطَلٍ مُتَعَلِّقٌ بِأَسْتَارِ الْكَعْبَةِ فَقَالَ اقْتُلْهُ قَالَ مَالِكٌ وَلَمْ يَكُنْ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا نُرَى وَاللَّهُ أَعْلَمُ يَوْمَئِذٍ مُحْرِمًا [ر:۱۷۴۹]

**قوله**: وعلى رأسه المغفر...: د رسول الله ﷺ په سر مبارك باندې ،،مغفر،، (خود) وو.چاته دا شبه كيدې شى.چه الله تعالى خو دا فرمائيلى دى.﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ ([2]) نو بيا د مغفر د استعمالولو څه ضرورت وو؟ نو ددې جواب دا دې.اګرچه رسول الله ﷺ ته د الله تعالى په دغه وعده باندې پوره اعتماد او پوخ يقين وو.خوچونكه دا دنيا دارالاسباب دې.د دې وجې نبى ﷺ دلته اسباب استعمالول.اود جنګ په وخت كښې د خود استعمال د حفاظت يو سبب دې.دغه شان په دې كښې امت ته دا تعليم وركول مقصود دى.چه سړى ته پكار دى.چه څومره هم محفوظ وى.بيا هم د خپل تحفظ اسباب اختيارول پكار دى.([3])

**قوله**: قَالَ مَالِكٌ وَلَمْ يَكُنْ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا نُرَى وَاللَّهُ أَعْلَمُ يَوْمَئِذٍ مُحْرِمًا: امام مالك رحمه الله فرمائى،چه زمونږ په خيال كښې نبى ﷺ په دغه ورځ احرام نه وو تړلې.

[1] ) اوګورئ صحيح بخارى كتاب الحج باب توريث دور مكة وبيعها وشرائها رقم الحديث ۱۵۸۸ هلته دا روايت د يونس په طريق سره منقول دې.
[2] ) سورة المائدة :۶۷_
[3] ) زادالمعاد (۳۸۰/۳)_

مکې مکرمې ته د داخلیدو دړې صورتونه دی.

① یودا چه سړې د مناسك د ادا کولو دپاره داخلیږی.په دې صورت کښې خو په اتفاق سره بغیر د احرام نه داخلیدل جائز نه دی.

②دویم صورت دا دې.چه سړې د حرب او قتال دپاره داخلیږی.په دې صورت کښې امام طحاوی د احنافو عالمانو نه نقل کړی دی.چه بغیر د احرام نه داخلیدل جائز نه دی.(١) علامه ابن قیم جواز نقل کړې دې.(٢) دامام مالك دا قول د ابن قیم په تائید کښې دې.

③دریم صورت دا دې.چه دحاجت متکرره د وجې داخلیږی.لکه څنګه چه د تیکسی اود بس ډرائیوران شو.چه د بهر نه سورلئ راوړی او بار بار حرم ته داخلیږی.د احنافو فقهاء په نیز په دې صورت کښې هم بغیر د احرام نه داخلیدل جائز نه دی.باقی امامان په دې صورت کښې د احرام نه بغیر د داخلیدو اجازت ورکوی.(٣)

خوچونکه د ډرائیور وغیره حضراتو دپاره د احرام پابندی ګرانه ده.ددې وجې اوس احناف عالمانو هم د نورو فقهاؤ د مسلك مطابق د جواز فتوی ورکوی.والله اعلم.

[٤٠٣٦]حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ يَوْمَ الْفَتْحِ وَحَوْلَ الْبَيْتِ سِتُّونَ وَثَلَاثُ مِائَةِ نُصُبٍ فَجَعَلَ يَطْعُنُهَا بِعُودٍ فِي يَدِهِ وَيَقُولُ جَاءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ جَاءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ[ر:٢٣٤٦]

[٤٠٣٧]حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ مَكَّةَ أَبَى أَنْ يَدْخُلَ الْبَيْتَ وَفِيهِ الْآلِهَةُ فَأَمَرَ بِهَا فَأُخْرِجَتْ فَأُخْرِجَ صُورَةُ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ فِي أَيْدِيهِمَا مِنَ الْأَزْلَامِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاتَلَهُمُ اللَّهُ لَقَدْ عَلِمُوا مَا اسْتَقْسَمَا بِهَا قَطُّ ثُمَّ دَخَلَ الْبَيْتَ فَكَبَّرَ فِي نَوَاحِي الْبَيْتِ وَخَرَجَ وَلَمْ يُصَلِّ فِيهِ تَابَعَهُ مَعْمَرٌ عَنْ أَيُّوبَ وَقَالَ وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[ر:١٥٢٤]

**قوله** حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ .....فَكَبَّرَ فِي نَوَاحِي الْبَيْتِ وَخَرَجَ وَلَمْ يُصَلِّ فِيهِ:په دې روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ مونځ په بیت الله کښې دننه نه دې کړې خو وړاندې د حضرت بلال رضی الله عنه روایت راغی.په هغې کښې د مونځ کولو ذکر دې.اوهم هغه راجح دې.ځکه چه کله د نافی او مثبت تعارض راشی.نو ترجیح به مثبت ته وی.(٤)

---

١) شرح معانی الآثار للطحاوی (١\٥٠٦) کتاب مناسک الحج باب دخول الحرم هل یصلح بغیر إحرام)_

٢) زادالمعاد (٣\٤٢٨)_

٣) المغنی لإبن قدامة (٣\١١٦و ١١٧) حکم من جاوز المیقات غیر محرم)_

٤) د تفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری (٣\٤٦٨) باب من کبر فی نواحی البیت .کتاب الحج)_

## باب = دُخُولِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَعْلَى مَكَّةَ

وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْبَلَ يَوْمَ الْفَتْحِ مِنْ أَعْلَى مَكَّةَ عَلَى رَاحِلَتِهِ مُرْدِفًا أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ وَمَعَهُ بِلَالٌ وَمَعَهُ عُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ مِنَ الْحَجَبَةِ حَتَّى أَنَاخَ فِي الْمَسْجِدِ فَأَمَرَهُ أَنْ يَأْتِيَ بِمِفْتَاحِ الْبَيْتِ فَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَبِلَالٌ وَعُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ فَمَكَثَ فِيهِ نَهَارًا طَوِيلًا ثُمَّ خَرَجَ فَاسْتَبَقَ النَّاسُ فَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ أَوَّلَ مَنْ دَخَلَ فَوَجَدَ بِلَالًا وَرَاءَ الْبَابِ قَائِمًا فَسَأَلَهُ أَيْنَ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَشَارَ لَهُ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي صَلَّى فِيهِ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَنَسِيتُ أَنْ أَسْأَلَهُ كَمْ صَلَّى مِنْ سَجْدَةٍ [ر:٣٨٨]

[٤٠٣٩/٤٠٤٠] حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ خَارِجَةَ حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ مَيْسَرَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَخْبَرَتْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَامَ الْفَتْحِ مِنْ كَدَاءٍ الَّتِي بِأَعْلَى مَكَّةَ تَابَعَهُ أَبُو أُسَامَةَ وَوُهَيْبٌ فِي كَدَاءٍ

[٤٠٤٠] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ مِنْ أَعْلَى مَكَّةَ مِنْ كَدَاءٍ [ر:١٥٠٢]

**قوله:** وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ.....: د دې روايت په آخر كښې دى.((قال عبدالله نسيت أن أسأله كم صلى سجدة))

حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائي، چه ما د حضرت بلال رضي الله عنه نه ددې تپوس كول هير كړل.چه رسول الله ﷺ څو ركعته اوكړل.خوپه دې باندې اشكال كيږى.چه په بعضې رواياتو كښې دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه د ((صلى ركعتين)) تصريح راغلې ده.(1) په ظاهره په دواړو رواياتو كښې تعارض معلوميږى.

بعضې حضراتو دا تعارض لرې كړې دې. اوفرمانيلى ئې دى.چه د ((صلى ركعتين)) روايت د راوى وهم دې.خو دا خبره ددې وجې صحيح نه معلوميږى.چه د ((صلى ركعتين)) د روايت، راوى حضرت يحيى بن سعيد القطان دې.د دوى پشان حافظ حديث.او اتقن راوى ته د وهم نسبت كول اول خو دا لرې معلوميږى.بيا بله خبره دا ده.چه ددې روايت په نقل كولوكښې

---

(1) لكه څنګه چه د بخارى په كتاب الصلاة كښې د ابن عمررضى الله عنهما دا روايت د حضرت يحيى بن سعيد القطان په طريق سره نقل دې.دهغې په آخر كښې دى ((ثم خرج فصلى فى وجه الكعبة ركعتين)) اوګورئ (صحيح بخارى كتاب الصلاة باب قول الله تعالى ((واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى)) حديث نمبر (٣٩٧)_

دوى منفرد هم نه دى.([1])
بعضو دا جواب ورکړې دې.چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما صراحةً د حضرت بلال نه تپوس کول هير کړې وو.خو حضرت بلال رضي الله عنه ورته په خپله په اشارې سره بيان کړل.چه نبي ﷺ دوه رکعته کړي دي.نوپه کوم روايت کښې چه دي چه زما نه تپوس کول هير شو.دهغې نه صراحةً تپوس کول مراد دي.او په کومو رواياتو کښې چه «صلى ركعتين» وارد شوې دې.په دې سره دحضرت بلال رضي الله عنه په اشارې سره خودل مراد دي.([2])
اوبعضو دا جواب ورکړې دې.چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما يقيناً د رکعتونو په باره کښې تپوس کول هير کړي وو.په کومو رواياتوکښې چه د دوى نه د «صلى ركعتين» الفاظ منقول دي.چونکه مونځ کم او کم دوه رکعته وي.ددې نه کم نه وي.نوځکه اقل متقين باندې ئې حمل کړې دې.او هغوى د خپل طرف نه داسې وئيلي دي.([3])

## بَاب=مَنْزِلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفَتْحِ

[٤٠٤١] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى مَا أَخْبَرَنَا أَحَدٌ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحَى غَيْرُ أُمِّ هَانِئٍ فَإِنَّهَا ذَكَرَتْ أَنَّهُ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ اغْتَسَلَ فِي بَيْتِهَا ثُمَّ صَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ قَالَتْ لَمْ أَرَهُ صَلَّى صَلَاةً أَخَفَّ مِنْهَا غَيْرَ أَنَّهُ يُتِمُّ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ [ر:١٠٥٢]

ددې روايت نه معلوميږي،چه د رسول اکرم ﷺ قيام د حضرت ام هانى رضي الله عنها په کور کښې وو.خو د وړاندينى روايت نه معلوميږي،چه د رسول الله ﷺ قيام په خيف بنو کنانه کښې وو.ددې تعارض جواب دا دې.چه په اصل کښې د نبى کريم ﷺ خيمه په خيف بنو کنانه کښې لګولې شوې وه.خو نبى ﷺ به د ام هانى رضي الله عنها کورته هم تشريف راوړې وو.او څه وخت دپاره به هلته کښې هم قيام کړې وو.ددې وجې دهغې نه هم په منزل النبى ﷺ سره تعبير کړې شوې دې.([4])

## باب

دا باب بغيرترجمې د متعلقاتو فتح مکې څنى دې.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.غالباً چه امام بخارى رحمه الله به بياض پريخودې وى.خو د څه مناسب ترجمې منعقد کولو موقع ورته ملاؤ شوې نه ده.([5])

---

[1]) اوګورئ فتح البارى (١١\٥٠٠) کتاب الصلاة )_
[2]) فتح البارى (١١\٥٠٠)_
[3]) فتح البارى (١١\٥٠٠)_
[4]) عمدة القارى (١٧\٢٨٥)_
[5]) فتح البارى (٨\٣٠)_

[٤٠٤٢] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي [ر: ٧٦١]

[٤٠٤٣] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ عُمَرُ يُدْخِلُنِي مَعَ أَشْيَاخِ بَدْرٍ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِمَ تُدْخِلُ هَذَا الْفَتَى مَعَنَا وَلَنَا أَبْنَاءٌ مِثْلُهُ فَقَالَ إِنَّهُ مِمَّنْ قَدْ عَلِمْتُمْ قَالَ فَدَعَاهُمْ ذَاتَ يَوْمٍ وَدَعَانِي مَعَهُمْ قَالَ وَمَا رُيِيتُهُ دَعَانِي يَوْمَئِذٍ إِلَّا لِيُرِيَهُمْ مِنِّي فَقَالَ مَا تَقُولُونَ فِي إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ أَفْوَاجًا حَتَّى خَتَمَ السُّورَةَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ أُمِرْنَا أَنْ نَحْمَدَ اللَّهَ وَنَسْتَغْفِرَهُ إِذَا نُصِرْنَا وَفُتِحَ عَلَيْنَا وَقَالَ بَعْضُهُمْ لَا نَدْرِي أَوْ لَمْ يَقُلْ بَعْضُهُمْ شَيْئًا فَقَالَ لِي يَا ابْنَ عَبَّاسٍ أَكَذَاكَ تَقُولُ قُلْتُ لَا قَالَ فَمَا تَقُولُ قُلْتُ هُوَ أَجَلُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْلَمَهُ اللَّهُ لَهُ إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ فَتْحُ مَكَّةَ فَذَاكَ عَلَامَةُ أَجَلِكَ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا قَالَ عُمَرُ مَا أَعْلَمُ مِنْهَا إِلَّا مَا تَعْلَمُ [ر: ٣٤٢٨]

[٤٠٤٤] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ شُرَحْبِيلَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْعَدَوِيِّ أَنَّهُ قَالَ لِعَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ وَهُوَ يَبْعَثُ الْبُعُوثَ إِلَى مَكَّةَ ائْذَنْ لِي أَيُّهَا الْأَمِيرُ أُحَدِّثْكَ قَوْلًا قَامَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغَدَ يَوْمَ الْفَتْحِ سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ وَوَعَاهُ قَلْبِي وَأَبْصَرَتْهُ عَيْنَايَ حِينَ تَكَلَّمَ بِهِ إِنَّهُ حَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ مَكَّةَ حَرَّمَهَا اللَّهُ وَلَمْ يُحَرِّمْهَا النَّاسُ لَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَسْفِكَ بِهَا دَمًا وَلَا يَعْضِدَ بِهَا شَجَرًا فَإِنْ أَحَدٌ تَرَخَّصَ لِقِتَالِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهَا فَقُولُوا لَهُ إِنَّ اللَّهَ أَذِنَ لِرَسُولِهِ وَلَمْ يَأْذَنْ لَكُمْ وَإِنَّمَا أَذِنَ لِي فِيهَا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ وَقَدْ عَادَتْ حُرْمَتُهَا الْيَوْمَ كَحُرْمَتِهَا بِالْأَمْسِ وَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَقِيلَ لِأَبِي شُرَيْحٍ مَا ذَا قَالَ لَكَ عَمْرٌو قَالَ قَالَ أَنَا أَعْلَمُ بِذَلِكَ مِنْكَ يَا أَبَا شُرَيْحٍ إِنَّ الْحَرَمَ لَا يُعِيذُ عَاصِيًا وَلَا فَارًّا بِدَمٍ وَلَا فَارًّا بِخَرْبَةٍ قَالَ أَبُو عَبْد اللَّهِ الْخَرْبَةُ الْبَلِيَّةُ [ر: ١٠٤]

[٤٠٤٥] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ عَامَ الْفَتْحِ وَهُوَ بِمَكَّةَ إِنَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ حَرَّمَ بَيْعَ الْخَمْرِ [ر: ٢١٢١]

**قوله**: حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ....: حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى، «كان عمر رضي الله عنه يدخلنى مع أشياخ بدر» حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه به په ګرانو مسائلو کښې د اشياخ بدر نه مشوره غوستله. اوپه هغوى کښې به ئې ابن عباس رضي الله عنهما هم داخلولو، دې بيخى هلك وو، په دې باندې حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه ته اووئيل. ته ابن عباس رضي الله عنهما په ارباب مشوره کښې کينوې. حال دا چه د ده هومره خو زمونږ. خامن دی. يعنى دعمر په لحاظ

سره دده برابر دی.نو ته ده ته د دې کم عمرئ باوجود دومره اهميت ولې ورکوی.حضرت
فاروق اعظم رضي الله عنه اوفرمائيل،الله تعالى چه ده ته څومره علم او څومره فراست ورکړې دې.
تاسو ته معلوم دې.هم ددې وجې زه دې په مشوره کښې شريکوم.ددې نه پس حضرت
عمر رضي الله عنه دا ټول حضرات جمع کړل.حضرت ابن عباس رضي الله عنهما پوهه شو.چه دوی غواړی چه نن
ورخ په دوی باندې زما علم او فضل ښکاره کړی.حضرت عمر رضي الله عنه د دې ټولو حضراتو نه
تپوس اوکړو.چه د ﴿إِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ ۝ وَرَاَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اَفْوَاجًا ۝﴾ په تفسير
کښې ستاسو څه رائې ده؟ اوددې سورة مقصد څه دې؟په دوی کښې درې ډلې شوې.يو
فريق اووئيل په دې کښې دا حکم ورکړې شوې دې،کله چه الله تعالى تاته فتح او نصرت
درکړی،نو ته حمد او استغفار وايه،دويم فريق خپله لاعلمی ښکاره کړه،او((لا ندری)) ئې
اووئيل.او دريم فريق چپ شو.حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه تپوس
اوکړو.چه ستا څه رائې ده؟ نو ابن عباس رضي الله عنهما اووئيل په دې سورة کښې د نبی ﷺ د وفات
خبر ورکړې شوې دې.او په ﴿إِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ ۝﴾ کښې دفتح نه مراد فتح مکه ده.چه کله
مکه فتح شی.نوداستا د وفات رانزدې کيدو نښه ده.نوته دخپل رب حمداو تسبيح بيانوی
.او استغفار وايه.الله تعالى توبه قبلونکې دې.

عالمانو فرمائيلی دی.چه په اصل کښې د رسول الله ﷺ عادت مبارک دا وو.د کارونو په
ختميدو به نبی ﷺ توبه او استغفار وئيل.چه د بيت الخلاء نه به راوتل،((غفرانك)) به ئې
وئيل. لکه څنګه چه په ترمذی کښې دحضرت عائشې رضي الله عنها نه منقول دی. ([1])دغه شان نبی
کريم ﷺ حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته دعا خودلې وه.چه د مونځ په ختميدو باندې دا وايه! ((اللهم
إني ظلمت نفسي ظلماً كثيراً ولا يغفر الذنوب إلا أنت ،فاغفرلي مغفرة من عندك وارحمني ،إنك أنت الغفور
الرحيم)) .([2]) دغه شان داودس په اختتام باندې به((اللهم اجعلني من التوابين واجعلني من
المتطهرين)) وئيل.([3]) دحج نه په فراغت باندې الله تعالى فرمائيلی دی.﴿ ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ
اَفَاضَ النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝﴾ ([4]) نوچونکه دهرکار په اختتام توبه او استغفار د
نبی ﷺ معمول وو.او قرآن هم دې طرف ته توجه ورکړې ده.ددې نه ابن عباس رضي الله عنهما دا خبره
معلومه کړې وه.چه په سورة نصر کښې نبی ﷺ ته د استغفار او توبې حکم شوې دې.په دې

---

[1] ) سنن ترمذی أبواب الطهارة باب ما يوقل إذا خرج من الصلاة رقم الحديث ٧)_
[2] ) اوګورئ سنن کبری للبيهقی (١٥٤/٢) کتاب الصلاة باب ما يستحب له أن لا يقصر عنه من الدعاء)_
[3] ) الحديث أخرجه الترمذی فی أبواب الطهارة باب فيما يقال بعد الوضوء ولفظه من توضأ فأحسنَ الوضوء ثم قال أشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريک له وأشهد أن محمداً عبده ورسوله.اللهم اجعلنی من التوابين واجعلنی من المتطهرين فتحت له ثمانية أبواب الجنة .يدخل من أها شاء رقم الحديث ٥٥)_
[4] ) سورة البقرة :١٩٩)_

کښې د نبی ﷺ د ژوند اختتام او وفات ته اشاره ده.(١)
دويمه خبره عالمانودا فرمائيلې ده.چه په قرآن کريم کښې ځائې په ځائې الله تعالى نبى ﷺ ته مختلف احکامات ورکړی دی.کله ئې فرمائيلی دی.(فاصدع ... تامر) (٢)چرته حکم دې.﴿يٰٓاَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ﴾ (٣) چرته ارشاد دې ﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ وَبَنٰتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِيْنَ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ﴾ (٤) غرض دا چه ځائې په ځائې ورته حکم کولې شی چه ته دا کوه اودا وايه.او فتح کومه چه لوئې فتح وه.اوکومه چه په حقيقت کښې د ټولو عربو فتح وه.په دې باندې الله تعالى څه اهم پيغام او دعامو خلقو متعلق څه حکم نبى ﷺ ته ورنکړلو.بلکه د توبې او استغفار حکم ئې ورکړو.ددې نه معلوميږى.چه دکوم کار دپاره د دوی بعثت شوې وو.هغه کار پوره شوې دې.اوس ستانه زياتی څه کار اختتل نشته.بلکه اوس حکم دا دې چه ته دالله تعالى ذات اودهغه صفات جماليه او جلاليه ته نظر کوه.او د سبحان الله وظيفه کوه.اود بشريت د تقاضا مطابق که ستا نه څه سوه اوشى.اوڅه ستا څه داسې کار اوشى.چه ستا د شان سره نه ښائى. نو دهغې دپاره د استغفار اهتمام کوه.
حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته چونکه الله تعالى د تفسير قرآن ډير لوئې مقام او فهم ورکړې وو. ددې وجې هغه په دې نکته باندې پوهه شو.چه په دې سورة کښې د رسول الله ﷺ د وفات اطلاع ورکړې شوې ده.والله اعلم.

**قوله**: حدثنا قتيبة ،حدثنا الليث...: دا روايت په پوره تفصيل سره په کتاب البيوع کښې په صفحه ٢٩٨ کښې تيرشوې دې.

## بَاب=مَقَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ زَمَنَ الْفَتْحِ

[٤٠٣٦]حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ ح حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ أَقَمْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرًا نَقْصُرُ الصَّلَاةَ[ر:١٠٣١]
[٤٠٣٧/٤٠٣٨]حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا عَاصِمٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ أَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ تِسْعَةَ عَشَرَ يَوْمًا يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ
[٤٠٣٨]حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَقَمْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ تِسْعَ عَشْرَةَ نَقْصُرُ الصَّلَاةَ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَنَحْنُ نَقْصُرُ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ تِسْعَ عَشْرَةَ فَإِذَا زِدْنَا أَتْمَمْنَا[ر:١٠٣٠]

---

(١) فتح البارى (٨\٧٣٤) كتاب التفسير سورة إذا جاء نصر الله )_
(٢) سورة الحجر: ٩٤)_
(٣) سورة المائدة:٦٧)_
(٤) سورة الأحزاب:٥٩)_

امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې د ټولو نه وړاندې د حضرت انس رضي الله عنه روايت نقل كړې دې.په دې كښې دى.چه نبى ﷺ لس ورځې قيام كړې وو.او په مونځ كښې به ئې قصر كولو.
د دې باب دويم روايت د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دې.په هغې كښې دى.چه نبى ﷺ نولس ورځې قيام كړې وو.او قصر به ئې كولو.
خوپه دې باندې اشكال دا دې.چه دحضرت انس رضي الله عنه د روايت تعلق د حجة الوداع سره دې.(١) او دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما د روايت تعلق د فتحې مكې سره دې.(٢) دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت په دې باب كښې ذكر كول خو په خپل محل دى.خودحضرت انس رضي الله عنه روايت په كوم مناسبت سره امام بخارى دلته ذكر كړې دې؟
حافظ ابن حجراودهغوى په اتباع كښې علامه قسطلانى ،علامه ابو يوسف يعقوب رحمهما الله دا جواور وركړې دې،چه دحضرت انس رضي الله عنه په روايت ذكركولو كښې امام بخارى په وخت كښې دواړه روايات وړاندې راوړل غواړى.اودې طرف ته اشاره كوى چه په دواړو رواياتو كښې څه تعارض نشته.ځكه چه دواړه واقعات بيخې جدا جدا دى.د يو روايت تعلق د فتحې مكې سره دې او دبل تعلق د حجة الوداع سره دې.(٣)
خوحقيقت دا دې.چه په دې توجيه باندې زړه نه مطمئن كيږى.په ابواب التقصير كښې هم امام بخارى رحمه الله دواړه روايات ذكر كړى دى.(٤)
حضرت مولانا محمد يونس رحمه الله فرمائيلى دى،زما رائې دا ده،چه په حقيقت كښې امام بخارى دواړه روايات هم د يوې واقعه سره متعلق ګڼړى.اوپه دې ګڼړلو كښې د دوى نه وهم واقع شوې دې.(٥) ((والوهم لايخلوعنه أحد))

---

١ ) اګرچه دلته په روايت كښې د حجة الوداع تصريح نشته.دلته خو صرف ((أقمنا مع النبى ﷺ عشراً قصراً نقصر الصلاة)) الفاظ دى.البته امام مسلم هم دا روايت د يحيى بن اسحاق په طريق سره نقل كړې دې.په هغې كښې دى(( خرجنا من المدينة إلى الحج)) هلته د حج تصريح شته.اوګورئ (صحيح مسلم كتاب صلاة السافرين وقصرها رقم الحديث ٦٩٣و ) (٤٨١١)_

٢ ) دحضرت ابن عباس رضى الله عنهما په روايت كښې هم دلته تصريح نشته.چه د دوى د روايت واقعه د فتح مكې سره متعلق ده.البته د ابن عباس رضى الله عنهما دا روايت امام بخارى په كتاب الصلاة كښې نقل كړې دې.هلته حافظ ابن حجر تشريح كړې ده.او په دلائلو سره ئې دا ثابته كړې ده.چه د ابن عباس رضى الله عنهما د روايت تعلق د فتح مكې سره دې.اوګورئ فتح البارى (٦١٢/٢و ٥٦٢)

٣ ) فتح البارى (٢١/٨)_

٤ ) صحيح بخارى كتاب تقصير الصلاة باب ما جاء فى تقصير الصلاة وكم يقيم حتى يقصر حديث نمبر ١٠٨٠و ١٠٨١)-

٥ ) ددې خبرې تائيد د دې نه هم كيږى.چه امام بخارى په كتاب تقصير الصلاة كښې يو مستقل باب قائم كړې دې.((باب كم أقام النبى ﷺ فى حجه؟)) اود دغه لاندې ئې دحضرت ابن عباس رضى الله عنهما ذكرشوې روايت نقل كړې دى.د دې نه ښكاره معلوميږى،چه امام بخارى د حضرت ابن عباس رضى الله عنهما روايت هم د حجة الوداع سره متعلق ګڼړى...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

**قوله:** حدثنا أحمد بن يونس...وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَنَحْنُ نَقْصُرُ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ تِسْعَ عَشْرَةَ فَإِذَا زِدْنَا أَتْمَمْنَا: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی،چه نولس ورځو پورې به مونږ قصر کوو.خوکه د نولس ورځو نه موده زياته شوه.نو بيا به مونږ اتمام کوو.

په څلورو واړه امامانو کښې دا دچا مسلك هم نه دې.البته دامام شافعي رحمه الله نه منقول دی،چه اتلس ورځې به مونږ قصركوو.كه زياتې شوې نو اتمام به كوو (١)

د قصرالصلاة سره متعلق تفصيلي بحث په ابواب قصرالصلاة کښې تيرشوې دې.

**دفتح مکې په موقع د نبی عليه السلام دقيام په موده کښې اختلاف او ددې حل:** د نبی کريم صلی الله عليه وسلم قيام د فتحې مکې په دوران کښې په مکه مکرمه کښې څومره پاتې شوې وو.په دې باره کښې روايات مختلف دی.امام ابوداؤد دا مختلف روايات نقل کړی دی.دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما په مذکوره روايت کښې د نولس ورځو ذکر دې.دعمران بن حصين رضی الله عنه په روايت کښې د اتلس ورځو.(٢) په بعضې رواياتو کښې اوولس ورځې (٣)او دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما په يو بل روايت کښې د پنځلس ورځو ذکر دې.(٤)

امام بيهقي دا څلور قسمه روايات داسې جمع کړی دی،چه کوم حضراتو نولس ورځې ذکر کړی دی.هغه حضراتو يوم الدخول او يوم الخروج شمار کړی دی. اوپه کومو رواياتو کښې چه يوم الدخول او يوم الخروج دواړه حذف شوی دی.په هغې کښې اوولس ورځې ذکر

---

...دتيرمخ بقيه] دغه شان د حضرت انس رضی الله عنه او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دواړو روايات د امام په نيز د حجة الوداع سره متعلق دی.(اوګورئ صحيح بخاری کتاب تقصيرالصلاة باب کم أقام النبی صلی الله عليه وسلم فی حجته رقم الحديث ١٠٨٥)_

١) فتح البارى (٥٢٦\٢) كتاب تقصير الصلاة)) امام شافعي مذهب په دې صورت كښې دا دې.چه كله مسافر د معلومې مودې د قيام اراده نه وی كړې.بلكه د څه ضرورت او حاجت د جې هغه ډيره وې.نواو اراده نې دا وی،چه كله هم حاجت پوره شي نو خم به،په داسې صورت كښې د امام شافعي رحمه الله مذهب حافظ ابن حجر رحمه الله دا ليكلې دې،چه اتلس ورځو پورې هغه قصر كولې شي،خو كه د قيام موده ددې نه زياته شوه.نوبيا به اتمام كوی.

البته امام نووی رحمه الله په ((المجموع شرح المهذب)) كښې داتلس ورځو په ځائې اوولس ورځو موده ليكلې ده.په دې باره كښې نې دامام شافعي رحمه الله نور اقوال هم نقل كړی دی.اوګورئ ((المجموع شرح المهذب باب صلاة المسافر (٣٥٩\٤و ٣٦٠)_

٢) الحديث أخرجه دبوداود عن عمران بن حصين ،قال غزوت مع رسول الله صلی الله عليه وسلم وشهدت معه الفتح فقام بمكة ثمانى عشرة ليلة لا يصلى إلا ركعتين ويقولو،ياأهل البلد ،صلوا أربعاً فإنا قوم سفر ،سنن أبى داود كتاب الصلاة باب متى يتم المسافر ،رقم الحديث (١٢٢٩)_

٣) الحديث أخرجه أبوداود عن ابن عباسرضى الله عنهما أن رسول الله صلی الله عليه وسلم أقام سبع عشرة بمكة يقصر الصلاة (سنن أبى داود كتاب لاصلاة باب متى يتم المسافر؟ رقم الحديث ١٢٣٠)_

٤) الحديث أيضاً أخرجه أبوداود عن ابن عباسرضى الله عنهما أن رسول الله صلی الله عليه وسلم أقام بمكة عام الفتح خمس عشرة يقصر الصلاة (سنن أبى داود كتاب الصلاة باب متى يتم المسافر؟ رقم ١٢٣١)_

دى.اوكومو كسانو چه په دې دواړو كښې صرف يو حذف كړې ده.هغوى د اتلس ورځو مودې بيان كړې ده.باقي پاتې شو د پنځلسو ورځو روايت نو امام نووى دا ضعيف ګرځولې دې.(١) خو دامام نووى رحمه الله دا تضعيف صحيح نه دې.ځكه چه ددې روايت ټول راويان ثقه دى.(٢) بلكه د حضرت انورشاه رحمه الله په نيز د پنځلسو ورځو روايت راجح دې.(٣) البته په دې كښې څه شك نشته.چه اكثر روايات د نولسو ورځو په قيام باندې دلالت كوى.دامام بخارى ميلان هم دې طرف ته دې.اود اسحاق بن راهويه رحمه الله هم دا رائې ده.(٤)
پاتې شوه دا خبره چه د نولسو په قيام كښې نبى ﷺ قصر كړې دې.حال دا چه داحنافو په نيز مودهٔ د قصر پنځلس ورځې دى.نو ددې جواب دا دې.كه د يو مسافرد پنځلسو ورځو نه دزيات قيام اراده نه وى.اوددې باوجود ده قيام د پنځلسو ورځو نه زيات شى.نو بيا هم هغه قصر كولې شى.دلته رسول الله ﷺ هم د پنځلسو ورځو د قيام اراده نه وه كړې.خود نبى ﷺ قيام زيات شو.اونبى ﷺ به په دې كښې قصر كولو.والله اعلم.

## باب

[٤٠٤٩]وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ ثَعْلَبَةَ بْنِ صُعَيْرٍ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ مَسَحَ وَجْهَهُ عَامَ الْفَتْحِ

[٤٠٥٠]حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ سُنَيْنٍ أَبِي جَمِيلَةَ قَالَ أَخْبَرَنَا وَنَحْنُ مَعَ ابْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ وَزَعَمَ أَبُو جَمِيلَةَ أَنَّهُ أَدْرَكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَخَرَجَ مَعَهُ عَامَ الْفَتْحِ

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى.لكه څنګه چه فقهاء د يو كتاب په آخر كښې څه فصل يا باب د مسائل شتى بيانولو دپاره قائموى.دغه شان امام بخارى رحمه الله دغزوه فتح مكې په آخر كښې د فتح مكې سره متعلق د مختلفو امورو بيانولو دپاره قائم كړې دې.(٥)
ددې نه پس امام بخارى د حضرت ليث تعليق ذكر كړې دې.دا تعليق امام بخارى په خپل تاريخ كښې موصولاً ذكر كړې دې.(٦) او د دې د ذكر كولو مقصد صرف دومره دې.چه عبدالله بن ثعلبه بن صعير صحابى رضى الله عنه دې.اود فتح مكې په موقع ورته د رسول الله ﷺ زيارت نصيب شوې وو.او نبى ﷺ د فتح مكې په موقع دهغه په مخ باندې لاس مبارك رابنكلې وو.

---

١) اوګورئ فتح البارى (٥٦٢\٢) كتاب تقصير الصلاة)_
٢) فتح البارى (٥٢٦\٢) كتاب تقصير الصلاة)_
٣) فيض البارى (١١٢\٤) كتاب المغازى )_
٤) فتح البارى (٥٦٢\٢) كتاب تقصير الصلاة)_
٥) الأبواب والتراجم (٨\٢)_
٦) عمدة القارى (٤٨٨\١٧)_

[٤٠٥١] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ سَلِمَةَ قَالَ قَالَ لِي أَبُو قِلَابَةَ أَلَا تَلْقَاهُ فَتَسْأَلَهُ قَالَ فَلَقِيتُهُ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ كُنَّا بِمَاءٍ مَمَرَّ النَّاسِ وَكَانَ يَمُرُّ بِنَا الرُّكْبَانُ فَنَسْأَلُهُمْ مَا لِلنَّاسِ مَا لِلنَّاسِ مَا هَذَا الرَّجُلُ فَيَقُولُونَ يَزْعُمُ أَنَّ اللَّهَ أَرْسَلَهُ أَوْحَى إِلَيْهِ أَوْ أَوْحَى اللَّهُ بِكَذَا فَكُنْتُ أَحْفَظُ ذَلِكَ الْكَلَامَ وَكَأَنَّمَا يُقَرُّ فِي صَدْرِي وَكَانَتِ الْعَرَبُ تَلَوَّمُ بِإِسْلَامِهِمُ الْفَتْحَ فَيَقُولُونَ اتْرُكُوهُ وَقَوْمَهُ فَإِنَّهُ إِنْ ظَهَرَ عَلَيْهِمْ فَهُوَ نَبِيٌّ صَادِقٌ فَلَمَّا كَانَتْ وَقْعَةُ أَهْلِ الْفَتْحِ بَادَرَ كُلُّ قَوْمٍ بِإِسْلَامِهِمْ وَبَدَرَ أَبِي قَوْمِي بِإِسْلَامِهِمْ فَلَمَّا قَدِمَ قَالَ جِئْتُكُمْ وَاللَّهِ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقًّا فَقَالَ صَلُّوا صَلَاةَ كَذَا فِي حِينِ كَذَا وَصَلُّوا صَلَاةَ كَذَا فِي حِينِ كَذَا فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَلْيُؤَذِّنْ أَحَدُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ أَكْثَرُكُمْ قُرْآنًا فَنَظَرُوا فَلَمْ يَكُنْ أَحَدٌ أَكْثَرَ قُرْآنًا مِنِّي لِمَا كُنْتُ أَتَلَقَّى مِنَ الرُّكْبَانِ فَقَدَّمُونِي بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَأَنَا ابْنُ سِتٍّ أَوْ سَبْعِ سِنِينَ وَكَانَتْ عَلَيَّ بُرْدَةٌ كُنْتُ إِذَا سَجَدْتُ تَقَلَّصَتْ عَنِّي فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنَ الْحَيِّ أَلَا تُغَطُّوا عَنَّا اسْتَ قَارِئِكُمْ فَاشْتَرَوْا فَقَطَعُوا لِي قَمِيصًا فَمَا فَرِحْتُ بِشَيْءٍ فَرَحِي بِذَلِكَ الْقَمِيصِ

حضرت اویب سختیانی رحمه الله فرمائی.چه ابوقلابه ماته اووئیل،چه ته د عمروبن سلمه رضي الله عنه سره نه ملاویږې.چه دهغه نه دهغه د مسلمانیدو واقعه واوري .ایوب وائی. زه د عمروبن سلمه رضي الله عنه سره ملاؤ شوم.اودهغه نه مې د هغه د اسلام راوړو واقعې تپوس اوکړو.،حضرت عمروبن سلمه دخپل اوخپلې قبیلې داسلام راوړو واقعه بیانوله نو وئې فرمائیل.چه مونږ یوې داسې چینې سره اوسیدو ،کومه دتلونکو او راتلونکو قافلو لار وه.مختلفې قبیلې به په مونږ باندې تیریدې ،(رسول الله صلی الله علیه وسلم د نبوت اعلان کړې وو.څکه) مونږ به دخلقو نه تپوسونه کول.چه دا سړې څنګه دې؟ اودخلقو څه میلان دې.؟نو د قافلې خلقو به وئیل،دا سړې دخپل خان په باره کښې د رسول دعوی کوی.او وائی،چه الله تعالی زما طرف ته وحی رالیږلې ده.(او دقافلې خلقو به هغه وحی اوروله) حضرت عمروبن سلمه فرمائی.

**قوله**: فكنت أحفظ ذاك الكلام ،فكأنما يقر في صدري: ما به دغه کلام الهی یادولو.داسې به معلومیدله لکه چه دغه کلام زما په زړه پورې انخلی.

په «يقرأ» کښې څلور روایتونه دی.

① یو ،،یقر،،د قرار نه دې.پورته ترجمه هم ددې مطابق شوې ده.

② دویم روایت «يقرأ»دقراءت نه دې.یعنی لکه چه دغه کلام زما په زړه کښې وئیلو شو او زما د زړه آواز دې.

③دریم«يقرى»دې.دا د ،،تقریه، نه ماخوذ دې.معنی ئې جمع کول راځی. «قريت الماء إذا جمعته،يقرى في صدرى أى يجمع في صدرى»څلورم روایت «يغرى» د ،،تغریه،، نه ماخوذدې.ددې معنی انخول دی.«غراء» ګوند ته وائی.د «يغرى في صدرى» مطلب به وی چه هغه کلام زما په

زړه پورې انخلولې شو.او په زړه باندې مې چاپ كيدو.دا اخرى روايت قاضى عياض راجح ګرخولې دې.(١)

**قوله:** وكانت العرب تلوّم بإسلامهم الفتح:اوعربوبه د خپل راوړو دپاره د فتحې مكې انتظار كولو.((تلوّم:تنتظر))

نوكله چه مكه فتح شوه،هرې قبيلې اسلام طرف ته رامندې كړې.زما قوم هم دخپل قوم په اسلام راوړو كښې تندى اوكړه.(اود خپل قوم دطرف نه يوقاصد جوړ او د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضر شو) كله چه دهغه خائې نه واپس راغلو.نو وې وئيل په الله قسم زه تاسو ته د يوحق نبى د طرفه راغلې يم.هغوى راته په تعليم راكولوكښې اووئيل،چه په فلانى وخت كښې فلانې مونځ او په فلانى وخت كښې فلانې مونځ كوئ.كله چه د مانځه وخت راشى.نو يوكس دې اذان كوى.اوچه چاته د ټولو نه زيات قران ورځى،هغه دې امامتى وركوى.حضرت عمروبن سلمه رضي الله عنه فرمائى.كله چه خلقو غور اوكړو،نو زما نه زيات چاته قرآن ياد نه وو.ځكه چه ما به د راتلونكو قافلو نه قرآن زده كولو.نو هغوى زه امام جوړ كړم.په دغه وخت كښې زما عمر شپږ يا اووه كاله وو.د بخارى په دې روايت كښې ((أنا ابن ست أوسبع سنين))د ابوداود په روايت كښې دى ((أنا ابن سبع سنين))(٢)د نسائى په روايت كښې ((أنا ابن ثمان)) بغيرترددد نه راغلې دې.(٣) اود ابن جارود په روايت كښې ((أنا ابن ست)) بغيرترددد نه راغلې دې.(٤) بهرحال د دوى عمر په دغه وخت كښې د شپږو او اتۀ كالوپه مينځ كښې وو.

فرمائى ما سره يو څادر وو،كله چه به زه سجدې ته تلم،نو پورته كيدو،او (د شاته نه به مې ستربنكاريدو) د قبيلې يوې ښځې اووئيل.((ألا تغطون عنا است قارئكم)) تاسو دخپل قارى صاحب كوناټې زمونږ نه ولې نه پټوئ.بيا خلقو كپړه واخستله،اوزما دپاره ئې يوقميص واخستلو.په دغه قميص باندې چه ماته څومره خوشحالى ملاؤ شوه،دومره په بل څيز نه وه ملاؤ شوې.

**د ماشوم د امامت مسئله:** د ماشوم د امامت مسئله په كتاب الصلاة كښې تيره شوې ده.امام شافعى رحمه الله مطلقاً ددې د جواز قائل دى.امام ثورى اوامام مالك مطلقاً د كراهت قائل دى. دامام ابوحنيفه او امام احمد مشهور قول دا دې.چه صبى په نوافلو كښې امامت كولې شى په فرائضو كښې نشى كولې.(٥)

---

(١) عمدة القارى (١٧\٢٩٠) وفتح البارى (٨٧\٢٣)_

(٢) سنن أبي داود كتاب الصلاة باب م أحق بالإمامة رقم الحديث ٥٨٥)_

(٣) سنن نسائى كتاب الإمامة باب إماة الغلام قبل أن يحتلم (١\١٢٧)_

(٤) المنتقى لابن الجارود كتاب الصلاة باب الجماعة والإمامة (١١٤)_

(٥) المجموع شرح المهذب (١٤\٢٤٩و ٢٥٠)_

روايت باب د امام شافعي رحمه الله مستدل دې.احناف او حنابله وغيره ددې داسې جواب کوي. چه دا عمل دهغه خلقو دخپل طرف نه کړې وو.د رسول الله ﷺ تقرير دې عمل ته حاصل شوې نه وو.نو قابل استدلال نه دې.(١) خو نور حضرات فرمائي،چه دا د نزول وحی زمانه وه.که دا عمل ناجائز وو،نو د وحی په ذريعه به تنبيه راغلې وه.لکه څنګه چه حضرت جابر رضي الله عنه او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه د عزل په جواز باندې دا دليل پيش کړې وو.((كنا نعزل والقرآن ينزل ورسول الله ﷺ بين أظهرنا)) که عزل ناجائز وو.نو قرآن به ددې د حرمت تصريح کړې وه.حال دا چه قرآن تصريح نه ده کړې،ددې نه معلوميږي،چه په دې کښې حرمت نشته،دغه شان دلته هم د نابالغه د امامت علم که جائز نه وو،و پکار ده چه ددې تصريح راغلې وه.(٢)

خواحناف فرمائي.چه دا روايت دصبي دامامت د جوازدپاره دليل جوړول وي .نو په دې کښې دا هم راغلي دي.چه د سجدې په حالت کښې به دده کشف عورت کيدو،حال دا چه په کشف عورت سره په اتفاق مونځ ماتيږي.نو بيا به ددې تاسو څه جواب ورکوئ؟ (٣)

حقيقت دا دې،چه په دې روايت سره استدلال صحيح نه دې.په اصل کښې دا خلق اوس نوې نوې مسلمانان شوي وو.د صلاة د احکامو نه لا پوره خبر نه وو.د ټولونه زيات قرآن چونکه عمروبن سلمه رضي الله عنه ته ياد وو.ددې وجې ئې دې خپل امام جوړ کړې وو.روسته چه کله دوی ته د صلاة داحکامو تفصيلات معلوم شو .نو هغوی به امام بدل کړی وی. والله اعلم.

علامه خطابي فرمائي،چه حسن بصري دا روايت ضعيف ګرځولې دي.((وقال مرة دعه ليس بشئ بين)) دا پريږده.دا څه واضح خيز نه دې.(٤)

[٤٠٥٢] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ عُتْبَةُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ عَهِدَ إِلَى أَخِيهِ سَعْدٍ أَنْ يَقْبِضَ ابْنَ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ وَقَالَ عُتْبَةُ إِنَّهُ ابْنِي فَلَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ فِي الْفَتْحِ أَخَذَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ ابْنَ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ فَأَقْبَلَ بِهِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَقْبَلَ مَعَهُ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ فَقَالَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ هَذَا ابْنُ أَخِي عَهِدَ إِلَيَّ أَنَّهُ ابْنُهُ قَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا أَخِي هَذَا ابْنُ زَمْعَةَ وُلِدَ عَلَى فِرَاشِهِ فَنَظَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى

---

١) اوګورئ بذل المجهود (١٩٧\٤)_

٢) فتح البارى (٢٣\٨)_

٣) بذل المجهود (١٩٨\٤)_

٤) عين الهداية (٤٥٣\١)_

ابْنِ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ فَإِذَا أَشْبَهُ النَّاسِ بِعُتْبَةَ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ هُوَ أَخُوكَ يَا عَبْدُ بْنَ زَمْعَةَ مِنْ أَجْلِ أَنَّهُ وُلِدَ عَلَى فِرَاشِهِ وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجِبِي مِنْهُ يَا سَوْدَةُ لِمَا رَأَى مِنْ شَبَهِ عُتْبَةَ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ قَالَتْ عَائِشَةُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ وَقَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَكَانَ أَبُو هُرَيْرَةَ يَصِيحُ بِذَلِكَ [ر: ۱۹۴۸]

امام بخاری رحمه الله دا حديث په دوو سندونو سره نقل كړې دې.د اولنى سند متن ئې دلته نه دې ذكر كړې.دلته صرف د سند ذكر دې،ددې متن امام بخارى په كتاب الوصايا كښې ذكر كړې دې.([1])

دويم سند د ،ليث،،دې،كوم چه امام بخارى دلته تعليقاً ذكركړې دې. وړاندې متن د ليث د سند سره متعلق دې.دا تعليق محمدبن يحيى هلى په ،،الزهريات ،، كښې موصولاً نقل كړې دې. ([2])

**قوله**: كَانَ عُتْبَةُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ عَهِدَ إِلَى أَخِيهِ سَعْدٍ أَنْ يَقْبِضَ ابْنَ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ: په زمانه د جاهليت كښې به بعضې خلقو ځان سره وينځې ساتلې،اوبه هغوى باندې به ئې زنا كوله او ګټه به ئې كوله.دې سره سره به ئې هغوى سره په خپله هم وطى كوله،كله چه به ددغه وينځې نه بچې پيدا شو.نو بعضې وخت كښې به مولى ددغه بچى په باره كښې دعوى اوكړه،چه دا زما دې،اوكله به زانى دعوى اوكړه ،چه دا زما دې،چه چا به دعوى اوكړه.بچې به هم د هغه ګنړلې شو.د ام المومنين سوده رضي الله عنها دپلار زمعه بن قيس هم دغه شان يوه وينځه وه.د حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه ورور عتبه بن ابى وقاص به دې ته راتلو.چه كله حمل ښكاره شو،نود مرګ نه وړاندې هغه خپل ورور حضرت سعد رضي الله عنه ته اووئيل.چه د زمعه د وينځې نه كوم بچې پيدا شى.په هغې باندې به قبضه كوې.ځكه چه هغه زما ځوئې دې.([3])

حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه چه كله د فتح مكې په موقع مكې ته راغلو ،او په هغه بچى ئې نظر پريوتل.نوهغه ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت كښې حاضر كړو .او وې وئيل دا زما د ورور ځوئې دې.خوعبد بن زمعه اووئيل يارسول الله دا خو زما ورور دې.او زما د پلار په فراش باندې پيدا شوې دې.(يعنى زما د پلار د وينځې نه پيدا شوې دې)

رسول الله صلی الله علیه وسلم چه كله هغه هلك طرف ته اوكتل،نوهغه د عبه به ابى وقاص سره زيات مشابه وو.نبى صلی الله علیه وسلم فيصله د عبدبن زمعه په حق كښې اوكړه،او وې فرمائيل. ((هولك ،هو أخوك، ياعبدبن زمعه)) ښكاره ده چه كله نبى صلی الله علیه وسلم هغه د عبدبن زمعه ورور اوګرځولو،نود ام

---

[1]) اوګورئ صحيح بخارى كتاب الوصايا باب قول الموصى لوصيه تعاهدو ولدى (۳۸۳/۱)_
[2]) فتح البارى (۲٤/۸)_
[3]) فتح البارى (۳۳۰/۱۲) كتاب الفرائض باب الولد للفراش حرة كانت أو أمة)_

المومنین سوده بنت زمعه هم ورور شو.خو نبی ﷺ د احتیاط دپاره حضرت سودې ﷞ ته اوونیل.«احتجبی منه یا سودة» سوده! دده نه پرده کوه.دا حکم نبی ﷺ ددې وجې ورکړو.چه هغه هلك د عتبه سره مشابه وو.

**د حدیث باب نه په ثبوت نسب باندې د درې امامانو استدلال:** دا حدیث په یوه اختلاف. مسئله کښې د ائمه ثلاثه دلیل دې.مسئله دا ده،که یو مولی دخپلې وینځې سره د وطی کولو اقرار اوکړی،اوبیا د دغه وینځې بچې پیدا شی.نو هغه به د مولی ګنړلی شی اوکه نه.ائمه ثلاثه فرمائی.هغه بچې به د مولی ګنړلې شی.احناف وائی.چه صرف د وطی اقرار کول کافی نه دی.بلکه دې سره سره دا هم ضروری دی.چه مولی دا دعوی اوکړی.چه دا بچې زما دې.(۱)

حدیث باب د ائمه ثلاثه دلیل دې،ځکه چه په دې کښې رسول الله ﷺ د څه دعوی نه بغیرد دغه هلك نسب د زمعه ثابت کړو.اود زمعه خونې ته ئې اوونیل،چه دا ستا خونې دې.ددې نه معلومیږی.چه د بچی د نسب د ثبوت دپاره د مولی دعوی کول څه ضروری نه ده.

حضرت احناف ﷭ فرمائی،چه دلته رسول الله ﷺ د دغه هلك نسب د زمعه نه ثابت کړې نه دې.بلکه «هولك یاعبدزمعه» ئې وئیلی دی.د عبد بن زمعه دپاره ئې د دغه هلك ملکیت ثابت کړې دې.ځکه چه اصول دا دی.کله چه د پلار د وینځې نه بچې د بل چا د نطفې نه پیدا شی.نو د پلار نه پس د دغه وینځې پشان د هغې د بچی هم (دمولی) خوې مالك دې.هم ددې اصولو په رنړا کښې نبی ﷺ دهغه بچی ملکیت د عبدبن زمعه نه ثابت کړو.د ثبوت نسب دلته څه ذکر نشته.

د دې خبرې تائید د عبدالله بن زبیر ﷛ د هغه روایت نه هم کیږی.کوم چه نسائی په سنن کښې (۲)عبدالرزاق په مصنف کښې (۳)اوامام احمدبن حنبل ﷫ په مسند کښې تخریج کړې دې.(۴) ددې په آخر کښې دی.«واحتجبی منه یاسودة فلیس لك بأخ» د احنافو دطرفه ددې جواب حاصل دا دې.چه «هولك یاعبدبن زمعة» نه مراد ثبوت نسب نه دې.بلکه ددې جملې نه مقصد د عبدبن زمعه دپاره د هلك ملکیت ثابتول دی.خودا جواب په هغه وخت کښې صحیح کیدې شی.کله چه دغه هلك غلام اومنلې شی.حال داچه د بعضې روایاتو نه د هغه حریت ثابتیږی

ددې وجواب اکثر احناف ددې روایت جواب دا ورکوی.چه «هولك یاعبدبن زمعه» نه د رسول الله ﷺ مقصود هغه د عبدبن زمعه سره په میراث کښې شریکول وو.ځکه چه دا اصول دی، چه که یووارث د یو کس په باره کښې دا اقرار اوکړی ،چه دا زما ورور دې.نو د وارث په

---

۱) مغنی ابن قدامة (۵۳۰\۹) کتاب عتق أمهات الأولاد وإعلاء السنن (۲۲۷\۱۱)_

۲) سنن نسائی (۱۱۰\۱۲) کتاب الطلاق باب الحاق الولد بالفراش إذا لم ینفه صاحب الفراش)_

۳) مصنف عبدالرزاق (۴۴۳\۷) رقم ۱۳۸۲۰)_

۴) مسند احمد (۵\۴)_

ذمه لازم دى،چه هغه خپل نصف حصه ميراث دغه مقرله كس ته وركړى.خو د مړى نه ددغه كس نسب نه ثابتيږى.«لأن المرأ يؤخذ بإقراره فيما يتعلقه به وحده» دلته هم بعينه هم دا صورت دې.چه عبدبن زمعه راغلو،د دغه كس په باره كښې ئې اوونيل،چه دا زما ورور دې.نو نبى ﷺ د دغه قاعدې په رڼا كښې فيصله اوكړه.او وې وئيل چه «و لك يا عبدبن زمعه» يعنى «إنه يشاركك فى الميراث» ددې خبرې تائيد د مصنف عبدالرزاق دهغه روايت نه هم كيږى.دكوم الفاظ چه دا دى.«فقال النبى ﷺ لسودة أم الميراث فله وأما أنت فاحتجبى منه ياسودة، فإنه ليس لك بأخ» (١)دغه شان د مسند احمد په روايت كښې دى.«أما أنت فاحتجبى منه،فليس بأخيك وله الميراث» (٢)دا روايات په دې خبره باندې په صراحت سره دلالت كوى.چه رسول الله ﷺ د زمعه نه دهغه نسب نه ثابتوى.بلكه صرف د ميراث په حق كښې دعبدبن زمعه سره هغه شريكوى.هم ددې وجې رسول الله ﷺ حضرت سودة رضي الله عنها ته اوفرمائيل.چه «فإنه ليس لك بأخ»كه د نسب ثابتول د نبى ﷺ مقصود وو.نو بيا به ئې د حضرت سودة نه د هغه د اخوت نفى هرگز نه كوله.

امام نووى رحمه الله فرمائى.«فإنه ليس لك بأخ» دا زيادت سنداً ثابت نه دې.(٣) امام ابوعبدالله المازرى شارح دمسلم هم په «المعلم شرح صحيح مسلم» كښې دا ليكلى دى.چه دا زيادت بعضې احنافو دخپل طرف نه كړې دې. (٤)علامه سيوطى رحمه الله هم د نسائى شريف په شرح ،.زهرالربى ،، كښې د مازرى دا قول نقل كړې دې.(٥)

خودا اعتراض صحيح نه دې.دا حديث د امام احمداوامام نسائى نه علاوه امام طحاوى هم تخريج كړې دې.(٦) حافظ شمس الدين ذهبى رحمه الله په ميزان الاعتدال كښې ليكى.«هذا حديث صحيح الإسناد» (٧)

حافظ ابن حجر په فتح البخارى كښې د اورډ كلام نه پس هم دې ته ترجيح وركړې ده.چه دا حديث حسن دې.هغوى فرمائى.«أسناد النسائى حسن، ورجاله رجال الصحيح..» (٨)او داحكامو په باب كښې چه لكه څنگه احاديث صحيح معتبر وى.دغه شان حسن هم قابل اعتماد وى.

---

١) مصنف عبدالرزاق (٤٤٣\٧) رقم ١٣٨٢٠)_

٢) مسند احمد ٦\٤٢٩)_

٣) شرح صيحح مسلم للنووى (٤٧١/١ كتاب الرضاعة باب الولد للفراش وتوقى الشبهات)_

٤) شرح صيحح مسلم للنووى (٤٧١/١ كتاب الرضاعة باب الولد للفراش وتوقى الشبهات)_

٥) زهرى الربى (١١٠\١٢و١١١) كتاب الطلاق باب الحاق الولد بالفراش إا لم ينفه صاحب الفراش)_

٦) شرح معانى الآثار للطحاوى (٧٥\٢) كتاب العتاق باب الأمة يطأها مولها ثم يموت .. إلخ )_

٧) ميزان الإعتدال (٤\٤٦٥) رقم الترجمة (٩٨٦٧)_

٨) فتح البارى (٣٧\١٢) كتاب الفرائض باب الولد للفراش حرة كانت أم أمة)

اوس دلته دوه خبرې جمع شوې،د بخاری په ذکرشوی تعلیق کښې خو دی، «هوأخوك»اود بخاری ددې تعلیق نه علاوه د نسائی وغیره په روایت کښې دی. «احتجبی منه یاسودة فإنه لیس لك بأخ» په دواړه قسم روایاتو کښې تعارض دې.اوس که د تعارض لرې کولو دپاره د ترجیح طریقه اختیار کړې شی.نو د بخاری لفظ ته ترجیح پکار ده.خود لیث د ذکرشوي طریق نه علاوه په بل هیڅ طریق کښې د«هوأخوك» الفاظ نه دی راغلی.ابن شهاب زهری دامام مالك نه دا روایت نقل کوی.په هغې کښې دا زیادت نشته.ددې وجې په ظاهره دا معلومیږی .چه د «هوأخوك»زیادت راوی د خپل طرف نه د تفسیر په طور سره کړې دې. ځکه که دا د اصل روایت حصه اومنلې شی.نو بیا د «احتجبی منه یا سودة» سره د دې څه جوړخت نه راځی.اودغه شان د «لیس لك بأخ» روایت سره ئې تعارض لازمیږی.
بیا دویمه خبره دا ده،چه دا روایت د شوافع مستدل هم نشی کیدې.ځکه چه د شوافعو رحمهم الله په نیز د مولی د ثبوت نسب دپاره ،،تحصین جاریه،، شرط دې. د تحصین جاریه مطلب دا دې چه مولی جاریه د بهر مشکوکو ګرځیدو نه منع کړی.اوهم په خپل کور کښې هغه ساتی.حال دا چه د زمعه ددې وینځې په باره کښې ابن جریر طبری تصریح کړې ده، چه دا وینځه د مکې د زنا کارو ښځو ځنې وه.نو بیا د ،،تحصین جاریه،، شرط چرته موجود شو،چه ثبوت نسب ثابت کړې شی.(1)

[۴۰۵۳]حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ امْرَأَةً سَرَقَتْ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ الْفَتْحِ فَفَزِعَ قَوْمُهَا إِلَى أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ يَسْتَشْفِعُونَهُ قَالَ عُرْوَةُ فَلَمَّا كَلَّمَهُ أُسَامَةُ فِيهَا تَلَوَّنَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَتُكَلِّمُنِي فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ قَالَ أُسَامَةُ اسْتَغْفِرْ لِي يَا رَسُولَ اللَّهِ فَلَمَّا كَانَ الْعَشِيُّ قَامَ رَسُولُ اللَّهِ خَطِيبًا فَأَثْنَى عَلَى اللَّهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّمَا أَهْلَكَ النَّاسَ قَبْلَكُمْ أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الشَّرِيفُ تَرَكُوهُ وَإِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الضَّعِيفُ أَقَامُوا عَلَيْهِ الْحَدَّ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَوْ أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَرَقَتْ لَقَطَعْتُ يَدَهَا ثُمَّ أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتِلْكَ الْمَرْأَةِ فَقُطِعَتْ يَدُهَا فَحَسُنَتْ تَوْبَتُهَا بَعْدَ ذَلِكَ وَتَزَوَّجَتْ قَالَتْ عَائِشَةُ فَكَانَتْ تَأْتِي بَعْدَ ذَلِكَ فَأَرْفَعُ حَاجَتَهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[ر:۲۵۰۵]

[۴۰۵۴/۴۰۵۵]حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي مُجَاشِعٌ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَخِي بَعْدَ الْفَتْحِ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ جِئْتُكَ بِأَخِي

---

(1) قال الشيخ الأنور رحمه الله في فيض البارى (۱۸۸\۳و ۱۳۹....) وتتبعت له تفسير ابن جرير ،فوجدت فيه إن تكل الوليدة كانت من بغايا مكة فأين الشافعية وأين ثبوت النسب ،فإنه يبنى عندهم على التحصين وإذا انعدم التحصين ،إنعدم ما يبنى عليه )_

لِتُبَايِعَهُ عَلَى الْهِجْرَةِ قَالَ ذَهَبَ أَهْلُ الْهِجْرَةِ بِمَا فِيهَا فَقُلْتُ عَلَى أَيِّ شَيْءٍ تُبَايِعُهُ قَالَ أُبَايِعُهُ عَلَى الْإِسْلَامِ وَالْإِيمَانِ وَالْجِهَادِ فَلَقِيتُ مَعْبَدًا بَعْدُ وَكَانَ أَكْبَرَهُمَا فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ صَدَقَ مُجَاشِعٌ

[۳۰۵۵] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنْ مُجَاشِعِ بْنِ مَسْعُودٍ انْطَلَقْتُ بِأَبِي مَعْبَدٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُبَايِعَهُ عَلَى الْهِجْرَةِ قَالَ مَضَتِ الْهِجْرَةُ لِأَهْلِهَا أُبَايِعُهُ عَلَى الْإِسْلَامِ وَالْجِهَادِ فَلَقِيتُ أَبَا مَعْبَدٍ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ صَدَقَ مُجَاشِعٌ وَقَالَ خَالِدٌ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ مُجَاشِعٍ أَنَّهُ جَاءَ بِأَخِيهِ مُجَالِدٍ [ر: ۲۸۰۲]

[۳۰۵٦/۳۰۵۷] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُهَاجِرَ إِلَى الشَّامِ قَالَ لَا هِجْرَةَ وَلَكِنْ جِهَادٌ فَانْطَلِقْ فَاعْرِضْ نَفْسَكَ فَإِنْ وَجَدْتَ شَيْئًا وَإِلَّا رَجَعْتَ وَقَالَ النَّضْرُ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ أَخْبَرَنَا أَبُو بِشْرٍ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ فَقَالَ لَا هِجْرَةَ الْيَوْمَ أَوْ بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ

[۳۰۵۷] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ يَزِيدَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو عَمْرٍو الْأَوْزَاعِيُّ عَنْ عَبْدَةَ بْنِ أَبِي لُبَابَةَ عَنْ مُجَاهِدِ بْنِ جَبْرٍ الْمَكِّيِّ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا كَانَ يَقُولُ لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ [ر: ۳٦۸٦]

[۳۰۵۸] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يَزِيدَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِي الْأَوْزَاعِيُّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ قَالَ زُرْتُ عَائِشَةَ مَعَ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ فَسَأَلَهَا عَنِ الْهِجْرَةِ فَقَالَتْ لَا هِجْرَةَ الْيَوْمَ كَانَ الْمُؤْمِنُ يَفِرُّ أَحَدُهُمْ بِدِينِهِ إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَخَافَةَ أَنْ يُفْتَنَ عَلَيْهِ فَأَمَّا الْيَوْمَ فَقَدْ أَظْهَرَ اللَّهُ الْإِسْلَامَ فَالْمُؤْمِنُ يَعْبُدُ رَبَّهُ حَيْثُ شَاءَ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ [ر: ۲۹۱۳]

[۳۰۵۹] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي حَسَنُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ مُجَاهِدٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ يَوْمَ الْفَتْحِ فَقَالَ إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ مَكَّةَ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ فَهِيَ حَرَامٌ بِحَرَامِ اللَّهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَمْ تَحِلَّ لِأَحَدٍ قَبْلِي وَلَا تَحِلُّ لِأَحَدٍ بَعْدِي وَلَمْ تَحْلِلْ لِي قَطُّ إِلَّا سَاعَةً مِنَ الدَّهْرِ لَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا وَلَا يُعْضَدُ شَوْكُهَا وَلَا يُخْتَلَى خَلَاهَا وَلَا تَحِلُّ لُقَطَتُهَا إِلَّا لِمُنْشِدٍ فَقَالَ الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ إِلَّا الْإِذْخِرَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَإِنَّهُ لَا بُدَّ مِنْهُ لِلْقَيْنِ وَالْبُيُوتِ فَسَكَتَ ثُمَّ قَالَ إِلَّا الْإِذْخِرَ فَإِنَّهُ حَلَالٌ

وَعَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الْكَرِيمِ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ بِمِثْلِ هَذَا أَوْ نَحْوِ هَذَا رَوَاهُ أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۱۳۸۴]

**قوله**: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ... ذَهَبَ أَهْلُ الْهِجْرَةِ بِمَا فِيهَا: مطلب دا دې چه مديني منورې ته چه دهجرت څومره فضائل وو، هغه ټول فضائل چه کومو خلقو وړاندې هجرت کړې دې يوړل. او د فتحې مکې نه پس په هجرت کولو هغه فضائل نه حاصليږي.

**قوله**: فلقيت أبا معبد: په بعضې نسخو کښې ((أبا معبد)) دې. او په بعضو کښې ((معبد)) دې.

خو صحیح نسخه د کشمینی رحمه الله ده.په هغې کښې «أبا معبد» دې.ابومعبد د حضرت مجاشع رضي الله عنه د مشر ورور حضرت مجاهد رحمه الله کنیت دې.(١)

**قوله**: وَقَالَ النَّضْرُ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ.....: دا تعلیق دې.او اسماعیلی دا موصولاً نقل کړې دې.(٢) هلته دې سره متعلقه مباحث تیرشوی دی.

**قوله**: حدثنا إسحاق ،حدثنا أبوعاصم عن ابن جريج .. عن مجاهد..: دمجاهد دا روایت مرسل دې.امام بخاری په کتاب الحج او کتاب الجهاد کښې دا موصولاً ذکر کړې دې.(٣)

## بَاب=قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٍ

وَيَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَيْئًا وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُمْ مُدْبِرِينَ ﴿٢٥﴾ ثُمَّ أَنْزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَى رَسُولِهِ (إِلَى قَوْلِهِ) وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٢٧﴾

„حنین،،د مکې او طائف په مینځ کښې د یو خوړ نوم دې.(٤) دلته دعربو دوه مشهورې قبیلې آبادې وې.هوازن او ثقیف،هوازن د غشو په ویشتو کښې مشهوره وه.او ثقیف په خپل شرافت کښې مشهوره وه.

رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کله مکه فتح کړه.نو دې دواړو قبیلو په خپل مینځ کښې مشوره اوکړه. چه د مکې د فتحې نه پس اوس د دوی نمبر دې.ددې نه وړاندې چه مسلمانان په مونږ باندې حمله اوکړی.مونږ لره وړاندې والې پکار دې،چه په هغوی حمله اوکړو.(٥) نو د دواړو قبیلو په شلو زرو کسانو باندې مشتمله یو لوې لښکر په مسلمانانو باندې د حملې کولو دپاره د عوف بن مالك په نګرانۍ کښې روان شو.ښځې اوماشومان ئې هم په دې غرض باندې ځان سره راروان کړل.چه دوی پرینږدی.اواونه تختی.اود هغوی دحفاظت دپاره خپل ځانونه ورکړی.(٦)

د لښکرقیادت اګرچه دقبیله هوازن سردارمالك بن عوف کولو،خو د بن جشم د قبیلې سردار ،،درید بن صمه،، ئې هم د مشورې په حیثیت لښکر ته راغوښتې وو.چه په جنګی امورو کښې د هغه د مهارت نه فائده واخستې شی.،،دریدبن صمه،، مشهور شاعر او په میدان جنګ باندې پوهیدو کښې د غیرمعمولی صلاحیت مالك وو.په دغه وخت کښې دهغه عمر د سلو نه زیات وو.خلقو هغه راوچت کړل.اومیدان جنګ ته ئې راوړسولو.درید

---

(١) فتح الباری (٢۶\٨)_

(٢) فتح الباری (٣۶\٨) وعمدة القاری (٢٩٢\١٧)_

(٣) عمدة القای (٢٩٣\١٧)_

(٤) حنین دمکې مکرمې نه د درې ورځو په فاصله باندې دې.طبقات ابن سعد (١٤٩\٢)_

(٥) الکامل لابن اثیر (١٧٧\٢)_

(٦) سیرت مصطفی (٥٥\٣و٥۶)_

تپوس اوكړو،چه دا كوم ځائې دې؟ خلقو اووئيل.،،اوطاس،، وريد اووئيل.دا ځائې د جنګ دپاره مناسب دې. ځكه چه ددې ځائې زمكه نه زياته سخته ده.اونه دومره نرمه ده.چه قدم په كښې خښيږى .بيا هغه تپوس اوكړو.چه د ماشومانو د ژړا دا آواز څنګه راځى؟ خلقو ورته اووئيل.چه ماشومان او ښځې مو ځان سره راوستى دى،چه هرسړې په بهادرۍ سره جنګيږى.اوتختى نه.په دې باندې وريد اووئيل.په جنګ كښې صرف نيزه او توره كار كوى.كه په جنګ كښې فتح اوشوه.نود اهل وعيال راوستو څه فائده نشته.او كه شكست اوشو.نو د ښځو او بچو په وجه به نوره هم رسوائى وى. ددې وجې زما دا مشوره ده.چه اهل وعيال د لښكر نه روسته اوساتې.خو مالك بن عوف د ځوانۍ د جوش په وجه د ،،وريد،، رائې بيخى خوښه نكړه.او وې وئيل.د بوډاتوپ په وجه دده عقل بيخى بيكاره شوې دې.(1)

بل طرف ته چه رسول الله ﷺ ته ددې خبر اوشو.نو هغوى د تحقيق حال دپاره عبدالله بن ابى حدرد اوليږلو.هغه لاړل.او دوه ورځې د هوازن په لښكر كښې پاتې شو.او واپس راغلو، نبى ﷺ ته ئې تفصيل بيان كړو.(2)

رسول الله ﷺ هم د مقابلې دپاره تياريانې شروع كړې.صفوان بن اميه چه لا تراوسه پورې مسلمان شوې نه وو.سل زغرې دسازوسامان سره په مستعار واخستې.(3)

د خيالى په ورځ په ٦شوال ٨ھ نبى ﷺ د دولس زره كسانو لښكر واخستل، د مكې نه حنين طرف ته روان شو.(4) دا داسلامى غزواتو اولنې لښكر وو.چه دومره په زيات تعداد كښې د شان او شوكت سره حنين طرف ته روان شو.د بعضې صحابوؓ د ژبې نه دا اووتل.

((لن تغلب اليوم من قلة)) نن به مونږ د قلت په وجه نه مغلوبه كيږو.په دې جمله كښې يو قسم د فخر او اعجاب بوئى وو.ځكه د الله تعالى په دربار كښې دا خبره خوښه نشوه.هم دې طرف ته ئې اشاره كړې ده په قرآن پاك كښې فرمائى.﴿لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٍ ۙ وَيَوْمَ حُنَيْنٍ ۙ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنكُمْ شَيْئًا﴾

اسلامى لښكرد نښې (منګل) په ورځ وادى حنين ته اورسيدل.مالك بن عوف خپل فوځ د حنين دواړو طرفونو ته په مورچو كښې كېنولې وو.اوهغوى ته ئې وئيلى وو.چه دخپلو تورو تيكى اوشولئ.او وې غورځوئ.كله چه اسلامى لښكر د دې ځائې نه تيريږى.نو ټول پرې په شريكه حمله اوكړئ.(5)

اوس لا د صبا رنړا هم سمه نه وه لګيدلې.چه اسلامى لښكر وادى حنين نه تريدل.د هوازن او ثقيف ديرش زره ځوانانو په توور او غشو باندې په اسلامى لښكر باندې حمله اوكړه.په

---

1) زاد المعاد (٣\٤٦٦، ٤٦٧) والكامل لابن الأثير (٢\١٧٧) والبداية والنهاية (٤\٣٢٢)_

2) زاد المعاد (٣\٤٦٨) وتاريخ الطبرى (٢\٣٤٦)_

3) تاريخ الطبرى (٢\٣٤٦)_

4) طبقات ابن سعد (٢\١٥٠).ابن اسحاق د روانيدو تاريخ پنځم شوال ليكلې دې.(البداية والنهاية)_

5) زاد المعاد (٣\٤٦٧)_

دې ناڅاپي حمله باندې اسلامي لښکر منتشر او تتر بتر (اخواه ديخواه) شو.صرف څو صحابه ﷺ د نبي ﷺ سره پاتې شو.په هغې کښې حضرت ابوبکر، حضرت عمرو حضرت علي ،حضرت عباس، حضرت فضل بن عباس، حضرت اسامه بن زيد ، حضرت سفيان بن حارث وغيره ﷺ شامل دي. حضرت عباس ﷺ د نبي ﷺ د قچرې واګې او ابوسفيان بن حارث ﷺ رکاب نيولې وو.په سخت جنګ کښې نبي ﷺ د سورلۍ نه راکوز شو.او د جلال نبوت په لهجه کښې ئې اووئيل.((أنا النبي لا كذب أنا ابن عبد المطلب)) حضرت عباس ﷺ اوچتوازه وو.نبي ﷺ هغه ته حکم اوکړو.چه انصارو او مهاجرينو ته آواز اوکړه.هغوی په اوچت آوازسره دا نعره اووهله.((يا معشر الأنصار،يا أصحاب السمرة))[1]اې د انصارو ډلې.اې د کيکر د ونې خاوندانو! کله چه دا جمله صحابو ﷺ واوريده.نو لکه د ليونو غونډې راواپس شول.او د رسول الله ﷺ نه ګيرچاپيره جمع شول.نبي ﷺ د حملې حکم ورکړو.او ميدان جنګ ګرم شو.نبي ﷺ په لاس کښې خاورې راواخستې .اوکافرانو طرف ته ئې اوويشتې.او وې فرمائيل ((شاهت الوجوه)) خراب دې شي دا مخونه.يا خراب شو دا مخونه،خيرې ئې اوکړې.يا ئې خبر ورکړو.په کافرانو کښې داسې يو کس هم پاتې نشو.چه دهغه سترګو ته د دغه يو موټې خاورې نه اونه رسيده.[2]

ددشمن قدمونه اوخويدل.او اويا کسانودهغوی قتل شو.[3] ډير قيديان شول .اوڅه اوتختيدل.په اوطاس او طائف کښې ئې پناه واخستله.طائف ته چه کوم کسان تختيدلي وو.په هغوی کښې مالك بن عوف هم وو.وريد بن صمه اوطاس طرف ته تلونکو کښې وو.[4] دغه شان الله تعالى آخر په دې جنګ کښې مسلمانانو ته فتح ورکړه.دې غزوې سره متعلق نورې خبرې وړاندې د بخاري په رواياتو کښې راځي.

په جنګ حنين کښې چه په اول کښې مسلمانانو ته کوم شکست شوې وو.د دې سبب دا وو.چه د يو صحابي ﷺ د خولې نه داسې جمله وتلې وه.چه په هغې کښې د اعجاب بوئې وو.چه ..نن به مونږ د کموالي د وجې شکست نه موو،، [5] الله تعالى اوفرمائيل.﴿وَيَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنكُمْ شَيْئًا وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُم مُّدْبِرِينَ ۝ ثُمَّ أَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾ [6] الله تعالى بيا خپل احسان اوکړو. او مسلمانانو ته ئې غلبه ورکړه.ددې وجې ورونړو د لوئې خبرې نه ډير ويريدل پکار دي.

---

[1] ) سمره د کيکر ونې ته وائي.د اصحاب سمره نه په بيعت رضوان کښې شرکت کونکي صحابه ﷺ مراد دي.ځکه چه دا بيعت د کيکر د ونې لاندې اخستې شوې وو.)_

[2] ) د تفصيل دپاره اوګورئ الكامل لابن الأثير (۱۷۹\۲) وتاريخ الطبرى(۳۴۸\۲) وزاد المعاد(۴۷۱\۳و ۴۷۲)

[3] ) الكامل لابن الأثير (۱۷۹\۳) _

[4] ) البداية والنهاية (۳۳۷\۴)

[5] ) زاد المعاد (۴۷۷\۳)_

[6] ) سورة التوبة :۲۵و ۲۶)_

[٤٠٦٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ رَأَيْتُ بِيَدِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى ضَرْبَةً قَالَ ضُرِبْتُهَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ قُلْتُ شَهِدْتَ حُنَيْنًا قَالَ قَبْلَ ذَلِكَ

[٤٠٦١/٤٠٦٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَجَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَا أَبَا عُمَارَةَ أَتَوَلَّيْتَ يَوْمَ حُنَيْنٍ فَقَالَ أَمَّا أَنَا فَأَشْهَدُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ لَمْ يُوَلِّ وَلَكِنْ عَجِلَ سَرَعَانُ الْقَوْمِ فَرَشَقَتْهُمْ هَوَازِنُ وَأَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ آخِذٌ بِرَأْسِ بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ يَقُولُ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ

[٤٠٦٣] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قِيلَ لِلْبَرَاءِ وَأَنَا أَسْمَعُ أَوَلَّيْتُمْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ فَقَالَ أَمَّا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا كَانُوا رُمَاةً فَقَالَ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ

[٤٠٦٤] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ سَمِعَ الْبَرَاءَ وَسَأَلَهُ رَجُلٌ مِنْ قَيْسٍ أَفَرَرْتُمْ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ فَقَالَ لَكِنْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَفِرَّ كَانَتْ هَوَازِنُ رُمَاةً وَإِنَّا لَمَّا حَمَلْنَا عَلَيْهِمْ انْكَشَفُوا فَأَكْبَبْنَا عَلَى الْغَنَائِمِ فَاسْتُقْبِلْنَا بِالسِّهَامِ وَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَإِنَّ أَبَا سُفْيَانَ بْنَ الْحَارِثِ آخِذٌ بِزِمَامِهَا وَهُوَ يَقُولُ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ قَالَ إِسْرَائِيلُ وَزُهَيْرٌ نَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَغْلَتِهِ [ر: ٢٧٠٩]

**قوله**: حدثني محمد بن كثير...: يوكس راغلود حضرت براء بن عازب ﷛ نه ئې تپوس اوکړو.«أتوليت يوم حنين؟» آيا ته د حنين په ورځ تختيدلې وې؟نو هغوی په جواب کښې اووئيل، آو. «أما أنا فأشهد على النبي ﷺ أنه لم يول ولكن عجل سرعان القوم» يعنی زه ګواهي ورکوم.چه رسول الله ﷺ شا کړې نه وه چه تختيدلي وو،بلکه دقوم بعضې تلوارکرو د عجلت نه کار واخستلو.

حضرت براء ﷛ په جواب کښې دا اونه وئيل.چه مونږ نه وو تختيدلی.بلکه وې فرمائيل رسول الله ﷺ نه وه شا کړې.ددې وجه دا ده.که على العموم ئې دا وئيلی وو.چه آو مونږ تختيدلی وو.نوپه دې کښې د بې ادبئ يو قسم بوئې وو.چه رسول الله ﷺ هم شا کړې وه.(١)

ددې نه په وړاندينی روايت کښې هم دا سوال د جمعې په صيغې سره دې.«أوليتم مع النبي ﷺ يوم حنين؟»

هم د حضرت براء ﷛ په دريم روايت «أفررتم» هم د جمعې صيغې سره دې.د دې درې واړه

١) فتح البارى (٢٨/٨)_

روایتونو نه دا شبه کیږی.چه تپوس کونکی رسول اللهﷺ هم په شا ته تلونکو کسانو کښې گڼړل.ددې وجې حضرت براءؓ بیان اوکړو.چه خلق منتشر شوی خو وو.خو رسول اللهﷺ په هغوی کښې شامل نه وو.دا ممکن ده چه د قرآن آیت ﴿ثُمَّ وَلَّيْتُم مُّدْبِرِينَ﴾ نې عام گڼړلې وی.او سائل دا سوال کړې وی.

اشکال کیږی،چه تولی یوم الزحف په سبع موبقات کښې داخل ده.او گناه کبیره ده.بیا صحابوؓ نه دا فعل څنگه سرگند شو؟ ددې جواب دا دې،چه ناڅاپه د غشو باران شو.نو مؤلفة القلوب کوم چه په مکه کښې مسلمانان شوی وو. او د هغوی تعداد دوو زروته نزدې وو.هغوی ددې طاقت اونه لرلو،او ورستو اوتختیدل .دهغې اثر په صحابوؓ باندې اوشو.او هغوی منتشر شو.صحابه تختیدلی نه وو.بلکه د افراتفرئ کیفیت وو.بلکه گډ وډ شوی وو.لکه څنگه چه په راروان روایت کښې دی.«کانت للمسلیمن جولة» نوحضرت عباسؓ آواز اوکړو،اوچغه ئې اووهله.نو هغوی سمدستی واپس راغلل.دویمه خبره دا کولې شی،چه تولی او فرار هله وی،چه جرنیل تیخته اختیار کړی.اودلته نبیﷺ تیخته نه ده اختیار کړې.

**قوله**: حدثنا أبوالوليد .. <u>أنا النبي لاكذب أنا ابن عبدالمطلب</u>: رسول اللهﷺ عبدالمطلب ته خپل نسبت کړې دې. ددې وجه دا ده.چه دحضرت عبدالمطلب شهامت، شجاعت، اودهغوی بزرگی او عظمت په ټولو عربو کښې منلې شوې وو.اود دوی والد په ځوانئ کښې وفات شوې وو.ددې وجې نبیﷺ نیکهٔ طرف ته نسبت اوکړو.(۱)

دا هم وئیلی شوی دی.چه دعبدالمطلب په اولاد کښې به آخری نبی آخرالزمان ظاهریږی. اودمخلوق د هدایت بندوبست به کوی.ددې وجې نبیﷺ عبدالمطلب طرف ته نسبت اوکړو..او «أنا النبي» نه پس ئې د «لاكذب» وئیلو کښې اشاره اوکړه،چه نبوت او کذب نشی جمع کیدې.نوځکه نبی یم.دروغژن کیدې نشم.چه اوتختم.زما د الله تعالی په مدد باندې پورد یقین دې.

[۴۰۶۳] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ ح و حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ شِهَابٍ وَزَعَمَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ مَرْوَانَ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ أَخْبَرَاهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ حِينَ جَاءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ مُسْلِمِينَ فَسَأَلُوهُ أَنْ يَرُدَّ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ وَسَبْيَهُمْ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعِي مَنْ تَرَوْنَ وَأَحَبُّ الْحَدِيثِ إِلَيَّ أَصْدَقُهُ فَاخْتَارُوا إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ إِمَّا السَّبْيَ وَإِمَّا الْمَالَ وَقَدْ كُنْتُ اسْتَأْنَيْتُ بِكُمْ وَكَانَ أَنْظَرَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِضْعَ عَشْرَةَ لَيْلَةً حِينَ قَفَلَ مِنَ الطَّائِفِ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّ رَسُولَ

(۱) عمدة القاری (۱۷/۲۹۶)_

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرُ رَادٍّ إِلَيْهِمْ إِلَّا إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ قَالُوا فَإِنَّا نَخْتَارُ سَبْيَنَا فَقَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمُسْلِمِينَ فَأَثْنَى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ إِخْوَانَكُمْ قَدْ جَاءُونَا تَائِبِينَ وَإِنِّي قَدْ رَأَيْتُ أَنْ أَرُدَّ إِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ فَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يُطَيِّبَ ذَلِكَ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يَكُونَ عَلَى حَظِّهِ حَتَّى نُعْطِيَهُ إِيَّاهُ مِنْ أَوَّلِ مَا يُفِيءُ اللّٰهُ عَلَيْنَا فَلْيَفْعَلْ فَقَالَ النَّاسُ قَدْ طَيَّبْنَا ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا لَا نَدْرِي مَنْ أَذِنَ مِنْكُمْ فِي ذَلِكَ مِمَّنْ لَمْ يَأْذَنْ فَارْجِعُوا حَتَّى يَرْفَعَ إِلَيْنَا عُرَفَاؤُكُمْ أَمْرَكُمْ فَرَجَعَ النَّاسُ فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَاؤُهُمْ ثُمَّ رَجَعُوا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرُوهُ أَنَّهُمْ قَدْ طَيَّبُوا وَأَذِنُوا هَذَا الَّذِي بَلَغَنِي عَنْ سَبْيِ هَوَازِنَ [ر: ۲۱۸۳]

چه رسول الله ﷺ د حنين او هوازن د جنګ مهم نه اوزګار شو.نو جعرانه ته راغلو.د طائف دمحاصرې تلونه وړاندې نبی ﷺ حکم اوکړو،چه دحنين د اموال غنيمت او قيديان په ،،جعرانه،، کښې دې جمع کړې شي.دقيديانو تعداد شپږ زره وو.او څلورويشت زره اوښان وو.څلويښت زره چيلۍ چيلۍ وې.او څلور زره اوقيه سپين زر وو.دا ټول د نبی ﷺ دحکم مطابق په ،،جعرانه،، کښې جمع کړې شو.(۱) د طائف محاصره ئې ختمه کړه.نبی ﷺ پنځمې ذی قعدې ته ،،جعرانه،، ته اورسيدل .دلته نبی ﷺ د هوازن د لسو ورځو نه زيات انتظار اوکړو،چه کيدې شي دا کسان د خپلو خپلوانو،بچو او ښځو د خلاصولو دپاره راشي.خو هرکله چه د دومره ورځو د انتظار نه پس هم څوك رانغلل.نو نبی ﷺ په مجاهدينو کښې مال غنيمت تقسيم کړل.

دغنيمتو د تقسيم نه پس د قبيله هوازن وفد توبه ويستونکی د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.او د نبی ﷺ په لاس ئې بيعت اوکړو.مسلمانان شول.او دخپلو مالونو او اهل وعيال د واپسۍ درخواست ئې اوکړو.نبی ﷺ ورته اوفرمائيل .ما ستاسو ډير انتظار اوکړو.او اوس غنيمتونه تقسيم شوی دی.نوپه دوو څيزونو کښې يو څيز اختيار کړئ.يا خپل قيديان واخلئ.يا مال.کله چه هغوی ته يقين اوشو.چه نبی ﷺ صرف يوڅيز واپس کوی.نو هغوی اووئيل.زمونږ قيديان دې واپس کړې شي.نبی ﷺ ارشاد اوفرمائيل.ما او زما د خاندان بنوهاشم په حصه کښې چه څه راغلی دی.هغه ټول واپس کوم.بيا نبی ﷺ د ماسپخين دمانځه نه پس اودريدلو.اول ئې د الله تعالی حمد اوثنا بيان کړه.اوبيا ئې اوفرمائيل. ،،دا ستاسو ورونړه مسلمانان شول او راغلل.زه دا ګنړم.چه د دوی قيديان دوی ته واپس کړو.په تاسوکښې چه کوم کس د زړه په خوشۍ سره داسې کوی.نو ډيره ښه ده.اوچه څوك غواړی.چه دهغه حصه هم دهغه سره پاتې شي.نو الله تعالی چه ددې نه پس مونږ ته کوم غنيمت راکړی.زه به د ټولونه وړاندې هغه ته د هغې معاوضه ورکړم.،،

صحابو ﷡ اووئيل.((قد طيبنا ذلك)) مونږ د زړه نه په دې باندې راضی يو.نبی ﷺ اوفرمائيل.

---

۱) طبقات ابن سعد(۱۵۲/۲)_

دا خبره په ګنړه او شور کښې ده.معلومه نه ده چه چا په رضا او رغبت سره وئيلى دى. اوچا نه دى وئيلي.نوتاسو خلق لاړ شئ.مشوره اوکړئ.اوبيا دې د قبيلې مشران راشى ستاسو په باره کښې دې ما ته بيان اوکړى.چه ټول راضى ئې که نه ؟ ددې نه پس د ټولو قبيلو لوئې لوئې مشران راغلل.اودخپلې رضا او رغبت اظهار ئې اوکړو.
ددې وجې دا وه،چه د تقسيم غنيمت نه پس مجاهدين ددې مالکان شوى وو.اواوس چه دهغوى د ملك نه څيز اخستل.نو دهغې دپاره ضرورى وه.چه دهغوى رضا او رغبت معلوم وى.ددې وجې نبى ﷺ اوفرمائيل.چه د ټولو نه معلومه کړه.چه راضى دى که نه،نود رضا معلوميدو نه پس نبى ﷺ شپږ زره قيديان په يو وخت آزاد کړل.

**قوله**: هذاالذى بلغنى عن سبى هوازن: دا د ابن شهاب زهرى رحمه الله قول دى.[١]

[٤٠٦٥] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عُمَرَ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وحَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا قَفَلْنَا مِنْ حُنَيْنٍ سَأَلَ عُمَرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَذْرٍ كَانَ نَذَرَهُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ اعْتِكَافٍ فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَفَائِهِ

ددې روايت د سند نه معلوميږى.چه په دې کښې انقطاع ده.څکه چه نافع د ابن عمر رضى الله عنهما نه روايت کوى.د حضرت عمر رضى الله عنه نه روايت نه کوى.خو صحيح خبره دا ده.چه دا روايت متصل دى.څکه چه وړاندې د تحويل نه پس په سند کښې «عن نافع عن ابن عمر» دى.د تحويل نه په ماقبل روايت کښې اختصار دى.او په ابواب الخمس کښې مصنف رحمه الله اولنې سند متصلاً نقل کړې دى.[٢]

**قوله**: سَأَلَ عُمَرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَذْرٍ كَانَ نَذَرَهُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ اعْتِكَافٍ: حضرت عمر رضى الله عنه په زمانه جاهليت کښې په مسجد حرام کښې د يوې ورځې او شپې د اعتکاف کولو نذر منلې وو.د رسول الله ﷺ چه کله په جعرانه کښې قيام وو.نو حضرت عمر رضى الله عنه د خپل دغه نذر په باره کښې تپوس اوکړو.چه هغه زه پوره کړم که نه؟ نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.پوره ئې کړه.
که يوکس د په زمانه د کفر کښې نذر اومنى.اود اسلام راوړلو نه پس د هغې پوره کول د جمهورو عالمانو رحمهم الله په نيز واجب نه دى.بلکه مندوب دې.البته د داؤد ظاهرى،مغيره بن عبدالرحمن مخزومى، او امام احمد نه په يو روايت کښې د وجوب قول منقول دى.امام بطال رحمه الله دا قول امام شافعى رحمه الله ته منسوب کړې دى.خو د امام شافعى نه نقل کونکى، دهغه د ټولو ملګرو مذهب د جمهورو موافق دى.[٣]

---

[١] فتح البارى (٣٤\٨)_
[٢] كتاب الجهاد أبواب الخمس باب ما كان النبى ﷺ يعطى المؤلفة قلوبهم وغيرهم من الخمس..(٤٤٥\١)
[٣] د تفصيل دپاره اوګورئ فتح البارى كتاب الأيمان والنذور باب إذا نذر أو حلف أن لا يكلم إنساناً فى الجاهلية ثم أسلم (٥٨٢\١١)_

**قوله** وَقَالَ بَعْضُهُمْ حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ: د ((بعضهم)) مصداق احمد بن عبده الضبی دې.او د حماد نه حماد بن زید مراد دې.دا تعلیق دې.امام بخاری دا حدیث د ابوالنعمان او محمد بن مقاتل په طریق سره د دې تخریج کړې دې.لکه څنګه چه وړاندې اوس دا خبره تیره شوه.چه د ا بوالنعمان په طریق کښې د نافع نه پس د ابن عمر رضی الله عنه ذکر نشته.دکوم نه چه انقطاع معلومیږی.د امام مقصد ددې تعلیق نه دا دې.چه د احمدبن عبده په طریق کښې د..نافع.نه پس د،ابن عمر،.ذکرشته.دا تعلیق اسماعیلی موصولاً نقل کړې دې.(١)

**قوله** وَرَوَاهُ جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ وَحَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [ر:١٩٢٧] یعنی د ایوب نه جریربن حازم.او حمادبن سلمه هم روایت نقل کړې دې.د کلام خلاصه دا شوه.چه د ایوب څلورشاګردان دی.
① معمر ② جریر ③ حمادبن سلمه ④ اوحماد بن زید.په دې کښې اولنی درې حضرات خو دا روایت موصولاً نقل کوی.اوڅلورم شاګرد حمادبن زید د احمدبن عبده الضبی نه خو موصولاً نقل کوی.خو ابوالنعمان بن د..ابن عمر،. واسطه نه ذکرکوی.امام تول طرق دلته جمع کړی دی.

[٣٠٦٤/٣٠٦٦] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ كَثِيرِ بْنِ أَفْلَحَ عَنْ أَبِي مُحَمَّدٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ حُنَيْنٍ فَلَمَّا الْتَقَيْنَا كَانَتْ لِلْمُسْلِمِينَ جَوْلَةٌ فَرَأَيْتُ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ قَدْ عَلَا رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَضَرَبْتُهُ مِنْ وَرَائِهِ عَلَى حَبْلِ عَاتِقِهِ بِالسَّيْفِ فَقَطَعْتُ الدِّرْعَ وَأَقْبَلَ عَلَيَّ فَضَمَّنِي ضَمَّةً وَجَدْتُ مِنْهَا رِيحَ الْمَوْتِ ثُمَّ أَدْرَكَهُ الْمَوْتُ فَأَرْسَلَنِي فَلَحِقْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَقُلْتُ مَا بَالُ النَّاسِ قَالَ أَمْرُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ ثُمَّ رَجَعُوا وَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ فَلَهُ سَلَبُهُ فَقُلْتُ مَنْ يَشْهَدُ لِي ثُمَّ جَلَسْتُ قَالَ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ فَقُمْتُ فَقُلْتُ مَنْ يَشْهَدُ لِي ثُمَّ جَلَسْتُ قَالَ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ فَقُمْتُ فَقَالَ مَا لَكَ يَا أَبَا قَتَادَةَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ رَجُلٌ صَدَقَ وَسَلَبُهُ عِنْدِي فَأَرْضِهِ مِنِّي فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ لَاهَا اللَّهِ إِذًا لَا يَعْمِدُ إِلَى أَسَدٍ مِنْ أُسْدِ اللَّهِ يُقَاتِلُ عَنِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُعْطِيكَ سَلَبَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ فَأَعْطِهِ فَأَعْطَانِيهِ فَابْتَعْتُ بِهِ مَخْرَفًا فِي بَنِي سَلِمَةَ فَإِنَّهُ لَأَوَّلُ مَالٍ تَأَثَّلْتُهُ فِي الْإِسْلَامِ

حضرت قتاده رضی الله عنه فرمائی.چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره حنین طرف ته اووتلو.کله چه زمونږ مقابله اوشوه.نو مسلمانانوته په اول کښې شکست اوشو.ما اوکتل چه کافر په مسلمان

---

١) عمدة القاری (٢٩٨/١٧)_

یعني ښې ښې راغلو نو ما د شا نه د هغه د څټ رګ په توره باندې اووهلو.او دهغه زغره مې ماته کړه.وس هغه زما طرف ته رامخ کړو.او ماته ئې دومره زور راکړو.چه ماته د مرګ بوئي محسوس شو بيا هغه مړ شو.او زه ئې پريخودم.ددې نه پس زه د حضرت عمر رضي الله عنه سره ملاؤ شوم.او د هغه نه ما تپوس اوکړو.چه دا په خلقو باندې څه اوشو؟يعني دا شکست څنګه اوشو؟ هغه اووئيل به دا د الله تعالى فيصله وه.ددې نه پس مسلمانان دوباره راغلل.

وفتح ئې حاصله کړه.د فتحې نه پس ، رسول الله ﷺ دا اعلان اوکړو.((من قتل قتيلاً فله سلبه)) يعني چې چه يو مشرك قتل کړې وي.اودهغه سره ګواه وي.نودهغه سلب (وسله او د بدن جامې وغيره) به هغه ته ملاويږي.رسول الله ﷺ څو ځله دا اعلان اوکړو. حضرت قتاده رضي الله عنه په دې اعلان باندې دوه درې ځله اودريدل.او وې وئيل.څوك به زما دپاره ګواهي ورکړي.رسول الله ﷺ اوفرمائيل.ابوقتاده! څه خبره ده؟ حضرت ابوقتاده رضي الله عنه ورته خبره وکړه.په دې کښې يو سړي پاسيدل.او رسول الله ﷺ ته ئې اووئيل.ابوقتاده رضي الله عنه ريښتيا وائي.دده د مقتول سلب ما سره دې.ته دې زما په حق کښې راضي کړه.(چه دا زما نه واپس نه اخلي) په دې باندې حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه اووئيل. ((لاها الله،إذا لا يعمد إلى أسد من أسد الله،يقاتل عن الله ورسوله ﷺ فيعطيك سلبه)) په الله قسم د الله په زمرو کښې يو زمرې چه د الله او دهغه د رسول ﷺ د طرفه جنګيږي..... رسول الله ﷺ به دا اراده اونکړي.چه دهغه سلب تاته درکړي.

نو رسول الله ﷺ د ابوبكر رضي الله عنه تصديق اوكړو.او سلب ئې حضرت ابوقتاده رضي الله عنه ته ورکړو.ابوقتاده رضي الله عنه فرمائي.چه ما په هغه سلب باندې په بنو سلمه قبيله کښې يو باغ واخستلو.د اسلام نه پس دا د ټولو نه اولنې مال وو.چه ما ذخيره کړو.

((لاها الله إذن)) کښې ،،ها،،کوم چه د تنبيه دپاره راځي.د حرف قسم ،،واو،، په معنى کښې دې.((لاها الله)) په معنى د ((لا والله)) کښې دې.((إذا)) په اکثرو رواياتو کښې هم داسې واقع شوې دې.خو خطابي وغيره فرمائيلي دی.چه دا صحيح نه دې.ځکه چه اهل عرب ((لاها الله ذا)) استعمالوي ،،ذا،، اسم اشاره ده. او په معنى ئې ده ((لا والله لا يكون ذا)) په الله قسم داسې به هرګز اونشي.

خوچونکه په اکثرو رواياتو کښې ((إذا)) دې.ددې وجې حافظ ابن حجر رحمه الله په خطابي رد کړې دې.او وئيلې ئې دی.چه((إذن)) هم صحيح دې.اوحضرت صديق رضي الله عنه د کلام مقصد دا دې.که واقعه ابوقتاده رضي الله عنه دغه کس قتل کړی دی.نو بيا خو رسول الله ﷺ د مقتول د سلب تاته د درکولو اراده اونکړي.([1])

---

[1] ) حافظ ابن حجر په ((ها الله إذا)) باندې ډير تفصيلي کلام کړې دې.اوګورئ فتح الباري (۸/۲۳و ٤٠) دغه شان عمدة القاري (۳۰۰/۱۷)_

بعضې حضراتو وئيلي دي.چه دا «إذا» زياتى دې.او«إذا»بعضې وخت په كلام كښې زياتى راځي.لكه څنګه چه د ،حماسه،، دشاعر په دې شعر كښې دې.

لوكنت من مازن لم تستبح ابلى بنو اللقيطة من ذهل بن شيبانا

إذا لام بنصر معشر خشن عند الحفيظة إن ذولوثة لانا

دلته په دويم شعر كښې «إذا» زياتى دې.(١)

«مخرف»خرف يخرف د نصر نه راځي.د ميوې راټولو په معنى .مخرف اسم ظرف دې.د ميوې راټولو ځائې،يعنى باغ.خراف هم د مخرف په معنى كښې راځي

[٤٠٦٧]وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ كَثِيرِ بْنِ أَفْلَحَ عَنْ أَبِي مُحَمَّدٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ أَنَّ أَبَا قَتَادَةَ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمَ حُنَيْنٍ نَظَرْتُ إِلَى رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ يُقَاتِلُ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَآخَرُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ يَخْتِلُهُ مِنْ وَرَائِهِ لِيَقْتُلَهُ فَأَسْرَعْتُ إِلَى الَّذِي يَخْتِلُهُ فَرَفَعَ يَدَهُ لِيَضْرِبَنِي وَأَضْرِبُ يَدَهُ فَقَطَعْتُهَا ثُمَّ أَخَذَنِي فَضَمَّنِي ضَمًّا شَدِيدًا حَتَّى تَخَوَّفْتُ ثُمَّ تَرَكَ فَتَحَلَّلَ وَدَفَعْتُهُ ثُمَّ قَتَلْتُهُ وَانْهَزَمَ الْمُسْلِمُونَ وَانْهَزَمْتُ مَعَهُمْ فَإِذَا بِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فِي النَّاسِ فَقُلْتُ لَهُ مَا شَأْنُ النَّاسِ قَالَ أَمْرُ اللَّهِ ثُمَّ تَرَاجَعَ النَّاسُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَقَامَ بَيِّنَةً عَلَى قَتِيلٍ قَتَلَهُ فَلَهُ سَلَبُهُ فَقُمْتُ لِأَلْتَمِسَ بَيِّنَةً عَلَى قَتِيلِي فَلَمْ أَرَ أَحَدًا يَشْهَدُ لِي فَجَلَسْتُ ثُمَّ بَدَا لِي فَذَكَرْتُ أَمْرَهُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ جُلَسَائِهِ سِلَاحُ هَذَا الْقَتِيلِ الَّذِي يَذْكُرُ عِنْدِي فَأَرْضِهِ مِنْهُ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ كَلَّا لَا يُعْطِهِ أُصَيْبِغَ مِنْ قُرَيْشٍ وَيَدَعَ أَسَدًا مِنْ أُسْدِ اللَّهِ يُقَاتِلُ عَنِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَدَّاهُ إِلَيَّ فَاشْتَرَيْتُ مِنْهُ خِرَافًا فَكَانَ أَوَّلَ مَالٍ تَأَثَّلْتُهُ فِي الْإِسْلَامِ

دا تعليق دې.امام بخارى په ابواب الاحكام كښې دا په اختصار سره موصولاً نقل كړې دې. اسماعيلى په تفصيل سره دا موصولاً تخريج كړې دې.(٢) په دې كښې هم د ابوقتادة رضي الله عنه ذكر شوې واقعه بيان شوې ده.

**قوله**: لايعطه أصيبغ من قريش....: د «اصيبغ» ترجمه شيخ الحديث صاحب په رنګيلا سره كړې ده.(٣) د ،،لا پرواه،، لفظ د تحقير دپاره استعماليږى.د داسې كس دپاره چه په

---

(١) كه زه د مازن قبيلې خنى ووم.نو د نيچ ښځې اولاد يعنى ذهل بن شيبان به زما اوښان مباح نه ګڼړل.په دغه وخت كښې به زما د مدد دپاره يو داسې قوم راپورته شوې وو.كوم چه د حميت په وخت كښې سختى دى.كه د نرم زړه خاوند به نرمى كوله(نو هم به ئې نرمى نشوه كولې بلكه په سختئ سره به پيش كيدو)

(٢) فتح البارى (٤١/٨)_

(٣) تعليقات لامع الدرارى (٣۶٧/٨)_

مهماتو كښې حصه نه اخلي.اود خلقو په نظر كښې حقير وى.د جملې مطلب دا دې. چه دا د رنګين مزاج سړې چرته داسې دې.چه د مقتول سلب دې ده ته وركړې شي.

بعضې حضراتو ونيلي دى.چه ((اصيبغ))د مرغو د يو خاص نوع نوم دې. چونكه د دغه نوع مرغۍ كمزورې او حقيرې وى.ددې وجې حضرت ابوبكرصديق رضی اللہ عنہ د دغه كس ضعف طرف ته اشاره اوكړه.اودا لفظ ئې اووئيل.([1])

ابن مالك وئيلي دى.چه دا ((أضيبغ))په ضاد سره د ((اضبع)) تصغير دې. اصبع هغه كس ته وائى.چه لاسونه ئې واړه وى.اضبع د كمزروى اوضعيف دپاره دكنايه په طور استعماليږى.([2])

## باب=غَزْوَةِ أَوْطَاسٍ

لكه څنګه چه وړاندې تير شو.چه د حنين نه د كافرو څه كسان اوتختيدل.او اوطاس ته لاړل. وريدبن صمه هم په دغه كسان كښې شامل وو.رسول الله ﷺ د حضرت ابوعامر اشعرى رضی اللہ عنہ په امارت كښې يوه ډله دهغوى د ختمولو دپاره اوليږله. اسلام بيرغ د حضرت ابوعامر رضی اللہ عنہ په لاس كښې وه.د وريد بن صمه خوئي يو غشي راويشتل.هغه د ابوعامر رضی اللہ عنہ په كونډئ كښې ښخ شو.اوابوعامر شهيد شو.حضرت ابوموسى اشعرى رضی اللہ عنہ بيرغ په خپل لاس كښې واخستلو.او حمله ئې اوكړه سلمه بن وريد ئې ختم كړو.حضرت ربيعه بن رفيع رضی اللہ عنہ په وريدبن الصمه باندې حمله اوكړه، هغه ئې قتل كړو.او مسلمانانو هلته فتح حاصله كړه.

[٤٠٦٨]حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا فَرَغَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ حُنَيْنٍ بَعَثَ أَبَا عَامِرٍ عَلَى جَيْشٍ إِلَى أَوْطَاسٍ فَلَقِيَ دُرَيْدَ بْنَ الصِّمَّةِ فَقُتِلَ دُرَيْدٌ وَهَزَمَ اللَّهُ أَصْحَابَهُ قَالَ أَبُو مُوسَى وَبَعَثَنِي مَعَ أَبِي عَامِرٍ فَرُمِيَ أَبُو عَامِرٍ فِي رُكْبَتِهِ رَمَاهُ جُشَمِيٌّ بِسَهْمٍ فَأَثْبَتَهُ فِي رُكْبَتِهِ فَانْتَهَيْتُ إِلَيْهِ فَقُلْتُ يَا عَمِّ مَنْ رَمَاكَ فَأَشَارَ إِلَى أَبِي مُوسَى فَقَالَ ذَاكَ قَاتِلِي الَّذِي رَمَانِي فَقَصَدْتُ لَهُ فَلَحِقْتُهُ فَلَمَّا رَآنِي وَلَّى فَاتَّبَعْتُهُ وَجَعَلْتُ أَقُولُ لَهُ أَلَا تَسْتَحْيِي أَلَا تَثْبُتُ فَكَفَّ فَاخْتَلَفْنَا ضَرْبَتَيْنِ بِالسَّيْفِ فَقَتَلْتُهُ ثُمَّ قُلْتُ لِأَبِي عَامِرٍ قَتَلَ اللَّهُ صَاحِبَكَ قَالَ فَانْزِعْ هَذَا السَّهْمَ فَنَزَعْتُهُ فَنَزَا مِنْهُ الْمَاءُ قَالَ يَا ابْنَ أَخِي أَقْرِئْ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّلَامَ وَقُلْ لَهُ اسْتَغْفِرْ لِي وَاسْتَخْلَفَنِي أَبُو عَامِرٍ عَلَى النَّاسِ فَمَكُثَ يَسِيرًا ثُمَّ مَاتَ فَرَجَعْتُ فَدَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِهِ عَلَى سَرِيرٍ مُرْمَلٍ وَعَلَيْهِ فِرَاشٌ قَدْ أَثَّرَ رِمَالُ السَّرِيرِ بِظَهْرِهِ وَجَنْبَيْهِ فَأَخْبَرْتُهُ بِخَبَرِنَا وَخَبَرِ أَبِي عَامِرٍ وَقَالَ قُلْ لَهُ اسْتَغْفِرْ لِي فَدَعَا بِمَاءٍ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ

---

[1] فتح البارى (٤١\٨٧) وعمدة القارى (٣٠١\١٧)_
[2] فتح البارى (٤١\٧) وعمدة القارى (٣٠١\١٧)_

فَقَالَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِعُبَيْدٍ أَبِي عَامِرٍ وَرَأَيْتُ بَيَاضَ إِبْطَيْهِ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَوْقَ كَثِيرٍ مِنْ خَلْقِكَ مِنَ النَّاسِ فَقُلْتُ وَلِي فَاسْتَغْفِرْ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قَيْسٍ ذَنْبَهُ وَأَدْخِلْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُدْخَلاً كَرِيمًا قَالَ أَبُو بُرْدَةَ إِحْدَاهُمَا لِأَبِي عَامِرٍ وَالْأُخْرَى لِأَبِي مُوسَى [ر:٢٤٢٨]

حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه فرمائی.کله چه رسول الله ﷺ د حنین نه فارغ شو. نو نبی ﷺ ابوعامر رضی الله عنه د یو لښکر سره اوطاس خوا طرف ته روان کړو.د وریدبن صمه سره جنګ اوشو.اوهغه قتل کړې شو.اوالله تعالی دهغه ملګرو ته شکست ورکړو .د ابوعامر په کونډئ کښې یو جشمی په غشی باندې اویشتلو،حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه فرمائی.زه ورغلم.او ما هغه ته اووئیل.((یاعم من رماك؟)) تره تا چا اوویشتې؟ هغوی په اشاره سره اووئیل.چه هغه دې زما قاتل،نو ما دهغه قصد اوکړو.او هغه مې رالاندې کړو.کله چه هغه زه اولیدم.نو هغه په تختیدلو شو.زه په هغه پسې شوم. او ورته مې اووئیل.تاته په تیښته باندې شرم نه درځی.ته اودریږې نه،نو هغه اودریدو.په یوبل باندې مونږ په توره ګذار اوکړو.او ما هغه قتل کړو.بیا زه ابوعامرته راغلم.اوهغه ته مې اووئیل.الله تعالی ستا قاتل قتل کړو.ابوعامر اووئیل.دا غشې زما د کونډئ نه راوباسه،ما غشې راوویسته.بیا هغه اووئیل. وراره نبی کریم ﷺ ته زما سلام کوه.اوزما دپاره ترې د مغفرت د دعا درخواست اوکړه.بیا ابوعامر رضی الله عنه زه خپل نائب جوړ کړم.او ترڅه وخته پورې د ژوندی پاتې کیدو نه پس هغوی شهادت بیا موندو.

واپس چه راغلو.نوزه درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم. نبی په ،،سریرمرمل،، باندې تشریف فرما وو.(سریرمرمل هغه کټ ته وائی.کوم چه د قجورو د رسو نه جوړ شوې وی) په دغه کټ باندې څه بستره نه وه.(دلته په روایت کښې،علیه فراش،، دی.خو په نورو ټولو روایاتو کښې،،ما علیه فراش،، دی.نو دلته د راوی نه ،،ما نافیه،، په سهو سره پاتې شوې ده.) (¹)د کټ پړو د نبی ﷺ په شاا‌و په دواړو اړخونو باندې چهاپونه جوړ کړی وو.ما خپل او د ابوعامر رضی الله عنه واقعات نبی ﷺ ته بیان کړل.اود هغوی دپاره د مغفرت د دعا درخواست مې نبی ﷺ ته راورسولو.نو رسول الله ﷺ اوبه راوغوښتې.او د اودس کولو نه پس ئې د دعا دپاره لاس پورته کړو.او وې فرمائیل.((اللهم اغفر لعبید ابی عامر.. اللهم اجعله یوم القیامة فوق کثیر من خلقك ومن الناس))ما عرض اوکړو. زما دپاره هم د مغفرت دپاره اوکړئ. نبی ﷺ اوفرمائیل.((اللهم اغفر لعبد الله بن قیس ذنبه وأدخله یوم القیامة مدخلاً کریماً)) عبدالله بن قیس د حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه نوم دې.

¹) عمدة القاري (١٧\٣٠٢)_

# باب=غزوة الطائف

## في شوال سنة ثمان قاله موسى بن عقبة

په حنین کښې چه ئې شکست اوخوړلو.نود هوازن او ثقیف ډیر کسان د مالك بن عوف په قیادت کښې طائف ته تلی وو.طائف ډیر محفوظ مقام وو.(١) د اوطاس شکست خوړلې فوځ هم دلته راغلې وو.هغوی د ښاردخلقو سره ملاؤ شوی وو.او د یو کال دخوراك سامان او د جنګ ضروری وسله ئې جمع کړې وه.او قلعه کښې ئې بنده کړې وه.او د قلعې په څلورو واړو طرفونو ئې غشې ویشتونکی مقرر کړی وو.(٢) نبی کریم ﷺ دحنین مال غنیمت او قیدیان په مقام جعرانه کښې د جمع کولو حکم کړې وو.او لښکر ئې واخستلو،په خپله د طائف د محاصرې دپاره لاړلو.اودهغوی محاصره ئې اوکړه.د قلعې په فصیل باندې چه کوم تیر ویشتونکی ناست وو.هغوی په اسلامی لښکر باندې د غشو سخت ویشتل اوکړل .ډیر مسلمانان زخمی او شهیدان شول.(٣) حضرت خالدبن ولید رضی الله عنه هغوی لاس په لاس جنګ کولو دپاره راوبلل.هغوی جواب ورکړو.چه مونږ ته د قلعې نه د راکوزیدو څه ضرورت نشته. مونږ سره د ټول کال غله موجود ده.کله چه دا ختمه شی.نو بیا به توری راخلو.او راکوزیږو به،(٤) اسلامی لښکر قلعه ماتونکی آلات دبابات (دهغه وخت توپه) اومنجنیق استعمال کړل.خو هغوی د اوسپنې غټ سیخونه په اور کښې سره کړی وو.د پورته نه ئې هغه راؤ ورول.د هغې د وجې مسلمانان وراندې نشو تلې.(٥) رسول الله ﷺ دهغوی د باغونو کټ کولو حکم اوکړو.کله چه صحابو رضی الله عنهم د هغوی باغونه کټ کول شروع کړل.نوهغه خلقو د الله اود خپلولئ واسطه ورکړه.او نبی ﷺ ته ئې درخواست اوکړو.چه باغونه مه کټ کوئ.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.زه د الله اود خپلولئ د وجې دا پریږدم.(٦)

دمحاصرې په دوران کښې یوه ورځ رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته اووئیل .ما یو خوب لیدلې دې.چه د پیو نه یوه ډکه پیالئ ماته راکړې شوه.خو یو چرګ راغلو.او په هغې کښې ئې مخوکه اووهله.په هغې سره هغه پئ توئې شو.حضرت ابوبکر رضی الله عنه ورته اووئیل.دا قلعه اوس نه فتح کیږی.بیا نبی ﷺ د نوفل بن معاویه دیلی سره په دې باره کښې مشوره

---

(١) وفی عمدة القاری (٣٠٢\١٧) الطائف وهو بلد كبير مشهور كثير الأعناب والنخيل عل ثلاث مراحل أو اثنتين من مكة من جهة المشرق وفى الروض الأنف (٣٠١\١٢) أن الدمون بن الصدف .. من حضرت موت أصاب دما من قومه فلحق بثقيف فأقام فيهم وقال لهم :ألا أبنى لكم حائطاً ببلدكم فبناه فسمى به الطائف)_

(٢) طبقات ابن سعد (١٥٨\١٢) والكامل لابن الأثير (١٨\١٢)_

(٣) طبقات ابن سعد (١٥٨\١٢) وسيرت ابن هشام مع الروض الأنف (٣٠٣\١٢)_

(٤) سيرت مصطفى (٦٣\١٣)_

(٥) سيرة ابن هشام مع الروض الأنف (٣٠٣\١٢)_

(٦) سيرة ابن هشام (٣٠٣\١٢)_

اوکړه.چه ستا څه رائې ده.؟ نوفل اووئيل. «يارسول الله ثعلب في جحر،إن أقمت عليه أخذته وإن تركته لم يضرك» يعنې لومړه په سوړه کښې ننوتې ده.که ته ورته ايسار شوې اوبه ئې نيسې.اوکه پريږدې ئې نو ستا څه نقصان نشته.(۱)

د دې نه پس نبي ﷺ د محاصرې ختمولو د اعلان حکم اوکړو.نو صحابو رضي الله عنهم اووئيل. دفتحې نه بغير به واپس خو؟ رسول الله ﷺ اووئيل ښه ده صبا ته هم اوجنګيږئ.په دويمه ورځ مسلمانان ډير په جذبې سره اوجنګيدل.او ډيرنقصان ورته ملاؤ شو.رسول الله ﷺ اوفرمائيل. اوس به انشاء الله صبا ته واپسې وی.نن چه ئې د رسول الله ﷺ نه د واپسئ اعلان واوريدل.نو صحابه کرام رضي الله عنهم خوشحاله شول. او چا دا اونه وئيل.چه دفتحې نه بغير به خو؟ چه د صحابو رضي الله عنهم په عزم کښې ئې تغير اوليدل.نو نبي ﷺ مسکې شو.او محاصره ئې ختمه کړه.(۲) بعضې صحابو رضي الله عنهم نبي ﷺ ته اووئيل.تاسو دوی ته خيرې اوکړئ.نبي ﷺ د خيرو په ځائې اووئيل.«اللهم اهد ثقيفا وائت بهم» اې الله ثقيف ته هدايت ا وکړې.اودوی ماته راولې.(۳)

په طائف کښې دولس صحابو رضي الله عنهم شهادت بيا موندې وو.(۴) روستو الله تعالى هغوی ته هدايت نصيب کړو.اوهغه خلق مسلمانان شو.مقام جعرانه کښې د نبي ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.د هغوی امير مالك بن عوف رضي الله عنه هم مسلمان شو.او په مقام جعرانه کښې د هغوی په درخواست باندې بيا رسول الله ﷺ شپږ زره قيديان آزاد کړل.دکوم تفصيل چه تيرشوې دې.

د طائف محاصره څو ورځې جاری وه؟په دې کښې دپنځلس،اوولس، اتلس او شلو ورځو مختلف روايات دی.(۵)

[۴۰۶۹] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ سَمِعَ سُفْيَانَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أُمِّهَا أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدِي مُخَنَّثٌ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ يَا عَبْدَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ إِنْ فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمُ الطَّائِفَ غَدًا فَعَلَيْكَ بِابْنَةِ غَيْلَانَ فَإِنَّهَا تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلَنَّ هَؤُلَاءِ عَلَيْكُنَّ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ وَقَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ الْمُخَنَّثُ هِيتٌ حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ بِهَذَا وَزَادَ وَهُوَ مُحَاصِرُ الطَّائِفِ يَوْمَئِذٍ [ر: ۴۹۳۷و۵۵۴۸]

**قوله**: <u>وعندي مخنث</u>: مخنث د نون په کسره سره افصح دې.او فتحه سره اشهر دې.مخنث هغه کس ته وائي.چه دهغه په اندامونو کښې د ښځو پشان نرموالې اولچك وی.دهغه په تګ

۱) البداية والنهاية (۳۵۰\۱۴)_

۲) لکه څنګه چه وړاندې د بخاری په روايت کښې راغلی.)_

۳) البداية والنهاية (۳۵۰\۱۴) والكامل لابن الأثير (۱۸\۱۲)_

۴) طبقات ابن سعد (۱۵۸\۲) والبداية والنهاية (۳۵۱\۱۴)_

۵) عمدة القاری (۳۰۵\۱۷)_

راتګ.او خبرو کښې د ښځو سره مشابهت وی.کله دا کیفیت فطری او غیر اختیاری وی.دا مذموم نه دې.اوکله دا د ناز او ادا په وجه په تکلف اوتصنع سره اختیارولې شی.دا مذموم او قابل نفرت دې.

**قوله**: فسمعته یقول لعبدالله بن ابی امیة:دا عبدالله د حضرت ام سلمه رضی الله عنها ورور وو.

**قوله**: فإنها تقبل بأربع وتدبر بثمان:په عربو کښې غټه ښځه خوښولې شوه.دې مخنث عبدالله بن امیه ته اووئیل.که صبا ته طائف فتح شی.نو ته دغیلان لور واخله.ځکه چه دهغې په خیټه کښې د ځړبوالی د وجې ځلور موړې دی.کله چه راځی.نوځلور موړې په نظر راځی. اوهغه ځلور موړې دواړو اړخونو ته هم رسیدلی دی.نوکله چه ځی.نو د شا نه اته موړې ښکاری.ځلور یو طرف ته او ځلور بل طرف ته،هم دا مطلب دې د «تقبل بأربع وتدبر بثمان» رسول الله ﷺ اوفرمائیل.آئنده دپاره دې دا مخنث تاسو ته بیخی راتلل نه کوی.ده ته په اول کښې ښځو ته د ورتلو اجازت ددې وجې ورکړې شوې وو.چه کیدې شی دا خلق جنسی معاملاتو باندې بیخی نه پوهیږی.خوکله چه دې مخنث دا جمله اووئیله.او ددې نه معلومه شوه.چه دوی په دې خبرو پوهیږی.نو نبی ﷺ ښځو ته د هغوی په ورتګ پابندی اولګوله. نودغه مخنث د مدینې منورې نه اوویستې شو.اودمدینې نه بهرپه ،،حمی،، نوم ځائې کښې به اوسیدل.دحضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کښې دې بوډا شوې وو. هغوی بیا ده ته د مدینې د راتلو اجازت ورکړو.چه صرف د جمعې په ورځ راځه.(۱)

ابن عیینه او ابن جریج ددې مخنث نوم ،،هیت،، بیان کړې دې.او بعضې خلقو وئیلی دی.چه دده نوم ،،ماتع،، وو.او ،،هیت،، د ده لقب وو.(۲)

[۴۰۷۰] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَبِي الْعَبَّاسِ الشَّاعِرِ الْأَعْمَى عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ لَمَّا حَاصَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الطَّائِفَ فَلَمْ يَنَلْ مِنْهُمْ شَيْئًا قَالَ إِنَّا قَافِلُونَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ فَثَقُلَ عَلَيْهِمْ وَقَالُوا نَذْهَبُ وَلَا نَفْتَحُهُ وَقَالَ مَرَّةً نَقْفُلُ فَقَالَ اغْدُوا عَلَى الْقِتَالِ فَغَدَوْا فَأَصَابَهُمْ جِرَاحٌ فَقَالَ إِنَّا قَافِلُونَ غَدًا إِنْ شَاءَ اللَّهُ فَأَعْجَبَهُمْ فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ سُفْيَانُ مَرَّةً فَتَبَسَّمَ قَالَ قَالَ الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الْخَبَرَ كُلَّهُ [ر:۵۷۳۶، ۷۰۳۲]

[۴۰۷۱/۴۰۷۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَاصِمٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا عُثْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدًا وَهُوَ أَوَّلُ مَنْ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَأَبَا بَكْرَةَ وَكَانَ تَسَوَّرَ حِصْنَ الطَّائِفِ فِي أُنَاسٍ فَجَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَا سَمِعْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ ادَّعَى إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ وَهُوَ يَعْلَمُ فَالْجَنَّةُ عَلَيْهِ حَرَامٌ

---

۱) عمدة القاری (۳۰۳\۱۷و ۳۰۴)_

۲) فتح الباری (۳۳٤\۹) کتاب النکاح باب ما ینهی من دخول المتشبهین بالنساء علی المرأة)_

[٤٠٧٢] وَقَالَ هِشَامٌ وَأَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ أَوْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدًا وَأَبَا بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَاصِمٌ قُلْتُ لَقَدْ شَهِدَ عِنْدَكَ رَجُلَانِ حَسْبُكَ بِهِمَا قَالَ أَجَلْ أَمَّا أَحَدُهُمَا فَأَوَّلُ مَنْ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَأَمَّا الْآخَرُ فَنَزَلَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَالِثَ ثَلَاثَةٍ وَعِشْرِينَ مِنَ الطَّائِفِ [ر: ٦٣٨٥]

**قوله**: وكان تسور حصن الطائف في أناس: رسول الله ﷺ چه کله د طائف محاصره کړې وه.نو په هغه وخت کښې ئې اعلان کړې وو.چه د طائف د قلعې نه کوم غلامان بهر مونږ ته راشي.هغوی به آزاد وی.چه دا اعلان ئې واوریدل.نو ډیرغلام د قلعې په دیوال باندې راواوریدل. مسلمانانو سره ملاؤ شو.په هغوی کښې یو ابوبکره رضی الله عنه وو.هغه ټول نبی ﷺ آزاد کړل

دقلعې نه چه کوم غلامان راغلی وو.د هغوی په تعداد کښې روایات مختلف دی.اکثر اهل سیرو د دولسو یا دیارلسو کسان ذکر کړې دې.(۱) په مغازی د موسی بن عقبه کښې صرف د حضرت ابوبکره رضی الله عنه ذکر دې.(۲) اود بخاری ددې روایت په آخر کښې صرف د دیرشتو کسانو ذکر دې.«فنزل إلى النبى ﷺ ثالث ثلاثة وعشرين من الطائف» یعنی حضرت ابوبکره رضی الله عنه دیرویشتم کس وو.چه نبی ﷺ ته د طائف نه راغلې وو.

حضرت ابوبکره رضی الله عنه په فضلاء صحابو رضی الله عنهم کښې وو.د دوی نوم ،،نفيع بن الحارث،، وو.(۳)اود دوی د مور نوم ،،سمیه،، وو.زیادبن ابی سفیان هم ددې ،،سمیه،، خوئې وو. بکره پوړئ ته وائي.حضرت ابوبکره رضی الله عنه د طائف د قلعې نه د پوړئ په ذریعه د دیوال نه راکوز شوې وو.ددې وجې د دوی کنیت ابوبکره کیخودې شو.(۴) د دوی وفات په بصره کښې په کال ۵۱ه کښې شوې دې.(۵)

که د کافرانو د لښکر نه غلامان اوتختی.اود مسلمانانو په لښکرکښې شامل شی.او اسلام قبول کړی.نو د احنافو د مسلك مطابق به هغوی آزاد وی.(۶) د رسول الله ﷺ په خدمت کښې چه څومره غلامان راغلی وو.نبی ﷺ هغوی آزاد کړی وو. روسته چه کله په مقام جعرانه کښې دهغوی مالکانو اسلام قبول کړلو.او د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.نو هغوی اووئیل.زمونږ دا غلام دې مونږ ته واپس کړې شی.نبی ﷺ اوفرمائیل. دوی آزاد دی.دوی نشو واپس کولې.هغوی اووئیل. یارسول الله دوی ستاسو طرف ته ددې وجې نه وو

---

(۱) سیرة مصطفى (۶۳\۳)_
(۲) عمدة القارى (۳۰۶\۱۷)_
(۳) فتح البارى (۴۵\۸) علامه سهیلی ددوی د والدنوم ،،مسروح،، لیکلې دې.(الروض الأنف :۳۰۴\۱۲)
(۴) الروض الأنف (۱۰۵\۲)_
(۵) عمدة القارى (۳۰۵\۱۷)_
(۶) فیض البارى (۱۱۵\۴)_

راغلى.چه ګنى د دوى په اسلام كښې رغبت وو.دوى خو د غلامئ او رقيت نه د تيختې په وجه راغلى وو.خو رسول الله ﷺ د هغوى دا خبره اونه منله.اوهغه غلامان ئې مسلمانان او احرار اوګرځول.(١)

[٤٠٧٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ نَازِلٌ بِالْجِعْرَانَةِ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ وَمَعَهُ بِلَالٌ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ أَلَا تُنْجِزُ لِي مَا وَعَدْتَنِي فَقَالَ لَهُ أَبْشِرْ فَقَالَ قَدْ أَكْثَرْتَ عَلَيَّ مِنْ أَبْشِرْ فَأَقْبَلَ عَلَى أَبِي مُوسَى وَبِلَالٍ كَهَيْئَةِ الْغَضْبَانِ فَقَالَ رَدَّ الْبُشْرَى فَاقْبَلَا أَنْتُمَا قَالَا قَبِلْنَا ثُمَّ دَعَا بِقَدَحٍ فِيهِ مَاءٌ فَغَسَلَ يَدَيْهِ وَوَجْهَهُ فِيهِ وَمَجَّ فِيهِ ثُمَّ قَالَ اشْرَبَا مِنْهُ وَأَفْرِغَا عَلَى وُجُوهِكُمَا وَنُحُورِكُمَا وَأَبْشِرَا فَأَخَذَا الْقَدَحَ فَفَعَلَا فَنَادَتْ أُمُّ سَلَمَةَ مِنْ وَرَاءِ السِّتْرِ أَنْ أَفْضِلَا لِأُمِّكُمَا فَأَفْضَلَا لَهَا مِنْهُ طَائِفَةً [ر: ١٩٣]

**قوله: كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ نَازِلٌ بِالْجِعْرَانَةِ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ:** «جعرانة» بكسر الجيم والعين المهملة وتشديد الراء وقد تسكن العين» د طائف او مكې په مينځ كښې ديوځائې نوم دې.باجى وئيلى دى.چه جعرانه دمكې نه د اتلس ميلو په فاصله واقع دې.دلته په روايت كښې دى «بين مكة والمدينة» داودى ددې انكاركړې دې.او وئيلى ئې دى، چه «جعرنة بين مكة والمدينة» نه ده.بلكه «بين مكة والطائف» ده.امام نووى رحمه الله هم په دې باندې جزم كړې دې.(٢).

حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه فرمائى.چه رسول الله ﷺ ته په مقام جعرانه كښې يواعرابى راغلو.او وې وئيل.ته خپله وعده نه پوره كوې.رسول الله ﷺ اوفرمائيل «أبشر» زيرې قبول كړه.مطلب دا وو.چه ته تسلى ساته، زه به ضرور خپله وعده پوره كوم.اعرابى اووئيل. ډيركرته تا «أبشر أبشر» وئيلى دى.(يعنى مال دكوم چه وعده ده.هغه وركوې نه.او زيرې وركوې) نبى كريم ﷺ حضرت ابوموسى او حضرت بلال رضي الله عنهما طرف ته متوجه شو.لكه چه نبى ﷺ خفه شو.او وې وئيل.چه دې اعرابى «بشرى» رد كړه.تاسو دواړه دا قبول كړئ.هغه دواړو اووئيل. زمونږ قبول ده.بيا نبى ﷺ د اوبو يوه پيالئ راوغوښتله.خپل لاس او مخ مبارك ئې په هغې كښې اووينځل.اوپه هغې كښې ئې د خولې اوبه ورتوئې كړې.اوپس ئې اووئيل،دا اوبه اوڅكئ.اوپه خپلو مخونو او سينو باندې هم ددې نه واچوئ.او زيرې قبول كړئ.دې دواړو حضراتو هغه پيالئ واخستله.اود نبى ﷺ دحكم مطابق ئې عمل اوكړو.د پردې نه اخوا طرف ته حضرت ام سلمې رضي الله عنها آواز وركړو.دخپلې مور دپاره په كښې هم څه

١) البداية والنهاية (٤\٣٤٨) وفيض البارى (٤\١١٦)_
٢) فتح البارى (٨\٤٦)_

پريږدي.نو هغوى د ام سلمې ﷺ دپاره هم څه حصه پريخوده.
ددغه اعرابى د نوم په باره کښې حافظ ليکلى دى.چه «لم أقف على إسمه» (1) هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو.«ألا تنجز لي ما وعدتني» ته ما سره خپله وعده نه پوره کوې.کيدې شى.چه رسول الله ﷺ خپله دا وعده په مخصوص اندازه کښې دغه اعرابى سره کړې وه.اودا هم ممکن ده.چه ددې نه عام وعده مراد وى. رسول الله ﷺ په جعرانه کښې د حنين د غنيمتونو جمع کولو حکم کړې وو.او فرمانيلى ئې وو.چه د طائف نه د فراغت نه پس به ددې تقسيم کيږى.(2) چه کوم صورت هم وو.اعرابى په غوښتلو کښې د عجلت نه کار واخستلو.اود رسول الله ﷺ زيرئې ئې رد کړلو.نبى ﷺ هغه بشارت حضرت ابوموسى اشعرى او حضرت بلال ته ورکړو.اوهغوى قبول کړو.
دلته دا سوال کيږى.چه بشارت خو ذ اجسامو او جواهرو خنى نه دې.چه يو بل ته ورکولې شى.انتقال من صاحب الى صاحب يا انتقال من مکان الى مکان دا د جواهرو او اجسامو خصوصيت دې.
خوحضرت انورشاه کشميرى رحمه الله جواب کړې دې.چه دا د فلاسفو نظريه ده.چه انتقال من مکان الى مکان صرف د جواهرو اواجسامو خاصيت دې.اود فلسفيانو دا نظريه غلطه ده.دا انتقال لکه څنګه چه په جواهرو او اجسامو کښې کيږى.دغه شان په اعراضو کښې هم کيږى.(3) والله اعلم.

[۴۰۷۳] حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ يَعْلَى كَانَ يَقُولُ لَيْتَنِي أَرَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ يُنْزَلُ عَلَيْهِ قَالَ فَبَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْجِعْرَانَةِ وَعَلَيْهِ ثَوْبٌ قَدْ أُظِلَّ بِهِ مَعَهُ فِيهِ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِهِ إِذْ جَاءَهُ أَعْرَابِيٌّ عَلَيْهِ جُبَّةٌ مُتَضَمِّخٌ بِطِيبٍ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ تَرَى فِي رَجُلٍ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ فِي جُبَّةٍ بَعْدَمَا تَضَمَّخَ بِالطِّيبِ فَأَشَارَ عُمَرُ إِلَى يَعْلَى بِيَدِهِ أَنْ تَعَالَ فَجَاءَ يَعْلَى فَأَدْخَلَ رَأْسَهُ فَإِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْمَرُّ الْوَجْهِ يَغِطُّ كَذَلِكَ سَاعَةً ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ فَقَالَ أَيْنَ الَّذِي يَسْأَلُنِي عَنِ الْعُمْرَةِ آنِفًا فَالْتُمِسَ الرَّجُلُ فَأُتِيَ بِهِ فَقَالَ أَمَّا الطِّيبُ الَّذِي بِكَ فَاغْسِلْهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ وَأَمَّا الْجُبَّةُ فَانْزِعْهَا ثُمَّ اصْنَعْ فِي عُمْرَتِكَ كَمَا تَصْنَعُ فِي حَجِّكَ [ر: ۱۴۶۳]

دحضرت يعلى بن اميه رضي الله عنه دا خواهش وو.چه رسول الله ﷺ په هغه وخت کښې اووينى.کله چه په دوى باندې وحى نازليږى.دوى فرمائى چه رسول الله ﷺ په جعرانه کښې تشريف

1) فتح البارى (۸/۴۶)_
2) فتح البارى (۸/۴۶)_
3) فيض البارى (۴/۱۱۶)_

فرما وو.((وعليه ثوب قد أظل به ،معه فيه ناس من أصحابه)) يعنى په نبى ﷺ باندې په يوه كپړه سيورې كړې شوې وو.اوځه صحابه﷢ هم د نبى ﷺ سره وو.په ،،فيه،، كښې ضمير ،،ثوب،، طرف ته راجع كيدې شى.يعنى يعنى د كپړې په دغه سيورى كښې ځه صحابه﷢ هم د نبى ﷺ سره وو.اودا ضمير محل طرف ته هم راجع كيدې شى.يعنى په دغه محل كښې نبى ﷺ سره ځه صحابه وو.په دې كښې يو اعرابى (١)د نبى ﷺ په خدمت كښې حاضر شو.((اوعليه جبة متضمخ بطيب)) په هغه باندې يوه جبه وه.چه په خوشبوئې كښې ليت پيت وه.هغه د نبى ﷺ نه تپوس اوكړو.يارسول الله د داسې كس په باره كښې ستاسو ځه رائې ده.چه هغه خپله چغه په خوشبوى كښې ليت پيت كړې وى.او بيا ئې د عمرې دپاره احرام اوتړى ؟ د تپوس مطلب دا وو،چه په داسې چغه كښې احرام تړل صحيح دى كه نه؟ په رسول الله ﷺ باندې د دې تپوس په جواب كښې د وحى د نازليدو سلسله شروع شوه.اوچونكه دحضرت يعلى﷜ دا خواهش وو.چه د نزول وحى په وخت كښې نبى ﷺاووينى.نوځكه حضرت عمر﷜ حضرت يعلى﷜دلاس په اشاره باندې راوغوښتلو .حضرت يعلى﷜ راغلو.اوخپل سر ئې د نبى ﷺ د ليدو دپاره په دغه سپركښې وردننه كړو.ځه ګورى چه د رسول الله ﷺ مخ مبارك سور كيږى.او په زوره زوره ئې د ساه آواز راځى.ځه وخت چه كله دا كيفيت ختم شو.نو نبى ﷺ اوفرمائيل.هغه كس كوم ځائې دې.چا چه زما نه دعمرې په باره كښې اوس زما نه تپوس كولو.لټون ئې اوكړې شو.اوهغه راوستې شو.نو نبى ﷺ اوفرمائيل.كومه خوشبوئى چه تا لګولې ده.هغه درې ځله اووينځه.اودا چغه اوباسه.اوبيا په خپله عمره كښې هم هغه اعمال كوه.كوم چه په حج كښې كوې.

**په روايت باب باندې يو اشكال اودهغې نه جوابونه:** خوپه دې رواياتو باندې اشكال كيږى.چه د حضرت عائشې صديقې ﷝ په روايت كښې دى،چه په حجة الوداع كښې د احرام نه وړاندې دې نبى ﷺ ته خوشبوئې لګولې وه.اوپه روايت باب كښې دى.چه ته خوشبوې اووينځه.

① ددې اشكال يو جواب حافظ ابن حجر﷫ دا وركړې دې.چه دحضرت عائشې روايت د ١٠ﻫ دې.اودا واقعه د٨ﻫ دهغې نه وړاندې ده.ددې وجې دحضرت عائشې روايت ددې روايت باب دپاره ناسخ دې.اودا منسوخ دې.(٢)

② اوبعضو دا جواب وركړې دې.چه هغه خوشبوچه د كومې عين او جوثه د احرام نه پس باقى پاتې كيږى.لكه زعفران.د هغې خو ممانعت دې.اوپه روايت باب كښې كوم ممانعت دې.دا هم د دغه شان خوشبو په باره كښې دې.خوكه د يوې خوشبوعين او جوثه باقى نه پاتې كيږى.صرف دهغې اثر پاتې كيږى.نو د احرام نه وړاندې د داسې خوشبو استعمال جائز

---

(١) حافظ ابن حجر﷫ فرمائى.ددې اعرابى نوم ماته معلوم نشو،بيا ئې فرمائيلى دى،چه ابن فتحون د ،،تفسير طرطوشى،، لاندې دده نوم عطاء بن منبه ليكلې دې.والله اعلم (فتح البارى (٣٩٤\٣) كتاب الحج باب غسل الخلوق ثلاث مرات)_

(٢) فتح البارى (٣٩٥\٣) كتاب الحج باب غسل الخلوق ثلاث مرات)_

دي.اود احرام نه پس ددې وينځل ضروري نه دی.دحضرت عائشې رضي الله عنها په روايت کښې چه د نبي ﷺ د کومې خوشبو د احرام نه وړاندې د لګولو ذکر دې.نودهغې نه دا قسم خوشبو مراد ده.نوځکه په دواړو رواياتو کښې څه تعارض نشته.ځکه چه د دواړو محمل جداجدا دې.[1]

[٤٠٧٥] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ قَالَ لَمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ قَسَمَ فِي النَّاسِ فِي الْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَلَمْ يُعْطِ الْأَنْصَارَ شَيْئًا فَكَأَنَّهُمْ وَجَدُوا إِذْ لَمْ يُصِبْهُمْ مَا أَصَابَ النَّاسَ فَخَطَبَهُمْ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ أَلَمْ أَجِدْكُمْ ضُلَّالًا فَهَدَاكُمْ اللَّهُ بِي وَكُنْتُمْ مُتَفَرِّقِينَ فَأَلَّفَكُمْ اللَّهُ بِي وَعَالَةً فَأَغْنَاكُمْ اللَّهُ بِي كُلَّمَا قَالَ شَيْئًا قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمَنُّ قَالَ مَا يَمْنَعُكُمْ أَنْ تُجِيبُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلَّمَا قَالَ شَيْئًا قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمَنُّ قَالَ لَوْ شِئْتُمْ قُلْتُمْ جِئْتَنَا كَذَا وَكَذَا أَتَرْضَوْنَ أَنْ يَذْهَبَ النَّاسُ بِالشَّاةِ وَالْبَعِيرِ وَتَذْهَبُونَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى رِحَالِكُمْ لَوْلَا الْهِجْرَةُ لَكُنْتُ امْرَأً مِنْ الْأَنْصَارِ وَلَوْ سَلَكَ النَّاسُ وَادِيًا وَشِعْبًا لَسَلَكْتُ وَادِيَ الْأَنْصَارِ وَشِعْبَهَا الْأَنْصَارُ شِعَارٌ وَالنَّاسُ دِثَارٌ إِنَّكُمْ سَتَلْقَوْنَ بَعْدِي أُثْرَةً فَاصْبِرُوا حَتَّى تَلْقَوْنِي عَلَى الْحَوْضِ [ر:٢٨١٨]

[٤٠٧٦/٤٠٧٩] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ نَاسٌ مِنْ الْأَنْصَارِ حِينَ أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَفَاءَ مِنْ أَمْوَالِ هَوَازِنَ فَطَفِقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي رِجَالًا الْمِائَةَ مِنْ الْإِبِلِ فَقَالُوا يَغْفِرُ اللَّهُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي قُرَيْشًا وَيَتْرُكُنَا وَسُيُوفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ قَالَ أَنَسٌ فَحُدِّثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَقَالَتِهِمْ فَأَرْسَلَ إِلَى الْأَنْصَارِ فَجَمَعَهُمْ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ وَلَمْ يَدْعُ مَعَهُمْ غَيْرَهُمْ فَلَمَّا اجْتَمَعُوا قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا حَدِيثٌ بَلَغَنِي عَنْكُمْ فَقَالَ فُقَهَاءُ الْأَنْصَارِ أَمَّا رُؤَسَاؤُنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ فَلَمْ يَقُولُوا شَيْئًا وَأَمَّا نَاسٌ مِنَّا حَدِيثَةٌ أَسْنَانُهُمْ فَقَالُوا يَغْفِرُ اللَّهُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي قُرَيْشًا وَيَتْرُكُنَا وَسُيُوفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنِّي أُعْطِي رِجَالًا حَدِيثِي عَهْدٍ بِكُفْرٍ أَتَأَلَّفُهُمْ أَمَا تَرْضَوْنَ أَنْ يَذْهَبَ النَّاسُ بِالْأَمْوَالِ وَتَذْهَبُونَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى رِحَالِكُمْ فَوَاللَّهِ لَمَا تَنْقَلِبُونَ بِهِ خَيْرٌ مِمَّا يَنْقَلِبُونَ بِهِ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ رَضِينَا فَقَالَ لَهُمْ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَتَجِدُونَ أُثْرَةً شَدِيدَةً فَاصْبِرُوا حَتَّى تَلْقَوْا اللَّهَ وَرَسُولَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنِّي عَلَى الْحَوْضِ قَالَ أَنَسٌ فَلَمْ يَصْبِرُوا

[1]) فتح الباری (٣٩٥\٣) کتاب الحج باب غسل الخلوق ثلاث مرات)_

[٤٠٧٧] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ فَتْحِ مَكَّةَ قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَنَائِمَ بَيْنَ قُرَيْشٍ فَغَضِبَتِ الْأَنْصَارُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا تَرْضَوْنَ أَنْ يَذْهَبَ النَّاسُ بِالدُّنْيَا وَتَذْهَبُونَ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا بَلَى قَالَ لَوْ سَلَكَ النَّاسُ وَادِيًا أَوْ شِعْبًا لَسَلَكْتُ وَادِيَ الْأَنْصَارِ أَوْ شِعْبَهُمْ

[٤٠٧٨] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا أَزْهَرُ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ أَنْبَأَنَا هِشَامُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ حُنَيْنٍ الْتَقَى هَوَازِنُ وَمَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةُ آلَافٍ وَالطُّلَقَاءُ فَأَدْبَرُوا قَالَ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ قَالُوا لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ لَبَّيْكَ نَحْنُ بَيْنَ يَدَيْكَ فَنَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَنَا عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ فَانْهَزَمَ الْمُشْرِكُونَ فَأَعْطَى الطُّلَقَاءَ وَالْمُهَاجِرِينَ وَلَمْ يُعْطِ الْأَنْصَارَ شَيْئًا فَقَالُوا فَدَعَاهُمْ فَأَدْخَلَهُمْ فِي قُبَّةٍ فَقَالَ أَمَا تَرْضَوْنَ أَنْ يَذْهَبَ النَّاسُ بِالشَّاةِ وَالْبَعِيرِ وَتَذْهَبُونَ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ سَلَكَ النَّاسُ وَادِيًا وَسَلَكَتِ الْأَنْصَارُ شِعْبًا لَاخْتَرْتُ شِعْبَ الْأَنْصَارِ

[٤٠٧٩] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ جَمَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاسًا مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ إِنَّ قُرَيْشًا حَدِيثُ عَهْدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ وَمُصِيبَةٍ وَإِنِّي أَرَدْتُ أَنْ أَجْبُرَهُمْ وَأَتَأَلَّفَهُمْ أَمَا تَرْضَوْنَ أَنْ يَرْجِعَ النَّاسُ بِالدُّنْيَا وَتَرْجِعُونَ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى بُيُوتِكُمْ قَالُوا بَلَى قَالَ لَوْ سَلَكَ النَّاسُ وَادِيًا وَسَلَكَتِ الْأَنْصَارُ شِعْبًا لَسَلَكْتُ وَادِيَ الْأَنْصَارِ أَوْ شِعْبَ الْأَنْصَارِ

**قوله**: حدثنا موسى بن اسماعيل...... لما افاء الله على رسوله ﷺ يوم حنين قسم في الناس في المؤلفة قلوبهم ولم يعط الانصار شيئاً: رسول الله ﷺ چه كله د طائف نه راواپس شو.نو جعرانه ته ئې تشريف راوړه.حافظ رحمه الله ليكلى دى.چه دا د پنځم ذى قعدې تاريخ وو.(١) نبى عليه السلام دلته راغې.د حنين غنيمتو نه ئې تقسيم كړل.نبى ﷺ دا مالونه په مؤلفة القلوب كښې تقسيم كړل.او انصارو ته ئې هيڅ ورنكړل.ددې نه پس د حضرت انس رضي الله عنه روايت دې.په هغې كښې دى.چه نبى عليه السلام يوېو سړى ته سل سل اوښان وركړل.

**قوله**: مؤلفة القلوب: دمؤلفة القلوب نه دلته هغه معزز قريش او د قبائلو سرداران مراد دى.چه هغوى اسلام خو راوړلې وو.خو اوس هم كمزورى ايمان والاوو.نبى عليه السلام هغوى ته لوئې لوئې حصې وركړې.چه اسلام سره دهغوى په محبت كښې اضافه اوشى.او ايمان دهغوى په زړونو كښې مضبوط شى.دغه شان په مؤلفة القلوب كښې بعضې هغه خلق هم

١) فتح البارى:٤٨/٨)_

داخل وو.چه هغوی تر اوسه پورې اسلام نه وو راوړلې.خو دهغوی په باره کښې ذا امید وو.چه که هغوی ته مال ورکړې شی.نواسلام به راوړی.(١) لکه چه صفوان بن امیه وو.هغه تردغه وخته پورې اسلام نه وو قبول کړې.هغه پخپله ډیر فیاض او سخی وو.رسول الله ﷺ چه کله هغه ته د مال غنیمت نه ډیره حصه ورکړله.نوهغه اووئیل.چه داسې سخاوت او فیاضی صرف نبی کولې شی.نوهغه ددې سخاوت نه متاثره شو.او اسلام ئې راوړو.(٢)

ابوالفضل بن طاهر په ,,المبهمات،، کښې (٣)ابن اسحاق پخپلن ,,سیرت،، کښې (٤)اوحافظ په ,,فتح الباری،، کښې (٥) دهغه مؤلفة القلوب نومونه لیکلی دی.چه په هغوی کښې ابوسُفیان بن حرب، سهیل بن عمرو، حویطب بن عبدالعزی، حکیم بن حزام، ابوالسنابل بن بعکك، صفوان بن امیه، عیینه بن حصین، اقرع بن حابس او مالك بن عوف وغیره حضرات شامل وو.دهغوی ټول شمیر د څلویښتو نه زیات وو.(٦)

مؤلفة القلوب ته چه نبی علیه السلام کوم مال ورکړو.آیا دغه مال ئې دټول مال غنیمت نه ورکړې وو.اوکه د خمس نه ئې ورکړې وو.په دې کښې د عالمانو مختلفې رائې دی.علامه قرطبی رحمه الله فرمائیلی دی.چه د شریعت د اصولو تقاضه داده.چه دغه مال نبی علیه السلام د خمس نه ورکړې وو.(٧) امام شافعی او امام مالك رحمهما الله فرمائی.چه د خمس الخمس نه نبی علیه السلام دغه مال ورکړې وو.(٨) او د حافظ ابن القیم رائې دا ده.چه نبی کریم ﷺ د پوره غنیمت نه دغه حصه ورکړې وه.(٩)او نبی کریم ﷺ ته د غنیمت په مالونوکښې دداسې قسمه تصرفاتو اختیار وو.په قرآن شریف کښې دی. ﴿قُلِ الْأَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ﴾ (١٠) انصارو ته نبی ﷺ هیڅ ورنکړل.چه ددې په وجه بعضو انصارو خفګان ښکاره کړو.لکه چه په روستو روایت کښې دی.

**قوله: فکأنهم وجدوا اذا لم یصبهم ما اصاب الناس اوکأنهم وجدوا اذا لم یصبهم ما اصاب الناس**:د بخاری په اکثرونسخو کښې دا جمله مکررنه ده.البته د ابوذر په نسخه کښې دا جمله ,,او،، حرف شك سره مکرر واقع شوې ده.(١١) ددې تکرار څه فائده ده؟

---

(١) فتح الباری:(٤٨/٨)_
(٢) اوګورئ: الاصابة فی تمییزالصحابة:(١٨٧/٢) رقم(٤٠٧٣)_
(٣) فتح الباری(٤٨/٨)_
(٤) سیرت ابن هشام(٣٠٤/٢)_
(٥) فتح الباری(٤٨/٨)_
(٦) فتح الباری(٤٨/٨)_
(٧) فتح الباری(٤٨/٨)_
(٨) زاد المعاد(٤٨٤/٣)_
(٩) زادالمعاد(٤٨٤/٣)_
(١٠) سورة الانفال(١)_
(١١) فتح الباری(٤٩/٨)_

نو په دې سلسله کښې حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائيلی دی چه ړومبۍ جمله ،،فکأنهم،، فا سره او دويمه جمله ،،کأنهم،، بغير د فا نه ده.راوی ته په دې کښې شك دې چه ،،فا،، شته اوكه نه.په دې وجه هغه دا جمله مکرر اووئيله.او دغه فرق طرف ته ئې اشاره اوکړله.او بعضې راويان د داسې قسمه معمولی او باريك رعايتونو لحاظ هم ساتی.(۱)

علامه کرمانی رحمه الله فرمائيلی دی چه ړومبۍ جمله کښې ،،وجدوا،، د ،،غضبوا،، په معنی کښې دې.او په دويمه جمله کښې ،،وجدوا،، د ،،حزنوا،، په معنی کښې دې.(۲) د وجد مصدر چه کله ،،مَوجِدة،، راشی.نو ددې معنی غضب راځی.اوکله ئې چه مصدر،،وَجداً،،راشی.نو ددې معنی،،حزن،، راځی.مطلب دادې چه په دې تقسيم سره انصارو ته غصه راغله.اوهغوی خفه شو.

د بعضې انصارو صحابو رضی الله عنهم د ژبې نه دا کلمات هم اووتل.لکه چه په راروان باب کښې دحضرت انس رضی الله عنه په روايت کښې راغلی دی.((فقالوا: يغفر الله لرسوله يعطي قريشاً، ويتركنا، وسيوفنا تقطر من دمائهم)) او د حضرت انس رضی الله عنه په دويم روايت کښې دی. ((اذا كانت شديدة، فنحن ندعى ويعطى الغنيمة غيرنا))

**قوله: فخطبهم:** رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د انصارو د خفګان اطلاع چا اورسوله.او دهغوی د طرفه وئيلې شوې مذکوره جملې هم نبی علیه السلام ته اورسيدلې.نو نبی علیه السلام ټول انصار په يوه قبه کښې راجمع کړل.او دهغوی نه ئې تپوس اوکړو.چه ((ماحديث بلغني عنكم؟))ستاسو د طرفه چه ماته کومه خبره رارسيدلې ده.دهغه څه حقيقت دې؟ نو فقهاء انصارو اووئيل.چه زمونږ مشرانو هيڅ نه دی وئيلی.البته کوم زلمی ځوانان چه دی.هغوی دا جمله وئيلې ده.بيا نبی علیه السلام خطبه اووئيله.((يا معشر الانصار! الم اجدكم ضلالاً فهداكم الله بي، وكنتم متفرقين فالفكم الله بي، وعالة فاغناكم الله بي)) رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به کومه جمله هم فرمائيله.انصارو به وئيل.((الله و رسوله امن)) د الله او دهغه د رسول احسان د ټولو نه زيات دې.بيا نبی علیه السلام اوفرمائيل.((لو شئتم قلتم : جئتنا كذا وكذا))، که تاسو غواړئ نو وئيلې شئ.چه نبی علیه السلام مونږ ته راغلې وو.په داسې داسې حالت کښې..په دې روايت کښې تصريح نشته.د ابوسعيد په روايت کښې دی.((لوشئتم لقلتم اتيتنا مكذباً، فصدقناك و مخذولاً فنصرناك، وطريداً فآويناك، وعائلاً فواسيناك))(۳) يعنی که ته غواړې.نو دا وئيلې شې.چه (اې محمد صلی الله علیه وسلم) ته مونږ ته راغلې وې په داسې حالت کښې، چه

---

۱) اوګورئ: لامع الدراری(۳۲۹۱۸- ۳۷۰)_
۲) شرح الکرمانی(۱۵۹۱۱۶)_
۳) فتح الباری (۵۱۱۸)_

ستا تکذیب شوې وو.مونږ ستا تصدیق اوکړو.تاسو بې یار اومددګار وئ.مونږ ستاسو مدد اوکړو.تاسو پریخودلی شوی وئی.مونږتاسو ته پناه درکړله.تاسو فقیرراغلی وئی.مونږ تاسو سره همدردی اوکړله .په دې ونیلو سره نبی علیه السلام اوفرمائیل.چه ، ،تاسو دا جواب راکوئ.او زه به وائم.چه تاسو رښتیا وایئ.خو اې انصارو! آیا ستاسو دا خوښه نه ده.چه خلق اوښان او چیلۍ یوسی.او لاړشی.او تاسو محمد (ﷺ) خان سره بوځئ.او خپل کور ته لاړشئ.

**قوله**: لولا الهجرة لكنت امرأ من الانصار: (۱) که هجرت شرعی مقدر نه وې.نو ما به انصاری کیدل خوښ کړې وې.یاکه د هجرت هغه فضیلت کوم چه اسلام بیان کړې دې.نه وې.نو ما به انصاری کیدو ته ترجیح ورکړې وه.

**قوله**: لوسلك الناس وادياً وشعباً لسلكت وادي الانصار وشعبها: ، ،که خلق په یو کندو او وادئ کښې روان شی.نو زه به د انصارو په وادئ او کندو کښې ځم، ،

په دې سره اشاره دې خبرې طرف ته ده.چه د انصارو مسلك د تفویض او سلیم کیدې. داطاعت او فرمانبردارئ دې.او زه هم دخپل ځان دپاره اطاعت او تفویض او تسلیم غوره او خوښ ګنړم.

**قوله**: الانصار شعار، والناس دثار: شعار هغه لباس ته وائی.کوم چه بدن سره یوځائې وی.لکه بنین وغیره،او ، ،دثار، ، هغه کپړې ته وائی.کوم چه پورته وی.لکه قمیص او څادر وغیره. (۲)

رسول الله ﷺ انصارو ته شعار اووئیل.ددې نه دا ښائی.چه د انصارو تعلق اسلام سره ډیر زیات مضبوط دې.او د نبی علیه السلام سره دهغوی پیوست کیدل ډیر مضبوط دی.

دابوسعید رضی الله عنه په روایت کښې دی.چه کله رسول الله ﷺ دا اوفرمائیل.نو انصارو په چغو اوژړل.او په ژړا ژړا ئې ګیرې لمدې شوې وې.او ټولو اووئیل. «رضينا برسول الله قسماً وحظا» یعنی مونږ په دې تقسیم راضی یو.(۳)

**قوله**: انكم ستلقون بعدي أثرة فاصبروا حتى تلقوني على الحوض: زما نه پس به

---

(۱) ای لولا ان النسبة الهجرية لایسعنی ترکها لانتسبت الی دارکم. وقال ابن الجوزی : لم يرد النبی ﷺ تغير نسبه ولا محو هجرته و انما اراد انه لولا ماسبق من کونه هاجر لانتسب الی المدينة والی نصرة الدين. فالتقدير لولا ان النسبة الی الهجرة نسبة دينية لا يسع ترکها لانتسب الی دارکم. وقال القرطبی معناه لتسميتُ باسمکم وانتسبت اليکم کما کانوا ينتسبون بالحلف. لکن خصوصية الهجرة وترتيبها سبقت. فمنعت من ذالک. وهی أعلی واشرف فلا تتبدل بغيرها. وقيل معناه: لکنت من الانصار فی الاحکام والعداد. وقيل: التقدير: لولا ان ثواب الهجرة اعظم لاخترت ان يکون ثوابی . ثواب الانصار.... وقيل: لولا التزامی بشروط الهجرة ومنها ترک الاقامة بمکة فوق ثلاث. لاخترت ان اکون من الانصار فيباح لی ذالک.(وانظر فتح الباری (۵۲۱۸)_

(۲) فتح الباری(۵۲۱۸) وشرح الکرمانی(۱۶۰۱۱۶)_

(۳) فتح الباری(۵۲۱۸)_

تاسو ترجيح بيامومي.نو تاسو د صبر نه كار واخلئ.تردې چه تاسو زما سره په حوض كوثر باندې ملاو شئ.

مطلب دادې.چه زه به د خپلو رشته دارانو او دخپل خاندان او قبيلې خلقو ته ترجيح نه وركوم.چه ستاسو حق تلفى به اوكړم.خو زما نه پس به ځينې خلق د اسې وى.چه هغوى به ستاسو حلق تلفى كوى.او په تاسو به نورو خلقو ته ترجيح وركوى .خو تاسو هغه وخت د صبر نه كار واخلئ.تردې چه ستاسو ملاقات زما سره په حوض كوثر باندې اوشى.هلته به زه په تاسو باندې د ظلم كونكو نه ستاسو دپاره انصاف حاصلوم.

[۴۰۸۰] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ لَمَّا قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِسْمَةَ حُنَيْنٍ قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ مَا أَرَادَ بِهَا وَجْهَ اللَّهِ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَتَغَيَّرَ وَجْهُهُ ثُمَّ قَالَ رَحْمَةُ اللَّهِ عَلَى مُوسَى لَقَدْ أُوذِيَ بِأَكْثَرَ مِنْ هَذَا فَصَبَرَ

[۴۰۸۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ حُنَيْنٍ آثَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاسًا أَعْطَى الْأَقْرَعَ مِائَةً مِنَ الْإِبِلِ وَأَعْطَى عُيَيْنَةَ مِثْلَ ذَلِكَ وَأَعْطَى نَاسًا فَقَالَ رَجُلٌ مَا أُرِيدَ بِهَذِهِ الْقِسْمَةِ وَجْهُ اللَّهِ فَقُلْتُ لَأُخْبِرَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَحِمَ اللَّهُ مُوسَى قَدْ أُوذِيَ بِأَكْثَرَ مِنْ هَذَا فَصَبَرَ [ر: ۲۹۸۱]

**قوله**: قال رجل من الانصار: ما اراد بها وجه الله....: دغه سړى نوم ..معتب بن قشير.. ليكلې شوې دې.(۱) هغه اووئيل.رسول الله ﷺ په دې تقسيم سره د الله د رضامندئ اراده اونكړله.دغه سړې منافق وو.(۲) او د منافقينو په باره كښې چونكه اصول دادې.چه هغه نشى قتلولې.په دې وجه ددې كفر كلمې وئيلو باوجود هغه قتل نكړې شو. والله اعلم.

[۴۰۸۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدِ بْنِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ حُنَيْنٍ أَقْبَلَتْ هَوَازِنُ وَغَطَفَانُ وَغَيْرُهُمْ بِنَعَمِهِمْ وَذَرَارِيِّهِمْ وَمَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةُ آلَافٍ وَمِنَ الطُّلَقَاءِ فَأَدْبَرُوا عَنْهُ حَتَّى بَقِيَ وَحْدَهُ فَنَادَى يَوْمَئِذٍ نِدَاءَيْنِ لَمْ يَخْلِطْ بَيْنَهُمَا الْتَفَتَ عَنْ يَمِينِهِ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ قَالُوا لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَبْشِرْ نَحْنُ مَعَكَ ثُمَّ الْتَفَتَ عَنْ يَسَارِهِ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ قَالُوا لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَبْشِرْ نَحْنُ مَعَكَ وَهُوَ عَلَى بَغْلَةٍ بَيْضَاءَ فَنَزَلَ فَقَالَ أَنَا عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ فَانْهَزَمَ الْمُشْرِكُونَ فَأَصَابَ يَوْمَئِذٍ غَنَائِمَ كَثِيرَةً فَقَسَمَ فِي الْمُهَاجِرِينَ

(۱) عمدة القارى(۳۱۱۱۱۷) وفتح البارى (۵۶۱۸)_

(۲) عمدة القارى(۳۱۱۱۱۷) وفتح البارى(۵۶۱۸)_

وَالطُّلَقَاءِ وَلَمْ يُعْطِ الْأَنْصَارَ شَيْئًا فَقَالَتِ الْأَنْصَارُ إِذَا كَانَتْ شَدِيدَةٌ فَنَحْنُ نُدْعَى وَتُعْطَى الْغَنِيمَةَ غَيْرُنَا فَبَلَغَهُ ذَلِكَ فَجَمَعَهُمْ فِي قُبَّةٍ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ مَا حَدِيثٌ بَلَغَنِي عَنْكُمْ فَسَكَتُوا فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ أَلَا تَرْضَوْنَ أَنْ يَذْهَبَ النَّاسُ بِالدُّنْيَا وَتَذْهَبُونَ بِرَسُولِ اللَّهِ تَحُوزُونَهُ إِلَى بُيُوتِكُمْ قَالُوا بَلَى فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ سَلَكَ النَّاسُ وَادِيًا وَسَلَكَتِ الْأَنْصَارُ شِعْبًا لَأَخَذْتُ شِعْبَ الْأَنْصَارِ وَقَالَ هِشَامٌ قُلْتُ يَا أَبَا حَمْزَةَ وَأَنْتَ شَاهِدٌ ذَاكَ قَالَ وَأَيْنَ أَغِيبُ عَنْهُ [ر: ٢٩٧٧]

**قوله**: ومع النبی ﷺ عشرة آلاف من الطلقاء: ددې نه معلومیږی.چه د رسول الله ﷺ سره لس زره، ،طلقاء،، وو.طلقاء د طلیق جمع ده.دلته ددې نه مراد هغه خلق دی.کوم چه رسول الله ﷺ د فتح مکې په موقع د احسان په طور پریخودې وو.نه ئې هغوی قتل کړی وو. او نه ئې غلام جوړ کړل.(١) لکه صفوان بن امیه، حکیم بن حزام وغیره، په جنګ حنین کښې د داسې خلقو تعداد لس زره نه وو.دوه زره وو.لس زره نبی علیه السلام سره صحابه رضی الله عنهم وو.او دوه زره طلقاء وو. په دې وجه روایت کښې د،،عشرة آلاف من الطلقاء،، تعبیر صحیح نه دې.
دکشمینی په روایت کښې ،،واو،،دی. ،،عشرة آلاف و من الطلقاء،، یعنی لس زره صحابه وو.او څه تعداد د طلقاؤ وو.او هم دا روایت صحیح دې.(٢)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلی دی.چه دکومو حضراتو په نیز حرف عطف مقدر منل صحیح دی.دهغوی د قول مطابق که واو حرف عطف محذوف اومنلې شی.نوهیڅ باك نشته.(٣)
علامه عینی رحمه الله فرمائی.چه د کشمینی روایت راجح دې.چه په هغې کښې واو حرف عطف دې.(٤)
حضرت ګنګوهی رحمه الله عجیبه توجیه بیان کړې ده.فرمائی.چه ،،مع النبی ﷺ عشرة آلاف،، دامستقل جدا جُملہ ده.وریسې چه کله راوی ،،من الطلقاء،، وئیلی وو. نو دوؤ ګوتو سره ئې اشاره کړې وه.او د طلقاء تعداد ئې بیان کړې وو.چه دهغوی تعداد دوه زره وو.راوی اشاره غائبه کړله.او د،،ومن الطلقاء،، الفاظ ئې نقل کړل. په دې وجه اختلاط او خبط (ګډ وډی) واقع شوه.(٥)
تنبیه:لکه څنګه چه اوونیلی شو.چه د شریعت په اصطلاح کښې طلقاء هغه خلقو ته وائی.په کومو چه رسول الله ﷺ احسان اوفرمائیلو.او د فدیې وغیره اخستلو نه بغیر ئې هغوی

---

١) عمدة القاری (٣١٠/١٧)_
٢) عمدة القاری (٣١٠/١٧)_
٣) فتح الباری(٥٥/٨)_
٤) عمدة القاری (٢١٠/١٧)_
٥) اوګورئ: لامع الدراری(٣٧٢/٨)_

پریخودل. نه ئې قید کړل.نه ئې قتل کړل.په دې مقام باندې د منجد مصنف لویس معلوف یسوعی د ډیرو زیاتو دروغو او کذب وئیلو ثبوت ورکړې دې.لکه چه هغوی د طلقاء په تشریح کولوکښې لیکلی دی.«الطلقاء الذین ادخلوا فی الاسلام کرهاً»(۱) یعنی طلقاء هغه خلق دی.کوم چه په اسلام کښې زبردستئ سره داخل کړې شو.په منجد کښې داسې قسمه تحریفات یو یا دوه نه دی.د پنځوسو نه زیات ځایونه دی.عالمانو د منجد په غلطیانو باندې مستقل رسالې لیکلی دی.په دې وجه دا کتاب قابل د اعتماد نه دې.

## بَاب السَّرِيَّةِ الَّتِي قِبَلَ نَجْدٍ

[۴۰۸۳] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً قِبَلَ نَجْدٍ فَكُنْتُ فِيهَا فَبَلَغَتْ سِهَامُنَا اثْنَيْ عَشَرَ بَعِيرًا وَنُفِّلْنَا بَعِيرًا بَعِيرًا فَرَجَعْنَا بِثَلَاثَةَ عَشَرَ بَعِيرًا [ر:۲۹۶۵]

نبی کریم ﷺ نجد طرف ته د حضرت ابوقتاده په مشرئ کښې یوه سریه روانه کړې وه.د اهل مغازی رائې داده.چه د فتح مکې دپاره د تشریف اوړلو نه وړاندې دا سریه روانه کړې شوې وه.ابن سعد په طبقات کښې لیکلی دی.چه دا د شعبان ۸ھ واقعه ده.(۲) خو امام بخاری رحمه الله دا د فتح مکې نه پس ذکرکړې ده.نو دا به وئیلې شی.چه امام بخاری رحمه الله په غزواتو کښې بعضې ځایونوکښې تقدیم تاخیر کړې دې.او یا به دا وئیلې شی.چه دامام (بخاری رحمه الله) خپل تحقیق به دا وی.چه دا واقعه د فتح مکې او طائف نه پس ده.په دې وجه هغوی دا دلته ذکرکړله.

دا واقعه د نجد په علاقه ،،ارض محارب،،کښې پیښه شوې وه.په دې کښې ټول پنځلس سړی شریك وو.په مال غنیمت کښې دوه سوه اوښان حاصل شو.دوه زره چیلئ ملاؤ شوې.او ډیر قیدیان په لاس راغلل.او صرف پنځلسو ورځو کښې دننه دا حضرات ددې سریۀ نه فارغ شو.او واپس راغلل.(۳)

د علامه ابن التین رحمه الله رائې داده.چه په دې سریه کښې ټول لس سړی تلی وو.اویونیم سل اوښان مال غنیمت کښې ملاوشوی وو.په هغې کښې دیرش اوښان رسول الله ﷺ اخستې وو.او باقی ئې په غنیمت والو (د سریۀ په مجاهدینو) کښې تقسیم کړی وو.(۴)

---

(۱) اوګورئ منجد (۱۱۰۷ ٤)_

(۲) طبقات ابن سعد(۱۳۲\۲)_

(۳) طبقات ابن سعد(۱۳۲\۲ - ۱۳۳)_

(۴) عمدة القاری (۳۱۲\۱۷) د ابن اثیر د روایت مطابق دا سریه په دریو کسانو یا شپاړسو کسانو باندې مشتمله وه.اوګورئ الکامل لابن اثیر(۱۵۷\۲)_

## بَاب بَعْثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ إِلَى بَنِي جَذِيمَةَ

[۴۰۸۴] حَدَّثَنِي مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ وحَدَّثَنِي نُعَيْمٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ إِلَى بَنِي جَذِيمَةَ فَدَعَاهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ فَلَمْ يُحْسِنُوا أَنْ يَقُولُوا أَسْلَمْنَا فَجَعَلُوا يَقُولُونَ صَبَأْنَا صَبَأْنَا فَجَعَلَ خَالِدٌ يَقْتُلُ مِنْهُمْ وَيَأْسِرُ وَدَفَعَ إِلَى كُلِّ رَجُلٍ مِنَّا أَسِيرَهُ حَتَّى إِذَا كَانَ يَوْمٌ أَمَرَ خَالِدٌ أَنْ يَقْتُلَ كُلُّ رَجُلٍ مِنَّا أَسِيرَهُ فَقُلْتُ وَاللَّهِ لَا أَقْتُلُ أَسِيرِي وَلَا يَقْتُلُ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِي أَسِيرَهُ حَتَّى قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْنَاهُ فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ فَقَالَ اللَّهُمَّ إِنِّي أَبْرَأُ إِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ خَالِدٌ مَرَّتَيْنِ [۶۷۶۶]

نبی کریمﷺ د غزوه حنین نه وړاندې په درې نیم سوو صحابوؓ باندې مشتمله یوه سریه د حضرت خالد بن ولیدؓ په مشرئ کښې د دین اسلام د تبلیغ دپاره بنوجذیمه طرف ته روانه کړله.بنوجذیمه د مکې په نشیبی علاقه کښې مشرق طرف ته آباد وو.د علامه کرمانیؒ رائې داده.چه بنوجذیمه د بنوعبدالقیس قبیلې یوشاخ دې.(۱) خو علامه عینیؒ فرمائی.چه دا صحیح نه ده.بلکه بنوجذیمه د عامر بن عبد مناة بن کنانه د اولاد ځینې دی.(۲)

حضرت خالد بن ولیدؓ بنوجذیمه ته د اسلام دعوت ورکړو.نو هغوی د اسلام اقرارپه صحیح طریقه اونکړو.او د،،أسلمنا،، (مونږ اسلام قبول کړو) په ځائې یې ،،صبأنا صبأنا،، (مونږ خپل دین پریخودو) اوونیلې.د قریشو کافرانو به د اسلام قبلولنکی دپاره د ،،اسلم فلان،، په ځائې ،،صبأ فلان،، استعمالولو.په دې وجه بنو حذیمه د اسلام اقرار په ،،صبأنا صبأنا،، ونیلو سره اوکړو.د،،صبأنا،، معنی د یو دین نه بل دین طرف ته وتل دی.په دې لفظ کښې چونکه د اسلام د اقرار مفهوم واضح نه دې.په دې وجه حضرت خالد بن ولیدؓ په هغوی کښې بعضې قتل کړل.کله چه نبی کریمﷺ ته ددې اطلاع ملاوشوه.نو نبیؑ ډیر خفه شو.اووې فرمائیل.«اللهم انی ابرأ الیك مما صنع خالد» بیا نبیﷺ حضرت علیؓ ته مال ورکړو.او بنوجذیمه ته ئې وراولیګه.او دهغه ټولو مقتولینو دیت د مسلمانانو د طرفه اداکړې شو.(۳).

---

(۱) شرح الکرمانی(۱۶۶/۱۶)_

(۲) عمدة القاری (۳۱۳/۱۷) و فتح الباری (۵۷/۸)_

(۳) تفصیل دپاره اوګورئ : فتح الباری (۵۷/۸- ۵۸)_

## باب سَرِيَّةُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ وَعَلْقَمَةَ بْنِ مُجَزِّزٍ الْمُدْلِجِيِّ وَيُقَالُ إِنَّهَا سَرِيَّةُ الْأَنْصَارِيِّ

[۴۰۸۵] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي سَعْدُ بْنُ عُبَيْدَةَ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً فَاسْتَعْمَلَ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ وَأَمَرَهُمْ أَنْ يُطِيعُوهُ فَغَضِبَ فَقَالَ أَلَيْسَ أَمَرَكُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُطِيعُونِي قَالُوا بَلَى قَالَ فَاجْمَعُوا لِي حَطَبًا فَجَمَعُوا فَقَالَ أَوْقِدُوا نَارًا فَأَوْقَدُوهَا فَقَالَ ادْخُلُوهَا فَهَمُّوا وَجَعَلَ بَعْضُهُمْ يُمْسِكُ بَعْضًا وَيَقُولُونَ فَرَرْنَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ النَّارِ فَمَا زَالُوا حَتَّى خَمَدَتِ النَّارُ فَسَكَنَ غَضَبُهُ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوْ دَخَلُوهَا مَا خَرَجُوا مِنْهَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوفِ [۶۸۳۰،۶۷۲۶]

عبدالله بن حذافه سهمی قریشی دې.داقدیم الاسلام صحابی دې.او په مهاجرین اولین کښې داخل دې.صاحب الهجرتین دې.نبی کریم ﷺ دوی ته خط مبارک ورکړې وو.اوکسری طرف ته ئې لیکلې وو.(۱) د ابن لهیعه د قول مطابق دده وفات په مصرکښې اوشو.او هم هلته مدفون دې.(۲)

دویم صحابی علقمه بن مجزر (بضم الميم وفتح الجيم وبكسر الراء المشددة) مدلجی دې.دا مجزر هغه سړې دې.دکوم چه د حضرت اسامه رضی الله عنه او حضر عائشې رضی الله عنها په قصه کښې ذکر راغې.

---

۱) عمدة القاری (۳۱۴\۱۷)_

۲) عمدة القاری (۳۱۴\۱۷) حافظ ابن حجر رحمه الله په ،،الاصابه،،کښې دحضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه په فضائلو کښې لیکلی دی.چه یوځل د حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه په دورخلافت کښې رومیانو سره دجنګ په وخت هغه د یوځو مسلمانانو سره ګرفتار شو.د روم بادشاه هغه ته اووئیل.چه ته نصرانی جوړشه.نو زه به تا ېخپل حکومت کښې شریك کړم.خو حضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه د نصرانیت قبلولو نه انکار اوکړو.چه ددې په وجه د روم بادشاه هغه لره د ېهانسئ په تخته باندې اوتړه.اوحکم ئې ورکړو.چه په ده باندې غشي ورولی شي.خوکله ئې چه اوکتل.چه دده په مخ باندې هیڅ قسمه د ویرې آثار نشته.نو دهغه ځانې نه ئې راکوز کړو.او حکم ئې اوکړو.چه په دیګ کښې اوبه ګرمې کړئ.او په ویشیدلو اوبوکښې ئې واچوئ.په اوبو کښې غوړخولو دپاره چه کله هغه لره دیګ ته نزدې ور وستلې شو.نو په ژړا شو.د روم بادشاه تپوس اوکړو.چه ولې ژاړې؟ نووې فرمائیل.چه زه ځکه ژاړم.چه زما آرزو ده.چه زما دپاره سل بدنونه وې.او د هر بدن دغه شان د قربانئ نذرانه مې پیش کړې وې.او خپل رب ته حاضر شوې ووم.د روم بادشاه ډیر حیران شو.وې وئیل.ته زما سر ښکل کړه.نو زه به تا پرېږدم.وې فرمائیل.صرف ما نه زما ملګری به هم پرېږدې.د روم بادشاه اووئیل.صحیح ده.نو حضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه دهغه سر ښکل کړو.او د روم بادشاه د وعدې مطابق ټول مسلمانان قیدیان آزاد کړل.حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه ته چه کله ددې واقعې اطلاع ملاؤ شوه.نو راغې.او د حضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه سر ئې ښکل کړو.(اوګورئ: الاصابة فی تمييز الصحابة(۲۹۶\۲-۲۹۷) رقم الترجمة (۴۶۲۲)_

چه نبی علیه السلام حضرت عائشې رضی الله عنها ته فرمائیلی وو.چه نن یو قائف (قیافه شناس) د زید بن حارثه او اسامه دواړو خپې اولیدلې.نووې وئیل چه ان بعض هذه الاقدام لمن بعض.(۱)

① ددې سریه تفصیل دلته په بخاری کښې د حضرت علی رضی الله عنه نه داسې منقول دې.چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د انصارو یو سړی لره د سریه امیر جوړکړو.اووې لیګه.اوهغوی ته ئې حکم ورکړو. چه د امیراطاعت کوئ.امیردسفر په دوران کښې څه خبره باندې خفه شو.نو هغه خپلو ملګرو ته اووئیل.چه آیا تاسو ته نبی کریم صلی الله علیه وسلم زما د اطاعت حکم نه دې درکړې؟ ټولو اووئیل.ولې نه،امیر اووئیل.بیا تاسو لرګی راجمع کړئ. د حکم په تعمیل کښې ټولو لرګی راجمع کړل.امیر هغوی ټولو ته د اور بلولو حکم ورکړو.هغوی اور بل کړو.اوس امیرصاحب حکم ورکړو.چه تاسو ټول په دې اور کښې داخل شئ.بعضې خلقو په دې اور کښې د داخلیدو اراده اوکړه.خو بیا ئې یو بل منع کړل.اووې وئیل.چه مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم طرف ته ددې دپاره راغلی یو.چه د اور نه بچ شو.په دې کښې حیران وو.چه اور یخ شو.او د امیر غصه هم یخه شوه. کله چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته ددې خبرې اطلاع اوشوه.نو نبی علیه السلام اوفرمائیل. چه که دغه خلق دامیردحکم په تعمیل کښې اورته داخل شوې وې.نوترقیامته به نه وو راوتلی.ځکه چه د امیراطاعت صرف په نیکئ کښې کول پکاردی.«لا طاعة لمخلوق فی معصیة الخالق»

② دابن سعد روایت لږ زیات تفصیلی دې.په هغې کښې دی.چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دا اطلاع ملاؤ شوه.چه ځینې حبشی خلق جدې ته نزدې یوه جزیره کښې لیدلی شوی دی.او خطره ده.چه چرته هغوی په اهل اسلام باندې حمله اونکړی.ددې اطلاع په وجه نبی علیه السلام د علقمه بن مجزز په مشرئ کښې د دریو سوو صحابو رضی الله عنهم یو جماعت روان کړو.کله چه دغه حضرات هغه جزیرې ته اورسیدل.نوحبشیان اوتختیدل.په واپسئ باندې ځینې خلقو په جلتئ سره کور ته تلل غوښتل.نو حضرت علقمه بن مجزز په هغوی باندې حضرت عبدالله بن حذافه سهمی امیر جوړ کړو.او دوی دهغوی نه جدا شو.او زر واپس راغلل.د ابن سعد د بیان مطابق دا د ربیع الآخر ۹ھ واقعه ده.(۲)

③ ابن ماجه رحمه الله په کتاب الجهاد کښې د حضرت ابوسعید رضی الله عنه روایت صحیح سند سره نقل کړې دې.چه دهغې نه ددې واقعې یو څو نوې خبرې مخې ته راځی. اود بخاری د روایت نه دهغې بیان ډیر مختلف دې.حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه فرمائی.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم علقمه بن مجزز د یوې سریه امیر جوړکړو.اووې لیګه.د سریه کاروائی مکمل کیدو نه پس بعضې خلقو د سریه د امیر حضرت علقمه رضی الله عنه نه په جلتئ سره کور ته د تلواجازت اوغوښته.هغوی اجازت ورکړو.اوحضرت عبدالله بن حذافه سهمی رضی الله عنه ئې دهغوی امیر مقرر کړو.حضرت ابوسعید رضی الله عنه فرمائی.چه زه هم عبدالله بن حذافه رضی الله عنه سره په واپس راتلونکو کښې شامل ووم. په لاره کښې یوځائې کښې ملګرو د ځان ګرمولو او خوراك وغیره پخولو دپاره اور بل

---

(۱) فتح الباری (۵۹/۸)_

(۲) طبقات ابن سعد (۱۶۳/۲) سریة علقمة بن مجزز المدلجی الی الحبشة)_

كړو: سريه امير حضرت عبدالله بن حذافه رضي الله عنه ډير خوش طبيعته وو، هغوى په دغه موقعه اوونيل. ((اليس عليكم السمع والطاعة؟)) د امير خبره اوريدل او اطاعت كول په تاسو لازم نه دى؟ ټولو اوونيل ولې نه دى.نو هغه اوفرمائيل.زه چه دكوم كارهم تاسو ته حكم دركړم.نو تاسو به ئې اوكړئ؟ ټولو اوونيل.آو.وې فرمائيل.زه تاسو ته په دې اوركنبې د داخليدو حكم دركوم.ټول خلق چه كله دهغه دحكم په تعميل كنبې اور ته دداخليدوډپاره اودريدل.

اوعبدالله بن حذافه رضي الله عنه ته يقين اوشو.چه دا خلق داخليږى.نووې فرمائيل.((امسكوا على انفسكم، فانما كنت امزح معكم)) صبر اوكړئ .ما ټوقې كولې.

حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه فرمائى.چه كله مونږ د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كنبې حاضرشو.

او ددې واقعې ذكر اوكړې شو.نو نبى عليه السلام اوفرمائيل.((من امركم منهم بمعصية الله، فلاتطيعوه))كه د الله جل جلاله د نافرمانۍ تاسو ته څوك دركړى.نو دهغه اطاعت مه كوئ.(١)

د ابن ماجه دا روايت د بخارى د روايت نه مختلف دى.د بخارى د روايت نه معلوميږى.چه امير اور ته د داخليدو حكم دغصې په وجه وركړې وو.او د ابن ماجه په روايت كنبې دى.چه امير دا حكم د خوش طبيعتۍ او ظرافت په طور وركړې وو.د بخارى په روايت كنبې دى.چه خلقو يو بل اوركنبې د داخليدو نه منع كړل.او د ابن ماجه په روايت كنبې دى.چه امير پخپله منع كړل.

كه دا دواړه جدا جدا واقعات دى.نو بيا خو هيڅ اشكال نشته.د علامه ابن قيم ميلان هم دې طرف ته دې.چه دا دوه جدا جدا واقعات دى.(٢) او هم دا صحيح معلوميږى.دلته په بخارى كنبې چه د كومې سريه ذكردې.دهغې امير علقمه بن مجزز وو.عبدالله بن حذافه رضي الله عنه نه وو. هغه د ملګرو نه خفه شوې وو.او په اور كنبې د داخليدو حكم ئې وركړې وو.او تركومې پورې چه د عبدالله بن حذافه رضي الله عنه د واقعې تعلق دې.كوم چه د ابن ماجه په روايت كنبې دې.نو هغه جدا واقعه ده.او هغوى په اور كنبې د داخليدو حكم دټوقو په طور وركړې وو.

امام بخارى رحمه الله باب تړلې دې.((باب سرية عبدالله بن حذافة السهمى وعلقمة بن مجزز المدلجى))او دهغې نه پس ئې فرمائيلى دى.((ويقال انها سرية الانصارى))د ،،ويقال،، نه غالباً امام (بخارى) د واقعې جداوالى طرف ته اشاره كړې ده.دحافظ ميلان هم دې طرف ته دې.(٣)

زمونږ په نسخوكنبې ((ويقال: انها سرية الانصار)) دې.خو د حافظ اوعينى په نسخوكنبې ((سرية الانصارى)) دې.(٤) حالانكه عبدالله بن حذافه او علقمه بن مجزز دواړه انصارى نه دى.

---

١) اوګورئ: سنن ابن ماجه كتاب الجهاد رقم(٢٨٦٣)_

٢) فتح البارى (٥٩١٨) زاد المعاد (٥١٦١٣) فصل ذكر سرية علقمة بن مجزز.... الى الحبشة)_

٣) فتح البارى (٥٩١٨)

٤) فتح البارى(٥٨١٨) وعمدة القارى(٣١٤١١٧)_

علامه ابن الجوزی رحمه الله فرمائیلی دی.چه دا وهم دې.(۱) اوبعضې حضراتو فرمائیلی دی.چه انصاری په عامه معنی کښې استعمال شوې دې.یعني د رسول الله ﷺ مدد کونکې.او په دې لحاظ سره عبدالله بن حذافه او علقمه بن مجزز دواړو ته انصاری وئیلې شی.(۲) والله اعلم.

**قوله: لو دخلوها ما خرجوا منها الى يوم القيامة:** که د،، دخلوها،، او،، منها،، دواړو ضمیر،،نار،، طرف ته راجع وی.نو مطلب به دا وی.چه دا خلق که په اورکښې داخل شوی وې.نودهغې نه به ترقیامته پورې نه وې راوتلې.بلکه په دې کښې به سوزیدلې وې.اومړه شوی به وې.(۳) اوکه د،، دخلوها،، ضمیر ددغه خلقو بل کړې شوی اور طرف ته راجع شی.او د،،دخلوها،، ضمیر،،نارجهنم،، طرف ته د صنعت استخدام په طور راجع شی.نو په دې صورت کښې به مطلب دا وی.چه که دې خلقو د امیر د حکم د تعمیل په وجه اورکښې داخلیدل حلال گنړلې وې.اوپه هغې کښې داخل شوې وې.نو ترقیامته پورې به د جهنم په اورکښې اوسیدل.یعنی هغوی ته به په دوزخ کښې عذاب ورکړې کیده. ځکه چه اور ته داخلیدل گناه ده.او گناهگار دپاره عذاب برزخ دې.(۴)

خو د حفص په روایت کښې دی.«ما خرجوا منها ابداً»(۵) ددې نه معلومیږی. چه ددې نه د برزخ عذاب مراد نه دې.البته په دې صورت کښې هم څه اشکال نشته.ځکه چه د خودکشۍ حلال گنړونکی دپاره هم دا حکم دې.ځکه چه حرام حلال گنړل کفردې.اوکافر دپاره دجهنم اوردې.چه په هغې کښې به همیشه اوسیږی

خو واقعه داده.چه په دې کښې ړومبې صورت راجح دې.یعنی د،،دخلوها،، او،،منها،،دواړو ضمیرونه دهغوی بل کړې شوی اور طرف ته راجع دی.او مطلب دادې.چه که دغه خلق پخپل دغه بل کړې شوی اورکښې داخل شوې وې.نو ټول به هغې کښې مړه شوې وې.او څوك به هم دهغې نه راوتلې نه وې.(۶)

---

۱) فتح الباری(۵۹\۸)_
۲) عمدة القاری(۷۹\۱۸)_
۳) فتح الباری(۶۰\۸)_
۴) فتح الباری(۶۰\۸) وعمدة القاری(۲۱۵\۱۷)_
۵) فتح الباری(۶۰\۸)_
۶) واستنبط منه الشيخ ابومحمد بن ابی جمرة ان الجمع منهذه الامة لايجتمعون على خطاء لانقسام السرية قسمين، منهم من هان عليه دخول النار فظنه طاعة، ومنهم من فهم حقيقة الامر، وانه مقصور على ماليس بمعصية. فكان اختلافهم سبباً لرحمة الجميع قال: وفيه ان من كان صادق النية لايقع الا فی خير، ولو قصد الشر، فان الله يصرفه عنه ولهذا قال بعض اهل المعرفة من صدق مع الله، وقاه الله ومن توكل على الله كفاه الله (و انظر فتح الباری (۶۰\۸)_

## بَاب بَعْثُ أَبِي مُوسَى وَمُعَاذٍ إِلَى الْيَمَنِ قَبْلَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ

رسول الله ﷺ د حجة الوداع نه وړاندې په ربيع الاول ۹هجرى حضرت ابو موسى اشعرى رضي الله عنه او حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه يمن طرف ته د دين اسلام د تبليغ دپاره اوليګل.حضرت ابوموسى رضي الله عنه ته ئې د يمن مشرقى طرفونو او غاړوكښې او حضرت معاذ رضي الله عنه ته ئې مغربى طرفونو او غاړو كښې د تعليم وركولو حكم وركړو.(۱)

[۴۰۸۶\۴۰۸۸] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَا مُوسَى وَمُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ إِلَى الْيَمَنِ قَالَ وَبَعَثَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى مِخْلَافٍ قَالَ وَالْيَمَنُ مِخْلَافَانِ ثُمَّ قَالَ يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا وَبَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا فَانْطَلَقَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا إِلَى عَمَلِهِ وَكَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا إِذَا سَارَ فِي أَرْضِهِ كَانَ قَرِيبًا مِنْ صَاحِبِهِ أَحْدَثَ بِهِ عَهْدًا فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَسَارَ مُعَاذٌ فِي أَرْضِهِ قَرِيبًا مِنْ صَاحِبِهِ أَبِي مُوسَى فَجَاءَ يَسِيرُ عَلَى بَغْلَتِهِ حَتَّى انْتَهَى إِلَيْهِ وَإِذَا هُوَ جَالِسٌ وَقَدْ اجْتَمَعَ إِلَيْهِ النَّاسُ وَإِذَا رَجُلٌ عِنْدَهُ قَدْ جُمِعَتْ يَدَاهُ إِلَى عُنُقِهِ فَقَالَ لَهُ مُعَاذٌ يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ قَيْسٍ أَيُّمَ هَذَا قَالَ هَذَا رَجُلٌ كَفَرَ بَعْدَ إِسْلَامِهِ قَالَ لَا أَنْزِلُ حَتَّى يُقْتَلَ قَالَ إِنَّمَا جِيءَ بِهِ لِذَلِكَ فَانْزِلْ قَالَ مَا أَنْزِلُ حَتَّى يُقْتَلَ فَأَمَرَ بِهِ فَقُتِلَ ثُمَّ نَزَلَ فَقَالَ يَا عَبْدَ اللَّهِ كَيْفَ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ قَالَ أَتَفَوَّقُهُ تَفَوُّقًا قَالَ فَكَيْفَ تَقْرَأُ أَنْتَ يَا مُعَاذُ قَالَ أَنَامُ أَوَّلَ اللَّيْلِ فَأَقُومُ وَقَدْ قَضَيْتُ جُزْئِي مِنْ النَّوْمِ فَأَقْرَأُ مَا كَتَبَ اللَّهُ لِي فَأَحْتَسِبُ نَوْمَتِي كَمَا أَحْتَسِبُ قَوْمَتِي [ر: ۲۸۷۳]

**قوله**: وبعث كل واحد منهما على مخلاف: ((مخلاف)): علاقې او ضلعې ته وائى.يعنى دوى دواړه ئې جدا جدا علاقو ته اوليګل.په دواړوحضراتو كښې چه به هريو كله د خپلې علاقې دوره كوله.د خپل دويم ملګرى علاقې ته چه به ورنزدې شو.نو هلته به ئې يوبل سره ملاقات كولو.يو خلې حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه پخپله علاقه كښې خپل ملګرى ابوموسى رضي الله عنه ته نزدې اورسيده.هلته ئې اوكتل.چه حضرت ابوموسى رضي الله عنه ناست دې.او څه خلق هغه سره راجمع دى.او د يو سړى لاسونه سټ سره تړلى شوى دى.حضرت معاذ رضي الله عنه تپوس اوكړو.دا څه قصه ده؟ حضرت ابوموسى رضي الله عنه اوفرمائيل.دا سړې مرتد شوې دې .حضرت معاذ رضي الله عنه اوفرمائيل.تركومې پورې چه دې قتل نكړې.زه به د خپلې سورلې نه كوز نه شم.نوهغه قتل كړې شو.

ددې نه پس حضرت معاذ رضي الله عنه د خپلې سورلۍ نه كوزشو.او د حضرت ابو موسى رضي الله عنه نه ئې پوښتنه اوكړه.چه ته قرآن څنګه لولې؟ حضرت ابوموسى رضي الله عنه جواب وركړو.،،اتفوقه تفوقاً،، دا د ،،فواق ناقه،، نه ماخوذ دې.د اوښې نه چه يوځل پئ اولوشلې شى.او دا محسوسه شى.

---

(۱) سيرت مصطفى(۱۴۲\۳)_

چه په تهيونو كښې اوس پې ختم شو.نو د لږ ساعت دپاره پريخودې شى.اود پيو انتظار كولې شى.بيا دوباره لوشل شروع كړې شى.د مينځ دغه وقفې ته ،،فواق ناقه،، وائى.د حضرت ابوموسى رضي الله عنه مطلب دادې.چه زه د شپې لږه شيبه د قرآن مجيد تلاوت كوم.دهغې نه پس لږ شان آرام كوم.بيا اودريږم.تلاوت شروع كوم.يعنى د شپې په وقفې وقفې سره تلاوت كوم.(١) بيا حضرت ابوموسى رضي الله عنه د حضرت معاذ رضي الله عنه نه تپوس اوكړو.چه تاسو څنګه تلاوت كوئ؟ هغه اووئيل.چه زه د شپې په شروع كښې آرام كوم.كله چه د خوب يوه حصه پوره كړم.نو پاسيږم.او د توفيق موافق تلاوت كوم.«فاحتسب نومتى كما احتسب قومتى» او زه د خپل خوب متعلق هم د الله تعالى نه دغه شان اميد لرم.لكه څنګه چه دخپلو د تهجدو د مونځ اميد لرم.مطلب دادې.چه زه چونكه آرام په دې نيت سره كوم.چه تازه او دمه شم.نو عبادت به اوكړم.په دې وجه زما اميد دې.چه الله ﷻ به په دې آرام او خوب هم ماته ثواب راكړى.

[٤٠٨٧] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَهُ إِلَى الْيَمَنِ فَسَأَلَهُ عَنْ أَشْرِبَةٍ تُصْنَعُ بِهَا فَقَالَ وَمَا هِيَ قَالَ الْبِتْعُ وَالْمِزْرُ فَقُلْتُ لِأَبِي بُرْدَةَ مَا الْبِتْعُ قَالَ نَبِيذُ الْعَسَلِ وَالْمِزْرُ نَبِيذُ الشَّعِيرِ فَقَالَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ

رَوَاهُ جَرِيرٌ وَعَبْدُ الْوَاحِدِ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ

[٤٠٨٨] حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَدَّهُ أَبَا مُوسَى وَمُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ فَقَالَ يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا وَبَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا وَتَطَاوَعَا فَقَالَ أَبُو مُوسَى يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّ أَرْضَنَا بِهَا شَرَابٌ مِنَ الشَّعِيرِ الْمِزْرُ وَشَرَابٌ مِنَ الْعَسَلِ الْبِتْعُ فَقَالَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ فَانْطَلَقَا فَقَالَ مُعَاذٌ لِأَبِي مُوسَى كَيْفَ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ قَالَ قَائِمًا وَقَاعِدًا وَعَلَى رَاحِلَتِي وَأَتَفَوَّقُهُ تَفَوُّقًا قَالَ أَمَّا أَنَا فَأَنَامُ وَأَقُومُ فَأَحْتَسِبُ نَوْمَتِي كَمَا أَحْتَسِبُ قَوْمَتِي وَضَرَبَ فُسْطَاطًا فَجَعَلَا يَتَزَاوَرَانِ فَزَارَ مُعَاذٌ أَبَا مُوسَى فَإِذَا رَجُلٌ مُوثَقٌ فَقَالَ مَا هَذَا فَقَالَ أَبُو مُوسَى يَهُودِيٌّ أَسْلَمَ ثُمَّ ارْتَدَّ فَقَالَ مُعَاذٌ لَأَضْرِبَنَّ عُنُقَهُ

تَابَعَهُ الْعَقَدِيُّ وَوَهْبٌ عَنْ شُعْبَةَ وَقَالَ وَكِيعٌ وَالنَّضْرُ وَأَبُو دَاوُدَ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَوَاهُ جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ عَنِ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ [ر: ٢٨٧٣]

---

١) قال ابن الاثير فى النهاية(٤٨٠:١٣) وحديث ابوموسى و معاذ(هما) ،،اما انا فاتفوقه تفوقاً،، يعنى قرأة القرآن: اى لا اقرأ وردى منه دفعة واحدة ولكن اقرأه شيئاً بعد شئ فى ليلى ونهارى ماخوذ من فواق الناقة، لانها تحلب ثم تراح حتى تدرثم تحلب)۔

[۴۰۸۹] حَدَّثَنِي عَبَّاسُ بْنُ الْوَلِيدِ هُوَ النَّرْسِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ عَنْ أَيُّوبَ بْنِ عَائِذٍ حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ مُسْلِمٍ قَالَ سَمِعْتُ طَارِقَ بْنَ شِهَابٍ يَقُولُ حَدَّثَنِي أَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَرْضِ قَوْمِي فَجِئْتُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنِيخٌ بِالْأَبْطَحِ فَقَالَ أَحَجَجْتَ يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ قَيْسٍ قُلْتُ نَعَمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ كَيْفَ قُلْتَ قَالَ قُلْتُ لَبَّيْكَ إِهْلَالًا كَإِهْلَالِكَ قَالَ فَهَلْ سُقْتَ مَعَكَ هَدْيًا قُلْتُ لَمْ أَسُقْ قَالَ فَطُفْ بِالْبَيْتِ وَاسْعَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ حِلَّ فَفَعَلْتُ حَتَّى مَشَطَتْ لِي امْرَأَةٌ مِنْ نِسَاءِ بَنِي قَيْسٍ وَمَكُثْنَا بِذَلِكَ حَتَّى اسْتُخْلِفَ عُمَرُ [ر: ۱۴۸۴]

[۴۰۹۰] حَدَّثَنِي حِبَّانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ عَنْ زَكَرِيَّاءَ بْنِ إِسْحَاقَ عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَيْفِيٍّ عَنْ أَبِي مَعْبَدٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ حِينَ بَعَثَهُ إِلَى الْيَمَنِ إِنَّكَ سَتَأْتِي قَوْمًا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ فَإِذَا جِئْتَهُمْ فَادْعُهُمْ إِلَى أَنْ يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لَكَ بِذَلِكَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ اللَّهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لَكَ بِذَلِكَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ اللَّهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ صَدَقَةً تُؤْخَذُ مِنْ أَغْنِيَائِهِمْ فَتُرَدُّ عَلَى فُقَرَائِهِمْ فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوا لَكَ بِذَلِكَ فَإِيَّاكَ وَكَرَائِمَ أَمْوَالِهِمْ وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ فَإِنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّهِ حِجَابٌ

قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ طَوَّعَتْ طَاعَتْ وَأَطَاعَتْ لُغَةٌ طِعْتُ وَطُعْتُ وَأَطَعْتُ [ر: ۱۳۳۱]

**قوله:** حدثني حبان: رسول الله ﷺ د حضرت معاذ رضي الله عنه یمن ته د لیګلو په وخت یو څو نصیحتونه اوفرمائیل. هغه ته نبی علیه السلام اوفرمائیل. چه اهل یمن ته اول د کلمهٔ توحید دعوت ورکړه. که هغوی ئې قبوله کړي. نو بیا د مونځ دعوت ورکړه. که دا هم اومني. نو بیا د زکاة حکم ورکړه. خو ددې دا مطلب نه دې. چه د کلمې وئیلو نه پس به مونځ فرض کیږي. او د مونځ نه پس به بیا زکواة فرض کیږي. د کلمې وئیلو نه پس به د اسلام احکام ټول په ټوله لازمیږي. دلته چه د کوم ترتیب ذکردې. ددې نه مقصد. د دعوت یوه طریقه خودل دي. چه ټول احکام په یو وخت او په ړومبی خل مه بیانوه. چه په دې سره هغه خلقو کښې ویره او نفرت پیدا نشي. بلکه په مزه مزه هغوی د اسلامی تعلیماتو نه خبر کړه.

**قوله:** قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ طَوَّعَتْ طَاعَتْ وَأَطَاعَتْ لُغَةٌ طِعْتُ وَطُعْتُ وَأَطَعْتُ: په پورته روایت کښې ،،فإن اطاعوا لك،، لفظ راغلې دې. ددې نه د امام بخاری رحمه الله ذهن د قرآن شریف د سورهٔ مائده آیت ﴿ فَطَوَّعَتْ لَهُ نَفْسُهُ قَتْلَ أَخِيهِ ﴾ طرف ته لاړه. ددې په تشریح کولوکښې ئې اوفرمائیل. چه طوعت د ،،طاعت،، په معنی کښې دې. دغه شان د باب سمع، باب نصر، او د باب افعل ټولو نه ددې یوه معنی ده.

[٤٠٩١] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ أَنَّ مُعَاذًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لَمَّا قَدِمَ الْيَمَنَ صَلَّى بِهِمُ الصُّبْحَ فَقَرَأَ وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ لَقَدْ قَرَّتْ عَيْنُ أُمِّ إِبْرَاهِيمَ

زَادَ مُعَاذٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ حَبِيبٍ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ عَمْرٍو أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ فَقَرَأَ مُعَاذٌ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ سُورَةَ النِّسَاءِ فَلَمَّا قَالَ وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا قَالَ رَجُلٌ خَلْفَهُ قَرَّتْ عَيْنُ أُمِّ إِبْرَاهِيمَ

حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه يمن ته راغي.نوهغوى د سحر مونځ ورکړو.په مالونو وصولولو باندې هم هغه مقرروو.د اسلام د احکامو تعليم او د مونځ امامت هم هغه ورکولو.هغوى يوه ورځ د سحر په مانځه کښې دا آيت اولوسته. ﴿وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا﴾ (١) نوپه قوم کښې يوسړى اووئيل.«لقد قرت عين ام ابراهيم» يعنى ابراهيم عليه السلام لره الله تعالى خليل جوړکړو.نو د ابراهيم عليه السلام دمور سترګې به يخې شوې وى.يعنى هغه به ډيره خوشحاله شوې وى.

**په روايت باب باندې يو اشکال او دهغې جوابات:** دلته اشکال کيږى.چه په مانځه کښې خو خبرو کولو سره مونځ فاسديږى.کوم سړى چه دا خبرې اوکړلې.دهغه مونځ خو فاسد شو.حضرت معاذ رضي الله عنه هغه ته د مونځ دوباره راګرځولو حکم ولې ورنکړو؟

① ددې يو جواب علامه عينى رحمه الله ورکړې دې.چه ممکن ده.حضرت معاذ رضي الله عنه ته هم معلومه نه وه.چه په داسې صورت کښې دمونځ اعاده کولې شى.په دې وجه هغه حکم ورنکړو.(٢) خو دا جواب ضعيف دې.

② دويم جواب دا ورکړې شوې دې.چه ممکن ده.دغه سړې اوس لا په مانځه کښې شامل شوې نه وو.بلکه د مانځه نه بهرهغه دا کلام کړې وى.(٣)

③ دريم جواب دا ورکړې شوې دې.چه ممکن ده.حضرت معاذ رضي الله عنه هغه ته د مونځ دوباره راګرځولو حکم ورکړې وى.خو دلته ئې په روايت کښې ذکر نه وى راغلې .او عدم ذکر، عدم د وجود ته مستلزم نه دې.(٤)

**فائده:**«قرت عين فلان» دفلانى سترګې يخې شوى.ددې نه مراد دادې.چه هغه خوشحاله شو.مشهوره ده.چه په خوشحالئ کښې کومې اوښکې اوځى.هغه يخې وى.او دغم اوښکې

---

(١) سورة النساء١٢٥_

(٢) عمدة القارى (٥\١١٨)_

(٣) فتح البارى (٨\٦٥)_

(٤) فتح البارى (٨\٦٥) وعمدة القارى (٥\١١٨)_

كرمې وي.په دې وجه دا تعبير دچا د خوشحالۍ خودلو دپاره اختيارولې شي.چه د خوشحالۍ په يخو اوښكو سره دهغه سترګې يخې شوې.(١)

## =بَاب بَعْثُ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ عَلَيْهِ السَّلَام وَخَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ إِلَى الْيَمَنِ قَبْلَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ

رسول اللهﷺ د فتح مكې نه پس صحابه كرام﷢ د تبليغ او جهاد دپاره د عربو مختلفو اطرافو ته ليګلي وو.نبيﷺ حضرت خالد بن وليد﷛ د يوې سريه اميرجوړ كړې وو.او يمن طرف ته ئې ليګلي وو.څه موده پس نبيﷺ حضرت علي﷛ يمن طرف ته اوليګه.او د حضرت خالد﷛ په ځائې ئې هغه امير مقرركړو.ددې واقعې په باره كښې امام وړېسې روايات نقل كوي.

[٤٠٩٢] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ إِلَى الْيَمَنِ قَالَ ثُمَّ بَعَثَ عَلِيًّا بَعْدَ ذَلِكَ مَكَانَهُ فَقَالَ مُرْ أَصْحَابَ خَالِدٍ مَنْ شَاءَ مِنْهُمْ أَنْ يُعَقِّبَ مَعَكَ فَلْيُعَقِّبْ وَمَنْ شَاءَ فَلْيُقْبِلْ فَكُنْتُ فِيمَنْ عَقَّبَ مَعَهُ قَالَ فَغَنِمْتُ أَوَاقٍ ذَوَاتِ عَدَدٍ

حضرت براء﷛ فرمائي.چه رسول اللهﷺ مونږه خالد بن وليد﷛ سره يمن طرف ته اوليګلو.بيانبيﷺ دهغه په ځائې حضرت علي﷛ اوليګه.اوهغه ته ئې اوفرمائيل .چه د حضرت خالد بن وليد﷛ ملګرو ته اووايه.چه څوك تاسو سره يمن ته واپس تلل غواړي.هغه دې يمن ته لاړشي.او څوك چه غواړي.چه مدينې ته راشي .نو مدينې ته دې راشي.حضرت براء﷛ فرمائي.زه حضرت علي﷛ سره واپس يمن ته تلونكو خلقو كښې ووم.

**قوله**: فَغَنِمْتُ أَوَاقٍ ذَوَاتِ عَدَدٍ: اواق د .اوقية، جمع ده.يعنې د مال غنيمت نه ماته د سپينو زرو ډيرې اوقيې ملاؤ شوې.«ذوات عدد» نه ډيروالي طرف ته اشاره ده.او دا هم ممكن ده.چه كموالي طرف ته اشاره وي.

[٤٠٩٣] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سُوَيْدِ بْنِ مَنْجُوفٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا إِلَى خَالِدٍ لِيَقْبِضَ الْخُمُسَ وَكُنْتُ أُبْغِضُ عَلِيًّا وَقَدْ اغْتَسَلَ فَقُلْتُ لِخَالِدٍ أَلَا تَرَى إِلَى هَذَا فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ يَا بُرَيْدَةُ أَتُبْغِضُ عَلِيًّا فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ لَا تُبْغِضْهُ فَإِنَّ لَهُ فِي الْخُمُسِ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ

حضرت بريده بن حصيب﷛ فرمائي.چه رسول اللهﷺ حضرت علي﷛ يمن طرف ته

١) اوګورئ: مجمع بحارالانوار: (٢٤٦/٤) وعمدة القاري(١١٨/٥)_

حضرت خالد رضي الله عنه ته ليګلي وو.چه هغه خمس پخپله قبضه كښې واخلي .بريده وائي.چه زما على رضي الله عنه سره بغض وو.دلته وړسې روايت مختصر دې .اسماعيلى دا روايت تفصيل سره نقل كړې دې.(١)چه دخمس د مال نه يوه ښائسته وينځه حضرت على رضي الله عنه دخپل ځان دپاره منتخب كړله.او د شپې ئې هغې سره د وطى كولو نه پس چه كله د سحر غسل اوكړو.نو حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه بريده ته اووئيل.چه((الاترى ماصنع هذا؟))اودلته د بخارى رحمه الله په روايت كښې بريده رضي الله عنه فرمائى .چه ما خالد ته اووئيل.((الا ترى الى هذا؟)) (دې كس ته نه ګورې.چه د غنيمت د مال وينځه ئې استعمال كړله) فرمائى.چه كله مونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلو.نو ما نبى عليه السلام ته ددې واقعې ذكراوكړو.نبى عليه السلام اوفرمائيل.((يا بُريدة اتُبغض علياً؟)) (اې بريده! ته على سره بغض ساتې؟) ما اووئيل.آو، نو نبى عليه السلام اوفرمائيل.((لاتبغضه، فان له فى الخمس اكثر من ذالك)) (هغه سره بغض مه ساته.ځكه چه په خمس كښې هغه ته ددې (وينځې) نه د زيات اخستلو حق وو) د عبدالجليل په روايت كښې دى.چه حضرت بريده رضي الله عنه اووئيل.((فما كان احد من النّاس احبّ الىّ من على))(٢) ، ، ددې نه پس دحضرت على رضي الله عنه نه ماته هيڅ څوك زيات محبوب نه وو، ،

**په روايت د باب باندې اشكال او دهغې جوابونه:** په دې روايت باندې يو اشكال دا كيږى.چه حضرت على رضي الله عنه بغير د استبراء نه دې وينځې سره وطى ولې اوكړله؟ حالانكه استبراء ضرورى ده.

① ددې يو جواب دا وركړې شوې دې.چه دغه وينځه باكره وه.واده شوې يا د بل چا وطى كړې شوې نه وه.په دې وجه د استبراء ضرورت نه وو.(٣)

② دويم جواب دا وركړې شوې دې.چه ممكن ده.حضرت على رضي الله عنه د استبراء نه پس وطى كړې وى.په روايت كښې هيڅ يوه خبره داسې نشته.چه دهغې نه معلومه شى. چه حضرت على رضي الله عنه بغير د استبراء نه هغې سره وطى كړې وى.(٤)

باقى پاتې شوه دا خبره چه حضرت على رضي الله عنه دځان دپاره دا وينځه ولې منتخب كړله؟ ددې جواب دادې.چه په خمس كښې امام يا نائب امام ته حق وى.او دلته حضرت على رضي الله عنه د نبى عليه السلام نائب جوړشوې وو.او خمس اخستلو پاره تلې وو.په دې وجه هغه ته داحق حاصل وو.ځكه خو نبى عليه السلام اوفرمائيل.((فان له فى الخمس اكثر من ذالك)).

---

١) فتح البارى (٨/٦٦)_
٢) فتح البارى (٨/٦٧)_
٣) فتح البارى (٨/٦٧)_
٤) فتح البارى(٨/٦٧)_

[٤٠٩٤] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ شُبْرُمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي نُعْمٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ يَقُولُ بَعَثَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْيَمَنِ بِذُهَيْبَةٍ فِي أَدِيمٍ مَقْرُوظٍ لَمْ تُحَصَّلْ مِنْ تُرَابِهَا قَالَ فَقَسَمَهَا بَيْنَ أَرْبَعَةِ نَفَرٍ بَيْنَ عُيَيْنَةَ بْنِ بَدْرٍ وَأَقْرَعَ بْنِ حَابِسٍ وَزَيْدِ الْخَيْلِ وَالرَّابِعُ إِمَّا عَلْقَمَةُ وَإِمَّا عَامِرُ بْنُ الطُّفَيْلِ فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِهِ كُنَّا نَحْنُ أَحَقَّ بِهَذَا مِنْ هَؤُلَاءِ قَالَ فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَلَا تَأْمَنُونِي وَأَنَا أَمِينُ مَنْ فِي السَّمَاءِ يَأْتِينِي خَبَرُ السَّمَاءِ صَبَاحًا وَمَسَاءً قَالَ فَقَامَ رَجُلٌ غَائِرُ الْعَيْنَيْنِ مُشْرِفُ الْوَجْنَتَيْنِ نَاشِزُ الْجَبْهَةِ كَثُّ اللِّحْيَةِ مَحْلُوقُ الرَّأْسِ مُشَمَّرُ الْإِزَارِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ اتَّقِ اللَّهَ قَالَ وَيْلَكَ أَوَلَسْتُ أَحَقَّ أَهْلِ الْأَرْضِ أَنْ يَتَّقِيَ اللَّهَ قَالَ ثُمَّ وَلَّى الرَّجُلُ قَالَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلَا أَضْرِبُ عُنُقَهُ قَالَ لَا لَعَلَّهُ أَنْ يَكُونَ يُصَلِّي فَقَالَ خَالِدٌ وَكَمْ مِنْ مُصَلٍّ يَقُولُ بِلِسَانِهِ مَا لَيْسَ فِي قَلْبِهِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَمْ أُومَرْ أَنْ أَنْقُبَ عَنْ قُلُوبِ النَّاسِ وَلَا أَشُقَّ بُطُونَهُمْ قَالَ ثُمَّ نَظَرَ إِلَيْهِ وَهُوَ مُقَفٍّ فَقَالَ إِنَّهُ يَخْرُجُ مِنْ ضِئْضِئِ هَذَا قَوْمٌ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ رَطْبًا لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ وَأَظُنُّهُ قَالَ لَئِنْ أَدْرَكْتُهُمْ لَأَقْتُلَنَّهُمْ قَتْلَ ثَمُودَ [٣٣٩٠، ٦٩٩٥، ٧١٢٣، وانظر: ٣١٦٦]

حضرت ابوسعيد خدرى رضی اللہ عنہ فرمائی «بعث علی بن ابی طالب الی رسول الله ﷺ بذُهَيبة في اديم مقروظ (١) لم تحصل من ترابها» يعني د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حضرت علی رضی اللہ عنہ لږ سره زر اوليګل.په داسې څرمنه کښې چه هغې ته رنګ ورکړې شوې وو. او دغه سره زر دهغې د خاورو نه نۀ وه جدا کړې شوې.مطلب دادې.چه دکان نه د راوېنکلو نه پس دغه سره زر د خاورو نه نۀ وه صفا کړې شوې.

نبی کريم ﷺ دغه سره زر په څلورو سړو کښې تقسيم کړله.عيينه بن بدر، اقرع بن حابس، زيدالخيل(٢)او علقمه يا عامر بن الطفيل، په علقمه او عامرکښې د راوی شک دې.خو علقمه صحيح دې.ځکه چه د عامر بن الطفيل وفات دهغه نه وړاندې شوې وو.چه ددې تفصيل وړاندې تيرشوې دې.(٣)

د نبی کريم ﷺ په صحابو رضی اللہ عنہم کښې يوسړی اوونيل.چه ددې خلقو په مقابله کښې مونږ

---

١) ذهيبة: تصغير ذهبة..... مقروظ: اى مدبوغ بالقرظ، والقرظ شجر يدبغ بورقه ولونه الى الصفرة (عمدة القارى(٨\١١٨)_

٢) وقيل له زيد الخيل لكرائم الخيل التى كانت له، وسماه النبی ﷺ زيد الخير باالراء بدل اللام واثنى عليه فاسلم، فحسن اسلامه ومات فى حياة النبی ﷺ (فتح البارى(٨\٦٨)_

٣) اوګورئ: غزوهٔ بير معينه(ص٢٦٦-٢٦٧)_

زیات حقدار یو.رسول الله ﷺ ته چه کله دا خبر ملاوشو.نووې فرمائیل.چه تاسو په ما باندې اعتماد نه کوئ.((وانا امین من فی السماء)) حالانکه زه دهغه ذات امین یم.چه دهغه وحی سحراو ماښام ماته راځی.نو یو سړې اودریده.چه دهغه سترګې دننه طرف ته ورننوتې وې.اننګی ئې بهر ته راوتلی وو.تندې ئې مخې ته راوتلې وو.ږیره ئې ګنړه وه.سر ئې خرئیلې وو.لنګ ئې (پنډو) طرف ته اوچت کړې وو.اورسول الله ﷺ ته ئې اوونیل.((یارسول الله اتق الله))رسول الله ﷺ اوفرمائیل. ،،ویلک!،، ستا دپاره دې هلاکت وی.آیا د زمکې په اوسیدونکوکښې دټولو ئه زیات زه د الله نه یریدونکې نه یم؟ بیا هغه سړې لاړه.حضرت خالد بن ولید ﷺ د رسول الله ﷺ نه دهغه د سټ کټ کولو اجازت اوغوښته.نبی ﷺ اوفرمائیل.نه کیدې شی.چه هغه مونځ کوی.حضرت خالد ﷺ اوفرمائیل.((وکم من مصل یقول بلسانه مالیس فی قلبه)) ،،ځومره مونځ کونکی داسې دی.چه هغوی په ژبه هغه څه وائی.کوم څه چه دهغوی په زړه کښې نه وی،، یعنی ډیرخلق په ظاهرکښې مونځ کوی.خو دننه هغوی مسلمانان نه وی.په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل.((انی لم اومران انقب قلوب الناس ولا اشق بطونهم)) یعنی ،،ماته ددې حکم نه دې.چه زه دخلقو په زړونوکښې سوری اوکړم.او معلومات اوکړم.اودهغې تحقیق اوکړم.اونه ددې حکم دې.چه زه دهغوی خیټې اوسیرم.،، (چه معلومه کړم.چه په رښتیا هغوی دننه نه مسلمانان دی اوکه نه) راوی وائی.چه بیا رسول الله ﷺ هغه سړی طرف ته اوکتل.چه هغه شاکړې وه.او روان وو.نبی ﷺ اوفرمائیل.

**قوله**: إِنَّهُ يَخْرُجُ مِنْ ضِئْضِئِ هَذَا قَوْمٌ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ رَطْبًا لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ: ،،ددې سړی د نسل نه به یو قوم اوځی.چه هغوی به د قرآن تلاوت ډیر تازګئ سره کوی.خو دا قرآن به دهغوی د ججورې (د مرئ هډوکی) نه وړاندې نه ځی.دغه خلق به د دین نه داسې وځی.لکه څنګه چه غشې د ښکار نه اوځی.،،

ضئضئ : نسل .حناجر: د حَنجَرة جمع ده.هغه هډوکې کوم چه د سینې نه پورته او د حلق نه لاندې وی.یمرقون : یخرجون، الرمیة : ښکار.

مطلب دادې.چه دغه خلق به د قرآن تلاوت ډیر په خوش آوازئ سره کوی.خو قرآن به دهغوی د حلق نه لاندې نه کوزیږی.یعنی د قرآن اثر به دهغوی په زړه باندې نه کیږی. د دین نه به هغوی دهغه غشی په شان اوځی.کوم چه د ښکار نه اوځی.خو په هغې به د وینې هیڅ داغ او نخښه نه وی.دغه شان به دهغوی په زړونو باندې د دین هیڅ اثر نه وی.

**قوله**: وَأَظُنُّهُ قَالَ لَئِنْ أَدْرَكْتُهُمْ لَأَقْتُلَنَّهُمْ قَتْلَ ثَمُودَ: راوی وائی.چه زما خیال دې.نبی ﷺ دا هم اوفرمائیل.چه که زه هغوی بیا موسم.نو زه به هغوی د قوم ثمود پشان قتلوم.دا خوارجو طرف ته اشاره وه.دهغه سړی نوم څه وو؟ په دې باره کښې بعضې حضراتو

بې علمی ښکاره کړې ده.بعضو وئیلی دی.چه دهغه نوم ،،ذوالخویصرة تمیمی،،(۱) وو.علامه سهیلی رحمه الله فرمائیلی دی. چه دهغه نوم ،،نافع،، وو.(۲) د ابوداوٗد په روایت کښې هم دهغه نوم ،،نافع،، راغلې دې.(۳) او بعضو وئیلی دی.چه دهغه نوم ،،حرقوص بن زهیر،، دې.(٤)
دغه سړې په حقیقت کښې د قتلولو مستحق وو.خو رسول الله ﷺ د مصلحت په طور هغه ته هیڅ اونه وئیل.مصلحت دا وو.چه که قتل کړې ئې وو.نو په دې سره عامو خلقو کښې د اسلام باره کښې د بدګمانۍ پیدا کیدلو امکان وو.د اسلام مخالفینو به دا خبره خوره کړې وه.چه محمد ﷺ خپل اصحاب قتلوی.او په دې طریقه به د اسلام په لاره کښې رکاوټ پیدا شوې وې.(۵)

دلته دا اشکال کیږی.چه رسول الله ﷺ فرمائی.((لئن ادرکتهم لاقتلنهم قتل ثمود)) دلته دغه سړې چه اصل بنیاد دې.د نبی علیه السلام په وړاندې موجود دې.چه هم دهغه د نسل نه به روستو داسې قسمه خلق پیدا کیږی.نو هم دا اصل (بنیاد) نبی علیه السلام ولې قتل نکړو؟
① حافظ ابن حجر رحمه الله ددې اشکال جواب ورکولو کښې فرمائیلی دی.چه دا جمله نبی علیه السلام دهغه وخت او دهغه زمانې متعلق ارشاد فرمائیلې ده.کله چه ددوی د طرفه خروج او بغاوت ښکاره شی.اوکله چه به هغوی د مسلمان وینې تویوی .حالانکه اوس ددغه سړی نه داسې هیڅ خبره نه ده ښکاره شوې.نه هغه د بغاوت اعلان کړې دې.اونه د یو مسلمان وینې تویولو ته وړاندې شوې دې.په دې وجه نبی کریم ﷺ دهغه د قتلولو اجازت ورنکړو.(٦)
② حضرت کشمیری رحمه الله اوفرمائیل.چه نبی کریم ﷺ په حقیقت کښې تشریع او تکوین دواړه جمع کړل.(۷)تشریع خو دادې.چه نبی علیه السلام دهغه په قول باندې نکیر اوفرمائیلو .او چونکه تکوینی طور باندې دهغه قتل دحضرت علی رضی الله عنه په حصه کښې وو.په دې وجه ئې د تکوین په رعایت سره دغه وخت هغه قتل نکړو.روستو چه کله د حضرت علی رضی الله عنه په دورکښې د خوارجو فتنه راوچته شوه.او حضرت علی رضی الله عنه هغوی قتل کړل.نو دهغه سړی لټون اوکړې شو.نو په لاشونو کښې دهغه لاش ملاوٗ شو.(۸)

[۴۰۹۵] حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا أَنْ يُقِيمَ عَلَى إِحْرَامِهِ زَادَ مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ عَطَاءٌ

---

۱) فتح الباری (٦٩\٨) وعمدة القاری (٨\١١٨)_
۲) فتح الباری ٦٩\٨) وعمدة القاری(٨\١١٨)_
۳) سنن ابی داوٗد(٢٤٥\١٤) کتاب السنة باب فی قتال الخوارج رقم الحدیث (٤٧٧٠)_
٤) فتح الباری (٦٩\٨) وعمدة القاری (٨\١١٨)_
۵) لامع الدراری (٣٧٧\٨)_
٦) فتح الباری (٦٩\٨)_
۷) فیض الباری (١١٩\٤)_
۸) اوګورئ:صحیح بخاری کتاب المناقب باب علامات النبوة رقم الحدیث (٣٦١٠) فتح الباری (٦١٨\٦)_

قَالَ جَابِرٌ قَدِمَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بِسِعَايَتِهِ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَ أَهْلَلْتَ يَا عَلِيُّ قَالَ بِمَا أَهَلَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَأَهْدِ وَامْكُثْ حَرَامًا كَمَا أَنْتَ قَالَ وَأَهْدَى لَهُ عَلِيٌّ هَدْيًا [ر: ١٤٨٢]

[٤٠٩٦] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ حَدَّثَنَا بَكْرٌ أَنَّهُ ذَكَرَ لِابْنِ عُمَرَ أَنَّ أَنَسًا حَدَّثَهُمْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَحَجَّةٍ فَقَالَ أَهَلَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَجِّ وَأَهْلَلْنَا بِهِ مَعَهُ فَلَمَّا قَدِمْنَا مَكَّةَ قَالَ مَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ هَدْيٌ فَلْيَجْعَلْهَا عُمْرَةً وَكَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدْيٌ فَقَدِمَ عَلَيْنَا عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ مِنَ الْيَمَنِ حَاجًّا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَ أَهْلَلْتَ فَإِنَّ مَعَنَا أَهْلَكَ قَالَ أَهْلَلْتُ بِمَا أَهَلَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَأَمْسِكْ فَإِنَّ مَعَنَا هَدْيًا [ر: ١٤٨٣]

## بَاب غَزْوَةِ ذِي الْخَلَصَةِ

[٤٠٩٧\٤٠٩٩] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا بَيَانٌ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيرٍ قَالَ كَانَ بَيْتٌ فِي الْجَاهِلِيَّةِ يُقَالُ لَهُ ذُو الْخَلَصَةِ وَالْكَعْبَةُ الْيَمَانِيَةُ وَالْكَعْبَةُ الشَّأْمِيَّةُ فَقَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا تُرِيحُنِي مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ فَنَفَرْتُ فِي مِائَةٍ وَخَمْسِينَ رَاكِبًا فَكَسَرْنَاهُ وَقَتَلْنَا مَنْ وَجَدْنَا عِنْدَهُ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَدَعَا لَنَا وَلِأَحْمَسَ

[٤٠٩٨] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا قَيْسٌ قَالَ قَالَ لِي جَرِيرٌ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا تُرِيحُنِي مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ وَكَانَ بَيْتًا فِي خَثْعَمَ يُسَمَّى الْكَعْبَةَ الْيَمَانِيَةَ فَانْطَلَقْتُ فِي خَمْسِينَ وَمِائَةِ فَارِسٍ مِنْ أَحْمَسَ وَكَانُوا أَصْحَابَ خَيْلٍ وَكُنْتُ لَا أَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ فَضَرَبَ فِي صَدْرِي حَتَّى رَأَيْتُ أَثَرَ أَصَابِعِهِ فِي صَدْرِي وَقَالَ اللَّهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا فَانْطَلَقَ إِلَيْهَا فَكَسَرَهَا وَحَرَّقَهَا ثُمَّ بَعَثَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ جَرِيرٍ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا جِئْتُكَ حَتَّى تَرَكْتُهَا كَأَنَّهَا جَمَلٌ أَجْرَبُ قَالَ فَبَارَكَ فِي خَيْلِ أَحْمَسَ وَرِجَالِهَا خَمْسَ مَرَّاتٍ

[٤٠٩٩] حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيرٍ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا تُرِيحُنِي مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ فَقُلْتُ بَلَى فَانْطَلَقْتُ فِي خَمْسِينَ وَمِائَةِ فَارِسٍ مِنْ أَحْمَسَ وَكَانُوا أَصْحَابَ خَيْلٍ وَكُنْتُ لَا أَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَرَبَ يَدَهُ عَلَى صَدْرِي حَتَّى رَأَيْتُ أَثَرَ يَدِهِ فِي صَدْرِي وَقَالَ اللَّهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا قَالَ فَمَا وَقَعْتُ عَنْ فَرَسٍ بَعْدُ قَالَ وَكَانَ ذُو الْخَلَصَةِ بَيْتًا بِالْيَمَنِ لِخَثْعَمَ وَبَجِيلَةَ فِيهِ نُصُبٌ تُعْبَدُ يُقَالُ لَهُ الْكَعْبَةُ قَالَ فَأَتَاهَا فَحَرَّقَهَا بِالنَّارِ وَكَسَرَهَا

قَالَ وَلَمَّا قَدِمَ جَرِيرٌ الْيَمَنَ كَانَ بِهَا رَجُلٌ يَسْتَقْسِمُ بِالْأَزْلَامِ فَقِيلَ لَهُ إِنَّ رَسُولَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَا هُنَا فَإِنْ قَدَرَ عَلَيْكَ ضَرَبَ عُنُقَكَ قَالَ فَبَيْنَمَا هُوَ يَضْرِبُ بِهَا إِذْ وَقَفَ عَلَيْهِ جَرِيرٌ فَقَالَ لَتَكْسِرَنَّهَا وَلَتَشْهَدَنَّ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ أَوْ لَأَضْرِبَنَّ عُنُقَكَ قَالَ فَكَسَرَهَا وَشَهِدَ ثُمَّ بَعَثَ جَرِيرٌ رَجُلًا مِنْ أَحْمَسَ يُكْنَى أَبَا أَرْطَاةَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَشِّرُهُ بِذَلِكَ فَلَمَّا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا جِئْتُ حَتَّى تَرَكْتُهَا كَأَنَّهَا جَمَلٌ أَجْرَبُ قَالَ فَبَرَّكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى خَيْلِ أَحْمَسَ وَرِجَالِهَا خَمْسَ مَرَّاتٍ [ر: ٢٨٥٧]

ذوالخلصه دهغه كوراوكوټي نوم ووچه په هغې كښې دننه بوت ايخودې شوې وو.بعضې خلقو ونيلي دی.چه ذوالخلصه د بت نوم وو.او خلصه دهغه كور نوم وو.په كوم كښې چه ذوالخلصه نومې بت ايخودې شوې وو.(١)

امام بخاری رحمه الله په دې باب كښې درې روايات ذكركړی دی.رومبې روايت مختصر دې.دويم روايت دهغې نه لږ تفصيلي دې.او دريم دټولو نه زيات تفصيلي دې.

د يمن په علاقه كښې كوم ځائې چه خثعم قبيله آباده وه.يو بُت په ذوالخلصه نومې كوركښې ايخودې شوې وو.خلق به راتلل.دهغې عبادت به ئې كولو.په هغې به ئې ګلونه اچول.او دهغې د تقرب دپاره به ئې هلته ځاروی ذبح كول.رسول الله ﷺ حضرت جرير بن عبدالله بجلي رضي الله عنه ته اوفرمائيل.چه تاسو به د ذوالخلصه نه ماته راحت اونه رسوئ؟ (چه هغه ورانه كړئ.او ما دهغې د تكليف نه محفوظ كړې) حضرت جرير رضي الله عنه چونكه دهغه علاقې د اشرافو (اوچتو) خلقو څخنې وو.په دې وجه نبی عليه السلام هغه ته دا حكم وركړو.نو هغه د ځان سره د احمس قبيلې يونيم سل شهسواران واخستل.او ددغه بت ځانې ورانولو دپاره روان شو.حضرت جرير بن عبدالله رضي الله عنه پخپله اس باندې په ښه شان نه شو سوريدلې.نو نبی عليه السلام ته ئې ددې شكايت اوكړو.نبی عليه السلام خپل لاس دهغه په سينه باندې اووهلو.او ورسره ئې دا دعا هم اوكړه.«اللّٰهمّ ثبّته واجعله هادياً مهدياً» اې الله! دې ثابت قدم اوساتې.او نورو خلقو لره هدايت وركونكې او پخپله هدايت باندې اوسيدونكې ئې جوړكړې،، دحضرت جرير رضي الله عنه بيان دې.چه ددې نه پس زه كله هم د اس نه نۀ يم غورزيدلې.

حضرت جرير بن عبدالله رضي الله عنه سره د خپلو ملګرو د يمن دغه بت ځانې ته ورغې.او هغې ته ئې اور اولګولو.او د بيخه ئې ختم كړو. حضرت جرير رضي الله عنه د احمس قبيلې يو صحابی حضرت ابوارطاة رضي الله عنه لره د رسول الله ﷺ په خدمت كښې اطلاع وركولو دپاره اوليګه.چه هغه رسول الله ﷺ ته دا زيرې وركړی.كله چه هغه د نبی عليه السلام په درباركښې حاضر شو.نو عرض ئې اوكړه.«يارسول الله ﷺ والذی بعثك بالحق ما جئت حتی تركتها كانها جمل اجرب» يعنی اې د الله رسوله! په هغه ذات مې دې قسم وی.چاچه تا حق سره راليګلې يې.زه ستا په خدمت

(١) فتح البارى (٧١١٨) وعمدة القارى (١٠١٨)_

كښې راتلو دپاره ترهغه وخته پورې راروان نه شوم.ترڅو چه مې هغه بت خانه د خارښتی اوښ پشان توره پرېنخوه..په عربو كښې دا رواج وو.چه په خارښتی اوښ به ئې تاركول مږل.مطلب دا دې.چه د تاركولو لګولی شوی خارښتی اوښ په شان ذوالخلصه اوسوزولې شو.او تور كړې شو.رسول الله ﷺ په دې خبر سره ډير خوشحاله سو.او نبی عليه السلام پنځه ځله د احمس قبيلې شهسوارانو او پيادۀ دپاره د بركت دعا اوفرمائيله.

**قوله**: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ.....يُقَالُ لَهُ ذُو الْخَلَصَةِ وَالْكَعْبَةُ الْيَمَانِيَةُ وَالْكَعْبَةُ الشَّامِيَّةُ:

① بعضې خلقو وئيلی دی.«والكعبة الشامية» غلط دې.ځكه چه كعبه شاميه په مكه مكرمه كښې واقع بيت الله شريف ته وائی.ځكه چه بيت الله د يمن نه شام طرف ته واقع دې.په دې وجه هغې ته شاميه وائی.يمن كښې واقع ذوالخلصه ته كعبه شاميه وئيل غلط دی.[1]

② بعضې حضراتو وئيلی دی.چه په روايت كښې «والكعبة الشامية» صحيح دی.خو ددې نه ذوالخلصه مراد نه ده.بلكه بيت الله مراد دې.او تقديری عبارت داسې دې.«والكعبة الشامية هي التي بمكة» يعنی «الكعبة الشامية» مبتدا ده.او ددې خبر محذوف دې.او دا خودل دی.چه كعبه شاميه هغه ده.كومه چه مكه كښې واقع ده.[2]

③ بعضې عالمانو وئيلی دی.چه ،،الكعبة،، مبتدا ده.او،،الشامية،، ددې خبردې.اودا د ماقبل نه حال دې.او مطلب دادې.چه ذوالخلصه ته كعبه وئيلې شی. حالانكه كعبه خو صرف شاميه ده.(كومه چه مكه كښې واقع ده)[3]

④ خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلی دی.چه په يمن كښې واقع ذوالخلصه نومې بت خانې ته كعبه يمانيه او كعبه شاميه وئيلې شی.يمانيه ورته په دې وجه وئيلې شی.چه هغه په يمن كښې واقع وه.او شاميه ورته ځكه وائی.چه دهغې يوه دروازه شام طرف ته وه.نو په روايت كښې «يقال ... الكعبة الشامية» ته غلط وئيل، يا د باريكو تاويلاتو كولو ضرورت نشته.[4] والله اعلم.

## بَاب غَزْوَةُ ذَاتِ السُّلَاسِل

علامه كرمانی رحمه الله فرمائيلی دی.چه ،،السلاسل،، د ړومبی سين فتحې سره او د دويم سين كسرې سره دې.بعضو د ړومبی سين ضمه وئيلې ده.[5]

---

[1] عمدة القاری (۱۸/۱۰)_

[2] فتح الباری (۸/۷۲)_

[3] قال الكرمانی ويحتمل ان تكون الكعبة مبتدا والشامية خبره والجملة حال، ومعناها ان الكعبة هي الشامية لاغير (وانظر شرح الكرمانی (۱۶/۱۷۸)_

[4] اوګورئ: فتح الباری (۸/۷۱)_

[5] شرح الكرمانی (۱۶/۱۸۰)_

**وجه تسمیه:** ① علامه عینی وغیره فرمائیلی دی.چه ،،ذات السلاسل،، یوه چینه وه.چه دهغې اوبه سلسال یعنی خوشگوار وې.په دې وجه هغه چینې ته ذات السلاسل وائی. دا غزوه په هغه مقام باندې پیښه شوه.نو هغې طرف ته نسبت کولو سره دې غزوې ته ذات السلاسل وائی.(۱)

② بعضې حضراتو فرمائیلی دی.چه سلاسل د سلسلة جمع ده.سلسله زنځیر او بیړئ ته وائی.په دې غزوه کښې مشرکینو په مضبوطئ سره د جنګ کولو په غرض سره خپلو خپو کښې بیړئ اچولې وې.په دې وجه هغې ته غزوهٔ ذات السلاسل وائی.(۲)

③ قاضی عیاض رحمه الله فرمائیلی دی.چه سلاسل په حقیقت کښې هغه شګې ته وائی. چه هغه لاندې باندې کلکه شوې وی.په کوم ځائې چه دا غزوه پیښه شوه.هلته لاندې باندې شګه کلکه شوې وه.په دې وجه هغې ته ذات السلاسل وئیلې شي.(۳) والله اعلم

**قوله:** وَهِيَ غَزْوَةُ لَخْمٍ وَجُذَامَ قَالَهُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ: د اسماعیل بن ابی خالد په قول دا غزوه قبیله لخم او جذام سره پیښه شوه. لخم د مالك بن عدی بن حارث لقب وو.هغې طرف ته دا قبیله منسوب ده.جذام د لخم رور وو.چه دهغه نوم عمرو بن عدی وو.دهغه اولاد ته ،،بنوجذام،، وائی.(۴)

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ عَنْ يَزِيدَ عَنْ عُرْوَةَ هِيَ بِلَادُ بَلِيٍّ وَعُذْرَةَ وَبَنِي الْقَيْنِ: بَلی، عُذره او بنوالقَین درې واړه د قضاعه څانګې دی.(۵) ابن اسحاق د یزید په واسطه د عروه نه نقل کړی دی.چه دا غزوه د قبیلهٔ بلی، عذره او بنی القین په ښارونو کښې پیښه شوه.

[۴۱۰۰] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ عَلَى جَيْشِ ذَاتِ السَّلَاسِلِ قَالَ فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ أَيُّ النَّاسِ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ عَائِشَةُ قُلْتُ مِنَ الرِّجَالِ قَالَ أَبُوهَا قُلْتُ ثُمَّ مَنْ قَالَ عُمَرُ فَعَدَّ رِجَالًا فَسَكَتُّ مَخَافَةَ أَنْ يَجْعَلَنِي فِي آخِرِهِمْ [ر: ۳۴۶۲]

**د غزوه ذات السلاسل تاریخ وقوع:** ددې غزوې تفصیل دادې.چه رسول الله ﷺ ته داخبر ملاؤ شو. چه د بنی قضاعه قبیلې یو جماعت په مدینه منوره باندې د حملې اراده لری.په دې

---

۱) عمدة القاری (۱۲\۱۱۸)_
۲) فتح الباری (۷\۲۱۸) معجم البلدان (۳\۲۳۳)_
۳) اوګورئ:فتح الباری (۷\۲۶) کتاب المناقب ابواب فضائل ابی بکر والسیرة الحلبیة (۳\۱۹۰) خویه دې دواړو کتابونوکښې قاضی عیاض طرف ته دا قول نه دې منسوب کړې شوې.بلکه،،قبل،، سره نقل کړې شوې دې.دهغوی نه علاوه احقر په ډیرو کتابونوکښې تلاش اوکړو.خو ملاؤ نه شو.والله اعلم.
۴) عمدة القاری (۱۲\۱۱۸)_
۵) عمدة القاری (۱۲\۱۱۸)_

خبر اوریدو سره نبیﷺ د حضرت عمرو بن العاص په مشرئ کښې د دریو سوو سړو یوجماعت ذات السلاسل مقام طرف ته اولیګه.(١) کله چه د صحابوﷺ دا جماعت د دشمن علاقې ته نزدې اورسیده.نو معلومه شوه.چه د دشمنانو تعداد زیات دې.په دې وجه صحابوﷺ رافع بن مکیثﷺ د رسول اللهﷺ په خدمت کښې اولیګه.چه د مدد دپاره نور سړی راولیګی.(٢) رسول اللهﷺ حضرت ابوعبیده بن الجراحﷺ امیرجوړ کړو.اودوه سوه سړی ئې د مدد دپاره اولیګل.چه په هغوی کښې حضرت ابوبکر او حضرت فاروق اعظمﷺ هم وو.او دا نصیحت ئې ورته اوفرمائیلو.چه عمرو بن العاص سره ملاؤ شئ.او خپل منځ کښې متفق اوسیږئ.دهر قسمه اختلاف نه ځان ساتئ.(٣) حضرت ابوعبیدهﷺ چه کله هلته اورسیده.او دمونځ وخت راغې.نو هغوی امامت کول اوغوښتل. حضرت عمروﷺ اووئیل.چه امیر د لښکر خو زه یم.ته خو زما د مدد دپاره راغلې یې.مونځ به زه ورکوم. ابوعبیدهﷺ اووئیل.چه ته د خپل جماعت امیر یې.او زه د خپل جماعت امیر یم.خو بیا د رسول اللهﷺ د حکم مطابق د اختلاف نه بچ کیدو دپاره حضرت ابوعبیدهﷺ د حضرت عمرو بن العاصﷺ اطاعت اوکړو.اووې فرمائیل.چه زه به ستا اطاعت کوم.اګرچه ته زما مخالفت کوې.(٤) بیا صحابوﷺ په یوځائې حمله اوکړه.او بنو قضاعه اوبریدل.او اوتختیدل .صحابوﷺ په دشمن پسې کیدل اوغوښتل.خو حضرت عمروﷺ منع کړل.(٥) په دې غزوه کښې حضرت عمروﷺ صحابه د اور بلولو نه هم منع کړی وو.د یخنئ زمانه وه. حضرت صدیقﷺ او حضرت فاروقﷺ په دې سلسله کښې هغوی سره خبره اوکړله.خو هغوی اووئیل.که چا اور بل کړو.نوزه به هغه هم په هغه اورکښې غورځوم.دغه شان یوه ورځ حضرت عمروبن العاصﷺ ته احتلام اوشو.نودسحرهغوی تیمم اوکړو.اومونځ ئې ورکړو.(٦) صحابه چه کله مدینې منورې ته واپس راغلل.نو د حضرت عمرو بن العاصﷺ دا درې واړه خبرې ئې رسول اللهﷺ ته بیان کړلې.نبیﷺ دهغه نه تپوس اوکړو.نوهغه اووئیل.چه اې د الله رسوله! دشمن پسې کیدلو نه ما په دې وجه منع کړی وو.چه ماته ویره وه.چه چرته داسې اونشی.چه مونږ هغوی پسې شو.او وړاندې دهغوی د مدد دپاره نور خلق موجود وی.نو هسې بیسه به مونږ ته نقصان راپیښ شی.او د اور بلولو نه ما ځکه منع کړی وو.چه هسې نه دشمنان اور بل اووینی.او ددې په ذریعه هغوی ته زمونږ د کموالی اندازه اونشی.(٧) او د احتلام نه پس ما تیمم کولو سره مونځ ځکه ورکړو.چه سخته یخنی وه.او په

---

١) طبقات ابن سعد(١٣١١٢)_
٢) طبقات ابن سعد (١٣١١٢) والسيرة النبوية والآثار المحمدية(٢٣٣١٢)_
٣) سيرة ابن هشام مع الروض الانف (٣٥٩١٢)_
٤) الكامل لابن اثير(١٥٦١٢)_
٥) فتح البارى(٧٥١٨)_
٦) فتح البارى(٧٥١٨) والسيرة النبوية والآثار المحدية(٢٣٢١٢)_
٧) السيرة النبوية والآثار المحمدية(٢٣٢١٢)_

غسل كولو سره ماته د خپل ژوند خطره محسوسيده.او د الله ﷻ ارشاد دې. ﴿وَلَا تَقْتُلُوٓا اَنْفُسَكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا﴾(١) نبى كريم ﷺ چه دا واوريدل.نو تبسم ئې اوكړو.اوهغه ته ئې هيڅ اونه فرمائيل.(٢)

چونكه په دې سريه كښې لوئې لوئې صحابه هم دحضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د مشرئ لاندې وو.په دې وجه هغه ته دا خيال اوشو.چه هغه رسول الله ﷺ ته په صحابو رضي الله عنهم كښې د ټولو نه زيات محبوب دې.نوهغه د نبى عليه السلام نه تپوس اوكړو.«ائ الناس احب اليك؟» په خلقو كښې تاسو ته دټولو نه زيات څوك محبوب دې؟ نبى عليه السلام اوفرمائيل.،،عائشة،، هغه عرض اوكړو.،،من الرجال؟،، په سړو كښې څوك دې؟ نبى عليه السلام اوفرمائيل.،،ابوها،، يعنى صديق اكبر رضي الله عنه، هغه عرض اوكړو.،،ثم من؟،، نبى عليه السلام اوفرمائيل.،،عمر،، دغه شان هغه ډير نومونه اوشميرل.بيا په دې ويره خاموش شو.چه چرته دهغه نوم دټولو په آخر كښې رانه شى.

فائده: عامو اهل سيرغزوة ذات السلاسل په مياشت د جمادى الثانى ٨ھ كښې ګرځولې ده.بعضو وئيلى دى.چه دا غزوه په سن٧ھ كښې واقع شوې ده.(٣) امام بخارى رحمه الله داد ١٠ھ په واقعاتوكښې ذكركړې ده.خو لكه څنګه چه ما عرض اوكړو.چه امام بخارى رحمه الله د غزواتو او سير د تاريخى ترتيب څه خاص اهتمام نه دې كړې.او ډير وخته په تاريخ د وقوع كښې دهغه رائې هم د عامو اهل سير نه مختلف وى.

## بَابُ ذَهَابُ جَرِيرٍ إِلَى الْيَمَنِ

[٤١٠١] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْعَبْسِيُّ حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيرٍ قَالَ كُنْتُ بِالْيَمَنِ فَلَقِيتُ رَجُلَيْنِ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ ذَا كَلَاعٍ وَذَا عَمْرٍو فَجَعَلْتُ أُحَدِّثُهُمْ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ ذُو عَمْرٍو لَئِنْ كَانَ الَّذِي تَذْكُرُ مِنْ أَمْرِ صَاحِبِكَ لَقَدْ مَرَّ عَلَى أَجَلِهِ مُنْذُ ثَلَاثٍ وَأَقْبَلَا مَعِي حَتَّى إِذَا كُنَّا فِي بَعْضِ الطَّرِيقِ رُفِعَ لَنَا رَكْبٌ مِنْ قِبَلِ الْمَدِينَةِ فَسَأَلْنَاهُمْ فَقَالُوا قُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتُخْلِفَ أَبُو بَكْرٍ وَالنَّاسُ صَالِحُونَ فَقَالَا أَخْبِرْ صَاحِبَكَ أَنَّا قَدْ جِئْنَا وَلَعَلَّنَا سَنَعُودُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ وَرَجَعَا إِلَى الْيَمَنِ فَأَخْبَرْتُ أَبَا بَكْرٍ بِحَدِيثِهِمْ قَالَ أَفَلَا جِئْتَ بِهِمْ فَلَمَّا كَانَ بَعْدُ قَالَ لِي ذُو عَمْرٍو يَا جَرِيرُ إِنَّ بِكَ عَلَيَّ كَرَامَةً وَإِنِّي مُخْبِرُكَ خَبَرًا إِنَّكُمْ مَعْشَرَ الْعَرَبِ لَنْ تَزَالُوا

(١) سورة النساء:٢٩)_
(٢) سنن ابى داؤد كتاب الطهارة باب اذا خاف الجنب البردا يتيمم(٩٢١١) رقم الحديث (٣٣٤)_
(٣) عمدة القارى(١٢١١٨)_

بِخَيْرٍ مَا كُنْتُمْ إِذَا هَلَكَ أَمِيرٌ تَأَمَّرْتُمْ فِي آخَرَ فَإِذَا كَانَتْ بِالسَّيْفِ كَانُوا مُلُوكًا يَغْضَبُونَ غَضَبَ الْمُلُوكِ وَيَرْضَوْنَ رِضَا الْمُلُوكِ

رسول الله ﷺ یو ځل حضرت جریر بن عبدالله رضی الله عنه یمن طرف ته د ذوالخلصه ورانولو دپاره لیګلې وو.چه دهغې واقعه تیره شوه.دا په دویم ځل نبی علیه السلام هغه د دین د تبلیغ دپاره لیګلې وو.دا د حجة الوداع نه د روستو واقعه ده.

د طبرانی په روایت کښې دی.چه حضرت جریر رضی الله عنه اوفرمائیل.نبی کریم ﷺ زه د یمن خلقو طرف ته اولیګلم.چه زه هغوی ته د دین اسلام دعوت ورکړم.اوکه هغوی د دعوت نه انکار اوکړی.نوهغوی سره جهاد اوکړم.(۱)

د ابن عساکر په روایت کښې دی.چه حضرت جریر رضی الله عنه لره رسول الله ﷺ دوه با اثره سړو ته د اسلام دعوت ورکولو دپاره لیګلې وو.چه په هغوی کښې د یوسړی نوم،،ذوکلاع،،او د دویم نوم ،،ذوعمرو،، وو.(۲) ممکن ده.چه نبی علیه السلام خصوصیت سره هغوی دواړو ته د اسلام دعوت ورکولو دپاره حضرت جریر رضی الله عنه ته وئیلی وی.او ورسره ئې د یمن عامو خلقو ته د اسلام د دعوت کار دپاره هم وئیلی وی.

حضرت جریر رضی الله عنه هغوی دواړو ته د اسلام دعوت ورکړو.او دواړو اسلام قبول کړو.او دواړه حضرت جریر رضی الله عنه سره مدینې منورې ته د رسول الله ﷺ د زیارت دپاره روان شو.هغه هغوی دواړو ته د رسول الله ﷺ خبرې بیان کړې.نوپه دې باندې حضرت جریر رضی الله عنه ته ،،ذوعمرو،، اووئیل.«لئن كان الذى تذكر من امر صاحبك لقد مرّ على اجله منذ ثلاث» هغه خبرې کومې چه ته د خپل صاحب په باره کښې بیانوې .که هغه صحیح او ټیک وی.نو دهغه د مرګ بیا درې ورځې تیرې شوی دی.

دلته داسوال پیداکیږی.چه ذوعمرو دا خبره څنګه اوکړه؟ بعضې حضرات وائی.چه دا خبره هغه د یهودو د مخکنو کتابونو په حوالې سره بیان کړله.هغه د یهودو د کتابونو نه خبر وو.(۳) خو د حضرت انورشاه کشمیری رحمه الله رائې داده.چه دغه سړې کاهن وو.او دخپل کهانت په ذریعه هغه معلومه کړه.چه د رسول الله ﷺ وفات شوې دې.حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی.چه ددې نه دا خبره هم معلومه شوه.چه د کاهن پخپله خپله خبره باندې یقین نه وی.ځکه چه ذوعمرو دا هم وائی.چه د رسول الله ﷺ وفات شوې دې.او ددې باوجود جریر رضی الله عنه سره سفرهم کوی.چه ممکن ده. لاقات اوشی.او وفات شوې نه وی.(۴)

---

۱) عمدة القاری(۱۳\۱۸)_

۲) فتح الباری(۷۶\۸)_

۳) فتح الباری(۷۶\۸)_

۴) فیض الباری (۱۲۱\٤) خو ابن عبدالبر په الاستیعاب کښې لیکلی دی.چه ذوعمرو خوب اولیده.چه په دې سره هغه ته معلومه شوه.چه د رسول الله ﷺ وفات شوې دې.اوګورئ! الاستیعاب لابن عبدالبر(۱۱\٤٩٠) علی هامش الاصابة)_

حضرت جرير رضي الله عنه فرمائي چه اوس لا مونږ په لاره كښې وو.چه د مدينې منورې نه يو څو حضرات راتلونكي په نظر راغلل.دهغوى نه مونږ تپوس اوكړو.نو هغوى اوونيل.چه نبى عليه السلام وفات شوې دې.او ابوبكر رضي الله عنه خليفه جوړكړې شوې دې.او هيڅ ګړبړ نشته.خلق ټيك دى. هيڅ انتشار نشته.په دې خبر اوريدو سره ذوكلاع او ذوعمر دواړو حضرت جرير رضي الله عنه ته اوونيل.چه خپل صاحب يعنى حضرت صديق رضي الله عنه ته اووايه.چه مونږ(د رسول الله صلى الله عليه وسلم ملاقات دپاره) راغلى وو.او چونكه دهغه وفات شوې دې.په دې وجه مونږه اوس واپس خو.بيا به انشاءالله راشو.نو دواړه يمن ته واپس لاړل.حضرت صديق رضي الله عنه ته حضرت جرير رضي الله عنه دا واقعه واوروله.نوهغوى اوونيل چه تا هغوى د ځان سره يوځائې ولې رانهٔ وستل.بيا څه موده پس د حضرت جرير رضي الله عنه ذوعمرو سره ملاقات اوشو.غالباً دا د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت زمانه وه.(1) نو ذوعمرو حضرت جرير رضي الله عنه ته اوونيل.اې جريرا ستا په ما باندې احسان دې.(چه ستا په وجه ماته الله تعالى د اسلام دولت رانصيب كړو) په دې وجه زه تاته يوه خبره بنايم.

**قوله**: انكم معشر العرب، لن تزالوا بخير ما كنتم اذا هلك امير، تامّرتم فى آخر، فاذا كانت بالسيف، كانوا ملوكاً يغضبون غضب الملوك، ويرضون رضا الملوك: تاسو عرب خلق به مسلسل خير سره اوسيږئ.تركومې پورې چه تاسو د يو امير نه پس د بل امير انتخاب خپل منځ كښې مشورې سره كوئ.خوكله چه اقتدار باندې قبضه د تورې په ذريعه سره اوشى.نو بيا به په تاسو كښې بادشاهت راشى.د بادشاهانو پشان به غصه كيږئ.او د بادشاهانو پشان به راضى كيږئ.،

يعنى لكه څنګه چه بادشاهان په نه څه خبره باندې خفه كيږى.او په معمولى شان خبره باندې خوشحاليږى.نه دهغوى د خفګان څه اعتماد وى.او نه د هغوى د خوشحالئ څه اعتبار وى.دا حالت به په تاسوكښې هم راشى.او هم دغه شان اوشوه.

**فائده: ذوكلاع او ذوعمرو**: واقدى په ډيرو اسانيدو سره دا خبره نقل كړې ده.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت جرير رضي الله عنه لره ذوكلاع او ذوعمرو خواته يمن ته ليګلې وو.دا دهغه ځائې لوئې با اثره او رعب والا خلق وو.حضرت جرير رضي الله عنه هغوى ته د اسلام دعوت وركړو.اوهغوى مسلمانان شو.(2) د بخارى د روايت نه دا هم معلومه شوه.چه هغوى ته (نبى صلى الله عليه وسلم سره) د صحبت شرف حاصل نه شو.ذوكلاع د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه كښې مدينې منورې ته راغلې وو.(3) ابن عبدالبر ليكلى دى.چه د حضرت عمر رضي الله عنه نه هغه د حديثو روايت هم كوى.په جنګ صفين كښې دحضرت معاويه رضي الله عنه دطرفه قتال كښې شريك شو.اوهلته شهيد شو.(4)

---

1) فتح البارى (٧٧/٨)_
2) اوګورئ: الاصابة فى تمييز الصحابة (٤٩٢/١)_
3) عمدة القارى (١٤/١١٨)_
4) تفصيل دپاره اوګورئ! الاستيعاب لابن عبدالبر (٤٨٥/١-٤٨٧) على هامش الاصابة)_

# بَابِ غَزْوَةُ سِيفِ الْبَحْرِ

## وَهُمْ يَتَلَقَّوْنَ عِيرًا لِقُرَيْشٍ وَأَمِيرُهُمْ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

سيف رپه كسرې د سين سره) غاړې (طرف) ته وائي.د قريشو په قافلې باندې د حملې كولو په غرض سره دا جماعت د سمندر د غاړې په طرف تلې وو.په دې وجه دې ته ،،غزوة سيف البحر،، وائي.(١)

رسول الله ﷺ درې سوه صحابه رضي الله عنهم دحضرت ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه په مشرئ كښې دې مقصد دپاره ليګلې وو.د ابن سيدالناس (٢)ابن سعد (٣)او د مغازی د اكثرو اصحابو رائې داده.چه غزوة سيف البحر په رجب ٨ھ كښې پيښه شوې ده. و په دې باندې اشكال دادې.چه د رجب ٨ھ زمانه د فتح مكې نه وړاندې د صلح حديبيه زمانه ده.او د صلح په زمانه كښې د مسلمانانو د قريشوپه قافله باندې داسې قسمه لښكرو سره حمله كول،د صلح د معاهدې خلاف ورزی ده.چه د رسول الله ﷺ د اصحابو نه داسې كار كول دعقل نه لرې خبره ده.په دې وجه د حافظ ابن قيم(٤)او د حافظ ابن كثير(٥)رائې داده.چه غزوة سيف البحر د صلح حديبيه نه مخكښې پيښه شوې ده.

حافظ ولی الدين عراقی رحمه الله په شرح تقريب كښې د ابن سيدالناس او ابن سعد رحمهما الله روايت راجح ګرځولې دې.چه دا د رجب ٨ھ واقعه ده.او د صلح دمعاهدې خلاف ورزئ په حوالې سره د وارد شوی اعتراض هغه دا جواب وركړې دې.چه د رجب٨ھ پورې د صلح حديبيه د معاهدې خلاف ورزی پخپله قريشو كړې وه.بنوبكر د بنوخزاعه خلاف اقدام كړې وو.او قريشو د صلح د معاهدې خلاف ورزی كړې وه.او د بنوبكر مدد كولوسره ئې صلح ماته كړې وه.په دې وجه د رجب ٨ھ دا زمانه، د صلح زمانه نه وه.چه د صلح د شرائطو پابندی ضروری ګرځولو سره اشكال اوكړې شی.

حافظ ابن حجر رحمه الله يوه بله خبره ليكلې ده.چه نبی كريم ﷺ د دريو سوو سړو دا جماعت د قريشو په قافلې باندې د حملې كولو دپاره نه وو ليګلې.بلكه دهغوی د حفاظت دپاره ئې ليګلې وو.د قريشو تجارتی قافله راروانه وه.او هغه به د جهينه قبيلې په علاقې باندې تيريدله.د جهينه خلق د لوټ مار عادتی وو.خطره وه.چه هغوی چرته د قريشو قافله لوټ نكړی.په دې وجه رسول الله ﷺ د حضرت ابوعُبيده بن الجراح رضي الله عنه په مشرئ كښې درې

---

(١) عمدة القاری(١٥\١٨)_

(٢) زاد المعاد(٣٨٩\٣)_

(٣) طبقات ابن سعد(١٣٢\٢) او ابن اثيرهم د٨ھ په واقعاتو كښې دا ذكركړې ده.(اوګورئ! الكامل لابن اثير(١٥٧\٢)_

(٤) زاد المعاد(٣٩٠\٣) فصل فی سرية الخبط)_

(٥) البداية والنهاية(٢٧٧\٤)_

سوه صحابه رضی الله عنهم دهغې دحفاظت دپاره اولیګل.(۱)
مولانا شبلی نعمانی مرحوم دحافظ په دې بیان باندې اعتماد کړې دې.(۲) خو علامه قسطلانی، زرقانی، واقدی، ابن سعد او شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمهم الله ټول حضرات فرمائی.چه دا سریه نبی علیه السلام د قریشو لوټ کولو دپاره لیګلې وه.(۳) والله اعلم.
امام بخاری رحمه الله درې حدیثونه په دې باب کښې نقل کړی دی.چه په هغې کښې ددې غزوې په باره کښې تفصیلات دی.

[۴۱۰۲،۴۱۰۳] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ قَالَ لما بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْثًا قِبَلَ السَّاحِلِ وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ وَهُمْ ثَلَاثُ مِائَةٍ فَخَرَجْنَا وَكُنَّا بِبَعْضِ الطَّرِيقِ فَنِيَ الزَّادُ فَأَمَرَ أَبُو عُبَيْدَةَ بِأَزْوَادِ الْجَيْشِ فَجُمِعَ فَكَانَ مِزْوَدَيْ تَمْرٍ فَكَانَ يَقُوتُنَا كُلَّ يَوْمٍ قَلِيلاً قَلِيلاً حَتَّى فَنِيَ فَلَمْ يَكُنْ يُصِيبُنَا إِلَّا تَمْرَةٌ تَمْرَةٌ فَقُلْتُ مَا تُغْنِي عَنْكُمْ تَمْرَةٌ فَقَالَ لَقَدْ وَجَدْنَا فَقْدَهَا حِينَ فَنِيَتْ ثُمَّ انْتَهَيْنَا إِلَى الْبَحْرِ فَإِذَا حُوتٌ مِثْلُ الظَّرِبِ فَأَكَلَ مِنْهَا الْقَوْمُ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ لَيْلَةً ثُمَّ أَمَرَ أَبُو عُبَيْدَةَ بِضِلَعَيْنِ مِنْ أَضْلَاعِهِ فَنُصِبَا ثُمَّ أَمَرَ بِرَاحِلَةٍ فَرُحِلَتْ ثُمَّ مَرَّتْ تَحْتَهُمَا فَلَمْ تُصِبْهُمَا

دحضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه نه روایت دی.چه رسول الله ﷺ د سمندر غاړې طرف ته یو لښکر اولیږلو.حضرت ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه ئې د لښکر امیر جوړ کړو .اوس مونږ په لاره کښې وو.چه توښه ختمه شوه.حضرت ابوعبیده رضی الله عنه لښکر ته اووئیل.چه دچا سره کوم څه دی. هغه دې راوړی.ټول راجمع کړې شو.«فکان مزودی تمر»(۴) نو دوه تهیلئ د کجورو راجمع شوې.اوس به هغه مونږ ته روزانه لږې لږې کجورې راکولې.تردې چه هغه هم ختمیدو ته نزدې شوې.نو یوه یوه کجوره به ملاویده.«فقلت: ما تغنی عنکم تمرة؟» وهب بن کیسان حضرت جابر رضی الله عنه ته اووئیل.په یوې کجورې به تاسو ته څه فائده کیدله؟ حضرت جابر رضی الله عنه اوفرمائیل. «لقد وجدنا فقدها حین فنیت» دا یوه کجوره نه ملاویدل مونږ هغه وخت محسوس کړل.کله چه دهغې ملاویدل هم بند شو.بیا کله چه مونږ دسمندر غاړې ته اورسیدو.«فإذا حوت مثل الظرب»(۵) هلته د وړوکی غر (غونډئ) پشان یو کب ملاوشو.خلقو اتلسو ورځو پورې دهغې غوښه اوخوړه.ظرب وړوکی غر ته وائی.

---

۱) فتح الباری(۷۸۱۸)_
۲) سیرت النبی ﷺ (۳٤۱۱۱)_
۳) دحافظ ابن حجر رحمه الله نه علاوه په اهل مغازی کښې چاهم نه دی لیکلی.چه دا قافله د قریشو د حفاظت دپاره نبی علیه السلام لیګلې وه_
۴) المزود(بکسر المیم وسکون الزای) ما یجعل فیه الزاد (فتح الباری(۷۹۱۸)_
۵) الظرب (بفتح الظاء وکسر الراء) الجبل الصغیر(وانظر: العمدة (۱۵۱۱۸)_

بيا دحضرت ابوعبيده رضي الله عنه په حكم سرد دهغې د پوښتو دوه هډوكى اودرولې شو.او د لښكر دټولو نه اوږد قد والا سړې په اوښه باندې كيناسته.او دهغې لاندې تيرشو.خو دهغه سر هغه پوښتو پورې اونه رسيده.( په ړومبى روايت كښې صرف د اوښ تيريدو ذكردې.په دويم روايت كښې په اوښ باندې د ناست اوږد قد والا سړى د تيريدو ذكر دې).

او امام مسلم رحمه الله په دې قصه كښې روايت نقل كړې دې.په هغې كښې دى.چه ددې كب په يو ستركه كښې حضرت ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه ديارلسو سړو ته دكيناستلو حكم وركړو.نو هغه ديارلس سړى دهغې په ستركه كښې راځائې شو.(١)

[٤١٠٣] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الَّذِي حَفِظْنَاهُ مِنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ مِائَةِ رَاكِبٍ أَمِيرُنَا أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ نَرْصُدُ عِيرَ قُرَيْشٍ فَأَقَمْنَا بِالسَّاحِلِ نِصْفَ شَهْرٍ فَأَصَابَنَا جُوعٌ شَدِيدٌ حَتَّى أَكَلْنَا الْخَبَطَ فَسُمِّيَ ذَلِكَ الْجَيْشُ جَيْشَ الْخَبَطِ فَأَلْقَى لَنَا الْبَحْرُ دَابَّةً يُقَالُ لَهَا الْعَنْبَرُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ نِصْفَ شَهْرٍ وَادَّهَنَّا مِنْ وَدَكِهِ حَتَّى ثَابَتْ إِلَيْنَا أَجْسَامُنَا فَأَخَذَ أَبُو عُبَيْدَةَ ضِلَعًا مِنْ أَضْلَاعِهِ فَنَصَبَهُ فَعَمَدَ إِلَى أَطْوَلِ رَجُلٍ مَعَهُ قَالَ سُفْيَانُ مَرَّةً ضِلَعًا مِنْ أَضْلَاعِهِ فَنَصَبَهُ وَأَخَذَ رَجُلًا وَبَعِيرًا فَمَرَّ تَحْتَهُ قَالَ جَابِرٌ وَكَانَ رَجُلٌ مِنْ الْقَوْمِ نَحَرَ ثَلَاثَ جَزَائِرَ ثُمَّ نَحَرَ ثَلَاثَ جَزَائِرَ ثُمَّ نَحَرَ ثَلَاثَ جَزَائِرَ ثُمَّ إِنَّ أَبَا عُبَيْدَةَ نَهَاهُ وَكَانَ عَمْرٌو يَقُولُ أَخْبَرَنَا أَبُو صَالِحٍ أَنَّ قَيْسَ بْنَ سَعْدٍ قَالَ لِأَبِيهِ كُنْتُ فِي الْجَيْشِ فَجَاعُوا قَالَ انْحَرْ قَالَ نَحَرْتُ قَالَ ثُمَّ جَاعُوا قَالَ انْحَرْ قَالَ نَحَرْتُ قَالَ ثُمَّ جَاعُوا قَالَ انْحَرْ قَالَ نَحَرْتُ ثُمَّ جَاعُوا قَالَ انْحَرْ قَالَ نُهِيتُ

**قوله**: فَأَصَابَنَا جُوعٌ شَدِيدٌ حَتَّى أَكَلْنَا الْخَبَطَ فَسُمِّيَ ذَلِكَ الْجَيْشُ جَيْشَ الْخَبَطِ:

د،،خبط،، نه د وونو پاڼې مراد دى.يعنى د سختې ولږې په وجه مونږ د وونو پاڼې اوخوړې.چه دهغې په وجه ددې لښكر نوم ،،جيش الخبط،، مشهورشو.

**قوله**: فَأَلْقَى لَنَا الْبَحْرُ دَابَّةً يُقَالُ لَهَا الْعَنْبَرُ: زهرى رحمه الله نقل كړى دى.چه عنبر په لويو سمندرونو كښې يوكب وى.چه دهغې اوږدوالې پنځوس لاسه برابر وى.(٢) عنبر خوشبو ته هم وائى.ددې متعلق ونيلى شوى دى.چه دا ددغه كب فضله (گندگى) وى.(٣) ابن سينا ونيلى دى. چه عنبر خوشبو په سمندركښې پيداكيږى.د سمندر يو خاص قسم ځناور دغه خوشبو خورى.خو ځنگه چه هغه دا (خوشبو) اوخرى.نو مړكيږى.او بيا سمندر دغه ځناور بهر ته راغورځوى.دهغې د خيټې نه بيا دغه خوشبو راوځى.(٤)

١) صحيح مسلم كتاب الصيد والذبائح باب اباحة ميتات البحر)_
٢) فتح البارى(٨٠١٨)_
٣) فتح البارى(٨١١٨)_
٤) فتح البارى(٨١١٨)_

**قوله**: وَكَانَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ نَحَرَ ثَلَاثَ جَزَائِرَ: په قوم کښې يو سړي وو.چه هغه درې اوښان ذبح کړل.دا قيس بن سعد بن عباده رضي الله عنه وو.بيا په دويمه او دريمه ورځ هم هغه درې درې اوښان ذبح کړل.بيا د نورو اوښانو ذبح کولو نه حضرت ابوعبيده رضي الله عنه هغه منع کړو.

په سيرت حلبيه کښې روايت نقل کړې دې.چه کله حضرت قيس بن سعد رضي الله عنه اوکتل.چه خلق د الله په لاره کښې جهاد دپاره راغلي دي.او د ولږې د سختئ دا حال دې.چه خلق پاڼړې خوري.او ګزاره کوي.نو په هغه دا حالت ليدل ګران شو. او هغه د سمندر د غاړې دخلقو نه په قرض باندې اوښان اخستل او ذبح کول ئې شروع کړل.حضرت ابوعبيده رضي الله عنه هغه ته اوونيل.چه رقم خو ستا سره نشته.په قرض باندې ته اوښان اخلې.او ذبح کوې.دا قرض به د کوم ځائې نه ورکوې.حضرت قيس بن سعد رضي الله عنه اوونيل.چه زمونږ په کورکښې مال شته.دهغې نه به قرض اداکړم.حضرت ابوعبيده رضي الله عنه اوفرمائيل.چه هغه خو ستا د پلار دې.نو قيس اوونيل .چه زما پلار د پردو حاجتمندو او غريبانانو امداد کوي.نوکه زه قرضدار شم.نو آيا زما امداد به نه کوي؟ حضرت ابوعبيده رضي الله عنه دهغه په خبرو متاثره شو.او لږ نرمى ئې اختيار کړله.خو حضرت عمر رضي الله عنه اوونيل.چه بالکل نه، دې به بالکل منع کولې شي.نو حضرت ابوعبيده رضي الله عنه هغه منع کړو.مدينې منورې ته د واپس راتلو نه پس حضرت قيس بن سعد رضي الله عنه خپل پلار ته دا واقعه واوروله.نو حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه اوفرمائيل.چه د فلانى ځائې څلور باغونه زه ستا په نوم کوم.چه که بيا دپاره داسې صورت درپيښ شي.چه ته دا وئيلې شې.چه ما سره څلور باغونه دي.او په داسې قسمه دخير په کارونو کښې ستانه روستووالې اونه شي.کله چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ددې واقعې خبر اوشو.نو نبي عليه السلام اوفرمائيل.دا کورنئ د سخاوت او جود کورنئ ده.هم دا خبره ددوی د شان سره لائق وه.(١)

[٤٣٦٣] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَمْرٌو أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ غَزَوْنَا جَيْشَ الْخَبَطِ وَأُمِّرَ أَبُو عُبَيْدَةَ فَجُعْنَا جُوعًا شَدِيدًا فَأَلْقَى الْبَحْرُ لَنَا حُوتًا مَيِّتًا لَمْ نَرَ مِثْلَهُ يُقَالُ لَهُ الْعَنْبَرُ فَأَكَلْنَا مِنْهُ نِصْفَ شَهْرٍ فَأَخَذَ أَبُو عُبَيْدَةَ عَظْمًا مِنْ عِظَامِهِ فَمَرَّ الرَّاكِبُ تَحْتَهُ فَأَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا يَقُولُ قَالَ أَبُو عُبَيْدَةَ كُلُوا فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ ذَكَرْنَا ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كُلُوا رِزْقًا أَخْرَجَهُ اللَّهُ أَطْعِمُونَا إِنْ كَانَ مَعَكُمْ فَأَتَاهُ بَعْضُهُمْ فَأَكَلَهُ [ر:٢٣٥١]

**قوله**: فَأَكَلْنَا مِنْهُ نِصْفَ شَهْرٍ: په رومبى روايت کښې اتلس ورځې راغلې وې.او په دې روايت کښې د پنځلسو ورځو ذکر دې.په دې روايت کښې کسر حذف کړې شو.

.......

١) فتح البارى(٨٠/٨)_

# بَاب حَجّ أَبِي بَكْرٍ بِالنَّاسِ فِي سَنَةِ تِسْعٍ

[۴۱۰۵] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ أَبُو الرَّبِيعِ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ الصِّدِّيقَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بَعَثَهُ فِي الْحَجَّةِ الَّتِي أَمَّرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهَا قَبْلَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ يَوْمَ النَّحْرِ فِي رَهْطٍ يُؤَذِّنُ فِي النَّاسِ أَنْ لَا يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلَا يَطُوفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ [ر: ۳۶۲]

**دا حج په کوم سن کښې شوې وو؟**: نبی کریم ﷺ په ۹ھ کښې حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه د حج امیرمقرر کړو.او مکې مکرمې ته ئې اولیګه.په دې کښې خو هیڅ اختلاف نشته.چه دا لیږل په ۹ھ کښې اوشو. البته په دې کښې روایات مختلف دی.چه دا حج په ذی قعده کښې اوشو.اوکه د ذی الحجة په میاشت کښې.د ابن سعد[۱]ازرقی او ابن اسحاق وغیره رائې داده.چه دا د ذی الحجې په میاشت کښې شوې دې.په مفسرینو کښې د ثعلبی او رمانی رائې هم داده.[۲] ازرقی په اخبار د مکې کښې صراحت سره دا لیکلی دی.چه دا حج په ذی الحجه کښې شوې دې.[۳] ابن اسحاق صراحت سره نه دی لیکلی.خو دهغوی دکلام نه هم دا ښکاره کیږی.چه دهغوی په رائې کښې هم دا حج په ذی الحجه کښې شوې دې. ځکه چه هغوی دا لیکلی دی.چه د غزوهٔ تبوک نه نبی کریم ﷺ واپس راغې.نو په شوال او ذی قعده میاشتو کښې د قیام کولو نه پس ئې حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه حج دپاره مکې ته اولیګه.چه ددې صفا مطلب دادې.چه په ذی الحجه کښې نبی علیه السلام هغه لیګلې وو.[۴]
مجاهد او دهغه بعضې متبعین وائی.چه دا حج په ذی قعده کښې شوې دې.[۵]

حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې لیکلی دی.((والمعتمد ما قاله مجاهد)) خو دلته د حافظ ابن حجر رحمه الله نه سهوه شوې ده.صحیح عبارت((والمعتمد خلاف ماقاله مجاهد)) کیدل پکاردې.دلیل ددې دادې.چه پخپله حافظ ددې سره روستو دا لیکلی دی.((وبه جزم الازرقی))[۶] حالانکه ازرقی د مجاهد په قول باندې جزم نه دې کړې.بلکه د هغه د قول خلاف ئې جزم (اعتماد) کړې دې.ځکه چه مجاهد په ذی قعده کښې ددې حج د واقع کیدو قائل دې.او ازرقی په ذی الحجه کښې ددې واقع کیدل منی.

---

[۱] طبقات ابن سعد(۱۶۸/۲)_
[۲] فتح الباری(۸۲/۸)_
[۳] اخبارمکة (۱۸۶/۱)_
[۴] سیرت ابن هشام (۳۲۷/۲)_
[۵] فتح الباری(۸۲/۸)_
[۶] فتح الباری(۸۲/۸)_

دغه شان حافظ ليكلي دي.«فذكر ابن سعد... ان حجة ابي بكر وقعت في ذي القعدة»[1] دا هم د قلم غلطي ده.خكه چه ابن سعد په طبقات كښې «في ذي الحجة» ليكلي دي.[2]
په دې حج كښې د مدينې منورې نه حضرت صديق رضي الله عنه سره درې سوه صحابه رضي الله عنهم تلي وو.رسول الله صلى الله عليه وسلم شل اوښان قرباني كولو دپاره ليګلي وو.[3] قرآن دې حج ته حج اكبر وئيلي دي.خكه چه دا رومبئ موقع وه.چه حج په اصل ابراهيمي سنت مطابق ادا شو.
د سورة براءت رومبي آيتونه په مشركانو كښې د عهد (لوظ نامې) ماتونكو په باره كښې نازل شوی وو.نبي عليه السلام حضرت صديق اكبر رضي الله عنه ته دحج په موقعه باندې ددې آياتونو د اعلان دپاره هم فرمائيلي وو.خو د حضرت صديق اكبر رضي الله عنه د روانيدو نه پس نبي عليه السلام ته دا خيال راغې.چه د عهد او عهد ماتولو په باره كښې دا اعلان حضرت علي رضي الله عنه اوكړي.نو زيات مناسب به وي.خكه چه د عربو د دستور مطابق به په داسې امورو كښې اعلان په خاندان او رشته دارانو كښې يوكس كولو.نو نبي عليه السلام حضرت علي رضي الله عنه راوغوښته.او پخپله اوښه ،،عضباء،، باندې ئې سوركړو.اوهغه ئې صديق اكبر رضي الله عنه پسې روستو اوليګه.حضرت صديق اكبر رضي الله عنه چه حضرت علي رضي الله عنه راتلونكې اوليده.نو تپوس ئې ترې اوكړو چه ،امير اومامور،، حضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل .مامور يم.او تفصيل ئې ورته بيان كړو.حضرت صديق اكبر رضي الله عنه په خلقو باندې حج اوكړو.په لسم تاريخ ئې خطبه وركړله.ددې نه پس حضرت علي رضي الله عنه اودريده.د سورة براءت آيتونه ئې تلاوت كړل. او اعلان ئې اوكړو.چه د نن نه پس به هيڅ مشرك كعبې ته نه داخليږي.او نه به څوك په بربنډه حج او طواف كوي.دچا چه رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د يو خاص مودې پورې عهد دې.هغه عهد به دهغې مودې پورې پوره كولې شي.او دچا سره چه څه عهدنشته.يا عهدشته.خوڅه موده مقرر نشته.هغه ته څلورو مياشتو پورې امن دې.كه په دې موده كښې هغه مسلمان شو.نو ډيره ښه ده.ګينې هغه به قتل كولې شي.[4]
**فائده: په دې حج د صديق اكبر رضي الله عنه دحج فريضه ساقط شوې وه اوكه نه؟** په دې حج سره د حضرت صديق رضي الله عنه دحج فريضه ساقط شوې وه اوكه نه؟ د حافظ ابن قيم رحمه الله رجحان دې طرف ته دې.چه په دې سره دهغه د حج فريضه نه وه ساقط شوې. بلكه دا فريضه رسول الله صلى الله عليه وسلم

---

[1] ايضاً -
[2] طبقات ابن سعد(۱۶۸/۲) خو ممكن ده.چه ابن سعد د طبقات نه علاوه بل خائې كښې ليكلي وي.چه په ذي قعده كښې دا حج واقع شوې دې.خكه چه حافظ ليكلي دي.چه ابن سعد د مجاهد نه نقل كړي دي.او په طبقات كښې ابن سعد د مجاهد نه نه دي نقل كړي.په دې وجه ډيره ممكن ده. چه په بل مقام كښې ابن سعد د مجاهد نه په ذي قعده كښې ددې واقع كيدل نقل كړي وي.والله اعلم.
[3] زاد المعاد(۵۹۳/۳) -
[4] تفصيل دپاره اوګورئ! زادالمعاد(۵۹۳/۳-۵۹۵) و طبقات ابن سعد(۱۶۸/۲-۱۶۹) وسيرت ابن هشام مع الروض الانف(۳۲۷/۲-۳۲۸) -

سره د حجة الوداع په ادا کولو سره پوره شوي وه.(۱)

[۴۰۰۶] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ آخِرُ سُورَةٍ نَزَلَتْ كَامِلَةً بَرَاءَةٌ وَآخِرُ سُورَةٍ نَزَلَتْ خَاتِمَةُ سُورَةِ النِّسَاءِ يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ [۴۳۲۹، ۴۳۷۷، ۴۳۶۳، ۶۳۶۳]

په دې به بحث انشاء الله په ،،کتاب التفسیر،، کښې کیږي.

## بَاب = وَفْدُ بَنِي تَمِيمٍ

[۴۰۰۷] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي صَخْرَةَ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزٍ الْمَازِنِيِّ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ أَتَى نَفَرٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اقْبَلُوا الْبُشْرَى يَا بَنِي تَمِيمٍ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ بَشَّرْتَنَا فَأَعْطِنَا فَرُئِيَ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ فَجَاءَ نَفَرٌ مِنَ الْيَمَنِ فَقَالَ اقْبَلُوا الْبُشْرَى إِذْ لَمْ يَقْبَلْهَا بَنُو تَمِيمٍ قَالُوا قَدْ قَبِلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ

امام بخاری رحمه الله ددې باب نه ،،سلسلة الوفود،، شروع کوی.رسول الله ﷺ چه کله مکه فتح کړله.نو د عربو دا شك او شبه ختمه شوه.چه نبی علیه السلام په حقه نبی دې اوکه نه؟ څکه چه د عربو قبائل په دې انتظار کښې وو.چه که دا رسول په قریشو باندې غالب راشي.او مکه مکرمه فتح کړي.نو دا په حقه رسول دې.نو د فتح مکې نه پس د عربو قبائل ډلې ډلې په اسلام کښې داخلیدل شروع شو.او د مختلفو قبیلو وفدونه نبیﷺ ته راتلل شروع شو.د وفدونو دا سلسله په ۹ هجری کښې شروع شوه.په دې وجه دې کال ته ،،سنة الوفود،، وائی.(۲) حافظ مغلطائی، حافظ عراقی، ابن سعد او دمیاطی ددې وفودو تعداد د شپیتو نه زیات خودلې دې.علامه قسطلانی رحمه الله ددې تعداد پنځه دیرش لیکلې دې. (۳)دبنو تمیم دا وفد په ۹ هجری کښې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوې وو.(۴)

---

۱) قال العلامه ابن القیم: واختلف فی حجة الصدیق هذه، هل هی التی اسقطت الفرض، او المسقطة هی حجة الوداع مع النبیﷺ؟ علی قولین اصحهما الثانی، والقولان مبنیان علی اصلین، احدهما هل کان الحج فرض قبل حجة الوداع اولا؟ والثانی هل کانت حجة الصدیق فی ذی الحجة، ام وقعت فی ذی القعدة من اجل النسئ الذی کان الجاهلیة، یؤخرون له الاشهر ویقدمونها؟ علی قولین والثانی قول مجاهد وغیره، وعلی هذا فلم یؤخر النبیﷺ الحج بعد فرضه عاماً واحداً، بل بادر الی الامتثال فی العام الذی فرض فیه، وهذا هو اللائق بهدیه وحالهﷺ ولیس بید من ادعی تقدم فرض الحج سنة ست او سبع او ثمان او تسع دلیل واحد، وغایة ما احتج به من قال فرض سنة ست، قوله تعالی ﴿ و اتموا الحج والعمرة لله ﴾ (البقرة:۱۹۶) وهی قد نزلت بالحدیبیة سنة ست، وهذا لیس فیه ابتداء فرض الحج و انما فیه الامر باتمامه اذا شرع فیه، فاین هذا من وجوب إبتدائه و آیة فرض الحج وهی قوله تعالی﴿ ولله علی الناس حج البیت من استطاع الیه سبیلاً ﴾ (آل عمران:۹۷) نزلت عام الوفود او آخر سنة تسع، (وانظر زاد المعاد:۳\۵۹۵)_

۲) فیض الباری(۴\۱۲۱)_

۳) تاریخ الخمیس (۲\۱۹۲)_

۴) طبقات ابن سعد۲\۱۶۰-۱۶۱)_

# بَاب

قَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ غَزْوَةُ عُيَيْنَةَ بْنِ حِصْنِ بْنِ حُذَيْفَةَ بْنِ بَدْرٍ بَنِي الْعَنْبَرِ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ بَعَثَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمْ فَأَغَارَ وَأَصَابَ ((مِنْهُمْ نَاسًا وَسَبَى مِنْهُمْ نِسَاءً)) [ر:٣٠١٨]

نبی کریم ﷺ د بنوتمیمو د یوې څانګې د ،،بنوعنبر،،مقابلې دپاره حضرت عیینه بن حصن رضي الله عنه ته د پنځوسو سړو جماعت ورکړو.او وې لیګه.بنوعنبر په بنو خزاعه باندې د شپې حمله کړې وه.په دې وجه دهغوی د ختمولو دپاره دا خلق لاړل.په هغوی ئې حمله اوکړه.یوولس سړی، یوولس ښځې او دیرش ماشومان ئې قید کړل.او نور مال غنیمت هم په قبضه کښې راغې.(١) د خپلو دغه سړو، ښځو او ماشومانو آزادولو دپاره د بنو تمیم سرداران د نبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شو. ابن سعد په ،،طبقات،،کښې لیکلی دی.چه دا د محرم ٩ھ واقعه ده.(٢)

[٣١٠٨] حَدَّثَنِي زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَا أَزَالُ أُحِبُّ بَنِي تَمِيمٍ بَعْدَ ثَلَاثٍ سَمِعْتُهُنَّ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُهَا فِيهِمْ هُمْ أَشَدُّ أُمَّتِي عَلَى الدَّجَّالِ وَكَانَتْ فِيهِمْ سَبِيَّةٌ عِنْدَ عَائِشَةَ فَقَالَ أَعْتِقِيهَا فَإِنَّهَا منهم مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ وَجَاءَتْ صَدَقَاتُهُمْ فَقَالَ هَذِهِ صَدَقَاتُ قَوْمٍ أَوْ قَوْمِي [ر:٢٤٠٥]

حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمائی.چه ماته د بنوتمیم سره د دریو خبرو معلومیدو نه پس محبت پیدا شو.یوه داچه ما د رسول الله ﷺ نه دهغوی په باره کښې دا خبره واوریده چه ((هم اشد امتی علی الدجال)) یعنی د دجال په مقابله کښې به زما په امت کښې د ټولو نه زیات سخت او مضبوط د بنوتمیم خلق وی.دویمه داچه دهغوی یوه ښځه حضرت عائشې رضي الله عنها سره قید وه.نو نبی علیه السلام اوفرمائیل.چه دا آزاده کړه.ځکه چه دا د حضرت اسمعیل علیه السلام د اولاد نه ده.او دریمه خبره دا ده. چه کله نبی کریم ﷺ ته د بنوتمیم صدقات راغلل.نو نبی علیه السلام اوفرمائیل.دا زما دقوم صدقات دی.ځکه چه په ،،الیاس بن مضر،، باندې پورته د رسول الله ﷺ او د بنو تمیم نسب ملاویږی.په دې وجه نبی علیه السلام اوفرمائیل. ،،دا زما د قوم صدقات دی،،

[٣١٠٩] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ أَخْبَرَهُمْ أَنَّهُ قَدِمَ رَكْبٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ أَمِّرِ الْقَعْقَاعَ بْنَ مَعْبَدِ بْنِ زُرَارَةَ قَالَ عُمَرُ بَلْ أَمِّرِ الْأَقْرَعَ بْنَ

---

(١) طبقات ابن سعد(١٢/١٦٠-١٦١)_
(٢) طبقات ابن سعد(١٢/١٦٠)_

حابس قال أبو بكر ما أردت إلا خلافي قال عمر ما أردت خلافك فتماريا حتى ارتفعت أصواتهما فنزل في ذلك يا أيها الذين آمنوا لا تقدموا حتى انقضت [٤٥٦٣، ٤٥٦٦، ٤٨٤٥، ٦٨٤٧]

ددې حديث پوره تفصيل به انشاء الله روستو دسورة الحجرات په تفسير كښې راځي.

# باب وفد عبد القيس

[٤١١٠/٤١١١] حدثني إسحاق أخبرنا أبو عامر العقدي حدثنا قرة عن أبي جمرة قلت لابن عباس رضي الله عنهما إن لي جرة ينتبذ لي نبيذ فيها فأشربه حلوا في جر إن أكثرت منه فجالست القوم فأطلت الجلوس خشيت أن أفتضح فقال قدم وفد عبد القيس على رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال مرحبا بالقوم غير خزايا ولا الندامى فقالوا يا رسول الله إن بيننا وبينك المشركين من مضر وإنا لا نصل إليك إلا في أشهر الحرم حدثنا بجمل من الأمر إن عملنا به دخلنا الجنة وندعو به من وراءنا قال آمركم بأربع وأنهاكم عن أربع الإيمان بالله هل تدرون ما الإيمان بالله شهادة أن لا إله إلا الله وإقام الصلاة وإيتاء الزكاة وصوم رمضان وأن تعطوا من المغانم الخمس وأنهاكم عن أربع ما انتبذ في الدباء والنقير والحنتم والمزفت

[٤١١١] حدثنا سليمان بن حرب حدثنا حماد بن زيد عن أبي جمرة قال سمعت ابن عباس يقول قدم وفد عبد القيس على النبي صلى الله عليه وسلم فقالوا يا رسول الله إنا هذا الحي من ربيعة وقد حالت بيننا وبينك كفار مضر فلسنا نخلص إليك إلا في شهر حرام فمرنا بأشياء نأخذ بها وندعو إليها من وراءنا قال آمركم بأربع وأنهاكم عن أربع الإيمان بالله شهادة أن لا إله إلا الله وعقد واحدة وإقام الصلاة وإيتاء الزكاة وأن تؤدوا لله خمس ما غنمتم وأنهاكم عن الدباء والنقير والحنتم والمزفت [ر: ٥٣]

[٤١١٢] حدثنا يحيى بن سليمان حدثني ابن وهب أخبرني عمرو وقال بكر بن مضر عن عمرو بن الحارث عن بكير أن كريبا مولى ابن عباس حدثه أن ابن عباس وعبد الرحمن بن أزهر والمسور بن مخرمة أرسلوا إلى عائشة رضي الله عنها فقالوا اقرأ عليها السلام منا جميعا وسلها عن الركعتين بعد العصر فإنا أخبرنا أنك تصليها وقد بلغنا أن النبي صلى الله عليه وسلم نهى عنهما قال ابن عباس وكنت أضرب مع عمر الناس عنهما قال كريب فدخلت عليها وبلغتها ما أرسلوني فقالت سل أم سلمة فأخبرتهم فردوني إلى أم سلمة بمثل ما أرسلوني إلى عائشة فقالت أم سلمة سمعت النبي صلى الله عليه وسلم ينهى عنهما وإنه صلى العصر ثم دخل علي وعندي نسوة من بني حرام من الأنصار فصلاهما فأرسلت إليه الخادم فقلت قومي إلى جنبه فقولي تقول أم سلمة يا رسول الله ألم أسمعك تنهى عن هاتين الركعتين فأراك تصليهما فإن أشار بيده فاستأخري ففعلت الجارية فأشار

بِيَدِهِ فَاسْتَأْخَرَتْ عَنْهُ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ يَا بِنْتَ أَبِي أُمَيَّةَ سَأَلْتِ عَنْ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ إِنَّهُ أَتَانِي أُنَاسٌ مِنْ عَبْدِ الْقَيْسِ بِالْإِسْلَامِ مِنْ قَوْمِهِمْ فَشَغَلُونِي عَنْ الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ فَهُمَا هَاتَانِ [ر:۱۱۷۶]

[۴۱۱۳] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ عَبْدُ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ هُوَ ابْنُ طَهْمَانَ عَنْ أَبِي جَمْرَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ أَوَّلُ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ بَعْدَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَسْجِدِ عَبْدِ الْقَيْسِ بِجُوَاثَى يَعْنِي قَرْيَةً مِنْ الْبَحْرَيْنِ [ر:۸۵۲]

**وفد عبدالقيس په كوم سن كښې راغې؟**: عبدالقيس ډيره لويه قبيله وه.د بحرين اوسيدونكى وو.(۱) ددوى وفد د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضرشو.دا په كوم سن كښې حاضرشو. په دې باره كښې اختلاف دې.

① د واقدى، قاضى عياض، او د حافظ ابن تيميه رحمه الله رائې داده.چه دا وفد د نبى عليه السلام په خدمت كښې ۸ھ كښې راغلې دې.(۱)

② د اكثرو اهل مغازى په نزد دا وفد د نبى عليه السلام په خدمت كښې ۹ھ كښې حاضر شوې وو.د ابن اسحاق، ابن هشام، او خليفه بن خياط هم دا رائې ده.(۲)

③ ابوحاتم او د تاريخ خميس مصنف ددې وفد راتګ په ۱۰ھ كښې ګرځولې دې. (۳)

دا ټول حضرات په دې خبره تقريباً متفق دى.چه دا وفد د نبى عليه السلام په خدمت كښې يوځل راغلې دې.خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلى دى.چه دا وفد د نبى عليه السلام په خدمت كښې دوه ځله راغلې دې.يوځل د فتح مكې نه وړاندې په ۵ھ كښې، يا ددې نه هم وړاندې راغلې دې. او په دويم ځل ددې حاضرى د فتح مكې نه پس ۹ھ كښې شوې دې.په ړومبى ځل وفد كښې ديارلس يا څوارلس سړى وو.او په دويم ځل دا وفد په څلويښتو سړو باندې مشتمل وو.(۴)

دوه ځل ددې وفد د راتلو دليل دمسند احمد او مصنف ابن ابى شيبه هغه روايت دې.چه په هغې كښې دى.چه كله دا وفد د رسول الله ﷺ په خدمت كښې ۹ھ كښې حاضر شو. نو نبى عليه السلام اوفرمائيل.«مالى اراكم قد تغيرت الوانكم»دا څه خبره ده.چه زه ګورم.چه ستاسو رنګونه بدل شوى دى.ددې نه معلوميږى.چه رسول الله ﷺ هغوى مخكښې ليدلى وو.

په فيض البارى كښې علامه انورشاه كشميرى رحمه الله طرف ته منسوب كړې شوى ليكلى شوى دى. چه دا وفد په ړومبى ځل ۶ھ كښې او بيا دويم ځل ۸ھ كښې راغلې دې.د ۸ھ خبره خو صحيح ده.چه بعضې اهل سير دا اختيار كړې دې.خو په ۶ھ كښې ددې وفد د راتګ ذكر چاهم نه دې كړې.داخو يا دحضرت شاه صاحب رحمه الله نه تسامح (چشم پوشى) شوې ده.او يا د

(۱) فتح البارى (۸۵/۸) وعمدة القارى (۲۰/۱۱۸)۔

مرتب نه سهوه شوې ده.چه هغه ،،السنة الخامسة،، لره ،،السنة السادسة،، اوګنړو.اووې لیکلو.(۴)

داوفدچه کله درسول الله ﷺ په خدمت کښې په ړومبی ځل حاضرشو.نونبی علیه السلام اوفرمائیل. ((مرحباً بالقوم غیر خزایا ولا ندامی)) مرحبا دې وی هغه قوم ته چه هغه نه رسوا شو.او نه پښیمانه او شرمنده شو.یعنی هغه پخپله راغلل.او پخپل شوق او د زړه په خوشحالئ ئې اسلام قبول کړو.په جنګ او جهاد سره مسلمانان نه شو.چه هغوی ذلیله او پښیمانه شوې وې.نبی کریم ﷺ ته د وفد شریکانو عرض اوکړو.چه زمونږ او ستاسو په منځ کښې قبیله مضر ابادده.هغوی سره زمونږ دشمنی ده.مونږ صرف د حرمت په میاشتو کښې ستاسو خدمت کښې حاضریدې شو.چه په دغه میاشتو کښې هغه خلق د لوټ مار او قتل وقتال نه د عربو د عام دستور مطابق بندیږی.په دې وجه تاسو مونږ ته یو داسې جامع عمل اوښایئ.چه په هغې باندې عمل کولو سره مونږ جنت ته داخل شو.او د ښار اوسیدونکو ته هم دهغې دعوت ورکړو.رسول الله ﷺ اوفرمائیل.زه تاسو ته د څلورو څیزونو حکم درکوم.او د څلورو څیزونو نه مو منع کوم.چه دهغې تفصیل په وړیسې روایت کښې راروان دې.

**د وفد عبدالقیس د راتلو سبب:** د رسول الله ﷺ په خدمت کښې ددې وفد د حاضریدو په باره کښې اصحابو د سیردا واقعه لیکلې ده.چه د قبیله عبدالقیس سردار منذر بن عائذ خپله لور منقذ بن حیان ته ورکړې وه.منقذ بن حیان د تجارت په غرض سره مدینې منورې ته راغې.دا دهجرت نه روستو زمانه وه.منقذ یو ځائې کښې ناست وو.اتفاقاً نبی علیه السلام هغه طرف ته تیریدو.منقذ چه نبی علیه السلام اولیده.نو اودریده.رسول الله ﷺ تپوس اوکړو .څوك یې؟ عرض ئې اوکړو.منقذ بن حیان یم.رسول الله ﷺ دهغه نه دخیرت پوښتنه اوکړله.او دهغه د قبیلې په شریفانوکښې ئې د هریو نوم واخستۀ.او د حالاتو تپوس ئې ترې اوکړو.ددې په وجه منقذ بن حیان دومره متاثره شو.چه مسلمان شو.د قرآن شریف څه حصه سورة فاتحه او سورة علق وغیره ئې زده کړل.کله چه خپل وطن ته تلو.نو نبی علیه السلام د قبیلې د سردرانو په نوم دهغه په لاس خطونه اولیکل

قبیلې ته چه اورسیده.نو منقذ بن حیان خپل اسلام ښکاره نه کړو.البته مونځ به ئې کوو.او

---

.....دتیرمخ حاشیه] ۱) شرح مسلم للنووی(۳۴۱۱) کتاب الایمان، باب الامربالایمان بالله.....)_

۲) سیرة ابن هشام مع الروض الانف (۳۴۰۱۲) وطبقات ابن سعد(۳۱۴۱۱) والبدایة والنهایة(۴۶۱۵)_

۳) د ابوحاتم ابن حبان قول مې د یو درجن نه زیات ممکنو مراجعو کښې تلاش کړو.خو ملاؤ نه شو.البته حافظ ابن حجر په الاصابه کښې د واقدی په حوالې سره ۱۰ھ کښې د وفد عبدالقیس راتګ ذکرکړې دې.اوګورئ! لامع الدراری(۲۳۱۴) کتاب الجمعة او مصنف د تاریخ خمیس هم په ۱۰ھ کښې ددې وفد راتګ بیان کړې دې.اوګورئ! تاریخ الخمیس (۱۹۴۱۲)_

۴) فتح الباری (۸۵۱۸)_

۵) فیض الباری(۱۵۵۱۱) کتاب الایمان ، باب اداء الخمس من الایمان)_

قران به ئې لوستلو.دهغه ښځې خپل پلار منذر ته ددې ذکر اوکړو. چه زما دخاوند منقذ خو دې ځل څه عجیبه حالت جوړشوې دې.په خاصو وختونو کښې هغه مخ لاسونه وینځي.او بیا مخ په قبله اودریږی.ټیټیږی.او سجده کوی. منذر خپل زوم سره ملاو شو.په دې باره کښې خبره اوشوه.منقذ هغه ته پوره قصه واورولهٔ.په تفصیل اوریدو سره منذر بن عائذ هم مسلمان شو.دهغه د اسلام راوړلو نه پس منقذ بن حیان د رسول اللهﷺ خط هغه ته ورکړو. منذردقبیلې خلقوته هغه خط واورولو.چه په هغې کښې هغوی ته داسلام دعوت ورکړې شوې وو.نو پوره قبیله مسلمانه شوه.او د نبیﷺ په خدمت کښې ئې دحاضریدو اراده اوکړله.(١)

کله چه دغه خلق مدینې منورې ته نزدې شو.نو رسول اللهﷺ صحابو ته اوفرمائیل.چه تاسو ته وفد عبدالقیس راروان دې.چه دا د اهل مشرق غوره خلق دی.(٢) او په هغوی کښې منذر بن عائذ اشج عصری هم دې.کله چه وفد په مدینه منوره کښې مسجد نبوی ته راورسیدو.نو د وفد نور شریکان نبیﷺ سره د ملاقات په شوق کښې د سورلو نه په جلتۍ سره راکوزشو.اوپه خدمت کښې حاضرشو.خو د وفد امیر منذر بن عائذ اشج په آرام راکوز شو.مخکښې ئې خپله سورلۍ اوتړله.بیا ئې د ټولو ملګرو سامان یوځائې کښې جمع کړو.او بیا صفا کپړې راواخستلې.او وائې غوستلې.ددې نه پس د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضرشو.نبیﷺ ورته اوفرمائیل.په تاکښې دوه خویونه داسې دی.چه هغه الله او دهغه رسولﷺ خوښوی.عقل او وقار،عرض ئې اوکړو.دا دواړه خویونه په ماکښې فطری دی اوکه مصنوعی دی.نبیﷺ اوفرمائیل.بلکه ته الله تعالی هم په دې خویونو باندې پیدا کړې یې.نواشج اووئیل.«الحمد لله الذی جبلنی علی خلقتین یحبهما الله ورسوله»(٣)

**قوله**: حدثنی اسحاق....: حضرت ابوجمرهؒ فرمائی.چه ما حضرت ابن عباسؓ ته اووئیل.چه ما سره یوه چاټۍ ده.چه په هغې کښې زما دپاره نبیذ جوړولې شی.هغه نبیذ د خوږیدو په حالت کښې زه څکم.په هم هغه چاټۍ کښې هغه پراته وی.که زه دهغې نه زیات اوڅکم.او بیا په ډله کښې کینم.او زیات وخته پورې کینم.نو ماته د رسوا کیدو ویره وی. یعنی کله چه زیات اوڅکم.او بیا ډیر وخته پورې مجلس کښې ناست یم.نو ماته دا خطره وی.چه چرته نشه راباندې اونه خیژی.او غلطو خبرو کولو سره زه په خلقو کښې رسوا نه شم. حضرت ابن عباسؓ ابوجمزهؒ ته د وفد عبدالقیس حدیث واورولو.مسئله ئې هم ورته اوخودله.او دلیل ئې هم ورته اوخوده.مسئله ئې ورته دا اوخودله.چه داسې چاټۍ چه دهغې نرې سورې بند وی.په هغې کښې نبیذ تیارول صحیح نه دی.او دلیل ئې دا بیان کړو.چه رسول اللهﷺ وفد عبدالقیس په دبا، حنتم، مزفت او نقیر کښې د نبیذ د استعمال نه منع کړې وو. چه په دې کښې د سکر (نشې) پیدا کیدو احتمال وی. نو تاله هم داسې چاټۍ

---

(١) فتح الملهم (٥٢٤١١) دلائل النبوة للبیهقی (٣٢٣١٥)_
(٢) فتح الباری (٨٥١٨)_
(٣) دلائل النبوة للبیهقی (٣٢٧١٥-٣٢٨) باب وفد عبدالقیس)_

استعمالول پکار نه دی.
دې حدیث سره متعلق نور تفصیلات په کتاب الایمان کښې تیرشوی دی.
تنبیه په حاشیه کښې د قسطلانی په حوالې سره لیکلی دی.چه دا د دویم ځل حاضریدو واقعه ده.(۱) خو دا صحیح نه ده.ځکه چه روایت کښې د وفد دا قول منقول دې.چه زمونږ او ستاسو په منځ کښې مضر قبیله آباده ده.مونږ صرف د حرم په میاشتو کښې راتلې شو.د حرم د میاشتو نه علاوه په لاره کښې دهغوی د طرفه د حملې خطره وی.چه ددې نه صفا معلومیږی.چه دا د ړومبی ځل حاضریدو واقعه ده.ځکه چه کله وفد عبدالقیس په دویم ځل حاضرشوې وو.هغه وخت قبیله مضر مسلمانان شوی وو.اوهغوی د عبدالقیس او مسلمانانو په منځ کښې حائل نه وو.

## بَاب وَفْدِ بَنِي حَنِيفَةَ وَحَدِيثِ ثُمَامَةَ بْنِ أُثَالٍ

بنو حنیفه په عربوکښې د یمامه مشهوره قبیله ده.د فتح مکې نه پس ددې قبیلې وفد د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشوې وو.په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله اول د حضرت ثمامه بن اثال رضي الله عنه هغه حدیث نقل کړې دې.په کوم کښې چه دهغه د اسلام راوړلو واقعه بیان کړې شوې ده.ددې نه پس ئې بیا د بنی حنیفه وفد سره متعلق حدیث بیان کړې دې.دحضرت ثمامه رضي الله عنه د اسلام راوړلو واقعه د فتح مکې نه وړاندې ده.خو چونکه هغه د بنی حنیفه قبیلې د سردارانو ځینې وو.په دې وجه امام دا واقعه هم دلته ذکرکړې ده.(۲)

[۴۱۱۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ فَجَاءَتْ بِرَجُلٍ مِنْ بَنِي حَنِيفَةَ يُقَالُ لَهُ ثُمَامَةُ بْنُ أُثَالٍ فَرَبَطُوهُ بِسَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ فَخَرَجَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ فَقَالَ عِنْدِي خَيْرٌ يَا مُحَمَّدُ إِنْ تَقْتُلْنِي تَقْتُلْ ذَا دَمٍ وَإِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْمَالَ فَسَلْ مِنْهُ مَا شِئْتَ فَتُرِكَ حَتَّى كَانَ الْغَدُ ثُمَّ قَالَ لَهُ مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ قَالَ مَا قُلْتُ لَكَ إِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ فَتَرَكَهُ حَتَّى كَانَ بَعْدَ الْغَدِ فَقَالَ مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ فَقَالَ عِنْدِي مَا قُلْتُ لَكَ فَقَالَ أَطْلِقُوا ثُمَامَةَ فَانْطَلَقَ إِلَى نَخْلٍ قَرِيبٍ مِنَ الْمَسْجِدِ فَاغْتَسَلَ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ يَا مُحَمَّدُ وَاللَّهِ مَا كَانَ عَلَى الْأَرْضِ وَجْهٌ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ وَجْهِكَ فَقَدْ أَصْبَحَ وَجْهُكَ أَحَبَّ الْوُجُوهِ إِلَيَّ وَاللَّهِ مَا كَانَ مِنْ دِينٍ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ دِينِكَ فَأَصْبَحَ دِينُكَ أَحَبَّ الدِّينِ إِلَيَّ وَاللَّهِ مَا كَانَ مِنْ بَلَدٍ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ بَلَدِكَ فَأَصْبَحَ بَلَدُكَ

---

۱) حاشیه صحیح بخاری (۶۲۷/۲) حاشیه نمبر۲)_
۲) فتح الباری(۸۷/۸)_

أَحَبَّ الْبِلَادِ إِلَيَّ وَإِنَّ خَيْلَكَ أَخَذَتْنِي وَأَنَا أُرِيدُ الْعُمْرَةَ فَمَاذَا تَرَى فَبَشَّرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمَرَهُ أَنْ يَعْتَمِرَ فَلَمَّا قَدِمَ مَكَّةَ قَالَ لَهُ قَائِلٌ صَبَوْتَ قَالَ لَا وَلَكِنْ أَسْلَمْتُ مَعَ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا وَاللَّهِ لَا يَأْتِيكُمْ مِنْ الْيَمَامَةِ حَبَّةُ حِنْطَةٍ حَتَّى يَأْذَنَ فِيهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:٤٥٠]

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم نجد طرف ته سواره روان کړل. هغوی لاړل.او د بنی حنیفه قبیلې یو سړې ثمامه بن أثال ئې ګرفتار کړو.هغه ئې راوسته.او د مسجد نبوی یوې ستنې سره ئې اوتړلو.رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه ته تشریف راوړو.او ورته ئې اوفرمائیل.«ما عندك ياثمامة؟»، ستا څه اراده ده اې ثمامه!، ثمامه اووئیل.زما اراده د خیر ده.که تاسو ما قتل کړئ.نو تاسو به یو داسې سړې قتل کړئ.چه هغه د قتل مستحق دې.اوکه ما پرېږدئ. نو دا به په یو شکر کونکی سړی باندې ستاسو انعام او احسان وی.اوکه مال غواړئ. نو اوفرمایئ.نبی کریم صلى الله عليه وسلم دهغه خبرې واورېدې.او خاموش لاړو.په دویمه او دریمه ورځ هم دغه سوال او جواب اوشو.په دې دوران کښې حضرت ثمامه د مسلمانانو د مانځه او دهغوی د عملونو او ژوند مشاهده کوله.ددې نه پس نبی کریم صلى الله عليه وسلم راغې.او وې فرمائیل. ثمامه! ما ته معاف کړې.اوهغه ئې پرانیسته.او آزاد ئې کړو.

ثمامه چه آزاد شو.نو یو نزدې باغ ته لاړه.غسل ئې اوکړو.او د نبی عليه السلام په خدمت کښې حاضرشو.کلمهٔ شهادت ئې اووئیله.او مسلمان شو.اووې وئیل.اې محمد (صلى الله عليه وسلم)! په خدائې قسم! په مخ د زمکې ستاسو د مخ نه ماته هیڅ یو مخ زیات ناخوښه نه وو.خو نن ستاسو د مخ نه زیات ماته هیڅ مخ محبوب نه دې.په الله قسم! هیڅ یو دین ماته ستاسو د دین نه زیات ناخوښه نه وو.خو نن ستاسو دین ماته د ټولو نه زیات محبوب دې.ستاسو ښار ماته د ټولو نه زیات ناخوښه وو.خو نن ستاسو ښار ماته د ټولو نه زیات خوښ دې.ما عمره کول غوښتل.چه ستاسو سورو زه اونیولم.اوس ستاسو څه حکم دې؟ (عمره اوکړم اوکه نه؟) رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه ته زیرې ورکړو.او د عمرې اداکولو حکم ئې ورکړو.

ددې نه پس حضرت ثمامه مکې ته لاړه.قریشو اووئیل.دا صابی (بې دینه) شوې دې.هغه اووئیل.صابی شوې نه یم.بلکه زه مسلمان شوې یم.او په خدائې قسم! اوس به تاسو ته د یمامه نه د غنمو یوه دانه هم نه راځی.تردې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اجازت رانکړی.هغه چه یمامه ته لاړه.نو د قریشو غله ئې بنده کړله.چه په دې سره د مکې خلق سخت پریشانه شو.او رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ئې د رشتهٔ دارئ واسطه ورکړله.او درخواست ئې اوکړو.نبی عليه السلام ثمامه ته سفارشي خط اولیکه.چه ددوی غله مه بندوه.نو بیا هغوی غله جاری کړله.[1] حضرت ثمامه رضي الله عنه د حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه په دورخلافت کښې په فتنهٔ ارتداد کښې د مرتدو د لاسه شهید شو.[2]

---

[1]) فتح البارى(٨٨/٨)_
[2]) الاصابة فى تمييز الصحابة(٢٠٣/١)_

[۴۱۱۵] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَدِمَ مُسَيْلِمَةُ الْكَذَّابُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يَقُولُ إِنْ جَعَلَ لِي مُحَمَّدٌ الْأَمْرَ مِنْ بَعْدِهِ تَبِعْتُهُ وَقَدِمَهَا فِي بَشَرٍ كَثِيرٍ مِنْ قَوْمِهِ فَأَقْبَلَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ وَفِي يَدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِطْعَةُ جَرِيدٍ حَتَّى وَقَفَ عَلَى مُسَيْلِمَةَ فِي أَصْحَابِهِ فَقَالَ لَوْ سَأَلْتَنِي هَذِهِ الْقِطْعَةَ مَا أَعْطَيْتُكَهَا وَلَنْ تَعْدُوَ أَمْرَ اللَّهِ فِيكَ وَلَئِنْ أَدْبَرْتَ لَيَعْقِرَنَّكَ اللَّهُ وَإِنِّي لَأَرَاكَ الَّذِي أُرِيتُ فِيهِ مَا رَأَيْتُ وَهَذَا ثَابِتٌ يُجِيبُكَ عَنِّي ثُمَّ انْصَرَفَ عَنْهُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَسَأَلْتُ عَنْ قَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكَ أَرَى الَّذِي أُرِيتُ فِيهِ مَا أَرَيْتُ فَأَخْبَرَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُ فِي يَدَيَّ سِوَارَيْنِ مِنْ ذَهَبٍ فَأَهَمَّنِي شَأْنُهُمَا فَأُوحِيَ إِلَيَّ فِي الْمَنَامِ أَنِ انْفُخْهُمَا فَنَفَخْتُهُمَا فَطَارَا فَأَوَّلْتُهُمَا كَذَّابَيْنِ يَخْرُجَانِ بَعْدِي أَحَدُهُمَا الْعَنْسِيُّ وَالْآخَرُ مُسَيْلِمَةُ [ر: ۳۴۲۴]

[۴۱۱٦] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ أُتِيتُ بِخَزَائِنِ الْأَرْضِ فَوُضِعَ فِي كَفِّي سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ فَكَبُرَا عَلَيَّ فَأُوحِيَ إِلَيَّ أَنِ انْفُخْهُمَا فَنَفَخْتُهُمَا فَذَهَبَا فَأَوَّلْتُهُمَا الْكَذَّابَيْنِ اللَّذَيْنِ أَنَا بَيْنَهُمَا صَاحِبَ صَنْعَاءَ وَصَاحِبَ الْيَمَامَةِ [٦٦٣٠، وانظر: ۳۴۲۴]

**قوله**: مسيلمه كذاب: مسيلمه د بنى حنيفه قبيلې يو سړې وو.دهغه پوره نوم مسيلمة بن ثمامة بن كبير ابن حبيب بن الحارث وو.(۱) ابن اسحاق ليكلى دى.چه هغه په ۱۰ﻫ كښې د نبوت دعوه كړې وه.(۲) د قاضى عياض رحمه الله خيال دې.چه اول هغه اسلام قبول كړې وو.ددې نه پس بيا مرتد شو.اودنبوت دعوه ئې اوكړله.(۳) هغه راغې.اووې وئيل. چه كه محمد (ﷺ) دخان نه روستو ما خپل جانشين (خليفه) جوړه وى.نو زه دهغه اتباع كوم.

**قوله**: وَقَدِمَهَا فِي بَشَرٍ كَثِيرٍ مِنْ قَوْمِهِ: ددې الفاظو نه ښكاره دا معلوميږى.چه هغه سره ډير لوئې جماعت راغلې وو.حالانكه د واقدى په روايت كښې دى.چه هغه سره اوولس سړى وو.په اصل كښې دهغه راتګ دوه ځله شوې دې.يوځل هغه سره اوولس سړى وو.او په دويم ځل زيات وو.(۴)

---

۱) فتح البارى(۸۹\۸)_
۲) عمدة القارى(۲۳\۱۸)_
۳) شرح النووى لصحيح مسلم كتاب الرؤيا(۲۴۴\۱۲)_
۴) فتح البارى(۹۰\۸)_

**قوله**: فَأَقْبَلَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ: رسول الله ﷺ هغه طرف ته لاړو.او نبی علیه السلام سره حضرت ثابت بن قیس رضی الله عنه وو. حضرت ثابت بن قیس بن شماس په خطیب الانصار سره مشهور وو.د شکل او صورت نه ئې رعب داب نه وو.خو په فصاحت او بلاغت او په جزالت کلام کښې ورته الله تعالی ډیر لوئې خصوصیت ورکړې وو.د رسول الله ﷺ په لاس کښې د کجورې د ښاخ یوه حصه وه.نبی علیه السلام لاړه.او مسیلمه کذاب ته ئې اوفرمائیل، ،ته که زمانه دا څانګه اوغواړې.نو هم به ئې درنکړم، ،(خلافت خو ډیر لوئې څیزدې).

**قوله**: وَلَنْ تَعْدُوَ أَمْرَ اللّٰهِ فِيكَ وَلَئِنْ أَدْبَرْتَ لَيَعْقِرَنَّكَ اللّٰهُ: او ستا په باره کښې چه د الله تعالی کومه فیصله ده.ته به هغې نه هیڅ کله هم تیر نه شې.(او د الله تعالی فیصله دهغه په باره کښې دا وه.چه هغه جهنمی نامراده او تاوانی دې) اوکه تا زما د اطاعت نه مخ واړولو.نو الله تعالی به ستا خپې ماتې کړی.یعنی هلاك او برباد به دې کړی.نوهم دغه شان اوشوه.چه الله تعالی هغه لره هلاك او برباد کړو.

**قوله**: وَإِنِّي لَأَرَاكَ الَّذِي أُرِيتُ فِيهِ مَا رَأَيْتُ وَهَذَا ثَابِتٌ يُجِيبُكَ عَنِّي ثُمَّ انْصَرَفَ عَنْهُ:
او ستا په باره کښې زما خیال دې.چه ته هم هغه ئې.دچا متعلق چه ماته خوب لیدلې شوې دې.او دا ثابت بن قیس رضی الله عنه به زما د طرفه تاته جواب درکوی.د رسول الله ﷺ خواهش وو.چه هغه سره خبره لږه تفصیل سره اوکړې شی.نو نبی علیه السلام دا فریضه ثابت بن قیس بن شماس رضی الله عنه ته اوسپارله.اووې فرمائیل.چه دې به تفصیل سره تاته جواب درکوی. ددې نه دا ثابته شوه.چه د اهل علمو او فاضلانو د خپلو ملګرونه په داسې قسمه معاملاتو کښې مدد حاصلول د رسول الله ﷺ سنت پاتې شوې دې.(1)
حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی.چه ما د رسول الله ﷺ ددې قول په باره کښې پوښتنه اوکړله. ((انی لا اراك الذی اریت فیه ما رأیت)) چه ددې څه مطلب دې.نوماته حضرت ابوهریره رضی الله عنه اوفرمائیل.چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه زه اوده ووم.نو ما اولیدل.چه زما په دواړو لاسونوکښې د سرو زرو دوه کړې (بنګړی) دی.دې حالت زه ډیر غمژن او فکرمند کړم.نو هم په خوب کښې ماته وحی اوکړې شوه.چه تاسو په دې کړو باندې پوك وکړئ.کله چه ما پوك اووهلو.نو هغه دواړه والوتل.نو ما دهغې دا تعبیر اوښکلو.چه دوه دروغژن نبیان به زما نه پس راوځی.په هغوی کښې یو اسود عنسی دې.او دویم مسیلمه دې.
عالمانو دلته دا سوال پورته کړې دې.چه په خوب کښې خپل لاس کښې د دوه کړو لیدلو سره نبی علیه السلام ته فکر ولې پیداشو؟ بعضې حضراتو وئیلی دی.چه د سرو زرو کړې دنیا ده.او

(1) زادالمعاد(۶۱۳\۳)_

دنیا سره د نبی ﷺ څه واسطه؟ نبی ﷺ فرمائیلی دی «مالی وللدنیا؟»[1] په دې وجه خپل لاس کښې کړو لیدلو سره نبی ﷺ ته فکر اوشو. اوبعضې حضراتوونیلی دی. چه چونکه دا د ښځو زیور (ښانست) دې. د سرو د استعمال څیز نه دې. په دې وجه نبی ﷺ ته فکر شو.[2] والله اعلم.

کله چه نبی ﷺ په هغې پوکې اووهلو. اوهغه دواړه کړې والوتلې. په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره وه. چه لکه څنګه بې وزنه او بې حقیقته څیز په معمولي پوکی او توجه سره ختمیږی. او زائل کیږی. په دې وجه به نبی ﷺ هغه دواړو دروغژنو نبیانو ختمولو طرف ته معمولي شان توجه اوفرمائی. نو هغوی دواړه به ختم شی.[3]

**یو اشکال**: په دې روایت باندې اشکال کیږی. چه په دې کښې دی. «فأولتهما كذابين، يخرجان بعدى» رسول الله ﷺ اوفرمائیل. چه ما دهغه دواړو کړو نه دا تعبیر واخستلو. چه زما نه پس به دوه دروغژن نبیان ښکاره کیږی. یو اسود عنسی او دویم مسیلمه کذاب، حالانکه دا دواړه د نبی ﷺ نه پس نه، بلکه د نبی ﷺ په ژوند کښې ښکاره شوی وو؟

ددې اشکال جواب ورکولوکښې بعضې حضراتو ونیلی دی. چه د ،،بعدی،، نه مراد ،،بعد موتی،، نه دې. بلکه ددې نه مراد ،،بعد نبوتی،، دې.[4]

بعضې حضراتو یو بل جواب ورکړې دې. چه د نبی ﷺ ددې جملې مطلب دادې. چه زما دوفات نه پس به دهغوی د نبوت د دعوې شهرت اوشی. اګرچه ظهور دهغوی د نبی ﷺ په ژوند کښې اوشی. خو دهغې مشهورتیا به روستو کیږی.[5] خو دا جواب څکه ضعیف دې. چه اسود عنسی خو د نبی ﷺ په ژوند کښې قتل کړې شوې وو. دهغه د نبوت مشهورتیا د نبی ﷺ د وفات نه پس اونشوه. په دې وجه ړومبې توجیه راجح ده.

**فائده: مسیلمه كذاب د رسول الله ﷺ زیارت کړې دې اوکه نه؟**: مسیلمه کذاب د رسول الله ﷺ زیارت کړې دې اوکه نه؟ د بخاری د مذکوره روایت نه معلومیږی. چه هغه د نبی ﷺ زیارت کړې دې. او نبی ﷺ دهغه سره خبرې هم کړې دی.

محمد بن اسحاق روایت نقل کړې دې. په هغې کښې دی. چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې کله د بنی حنیفه وفد راغې. په هغې کښې مسیلمه کذاب هم وو. خو هغه دتکبر په وجه د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضرنه شو. بلکه د وفد باقی شریکانو د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضری ورکړله. او دې دهغوی د سامان وغیره د حفاظت دپاره روستو پاتې شوې

---

[1] الحديث اخرجه الترمذى فى كتاب الزهد (٥٨٨\٤) عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه. قال نام رسول الله ﷺ على حصير فقام وقد اثر فى جنبه. فقلنا يا رسول الله! لو اتخذنا لك وطاء. فقال مالى وللدنيا ما انا فى الدنيا الا كراكب. استظل تحت شجرة ثم راح وتركها)_

[2] فتح البارى(١٢\٤٢٤) كتاب التعبير. باب النفخ فى المنام)_

[3] فتح البارى(١٢\٤٢٤) كتاب التعبير)_

[4] فتح البارى(١٢\٤٢٤) كتاب التعبير. باب النفخ فى المنام)_

[5] شرح صحيح مسلم للنووى(١٢\٤٤) كتاب التعبير. باب رؤيا النبى ﷺ)_

وو.(۱) حافظ ابن حجر رحمہ اللہ اګرچه ددې روایت تضعیف کړې دې.(۲) خو دواړه روایتونه په دې طریقه جمع کیدې هم شی.چه د بخاری په روایت کښې په دویم ځل د مسیلمه کذاب د راتلو ذکردې.او د محمد بن اسحاق په روایت کښې په ړومبی ځل دهغه د راتلو واقعه بیان کړې شوې ده.او دا خبره مخکښې بیان کړې شوې ده.چه دا سړې دوه ځله وفد سره راغلې دې.
علامه انورشاه کشمیری رحمہ اللہ د محمد بن اسحاق روایت ته ترجیح ورکړې ده.اوونیلی ئې دی.چه دې لعین ته د نبی علیہ السلام زیارت نه دې نصیب شوې.(۳)
خوښکاره داده.چه د بخاری د روایت په مقابله کښې د محمد بن اسحاق روایت ته ترجیح نشی ورکړې کیدې.او حافظ د محمد بن اسحاق د روایت تضعیف هم کړې دې.په دې وجه مولانا بدرعالم میرتهی رحمہ اللہ فرمائیلی دی.چه په اصل کښې مولانا انورشاه کشمیری رحمہ اللہ د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم سره د انتهائی درجې محبت او د عظمت د جذبې نه مغلوبه شوې دې.او د ابن اسحاق روایت ته ئې ترجیح ورکړې ده.یعنی هغه دا خبره نه خوښوی.چه داسې بد بخته سړې د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم په خدمت کښې حاضرشی.(۱)

[۴۱۱۷] حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ سَمِعْتُ مَهْدِيَّ بْنَ مَيْمُونٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا رَجَاءٍ الْعُطَارِدِيَّ يَقُولُ كُنَّا نَعْبُدُ الْحَجَرَ فَإِذَا وَجَدْنَا حَجَرًا هُوَ أَخْيَرُ مِنْهُ أَلْقَيْنَاهُ وَأَخَذْنَا الْآخَرَ فَإِذَا لَمْ نَجِدْ حَجَرًا جَمَعْنَا جُثْوَةً مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ جِئْنَا بِالشَّاةِ فَحَلَبْنَاهُ عَلَيْهِ ثُمَّ طُفْنَا بِهِ فَإِذَا دَخَلَ شَهْرُ رَجَبٍ قُلْنَا مُنَصِّلُ الْأَسِنَّةِ فَلَا نَدَعُ رُمْحًا فِيهِ حَدِيدَةٌ وَلَا سَهْمًا فِيهِ حَدِيدَةٌ إِلَّا نَزَعْنَاهُ وَأَلْقَيْنَاهُ شَهْرَ رَجَبٍ وَسَمِعْتُ أَبَا رَجَاءٍ يَقُولُ كُنْتُ يَوْمَ بُعِثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُلَامًا أَرْعَى الْإِبِلَ عَلَى أَهْلِي فَلَمَّا سَمِعْنَا بِخُرُوجِهِ فَرَرْنَا إِلَى النَّارِ إِلَى مُسَيْلِمَةَ الْكَذَّابِ

ابو رجاء د بنو عطارد قبیلې سره تعلق لری. دده نوم عمران بن ملحان دې.د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم په زمانه کښې ئې اسلام راوړلې وو.خو د نبی علیہ السلام په خدمت کښې ورته د حاضریدو سعادت حاصل نه شو.(۵) روستو بیا دې سره د خپلې پوره قبیلې د مسیلمه کذاب په مددګارو کښې شامل شوې وو.خو الله تعالی هغه ته دوباره د
اسلام همیشه سعادت ورنصیب کړو.او مسلمان شو.(۶)
دې فرمائی.چه مونږ به دکاڼو عبادت کولو.کله چه به مونږ ته یوکاڼړې د مخکنی کاڼړی نه ښه ملاو شو.نوهغه ته به مو ترجیح ورکوله.یعنی دهغې عبادت به مو شروع کولو.او

---

۱) سیرة ابن هشام (۲۲۳/۴) قدوم وفد بنی حنیفة ومعهم مسیلمة الکذاب)_
۲) فتح الباری(۸۹/۸)_
۳) فیض الباری(۱۲۲/۴)_
۴) البدرالساری حاشیه فیض الباری(۱۲۲/۴)_
۵) عمدة القاری(۲۵/۱۸)_
۶) ابورجاء عطاردی یوسل اوسل کالو نه زیات عمرئې بیا موندو.او د هشا م بن عبدالملك په دورخلافت کښې وفات شو.حالاتو دپاره اوګوری! الاستیعاب لابن عبدالبر(۲۳/۲-۲۶)_

مخکښې به مو پرېخودلو.اوکه په داسې ... کښې به وو.چه هلته به کاڼړی نه وو.نو مونږ به دخاورو یو ډیرې جوړ کړو.او چیلۍ به مو راوستله.د خاورو په دغه ډیری به مو اولوشله.او بیا به مو د دغه ډیری طواف کولو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلی دی.چه په خاوره به نې پۍ ځکه لوشل.چه دا کلکه شی.(۱) خو علامه کرمانی رحمه الله فرمائی.چه په حقیقت کښې به دغه خلقو د خاورو دغه ډیری سره نزدې د چیلۍ پۍ لوشل.او بیا به نې دهغې صدقه کوله.په حقیقت کښې د چیلۍ پۍ لوشل او په خاوره باندې اچول مراد نه دی.(۲)

**قوله**: فَإِذَا دَخَلَ شَهْرُ رَجَبٍ قُلْنَا مُنَصِّلُ الْأَسِنَّةِ فَلَا نَدَعُ رُمْحًا فِيهِ حَدِيدَةٌ وَلَا سَهْمًا فِيهِ حَدِيدَةٌ إِلَّا نَزَعْنَاهُ وَأَلْقَيْنَاهُ شَهْرَ رَجَبٍ: کله چه به د رجب میاشت داخله شوه.نومونږ به وئیل.چه دا میاشت د نیزو جدا کونکې میاشت ده.نوکومه نیزه او غشې چه به داسې وو.چه په هغې کښې به د اوسپنې پلکې لګیدلې وو.مونږ به هغه اوښکلو.او د پوره رجب دپاره به مو غورځولو.

**قوله**: فلما سمعنا بخروجه فررنا الى مسيلمة الكذاب: بیا چه کله مونږ د رسول الله ﷺ د ښکاره کیدو خبره واوریده.نو مونږ اور طرف ته یعنی دمسیلمه کذاب طرف ته اوتختیدو. (او دهغه اطاعت مو قبول کړو) دخروج نه د فتح مکې په وخت قریشو باندې غلبه مراد ده.(۳)

ددې آخری جملې په مناسبت سره امام بخاری رحمه الله دا حدیث په دې باب کښې ذکرکړې دې.

## بَابُ قِصَّةِ الْأَسْوَدِ الْعَنْسِيِّ

د نبی کریم ﷺ د طرفه په صنعاء یمن باندې یو عامل حضرت باذان رضي الله عنه مقرر وو. اسود عنسی هم په دغه علاقه کښې اوسیده.هغه سره دوه شیطانان اوسیدل.د یو نوم ،،سحیق،، وو. او د دویم نوم ،،شقیق،، وو.دغه دواړو شیطانانو به اسود ته خبرونه خودل.دغه خبرونه به هغه د خلقو په وړاندې بیانول.په دې طریقه یو ډیر لوئې جال خور کړې وو.او یو لوئې جماعت هغه طرف ته مائل شوې وو.او هغه سره ملګرې شوې وو.(۴)

کله چه دحضرت باذان رضي الله عنه وفات اوشو.نو اسود عنسی په صنعاء یمن باندې قبضه اوکړله. او د حضرت باذان رضي الله عنه ښځې ،،مرزبانه،، سره هغه نکاح هم اوکړله.چونکه هغه ته خطره وه.

---

۱) فتح الباری(۸\۹۱)_

۲) شرح الکرمانی (۱۶\۱۹۴)_

۳) قال الحافظ ومراده بخروجه ای ظهوره علی قومه من قریش بفتح مکة ولیس المراد مبدأ ظهوره بالنبوة، ولا خروجه من مکة الی المدینة لطول المدة بین ذالک وبین خروج مسیلمة (و انظر فتح الباری(۸\۹۱)_

۴) عمدة القاری(۱۸\۲۶) وفتح الباری(۸\۹۳)_

په دې وجه به هر وخت زرو سپاهيانو دهغه په کور باندې پهره ورکوله.
د اسود عنسي کار ختمولو دپاره حضرت فيروز ديلمي رضي الله عنه راغې.هغه د ټولو نه مخکښې مرزبانه. . سرد رابطه قائمه کړله.هغه مدد دپاره تياره شوه.نو منصوبه جوړه کړې شوه.
مرزبانه يوه ورځ اسود عنسي باندې ډير شراب اوڅکول .هغه په نشه کښې بې هوشه شو.
حضرت فيروز ديلمي رضي الله عنه او دهغه ملګرو د منصوبې مطابق د شا د طرفه په ديوال کښې غار اوکړو.او وردننه شو.هغه ئې اووژلو.دهغه د قتلولو نه پس دهغه ملګرى هم اوتختيدل.
او الله جل جلاله دوباره په صنعاء باندې مسلمانانو ته غلبه ورکړله.
حضرت فيروز ديلمي رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې اطلاع اوليګله.خوکله چه اطلاع اورسيده.نو نبي عليه السلام وفات شوې وو.(۱)
مسيلمه او اسود دواړو د نبي عليه السلام په ژوند کښې د نبوت دعوه کړې وه.خو نبي عليه السلام دهغوى د قتل هيڅ اقدام اونکړو.حضرت مولانا انورشاه کشميري رحمه الله فرمائيلي دى.ددې وجه دا وه.چه چرته دا خبره مشهوره نه شي.چه نبي عليه السلام دخپل اقتدار په خاطرد نورو د شرکت نه بغير د نبوت په منصب باندې قبضه کيدل غواړى.ددوى نه علاوه که بل څوك د نبوت دعوه اوکړى.نو دې دهغه د قتل فيصله کوى.د دروغژن نبي د قتل فيصله شرعي لحاظ سره اګرچه بالکل صحيح او ټيك ده.خوپه دې عنوان سره خلق ډير بدګمانه کيدې شي.رسول الله صلى الله عليه وسلم ددې مصلحت لحاظ اوساته.او پخپله ئې هيڅ اقدام اونه کړو.دا مرتبه الله تعالى د حضرت صديق اکبر رضي الله عنه دپاره مقررکړې وه.چه هغوى په خپل دورکښې داسې ډير دروغژن نبيان جهنم ته اورسول.(۲)

[۴۱۱۸] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجَرْمِيُّ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ صَالِحٍ عَنْ ابْنِ عُبَيْدَةَ بْنِ نَشِيطٍ وَكَانَ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ اسْمُهُ عَبْدُ اللَّهِ أَنَّ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ بَلَغَنَا أَنَّ مُسَيْلِمَةَ الْكَذَّابَ قَدِمَ الْمَدِينَةَ فَنَزَلَ فِي دَارِ بِنْتِ الْحَارِثِ وَكَانَ تَحْتَهُ بِنْتُ الْحَارِثِ بْنِ كُرَيْزٍ وَهِيَ أُمُّ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرٍ فَأَتَاهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ وَهُوَ الَّذِي يُقَالُ لَهُ خَطِيبُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي يَدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضِيبٌ فَوَقَفَ عَلَيْهِ فَكَلَّمَهُ فَقَالَ لَهُ مُسَيْلِمَةُ إِنْ شِئْتَ خَلَّيْنَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ الْأَمْرِ ثُمَّ جَعَلْتَهُ لَنَا بَعْدَكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ سَأَلْتَنِي هَذَا الْقَضِيبَ مَا أَعْطَيْتُكَهُ وَإِنِّي لَأَرَاكَ الَّذِي أُرِيتُ فِيهِ مَا أُرِيتُ وَهَذَا ثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ وَسَيُجِيبُكَ عَنِّي فَانْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ سَأَلْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ

---

۱) عمدة القاری(۱۸\۲۶) دحضرت عروه رضي الله عنه يو روايت کښې دى.چه اسود عنسي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات نه يوه ورځ او يوه شپه مخکښې قتل کړې شو.او د وحى په ذريعه نبي عليه السلام ته دهغه د قتل اطلاع ورکړې شوه.نبي عليه السلام صحابو رضي الله عنهم ته اطلاع ورکړله.(فتح الباري(۸\۹۳))_
۲) فيض الباري(۱۴\۱۲۳)_

عَبَّاسٍ عَنْ رُؤْيَا رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي ذَكَرَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ذُكِرَ لِي أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ أُرِيتُ أَنَّهُ وُضِعَ فِي يَدَيَّ سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ فَفُظِعْتُهُمَا وَكَرِهْتُهُمَا فَأُذِنَ لِي فَنَفَخْتُهُمَا فَطَارَا فَأَوَّلْتُهُمَا كَذَّابَيْنِ يَخْرُجَانِ فَقَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ أَحَدُهُمَا الْعَنْسِيُّ الَّذِي قَتَلَهُ فَيْرُوزُ بِالْيَمَنِ وَالْآخَرُ مُسَيْلِمَةُ الْكَذَّابُ [ر:۳۴۲۴]

**قوله**: عَنِ ابْنِ عُبَيْدَةَ بْنِ نَشِيطٍ وَكَانَ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ اسْمُهُ عَبْدُ اللّٰهِ: دامام بخاري رحمه الله مقصد دادي.چه دلته په سند كښې د ،،ابن عبيده،، نوم مذكور نه دې.خو بل ځائې كښې دهغه نوم ،،عبدالله،، بيان كړې شوې دې.امام بخارى رحمه الله دا وضاحت ځكه اوفرمائيلو.چه د ،،عبيده بن نشيط،،يو ځوئې بل هم دې.دهغه نوم ،،موسى،، دې.اوهغه ضعيف دې.(۱) په دې وجه امام بخارى رحمه الله تصريح كړې ده.چه دلته مراد ،،عبدالله،، دې. ،،موسى،،مراد نه دې.

## بَابُ قِصَّةِ أَهْلِ نَجْرَانَ

[۴۱۱۹/۴۱۲۰] حَدَّثَنِي عَبَّاسُ بْنُ الْحُسَيْنِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ صِلَةَ بْنِ زُفَرَ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ جَاءَ الْعَاقِبُ وَالسَّيِّدُ صَاحِبَا نَجْرَانَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيدَانِ أَنْ يُلَاعِنَاهُ قَالَ فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ لَا تَفْعَلْ فَوَاللّٰهِ لَئِنْ كَانَ نَبِيًّا فَلَاعَنَّا لَا نُفْلِحُ نَحْنُ وَلَا عَقِبُنَا مِنْ بَعْدِنَا قَالَا إِنَّا نُعْطِيكَ مَا سَأَلْتَنَا وَابْعَثْ مَعَنَا رَجُلًا أَمِينًا وَلَا تَبْعَثْ مَعَنَا إِلَّا أَمِينًا فَقَالَ لَأَبْعَثَنَّ مَعَكُمْ رَجُلًا أَمِينًا حَقَّ أَمِينٍ فَاسْتَشْرَفَ لَهُ أَصْحَابُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ قُمْ يَا أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ فَلَمَّا قَامَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا أَمِينُ هَذِهِ الْأُمَّةِ

[۴۱۲۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا إِسْحَاقَ عَنْ صِلَةَ بْنِ زُفَرَ عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَ أَهْلُ نَجْرَانَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا ابْعَثْ لَنَا رَجُلًا أَمِينًا فَقَالَ لَأَبْعَثَنَّ إِلَيْكُمْ رَجُلًا أَمِينًا حَقَّ أَمِينٍ فَاسْتَشْرَفَ لَهُ النَّاسُ فَبَعَثَ أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ [ر:۳۵۳۵]

[۴۱۲۱] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَمِينٌ وَأَمِينُ هَذِهِ الْأُمَّةِ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ [ر:۳۵۳۴]

نجران د مكې مكرمې نه يمن طرف ته اووه منزله فاصله باندې د يو لوئې ښار نوم دې.د نجران وفد د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې دوه ځله حاضر شوې دې.يو ځلې دا وفد مكې مكرمې ته حاضرشوې دې.هغه وخت دا په شلو سړو

---

(۱) په اردو كښې هم حاشيه نشته.

باندې مشتمل وو.(۱) او په دويم ځل ددوی وفد ۹ھ کښې راغلې دې.
دلته په روايت کښې چه دکومې واقعې بيان دې.هغه د ۹ھ ده.هغه وخت دا وفد د ابن سعد د بيان مطابق په څوارلسو او د ابن اسحاق د روايت مطابق ۲۴ سړو باندې مشتمل وو.(۲) په دوی کښې درې لوئې سرداران وو.دلته د بخاری په روايت کښې د دوؤ ذکر دې.يو، ،سيد، ، سره مشهور وو.دهغه نوم ، ،ايهم، ،يا ، ،شرحبيل، ، وو.د جماعت ترتيب او د سورلو وغيره انتظام دده په ذمه وو.دويم ، ،عاقب، ، وو.دهغه نوم ، ،عبدالمسيح، ، وو.دا د قافلې امير وو.دريم سردار چه دهغه ذکر د بخاری په روايت کښې نشته، ، ابوحارثه بن علقمه، ، وو.دا دهغوی امام او مذهبی مقتدا وو.(۳)
رسول الله ﷺ هغوی ته د اسلام دعوت ورکړو.او د قرآن تلاوت ئې اوکړو.خو هغوی د اسلام قبلولو نه انکار اوکړو.نبی علیه السلام اوفرمائيل.که تاسو زما د خبرې نه انکار کوئ.نو راشئ زه تاسو سره مباهله کوم.د سورة آل عمران په آيت ﴿تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنْفُسَنَا وَأَنْفُسَكُمْ....﴾ کښې هم دې مباهلې طرف ته اشاره ده.(۴)دغه خلق د مباهلې دپاره تيارشو.خو سيد ايهم يا عاقب اووئيل.چه که مونږه مباهله اوکړله.او دا واقعی د الله نبی وی.نو مونږ به ټول هلاك او برباد شو.نو دغه خلقو د مباهلې اراده پرېخودله.او راغلل.نبی علیه السلام ته ئې عرض اوکړو.چه تاسو کوم څه جزيه وغيره په مونږ باندې لازموئ.مونږ به ئې درکوو.رسول الله ﷺ په دوه زره حلو (جوړو) باندې هغوی سره صلح اوکړله.زر جوړې په رجب کښې او زر د صفر په مياشت کښې دهغوی په ذمه لازمې کړې شوې.(۵) ابن سعد ليکلی دی.چه سيد ايهم او عاقب دواړه روستو مسلمانان شو.(۶)
**فائده : د مباهلې معنی:** د مباهلې معنی ملاعنه ده.يعنی د يوبل دپاره د لعنت بددُعا کول.
علامه دوانی شافعی رحمه الله يوه مستقل رساله د مباهلې په شرائطو باندې ليکلې ده.په هغې کښې هغوی تفصيل سره د مباهلې شرطونه بيان کړی دی.(۷)
دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما، امام اوزاعی رحمه الله او امام شعبی رحمه الله وغيره حضراتو نه نقل د ی.چه هغوی د مباهلې دعوت ورکړو.څوك باطل پرست د حجت تماميدو باوجود که د باطل نه د رجوع کولو دپاره نه تياريږی.نو د مباهلې دعوت

---

۱) فتح الباری(۹٤/۸)_
۲) فتح الباری(۹٤/۸)_
۳) فتح الباری(۹٤/۸) په دلائل د بيهقی کښې دهغه نوم ابوحارثه راغلې دې.(اوګورئ! دلائل النبوة للبيهقی(۳۸۳/۵)_
۴) دلائل النبوة للبيهقی (۵۸۷/۵)_
۵) فتح الباری(۹۵/۸) وعمدة القاری (۴۷/۱۸)_
۶) فتح الباری(۹۵/۸) وطبقات ابن سعد(۳۸۵/۱)_
۷) فيض الباری(۱۲٤/٤)_

وركولې شي.حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلي دي.چه تجربه داده.چه د مباهلې کولو نه پس باطل پرست يوکال نه زياته پورې ژوندې نه پاتې کيږي.هغوی دځپل ځان په باره کښې ليکلي دي.چه يو ملحد سره زما مباهله اوشوه.چه په هغه دوه مياشتې هم نه وې تيرې شوې.چه هغه مړشو.(۱)

## بَاب قِصَّةُ عُمَانَ وَالْبَحْرَيْنِ

[۴۱۲۳] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ سَمِعَ ابْنُ الْمُنْكَدِرِ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَقُولُ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ قَدْ جَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ لَقَدْ أَعْطَيْتُكَ هَكَذَا وَهَكَذَا ثَلَاثًا فَلَمْ يَقْدَمْ مَالُ الْبَحْرَيْنِ حَتَّى قُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَدِمَ عَلَى أَبِي بَكْرٍ أَمَرَ مُنَادِيًا فَنَادَى مَنْ كَانَ لَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَيْنٌ أَوْ عِدَةٌ فَلْيَأْتِنِي قَالَ جَابِرٌ فَجِئْتُ أَبَا بَكْرٍ فَأَخْبَرْتُهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ جَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ أَعْطَيْتُكَ هَكَذَا وَهَكَذَا ثَلَاثًا قَالَ فَأَعْطَانِي قَالَ جَابِرٌ فَلَقِيتُ أَبَا بَكْرٍ بَعْدَ ذَلِكَ فَسَأَلْتُهُ فَلَمْ يُعْطِنِي ثُمَّ أَتَيْتُهُ فَلَمْ يُعْطِنِي ثُمَّ أَتَيْتُهُ الثَّالِثَةَ فَلَمْ يُعْطِنِي فَقُلْتُ لَهُ قَدْ أَتَيْتُكَ فَلَمْ تُعْطِنِي ثُمَّ أَتَيْتُكَ فَلَمْ تُعْطِنِي ثُمَّ أَتَيْتُكَ فَلَمْ تُعْطِنِي فَإِمَّا أَنْ تُعْطِيَنِي وَإِمَّا أَنْ تَبْخَلَ عَنِّي فَقَالَ أَقُلْتَ تَبْخَلُ عَنِّي وَأَيُّ دَاءٍ أَدْوَأُ مِنَ الْبُخْلِ قَالَهَا ثَلَاثًا مَا مَنَعْتُكَ مِنْ مَرَّةٍ إِلَّا وَأَنَا أُرِيدُ أَنْ أُعْطِيَكَ وَعَنْ عَمْرٍو عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيٍّ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يَقُولُ جِئْتُهُ فَقَالَ لِي أَبُو بَكْرٍ عُدَّهَا فَعَدَدْتُهَا فَوَجَدْتُهَا خَمْسَ مِائَةٍ فَقَالَ خُذْ مِثْلَهَا مَرَّتَيْنِ [ر: ۲۱۷۴]

بحرين د قبيلهٔ عبدالقيس ښار وو.عمان هغې ته نزدې د يوښار نوم دې.رسول الله ﷺ د اسلام د دعوت دپاره حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه هغه طرف ته اوليګه.د عمان د بادشاه جلندی دوه ځامن وو.د يو نوم ،،جيفر،،وو.او د دويم نوم ،،عياذ ،،وو.هغوی ته د اسلام د دعوت ورکولو هغه ته نبی علیه السلام خصوصی تاکيد اوکړو. حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه لاړلو.او هغوی ته ئې د اسلام دعوت ورکړو.اوهغوی اسلام قبول کړو.(۲) دا د ذيقعده ۸هـ واقعه ده.ددې نه پس دغه خلق د نبی علیه السلام په خدمت کښې حاضرشو.

دلته په روايت کښې صرف د بحرين ذکردې.د عمان ذکر نشته.امام بخاری رحمه الله ته د عمان په باره کښې هيڅ يو روايت دځپل شرط مطابق ملاؤ نشو.په دې وجه ئې د بحرين روايت ذکر کړو.عمان بحرين ته نزدې واقع دې.

تنبيه:دلته چه دکوم عمان ذکردې.دا بحرين ته نزدې يو ښاردې.ددې ذکر په مختلفو رواياتو کښې ملاويږي.امام احمد بن حنبل رحمه الله يو روايت نقل کړې دې.چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.

((انی لاعلم ارضاً يقال لها ،،عمان،، ينضح بناحيتها البحر، لواتاهم رسول ما رموه بسهم ولاحجر))(۳)

---

۱) فتح البارى(۹۵؍۸)_
۲) عمدة القارى(۲۹؍۱۸)_
۳) فتح البارى(۹۶؍۸)_

يعنی ماته يوه داسې علاقه معلومه ده.چه هغې ته،،عمان،، وائي.دهغې غاړې سره درياب لګيدلې دې.(يعنی درياب سره پيوست دې) كه زما قاصد د عمان اوسيدونكو ته ورشي.
نوهغه خلق به په هغه نه غشي اولي.او نه کانړی،،
يوبل ښار، عمان (په فتحې د عين او په تشديد دميم سره) دې.كوم چه نن صباد اردن حكومت دارالسلطنت دی.متقدمين ليکي.چه دا د شام علاقې يو ښار دې.څکه چه مخکښې دا حصه هم شام کښې شامل وه.دلته هغه مراد نه ده.(۱)

## =بَابُ قُدُومِ الْأَشْعَرِيِّينَ وَأَهْلِ الْيَمَنِ

د اشعريينو وفد د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې د خيبر فتح کيدو نه پس ۷ھ کښې راغلې دې.او د اهل يمن وفدپه سنة الوفود کښې يعنی ۹ھ کښې راغلې دی.(۲) خو چونکه د اشعريينو تعلق هم يمن سره دی.په دې وجه امام بخاری رحمه الله دواړه يوځائې جمع کړل.امام بخاری رحمه الله په واقعاتو بيانولو کښې لکه څنګه چه د تاريخی ترتيب لحاظ ساتی.هغه شان په بعضو واقعاتوکښې هغوی د تاريخی ترتيب رعايت هم پريخودې دې.د بل څه مناسبت په وجه ئې واقعات يو بل سره يوځائې کړی دی.

**قوله**: وَقَالَ أَبُو مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُمْ مِنِّي وَأَنَا مِنْهُمْ:

[ر:۲۳۵۴] نبی علیه السلام اوفرمائيل.دا خلق زما څيني دی.او زه دهغوی نه يم.قاعده داده.چه کله دچا سره څه خاص ربط او تعلق پيدا شی.نوهغه خپل شمارلې کيږی.ددې ارشاد هم دغه معنی ده.

[۴۱۲۳] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ وَإِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ قَالَا حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَدِمْتُ أَنَا وَأَخِي مِنَ الْيَمَنِ فَمَكَثْنَا حِينًا مَا نُرَى ابْنَ مَسْعُودٍ وَأُمَّهُ إِلَّا مِنْ أَهْلِ الْبَيْتِ مِنْ كَثْرَةِ دُخُولِهِمْ وَلُزُومِهِمْ لَهُ [ر:۳۵۵۲]

حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه فرمائی.چه کله مونږ د يمن نه راغلو.نو څه مودې پورې مونږ ابن مسعود رضی الله عنه او دهغه مور د اهل بيتو نه ګڼړل.څکه چه دهغوی نبی علیه السلام سره تعلق او دهغه سره حاضری داسې وه.لکه چه دخپل خاندان د خلقو او نزدې رشته دارانو وی.

[۴۱۲۴] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ زَهْدَمٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ أَبُو مُوسَى أَكْرَمَ هَذَا الْحَيَّ مِنْ جَرْمٍ وَإِنَّا لَجُلُوسٌ عِنْدَهُ وَهُوَ يَتَغَدَّى دَجَاجًا وَفِي الْقَوْمِ رَجُلٌ جَالِسٌ فَدَعَاهُ إِلَى الْغَدَاءِ فَقَالَ إِنِّي رَأَيْتُهُ يَأْكُلُ شَيْئًا فَقَذِرْتُهُ فَقَالَ هَلُمَّ فَإِنِّي رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُهُ فَقَالَ إِنِّي حَلَفْتُ لَا آكُلُهُ فَقَالَ هَلُمَّ أُخْبِرْكَ عَنْ يَمِينِكَ

---
(۱) فتح الباری(۸/۹۶)_
(۲) فتح الباری(۸/۹۷)_

إِنَّا أَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفَرٌ مِنَ الْأَشْعَرِيِّينَ فَاسْتَحْمَلْنَاهُ فَأَبَى أَنْ يَحْمِلَنَا فَاسْتَحْمَلْنَاهُ فَحَلَفَ أَنْ لَا يَحْمِلَنَا ثُمَّ لَمْ يَلْبَثِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أُتِيَ بِنَهْبِ إِبِلٍ فَأَمَرَ لَنَا بِخَمْسِ ذَوْدٍ فَلَمَّا قَبَضْنَاهَا قُلْنَا تَغَفَّلْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمِينَهُ لَا نُفْلِحُ بَعْدَهَا أَبَدًا فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّكَ حَلَفْتَ أَنْ لَا تَحْمِلَنَا وَقَدْ حَمَلْتَنَا قَالَ أَجَلْ وَلَكِنْ لَا أَحْلِفُ عَلَى يَمِينٍ فَأَرَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا إِلَّا أَتَيْتُ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ مِنْهَا وتحللتها [ر: ۲۹۶۴]

دا د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ د خلافت د زمانې واقعه ده. چه حضرت ابوموسی اشعری رضی اللہ عنہ د کوفې گورنر جوړ شو. او راغې.(۱) نود جرم قبيلې هغوی ډیر اکرام اوکړو. هغه داسې چه هغوی سره ئې قیام اوکړو. د هغوی عزت ئې اوساته.

**قوله**: فأمرلنا بخمس ذود: په دې روایت کښې دی. چه نبی علیه السلام د پنځو اوښانو حکم اوفرمائیلو. په یو بل روایت کښې د ،،ثلاث ابعرة،، دریو اوښانو ذکردې. او بل یو روایت راروان دې. په هغې کښې د شپږو اوښانو ذکردې. ممکن ده. چه جدا جدا واقعات وی. او دا هم کیدې شی. چه پنځه اوښان ئې یوخاص وخت کښې ورکړې وی. او یو اوښ ئې اخستې وی. او په هغې کښې شامل کړې وی. او یوه توجیه خو هرځائې کښې چلیدې شی. چه اقل عدد د زیاتو نفی نه کوی.

[۴۱۲۵] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا أَبُو صَخْرَةَ جَامِعُ بْنُ شَدَّادٍ حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ مُحْرِزٍ الْمَازِنِيُّ حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ قَالَ جَاءَتْ بَنُو تَمِيمٍ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَبْشِرُوا يَا بَنِي تَمِيمٍ قَالُوا أَمَّا إِذْ بَشَّرْتَنَا فَأَعْطِنَا فَتَغَيَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْبَلُوا الْبُشْرَى إِذْ لَمْ يَقْبَلْهَا بَنُو تَمِيمٍ قَالُوا قَدْ قَبِلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ [ر: ۳۰۱۸]

[۴۱۲۶] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْإِيمَانُ هَا هُنَا وَأَشَارَ بِيَدِهِ إِلَى الْيَمَنِ وَالْجَفَاءُ وَغِلَظُ الْقُلُوبِ فِي الْفَدَّادِينَ عِنْدَ أُصُولِ أَذْنَابِ الْإِبِلِ مِنْ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنَا الشَّيْطَانِ رَبِيعَةَ وَمُضَرَ [ر: ۳۱۲۶]

[۴۱۲۷/۴۱۲۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ ذَكْوَانَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَاكُمْ أَهْلُ الْيَمَنِ هُمْ أَرَقُّ أَفْئِدَةً وَأَلْيَنُ قُلُوبًا الْإِيمَانُ يَمَانٍ وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ وَالْفَخْرُ وَالْخُيَلَاءُ فِي أَصْحَابِ الْإِبِلِ وَالسَّكِينَةُ وَالْوَقَارُ فِي أَهْلِ الْغَنَمِ وَقَالَ غُنْدَرٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ سَمِعْتُ

---

۱) فتح البارى (۸/۹۸)۔

ذَكْوَانَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[۳۱۲۸] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي أَخِي عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَبِي الْغَيْثِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْإِيمَانُ يَمَانٍ وَالْفِتْنَةُ هَا هُنَا هَا هُنَا يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ

[۳۱۲۹] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَتَاكُمْ أَهْلُ الْيَمَنِ أَضْعَفُ قُلُوبًا وَأَرَقُّ أَفْئِدَةً الْفِقْهُ يَمَانٍ وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ [ر:۳۱۲۵]

**قوله**: الايمان هاهنا: واشار بيده الى اليمن: نبى كريم ﷺ يمن طرف ته اشاره اوكړله.اووې فرمائيل.ايمان دلته دې.او په دويم روايت كښې دى.،،الايمان يمان،، ايمان خو يمنى دې.د ايمان نسبت يمن طرف ته دكولو دا وجه وه.چه د يمن خلق پخپله اسلام طرف ته رامخكښې شوى وو.او په ايمانى صفاتو سره ډير اوچت وو.اوكله چه يو سړې يا يوجماعت په څه خاص صفت سره په امتيازى شان سره موصوف شى.نوهغه وصف هغه سره مخصوص طور باندې ذكركولې شى.خو ددې مقصد دا هيڅ كله نه وى.چه هغه وصف په نوروكښې نشته.

**قوله**: والجفاء وغلظ القلوب فى الفدّادين: جفاء او د زړونو سختى په فدادينو كښې ده.

**د فدادين معنى**:د جفاء نه مراد د زړه سختى او د ،،غلظ القلوب،، نه مراد د زړونو غلط فهمى اوكوږوالې دې.او كيدې شى.چه د ،،غلظ القلوب،، عطف په ،،الجفاء،، باندې عطف تفسيرى وى.او د دواړو نه مراد د زړه سختى وى.والله اعلم.د ،،فدادين،، په باره كښې دوه خبرې نقل كړې شوى دى:

① فدادين د ،،فداد،، جمع ده.او فداد د ،،فديد،، نه ماخوذ دې.فديد هغه آواز ته وائى. كوم چه د څناورو والا د خپلو څناورو پاسولو، چلولو او تيز تللو دپاره كوى.(١)مطلب دادې. چه كوم خلق اوښان او څاروى ساتى.اوداوښانولكو سره شور كوى.اوچغې وهى.په هغوى كښې د زړونو سختى، كوږوالې اوكم عقل توب وى.

② دويم صورت دادې.چه فدادين د دال تخفيف سره د ،،فدان،،جمع ده.د فدان معنى ده. ،،آلة الحرث،،(٢) په دې صورت كښې به مضاف محذوف منلې شى. يعنى «الجفاء وغلظ القلوب فى اصحاب الفدادين عند اصول اذناب الابل»

**قوله**: من حيث يطلع قرنا الشيطان ربيعة ومضر: مشرق طرف ته اشاره ده.دا اشاره

---

(١) عمدة القارى(٣١/١٨)_

(٢) عمدة القارى(٣١/١٨)_

مشرق ته ددې دپاره شوې ده.چه کوم وخت نمر راخیژی.شیطان دهغې په برابر اودریږی.او کوم خلق چه نمر ته سجدې کوی.دې دخپل ځان دهغوی د معبود په حیثیت سره د ښکاره کولو کوشش کوی.(۱)

دلته ،،قرنا الشیطان،، مبدل منه دې.او ،،ربیعة ومضر،، دهغې نه بدل دې.ربیعه او مضر دواړه ئې د شیطان ښکرې اوګرځولې.چونکه دغه وخته پورې هغې خلقو اسلام نه وو راوړلې.او په شیطانی صفاتو او حرکتونو کښې به وړاندې وو.په دې وجه نبی علیه السلام هغوی ته ،،قرنا الشیطان،، اوفرمائیل.

**قوله**: حدثنا محمد بن بشار..... هم ارق افئدة والین قلوبا:داخلق په زړه نری او نرم زړه والا دی.بعضې عالمانو په ،،فؤاد،، او ،،قلب،، کښې فرق بیان کړې دې.چه ،،فؤاد،، غشاء القلب یعنی د زړه پردې ته وائی.که دغه پرده نرئ وی.نو وعظ او نصیحت په زړه باندې زر اثر کوی.اوکه هغه سخته وی.نو د نصیحت اثر زر نه کیږی.مطلب دادې.چه د یمن دخلقو زړه هم نرم دې.او د هغوی په زړه باندې پرده هم نرئ ده.(۲)

**قوله**: والحکمة یمانیة:

**د حکمت معنی**: دحکمت په باره کښې مختلف اقوال علماؤ بیان کړی دی.بعضو وئیلی دی.

((الحکمة الفهم عند الله وقیل التفقه فی الدین، وقیل الاصابة فی القول والعمل))(۱) وقیل غیر ذالك))

**قوله**: والفخر والخیلاء فی اصحاب الابل، والسکینة والوقار فی اهل الغنم: فخر او تکبر په اوښانو والا کښې دې.او عاجزی او وقار په ګډبه کښې دې.په حقیقت کښې چه صحبت دکوم څیزهم وی.په انسان باندې دهغې اثر ضرور کیږی .په اوښانو کښې د لوئې والی او تکبر صفت موجود وی.نو دهغې د صحبت په اثر سره دا صفت د اوښانو والا طرف ته هم منتقل کیږی.او چیلئ یو مسکین (عاجزه) ځناور دې.نو کوم خلق چه ګډو سره هر وخت اوسیږی.په هغوی کښې عاجزی او وقار راځی.

[۴۳۰] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ كُنَّا جُلُوسًا مَعَ ابْنِ مَسْعُودٍ فَجَاءَ خَبَّابٌ فَقَالَ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَيَسْتَطِيعُ هَؤُلَاءِ الشَّبَابُ أَنْ يَقْرَءُوا كَمَا تَقْرَأُ قَالَ أَمَا إِنَّكَ لَوْ شِئْتَ أَمَرْتُ بَعْضَهُمْ يَقْرَأُ عَلَيْكَ قَالَ أَجَلْ قَالَ اقْرَأْ يَا عَلْقَمَةُ فَقَالَ زَيْدُ بْنُ حُدَيْرٍ أَخُو زِيَادِ بْنِ حُدَيْرٍ أَتَأْمُرُ عَلْقَمَةَ أَنْ يَقْرَأَ وَلَيْسَ بِأَقْرَئِنَا قَالَ أَمَا إِنَّكَ إِنْ شِئْتَ أَخْبَرْتُكَ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْمِكَ وَقَوْمِهِ فَقَرَأْتُ خَمْسِينَ آيَةً مِنْ سُورَةِ مَرْيَمَ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ كَيْفَ تَرَى قَالَ قَدْ أَحْسَنَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ مَا أَقْرَأُ شَيْئًا إِلَّا وَهُوَ يَقْرَؤُهُ ثُمَّ

---

۱) عمدة القاری(۳۱\۱۸)_

۲) عمدة القاری(۳۳\۱۸) وفتح الباری(۱۰۰\۸)_

اِلْتَفَتَ إِلٰی خَبَّابٍ وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ ذَهَبٍ فَقَالَ أَلَمْ يَأْنِ لِهٰذَا الْخَاتَمِ أَنْ يُلْقٰی قَالَ أَمَا إِنَّكَ لَنْ تَرَاهُ عَلَيَّ بَعْدَ الْيَوْمِ فَأَلْقَاهُ رَوَاهُ غُنْدَرٌ عَنْ شُعْبَةَ

حضرت علقمه رحمه الله فرمائي.چه مونږ دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره ناست وو.چه په دې کښې حضرت خباب بن ارت رضي الله عنه تشريف راوړه.او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته ئې اووئيل.تاسو سره ناست دا خوانان ستاسو په شان قرآن لوستلې شي؟ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل.که تاسو غوارئ.نو زه به يوکس ته د تلاوت دپاره اووايم.وې وئيل.ضرور اووايه.حضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل.اې علقمه! ته اولوله.په دې باندې د مشهور تابعي زياد بن حدير ورور زيد بن حدير حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته اووئيل.،،تاسو علقمه ته د تلاوت کولو دپاره فرمايئ.حالانکه هغه زمونږ ټولو نه ښه قاری نه دې،، نو حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه زيد بن حدير ته اوفرمائيل.

**قوله**: أَمَا إِنَّكَ إِنْ شِئْتَ أَخْبَرْتُكَ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْمِكَ وَقَوْمِهِ: ،،يعنی که ته غوارې.نو زه به تاته هغه حديث واوروم.کوم چه رسول الله ﷺ ستاد قوم او د علقمه د قوم په باره کښې فرمائيلې دې،،

دلته په بخاری کښې ددې حديث ذکرنشته.په حقيقت کښې د علقمه تعلق نخع قبيلې سره وو.چه دا د يمن مشهوره قبيله ده.ا د زيد بن حدير تعلق بنو اسد سره وو.رسول الله ﷺ ددې دواړو قبيلو (د نخع او بنواسد) باره کښې چه کوم حديث بيان کړې دې.هغه امام احمد رحمه الله پخپل ..مسند،،کښې دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه نقل کړې دې.چه هغوی اوفرمائيل.

**قوله**: شهدت رسول الله ﷺ يدعو لهذا الحيّ من النخع و يثني عليهم حتى تمنيت اني رجل منهم: (۲)،،حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائي.چه زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر ووم. نبی عليه السلام د نخع قبيلې دپاره دعا اوفرمائيله.اودهغوی تعريف ئې اوکړو. ترديې چه زما خواهش پيدا شو.چه زه هم ددغه قبيلې يوکس وې،،

اودبنواسد باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل((ان جهينة وغيرها خير من بني اسد))(۳) د بنواسد په مقابله کښې نبی عليه السلام جهينه او نورو قبيلو ته ترجيح ورکړله.نو حضرت عبدالله بن

---

دتيرمخ حاشيه] ۱) روح المعانی (۴۱۱۳)علامه آلوسي ليکلي دی.چه د حکمت په تفسير کښې د عالمانو يوکم څلوېښت اقوال دی.علامه نووی رحمه الله دحکمت جامع تعريف کولوکښې ليکلی دی.((والذی صفا لنا منها، ان الحكمة عبارة عن العلم المتصف بالاحكام المشتمل على معرفة الله تعالى المصحوب بنفاذ البصيرة، وتهذيب النفس، وتحقيق الحق، والعمل به، والصد عن اتباع الهوى والباطل))(شرح مسلم للنووی: ۵۳۱۱)_

۲) فتح الباری(۱۰۰۱۸)_

۳) فتح الباری(۱۰۰۱۸)_

مسعود رضي الله عنه زيد بن حدير ته مخاطب شو.اووې وئيل.

**قوله**: أَمَا إِنَّكَ إِنْ شِئْتَ أَخْبَرْتُكَ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْمِكَ وَقَوْمِهِ: په دې جملې سره هغوی د حضرت علقمه دترجيح وجه اوخودله.چه دده د قوم تعريف نبى عليه السلام فرمائيلې دې.اوستا قوم ئې خو د جهينه په مقابله كښې هم مرجوح گرځولې دې.

حضرت علقمه فرمائي.چه بيا ما د سورة مريم د پنځوسو آياتونو تلاوت اوكړو.حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دحضرت خباب رضي الله عنه نه تپوس اوكړو.چه تلاوت ئې څنګه اوكړو؟ هغه اووئيل.

"قد احسن"، ډيرښه تلاوت ئې اوكړو.

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اوكتل.چه دحضرت خباب رضي الله عنه په لاس كښې د سرو زرو ګوتمه ده.نوهغه ته ئې اوفرمائيل.لا تراوسه پورې تا دا ګوتمه نه ده غورځولې.حضرت خباب رضي الله عنه اووئيل.چه ددنن نه پس به تاسو زما په لاس كښې دا ګوتمه كله هم نه وينئ.نو هغه ګوتمه هغوی اوښكله.

په دې روايت كښې دحضرت علقمه د قبيلې نخع ذكر ضمنى طور باندې په دې طريقه راغلې دې.چه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل. «إِنْ شِئْتَ أَخْبَرْتُكَ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَوْمِكَ وَقَوْمِهِ» او نخع د يمن قبيله ده.په دې وجه امام بخارى رحمه الله دا روايت په دې باب كښې ذكركړو.

**فائده**: حضرت خباب بن ارت رضي الله عنه د سرو زرو دګوتمې استعمال غالباً هغه دحرمت حديث په نهى تنزيهى باندې محمول كولو.اودا هم كيدې شى.چه د نهى حديث هغه ته نه وى رسيدلې.كله چه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د سرو دپاره ددې د استعمال حرمت اوخودلو.نو هغه ددې استعمال پريخوده.[1]

**حضرت علقمه رحمه الله**: حضرت علقمه رحمه الله دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اوچتو شاګردانو څينې وو.علامه ذهبى رحمه الله د رباح قول نقل كړې دې.چه «اذا رأيت علقمة فلا يضرك ان لا ترى عبدالله»[2] يعنى كه تا علقمه اوليده.نو دا خبره ستا دپاره هيڅ نقصان نه دركوى .چه تا حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اونه ليده.او دا ځكه چه علقمه د خپل استاذ د علومو محافظ او دهغه د سيرت او كردار نمونه وه.

دحضرت علقمه وفات د يزيد په دورخلافت كښې ۶۲ھ كښې اوشو.لس كم سل كاله عمر ئې وو.[3]

---

[1] فتح البارى(۱۰۱۸)_

[2] سيراعلام النبلاء (۵۵\۴)_

[3] سيراعلام النبلاء (۶۱\۴)_

## باب قصة دوس والطفيل بن عمرو الدوسى

[۴۱۳۱] حدثنا أبو نعيم حدثنا سفيان عن ابن ذكوان عن عبد الرحمن الأعرج عن أبي هريرة رضي الله عنه قال جاء الطفيل بن عمرو إلى النبي صلى الله عليه وسلم فقال إن دوسا قد هلكت عصت وأبت فادع الله عليهم فقال اللهم اهد دوسا وأت بهم [ر: ۲۷۷۹]

يمن اودهغې په خواوشا علاقوکښې دوس قبيله آباده وه.ددې قبيلې دټولو نه ړومبې سړې چه هغه اسلام قبول کړو.هغه طفيل بن عمرو وو.دا د دوس قبيلې سرداروو.قريشوسره دهغوی حليفانه( د ملګرتيا ) تعلقات وو.د هجرت نه مخکښې دې مکې مکرمې ته راغې.نو د قريشو بعضې خلقو هغه ته اوونيل.چه نن صبا په مونږ کښې يو سړې پيدا شوې دې.چه هغه ټول خلق په فتنه کښې اچولی دی.دهغه کلام ډير ساحرانه دې.په پلار اوخوی او ښځه خاوند کښې هم جدائی راولی.په دې وجه تاسو کوشش اوکړئ.چه دهغه هيڅ خبره ستاسو غوږونو ته راونه رسی. حضرت طفيل بن عمرو لره قريشو دومره اويرولو.چه هغه په خپلو غوږونوکښې مالوچ کيخودل.چه د نبی عليه السلام څه خبره په غوږ کښې رانه شی.

يوه ورځ سحر وختې حضرت طفيل رضي الله عنه خانه کعبې ته تلې وو.هلته رسول الله صلى الله عليه وسلم د سحر مونځ کولو،او د قرآن شريف تلاوت ئې لوستلو.هغه سوچ اوکړو.چه آخر زه عقل او پوهه لرم. په ښه او بده خبره کښې فرق کولې شم.د نبی ﷺ کلام ماله اوريدل پکاردی.که ښه وی. نو قبول به ئې کړم.اوکه بد وی.نو پرې به ئې ګدم. حضرت طفيل بن عمرو رضي الله عنه قرآن واوريده.او دومره متاثره شو.چه کله رسول الله صلى الله عليه وسلم فارغ شو.او کورته ئې تشريف راوړه.نو حضرت طفيل هم د نبی ﷺ کورته راغې. اودټولې واقعې اورولو نه پس ئې عرض اوکړو.چه تاسو راته خپل دين پيش کړئ. نبی کريم صلى الله عليه وسلم د اسلام تعارف اوکړو.او هغه اسلام قبول کړو.(۱)

نبی کريم صلى الله عليه وسلم هغه لره دوس قبيلې طرف ته د اسلام دعوت ورکولو دپاره اوليګه. هغوی اوونيل.«اجعل لى آية»اې دالله رسوله!ماته څه نخښنه راکړئ.نبی ﷺ اوفرمائيل. «اللهم نور له» اې الله! ده ته نور ورکړې.نو دهغه د سترګو په منځ کښې الله تعالی يو نور پيدا کړو.خوبيا ئې دعا اوکړه.«يا رب! اخاف يقولوا انه مثله» اې زما ربه! ماته يره ده.چه خلق په دې نور کتلو سره دا اونه وائی.(چه د پلار نيکونو دين پريخودو په وجه) دا مثله شو.الله ﷻ هغه نور دهغه کوړې طرف ته منتقل کړو.دهغه کوړه به په توره تياره شپه کښې د ډيوې پشان رڼا کوله.(۲) هغه چه لاړو.نو پخپله قبيله کښې ئې د اسلام تبليغ شروع کړو.چه په دې سره دهغه پلار مسلمان شو.خو دهغه مور اسلام قبول نکړو.حضرت ابوهريره رضي الله عنه هم دهغه په دعوت سره اسلام قبول کړو.(۳) باقی خلقو د اسلام قبلولو نه انکار اوکړو.دې نا اميده شو.او د نبی ﷺ

---

(۱) دمذکوره واقعې دپاره اوګورئ: دلائل د بيهقی(۵/ ۳۶۰-۳۶۱) باب قصة دوس)_

(۲) فتح البارى(۱۰۲/۸)_

(۳) فتح البارى(۱۰۲/۸)_

په خدمت كښې حاضرشو.او عرض ئې اوكړو.لكه څنګه چه دلته د باب په ړومبى روايت كښې راځى.«ان دوساً قد هلكت وابت فادع الله عليهم» يعنى دوس قبيله هلاكه شوه.نافرمانى ئې اوكړله.داسلام قبلولونه ئې انكار اوكړو.نو تاسو هغوى دپاره بددعا اوكړئ.رسول اللهﷺ د بددعا په ځائې دعا اوفرمائيله.«اللهمّ اهد دوساً وائت بهم» اې الله! دوس قبيلې ته هدايت وركړې.اوهغوى زما خواته راولې،، ددې نه روستو الله تعالى دغه قبيلې ته هدايت وركړو. او ۷۰ يا ۸۰ سرى د نبىﷺ په خدمت كښې حاضرشو.اسلام ئې راوړه.د دوس دا وفد په سن۷ھ كښې راغلې دې.(۱) والله اعلم.

[۴۱۳۲] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ عَنْ قَيْسٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا قَدِمْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ فِي الطَّرِيقِ

يَا لَيْلَةً مِنْ طُولِهَا وَعَنَائِهَا: عَلَى أَنَّهَا مِنْ دَارَةِ الْكُفْرِ نَجَّتِ وَأَبَقَ غُلَامٌ لِي فِي الطَّرِيقِ فَلَمَّا قَدِمْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَايَعْتُهُ فَبَيْنَا أَنَا عِنْدَهُ إِذْ طَلَعَ الْغُلَامُ فَقَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ هَذَا غُلَامُكَ فَقُلْتُ هُوَ لِوَجْهِ اللَّهِ فَأَعْتَقْتُهُ [ر: ۲۳۹۲]

**حضرت ابوهريره رضى الله عنه:** حضرت ابوهريرهؓ فرمائى.چه كله زه د رسول اللهﷺ په خدمت كښې حاضريدو دپاره روان شوم.نو په لاره كښې ما دا شعر اوويلې.

يا ليلة من طولها وعنائها . على انها من دارة الكفر نجت

،،هائې شپې! ته څومره اوږده يې.او ستا تكليف څومره د برداشت نه بهردې.خو ستا دا فضيلت هم شته.چه تا ماته د دارالكفر نه نجات راكړو،،

زما غلام په لاره كښې زما نه تختيدلې وو.كله زه د رسول اللهﷺ په خدمت كښې حاضرشوم.هغه سره مې بيعت اوكړو.اوس لا زه د نبىﷺ سره ناست ووم.چه هغه غلام راښكاره شو.رسول اللهﷺ اوفرمائيل.ابوهريره! دا ستا غلام دې؟ ما اوويل.هغه د الله د رضا دپاره آزاد دې.

حضرت ابوهريرهؓ په سن۷ھ كښې مسلمان شوې دې.چونكه دهغه تعلق هم دوس قبيلې سره دې.(۲) په دې وجه امام بخارىؒ دا روايت په دې باب كښې بيان كړو.

**تنبيه:** زمونږ په نسخو كښې«هولوجه الله فاعتقته» دې.د حاشيې په نسخو كښې «هوحرّ لوجه الله» دې.خو هغه صحيح نه دې.څكه چه دا دمحمد بن العلاء روايت دې. اوددې روايت په باره

---

۱) دلائل بيهقى(۳۶۲/۵)_

۲) دحضرت ابوهريرهؓ نوم اوريدو سره د حديثو شوق لرونكو په زړونو كښې د محبت چينې راخوټكيږى.ددوى نه پنځه زره درې سوه او پنځه اويا احاديث منقول دى.ددوى دنوم باره كښې مختلف اقوال دى.زيات مشهور ،،عبدالرحمن بن صخر،، دې.په مدينه منوره كښې ۵۷ھ يا ۵۸ھ كښې وفات شو.(اوګورئ! عمدة القارى (۳۴/۱۸-۳۵)_

كښې امام بخاری رحمه الله په كتاب العتق صفحه ۳۴۴ كښې تصريح كړې ده.چه په دې كښې ،،هوحر،، نه دي واقع شوي.(۱)

## بَاب قِصَّةِ وَفْدِ طَيِّئٍ وَحَدِيثُ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ

[۴۳۳] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ أَتَيْنَا عُمَرَ فِي وَفْدٍ فَجَعَلَ يَدْعُو رَجُلًا رَجُلًا وَيُسَمِّيهِمْ فَقُلْتُ أَمَا تَعْرِفُنِي يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ قَالَ بَلَى أَسْلَمْتَ إِذْ كَفَرُوا وَأَقْبَلْتَ إِذْ أَدْبَرُوا وَوَفَيْتَ إِذْ غَدَرُوا وَعَرَفْتَ إِذْ أَنْكَرُوا فَقَالَ عَدِيٌّ فَلَا أُبَالِي إِذًا

د قبيلۀ طى وفد كوم چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې راغلى دې.خليفه بن خياط پخپل تاريخ كښې ددې خبرې تصريح كړې ده.چه دا وفد مخكښې راغلې دې.او دحضرت عدى بن حاتم رضى الله عنه حاضرى د نبى عليه السلام په خدمت كښې ددې نه پس شوې ده. عدى بن حاتم رضى الله عنه په ۹ ه يا ۱۰ ه كښې اسلام قبول كړو.(۱) دا د مشهور جواد او سخى حاتم طائى خوئې دې.

حضرت عدى بن حاتم رضى الله عنه فرمائى.چه مونږ د حضرت عمر رضى الله عنه په دورخلافت كښې هغه ته راغلو.حضرت فاروق اعظم رضى الله عنه د وفد په كسانو كښې يويو كس ته د هغه نوم اخستلو سره رابلل شروع كړل.خوعدى بن حاتم رضى الله عنه ئې راؤنه غوښتلو.عدى بن حاتم رضى الله عنه چونكه د يو ډير لوئې سردار خوئې دې.په جود او سخا كښې ډير مشهور وو.په دې وجه دهغه خيال دا وو.چه ما لره نظر انداز كول پكار نه دى.نو هغه حضرت فاروق اعظم رضى الله عنه ته اووئيل.«اما تعرفنى يا اميرالمؤمنين؟» اې امير المؤمنين! آيا ما نه پيژنې؟ اميرالمؤمنين جواب وركړو.ولې نه، «اسلمت اذ كفروا ،واقبلت اذ ادبروا،ووفيت اذغدروا،وعرفت اذ انكروا»ته هغه وخت مسلمان شوې.كوم وخت چه دا خلق كافر وو.اوته هغه وخت حاضر شوې.كوم وخت چه دوى شا اوكرځوله.اوتا هغه وخت وفا اوكړله.كوم وخت چه دې خلقو دهوكه او بې وفائى اوكړله.او تا هغه وخت (اسلام) اوپيژندو.كوم وخت چه دوى د اجنبى كيدو اظهار اوكړو.

د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د وفات نه پس د طى قبيلې بعضې خلق مرتد شوى وو.او د زكواة وركولو نه ئې انكاركړې وو.دغه شان ددې قبيلې څينې خلقو په مسيلمه كذاب باندې ايمان راوړلې وو.خو حضرت عدى بن حاتم رضى الله عنه د اسلام رسۍ مضبوطه نيولې وه.او كوم خلق چه دده ماتحت وو.هغوى ئې د مرتد كيدو نه او په مسيلمه باندې د ايمان راوړلو نه منع كړل.

«واقبلت اذادبروا، ووفيت اذغدروا، وعرفت اذانكروا» نه حضرت فاروق اعظم رضى الله عنه هم دې طرف ته اشاره كړې ده.(۲) كله چه حضرت فاروق اعظم رضى الله عنه دا جمله اووئيله.نو حضرت عدى رضى الله عنه

---

۱) صحيح بخارى، كتاب العتق، باب اذا قال لعبده هولله ونوى العتق (۱۱ ۳۴۴)ـ

اوونیل.«فلا أبالی اذاً» بیا خو زما هیڅ پرواه نشته.یعنی هرکله چه تاسو ما داسې پیژنئ.نوکه زه دې راونه غوښتم.نو هیڅ پرواه نشته.

**حضرت عدی بن حاتم رضی الله عنه** حضرت عدی بن حاتم رضی الله عنه د اسلام راوړلو نه وړاندې نصرانی وو.په ۹ه یا ۱۰ه کښې ئې اسلام راوړه.د عراق په فتح کښې شریك شو.په جنګ صفین کښې دحضرت علی رضی الله عنه د طرفه جنګ کولوکښې شهید شو.یوسل اوشل کاله. یا شل کم دوه سوه کاله عمر ئې وو.(۳)

## بَاب حَجَّةِ الْوَدَاعِ

امام بخاری رحمه الله ترتیب سره د سیرت واقعات ذکرکوی.د سن ۱ هجری نه واخله د سن ۱۰هجری پورې د غزواتو، سرایا او وفودو ذکرکولو نه پس اوس په سن۱۰ ه کښې واقع شوې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دهغه آخری حج ذکرکوی.کوم چه په تاریخ اسلام کښې د حجة الوداع په نوم سره مشهور دې.

**د حجة الوداع څلور نومونه**:ددې حج څلور نومونه دی:

① حجة الوداع ② حجة الاسلام ③ حجة التمام ④ حجة البلاغ (۴)

دې ته حجة الوداع ځکه وائی.چه په دې کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم خلقو ته الوداع ونیلې وه.او فرمائیلی ئې وو.«لعلی لا القاکم بعد عامی هذا» شاید ددې نه پس زما تاسو سره ملاقات اونه شی.

حجة الاسلام ورته ځکه وائی.چه دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم دحج فریضه وه.د حج د فرضیت نازلیدو نه د اسلامی رکن کیدو په حیثیت سره نبی علیه السلام هم دا حج ادا کړو.

حجة التمام ورته ځکه وائی.چه ددې حج په موقعه باندې د قرآن شریف آیت ﴿اَلْیَوْمَ اَکْمَلْتُ لَکُمْ دِیْنَکُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَیْکُمْ نِعْمَتِیْ وَرَضِیْتُ لَکُمُ الْاِسْلَامَ دِیْنًا﴾ نازل شو.

اودې ته حجة البلاغ ځکه وائی.چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په دې حج کښې مختلفې خطبې ارشاد اوفرمائیلې.اودخطبو نه پس نبی علیه السلام اوفرمائیل.«الاهل بلغت، الاهل بلغت» یعنی آیا ما د الله پیغام تاسو ته اورسولو.(۵)

ددې حج دپاره دمخکښې نه اعلان شوې وو.چه دې کال به رسول الله صلی الله علیه وسلم حج کولودپاره ځی.امام مسلم، امام ابوداؤد او ابن ماجه دحضرت جابر رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې.چه ددې اعلان نه پس د خلقو لوئې تعداد مدینې منورې ته راغې. ټولو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره حج کول غوښتل.(۱)

---

د تیر مخ حاشیه] ۱) عمدة القاری(۱۸\۳۵)_

۲) فتح الباری(۸\۱۰۳)_

۳) الاصابة فی تمییز الصحابة(۲\۴۶۸)_

۴) تاریخ الخمیس فی احوال انفس نفیس (۲\۱۴۸)_

۵) عمدة القاری(۱۸\۳۶)_

**حج دپاره روانګی** د ذی قعده میاشت شروع کیدو سره نبی کریم ﷺ د حج تیاری شروع کړله. او صحابو ته ئې حکم اوکړو.چه هغوی هم دحج تیاری اوکړی.په ۲۵ ذیقعده ۱۰ھ د هفتې په ورځ رسول الله ﷺ د زرګاؤ صحابو ﷺ یو عظیم الشان او مبارک جماعت دخان سره کړو.او حج دپاره مکې مکرمې طرف ته روان شو.ابن حزم وغیره د زیارت ورځ د نبی ﷺ د وتلو خودلې ده.خو حافظ ابن کثیر دټولو روایاتو دتحقیق کولو نه پس لیکلی دی.چه د هفتې په ورځ نبی ﷺ د مدینې منورې نه روان شوې دې.(۲) دهفتې د ماسپخین مونځ په مدینه منوره کښې کولو نه پس نبی ﷺ روان شو.ټول ازواج مطهرات (۳)او حضرت فاطمه ﷺ (۴) په دې سفرکښې ورسره وو.

**د صحابو رضی الله عنهم تعداد** په دې موقعه د صحابو ﷺ خومره تعداد د نبی ﷺ سره وو.په دې باره کښې څه حتمی خبره نشی کیدې.امام ابوزرعه رحمه الله فرمائی.چه څلوینبت زره ته نزدې خلق دغه وخت نبی ﷺ سره وو.حافظ ابن قیم رحمه الله فرمائیلی دی.((ووافاه في الطريق خلائق لايحصون))(۵) دهغوی د شمیر حقیقی تعداد نشی معلومیدې.مولانا یونس صاحب دامت برکاتهم فرمائیلی دی.چه امام نووی رحمه الله په ،،شرح مهذب،، کښې لیکلی دی. چه په حجة الوداع کښې د شرکت کونکو تعداد یولاکه څلیریشت زره وو.(۶) خو په حقیقت کښې د امام نووی رحمه الله نه په نقل کښې غلطی واقع شوې ده.اګرچه په دې نقل باندې اعتماد کولو سره د مشکواة شارحینو هم د یولاکه څلیریشتو زرو قول نقل کړې دې.(۷)

واقعه داده.چه امام نووی رحمه الله دا قول د ابوزرعه رازی رحمه الله نه نقل کړې دې.او امام ابوزرعه رازی یو لاکه څلیرشت زره تعداد نه دې خودلې.بلکه څلوینبت زره تعداد ئې خودلې دې.لکه چه ابن الصلاح په ،،مقدمة علوم الحديث،، کښې د ابوزرعه رازی پوره کلام نقل کړې دې.په هغې کښې دی.((شهد مع النبي ﷺ حجة الوداع اربعون الفاً، وشهد معه تبوك سبعون الفاً...قبض رسول الله ﷺ عن مائة الف واربعة عشر الفاً من الصحابة ممن روى عنه وسمع منه))(۸) په دې

---

د تیرمخ حاشیه] (۱) صحيح مسلم، كتاب الحج، باب حجة النبي ﷺ (۳۹٤\۱) وسنن ابی داؤد، كتاب المناسک، باب صفة حجة النبي ﷺ (۱۸۲\۲) رقم الحديث (۱۹۰۵) وسنن ابن ماجه، كتاب المناسک، باب حجة رسول الله ﷺ (۱۰۲۲\۲) رقم الحديث (۳۰۷٤)_

(۲) البداية والنهاية(۱۱۲\۵) زادالمعاد (۱۰۲\۲-۱۰۶)_

(۳) زاد المعاد(۱۰۶\۲)_

(۴) دلائل النبوة للبيهقي(٤۳۵\۵)_

(۵) زاد المعاد(۱۰۲\۲)_

(۶) د امام نووی رحمه الله دا قول په شرح مهذب کښې احقر ته ملاو نه شو.والله اعلم_

(۷) التعليق الصبيح (۱۹۲\۳)_

(۸) مقدمة ابن الصلاح(۱۲۷-۱۲۸)_

كښې تصريح ده.چه دحجة الوداع په موقعه باندې رسول الله ﷺ سره څلوېښت زره، غزوهٔ تبوك كښې اويا زره، او د نبى عليه السلام د وفات په وخت يو لاكه څوارلس زره صحابه رضي الله عنهم وو.چه هغوى د نبى عليه السلام نه روايت كړې دې.او د نبى عليه السلام نه ئې اوريدلى دى.

دمدينې اومكې دا سفر نهه ورځې جارى وو.او په ۴ ذى الحجه د اتوار په ورځ نبى عليه السلام مكې مكرمې ته داخل شو.د ذى قعده ۲۵ تاريخ د هفتې په ورځ د نبى عليه السلام روانګى شوې وه.خو په دې كال د ذى قعده مياشت د يوكم ديرشو وه.پنځه ورځې د ذى قعده (يعنى ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸، او۲۹)او څلور ورځې د ذى الحجې په سفركښې تيرې شوې.(۱)

**د حج ادائيګى او واپسى:** په دې كال نهم ذى الحجه باندې د جمعې ورځ وه.رسول الله ﷺ په دغه ورځ د حج لوئې ركن (وقوف عرفه) اداكړو.او په ميدان عرفات كښې نبى عليه السلام يوه بليغ خطبه وركړله.چه هغه د خطبه حجة الوداع په نوم سره مشهوره ده.چه دهغې تفصيل روستو په روايت كښې راروان دې.په لسم ذى الحجه نبى عليه السلام منى ته لاړو .او هلته نبى عليه السلام درى شپيته اوښان قربانى كړل.۳۷ اوښان حضرت على رضي الله عنه د نبى عليه السلام د طرفه ذبح كړل.دغه شان تول سل اوښان د نبى عليه السلام د طرفه قربانى كړې شو.(۲) ددې نه پس بيا نبى عليه السلام حلق اوكړو.(سر ئې اوخرئيلو) او د ذى الحجه په څوارلسم تاريخ د صحابو رضي الله عنهم سره د مكې مكرمې نه روان شو.(۳)

[۴۱۳۴] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَأَهْلَلْنَا بِعُمْرَةٍ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ فَلْيُهِلَّ بِالْحَجِّ مَعَ الْعُمْرَةِ ثُمَّ لَا يَحِلَّ حَتَّى يَحِلَّ مِنْهُمَا جَمِيعًا فَقَدِمْتُ مَعَهُ مَكَّةَ وَأَنَا حَائِضٌ وَلَمْ أَطُفْ بِالْبَيْتِ وَلَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَشَكَوْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ انْقُضِي رَأْسَكِ وَامْتَشِطِي وَأَهِلِّي بِالْحَجِّ وَدَعِي الْعُمْرَةَ فَفَعَلْتُ فَلَمَّا قَضَيْنَا الْحَجَّ أَرْسَلَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ إِلَى التَّنْعِيمِ فَاعْتَمَرْتُ فَقَالَ هَذِهِ مَكَانَ عُمْرَتِكِ قَالَتْ فَطَافَ الَّذِينَ أَهَلُّوا بِالْعُمْرَةِ بِالْبَيْتِ وَبَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ حَلُّوا ثُمَّ طَافُوا طَوَافًا آخَرَ بَعْدَ أَنْ رَجَعُوا مِنْ مِنًى وَأَمَّا الَّذِينَ جَمَعُوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَإِنَّمَا طَافُوا طَوَافًا وَاحِدًا [ر:۲۹۰]

[۴۱۳۵] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ حَدَّثَنِي عَطَاءٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ إِذَا طَافَ بِالْبَيْتِ فَقَدْ حَلَّ فَقُلْتُ مِنْ أَيْنَ قَالَ هَذَا ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ

---

(۱) زاد المعاد (۱۰۶/۲) والبداية والنهاية(۱۱۲/۵)_
(۲) فتح البارى(۵۵۵/۳) باب لايعطى الجزار من الهدى شيئاً)_
(۳) جوامع السيرة لابن حزم(۲۸۷)_

مِنْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى ثُمَّ مَحِلُّهَا إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ وَمِنْ أَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصْحَابَهُ أَنْ يَحِلُّوا فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ قُلْتُ إِنَّمَا كَانَ ذٰلِكَ بَعْدَ الْمُعَرَّفِ قَالَ كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَرَاهُ قَبْلُ وَبَعْدُ

**قوله**: حدثني عمرو بن علي.... عن ابن عباس اذا طاف بالبيت فقد حل:

عطاء بن رباح د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دا ارشاد نقل کړو.چه کله سړی د بيت الله طواف کوی.نو هغه حلاليږی.نو دهغه شاګرد جريج دهغه نه سوال اوکړو.((من اين قال هذا ابن عباس؟)) يعنی ابن عباس رضی الله عنهما دا خبره دکوم ځائې نه (او دکوم دليل په بنياد باندې) کړې ده.نو عطاء اووئيل.د قرآن مجيد ددې آيت نه ئې کړې ده. ﴿ثُمَّ مَحِلُّهَآ إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ﴾ [1]، بيا ددې هدی رسيدو ځائې بيت العتيق يعنی بيت الله دی.،او د رسول الله صلی الله عليه وسلم ددې حکم په بنياد ئې کړې ده.چه نبی عليه السلام صحابو رضی الله عنهم ته د حجة الوداع په موقع باندې د طواف کولو نه پس د حلاليدو دپاره وئيلی وو.په دې باندې جريج اووئيل.((انما كان ذالك بعد المعرف)) يعنی د قرآن شريف آيت﴿ثُمَّ مَحِلُّهَآ إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ﴾کښې دهدی ذبح کولو باره کښې چه دا وئيلی شی. چه هغه به حرم کښې ذبح کيږی.دا عمل د وقوف عرفات نه روستو دې.نو عطاء اووئيل. چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما به دا د وقوف عرفات نه مخکښې او روستو دواړو صورتونو کښې صحيح ګڼړل.

**د طواف قدوم نه پس د حلاليدو بحث**: دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما مذهب دا وو.چه د بيت الله شريف د طواف کولو نه پس سړې حلاليږی.بعضې عالمانو وئيلی دی.چه ددوی دا مذهب صرف د عمرې کونکی په باره کښې وو.چه کوم کس عمرې دپاره بيت الله ته لاړو.اوهغه طواف اوکړو.نوهغه حلاليږی.يعنی دسعی وغيره نه وړاندې هغه حلاليږی.اوبعضې عالمانو ليکلی دی.چه ددوی دا مذهب صرف دحج کونکی په باره کښې دې.چه د حج کولودپاره کله حاجی بيت الله ته اورسی.اوهغه طواف قدوم اوکړی.نوهغه حلاليږی.بهرحال که دهغه دا فتوی دعمره کونکی په باره کښې وی.اوکه دحاجی متعلق وی.خو دجمهورو خلاف دې.[2]

حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائيلی دی.چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ددې فتوې داسې توجيهات ممکن دی.چه دهغې په رو سره به دهغه مذهب د جمهورو خلاف نه وی.بيا هغوی درې داسې توجيهات پيش کړی دی:

① يوه توجيه هغوی دا بيان کړې ده.چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په فتوی ((من طاف بالبيت فقد حل)) کښې د طواف نه مراد طواف زيارت دې.او مطلب دادې.چه حاجی کله طواف زيارت اوکړی.نوهغه حلاليږی.او ښکاره ده.چه دجمهورو هم دا مذهب دې.

---

[1]) سورة الحج ۳۳_

[2]) فتح البارى(۴۷۸\۳) كتاب الحج، باب من طاف بالبيت اذا قدم مكة)_

④ دویمه توجیه هغوی دا کړې ده.چه دهغوی دا فتوی د عمره کونکی متعلق ده. اومطلب دادې. چه عمره کونکې د طواف نه پس حلالیږی.سعی وغیره چونکه د طواف د توابعو خینې د ې.په دې وجه ئې دهغې مستقل ذکر اونکړو.او مراد هم دا دې.چه طواف او توابع د طواف پوره کولو نه پس حلالیږی.

③ دریمه توجیه حضرت گنگوهی رحمه الله دا بیان کړې ده.چه دهغوی دا فتوی د حج افراد کونکی سره متعلق ده.چه دحج افراد احرام تړونکی باندې فسخ الحج الی العمرة لازم ده. داسې سړې مخکښې د عمرې طواف کولو سره حلالیږی.ددې نه پس به بیا د حج احرام تړی.لکه چه نبی کریم ﷺ په حجة الوداع کښې هغه ټولو حضراتو ته کومو چه د حج احرام تړلې وو.حکم ورکړو.چه عمره اوکړئ.او حلال شئ.دا اګرچه د جمهورو مذهب نه دې.البته ددې اصل د حدیث نه ثابت دې.او امام احمد او بعضې اهل ظاهر ددې قائل دی.چه په مفرد بالحج باندې فسخ الحج الی العمرة لازم ده.(۱)

خو حقیقت دادې.چه دا ټول توجیهات.هسې توجیهات دی.او د تکلف نه خالی نه دی.وجه داده.چه ټول عالمان هم دا نقل کونکی راروان دی.چه په دې مسئله کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما مسلك د جمهورو خلاف دې.(۲) تاویلات کول او دهغوی مذهب د جمهورو موافق جوړول د ((توجیه القول بما لا یرضی به القائل)) د قبیل خینې دې.هم داوجه ده.چه حضرت گنگوهی په آخر کښې پخپله فرمائیلی دی.((وبالجملة فلا یخلو هذا المقام من الشبهة والاوهام))(۳)

[۴۳۴۶] حَدَّثَنِي بَيَانٌ حَدَّثَنَا النَّضْرُ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ طَارِقًا عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَدِمْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَطْحَاءِ فَقَالَ أَحَجَجْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ كَيْفَ أَهْلَلْتَ قُلْتُ لَبَّيْكَ بِإِهْلَالٍ كَإِهْلَالِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ طُفْ بِالْبَيْتِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ حِلَّ فَطُفْتُ بِالْبَيْتِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَأَتَيْتُ امْرَأَةً مِنْ قَيْسٍ فَفَلَتْ رَأْسِي [ر:۱۴۸۴]

[۴۳۴۷] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ أَخْبَرَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ أَخْبَرَهُ أَنَّ حَفْصَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ أَزْوَاجَهُ أَنْ يَحْلِلْنَ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَقَالَتْ حَفْصَةُ فَمَا يَمْنَعُكَ فَقَالَ لَبَّدْتُ رَأْسِي وَقَلَّدْتُ هَدْيِي فَلَسْتُ أَحِلُّ حَتَّى أَنْحَرَ هَدْيِي [ر:۱۴۹۱]

[۴۳۴۸] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ حَدَّثَنِي شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ

---

۱) ددې دریو وارو توجیهاتو دپاره اوګورئ! لامع الدراری (۸/۳۸۸-۳۸۹)_
۲) تعلیقات لامع الدراری(۸/۳۸۷)_
۳) لامع الدراری(۸/۳۹۱)_

عَنْهُمَا أَنَّ امْرَأَةً مِنْ خَثْعَمَ اسْتَفْتَتْ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَالْفَضْلُ بْنُ عَبَّاسٍ رَدِيفُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ فَرِيضَةَ اللّٰهِ عَلَى عِبَادِهِ أَدْرَكَتْ أَبِي شَيْخًا كَبِيرًا لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يَسْتَوِيَ عَلَى الرَّاحِلَةِ فَهَلْ يَقْضِي أَنْ أَحُجَّ عَنْهُ قَالَ نَعَمْ [ر: ۱۴۴۲]

امام بخارى رحمه الله دا روايت دلته دوؤسندونو سره ذكركړې دې.د رومبى سند الفاظ په ابواب الاستيذان كښې راروان دى.(١) دلته چه كوم متن دې.هغه د دويم سند دې.دا روايت په كتاب الحج كښې هم تيرشوې دې.(٢)

[۴۱۴۹] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا سُرَيْجُ بْنُ النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ أَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ وَهُوَ مُرْدِفٌ أُسَامَةَ عَلَى الْقَصْوَاءِ وَمَعَهُ بِلَالٌ وَعُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ حَتَّى أَنَاخَ عِنْدَ الْبَيْتِ ثُمَّ قَالَ لِعُثْمَانَ ائْتِنَا بِالْمِفْتَاحِ فَجَاءَهُ بِالْمِفْتَاحِ فَفَتَحَ لَهُ الْبَابَ فَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُسَامَةُ وَبِلَالٌ وَعُثْمَانُ ثُمَّ أَغْلَقُوا عَلَيْهِمُ الْبَابَ فَمَكَثَ نَهَارًا طَوِيلًا ثُمَّ خَرَجَ وَابْتَدَرَ النَّاسُ الدُّخُولَ فَسَبَقْتُهُمْ فَوَجَدْتُ بِلَالًا قَائِمًا مِنْ وَرَاءِ الْبَابِ فَقُلْتُ لَهُ أَيْنَ صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ صَلَّى بَيْنَ ذَيْنِكَ الْعَمُودَيْنِ الْمُقَدَّمَيْنِ وَكَانَ الْبَيْتُ عَلَى سِتَّةِ أَعْمِدَةٍ سَطْرَيْنِ صَلَّى بَيْنَ الْعَمُودَيْنِ مِنَ السَّطْرِ الْمُقَدَّمِ وَجَعَلَ بَابَ الْبَيْتِ خَلْفَ ظَهْرِهِ وَاسْتَقْبَلَ بِوَجْهِهِ الَّذِي يَسْتَقْبِلُكَ حِينَ تَلِجُ الْبَيْتَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجِدَارِ قَالَ وَنَسِيتُ أَنْ أَسْأَلَهُ كَمْ صَلَّى وَعِنْدَ الْمَكَانِ الَّذِي صَلَّى فِيهِ مَرْمَرَةٌ حَمْرَاءُ [ر: ۳۸۸]

[۴۱۵۰] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُمَا أَنَّ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَاضَتْ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَابِسَتُنَا هِيَ فَقُلْتُ إِنَّهَا قَدْ أَفَاضَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَطَافَتْ بِالْبَيْتِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْتَنْفِرْ [ر: ۳۲۲]

اشكال كيږى.چه دا روايت په غزوهٔ فتح مكه كښې تيرشو.(٣) او دا واقعه هم فتح مكې سره متعلق ده.نو امام بخارى رحمه الله دا روايت دلته په حجة الوداع كښې ولې ذكركړو؟

**دحجت الوداع په موقع نبىﷺ بيت الله كښې داخل شوې وو:** حضرت گنگوهى رحمه الله په ، ،لامع الدرارى، ،كښې فرمائيلى دى.چه په دې باره كښې اختلاف دې.چه نبى كريمﷺ د حجة الوداع په موقعه باندې بيت الله شريف ته داخل شوې وو اوكه نه؟ بعضې عالمان د داخليدو او بعضې د نه داخليدو قائل دى.امام بخارى رحمه الله د فتح مكې حديث دلته ذكركړو.اوپه دې

١) صحيح بخارى كتاب الاستيذان (١٢٠٩٢)_
٢) صحيح بخارى كتاب الحج باب اذا حاضت المرأة بعد ما افاضت رقم(١٧٥٧)_
٣) باب دخول النبىﷺ من اعلى مكة رقم الحديث (٤٢٨٩) و فتح البارى (١٨١٨)_

خبره ئې تنبیه اوکړله .چه د فتح مکې سفر د بیت الله شریف د زیارت قصد او ارادې سره نه وو شوې .بلکه دا سفر نبی علیه السلام د جهاد ارادې سره کړې وو.خو ددې باوجود نبی علیه السلام په دغه موقعه باندې بیت الله شریف ته داخل شوې وو.نو د حجة الوداع سفر خو خاص د بیت الله شریف دپاره شوې وو.په دې وجه یقیناً نبی علیه السلام به د حج په موقعه باندې بیت الله شریف ته داخل شوې وی.(۱) د حجة الوداع په موقعه باندې د رسول الله ﷺ بیت الله شریف ته د داخلیدو متعلق هیڅ یو روایت امام بخاری رحمه الله ته دخپل شرط مطابق ملاؤ نشو.په دې وجه امام (بخاری رحمه الله) د فتح مکې روایت ذکر کولو سره استدلال اوکړو.

امام ابوداوٗد ، امام ترمذی، او ابن ماجه رحمهم الله دحضرت عائشې رضی الله عنها روایت نقل کړې دې.په دغې کښې دی.((ان النبی ﷺ خرج من عندها وهو مسرور، ثم رجع الیّ وهو کئیب فقال: انی دخلت البیت ولو استقبلت من امری ما استدبرت ما دخلتها،انی اخاف ان اکون قد شققت علی امتی))(۲) حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چه رسول الله ﷺ دهغې د خوانه په خوشحالۍ خوشحالۍ تشریف یوړه. خو کله چه واپس راغې. نو نبی علیه السلام غمژن وو.وې فرمائیل.که ماته ددې خبرې دمخکښې نه اندازه وې.د کومې اندازه چه ماته روستو اوشوه.نو زه به بیت الله شریف ته نه ووم داخل شوې. ماته ویره ددې خبرې ده.چه ما د خپل امت دپاره د مشقت سامان جوړکړو.مطلب دادې. چه روستو به خلق وائی.چه د الله نبی ﷺ بیت الله ته دننه داخل شوې وو.نو مونږ به هم داخلیږو.دغه شان به هرحاجی د حج په موقعه بیت الله ته د داخلیدو کوشش کوی.چه دهغې نه به ډیر مشکلات پیدا کیږی.

ددې روایت نه معلومه شوه.چه رسول الله ﷺ د حجة الوداع په موقعه باندې بیت الله شریف ته داخل شوې وو.اګرچه په دې کښې تصریح نشته.چه دا واقعه د حجة الوداع ده.خو چونکه حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چه نبی علیه السلام زما د خوانه تشریف اوړلې وو.او حضرت عائشه رضی الله عنها نبی علیه السلام سره د فتح مکې په موقعه باندې نه وه.دحجة الوداع په موقعه باندې وه.په دې وجه دا روایت حجة الوداع سره متعلق دې.والله اعلم.

[۴۱۴۱] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كُنَّا نَتَحَدَّثُ بِحَجَّةِ الْوَدَاعِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا وَلَا نَدْرِي مَا حَجَّةُ الْوَدَاعِ فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ ذَكَرَ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ فَأَطْنَبَ فِي ذِكْرِهِ وَقَالَ مَا بَعَثَ اللَّهُ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا أَنْذَرَ أُمَّتَهُ أَنْذَرَهُ نُوحٌ وَالنَّبِيُّونَ مِنْ بَعْدِهِ وَإِنَّهُ يَخْرُجُ فِيكُمْ فَمَا خَفِيَ عَلَيْكُمْ مِنْ شَأْنِهِ فَلَيْسَ يَخْفَى عَلَيْكُمْ أَنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ عَلَى مَا يَخْفَى عَلَيْكُمْ ثَلَاثًا إِنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِأَعْوَرَ وَإِنَّهُ أَعْوَرُ عَيْنِ الْيُمْنَى كَأَنَّ عَيْنَهُ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ أَلَا إِنَّ

---

(۱) لامع الدراری (۳۹۱/۸-۳۹۲)_

(۲) الحدیث اخرجه الترمذی، رقم(۸۷۳) فی الحج، باب ماجاء فی دخول الکعبة، وابوداوٗد، رقم(۲۰۲۹) فی المناسک، باب دخول الکعبة، واخرجه ابن ماجه، رقم (۳۰۶۳) فی المناسک، باب دخول الکعبة)_

اللَّهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا فِي بَلَدِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا أَلَا هَلْ بَلَّغْتُ قَالُوا نَعَمْ قَالَ اللَّهُمَّ اشْهَدْ ثَلَاثًا وَيْلَكُمْ أَوْ وَيْحَكُمْ انْظُرُوا لَا تَرْجِعُوا بَعْدِي كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ [ر: ۱۶۵۵]

**قوله**: كُنَّا نَتَحَدَّثُ بِحَجَّةِ الْوَدَاعِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا وَلَا نَدْرِي مَا حَجَّةُ الْوَدَاعِ: يعنى دې حج ته به مونږ حجة الوداع وئيلې.خو د حجة الوداع مطلب زمونږ په پوهه كښې نه راتلو.علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم د نبى كريم ﷺ نه ددې حج، حجة الوداع كيدل اوريدلى وو.چه ددې په وجه به هغوى دې ته حجة الوداع وئيلې.خو هغوى په دې نه وو پوهه شوى.چه په دې كښې د نبى كريم ﷺ وفات طرف ته اشاره ده.كله چه رسول الله ﷺ څه موده پس وفات شو.نوهغه وخت معلومه شوه.چه حجة الوداع هغې ته په دې وجه وئيلى شوى وو.چه په دې كښې نبى عليه السلام خلقو ته الوداع وئيلې ده.
په وريسې روايت كښې د خطبه حجة الوداع ذكردې.دلته د بخارى په روايت كښې د خطبة حجة الوداع څه حصه ده.ابن هشام او ابن اسحاق د خطبة حجة الوداع اكثره حصه نقل كړې ده.

**خطبه حجة الوداع**: ايها الناس اسمعوا قولى فانى لا ادرى لعلى لا القاكم بعد عامى هذا بهذا الموقف ابداً، ايها الناس، ان دماءكم و اموالكم عليكم حرام الى ان تلقوا ربكم، كحرمة يومكم هذا وكحرمة شهركم هذا، وانكم ستلقون ربكم فيسألكم عن اعمالكم، وقد بلغت فمن كانت عنده امانة فليؤدها الى من ائتمنه عليها، وان كل ربا موضوع ولكن لكم رؤوس اموالكم لا تظلمون ولا تُظلمون قضى الله ان لا ربا، وان ربا عباس بن عبد المطلب موضوع كله، وان كل دم كان فى الجاهلية موضوع وان اول دمائكم اضع دم ابن ربيعة بن الحارث بن عبد المطلب...

اما بعد، ايها الناس فان الشيطان قد يئس من ان يعبد بارضكم هذا ابداً، ولكنه ان يطع فيما سوى ذالك، فقد رضى به مما تحقرون من اعمالكم فاحذروه على دينكم.

ايها الناس! ان النسئ زيادة فى الكفر يضل به الذين كفروا يحلونه عاماً و يحرمونه عاماً، ليواطئوا عدة ما حرم الله، فيحلوا ما حرم الله و حرموا ما احل الله، وان الزمان قد استدار كهيئته يوم خلق الله السموات والارض و ان عدة الشهور عند الله اثناعشر شهراً، منها اربعة حرم، ثلاثة متوالية و رجب مضر الذين بين جمادى و شعبان، اما بعد، ايها الناس! فان لكم على نسائكم حقاً ولهن عليكم حقاً، لكم عليهن ان لا يوطئن فرشكم احداً تكرهونه وعليهن ان لا يأتين بفاحشة مبينة، فان فعلن فان الله قد اذن لكم ان تهجروهن فى المضاجع وتضربوهن ضرباً غير مبرح فان انتهين فلهن رزقهن و كسوتهن بالمعروف، واستوصوا بالنساء خيراً فانهن عندكم عوان لايملكن لانفسهن شيئاً، وانكم انما اخذتموهن بامانة الله، واستحللتم فروجهن بكلمات الله، فاعقلوا ايها الناس قولى، فانى قد بلغت، وقد تركت فيكم ما ان اعتصمتم به فلن تضلوا ابداً، امراً بيناً، كتاب الله وسنة نبيه، ايها الناس! اسمعوا قولى، واعقلوه، تعلمن ان كل مسلم اخ للمسلم، وان المسلمين اخوة، فلا يحل لامرئ من

اخيه الا ما اعطاه من طيب نفس منه، فلا تظلمن انفسكم، اللهم هل بلغت؟([1])

د حمد او ثنا نه پس نبی ﷺ اوفرمائيل:
خلقو! زما خبره واورئ! ماته معلومه نه ده.شايد چه دې كال نه پس په دې مقام باندې زه تاسو سره كله هم ملاو نه شم.اې خلقو! ستاسو وينه، او ستاسو مالونه، په يو بل باندې داسې حرام دی.لكه څنګه چه دنن ورځې او ددې مياشتې حرمت دې.تردې چه تاسو خپل رب سره ملاوشئ.اوتاسو به ډير زر خپل رب سره ملاوشئ.نو هغه به ستاسو نه د ستاسو د عملونو په باره كښې تپوس كوی.ما (تاسو ته) دا خبره دراورسوله.نو دچا سره چه دچا امانت وی.هغه امانت دې دهغې مالك ته اورسوی.د جاهليت ټول سودونه باطل كړې شو.اصل راس المال اخستلې شئ.چه نه تاسو په چا باندې ظلم اوكړئ.او نه په تاسو ظلم اوشی.د الله تعالى فيصله ده.چه سود باطل دې.د عباس بن عبدالمطلب سود هم باطل دې.([2]) د جاهليت زمانې ټولې وينې باطل اوګرځولې شوې.او دټولو نه مخكښې زه (د خپل خاندان د يوكس) د ربيعه بن الحارث بن عبدالمطلب د ځوی وينه معاف كوم.
اې خلقو! شيطان ددې خبرې نه اوس مايوسه شوې دې.چه ستاسو په دې زمكه دهغه عبادت اوكړې شی.خو د عبادت نه علاوه په نورو ورو عملونو كښې كه دهغه تابعداری اوكړې شوه.نوهغه به په هغې هم راضی كيږی.نودخپل دين په باره كښې دهغه نه ځان ساتئ.
اې خلقو! نسئ (په مياشتو كښې مخكښې كول روستوكول) كفركښې د زياتوالی سبب دې.ددې په ذريعه كافر ګمراه كيږی.هغوی به يوكال حرام مياشتې حلالولې.او دويم كال به ئې هم دغه مياشتې حرام ګرځولې.چه په دې طريقه هغوی د حرمت د مياشتو شمير پوره كړی.نو هغوی به هغه مياشتې حلالولې.كومې چه الله حرام كړې دی.او كومې مياشتې چه الله حلال كړی دی.هغه به ئې حرام ګرځولې....خو اوس زمانه پخپل ابتدائی حالت باندې واپس راغلې ده.په كومه چه دا په هغه ورځ وه.په كومه ورځ چه الله تعالى زمكه او آسمان پيدا كړی وو.د الله په نزد دكال دولس مياشتې دی.په دې كښې څلور د حرمت والا دی.درې مسلسل دی.(يعنی ذی قعده، ذی الحجه، محرم) او يوه مياشت د رجب ده.چه ددې مضر قبيله خاص احترام كوی.كومه چه دجمادی الثانيه او شعبان په منځ كښې واقع ده.
اې خلقو! ستاسو په ښځو باندې ستاسو څه حقونه دی.او دغه شان په تاسو باندې دهغوی هم څه حقوق دی.ستاسو په هغوی باندې دا حق دې.چه هغوی يو داسې كس ستاسو په بستره باندې كيناستلو ته پرې نږدی.كوم چه تاسو نه خوښوئ.اوداچه هغوی ښكاره د بې حيايئ كار اونكړی.خو كه هغوی ئې اوكړی.نو الله تعالى تاسو ته ددې خبرې اجازت دركړې دې.چه تاسو ددوی د اوده كيدو ځايونه دځان نه جدا كړئ.(كه هغوی بيا هم منع نه شی نو) بيا تاسو ته اجازت دې.چه هغوی داسې په مزه مزه اووهئ.چه په هغې سره بدن پريشانه نه

---

[1] ) اوګورئ: سيرت ابن هشام (۲۵۱\٤-۲۵۲)_
[2] ) حضرت عباس رضی الله عنه به د اسلام نه مخكښې د سود كاروبار كولو.د ډيرو خلقو په ذمه دهغه سود باقی وو.نبی ﷺ د خپل تره ټول سود باطل اوګرځولو_

شی.که هغوی منع شی.نو د دستور مطابق دهغوی خوراك اوكپړې ستاسو په ذمه دی.ښځو سره دښه سلوك كولو همیشه پابندی كوئ.ځكه چه هغوی تاسو سره قید دی.او خپل معاملات پخپله نه شی چلولې.تاسو هغوی د الله د امانت په طور حاصل كړی دی.او د الله د كلماتو په ذریعه مو هغوی دځان دپاره جائز اوحلال كړی دی.

اې خلقو! زما په خبره پوهه شئ.زه په تاسو كښې داسې څیز پریږدم.او خم.چه كه تاسو هغه مضبوط اونیولو.نو تاسو به ګمراه نه شئ.هغه څیز كتاب الله او زما سنت دې.

اې خلقو! زما خبره واورئ! او پوهه شئ! هرمسلمان د بل مسلمان رور دې.او ټول مسلمانان خپل منځ كښې د یوبل رونړه دی.نو د هیڅ یو سړی دپاره دخپل رور مال حلال نه دې.البته كه هغه ئې دخپل زړه په خوشحالئ سره دركړی.نو تاسو پخپلو ځانونو باندې ظلم مه كوئ.

[۴۳۲] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ أَرْقَمَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَا تِسْعَ عَشْرَةَ غَزْوَةً وَأَنَّهُ حَجَّ بَعْدَ مَا هَاجَرَ حَجَّةً وَاحِدَةً لَمْ يَحُجَّ بَعْدَهَا حَجَّةَ الْوَدَاعِ قَالَ أَبُو إِسْحَاقَ وَبِمَكَّةَ أُخْرَى [ر:۳۷۳۳]

په دې كښې هیڅ اختلاف نشته.چه د هجرت نه پس رسول الله ﷺ صرف حجة الوداع اداكړې دې.(۱) ددې نه علاوه ئې بل حج نه دې كړې.ابو اسحاق چه ددې روایت راوی دې.فرمائی.چه په مكه كښې نبی علیه السلام یوحج بل هم كړې دې.

**نبی كریم ﷺ څومره حجونه كړی دی؟**: دهجرت نه مخكښې نبی علیه السلام څومره حجونه كړی دی.په دې باره كښې مختلف اقوال دی.ابواسحاق وائی.چه یوحج ئې كړې دې.امام ترمذی او ابن ماجه د حضرت جابر رضی الله عنه روایت نقل كړې دې.«ان رسول الله ﷺ حج ثلاث حجج، حجتین قبل ان یهاجر وحجة بعد ما هاجر»(۲) یعنی دهجرت نه وړاندې نبی علیه السلام دوه حجونه كړی دی. غالباً حضرت جابر رضی الله عنه چه د هجرت نه مخكښې دكومو دوو حجونو ذكركړې دې.هغه د ۱۲ او ۱۳ نبوی حجونه دی.په ۱۲نبوی كښې بیعت عقبهٔ اولی شوې وو.او په ۱۳ نبوی كښې بیعت عقبهٔ ثانیه شوې وو.(۳) په بیعت عقبه ثانیه كښې دحضرت جابر رضی الله عنه پلار هم شریك وو.(۴) په دې وجه حضرت جابر رضی الله عنه ته ددې دوو حجونو علم اوشو.او د باقی اونه شو.

سفیان ثوری رحمه الله فرمائی.چه رسول الله ﷺ دهجرت نه وړاندې ډیرحجونه كړی دی.(۵)

---

(۱) لكه څنګه چه ابوداؤد كښې دحضرت جابر رضی الله عنه په روایت كښې دی.(سنن ابی داؤد (۸۳|۲) باب صفة حجة النبی ﷺ رقم (۱۹۰۵)_

(۲) الحدیث اخرجه الترمذی فی ابواب الحج، باب ماجاء كم حج النبی ﷺ؟ (۱۷۹|۳) رقم (۸۱۵) و ابن ماجه فی كتاب المناسک، باب حجة رسول الله ﷺ رقم(۳۰۷۶)_

(۳) تفصیل دپاره اوګورئ! سیرت ابن هشام(۴۳۱|۱-۴۳۸)_

(۴) سیرت ابن هشام(۴۶۳|۱)_

(۵) فتح الباری (۱۰۴|۸)_

ابن جوزى رحمه الله فرمائى.((حج حجا لا يعرف عددها))(١) دومره حجونه ئې اوكړل .شمير ئې معلوم نه دې.د ابن الاثير رائې داده.چه نبى عليه السلام به هركال حج كولو.(٢)
ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه په دې خبره كښې هيڅ شك نشته.چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم به دهجرت نه وړاندې هركال حج كولو.وجه ددې داده.چه قريشو به د حج ډير اهتمام كولو.كه ډيره مجبورى به وه.نو حج به ئې پريخوده.كنى نه به ئې پريخوده.حج د ابراهيم عليه السلام د ملت باقى پاتې اعمالو خينې وو.او رسول الله صلى الله عليه وسلم په ملت ابراهيمى عمل كونكې هم وو.په دې وجه قياس دادې.چه نبى عليه السلام د هجرت نه وړاندې ډير حجونه كړې وى.چه دهغې تعداد معلوم نه دې.

[٤٣٣] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَلِيِّ بْنِ مُدْرِكٍ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ عَنْ جَرِيرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ لِجَرِيرٍ اسْتَنْصِتِ النَّاسَ فَقَالَ لَا تَرْجِعُوا بَعْدِي كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ [ر:١٢١]

[٤٣٤] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الزَّمَانُ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ السَّنَةُ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ثَلَاثَةٌ مُتَوَالِيَاتٌ ذُو الْقَعْدَةِ وَذُو الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ وَرَجَبُ مُضَرَ الَّذِي بَيْنَ جُمَادَى وَشَعْبَانَ أَيُّ شَهْرٍ هَذَا قُلْنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ قَالَ أَلَيْسَ ذُو الْحِجَّةِ قُلْنَا بَلَى قَالَ فَأَيُّ بَلَدٍ هَذَا قُلْنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ قَالَ أَلَيْسَ الْبَلْدَةَ قُلْنَا بَلَى قَالَ فَأَيُّ يَوْمٍ هَذَا قُلْنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ قَالَ أَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ قُلْنَا بَلَى قَالَ فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ قَالَ مُحَمَّدٌ وَأَحْسِبُهُ قَالَ وَأَعْرَاضَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا فِي بَلَدِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا وَسَتَلْقَوْنَ رَبَّكُمْ فَسَيَسْأَلُكُمْ عَنْ أَعْمَالِكُمْ أَلَا فَلَا تَرْجِعُوا بَعْدِي ضُلَّالًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ أَلَا لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَلَعَلَّ بَعْضَ مَنْ يُبَلَّغُهُ أَنْ يَكُونَ أَوْعَى لَهُ مِنْ بَعْضِ مَنْ سَمِعَهُ فَكَانَ مُحَمَّدٌ إِذَا ذَكَرَهُ يَقُولُ صَدَقَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ أَلَا هَلْ بَلَّغْتُ مَرَّتَيْنِ [ر:٦٧]

[٤٣٥] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ أَنَّ أُنَاسًا مِنَ الْيَهُودِ قَالُوا لَوْ نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِينَا لَاتَّخَذْنَا ذَلِكَ الْيَوْمَ عِيدًا فَقَالَ عُمَرُ أَيَّةُ آيَةٍ فَقَالُوا الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا فَقَالَ عُمَرُ إِنِّي لَأَعْلَمُ أَيَّ مَكَانٍ أُنْزِلَتْ أُنْزِلَتْ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاقِفٌ بِعَرَفَةَ [ر:٤٥]

---

١) فتح البارى(١٠٤/٨)_
٢) فتح البارى(١٠٤/٨)_

[۴۱۴۶] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِحَجَّةٍ وَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ وَعُمْرَةٍ وَأَهَلَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَجِّ فَأَمَّا مَنْ أَهَلَّ بِالْحَجِّ أَوْ جَمَعَ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَلَمْ يَحِلُّوا حَتَّى يَوْمِ النَّحْرِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ وَقَالَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ مِثْلَهُ [ر: ۲۹۰]

[۴۱۴۷] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ هُوَ ابْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ عَادَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ مِنْ وَجَعٍ أَشْفَيْتُ مِنْهُ عَلَى الْمَوْتِ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ بَلَغَ بِي مِنَ الْوَجَعِ مَا تَرَى وَأَنَا ذُو مَالٍ وَلَا يَرِثُنِي إِلَّا ابْنَةٌ لِي وَاحِدَةٌ أَفَأَتَصَدَّقُ بِثُلُثَيْ مَالِي قَالَ لَا قُلْتُ أَفَأَتَصَدَّقُ بِشَطْرِهِ قَالَ لَا قُلْتُ فَالثُّلُثِ قَالَ وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ إِنَّكَ أَنْ تَذَرَ وَرَثَتَكَ أَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَذَرَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُونَ النَّاسَ وَلَسْتَ تُنْفِقُ نَفَقَةً تَبْتَغِي بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ إِلَّا أُجِرْتَ بِهَا حَتَّى اللُّقْمَةَ تَجْعَلُهَا فِي فِي امْرَأَتِكَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ آخَلَّفُ بَعْدَ أَصْحَابِي قَالَ إِنَّكَ لَنْ تُخَلَّفَ فَتَعْمَلَ عَمَلًا تَبْتَغِي بِهِ وَجْهَ اللّٰهِ إِلَّا ازْدَدْتَ بِهِ دَرَجَةً وَرِفْعَةً وَلَعَلَّكَ تُخَلَّفُ حَتَّى يَنْتَفِعَ بِكَ أَقْوَامٌ وَيُضَرَّ بِكَ آخَرُونَ اللّٰهُمَّ أَمْضِ لِأَصْحَابِي هِجْرَتَهُمْ وَلَا تَرُدَّهُمْ عَلَى أَعْقَابِهِمْ لَكِنِ الْبَائِسُ سَعْدُ بْنُ خَوْلَةَ رَثَى لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُوُفِّيَ بِمَكَّةَ [ر: ۵۶]

[۴۱۴۸/۴۱۴۹] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَبُو ضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَهُمْ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَلَقَ رَأْسَهُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ

[۴۱۴۹] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ أَخْبَرَهُ ابْنُ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَلَقَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَأُنَاسٌ مِنْ أَصْحَابِهِ وَقَصَّرَ بَعْضُهُمْ [ر: ۱۶۳۹]

[۴۱۵۰] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَهُ أَنَّهُ أَقْبَلَ يَسِيرُ عَلَى حِمَارٍ وَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ بِمِنًى فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ يُصَلِّي بِالنَّاسِ فَسَارَ الْحِمَارُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ ثُمَّ نَزَلَ عَنْهُ فَصَفَّ مَعَ النَّاسِ [ر: ۷۶]

[۴۱۵۱] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي قَالَ سُئِلَ أُسَامَةُ وَأَنَا شَاهِدٌ عَنْ سَيْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّتِهِ فَقَالَ الْعَنَقَ فَإِذَا وَجَدَ فَجْوَةً نَصَّ [ر: ۱۵۸۳]

[۴۱۵۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ

عَبْدِاللّٰهِ بْنِ يَزِيدَ الْخَطْمِيِّ أَنَّ أَبَا أَيُّوبَ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ جَمِيعًا [ر: ۱۵۹۰]

## بَاب غَزْوَةِ تَبُوكَ وَهِيَ غَزْوَةُ الْعُسْرَةِ

**غزوه تبوک لره دحجة الوداع نه د روستو ذکرکولو توجيهات** غزوهٔ تبوک د رسول الله ﷺ آخرى غزوه ده.امام بخارى رحمه الله غزوهٔ تبوک روستو او حجة الوداع مخکښې ذکرکړو.حالانکه د تاريخى ترتيب په لحاظ سره غزوهٔ تبوک دحجة الوداع نه مخکښې ده.ددې مختلف توجيهات شوى دى

① حافظ ابن حجر رحمه الله وغيره فرمائى.چه دا د کتابونو جوړونکو او کاتبانو تصرف دې.چه هغوى حجة الوداع د غزوهٔ تبوک نه مخکښې اوليکه.(۱)

② بعضې حضراتوئيلى دى،چه امام بخارى رحمه الله چونکه ،،کتاب المغازى،، بيانوى. په دې وجه هغوى سوچ اوکړو.چه د کتاب المغازى اختتام هم په غزوې باندې کول پکاردى.که حجة الوداع ئې روستو راوړلې وو.نو اختتام به په غزوې باندې نه کيدو.په دې وجه هغوى غزوهٔ تبوک دحجة الوداع نه روستو ذکرکړو.(۲)

③ دحضرت شيخ الحديث رحمه الله رائې داده.چه حجة الوداع ئې د غزوهٔ تبوک نه مخکښې ذکر کولو سره امام بخارى رحمه الله د سلسلة الوفود انتهاء طرف ته اشاره کول غواړى.د سلسلة الوفود ابتداء د فتح مکې نه روستو شوې دې.لکه چه امام بخارى رحمه الله د فتح مکې بيانولو نه پس د سلسلة الوفود ذکرشروع کړو.او ددې انتهاء په حجة الوداع باندې شوې ده.امام بخارى رحمه الله د«باب قصة وفد طى» ذکرکولو نه پس دحجة الوداع باب قائم کړو.او مقصد دادې.چه د وفود دا سلسله په حجة الوداع باندې ختميږى.که د «باب قصة وفد طى»نه پس ئې حجة الوداع نه وې ذکر کړې. غزوهٔ تبوک ئې ذکرکړې وې.نو تاريخى اعتبار سره به خو ترتيب قائم پاتې شوې وې.خو د سلسة الوفود انتهاء به نه معلوميده.امام بخارى رحمه الله د تاريخى ترتيب رعايت پريخودو.د سلسلة الوفود انتهاء طرف ته ئې اشاره کولو دپاره حجة الوداع مخکښې ذکرکړو.څکه چه دا خو ټولو ته معلومه ده.چه حجة الوداع د تبوک نه روستو دې.خو د وفودو سلسله کله ختمه شوه.دا ټولو ته معلومه نه ده.ددې فائدې په لحاظ سره امام بخارى رحمه الله داسې اوکړل.(۳) دحضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله رائې کافى وزنداره ده.والله اعلم.

**د غزوهٔ تبوک سبب:** روميانو سره د اسلامى لښکر رومبې جنګ موته کښې اوشو.ددې جنګ نه پس رومى سلطنت په دې کوشش کښې وو.چه په څه طريقه مسلمانانو باندې حمله

(۱) فتح البارى(۱۱۱۸)_
(۲) لامع الدرارى(۳۹۹۸)_
(۳) الابواب والتراجم لصحيح البخارى(۱۱۱۲) باب حجة الوداع)_

اوکړې شی.د رومیانو ددې ارادو اطلاع رسول اللهﷺ او مسلمانانو ته شوې وه. مدینې منورې ته به د شام سوداګر نبطی خلق د زیتون تیل خرڅولو دپاره راتلل .دغه خلقو مسلمانانو ته دا خبر ورکړو.چه د روم بادشاه هرقل خپل فوجونه په تبوك مقام کښې د شام په سرحد باندې جمع کړی دی.او فوجیانو ته ئې د یوکال تنخواه پیشګی ورکړې ده.او خوشحاله او مطمئن کړې ئې دی.(۱)

کله چه رسول اللهﷺ ته دا اطلاع ملاوشوه.نو نبیﷺ دا اراده اوفرمائیله.چه دهغوی دحملې نه وړاندې پیش قدمی کول او مقابله کول پکار دی.نبی کریمﷺ به عام طور باندې په جنګونو کښې صحیح مقام نه خودلو.خو دا جنګ چونکه د مخکنو ټولو جنګونو نه جدا وو.یو خوپه دې وجه چه په دې کښې د دشمنانو تعداد ډیر زیات وو.دویم په دې وجه چه په دې کښې د روم بادشاه د هرقل تربیت شوی فوج سره مقابله وه.په دې وجه نبی کریمﷺ د عربو د ټولو قبائلو نه فوجی او مالی مدد اوغوښتلو.او دمدینې منورې ټولو مسلمانانو ته ئې په دې جهاد کښې د وتلو حکم ورکړو.(۲)

اتفاق سره دا زمانه د سختې ګرمئ وه.قحط او ولږه عامه وه.دې سره سره د پټو او باغونو میوې پخیدو ته نزدې وې.(۳) هم په دې باغونو او د پټو په فصل باندې د مدینې د خلقو د پوره کال د معیشت دارومدار وو.په دې ټولو څیزونو کښې هرڅیز د الله تعالی په لاره کښې د وتلو دپاره د صحابوﷺ د خپو زنځیر او رکاوټ جوړیدې شو.خو مرحبا صد مرحبا د اسلام دغه سرفروش مجاهدینو دپاره ،چه هغوی د اسلام وني ته د ودې ورکولو دپاره دخپلې وینې او دخپل مال قربانی ورکولو کښې همیشه د یوبل نه د وړاندې کیدو کوشش اوکړو.په دې موقعه باندې هم د اسلام رینښتونو او مخلصو بهادرو صحابوﷺ د یوبل نه وړاندې شو.او مالی مددکښې ئې حصه واخستله.حضرت صدیق اکبرﷺ د خپل کور ټول هرڅه راوړل.حاضر ئې کړل.(۴) کله چه رسول اللهﷺ دهغه نه تپوس اوکړو.چه په کور کښې دې څه پریخودل؟ عرض ئې اوکړو.الله او دهغه د رسول نوم مې پریخودو.حضرت فاروق اعظمﷺ خپل نیم مال راوړه.اوحاضر ئې کړو.(۵) حضرت عثمان غنیﷺ درې سوه اوښان سره د سامانونو او زر اشرفئ نقدې راوړلې.او د نبیﷺ په خدمت کښې ئې پیش کړلې.(۶) دغه شان نورو صحابوﷺ د خپل طاقت مطابق په دې مالی امداد کښې حصه واخستله.خو ددې باوجود یو څو غریب صحابه داسې وو.چه دهغوی دسفر دپاره د لارې د توښې انتظام

---

(۱) طبقات ابن سعد(۱۶۵\۲) وفتح الباری (۱۱۱\۸)_

(۲) زادالمعاد(۳\۵۲۶-۵۲۷)_

(۳) الکامل لابن اثیر(۱۸۹\۲)_

(۴) دا څلور زره درهم وو.(سیرت حلبیه ۳\۱۳۰)_

(۵) سیرت حلبیه (۳\۱۳۰)_

(۶) زاد المعاد (۳\۵۲۷) اوپه یو روایت کښې دی.چه لس زره دیناره ئې د نبیﷺ په دربار کښې پیش کړې.سیرت حلبیه (۳\۱۳۰)_

اونه شو.هغوی د نبیﷺ په خدمت کښې حاضرشو.او نبیﷺ ته ئې د سورلۍ وغیره دپاره درخواست اوکړو.خو نبیﷺ سره دهغوی د سفر دپاره سورلۍ وغیره نه وه.دغه خلق په ژړا ژړا په بهیدلو سترګو واپس شو.د قرآن شریف دا آیت دهغوی متعلق نازل شوې دې.(۱)

﴿وَلَا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوا وَّأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنفِقُونَ﴾ (التوبة۹۲)

،،اونه په هغه خلقو څه ګناه شته.کوم چه تا ته راغلل.چه ته هغوی ته (په جهاد کښې)تللو دپاره څه سورلی ورکړې.تا هغوی ته اوفرمائیل.چه ما سره سورلی نشته.چه په هغې تاسو سواره کړم.دغه خلق په داسې حال کښې واپس شو.چه د هغوی د سترګو نه اوښکې بهیدلې.ددې غم په وجه چه هغوی سره دخرچ کولو دپاره هیڅ څه نشته.،،

په دې جهاد کښې د تللو دا اعلان په حقیقت کښې د ایمان او منافقت په منځ کښې د فرق یو معیار وو.چه په دې موقعه باندې د منافقانو منافقت ښکاره شو.اوهغوی اووئیل. ﴿لَا تَنفِرُوا فِي الْحَرِّ﴾ (۲)یعنی په ګرمۍ کښې جهاد دپاره مه اوځئ.هغوی مختلفې بهانې جوړې کړې.او په جهاد کښې د تلو دپاره ئې عذر اوکړو.بعضې مخلص مسلمانان هم لاړ نه شو.چه په هغوی کښې مشهور صحابی حضرت کعب بن مالکؓ، حضرت هلال بن امیهؓ، او حضرت مراره بن ربیعؓ شامل وو.ددوی تفصیلی واقعه روستو د بخاری په روایت کښې راروانه ده.

نبی کریمﷺ دیرش زره فوج سره د رجب په میاشت ۹ھ کښې د مدینې منورې نه اووتلو.(۳) په لښکر کښې لس زره اسونه وو.(۴) دمشق طرف ته ئې سفرکولو.د مدینې منورې نه څوارلس منزله فاصله باندې واقع مقام تبوك ته اورسیدل.نو معلومه شوه.چه هغه خبر صحیح نه وو.او په څینو روایاتوکښې دی.چه کله د روم بادشاه هرقل ته د مسلمانانو دومره لوئې جماعت مقابلې دپاره د راتلو خبر اورسیده.نو هغه رُعب واخسته.او مقابلې دپاره رانغې.(۵)

**په تبوک کښې د قیام موده او واپسی:** په تبوك کښې نبیﷺ شلو ورځو پورې قیام اوکړو.(۶)

هم ددې ځائې نه نبیﷺ حضرت خالد بن ولیدؓ ته د ۴۲۰ سورلو یو جماعت ورکړو.او د دمشق نه پنځه منزله باندې واقع د،،دومة الجندل،،سردار،،اکیدر بن عبدالملك

---

۱) تفسیر کبیر(۳۸۱\۱۲-۳۸۲)_

۲) التوبة\۸۱)_

۳) طبقات ابن سعد(۱۶۶\۲)_

۴) فتح الباری (۱۱۱\۸) په بعضې روایاتوکښې څلویښت زره او اویا زره تعداد هم راغلې دې.(عمدة القاری ۵۲\۱۸)_

۵) السیرة الحلبیة(۱۴۲\۳)_

۶) دلته په اصل اردوکښې هم حاشیه نشته،

نصرانی،، ته ئې اولیګه.نبی کریم ﷺ حضرت خالد رضی الله عنه ته د روانیدو په وخت اوفرمائیل.
چه هغه به تاته ښکار کونکې ملاویږی.خو ته هغه مه قتلوه.ماته ئې راوله.که هغه انکار
اوکړی.نو بیا ئې قتل کړه.

حضرت خالد رضی الله عنه د څوارلسمې سپوږمۍ په شپه اورسیده.نو اُکیدر دخپل رور او نورو
ملګرو سره د ښکار دپاره راوتلې وو.د اکیدر رور ،،حسان،، په مقابله کولو کښې مړشو.او
اکیدر ګرفتار کړې شو.او دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر کړې شو.اکیدردوه زره اوښان،
اته سوه اسونه، څلورسوه زغرې،او څلور سوه نیزې ورکړې.اوصلح ئې اوکړله.(١) په دې مقام
کښې د شلو ورځو قیام کولو نه پس نبی علیه السلام واپس مدینې منورې ته روان شو.

[٤١٥٣] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَرْسَلَنِي أَصْحَابِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْأَلُهُ الْحُمْلَانَ لَهُمْ إِذْ هُمْ مَعَهُ فِي جَيْشِ الْعُسْرَةِ وَهِيَ غَزْوَةُ تَبُوكَ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّ أَصْحَابِي أَرْسَلُونِي إِلَيْكَ لِتَحْمِلَهُمْ فَقَالَ وَاللَّهِ لَا أَحْمِلُكُمْ عَلَى شَيْءٍ وَوَافَقْتُهُ وَهُوَ غَضْبَانُ وَلَا أَشْعُرُ وَرَجَعْتُ حَزِينًا مِنْ مَنْعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمِنْ مَخَافَةِ أَنْ يَكُونَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ عَلَيَّ فَرَجَعْتُ إِلَى أَصْحَابِي فَأَخْبَرْتُهُمُ الَّذِي قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ أَلْبَثْ إِلَّا سُوَيْعَةً إِذْ سَمِعْتُ بِلَالًا يُنَادِي أَيْ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ قَيْسٍ فَأَجَبْتُهُ فَقَالَ أَجِبْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوكَ فَلَمَّا أَتَيْتُهُ قَالَ خُذْ هَذَيْنِ الْقَرِينَيْنِ وَهَذَيْنِ الْقَرِينَيْنِ لِسِتَّةِ أَبْعِرَةٍ ابْتَاعَهُنَّ حِينَئِذٍ مِنْ سَعْدٍ فَانْطَلِقْ بِهِنَّ إِلَى أَصْحَابِكَ فَقُلْ إِنَّ اللَّهَ أَوْ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْمِلُكُمْ عَلَى هَؤُلَاءِ فَارْكَبُوهُنَّ فَانْطَلَقْتُ إِلَيْهِمْ بِهِنَّ فَقُلْتُ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْمِلُكُمْ عَلَى هَؤُلَاءِ وَلَكِنِّي وَاللَّهِ لَا أَدَعُكُمْ حَتَّى يَنْطَلِقَ مَعِي بَعْضُكُمْ إِلَى مَنْ سَمِعَ مَقَالَةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَظُنُّوا أَنِّي حَدَّثْتُكُمْ شَيْئًا لَمْ يَقُلْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا لِي وَاللَّهِ إِنَّكَ عِنْدَنَا لَمُصَدَّقٌ وَلَنَفْعَلَنَّ مَا أَحْبَبْتَ فَانْطَلَقَ أَبُو مُوسَى بِنَفَرٍ مِنْهُمْ حَتَّى أَتَوُا الَّذِينَ سَمِعُوا قَوْلَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْعَهُ إِيَّاهُمْ ثُمَّ إِعْطَاءَهُمْ بَعْدُ فَحَدَّثُوهُمْ بِمِثْلِ مَا حَدَّثَهُمْ بِهِ أَبُو مُوسَى [ر: ٢٩٦٤]

په دې روایت کښې بیان کړې شوی دی.چه حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه دخپلو ملګرو
دپاره د سورلۍ غوښتلو دپاره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.نبی علیه السلام
اوفرمائیل.چه زه تاسو ته هیڅ سورلۍ نه شم درکولې.حضرت ابوموسی رضی الله عنه غمژن شو.خپلو
ملګرو ته لاړو.اوهغوی ته ئې اووئیل.چه رسول الله ﷺ هیڅ قسمه سورلی نه شی راکولې.

١) طبقات ابن سعد ١٢\١٦٦)_

لړه شيبه پس حضرت بلال رضي الله عنه حضرت ابوموسى رضي الله عنه راوغوښتلو .چه نبى عليه السلام دې يادوى.
حضرت ابوموسى رضي الله عنه حاضرشو.نو نبى عليه السلام هغه ته شپږ اوښان ورکړل.
حضرت ابوموسى رضي الله عنه دغه اوښان بوتلل.او خپلو ملګرو ته لاړو.چونکه دهغه ملګرو ته داشك كيدې شو.چه ممكن ده.حضرت ابوموسى رضي الله عنه په رومبى خل د رسول الله صلى الله عليه وسلم په باره كښې د غلط بيانۍ نه كار اخستې وى.او دخپل طرفه ئې اووئيل.چه د الله رسول صلى الله عليه وسلم مونږ ته هيڅ قسمه سورلى نه راكوى.په دې وجه د شك لرې كولو دپاره ابوموسى رضي الله عنه خپلو ملګرو ته اووئيل.چه زه به تاسو ترهغه وخته پورې نه پرېږدم.تركومې پورې چه تاسو ماسره هغه سړى ته لاړ نه شئ.كوم چه په رومبى خل د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د سورلۍ وركولو نه د انكار په وخت حاضروو.نو يو څو حضرات دهغه سره لاړل.او هغه سړى تصديق اوكړو.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم واقعى د سورلۍ وركولو نه انكار كړې وو.

[٤١٥٤] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ الْحَكَمِ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ إِلَى تَبُوكَ وَاسْتَخْلَفَ عَلِيًّا فَقَالَ أَتُخَلِّفُنِي فِي الصِّبْيَانِ وَالنِّسَاءِ قَالَ أَلَا تَرْضَى أَنْ تَكُونَ مِنِّي بِمَنْزِلَةِ هَارُونَ مِنْ مُوسَى إِلَّا أَنَّهُ لَيْسَ نَبِيٌّ بَعْدِي وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ الْحَكَمِ سَمِعْتُ مُصْعَبًا [ر:٣٥٠٣]

د ،،أَلَا تَرْضَى أَنْ تَكُونَ مِنِّي بِمَنْزِلَةِ هَارُونَ مِنْ مُوسَى،، **معنى:** نبى كريم صلى الله عليه وسلم چه كله تبوك طرف ته روان شو.نو نبى عليه السلام حضرت على رضي الله عنه خپل قائم مقام جوړكړو.چه هغه د نبى عليه السلام د اهل وعيال وغيره نګرانى اوكړى.بعضې منافقانو په حضرت على رضي الله عنه باندې غلطې خبرې شروع كړې.چه د ناراضګۍ او خفګان په وجه ئې دخان سره بوتلو.(١) حضرت على رضي الله عنه خفه شو.او د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضرشو.او په ژړا شو.او نبى عليه السلام ته ئې خبره وړاندې كړله.نو نبى عليه السلام اوفرمائيل.«أَلَا تَرْضَى أَنْ تَكُونَ مِنِّي بِمَنْزِلَةِ هَارُونَ مِنْ مُوسَى» ته په دې باندې خوشحاله نه يې.چه ته زما دپاره داسې جوړشې.لكه څنګه چه هارون عليه السلام د موسى عليه السلام دپاره وو،،يعنى لكه څنګه چه موسى عليه السلام كوه طور ته د تللو نه پس حضرت هارون دهغه نائب او داهل وعيال نګران وو.دغه شان ته زما نه پس زما د اهل وعيال نګران او زما نائب جوړشه.آيا ته په دې باندې راضى نه يې.

**د باب د روايت نه د روافضو غلط استدلال:** روافض دا خبره ډيره اوچته وى.وائى.چه د حضرت على رضي الله عنه خلافت بلا فصل باندې صريح نص موجود دې.رسول الله صلى الله عليه وسلم دخان نه روستو حضرت على رضي الله عنه خپل خليفه مقرر كړو.خو دهغه خلافت حضرت صديق رضي الله عنه او حضرت فاروق رضي الله عنه او عثمان رضي الله عنه غصب كړو.

خوددې روايت نه دهغوى دا استدلال غلط دې.څكه چه نبى عليه السلام باندې دا خبره پټه نه وه.چه د حضرت هارون عليه السلام وفات د حضرت موسى عليه السلام په ژوند كښې شوې وو.حضرت هارون عليه السلام

---

(١) السيرة الحلبية(١٣٢/٣)_

دحضرت موسى عليه السلام نه پس دهغه خليفه نه وو جوړشوې.بلكه دحضرت موسى عليه السلام خليفه يوشع بن نون جوړشوې وو.هركله چه هارون عليه السلام دحضرت موسى عليه السلام د وفات نه پس دهغه خليفه دسره جوړشوې نه دې.نو حضرت على رضي الله عنه كه د رسول الله ﷺ دپاره ،،بمنزلة هارون من موسى،، اوګرځولې شى.نو ددې نه د نبى عليه السلام د وفات نه پس دهغه د خليفه كيدو مسئله نه ثابتيږى.ځكه چه په مشبه به كښې دا صورت حال موجود نه دې.(١)

[٤١٥٧] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ عَطَاءً يُخْبِرُ قَالَ أَخْبَرَنِي صَفْوَانُ بْنُ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعُسْرَةَ قَالَ كَانَ يَعْلَى يَقُولُ تِلْكَ الْغَزْوَةُ أَوْثَقُ أَعْمَالِي عِنْدِي قَالَ عَطَاءٌ فَقَالَ صَفْوَانُ قَالَ يَعْلَى فَكَانَ لِي أَجِيرٌ فَقَاتَلَ إِنْسَانًا فَعَضَّ أَحَدُهُمَا يَدَ الْآخَرِ قَالَ عَطَاءٌ فَلَقَدْ أَخْبَرَنِي صَفْوَانُ أَيُّهُمَا عَضَّ الْآخَرَ فَنَسِيتُهُ قَالَ فَانْتَزَعَ الْمَعْضُوضُ يَدَهُ مِنْ فِي الْعَاضِّ فَانْتَزَعَ إِحْدَى ثَنِيَّتَيْهِ فَأَتَيَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَهْدَرَ ثَنِيَّتَهُ قَالَ عَطَاءٌ وَحَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفَيَدَعُ يَدَهُ فِي فِيكَ تَقْضَمُهَا كَأَنَّهَا فِي فِي فَحْلٍ يَقْضَمُهَا [ر:٢١٤٦]

حضرت يعلى بن اميه رضي الله عنه فرمائى.چه ما د نبى كريم ﷺ سره په غزوهٔ عسره (تبوك)كښې شركت اوكړو.اوزما په خپلو ټولو عملونوكښې دټولو نه زيات اعتماد په دې غزوې دې.بيا هغوى اووئيل.چه (د غزوه تبوك په سفركښې) زما سره يو اجير يعنى غلام وو.هغه يو سړى سره په جګړه شو.نو په دواړوكښې يوكس د بل لاس په غاښونو سره اوچيچه.دچا لاس چه غاښونو سره چيچلې شوې وو.هغه خپل لاس د چك لګونكى د خولې نه رابنكلو.چه ددې په وجه د چك لګونكى مخامخ يوغاښ اووتلو.بياهغوى دواړه د فيصلې دپاره دنبى عليه السلام په خدمت كښې حاضر شو .نبى عليه السلام دهغه غاښ هدر (مباح) اوګرځولو.(او هغه ته ئې هيڅ ديت ورنكړو) اووې فرمائيل.((افيدع يده فى فيك تقضمها كانها فى فحل يقضمها)) يعنى هغه به خپل لاس ستا په خوله كښې چيچلو دپاره پريخوده.چه تا داوښ پشان هغه چيچلې وې.

دلته د بخارى په روايت كښې تصريح نشته.خو د مسلم شريف په روايت كښې دى.چه دا واقعه پخپله د حضرت يعلى بن اميه رضي الله عنه دخپل اجير سره پيښه شوې وه.(٢) او غاښ كټ كونكې حضرت يعلى رضي الله عنه وو.

---

١) تفصيل دپاره اوګورئ! سيرت مصطفى (٣/٨٨-٩٠) صاحب د سيرت حلبيه ددې حديث نه د شيعه ګانو د استدلال ذكركولو نه پس ليكى،،هذا الحديث..... من قبيل الآحاد، وكل من الرافضة والشيعة لا يراه حجة فى الامامة وعلى تسليم انه حجة فلا عموم له، بل المراد مادل عليه ظاهرالحديث ان عليا كرم الله وجهه خليفة عن النبى ﷺ فى اهله خاصة مدة غيبة بتبوك كما ان هارون كان خليفة عن موسى فى قومه مدة غيبة عنهم للمناجاة، فعلى تسليم انه عام، لكنه مخصوص والعام المخصوص غير حجة فى الباقى او حجة ضعيفة(السيرة الحلبية ٣/١٣٣)_

٢) صحيح مسلم، كتاب القسامة، باب الصائل على نفس الانسان او عضوه... رقم الحديث (٤٢٤٢)_

پليټ فارم (ميدان) باندې دحکومت واګې ښځې ته دحواله کولواجازت څنګه ورکولې شي؟

② په سورة احزاب آيت ٣٣ کښې ارشاد دې.﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ.... ﴾ ،،اوتاسو په خپلو کورونوکښې قرار سره اوسيږئ.او د پخوا زمانې د جاهليت د دستور موافق مه ګرځئ....،،

په دې آيت کښې ښځې ته په کورکښې د اوسيدو حکم ورکړې شوې دې.چه دکور دې ډيوې دپاره د بهر طوفانونه مضر دی.په آيت کښې خطاب اګرچه ازواج مطهرات ته دې.خوحکم ټولو ښځو دپاره عام دې.چه ((العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص المورد...))اوس که حکمرانې ښځې ته حواله کړې شي.نو هغه به په کورکښې څنګه اوسيدې شي؟

③ حديث باب د ښځې د حکمرانۍ صراحت سره نفی کوی.په دې کښې صفا صفا ونيلی شوی دی.((لن يفلح قوم ولّوا امرهم امرأة)) ،، هغه قوم به کله هم کامياب نه شي.چاچه دخپل حکومت معامله ښځتې ته اوسپارله.،،

**په حديث باندې دوه اعتراضونه:** د ښځې د حکمرانۍ قائل بعضې خلقو په دې حديث باندې دوه اعتراضونه کړی دی:

① **رومبې اعتراض:** داچه دا حديث موضوع دې.دا روايت په جنګ جمل کښې هغه وخت مخې ته راغې.کله چه حضرت عائشې رضي الله عنها قيادت کولو.دهغې د قيادت غلط ثابتولو دپاره ددې روايت سهارا (مدد) واخستلې شو.

خوپه حديث باندې د موضوع کيدو اعتراض هغه کس کولې شي.چاته چه د خپلې خوښې نظريه ثابتولوکښې د الله نه ويره نه وی.دا حديث امام بخاری رحمه الله په.کتاب الفتن کښې هم ذکرکړې دې.د بخاری رحمه الله نه علاوه ترمذی، نسائی، مستدرك حاکم، سنن کبری، او مسند احمد کښې هم صحيح سند سره مذکور دې.([1])

په محدثينوکښې چا هم دې ته موضوع نه دې ونيلې.د خيرالقرون نه واخله ترنن ورځې پورې علماء ددې نه استدلال کوی.د مسائلو استنباط کوی.ددې پس منظراو پيش منظر بيانوی.خو موضوع لا څه چه دې ته ضعيف هم چا نه دې ونيلې

بيادلطف خبره ده.چه ددې حديث د راوی،د رسول صلی الله عليه وسلم صحابی حضرت ابوبکره خپله رائې هم په جنګ جمل کښې د حضرت عائشې رضي الله عنها په حق کښې وه.خو چونکه هغه د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه دا حديث اوريدلې وو.په دې وجه هغه د حضرت عائشې رضي الله عنها سره د ملګرتيا کولو نه معذرت اوکړو.([2]) اوس په يو صحابی باندې دا الزام لګول،چه هغه د حضرت عائشې رضي الله عنها

[1]) الحديث اخرجه البخاری فی کتاب الفتن، باب الفتنة التی تموج کموج البحر (١٠٥٢\٢) والترمذی فی ابواب الفتن (٥٢\٢) والنسائی فی کتاب ادب القضاة، باب النهی عن استعمال النساء فی الحکم (٣٠٤\٢) والحاکم فی المستدرک، کتاب معرفة الصحابة (١١٩\٣) والبيهقی فی کتاب الصلاة، باب لا يأتم رجل بامرأة(٩٠\١٣) واحمد فی مسنده (٣٨\٥، ٤٧، ٥١)_

[2]) فتح الباری(٥٦\١٣) کتاب الفتن)_

د قيادت غلط ثابتولو دپاره صرف وختي طور باندې د سياسي ضرورت په لحاظ سره دخپل طرفه د دروغو روايت جوړكړو.يو داسې زړه ورتيا ئې كړې ده.چه په دې باندې استغفار وئيلو سره هم زړه نه مطمئن كيږي.كه د وختي ضرورتونو په وجه د دروغو احاديثو وضع كولو د الزام نه د صحابو رضي الله عنهم پاكبازه قافله هم بچ نه شي.نو بيا د دين اسلام خدائې حافظ دې.

② **دويم اعتراض:** دا شوې دې.چه په دې حديث كښې دى.چه هريوقوم چه هغوى ښځه حكمرانه جوړه كړې وى.كامياب‌بيدې نه شي.حالانكه تاريخ زمونږ په وړاندې دومره بې شميره واقعات پيش كوى.چه په هغې كښې ډيرې ښځې د خپلو خپلو ملكونو او قومونو حكمرانې شوې.او دهغوى دور دخپل وخت ښه دور وو.د روس ملكه كيتهرائن، د هالينډ ملكه هلنيا، ملكه جوليانه، د برطانيه ملكه وكټوريه او الزبتهه، د سرى لنكا مسز بندرانائيكې، او د انډيا مسز اندراګاندهى دخپل خپل وخت كامياب حكمرانې وې..... په مسلمانانو كښې د مصر د بادشاه نجم الدين ايوب وينځه ،،شجرة الدر،، په هندوستان كښې ملكه رضيه سلطانه، چاند بى بى،اودبهوپال دبيګماتو حكومتونه ډير كامياب تيرشوى دى.اوس به دا حديث چرته ځى.آيا ددې مطلب دادې.چه ضرور مونږ دا اومنو.چه تاريخ د رسول الله ﷺ د قول ترديد كړې دې؟

خو دا اعتراض په اصل كښې د ،،فلاح،، دمفهوم نه جهالت باندې مبنى دې.د اسلام د فلاح نظريه، د مال اودولت په ډيروالى، د فتوحاتو په كثرت، او د حكومت رعب او دبدبه نه ده.په قرآن شريف كښې دى.﴿ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ۝ ﴾ (۱) بې شكه كافران فلاح نه بيامومى،،كه د فلاح مفهوم صرف دنياوى كاميابئ پورې محدود اوساتلې شى.بيا خو به د كافرانو د ښائسته او رنګينو مضبوطو حكومتونو تاريخ سره نعوذبالله د داسې قسمه قرآنى آياتونو هم ترديد كيږى. حقيقت دادې.چه په اسلام كښې د فلاح مفهوم د دنيا او آخرت دواړو د كاميابئ نه عبارت دې. اوس تاسو اووايئ.چه د دغه ښځو حكومتونو ته كومه د آخرت كاميابى نصيب شوه.چه دهغې په بنياد باندې دا فرض كړې شى.چه د حديث صحيح منلو په صورت كښې نعوذ بالله تاريخ سره دهغې تكذيب كيږى.

دنياوى اعتبار سره هم ددغه ښځو حكومتونه كامياب نه شى ګنړلې كيدې.د رضيه سلطانه په دوركښې فتنه او فساد راوڅت شو.شجرة الدر په ناجائزه حكمرانه جوړه شوې وه.دهغې د حكومت اطلاع چه كله بغداد كښې خليفه مستنصربالله ته اوشو.نو هغه د مصر امراء ته پيغام اوليګه.چه كه په مصركښې څوك سړې حكمرانئ دپاره باقى پاتې نه شو.نو د بغداد نه مونږ سړې درليګو.(۲) د رضيه سلطانه، چاند بى بى او شجرة الدر دريو واړو انجام قتل شو.

---

(۱) سورة المؤمنون ۱۱۷_
(۲) مرآة الجنان لليافعي (۱۲۷۱۴) واعلام النساء(۲۸۶۱۲)_

④ د ښځې د حکمرانۍ نفی کونکې څلورم دلیل د نبی کریم ﷺ هغه ارشاد دې.کوم چه امام ترمذی په ،،ابواب الفتن،،کښې نقل کړې دې.

**قوله:** اذا کان امراءکم خیارکم واغنیاءکم سمحائکم و امورکم شوری بینکم فظهرالارض خیرلکم من بطنها،واذاکان امراءکم شرارکم واغنیاءکم بخلائکم وامورکم الی نساءکم فبطن الارض خیرلکم من ظهرها:(١)،،کله چه ستاسو حاکمان په تاسو ټولوکښې غوره وی.ستاسو مالداره سخیان وی.اوستاسو معاملات خپل منځ کښې مشورې سره کیږی.نو ستاسو دپاره د زمکې پورته حصه دهغې د دننه نه غوره ده. خوکله چه ستاسو حاکمان خراب خلق وی.ستاسو مالداره بخیل وی.او ستاسو معاملات ښځو ته سپارلې شوې وی.نو د زمکې دننه حصه ستاسو دپاره ددې دشا نه غوره ده،،

⑤ رسول الله ﷺ یوه سریه اولیګله.الله فتح ورکړله.قاصد نبی علیه السلام ته دفتح زیرې راوړلو. تفصیلاتو بیانولوکښې هغه دا خبره هم اوکړله.چه د دشمنانو قیادت یوې ښځې کولو.په دې باندې نبی علیه السلام اوفرمائیل.((هلکت الرجال حین اطاعت النساء)) ..سړی چه کله د ښځو اطاعت اوکړی.نوهغوی تباه او برباد دی،،امام حاکم دا حدیث صحیح الاسناد ګرځولې دې.علامه ذهبی ددې توثیق او تائید کړې دې.(٢)

⑥ دقرآن او حدیث نه پس د اسلام داحکامو دارومدار په اجماع باندې دې.د ښځې دحکمرانۍ په عدم جواز باندې د امت اجماع ده.په کومو مسئلو چه د امت د علماؤ اجماع ده. علامه ابن حزم رحمه الله هغه ټولې مسئلې په ،،مراتب الاجماع،، نوم سره یوکتاب کښې جمع کړې دی.د ښځې د حکمرانۍ په باره کښې لیکی:

((واتفقوا ان الامامة لاتجوز لامرأة))(٣)،،د عالمانو په دې خبره اتفاق دې.چه د حکومت مشری دهیڅ یوې ښځې دپاره جائز نه ده،،

د شپږمې صدۍ مشهورعالم امام محی السنه بغوی ،،په شرح السنه،،کښې لیکلی دی.

((اتفقواعلی ان المرأة لاتصلح ان تکون اماما))(٤)

علامه قرطبی رحمه الله په خپل مشهور تفسیرکښې د خلیفه شرائطو بیانولوکښې لیکی:

((واجمعوا علی ان المرأة لایجوز ان تکون اماما))(٥)

امام الحرمین علامه جوینی رحمه الله فرمائی.((واجمعوا ان المرأة لایجوز ان تکون اماما))(٦)

---

(١) سنن ترمذی ابواب الفتن(٥٢\٢)_

(٢) مستدرک حاکم. کتاب الادب. باب سجدة الشکر(٢٩١\٤)_

(٣) مراتب الاجماع\١٢٦)_

(٤) شرح السنة(٧٧\١٠)_

(٥) تفسیرقرطبی(٢٧٠\١١)_

(٦) الارشاد فی اصول الاعتقاد لامام الحرمین الجوینی(٣٥٩)_

داسلام په سياسي نظام باندې ليکلو شوو پخوانو او نوو ټولو کتابونوکښې د حکومت د حکمرانئ دپاره سړې کيدل ضروري ګرځولی شوی دی.په نوو محققينو کښې ډاکټر محمد منيرعجلانی ليکی:

((لا نعرف بين المسلمين من أجاز خلافة المرأة، فالاجماع في هذه المسئلة تام لم يشذ عنه احد))(١)

ډاکټر ابراهيم يوسف مصطفی عجو ليکی:

((مما أجمعت عليه الأمة على أن المرأة لايجوز لها أن تلي رياسة الدولة))(٢)

عبدالله بن عمر دميجي ليکی.

((من شروط الامام ان يكون ذكرا ولا خلاف في ذالك بين العلماء))(١)

د قرآن او حديث او اجماع نه پس قياس هم دا وائی.چه کوم شريعت په مانځه کښې د ښځې امامت ناجائز ګرځولي دې.جهاد ئې په هغې باندې فرض نه کړو.د محرم نه بغير ئې د کورنه سفر کول ممنوع اوګرځول.په کورکښې ئې د اوسيدو حکم ورکړو.دهغې ګواهی ئې نصف اوګرځوله.د نان نفقې ذمه داری ئې په پلار او خاوند باندې واچوله.هغه شريعت ددې کمزورې په اوګو باندې د رياست او حکومت د مشرئ دا دروند بوج څنګه اچولې شي؟

**د ښځو په قيادت د مجوزينو دلائل:** په حکومت او سياست کښې د ښځې په وجود سره کائناتو ته رنګ ورکونکی قائلينوکښې بعضې حضراتو د ښځو حکمرانی د اسلامی تعليماتو په رڼا کښې دجائز ګرځولو کوشش کړې دې.دهغوی اهم او لوئې دلائل دادی:

① په جنګ جمل کښې حضرت عائشې رضي الله عنها قيادت کړې وو.دحضرت طلحه رضي الله عنه اوحضرت زبير رضي الله عنه پشان جليل القدر صحابو رضي الله عنهم دهغې د قيادت لاندې په جنګ کښې حصه اخستې وه.چه دهغې نه دښځې د قيادت او حکمرانئ جواز معلوميږی.خو دا هيڅ وزنی دليل نه دې.د جنګ جمل او دهغې د تاريخی پس منظر مطالعه کونکې يو ادنی طالب علم هم په دې خبره ښه پوهيږی.چه په دغه موقعه باندې ام المؤمنين حضرت عائشې رضي الله عنها نه د حکومت او خلافت دعوه کړې وه.او نه ددې مقصد دپاره امارت او مشری هغې ته سپارلې شوې وه.واقعه دا شوې وه.چه امهات المؤمنين حج دپاره تلې وه.شاته په مدينه کښې دحضرت عثمان رضي الله عنه دشهادت افسوسناکه حادثه پيښه شوې وه.د حضرت عثمان رضي الله عنه د قصاص په باره کښې مسلمانانوکښې اختلاف پيداشوې وو.په دې نازکه موقعه باندې بعضې اکابرو صحابو رضي الله عنهم په مکه کښې حضرت عائشې رضي الله عنها ته مشوره ورکړله.چه ددې محترم ذات دا وخت د امت انتشار او اختلاف ختمولې شی.حضرت عائشې رضي الله عنها اوغوښتل چه مدينې منورې ته لاړه شی.او حضرت علی رضي الله عنه په قصاص باندې راضی کړی.خو بعضې صحابو رضي الله عنهم اووئيل.چه مخکښې بصرې ته لاړشئ.او دهغه ځائې دخلقو حمايت (مدد) حاصلول پکاردی.د بصرې د خلقو د حمايت حاصليدو نه پس به حضرت علی رضي الله عنه دپاره

(١) د ډاکټر منيرعجلانی کتاب ،،عبقرية الاسلام فی اصول الحكم،،(٧٠)۔

(٢) اوګورئ ابراهيم يوسف مصطفی کتاب تعليق تهذيب الرياسة وترتيب السياسة (٨٢)۔

قصاص اخستل اسان شی.اوهغه به قصاص اخستلو دپاره راضي شي.حضرت عائشه رضي الله عنها ددې مشورې نه متاثره شوه.او بصرې ته روانه شوه.او د بعضې اسلامی دشمنانو په سازش سره د جنګ جمل افسوسناکه واقعه پېښه شوه.[2]

دلته دا خبره ياد ساتئ:چه حضرت عائشې رضي الله عنها ته کومو صحابو رضي الله عنهم بصرې ته د تللو مشوره ورکړې وه.دهغوی مقصد امت لره د انتشار نه د بچ کولو يو تدبير وو. حضرت عائشه رضي الله عنها لره خليفه يا امير جوړول دهغوی مقصد لاڅه چه دهغوی په خوا خاطرکښې هم نه وو.او نه پخپله د حضرت عائشې رضي الله عنها دا خواهش وو.کله چه بصرې ته اورسيدل.او قعقاع بن حکيم د حضرت عائشې رضي الله عنها نه دهغې د تشريف راوړلو د مقصد تپوس اوکړو.نووې فرمائيل.«اى بني! لاصلاح بين الناس» (اې خويه! زه د خلقو په مينځ کښې د صلح کولو دپاره راغلې يم،، روستو هغه پخپل دې سفر باندې دومره پښېمانه وه.چه کله به دا واقعه ورياده شوه.نو په ژړا ژړا به ئې لوپټه لمده شو.([3]) په کومه واقعه کښې چه حضرت عائشه رضي الله عنها نه خليفه وه.اونه حکمرانه وه.اودکومې په راپيښيدو چه هغه دومره حد له پښېمانه وه.نو هغه (واقعه) د ښځې د قيادت په جواز باندې څنګه دليل جوړيدې شي؟

② د ښځې د حکمرانۍ په جواز باندې دويم استدلال ملکهٔ سبا د بلقيس واقعې نه کولې شي. په قرآن کښې دهغې د سلطنت او حکمرانۍ ذکر دې.په حضرت سليمان عليه السلام باندې د ايمان راوړلو نه پس هم بعضې رواياتوکښې راځي.چه هغه د خپل حکومت حکمرانه وه.چه ددې نه د ښځې د قيادت جواز معلوميږي.

خو دا استدلال هم کمزورې دې.د ملکهٔ سبا ايمان راوړل د قرآن نه ثابت دی. خو ددې نه پس دهغې څه اوشو؟ چرته لاړله؟ په دې باره کښې هيڅ يو صحيح روايت نشته.علامه قرطبی ليکی«لم يرد فيه خبر صحيح»([4]).په دې سلسله کښې هيڅ يو صحيح روايت نه دې وارد شوې،، او فرض کړئ.چه حضرت سليمان عليه السلام دهغې حکومت باقی ساتلې وو.نو زيات نه

---

[1]) الامامة العظمى عند اهل السنة (۲۴۳)..... د پاکستان اهل فتوى عالمانوکښې مولانا رشيد احمد صاحب فرمائی،،دښځې حکمرانی بالاجماع جائز نه ده،،(احسن الفتاوى ۶/۲۹۱)
مولانا مفتی محمد رفيع عثمانی صاحب ليکی:،،د امت مسلمه په دې خبره اجماع ده.چه په اسلام کښې د حکومت د مشرئ ذمه داری هيڅ يوې ښځې ته نه شی سپارلې کيدې،،(عورت کی سربراهی از مولانا محمد رفيع عثمانی ص۱)
مولانا يوسف لدهيانوی صاحب ليکی:،،د حکومت د سربراهۍ دپاره سړې شرط کيدل او د ښځې د حکومت مشرئ دپاره اهل نه کيدل صرف داهل اسلام اجماعی مسئله نه ده.بلکه د ټول عالم د عقلاؤ متفق عليه مسئله ده.(عورت کی سربراهی از مولانا محمد يوسف لدهيانوی ص۱۷)۔

[2]) البداية والنهاية، ابتداء وقعة الجمل (۷/۲۳۰-۲۳۱)۔

[3]) طبقات ابن سعد(۸/۸۰) وسير اعلام النبلاء(۲/۱۷۷) ومنهاج السنة لابن تيمية (۲/۱۸۵)۔

[4]) الجامع لاحکام القرآن للقرطبی (۱۳/۲۱۰)۔

زیات به ددې نه د حضرت سلیمان علیه السلام په شریعت کښې د ښځې د قیادت جواز ثابتیږی.چه دا په شریعت محمدی کښې حجت نه دې.حکیم الامت حضرت تهانوی رحمه الله په بیان القرآن کښې د بلقیس د واقعې متعلق لیکی:

,,او زمونږ په شریعت کښې ښځې لره د بادشاه جوړولو ممانعت دې.نو د بلقیس د قصې نه دې څوك شبه نه کوی.اول خو دا فعل د مشرکانو وو.دویم که د سلیمان علیه السلام شریعت هغه قائم ساتلې هم وی.نو په شریعت محمدی کښې ددې د خلاف کیدو په وجه حجت نه دې،(۱)

③ د ښځې د حکمرانئ په جواز باندې د حضرت تهانوی رحمه الله د یوې فتوې نه هم استدلال کولې شی.چه په هغې کښې حضرت تهانوی رحمه الله د حدیث باب «لن یفلح قوم ولّوا امرهم امرأة» باره کښې د یوسوال جواب ورکولو کښې فرمانیلی دی.چه جمهوری حکومت ددې وعید لاندې داخل نه دې.(۲) معلومه شوه.چه ښځه د جمهوری حکومت سربراه جوړیدې شی.

د ښځې د سربراه جوړیدو متعلق د حضرت تهانوی رحمه الله رائې پورته د بیان القرآن په حوالې سره تیره شوې ده.چه په هغې کښې هغوی صفا صفا اوفرمائیل .چه ،،زمونږ په شریعت کښې ښځې لره د بادشاه جوړولو ممانعت دی،، البته د جمهوری حکومت متعلق دحضرت تهانوی رحمه الله مذکوره فتوې نه معلومیږی.چه ښځه ددې سربراه جوړیدې شی.حضرت تهانوی رحمه الله ددې وجه دا لیکلې ده.چه ،،په جمهوری سلطنت کښې والئ صوری په حقیقت کښې والی نه وی.بلکه د مشورې یو رکن دې.او والی حقیقی د مجموعه شوری والا دی،،[یعنی وزیراعظم حقیقی والی (حاکم) نه وی.بلکه د شوری یو رکن وی.او د قومی اسمبلئ مجموعه ممبران حقیقی والی وی...ازمترجم]

خو روستنو علماؤ دحضرت تهانوی رحمه الله دې خبرې سره اتفاق نه دې کړې.چه په جمهوری حکومت کښې د والی او سربراه حیثیت صرف د مشورې د یو رکن دې. په موجوده پارلیمانی نظام کښې وزیراعظم صرف د مشیر یا رکن حیثیت نه لری .بلکه هغه د حکومت او انتظامیې پخپله اختیارمند سربراه وی.

البته که چرته داسې حکومت وی.چه په هغې کښې د پارلیمنټ د سربراه حیثیت صرف د مشورې د یو رکن وی.هلته د ښځې د سربراهئ دپاره د جواز گنجائش راوتلې شی.ددې وجه حضرت تهانوی رحمه الله دا بیانوی.چه ،،راز په دې کښې دا دې.چه حقیقت ددې حکومت صرف مشوره ده.او ښځه د مشورې اهل ده،،

حاصل داچه د امت د ټولو علماؤ پشان حضرت تهانوی رحمه الله هم ددې خبرې قائل دې.چه ښځې لره د اسلامی حکومت سربراه جوړول جائز نه دی.البته اختلاف د جمهوری حکومت په حقیقت کښې دې.حضرت تهانوی رحمه الله د جمهوری حکومت د سربراه په باره کښې دا اوگڼړل. چه هغه حقیقت کښې سربراه نه وی.بلکه دهغه حیثیت صرف د مشیر وی.حالانکه

---

(۱) بیان القرآن (۸۵/۸) سورة النمل)_

(۲) ددې فتوی دپاره اوگورئ! امداد الفتاوی ۹۹/۵-۱۰۰)_

باقي اهل فتوى عالمان واني.چه د جمهوري حكومت سربراه صرف مشيرنه وي.بلكه كافي حده پورې خودمختاره اوبا اقتداره وي.په دې وجه ددې سربراه ښځه نشي جوړيدې.
⑤ د ښځې دحكمرانۍ په جواز باندې د فقة حنفي مشهوركتاب ،،البحرالرائق،، كښې دعلامه ابن نجيم ددې عبارت نه هم استدلال كولې شي((اما سلطنتها فصحيحة وقد ولي مصر امرأة تسمى شجرة الدر جارية الملك الصالح بن ايوب))(١) په دې كښې د ښځې حكمرانۍ ته صحيح ونيلې دي.چه ددې نه دښځې دحكمرانۍ جواز معلوميږي
ددې جواب دادې.چه په عبارت كښې د ،،صحت،، نه مراد نفاذ دې.مطلب دادې.چه ښځې لره حكمرانه جوړول ناجائز دي.خو ددې باوجود كه هغې په څه طريقه قابو حاصل كړله.نو دهغې حكومت به نافذ وي.او په جائزو اموروكښې به دهغې اطاعت واجب وي.دا داسې ده.لكه چه يو غلام په ناجائزه طريقه قابو حاصل كړي.نو دهغه حكومت به نافذ وي.حالانكه حكمران دپاره آزاد كيدل متفق عليه شرط دې.د حكمرانۍ جواز او عدم جواز جدا څيز دې.او دحكمران جوړيدو نه پس د حكومت نفاذ او عدم نفاذ جدا څيز دې.په مذكوره عبارت كښې نفاذ مراد دې.جواز مراد نه دې.په شريعت كښې ددې ډير مثالونه شته.مثلاً فاسق لره په مانځه كښې امام جوړول جائز نه دي.خوكه څوك فاسق امام جوړشو.نو دهغه په اقتداء كښې به مونځ صحيح وي.

## بَابُ مَرَضِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَوَفَاتِهِ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَيِّتُونَ ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِنْدَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ (الزمر:٣٠-٣١)

امام بخاري رحمه الله سيرت نبويه په ترتيب سره بيانونكې راروان دې.اول ئې د رسول الله ﷺ دخاندان مناقب بيان كړل.دهغې نه پس ئې د رسول الله ﷺ مناقب بيان كړل.بيا ئې د صحابو رضي الله عنهم مناقب او فضائل ذكركړل.كوم چه د نبوي باركاه د تاريخ يو ښائسته باب دې. ددې نه پس ئې د غزواتو، سلسلة الوفود او حجة الوداع ذكر اوكړو.او اوس ددې ځائې نه د رسول الله ﷺ د وفات د غم آياتونه بيانوي.
الله ﷻ چه د دواړوجهانو د سردار جناب نبى كريم ﷺ په ذمه كوم كارلګولې وو.د هغې د مكمل كيدو نه پس.او كوم شريعت چه الله تعالى نبى عليه السلام ته وركړې وو.د هغې تكميل نه پس اوس وخت راغې.چه الله تعالى نبى عليه السلام لره خپل خان ته اوبلي.د شريعت د تكميل اعلان د عرفات په عامه مجمع كښې اوكړې شو. ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾ (٢) سورة فتح نازل شو.اوپه هغې كښې د نبى عليه السلام دوفات اطلاع

---

(١) البحر الرائق شرح كنزالدقائق(٥١٦) باب كتاب القاضى الى القاضى وغيره)_
(٢) سورة المائده٣)_

ورکړې شوه. ارشاد اوشو.﴿ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ ﴾،، اوس تاسو تسبيح او استغفار طرف ته متوجه شئ،، ابن جرير دحضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت نقل کړې دې چه د سورة فتح د نازليدو نه پس به نبی عليه السلام اکثر په استغفار او تسبيح کښې مشغول اوسيده.[1] هرکال به ئې رمضان کښې لس شپې اعتکاف کولو.خوپه دې کال شل ورځې اعتکاف کښې کيناسته. حضرت جبرئيل عليه السلام سره ئې د قرآن شريف د دور په هر رمضان کښې يوځل معمول وو.په دې کال ئې دوه ځله د قرآن دور اوکړو.[2] دا ټول قرائن وو.ددې فاني دنيا نه د نبی عليه السلام د تللو. دغزوۀ احد په موقعه باندې چه په کومه بې وسئ،(بغير مال واسباب) بې کسئ او په کوم اخلاص ۷۰ ته نزدې صحابو رضي الله عنهم قرباني ورکړله.اوشهادت ئې بيا موندو.دهغوی ياد د نبی عليه السلام په زړه کښې تازه وو.د حجة الوداع نه واپسئ باندې يوه ورځ نبی عليه السلام دهغوی قبرونوته تشريف يوړه.او اته کاله پس ئې دهغوی د جنازې مونځ اوکړو.او بيا ئې خطبه ورکړله.[3]

دصفرد مياشتې په آخری تاريخونوکښې يوه شپه نبی عليه السلام پاسيده.جنت البقيع ته ئې تشريف يوړه.او د اهل بقيع دپاره د دعا او استغفار کولو نه پس ئې چه کله کور ته تشريف راوړه.نو طبيعت ئې ناسازه شو.په سرکښې ئې د درد شکايت شو.او د مرض وفات ابتداء شوه.[4]

**د مرض الوفات ابتداء:** په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې د بيمارئ حمله کله اوشوه؟ په دغه ورځ ازواج مطهراتو کښې دچا نمبر وو؟ نبی عليه السلام څومره ورځې بيمار وو؟ په دې سلسله کښې روايات مختلف دی:واقدی، ابن سعد، حاکم او ابن حبان رحمهم الله وغيره ليکلی دی.چه نبی کريم صلى الله عليه وسلم د چارشنبې په ورځ بيمار شو.[5] د هفتې او د ګل د ورځې قول هم شته. [6] خو زيات روايات د چارشنبې د ورځې دی.

په کومه ورځ چه نبی عليه السلام باندې د مرض وفات حمله اوشوه.په دغه ورځ د حضرت ميمونه رضي الله عنها نمبر وو.ابومعشرپخپل سيرت کښې دحضرت زينب بنت جحش او سليمان تيمی پخپل سيرت کښې د ريحانه رضي الله عنها متعلق ليکلی دی.چه د بيمارئ ابتداء دهغوی په کور کښې شوې وه.خو ړومبې قول راجح دې.حافظ ابن حجر رحمه الله هم دې لره معتمد ليکلې دې.[7]

**د بيمارئ ټوله موده:** د نبی عليه السلام د بيمارئ د ټولې مودې باره کښې د لسو ورځو، دولسو ورځو، ديارلسوورځو،او څوارلسو ورځو مختلف أقوال ملاويږی.خو داکثرو اصحاب سير

---

[1]) تفسير درمنثور(۴۰۸/۶)_
[2]) البداية والنهاية (۲۲۳/۵)_
[3]) صحيح مسلم (۲۵۰/۱۲) کتاب الفضائل، باب اثبات الحوض)_
[4]) البداية والنهاية (۲۲۴/۵)_
[5]) طبقات ابن سعد (۲۰۶/۲) وفتح الباری (۲۰۶/۸)_
[6]) فتح الباری(۱۲۹/۸)_
[7]) فتح الباری(۱۲۹/۸)_

راني داده.چه نبی علیه السلام تول دیارلس ورځې بیمار وو.(١)
دبقیع نه چه کله نبی علیه السلام واپس تشریف راوړه.او په سر کښې ئې ددرد شکایت شو.نو نبی علیه السلام حضرت عائشې رضی الله عنها کره تشریف یوړه.حضرت عائشې رضی الله عنها ته هم د سر د درد شکایت وو. نبی علیه السلام ئې چه اولیده.نو فریاد ئې اوکړو.،،وارأساه!،، هائې زما سرا نبی علیه السلام اوفرمائیل. ،،بل انا اقول: وارأساه!،، یعنی وئیل خو ماله پکار دی.چه ،،هائې زماسرا،،(چه هم دا درد زما د وفات سبب دې). بیا نبی علیه السلام حضرت عائشې رضی الله عنها ته اوفرمائیل.اې عائشې! که ته زما نه مخکښې مړه شوې.نو هیڅ د فکر خبره نه ده.زه به ستا د کفن دفن انتظام اوکړم.دجنازې مونځ به اوکړم.ستا دپاره به د مغفرت دعا اوکړم.حضرت عائشې رضی الله عنها د ناز په طور اوفرمائیل ،،او تاسو خو زما مرګ غواړئ.که زه مړه شوم.نوهم په هغه ورځ به تاسو زما په کورکښې بلې یوې بی بی سره آرام کوئ.،،(او ما به بالکل هیره کړئ) نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه دا واوریدل.نو مسکې شو.(٢) حضرت عائشې رضی الله عنها ته څه پته وه.چه یو څو ورځې پس به پخپله رسول الله صلی الله علیه وسلم رخصتیږی.او دا به یواځې پریږدی.

**دحضرت عائشه رضی الله عنها کورته منتقل کیدل:** د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د مرض سلسله د چارشنبې د ورځې نه شروع شوې وه.د بیبیانو په منځ کښې به نبی کریم صلی الله علیه وسلم دعدل ډیراهتمام کولو.دهغې مطابق دبیمارئ په حالت کښې نبی علیه السلام په نمبر نمبر د یوې یوې بی بی کورته منتقل کیدو.د ګل په ورځ مرض زیات شو.نو د ازواج مطهرات نه ئې اجازت واخستلو.چه دحضرت عائشه رضی الله عنها په کورکښې قیام اوکړی.صراحت سره نبی علیه السلام اونه فرمائیل.خو نبی علیه السلام به بار بار تپوس کولو.چه صبا له به زه د چا په کورکښې یم؟ ازواج مطهرات ئې په طبیعت پوهه شو.عرض ئې اوکړو.چه تاسو کوم ځائې غواړئ.قیام اوکړئ.(٣) نو نبی علیه السلام د ګل په ورځ د حضرت عائشې رضی الله عنها حجرې (کوټې) ته منتقل شو.او پوره یوه هفته په بیمارئ کښې تیرولو نه پس په بل ګل باندې د عائشې رضی الله عنها په کورکښې نبی علیه السلام وفات شو.

دحضرت عائشې رضی الله عنها په کورکښې د بیمارئ تیرولو دخواهش یوه وجه خو ښکاره ده.چه دکوم اُنس او محبت تعلق چه د نبی علیه السلام عائشې رضی الله عنها سره وو.په ازواج مطهرات کښې ئې بل چا سره نه وو.اودانس(محبت )زیاتوالې دسکون سبب وی.په دې وجه نبی علیه السلام دا محسوسه کړله.چه د عائشې رضی الله عنها په کورکښې به ماته زیات راحت او سکون حاصل وی. دویمه خبره داده.چه دحضرت عائشې رضی الله عنها نه علاوه په ازواج مطهراتوکښې دهیڅ چا په بستره کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې د وحی نزول نه دې شوې.دحضرت عائشې رضی الله عنها دا خصوصیت وو.چه نبی علیه السلام به دهغې په بستره کښې وو.او وحی به نازلیده.نو اوس د بیمارئ په ورځو کښې هم

---

١) فتح الباری(١٢٩\٨)_
٢) سیرت ابن هشام مع الروض الانف (٣٦٦\١٢)_
٣) البدایة والنهایة(٢٢٥\٥)_

د وحی نازلېدو امکان وو.په دې وجه نبی علیه السلام اوغوښتل.چه د بیمارئ دا ورځې د حضرت عائشې رضي الله عنها په کورکښې تېرې کړي.چه که نبی علیه السلام د خپل اهل سره وی.او دغه وخت د وحی وی.نو د الله وحی به نازله شي.

**اخری خطبه.** د بیمارئ په دې ورځوکښې به نبی علیه السلام مسجد نبوی ته د مونځ ورکولو په غرض سره تشریف اوړه.د زیارت په ورځ نبی علیه السلام حکم ورکړو.چه د اوبو اوه مشکونه دې په ما باندې واړولې شی.نو په ډېر اهتمام سره د اوبو اووه مشکونه نبی علیه السلام باندې واړولې شو. په دې طریقه غسل سره نبی علیه السلام ته معمولی شان سکون اوشو.د ماسپخین مونځ کولو نه پس نبی علیه السلام خطبه ورکړله.(١)

دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم اخری خطبه وه.په دې خطبه کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دحضرت صدیق اکبر رضي الله عنه فضائل او مناقب بیان کړل.حضرات انصارو رضي الله عنهم سره د نرمئ کولو تاکید ئې اوفرمائیلو. اووې فرمائیل.چه مخکنو قومونو د خپلو انبیاؤ او اولیاؤ قبرونه د عبادت ځایونه جوړ کړل. خیال کوئ! چرته تاسو داسې حرکت اونکړئ.وې فرمائیل. چه مسجد طرف ته څومره دروازې کلاؤ دی.ټولې دې بندې کړې شی.صرف د ابوبکردروازه دې کلاؤ پرېخودې شی. نبی علیه السلام اشارتاً د خپل وفات وخت نزدې راتلوذکرهم اوکړو.چه په هغې باندې حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه پوهه شو.او په ژړا شو.نبی علیه السلام هغه ته تسلی ورکړله.اووې فرمائیل. چه ماته داسې معلومه شوې ده.چه تاسو خلق دخپل نبی جدائی اومرګ نه ډېر خفه او یرېدونکی یئ.حالانکه دلته چالره هم همیشوالې نشته.(لکه څنګه چه د قرآن شریف په دې آیاتونوکښې دی. ﴿وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ﴾ (٢)﴿وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ﴾ (٣) په داسې قسمه نصیحت سره نبی علیه السلام صحابه کرام رضي الله عنهم په دې خبره راضی کړل.چه هغوی د نبی علیه السلام د جدائی غم برداشت کړې شی.ددې نه پس نبی علیه السلام صحابو رضي الله عنهم ته الوداع اووئیل.اوکور ته ئې تشریف یوړه.(٤)

**په مسجد نبوی کښې اخری مونځ:** د زیارت په ورځ د ماذیګر مانځه نه پس نبی علیه السلام جمات ته تشریف راوړه.او د ماښام په مانځه کښې هم راغې.دماښام په مانځه کښې نبی علیه السلام سورة ﴿وَالْمُرْسَلٰتِ عُرْفًا﴾ تلاوت کړو.د زیارت په ورځ د ماښام دا مونځ د نبی علیه السلام د ټولو نه آخری مونځ وو. کوم چه نبی علیه السلام ورکړو. لکه چه روستو د بخاری په روایت کښې راروان دی.چه د ماسخوتن وخت راغې.نو تپوس ئې اوکړو.چه مونځ اوشو؟ خلقو اووئیل.ټول ستاسو انتظار کوی.نبی علیه السلام پاسیدل اوغوښتل. خو بې هوشی پرې راغله.د هوش راتلو نه پس ئې بیا

---

١) البداية والنهاية (٢٢٥\٥)_

٢) سورة الانبياء\٣٤)_

٣) سورة آل عمران\١٤٤)_

٤) ددې خطبې مبارکې تفصیل دپاره اوګورئ! البداية والنهاية ٢٢٩\٦-٢٣١) واتحاف السادة المتقين (٢٨٩\١٠)_

تپوس اوکړو.چه مونځ اوشو؟ خلقو بیا هغه جواب ورکړو .نبی علیه السلام پاسیدل اوغوښتل.نو بیا پرې بې هوشی راغله. په دریم ځل هم چه کله بې هوشی راغله نووې فرمائیل.ابوبکر رضی الله عنه دې مونځ ورکړی. نود ماسخوتن مونځ حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه ورکړو.(١)

ددې نه پس به مونځونه صدیق اکبر رضی الله عنه ورکول.د نبی علیه السلام تګ راتګ مسجد طرف ته بند شو.البته د هفتې یا اتوار په ورځ د نبی علیه السلام په طبیعت کښې څه افاقه اوشوه.نو نبی علیه السلام د حضرت عباس رضی الله عنه او د حضرت علی رضی الله عنه په سهارې سره مسجد نبوی ته تشریف راوړه. جماعت اودریدلې وو.حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه مونځ ورکولو .نبی علیه السلام د حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه ګس طرف ته کیناسته.حضرت صدیق رضی الله عنه شاته شو .نبی علیه السلام اشارې سره منع کړو.او دهغه په اړخ کښې ګس طرف ته کیناسته.اومونځ ئې ورکړو.اوس نبی علیه السلام امام وو.او صدیق اکبر رضی الله عنه د نبی علیه السلام اقتداء کوله.باقی مونځ کونکو به د حضرت صدیق اکبر په تکبیرونو باندې د مونځ ارکان اداکول.دا د ماسپخین مونځ وو.(٢)

دماسپخین دا امامت د نبی کریم صلی الله علیه وسلم آخری امامت وو.خو د ماسپخین د مانخه پوره امامت نبی علیه السلام نه ووکړې.د مونځ د ابتدائی حصې امامت حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه فرمائیلې وو. دکوم مونځ چه مستقل آخری امامت نبی علیه السلام فرمائیلې دې. هغه د زیارت د ورځې د مانښام د مونځ امامت وو.لکه څنګه چه اوس وړاندې بیان شو.

په دې بیان سره هغه دواړه قسمه روایاتو منځ کښې تطبیق هم کیږی.چه په هغې کښې بعضوکښې دی.چه نبی علیه السلام آخری مونځ د مانښام اوکړو.او په بعضوکښې دی.چه آخری مونځ ئې د ماسپخین ورکړو.دغه شان په کومو روایاتو کښې چه د مانښام مونځ آخری ګرځولې شوې دې.دهغې نه د مستقل امامت په اعتبار سره آخری کیدل مراد دی.نو دا دهغه روایاتو معارض نه دې.په کومو کښې چه راغلی دی.چه آخری مونځ نبی علیه السلام د ماسپخین ورکړې دې.ځکه چه د ماسپخین دغه مونځ نبی علیه السلام مستقل او پوره پخپله نه وو ورکړې.بلکه دمونځ شروع کیدو نه پس نبی علیه السلام راغې.اوامامت ئې اوکړو.(٣)

د اتوار په ورځ مرض سخت شو.د ذات الجنب په خیال سره خلقو دهغې دوائی ورکول اوغوښتل.خو نبی علیه السلام ته هغه دوائی. ځکل ناخوښه وو.نو نبی علیه السلام انکار اوکړو.مریض چونکه عام طور باندې دوائی ناخوښوی.په دې وجه صحابه کرامو رضی الله عنهم اوګڼړل.چه دا طبعی ناخوښی ده.اوپه زبردستئ ئې دوائی ورکړله.روستو چه کله طبیعت ښه شو.نووې فرمائیل. چه ما تاسو نه وئ منع کړی؟ اوس ستاسو سزا داده.چه ټولو ته دوائی ورکړې شی.څوك چه په دې عمل کښې شریك وو.سوا د عباس رضی الله عنه نه،چه هغه په دې عمل کښې شریك نه وو. (البته هغوی مشوره ورکړې وه)(٤)

---

(١) اتحاف السادة المتقين ١٠\١٨٩) والبداية والنهاية (٥\٢٣٣)_

(٢) البداية والنهاية (٥\٢٣٥)_

(٣) البداية والنهاية(٥\٢٣٥)_

(٤) لکه څنګه چه روستو د بخاری شریف په روایت باب کښې راځی)_

په كومه ورځ چه وفات اوشو.يعنې د ګل په ورځ، د سحر په وخت نبي عليه السلام د حجرې پرده اوچته کړله.وې کتل.نو خلقو صفونه جوړکړي وو.دسحر په مانځه کښې مشغول وو. خلق ئې چه اوليدل.د خوشحالۍ نه مسکي شو.مخ مبارك ئې اوزليده.هلته خلق د ډيرې خوشحالۍ نه بې قابو شو.نزدې وه.چه مونځونه ئې مات کړي وي.حضرت صديق اكبر رضي الله عنه امام وو. هغوی اوغوښتل.چه شاته شي.نبي عليه السلام اشارې سره اوفرمائيل.چه مونځ پوره کړه.او دحجرې پرده ئې ښکته کړله.او واپس ئې تشريف يوړه.دا د صحابو رضي الله عنهم دپاره د رسول الله صلى الله عليه وسلم د عام زيارت دټولو نه آخرى موقعه وه.(١)

په دغه ورځ د سحر په وخت د نبي عليه السلام طبيعت په سکون کښې وو.حضرت صديق اكبر رضي الله عنه د سحر په وخت خدمت کښې حاضرشو.په طبيعت کښې ئې چه ښه والې اوليده.نو عرض ئې اوکړو.اې د الله رسوله! د الله په فضل وکرم سره نن ستاسو حالت څه قدرې ښه دې.که اجازت وی.نو زه خپلې (دويمې) بي بي حبيبه بنت خارجه ته ورځم.او راځم.چه نن دهغې د نمبر ورځ ده.نبي عليه السلام اجازت ورکړو.او حضرت صديق اكبر رضي الله عنه د مدينې اطرافو ته چرته چه حبيبه بنت خارجه اوسيدله.هلته لاړو.(٢)

نورصحابه رضي الله عنهم هم راغلل.د حضرت علي رضي الله عنه نه ئې دحال پوښتنه اوکړله.حضرت علي رضي الله عنه اوونيل.چه نن په طبيعت کښې الحمدلله افاقه ده.صحابه مطمئن شو.او خواره شو.(٣) خو ورځ راختلو سره سره نبي عليه السلام باندې بې هوشي راتلل شروع شو.او په وقفه وقفه به بې هوشي راتله.حضرت فاطمې رضي الله عنها چه دا کيفيت اوليده.نووې ونيل.،،واکرب اباه،، هائې زما د اباجان بې چينې! نبي عليه السلام اوفرمائيل.ستا اباجان دپاره به د نن نه پس بې چينى نه وی.(٤)

دوفات نه لږوخت مخکښې ئې دحضرت عائشې رضي الله عنها په سينه باندې سر کيخودو.او سملاسته. دحضرت صديق اكبر رضي الله عنه خوئې عبدالرحمن په خدمت اقدس کښې حاضر شو.دعبدالرحمن په لاس کښې مسواك وو.نبي عليه السلام مسواك طرف ته ډير ډير کتل. حضرت عائشه رضي الله عنها پوهه شوه. چه نبي عليه السلام مسواك کول غواړی.د عبدالرحمن نه ئې مسواك واخستلو.په غاښونو ئې نرم کړو.بيا ئې نبي عليه السلام ته ورکړو.نبي عليه السلام د صحت مند سړی پشان مسواك اوکړو.(٥)

**وفات:** څومره چه به د وفات وخت نزدې راتلو.د نبي عليه السلام تکليف به زياتيده.نزدې ورسره د اوبو پيالۍ پرته وه.د درد نه چه به بې آرامه شو.په هغې کښې به ئې لاس اووهلو.او په مخ مبارك به ئې راښکلو.او دا به ئې فرمائيل.((لا اله الا الله، انّ للموت لسكرات)) ،،بې شکه د مرګ

(١) لکه چه روستو روايت کښې راروان دی۔

(٢) طبقات ابن سعد(٢١٥/٢)۔

(٣) بخاري، کتاب المغازي، رقم الحديث(٤٤٦٢)۔

(٤) بخاري کتاب المغازي، رقم الحديث (٤٤٦٢)۔

(٥) بخاري کتاب المغازي، باب مرض النبي صلى الله عليه وسلم ووفاته، رقم الحديث(٤٤٥١)۔

ډيري سختئ دی، په دې کښې ئې لاس اوچت کړو.چت طرف ته ئې اوکتل.اووې فرمائيل.

«اللّٰهمّ فی الرّفیق الاعلیٰ» لاس ئې ښکته راوغورزيده.او روح مبارك ئې عالم قدس طرف ته والوتلو.(۱) «اناللّٰه وانااليه راجعون»

**تاريخ وفات**: په دې خبره تقريباً ټول روايات متفق دی.چه د رسول اللهﷺ وفات په ربيع الاول کښې د ګُل په ورځ شوې دې.البته په دې کښې اختلاف دې.چه د ربيع الاول کوم تاريخ وو؟ په دې سلسله کښې درې اقوال ډير مشهور دی:

① دټولونه زيات مشهور قول کوم چه اکثرو اصحاب سير اختيار کړې دې. دا دې. چه د نبیﷺ وفات په ۱۲ ربيع الاول د ګُل په ورځ شوې دې.(۲) خوپه دې قول باندې يو قوی اشکال داکيږی.چه د ۱۲ربيع الاول نه تقريباً درې مياشتې وړاندې د ذی الحجې ۱۰ھ په نهم تاريخ په اتفاق د رواياتو د جمعې ورځ وه.اوپه يکم ذی الحجه د زيارت ورځ وه.اوس د ذی الحجه، محرم، او صفر درې واړه مياشتې که د ديرشو ديرشو اومنلې شی.اوکه د يوکم ديرشو اومنلې شی.يا بعضې د ديرشو او بعضې د يوکم ديرشو اومنلې شی.په يو صورت کښې هم ۱۲ربيع الاول ۱۱ھ د ګُل ورځ نه جوړيږی.حالانکه ټول روايات په دې خبره متفق دی.چه د نبیﷺ وفات د ګُل په ورځ شوې دې.(۳)

② دويم قول علامه طبری د کلبی او ابومخنف نه نقل کړې دې.چه د نبیﷺ وفات په ۲ربيع الاول شوې دې.علامه سهيلی په ،،الروض الانف،،کښې ليکلی دی.چه که ذی الحجه، محرم او صفر درې واړه د يوکم ديرشو ورځو اومنلې شی.نو په ۲ ربيع الاول ۱۱ھ د ګُل ورځ راځی.(۴) د حافظ ابن حجرؒ ميلان هم دې قول طرف ته معلوميږی.البته په دې قول باندې بعضې حضراتو دا اشکال کړې دې.چه د دريو مياشتو پرله پسې د ۲۹ ورځو کيدل شاذ دی.۲ربيع الاول د ګُل ورځ هغه وخت راځی.کله چه ذی الحجه، محرم او صفر درې واړه د ۲۹ ورځو اومنلې شی.او دا صورت قليل الوقوع دې.(۵)

③ دريم قول د امام مغازی موسی بن عقبه، ليث بن سعد او خوارزمی وغيره حضراتو دې. دا خلق فرمائی.چه د رسول اللهﷺ وفات په يکم ربيع الاول د ګُل په ورځ شوې دې.(۶) په يکم ربيع الاول به د ګُل ورځ هغه وخت وی.کله چه ذی الحجه ،محرم او صفر کښې دوه د

---

(۱) البداية والنهاية(۵\۲۳۹-۲۴۰)_

(۲) الکامل لابن اثير(۲\۲۱۹)_

(۳) الروض الانف (۲\۳۷۲)_

(۴) الروض الانف (۲\۳۷۲)_

(۵) حاشيه سيرة النبیﷺ از مولانا سيد سليمان ندویؒ (۲\۱۰۶)_

(۶) الروض الانف (۲\۳۷۲) وسيرت مصطفی(۳\۱۷۲)_

۲۹ ورځو او یوه میاشت د ۳۰ ورځو اومنلې شی .او دا صورت کثیرالوقوع دې.علامه سهیلی رحمه الله دې ته اقرب القیاس وئیلی دی.(۱)

ددې قول تائید دحضرت ابن عباس رضی الله عنه دهغه روایت نه هم کیږی.کوم چه علامه ابن جریر طبری او حافظ ابن کثیر رحمه الله نقل کړې دې.چه د قرآن شریف د آیت ﴿ اَلْیَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِیْنَكُمْ...﴾ د نزول د ورځې نه تردوفات ورځې پورې ۸۱ ورځې دی .اودا آیت په ۹ ذی الحجه ۱۰ ه نازل شوې دې.اوس د ۹ ذی الحجه نه د یکم ربیع الاول پورې دمذکوره قول په لحاظ سره حساب اولګوه.نو ۸۱ ورځې جوړیږی. (۲)

د رسول الله صلی الله علیه وسلم وفات د ماسپخین مانخه نه مخکښې اوشو.په مغازی دابن اسحاق کښې دی.چه د ساخت په وخت د نبی علیه السلام وفات اوشو.او په مغازی د موسی بن عقبه کښې دی.چه د نبی علیه السلام وفات د زوال په وخت شوې دې.خو په ساخت او زوال کښې څه زیاته فاصله نه وی.په دې وجه دا اختلاف زیات ژور نه دې.(۳)

**د وفات نه پس د صحابورض کیفیت:** د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس ټولو صحابو رضی الله عنهم باندې عجیبه اونا آشنا کیفیت خورشو.حضرت عمر رضی الله عنه توره راوښکله.او په مسجدنبوی کښې اودریده.اووې وئیل.که چا اووئیل.چه د نبی علیه السلام وفات شوې دې.نو دهغه سټ به وهلې شی.(۴) حضرت عثمان رضی الله عنه باندې سکته (خاموشی) راغلې وه.دحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها او نورو ازواج مطهرات رضی الله عنهن په ژړا ژړا بدحال شوې وو.حضرت علی رضی الله عنه په ژړا ژړا بې هوشه شو.(۵)

حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه ته اطلاع ملاوشوه.هغه تشریف راوړه.او نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته حجرې مبارکې ته راروسیده.د نبی علیه السلام په بدن مبارک باندې څادر پروت وو.هغه د مخ مبارک نه څادر لرې کړو.د نبی علیه السلام تندې مبارك ئې ښکل کړو.او((لایجمع الله علیك موتتین)) ئې اووئیل. اووې وئیل.چه کوم مرګ الله تعالی د نبی علیه السلام په تقدیر کښې لیکلې وو.دهغې مطابق د نبی علیه السلام وفات شوې دې.بیا جمات ته راغې.د صحابه کرامو رضی الله عنهم مجمع وه.دهیڅ چا په پوهه کښې نه راتلل.چه څه اووئیلې شی.څه اوکړې شی.

حضرت عمر رضی الله عنه پخپل قابوکښې نه وو.او صحابو رضی الله عنهم چه ددوی دا کیفیت اولیده.نو په ویره او غم کښې اخته وو.حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه عمر رضی الله عنه لره چیرل او رټل مناسب اونه ګڼړل.د جمات یو ګوټ ته لاړه.چرته چه هغه لاړو.مجمع هم هلته منتقل شوه.حضرت صدیق

---

۱) الروض الانف (۳۷۲\۲)_
۲) حاشیه سیرة النبی از مولانا سیدسلیمان ندوی رحمه الله (۱۰۷\۲)_
۳) فتح الباری(۱۴۳\۸-۱۴۴)_
۴) اتحاف السادة المتقین (۲۹۸\۱۰)_
۵) سیرت مصطفی(۱۷۳\۳)_

اكبر رضي الله عنه خطبه ارشاد اوفرمائيله.په هغې كښې ئې ﴿إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ﴾ آيت اولوسته. ﴿وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ الرُّسُلُ﴾ آيت ئې اولوسته. ﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ﴾ آيت ئې تلاوت كړو.او ﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ﴾ آيت ئې اولوسته. ددې آياتونو دتلاوت نه پس هغه په زور سره اوونيل.

**قوله: من كان منكم يعبد محمداً، فان محمداً قد مات، ومن كان يعبد الله فان الله حي لايموت:** دحضرت صديق اكبر رضي الله عنه په دې خطبه كښې الله تعالى داسې اثر واچولو.چه ټول په ټوله صحابه مطمئن شو.او دا يقين اوشو.چه د نبى كريم ﷺ وفات شوې دې. ډيروصحابو رضي الله عنهم اوونيل.چه دا آياتونه زمونږ په ذهن كښې نه وو پاتې شوى.د ابوبكر صديق رضي الله عنه په تلاوت كولو سره هلته توجه اوشوه.(١) ددې آياتونو طرف ته د حضرت عمر رضي الله عنه توجه هم نه وه.اودهغه خيال داوو.چه د نبى عليه السلام وختى طور باندې ددې عالم مشاهدې نه عالم قدس طرف ته انقطاع شوې ده.او دا يوه عارضى خبره ده.واپس به بيا نبى عليه السلام دې عالم مشاهدې طرف ته ملتفت او متوجه كيږى.او لكه څنګه چه زمونږ سره مخكښې اوسيده.هغه شان به بيا اوسيږى.(٢)

بعضې حضرات فرمائى.چه حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته دا ويره وه.چه ددې نازكې موقعې نه به منافقان فائده واخلى.او فساد به پيدا كړى.په دې وجه هغوى په دغه باندې سخت موقف اختيار كړو.والله اعلم.

**تكفين او تدفين** ددې نه پس د نبى كريم ﷺ د نيابت او خليفه جوړيدو مسئله.پيښه شوه.چه ددې تفصيل په ،،سقيفه بنى ساعده،،كښې تيرشوې دې.دا هم يوه اهمه مسئله وه. چه نبى كريم ﷺ ته غسل څنګه وركړې شى؟ د نبى عليه السلام جنازه څنګه اوكړې شى؟ نبى عليه السلام چرته دفن كړې شى؟ عجيبه خبره داوه. چه ددې سوالاتو جوابونه د حضرت صديق اكبر رضي الله عنه نه علاوه بل چا سره نه وو.حضرت صديق اكبر رضي الله عنه ددې ټولو مشكلاتو حل راوښكلو.اووې وئيل.چه ماته د رسول الله ﷺ نه په دې باره كښې معلومات حاصل دى.ددې نه پس دجامو اوښكلو نه بغير نبى عليه السلام ته غسل وركړې شو.د جنازې مونځ بغير دجماعت نه اوكړې شو.د عائشې رضي الله عنها په حجره كښې د نبى عليه السلام جنازه ايخودې شوې وه.خلق به ورتلل.او ځانله ځانله به ئې مونځ كولو.واپس به راتلل .او بيا هلته د نبى عليه السلام د دفن انتظام اوكړې شو.(٣)

[۴۱۶۵] وَقَالَ يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ يَا عَائِشَةُ مَا أَزَالُ أَجِدُ أَلَمَ الطَّعَامِ الَّذِي أَكَلْتُ بِخَيْبَرَ فَهَذَا أَوَانُ وَجَدْتُ انْقِطَاعَ أَبْهَرِي مِنْ ذَلِكَ السُّمِّ

---

(١) البداية والنهاية (٥\٢٤٢-٢٤٣) وطبقات ابن سعد (٢\٢٧٠-٢٦٨)_

(٢) طبقات ابن سعد(٢\٢٦۶)_

(٣) تفصيل دپاره اوګورئ! طبقات ابن سعد(٢\٢٧٧-٢٩٢)_

دا تعليق دي.بزاز او حاكم دا موصولاً نقل كړي دي.(١)
ابهرد ساه رګ ته وائي.دا د شا نه اوخي.او زړه سره يوځائې په پوره بدن كښې خپل اثرات رسوي. بعضې حضرات فرمائي.چه د خيګر نه اوخي.او د زړه سره خوا كښې تيريږي.د پوره بدن مساماتو او نرى رګونوته خپل اثر رسوي.چه دا اوشليږي .نو انسان وفات كيږي.
نبي كريم ﷺ پخپل مرض وفات كښې اوفرمائيل.چه كوم زهر ماد غزوۀ خيبرپه موقع باندې د چيلۍ غوښې سره خوړلي وو.دهغې په وجه زه دخپل ساه رګ شليدل محسوسوم.د غزوۀ خيبر په موقعه باندې نبي عليه السلام ددغه زهريله غوښې ټكړه صرف په خوله كښې ايخودې وه.او د جبرئيل امين په اطلاع وركولو سره ئې تهوكلې وه.خو په خوله كښې د ايخودو په وجه دهغې اثر نبي عليه السلام مسلسل روستو هم محسوسولو.اوپه دې موقع باندې نبي عليه السلام اوفرمائيل.چه د زهرو په وجه ماته دخپل ساه رګ شليدو اندازه كيږي.
ددې نه دا نتيجه اخستې شوې ده.چه الله تعالى رسول الله ﷺ د شهادت مرګ ورنصيب كړې دې.حديث كښې راځي.چه كوم مسلمان د زهرو په وجه وفات شي.هغه د آخرت په لحاظ سره شهيد دې.(٢)

[٤١٦٦] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا ثُمَّ مَا صَلَّى لَنَا بَعْدَهَا حَتَّى قَبَضَهُ اللَّهُ [ر:٧٢٩]

دلته دى.چه دماښام مانځه نه پس نبي عليه السلام بيا هيڅ يو مونځ ته رانكړو.مراد ددې نه دادې.چه هيڅ يو داسې مونځ ئې رانكړو.چه په هغې كښې د نبي عليه السلام د قراءت اوريدو نصيب شوې وى.ګنى د ماښام دا مونځ ئې د زيارت په ورځ اوكړو.او ددې نه پس د هفتې يا اتوار په ورځ د ماسپخين مونځ نبي عليه السلام په مسجد كښې وركړې دې.خوپه هغې كښې د قراءت اوريدو موقعه نه ده ملاوشوې.په دې وجه هغه ددې روايت خلاف نه دې.(٣)

[٤١٦٧] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يُدْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ إِنَّ لَنَا أَبْنَاءً مِثْلَهُ فَقَالَ إِنَّهُ مِنْ حَيْثُ تَعْلَمُ فَسَأَلَ عُمَرُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ هَذِهِ الْآيَةِ إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ فَقَالَ أَجَلُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْلَمَهُ إِيَّاهُ فَقَالَ مَا أَعْلَمُ مِنْهَا إِلَّا مَا تَعْلَمُ [ر:٣٤٢٨]

[٤١٦٨] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَحْوَلِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قَالَ

---

(١) فتح البارى(١٣١/٨)_
(٢) فيض البارى(١٤٢/٤-١٤٣)_
(٣) البداية والنهاية (٢٣٥/٥)_

ابْنُ عَبَّاسٍ يَوْمُ الْخَمِيسِ وَمَا يَوْمُ الْخَمِيسِ اشْتَدَّ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعُهُ فَقَالَ ائْتُونِي أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ أَبَدًا فَتَنَازَعُوا وَلَا يَنْبَغِي عِنْدَ نَبِيٍّ تَنَازُعٌ فَقَالُوا مَا شَأْنُهُ أَهَجَرَ اسْتَفْهِمُوهُ فَذَهَبُوا يَرُدُّونَ عَلَيْهِ فَقَالَ دَعُونِي فَالَّذِي أَنَا فِيهِ خَيْرٌ مِمَّا تَدْعُونِي إِلَيْهِ وَأَوْصَاهُمْ بِثَلَاثٍ قَالَ أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ وَأَجِيزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ أُجِيزُهُمْ وَسَكَتَ عَنِ الثَّالِثَةِ أَوْ قَالَ فَنَسِيتُهَا [ر: ۱۱۴]

[۴۱۶۹] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا حُضِرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي الْبَيْتِ رِجَالٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلُمُّوا أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَا تَضِلُّوا بَعْدَهُ فَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ غَلَبَهُ الْوَجَعُ وَعِنْدَكُمُ الْقُرْآنُ حَسْبُنَا كِتَابُ اللَّهِ فَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْبَيْتِ وَاخْتَصَمُوا فَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ قَرِّبُوا يَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَا تَضِلُّوا بَعْدَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ غَيْرَ ذَلِكَ فَلَمَّا أَكْثَرُوا اللَّغْوَ وَالِاخْتِلَافَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُومُوا قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ فَكَانَ يَقُولُ ابْنُ عَبَّاسٍ إِنَّ الرَّزِيَّةَ كُلَّ الرَّزِيَّةِ مَا حَالَ بَيْنَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ أَنْ يَكْتُبَ لَهُمْ ذَلِكَ الْكِتَابَ لِاخْتِلَافِهِمْ وَلَغَطِهِمْ [ر: ۱۱۴]

**واقعه قرطاس:** دا روايت او دې سره متصل راروان روايت کښې د قرطاس واقعې بيان دې. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی.د زيارت ورځ! او څنګه ده د زيارت ورځ، په دې ورځ د رسول الله ﷺ مرض کښې سختی راغله.ددې زيارت نه د رسول الله ﷺ د وفات نه څلور ورځې مخکښې زيارت مراد دې.

**قوله:** فَقَالَ ائْتُونِي أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ أَبَدًا: نبی علیه السلام اوفرمائيل.ماته راشئ:زه تاسو دپاره يو کتاب (خط) اوليکم.چه دهغې نه پس به تاسو کله هم ګمراه نه شئ.يعنی کله چه دزيارت په ورځ د نبی علیه السلام تکليف کښې سختی اوشوه.نو نبی علیه السلام حاضرينو ته اوفرمائيل.چه ماته کاغذ اوقلم راوړئ.چه زه تاسو دپاره يوه داسې وصيت نامه اوليکم.چه دهغې نه پس به تاسو نه ګمراه کيږئ.

**قوله:** فَتَنَازَعُوا وَلَا يَنْبَغِي عِنْدَ نَبِيٍّ تَنَازُعٌ فَقَالُوا مَا شَأْنُهُ أَهَجَرَ اسْتَفْهِمُوهُ: د رسول الله ﷺ حکم اوريدو سره صحابو رضی الله عنهم جګړه او اختلاف اوکړو.اختلاف په دې کښې اوشو.چه بعضې حضراتو اووئيل.کاغذ او قلم راوړئ.او بعضې نورو حضراتو اووئيل.چه نبی علیه السلام ته دې وخت سخت تکليف دې.په دې وجه نبی علیه السلام ته د ليکلو په تکليف کښې اچول نه دی پکار.لکه چه په دې پسې روايت کښې دی. ((فقال بعضهم ان رسول الله ﷺ قد غلبه الوجع، وعندكم القرآن، حسبنا كتاب الله)) بعضو اووئيل.چه په رسول الله ﷺ باندې د مرض سختی او غلبه ده.تاسو سره قرآن شته. مونږ دپاره دالله کتاب کافی دې،،.دلته څو صراحت نشته.د مسلم

شريف په روايت كښې صراحت دې.چه دا ويونكې حضرت عمر رضي الله عنه وو.هغوى وئيلى وو.

«حسبنا كتاب الله»[1] په دې باندې دحضرت عمر رضي الله عنه رائې سره اختلاف كونكو بعضې حضراتو اووئيل.

**قوله**: أَهَجَرَ اسْتَفْهِمُوهُ: ددې جملې دوه مطلبه بيان كړې شوى دى:

① ..اهجر.. كښې همزه د استفهام دا.او دا د ..هُجر..( بضم الهاء) نه ماخوذ دې.د ..هُجر.. نه هغه بې جوړ او بې ربط كلام مراد دې.كوم چه د مريض د ژبې نه د مرض د سختوالى په حالت كښې بغير د سوچ اوفكر نه اوځى.حضرت عمر رضي الله عنه چه كله د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مرض د سختوالى په وجه د قلم اوكاغذ راوړلو نه منع كړل. او وې وئيل.«حسبنا كتاب الله» نود كومو خلقو رائې چه داوه.چه قلم كاغذ راوړل او وصيت نامه ليكل پكاردى.هغوى دا جمله اووئيله.او مطلب دهغوى داوو.چه ته د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د حكم خلاف ورزى آخر ولې كوې؟ آيا رسول الله صلى الله عليه وسلم د مرض د سختئ په وجه څه فضول خبره اوكړله؟ يعنى هيڅ چرې داسې نه ده.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فضول خبره كړې وى.نو د حكم په تعميل كښې قلم او كاغذ راوړل، اوكوم څه چه نبى عليه السلام ليكل غواړى.هغه ليكل پكاردى.حضرت شاه عبدالعزيز رحمه الله په تحفه اثناء عشريه كښې هم دا مطلب بيان كړې دې.په دې صورت كښې استفهام انكارى دې.[2]

② دويم مطلب دا بيان شوې دې.چه ..اهجر.. د ..هَجر..(بفتح الهاء) نه ماخوذ دې.د هجر معنى فراق او جدائى راځى.يعنى آيا رسول الله صلى الله عليه وسلم زمونږ نه جدا كيږى؟ [3]

ددې واقعې په وجه روافضو حضرت عمر رضي الله عنه باندې ډيره ملامته او بدې ردې وئيلې دى. هغوى وائى.چه حضرت عمر رضي الله عنه او دهغه رائې سره اتفاق كونكى صحابو د رسول الله صلى الله عليه وسلم د حكم نافرمانى اوكړله.چه دهغې په وجه امت د يو داسې وصيت نامې نه محرومه شو.چه هغې به امت د ګمراهئ او ضلالت نه بچ كړې وې.

خودروافضو دااعتراض بالكل غلط دې.اوحضرت فاروق اعظم رضي الله عنه سره د هغوى د بغض او حسد په بنياد باندې مبنى دې.د رسول الله صلى الله عليه وسلم هرحكم به ضرورى، لازمى اوواجبى نه وو. بلكه د نبى عليه السلام بعضې احكام به اختيارى وو.اوبعضې اوامر به ئې ايجابى او لازمى وو. حضرت عمر رضي الله عنه او دهغه رائې سره اتفاق كونكو صحابو دقرائنو نه دا اوګڼړل.چه د نبى عليه السلام دا حكم ايجابى اولازمى نه دې.بلكه اختيارى دې.اود حضرت عمر رضي الله عنه عادت وو.چه هغه به په داسې موقعو كښې عام طور باندې مشوره وركوله.او رسول الله صلى الله عليه وسلم به دهغه مشوره قبلوله. ددې يو دوه نه، ډير مثالونه دى.چه په يوه معامله كښې نبى عليه السلام يو اختيارى حكم وركړو.حضرت عمر رضي الله عنه دهغې خلاف مشوره وركړله.او نبى عليه السلام قبوله كړله.

. مثلاً دحضرت ابوهريره رضي الله عنه واقعه مشهوره ده.چه هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په حكم سره د

---

[1] صحيح مسلم، كتاب الوصية، باب ترك الوصية لمن ليس له شئ يوصى فيه، رقم الحديث (٤١٠٤)

[2] تحفه اثناء عشريه (٤٥٣)_

[3] فتح البارى(١٣٣/٨)_

نبى عليه السلام پيزار مبارك واخستل.او صحابو رضي الله عنهم ته د جنت خوشخبرئ دپاره روان شو.په لاره كښې حضرت عمر رضي الله عنه هغه سره ملاوشو.اوهغه ئې واپس كړو.هغه لاړه .اونبى كريم صلى الله عليه وسلم ته ئې عرض اوكړو.چه دا خوشخبرى صحابو رضي الله عنهم ته مه وركوئ.ځرته داسې اونه شى.چه هغوى په دې خوشخبرئ سره نيك اعمال پرېږدى.نو نبى عليه السلام دهغه مشوره قبوله كړله.(١)

په دغه موقع رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې د مرض سختى وه.حضرت عمر رضي الله عنه چه قرائنو.سره كله پوهه شو.چه د نبى عليه السلام حكم ايجابى او لازمى نه دې.نوهغوى رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د زيات محبت په وجه دا اووئيل.چه د تكليف په دې حالت كښې نبى عليه السلام لره دځه څيز د ليكلو په مشقت كښې اچول نه دى پكار.او دا خبره پخپل ځائې صفا ده.چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا حكم ايجابى او لازمى نه وو.ځكه كه دا لازمى اوايجابى وې.نو نبى عليه السلام به دچا د اختلاف په وجه هيڅ ځرې نه پرېخودو.(٢)

اودا دزيارت د ورځې واقعه ده.ددې نه پس رسول الله صلى الله عليه وسلم څلور ورځو پورې ژوندې پاتې شوې دې.او په دې مينځ كښې د نبى په صحت كښې افاقه هم راغلې ده.د زيارت د ورځې د ماسپخين مونځ نبى عليه السلام وركړو.او دمانځه نه پس ئې خطبه هم وركړله.نوكه دا وصيت نامه ليكل ضرورى او لازمى وې.نو نبى عليه السلام به په دغه څلورو ورځو كښې څه وخت دا ضرور ليكلې وې.

بعضې حضراتو وئيلى دى.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم څه فرمائيلى وو.دا امر اختبار او امتحان وو.نبى عليه السلام دا معلومول غوښتل.چه آيا د كتاب الله متعلق صحابو رضي الله عنهم ته دا يقين كامل شوې دې.چه هغوى دپاره د لارې د رڼا جوړېدو دپاره هغه كافى دې؟ ياهغوى ته په هغې كښې اوس هم شك دې.كله چه حضرت عمر رضي الله عنه وغيره دا اووئيل.،،حسبنا كتاب الله،، نو نبى عليه السلام ته تسلى اوشوه.او نبى عليه السلام اوفرمائيل.((دعونى فالذى انا فيه خير)) يعنى د كتاب پرېخودو (ستا د جواب اورېدو نه پس) اوس چه ما كومه اراده كړې ده.هغه خيردې.(٣)

اوس پاتې شوه داخبره چه رسول الله صلى الله عليه وسلم څه ليكل غوښتل.ددې متعلق مختلفې خبرې بيان شوې دى:

① روافض وائى.چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دحضرت على رضي الله عنه دپاره خلافت بلافصل ليكل غوښتل.خودا د روافضو صرف دعوه ده.او هغوى سره ددې دعوې هيڅ دليل نشته

② امام ابن عيينه رحمه الله او علامه بيهقى رحمه الله فرمائى.چه د حضرت صديق اكبر رضي الله عنه خلافت

---

١) صحيح مسلم، كتاب الايمان، باب الدليل على ان من مات على التوحيد دخل الجنة قطعاً رقم الحديث (١٥٦) (فتح الملهم ١/٥٩١)_

٢) قال الامام البيهقى .. ولوكان مراده ان يكتب شيئاً مفروضاً لا يتغنون عنه لم يتركه باختلافهم، ولغطهم، لقوله تعالى بلغ ما انزل اليک، كمالم يترک تبليغ غيره لمخالفة من خالفه ومعاداة من عاداه......(وانظر دلائل النبوة للبيهقى ١٨٤/٧)_

٣) ددې جملې مختلف مطلبونه روستو راروان دى.ـ

ليكل نې غوښتل.خو چونكه نبى عليه السلام ته دا معلومه وه.چه زما نه پس به حضرت صديق رضى الله عنه خليفه جوړيږى.په دې وجه كله چه اختلاف اوشو.نو نبى عليه السلام خپله اراده پريخودله.[1]

ددې تائيد دامام مسلم رحمه الله دهغه روايت نه هم كيږى.كوم چه هغوى دحضرت عائشې رضى الله عنها نه نقل كړې دې. هغوى اووئيل.چه ماته رسول الله صلى الله عليه وسلم پخپل مرض وفات كښې اووئيل.((ادعى لى ابابكر اباكِ واخاكِ، حتى اكتب كتاباً، فانى اخاف ان يتمنى متمن ويقول قائل: انا اولى، ويأبى الله والمؤمنون الا ابابكر))[2]، .يعنى خپل پلار ابوبكر رضى الله عنه، او خپل ورور(عبدالرحمن رضى الله عنه) راوغواره.چه زه يو تحرير اوليكم.ماته ويره ده.چه څوك تمنا كونكې به تمنا اوكړى.او اوبه وائى.چه زه (دخلافت) زيات مستحق يم.حالانكه الله او مؤمنان د ابوبكر رضى الله عنه نه سوا په هيڅ چا باندې راضى نه دى.

③ او بعضو حضراتو وئيلى دى.چه روستو په روايت كښې رسول الله صلى الله عليه وسلم كوم درې وصيتونه فرمائيلى دى.هم دغه درې وصيتونه نبى عليه السلام ليكل غوښتل.والله اعلم.

**قوله**: فَذَهَبُوا يَرُدُّونَ عَلَيْهِ فَقَالَ دَعُونِي فَالَّذِي أَنَا فِيهِ خَيْرٌ مِمَّا تَدْعُونِي إِلَيْهِ:

بعضې صحابو رضى الله عنهم اووئيل.چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه تپوس اوكړئ.چه آيا هغوى دا وصيت نامه ضرور ليكل غواړى.نو بعضې حضراتو دوباره د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په دې باره كښې د خبرو كولو اراده اوكړه.نو په دې باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ،،ما پريږدئ.په څه كښې چه زه يم.هغه خيردې،،

دلته سوال پيداكيږى.چه هغه كوم او څه څيز وو.چه په هغې كښې خپل ځان نبى عليه السلام خير اوګرځولو؟

① يوه خبره خو دا مشهوره ده.چه نبى عليه السلام د رب د جمال او جلال په مشاهدې كښې مشغوله وو.نبى عليه السلام اوفرمائيل.ما هم په دې جمال او جلال مشاهده كښې پريږدئ.ما اوس تاسو خپل ځان طرف ته مه متوجه كوئ.[3]

② بعضې حضراتو وئيلى دى.چه ددې جملې مقصد دادې.چه اوس تاسو د تحرير خبره بيا شروع كوئ.او ما د پريخودو اراده كړې ده.اوس دا تحرير پريخودل زيات غوره او زيات مناسب دى.تاسو بيا د تحرير دپاره ماته مه وايئ.[4]

③ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلى دى.چه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم مقصد دادې.چه زما خيال د كوم تحرير او ليكلو وو.هغه زيات مناسب او غوره وو.دهغې نه كوم چه تاسو د پريخودو رائې

---

[1]) دلائل النبوة للبيهقى(۷\۱۸۴) باب ماجاء فى همه بان يكتب لاصحابه كتاب..... وفتح البخارى (۱۱\۲۰۹)_

[2]) مسلم (۲\۲۷۳) كتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل ابى بكر الصديق رضى الله عنه_

[3]) عمدة القارى(۱۸\۶۲)_

[4]) فتح البارى(۸\۱۳۴)_

راکړې ده.(۱)

**قوله**: وَأَوْصَاهُمْ بِثَلَاثٍ قَالَ أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ وَأَجِيزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ أُجِيزُهُمْ وَسَكَتَ عَنْ الثَّالِثَةِ أَوْ قَالَ فَنَسِيتُهَا: نبی علیه السلام درې وصیتونه اوفرمائیل.ړومبۍ وصیت ئې دا اوفرمائیلو.چه مشرکین دجزیرة العرب نه اوباسئ.دویم وصیت ئې دا اوفرمائیلو. چه راتلونکی وفود هغه شان انعام او اکرام سره رخصتوئ.لکه څنګه چه به ما هغوی انعام او اکرام سره رخصتول.او دریم وصیت نه یا خو راوی خاموش پاتې شو.یا هغه اووئیل .چه مانه هیرشو.دلته خبره په دې کښې شوې ده.چه د ،،ثالثة،، نه چپ کیدونکې څوك دې.او نسیان دچا نه شوې دې؟ بعضې شارحینو فرمائیلی دی.چه سکوت کونکې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دې.او نسیان د حضرت سعید بن جبیر رحمه الله نه شوې دې.یعنی سعید بن جبیر رحمه الله دا وائی.چه دریم وصیت یا خو حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه دې بیان کړې.اویاکه هغوی بیان کړې دې.نو ما نه هیرشوې دې.او ماته یادنه دې.چه هغه څه دې.(۲) خو دا صحیح نه ده.صحیح داده.چه سفیان بن عیینه چه د قتیبه بن سعید استاذ دې.هغه وائی.چه زما استاذ،، سلیمان احول،، اوفرمائیل.چه دریم وصیت زما د استاذ سعید بن جبیر رحمه الله ذکرکړې وو.مانه هیر شو .یا هغوی ددې نه سکوت کړې وو.یعنی سکوت کونکې سعید بن جبیر رحمه الله دې.او هیره د ،،سلیمان احول،، نه شوې ده.

حافظ ابن حجر رحمه الله دې دویم احتمال ته ترجیح ورکړې ده.اووئیلی ئې دی.چه په مستخرج ابی نعیم کښې صراحت دې.چه سکوت کونکې سعید بن جبرې دې.او هیرونکې،،سلیمان احول،، دې.(۳) د حافظ نظر غالباً د بخاری ،،ابواب الجزیه،، والا روایت باندې نه دې راغلې. حالانکه هلته هم دا تصریح موجود ده.((والثالثة اما ان سکت عنها واما ان قالها، فنسیتها، قال سفیان: هذا من قول سلیمان))(۴)

اوس دا سوال پاتې کیږی.چه دا،،امرثالث،، څه وو.چه دهغې نبی علیه السلام وصیت فرمائیلې وو؟

① د داؤدی رائې داده.چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د عمل بالقرآن وصیت فرمائیلې وو.(۵)

② د مهلب او ابن بطال رائې داده.چه هغه امرثالث د اسامه د لښکر تنفیذ وو.(۶)

③ بعضې علماء فرمائی.چه دریم وصیت ((الصلاة وما ملکت ایمانکم)) یعنی د مونځ اوغلامانو سره د حسن سلوك د تاکید وو(۷)

---

۱) فتح الباری (۱۳٤/۸)_
۲) فتح الباری(۱۳٤/۸)_
۳) فتح الباری(۱٤٤/۸)_
٤) صحیح بخاری، کتاب الجزیة، باب اخراج الیهود من جزیرة العرب (٤٤٩/۱)_
۵) فتح الباری(۱۳۵/۸)_
٦) فتح الباری(۱۳۵/۸)_
۷) فتح الباری(۱۳۵/۸)_

په ابن ماجه کښې ددې صراحت موجود دې.(١)

④ او په مؤطا امام مالك کښې ،،اخراج يهود ونصارى من جزيرة العرب،، سره ((لا تتخذوا قبرى وثنا يعبد)) هم ذکرشوې دې.بهرحال دا ټول احتمالات دى.خو يقينى طور باندې يو نشى متعين کيدې.

[٤١٧٠] حَدَّثَنَا يَسَرَةُ بْنُ صَفْوَانَ بْنِ جَمِيلِ اللَّخْمِيُّ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَام فِي شَكْوَاهُ الَّذِي قُبِضَ فِيهِ فَسَارَّهَا بِشَيْءٍ فَبَكَتْ ثُمَّ دَعَاهَا فَسَارَّهَا بِشَيْءٍ فَضَحِكَتْ فَسَأَلْنَا عَنْ ذَلِكَ فَقَالَتْ سَارَّنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ يُقْبَضُ فِي وَجَعِهِ الَّذِي تُوُفِّيَ فِيهِ فَبَكَيْتُ ثُمَّ سَارَّنِي فَأَخْبَرَنِي أَنِّي أَوَّلُ أَهْلِهِ يَتْبَعُهُ فَضَحِكْتُ [ر:٣٤٢٦]

[٤١٧١\٤١٧٣] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَسْمَعُ أَنَّهُ لَا يَمُوتُ نَبِيٌّ حَتَّى يُخَيَّرَ بَيْنَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ فَسَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ وَأَخَذَتْهُ بُحَّةٌ يَقُولُ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ الْآيَةَ فَظَنَنْتُ أَنَّهُ خُيِّرَ

[٤١٧٢] حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا مَرِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَرَضَ الَّذِي مَاتَ فِيهِ جَعَلَ يَقُولُ فِي الرَّفِيقِ الْأَعْلَى

[٤١٧٣] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ إِنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ صَحِيحٌ يَقُولُ إِنَّهُ لَمْ يُقْبَضْ نَبِيٌّ قَطُّ حَتَّى يَرَى مَقْعَدَهُ مِنْ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُحَيَّا أَوْ يُخَيَّرَ فَلَمَّا اشْتَكَى وَحَضَرَهُ الْقَبْضُ وَرَأْسُهُ عَلَى فَخِذِ عَائِشَةَ غُشِيَ عَلَيْهِ فَلَمَّا أَفَاقَ شَخَصَ بَصَرُهُ نَحْوَ سَقْفِ الْبَيْتِ ثُمَّ قَالَ اللَّهُمَّ فِي الرَّفِيقِ الْأَعْلَى فَقُلْتُ إِذًا لَا يُجَاوِرُنَا فَعَرَفْتُ أَنَّهُ حَدِيثُهُ الَّذِي كَانَ يُحَدِّثُنَا وَهُوَ صَحِيحٌ

[٤١٧٤] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَفَّانُ عَنْ صَخْرِ بْنِ جُوَيْرِيَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ دَخَلَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا مُسْنِدَتُهُ إِلَى صَدْرِي وَمَعَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ سِوَاكٌ رَطْبٌ يَسْتَنُّ بِهِ فَأَبَدَّهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَصَرَهُ فَأَخَذْتُ السِّوَاكَ فَقَصَمْتُهُ وَنَفَضْتُهُ وَطَيَّبْتُهُ ثُمَّ دَفَعْتُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَنَّ بِهِ فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَنَّ اسْتِنَانًا قَطُّ أَحْسَنَ مِنْهُ فَمَا عَدَا أَنْ فَرَغَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَهُ أَوْ إِصْبَعَهُ ثُمَّ قَالَ فِي الرَّفِيقِ الْأَعْلَى ثَلَاثًا ثُمَّ

---

(١) عن انس بن مالک، قال کانت عامة وصيت رسول الله ﷺ حين حضرته الوفاة وهو يغرغر بنفسه ،،الصلاة وما ملکت ايمانکم،،(سنن ابن ماجه ٩٠٠:١٢) کتاب الوصايا، باب هل اوصى رسول الله ﷺ رقم (٢٦٩٧)۔

قَضَى وَكَانَتْ تَقُولُ مَاتَ بَيْنَ حَاقِنَتِي وَذَاقِنَتِي [۴۱۷۶، ۴۱۹۴، ۴۳۱۰، ۵۳۵۰، ۵۹۸۸، ۶۱۴۴، وانظر: ۸۵۰]
[ر: ۸۵۰، وانظر: ۴۱۷۱]

[۴۱۷۵] حَدَّثَنِي حِبَّانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَخْبَرَتْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا اشْتَكَى نَفَثَ عَلَى نَفْسِهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ وَمَسَحَ عَنْهُ بِيَدِهِ فَلَمَّا اشْتَكَى وَجَعَهُ الَّذِي تُوُفِّيَ فِيهِ طَفِقْتُ أَنْفِثُ عَلَى نَفْسِهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ الَّتِي كَانَ يَنْفِثُ وَأَمْسَحُ بِيَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُ [۴۷۲۸، ۴۷۲۹، ۵۴۰۳، ۵۴۱۶، ۵۴۱۹، ۵۹۶۰]

[۴۱۷۶] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُخْتَارٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْغَتْ إِلَيْهِ قَبْلَ أَنْ يَمُوتَ وَهُوَ مُسْنِدٌ إِلَيَّ ظَهْرَهُ يَقُولُ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي وَأَلْحِقْنِي بِالرَّفِيقِ الأَعْلَى [ر: ۴۱۷۱]

د ,, **والحقني بالرفيق** ,,**معنى**: د ،رفيق،، مختلف تشريحات شوى دى.

① بعضو وئيلى دى.چه ،رفيق،، نه مراد جنت دې.

② بعضو حضرات وئيلى دى. فرښتې ددې مصداق دى.

③ بعضو انبياءعليهم السلام ددې مصداق گرځولى دى.

④ بعضې خلقو وئيلى دى.چه ددې نه مراد انبياء، صديقين، شهداء او صالحين دى.چه هغوى طرف ته د قرآن شريف په دې آيت كښې اشاره شوې ده. ﴿وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا﴾ (۱)
د رفيق اطلاق واحد باندې هم كيږى.او په جماعت باندې هم كيږى.

⑤ بعضې عالمانو وئيلى دى.چه د الله تبارك وتعالى په اسماء حسنى كښې رفيق شامل دې.په دې وجه ددې نه د الله ذات اقدس مراد دې.(۲)

[۴۱۷۷] حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ هِلَالٍ الْوَزَّانِ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَرَضِهِ الَّذِي لَمْ يَقُمْ مِنْهُ لَعَنَ اللَّهُ الْيَهُودَ اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ قَالَتْ عَائِشَةُ لَوْلَا ذَلِكَ لَأُبْرِزَ قَبْرُهُ خَشِيَ أَنْ يُتَّخَذَ مَسْجِدًا [ر: ۴۲۵]

[۴۱۷۸] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَمَّا ثَقُلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاشْتَدَّ بِهِ وَجَعُهُ اسْتَأْذَنَ أَزْوَاجَهُ أَنْ

---

(۱) سورة النساء\٦٩)_

(۲) د مذكوره پنځو معانيو دپاره اوګورئ: فتح البارى(۱۳۷\۸)_

يُمَرَّضَ فِي بَيْتِي فَأَذِنَّ لَهُ فَخَرَجَ وَهُوَ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ تَخُطُّ رِجْلَاهُ فِي الْأَرْضِ بَيْنَ عَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَبَيْنَ رَجُلٍ آخَرَ قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ فَأَخْبَرْتُ عَبْدَ اللَّهِ بِالَّذِي قَالَتْ عَائِشَةُ فَقَالَ لِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ هَلْ تَدْرِي مَنِ الرَّجُلُ الْآخَرُ الَّذِي لَمْ تُسَمِّ عَائِشَةُ قَالَ قُلْتُ لَا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هُوَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ وَكَانَتْ عَائِشَةُ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا دَخَلَ بَيْتِي وَاشْتَدَّ بِهِ وَجَعُهُ قَالَ هَرِيقُوا عَلَيَّ مِنْ سَبْعِ قِرَبٍ لَمْ تُحْلَلْ أَوْكِيَتُهُنَّ لَعَلِّي أَعْهَدُ إِلَى النَّاسِ فَأَجْلَسْنَاهُ فِي مِخْضَبٍ لِحَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ طَفِقْنَا نَصُبُّ عَلَيْهِ مِنْ تِلْكَ الْقِرَبِ حَتَّى طَفِقَ يُشِيرُ إِلَيْنَا بِيَدِهِ أَنْ قَدْ فَعَلْتُنَّ قَالَتْ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى النَّاسِ فَصَلَّى بِهِمْ وَخَطَبَهُمْ [ر:١٩٥]

[٤١٧٩] وَأَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ عَائِشَةَ وَعَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ قَالَا لَمَّا نَزَلَ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَفِقَ يَطْرَحُ خَمِيصَةً لَهُ عَلَى وَجْهِهِ فَإِذَا اغْتَمَّ كَشَفَهَا عَنْ وَجْهِهِ وَهُوَ كَذَلِكَ يَقُولُ لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ يُحَذِّرُ مَا صَنَعُوا [ر:٤٢٥]

[٤١٨٠] أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ أَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ لَقَدْ رَاجَعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ وَمَا حَمَلَنِي عَلَى كَثْرَةِ مُرَاجَعَتِهِ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَقَعْ فِي قَلْبِي أَنْ يُحِبَّ النَّاسُ بَعْدَهُ رَجُلًا قَامَ مَقَامَهُ أَبَدًا وَلَا كُنْتُ أُرَى أَنَّهُ لَنْ يَقُومَ أَحَدٌ مَقَامَهُ إِلَّا تَشَاءَمَ النَّاسُ بِهِ فَأَرَدْتُ أَنْ يَعْدِلَ ذَلِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَبِي بَكْرٍ رَوَاهُ ابْنُ عُمَرَ وَأَبُو مُوسَى وَابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:١٩٥، ٦٣٦، ٦٥٠، ٦٥٥]

[٤١٨١] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ الْهَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنَّهُ لَبَيْنَ حَاقِنَتِي وَذَاقِنَتِي فَلَا أَكْرَهُ شِدَّةَ الْمَوْتِ لِأَحَدٍ أَبَدًا بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:٨٥٠]

**قوله**: مات النبي ﷺ وانه لبين حاقنتي وذاقنتي: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي. د رسول الله ﷺ وفات اوشو. په داسې حال کښې چه هغه زما د ججورې او خټې په مينځ کښې وو. حاقنه هغه کندې ته وائي. کومه چه د مرئ د رګ او د هډوکي (کورکوړ) په مينځ کښې وي. او ،،ذاقنه،، نه مراد ،،ذقن،، دې. يعني ،،زنه، او ورپسې يو روايت کښې دی.،،بين سحرى ونحرى،، د سحر نه مراد سينه ده. او د نحر نه مراد خاني د نحر دې. يعني حلق، مطلب دادې. چه دوفات په وخت نبي عليه السلام زما سينې ته ډډه لګولې وه.

**قوله**: فلا اكره شدة الموت لاحد ابداً بعد النبي: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي. چه د وفات په وخت کومه سختي ما په نبي عليه السلام باندې اوليده. دهغې نه پس زه د هيڅ چا دپاره د مرګ سختي ناخوښه نه ګنړم. مطلب دادې. چه مونږ به مخکښې دا ګڼړل. چه د مرض سختي د

انسان د اعمالو په وجه وی.خوکله چه ما نبی علیه السلام باندې د مرض د سختئ مشاهده اوکړله.نواوس که څوك د نزع (زنكدن) په وخت سختئ كښې مبتلا اووینم.نو زه دهغې نه څه نتیجه نه اخلم.

[۴۱۸۲] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا بِشْرُ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ أَبِي حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ الْأَنْصَارِيُّ وَكَانَ كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ أَحَدَ الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ تِيبَ عَلَيْهِمْ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خَرَجَ مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي وَجَعِهِ الَّذِي تُوُفِّيَ فِيهِ فَقَالَ النَّاسُ يَا أَبَا حَسَنٍ كَيْفَ أَصْبَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَصْبَحَ بِحَمْدِ اللَّهِ بَارِئًا فَأَخَذَ بِيَدِهِ عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ لَهُ أَنْتَ وَاللَّهِ بَعْدَ ثَلَاثٍ عَبْدُ الْعَصَا وَإِنِّي وَاللَّهِ لَأَرَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَوْفَ يُتَوَفَّى مِنْ وَجَعِهِ هَذَا إِنِّي لَأَعْرِفُ وُجُوهَ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ عِنْدَ الْمَوْتِ اذْهَبْ بِنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْنَسْأَلْهُ فِيمَنْ هَذَا الْأَمْرُ إِنْ كَانَ فِينَا عَلِمْنَا ذَلِكَ وَإِنْ كَانَ فِي غَيْرِنَا عَلِمْنَاهُ فَأَوْصَى بِنَا فَقَالَ عَلِيٌّ إِنَّا وَاللَّهِ لَئِنْ سَأَلْنَاهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنَعَنَاهَا لَا يُعْطِينَاهَا النَّاسُ بَعْدَهُ وَإِنِّي وَاللَّهِ لَا أَسْأَلُهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۵۹۱۱]

دا دګل د ورځې واقعه ده.په کومه ورځ چه د نبی علیه السلام وفات اوشو.(۱) حضرت علی رضی الله عنه د سحر په وخت بهر ته راووتلو.نو خلقو د رسول الله صلی الله علیه وسلم دحال پوښتنه اوکړه .حضرت علی رضی الله عنه اوونیل.چه الحمدلله نن سحر نبی علیه السلام په ښه حالت کښې وو.یعنی نن د نبی علیه السلام صحت څه قدرې ښه دې.

**قوله**: فَأَخَذَ بِيَدِهِ عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ لَهُ أَنْتَ وَاللَّهِ بَعْدَ ثَلَاثٍ عَبْدُ الْعَصَا: حضرت عباس رضی الله عنه دحضرت علی رضی الله عنه لاس اونیولو.اووې ونیل.چه (ته خلقو ته دا خبر ورکوې.چه د نبی علیه السلام صحت ښه دې.حالانکه) په خدائې قسم! ته به درې ورځې پس د عصا (امسا) غلام یې.یعنی څوك چه امیر جوړشی.ته به دهغه تابعدار او محکوم جوړېږې.زما خو دا خیال دې.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به په دې مرض کښې نزدې وفات شی.ځکه چه زه د عبدالمطلب په مخونو کښې د مرګ علامتونه پیژنم. راځه،چه د نبی علیه السلام نه مونږ تپوس اوکړو.چه ستاسو نه پس به ستاسو نائب او خلیفه څوك وی؟ که په مونږ کښې وی.نو پته به اولګی.اوکه زمونږ نه علاوه بل څوك وی.نو بیا به هم مونږ ته پته اولګی.او نبی علیه السلام به زمونږ متعلق (هغه خلیفه ته) وصیت اوکړی.(چه هغه مونږ سره دخیر سلوك اوکړی).
حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل.په خدائې قسم! زه به د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په دې باره کښې هیڅ چرې تپوس اونکړم. ځکه که مونږ ددې متعلق تپوس اوکړو.او نبی علیه السلام (په مونږ کښې چالره

---

۱) فتح الباری(۱۴۳/۸)۔

دخليفه جوړولونه) انكار اوكړو.نوبيا به خلق دنبي عليه السلام نه پس كله هم مونږته خلافت نه راكوي.

[۴۱۸۳] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ الْمُسْلِمِينَ بَيْنَا هُمْ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ الِاثْنَيْنِ وَأَبُو بَكْرٍ يُصَلِّي لَهُمْ لَمْ يَفْجَأْهُمْ إِلَّا وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ كَشَفَ سِتْرَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ فَنَظَرَ إِلَيْهِمْ وَهُمْ فِي صُفُوفِ الصَّلَاةِ ثُمَّ تَبَسَّمَ يَضْحَكُ فَنَكَصَ أَبُو بَكْرٍ عَلَى عَقِبَيْهِ لِيَصِلَ الصَّفَّ وَظَنَّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيدُ أَنْ يَخْرُجَ إِلَى الصَّلَاةِ فَقَالَ أَنَسٌ وَهَمَّ الْمُسْلِمُونَ أَنْ يَفْتَتِنُوا فِي صَلَاتِهِمْ فَرَحًا بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَشَارَ إِلَيْهِمْ بِيَدِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَتِمُّوا صَلَاتَكُمْ ثُمَّ دَخَلَ الْحُجْرَةَ وَأَرْخَى السِّتْرَ [ر:۶۴۸]

[۴۱۸۴/۴۱۸۶] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيدٍ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ أَبَا عَمْرٍو ذَكْوَانَ مَوْلَى عَائِشَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَائِشَةَ كَانَتْ تَقُولُ إِنَّ مِنْ نِعَمِ اللَّهِ عَلَيَّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ فِي بَيْتِي وَفِي يَوْمِي وَبَيْنَ سَحْرِي وَنَحْرِي وَأَنَّ اللَّهَ جَمَعَ بَيْنَ رِيقِي وَرِيقِهِ عِنْدَ مَوْتِهِ دَخَلَ عَلَيَّ عَبْدُ الرَّحْمَنِ وَبِيَدِهِ السِّوَاكُ وَأَنَا مُسْنِدَةٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَيْتُهُ يَنْظُرُ إِلَيْهِ وَعَرَفْتُ أَنَّهُ يُحِبُّ السِّوَاكَ فَقُلْتُ آخُذُهُ لَكَ فَأَشَارَ بِرَأْسِهِ أَنْ نَعَمْ فَتَنَاوَلْتُهُ فَاشْتَدَّ عَلَيْهِ وَقُلْتُ أُلَيِّنُهُ لَكَ فَأَشَارَ بِرَأْسِهِ أَنْ نَعَمْ فَلَيَّنْتُهُ فَأَمَرَّهُ وَبَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ أَوْ عُلْبَةٌ يَشُكُّ عُمَرُ فِيهَا مَاءٌ فَجَعَلَ يُدْخِلُ يَدَيْهِ فِي الْمَاءِ فَيَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ يَقُولُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ إِنَّ لِلْمَوْتِ سَكَرَاتٍ ثُمَّ نَصَبَ يَدَهُ فَجَعَلَ يَقُولُ فِي الرَّفِيقِ الْأَعْلَى حَتَّى قُبِضَ وَمَالَتْ يَدُهُ

**قوله: إِنَّ مِنْ نِعَمِ اللَّهِ عَلَيَّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ فِي بَيْتِي وَفِي يَوْمِي:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي.چه د رسول الله ﷺ وفات زما په كوركښې اوهم زما دنمبر په ورځ كښې اوشو.حضرت عائشې رضي الله عنها ددې تصريح ځكه اوفرمائيله.چه د دواړو جهانو سردار ﷺ د ازواج مطهرات نه اجازت اخستې وو.او د بيمارۍ ورځې ئې د حضرت عائشې رضي الله عنها سره تيرې كړې وې.اوس كه د بلې يوې بى بى په نمبركښې وفات شوې وې.نودهغې په زړه كښې به داتمنا اوغم وو.چه كه دنبي عليه السلام د عائشې كور ته منتقل شوې نه وې.نو نبي عليه السلام به زما په كوركښې وې.او زما په كوركښې به نبي عليه السلام دفن شوې وې. الله ﷻ دا كرم اوكړو.چه د حضرت عائشې رضي الله عنها په نمبركښې د نبي كريم ﷺ وفات اوشو.يعنى بالفرض كه نبي عليه السلام د نورو ازواج مطهرات نه اجازت نه وې اخستې اود عائشې رضي الله عنها كورته نه وې منتقل شوې.نو بيا به هم وفات بهرحال د حضرت عائشې رضي الله عنها سره كيدو.او د دفن كيدو ځائې به ئې د عائشې رضي الله عنها حجره جوړيده.ځكه چه دهغې د نمبر په ورځ خو به نبي عليه السلام هغې كره ضرور راتلو.

[٤١٨٥] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْأَلُ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ يَقُولُ أَيْنَ أَنَا غَدًا أَيْنَ أَنَا غَدًا يُرِيدُ يَوْمَ عَائِشَةَ فَأَذِنَ لَهُ أَزْوَاجُهُ يَكُونُ حَيْثُ شَاءَ فَكَانَ فِي بَيْتِ عَائِشَةَ حَتَّى مَاتَ عِنْدَهَا قَالَتْ عَائِشَةُ فَمَاتَ فِي الْيَوْمِ الَّذِي كَانَ يَدُورُ عَلَيَّ فِيهِ فِي بَيْتِي فَقَبَضَهُ اللَّهُ وَإِنَّ رَأْسَهُ لَبَيْنَ نَحْرِي وَسَحْرِي وَخَالَطَ رِيقُهُ رِيقِي ثُمَّ قَالَتْ دَخَلَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ وَمَعَهُ سِوَاكٌ يَسْتَنُّ بِهِ فَنَظَرَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهُ أَعْطِنِي هَذَا السِّوَاكَ يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ فَأَعْطَانِيهِ فَقَضِمْتُهُ ثُمَّ مَضَغْتُهُ فَأَعْطَيْتُهُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَنَّ بِهِ وَهُوَ مُسْتَنِدٌ إِلَى صَدْرِي

[٤١٨٦] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِي وَفِي يَوْمِي وَبَيْنَ سَحْرِي وَنَحْرِي وَكَانَتْ إِحْدَانَا تُعَوِّذُهُ بِدُعَاءٍ إِذَا مَرِضَ فَذَهَبْتُ أُعَوِّذُهُ فَرَفَعَ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ وَقَالَ فِي الرَّفِيقِ الْأَعْلَى فِي الرَّفِيقِ الْأَعْلَى وَمَرَّ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ وَفِي يَدِهِ جَرِيدَةٌ رَطْبَةٌ فَنَظَرَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَظَنَنْتُ أَنَّ لَهُ بِهَا حَاجَةً فَأَخَذْتُهَا فَمَضَغْتُ رَأْسَهَا وَنَفَضْتُهَا فَدَفَعْتُهَا إِلَيْهِ فَاسْتَنَّ بِهَا كَأَحْسَنِ مَا كَانَ مُسْتَنًّا ثُمَّ نَاوَلَنِيهَا فَسَقَطَتْ يَدُهُ أَوْ سَقَطَتْ مِنْ يَدِهِ فَجَمَعَ اللَّهُ بَيْنَ رِيقِي وَرِيقِهِ فِي آخِرِ يَوْمٍ مِنَ الدُّنْيَا وَأَوَّلِ يَوْمٍ مِنَ الْآخِرَةِ [ر: ٨٥٠]

[٤١٨٧] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ أَنَّ عَائِشَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَقْبَلَ عَلَى فَرَسٍ مِنْ مَسْكَنِهِ بِالسُّنْحِ حَتَّى نَزَلَ فَدَخَلَ الْمَسْجِدَ فَلَمْ يُكَلِّمِ النَّاسَ حَتَّى دَخَلَ عَلَى عَائِشَةَ فَتَيَمَّمَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُغَشًّى بِثَوْبِ حِبَرَةٍ فَكَشَفَ عَنْ وَجْهِهِ ثُمَّ أَكَبَّ عَلَيْهِ فَقَبَّلَهُ وَبَكَى ثُمَّ قَالَ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي وَاللَّهِ لَا يَجْمَعُ اللَّهُ عَلَيْكَ مَوْتَتَيْنِ أَمَّا الْمَوْتَةُ الَّتِي كُتِبَتْ عَلَيْكَ فَقَدْ مُتَّهَا قَالَ الزُّهْرِيُّ وَحَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ خَرَجَ وَعُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يُكَلِّمُ النَّاسَ فَقَالَ اجْلِسْ يَا عُمَرُ فَأَبَى عُمَرُ أَنْ يَجْلِسَ فَأَقْبَلَ النَّاسُ إِلَيْهِ وَتَرَكُوا عُمَرَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ أَمَّا بَعْدُ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ يَعْبُدُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنَّ مُحَمَّدًا قَدْ مَاتَ وَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ يَعْبُدُ اللَّهَ فَإِنَّ اللَّهَ حَيٌّ لَا يَمُوتُ قَالَ اللَّهُ وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ إِلَى قَوْلِهِ الشَّاكِرِينَ وَقَالَ وَاللَّهِ لَكَأَنَّ النَّاسَ لَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ هَذِهِ الْآيَةَ حَتَّى تَلَاهَا أَبُو بَكْرٍ فَتَلَقَّاهَا مِنْهُ النَّاسُ كُلُّهُمْ فَمَا أَسْمَعُ بَشَرًا مِنَ النَّاسِ إِلَّا يَتْلُوهَا فَأَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ عُمَرَ قَالَ وَاللَّهِ مَا هُوَ إِلَّا أَنْ سَمِعْتُ أَبَا بَكْرٍ تَلَاهَا فَعَقِرْتُ حَتَّى مَا تُقِلُّنِي رِجْلَايَ وَحَتَّى أَهْوَيْتُ إِلَى الْأَرْضِ حِينَ سَمِعْتُهُ تَلَاهَا عَلِمْتُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ مَاتَ [ر: ١١٨٣]

[۴۱۸۸] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مُوسَى بْنِ أَبِي عَائِشَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَبَّلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَوْتِهِ [۵۳۸۲]

**قوله**: حدثنا يحى بن بكير: د رسول الله ﷺ چه كله وفات اوشو.نو حضرت صديق رضي الله عنه دمديني اطرافوكښې ،،سنح،،نومې ځائې ته تلې وو.چرته چه دهغه دويمه بى بى اوسيدله. مديني منورې ته چه راغې.نو د نبى عليه السلام وفات شوې وو.صحابه كرام رضي الله عنهم د اضطراب او بې چينئ په حالت كښې حيران وو.صديق اكبر رضي الله عنه چه راغې.نو د رسول الله ﷺ مخ مبارك نه ئې خادر لرې كړو.او تندې مبارك ئې ښكل كړو.او بيا په ژړا شو.اووې فرمائيل.

**قوله**: بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي وَاللّٰهِ لَا يَجْمَعُ اللّٰهُ عَلَيْكَ مَوْتَتَيْنِ: ،،زمامورپلاردې په تاسو قربان وى.په خدائې (قسم)! الله تعالى به په تاسو باندې دوه مرګونه نه جمع كوى،،

حضرت صديق اكبر رضي الله عنه دا جمله ځكه اوونيله.چه بهرحضرت عمر رضي الله عنه ونيل.چه رسول الله ﷺ وفات شوې نه دې.هغه خو الله تعالى ته د ملاقات دپاره تشريف اوړلې دې.نبى عليه السلام به دوباره راځى.او ترهغه وخته پورې به نه وفات كيږى.تركومې پورې چه منافقين د مخ د زمكې نه ختم نكړى.(۱)

حضرت صديق اكبر رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه رد اوكړو.اووې وئيل.چه نبى عليه السلام وفات شوې دې. اوس كه نبى عليه السلام دوباره راشى.نو ګويا په نبى عليه السلام به دوباره مرګ راځى. حالانكه الله تعالى به په تاسو باندې دوه مرګونه نه جمع كوى.ځكه چه ستاسو وفات شوې دې.او تاسو به دوباره نه راځئ.

**قوله**: من كان منكم يعبد محمداً فان محمداً ﷺ قد مات: حضرت صديق اكبر رضي الله عنه په دې خطبه كښې د نبى كريم ﷺ نوم مبارك واخسته. ،،رسول الله،، ئې اونه وئيل.ځكه چه مقصود وصف د رسالت بيانول نه دى.بلكه ذاتِ محمدى بيانول دى.او دا بيانول دى.چه حضرت محمد ﷺ يو انسان وو.الله ﷻ هغه لره په نبوت سره مشرف كړې وو.لكه څنګه چه د نورو انسانانو او نبيانو وفات شوې دې.هغه شان د نبى عليه السلام وفات هم شوې دې.(۲)

**قوله**: وَاللّٰهِ مَا هُوَ إِلَّا أَنْ سَمِعْتُ أَبَا بَكْرٍ تَلَاهَا فَعَقِرْتُ حَتَّى مَا تُقِلُّنِي رِجْلَايَ وَحَتَّى أَهْوَيْتُ إِلَى الْأَرْضِ حِينَ سَمِعْتُهُ تَلَاهَا عَلِمْتُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ مَاتَ: .په خدائې قسم! كله چه ما د حضرت ابوبكر رضي الله عنه نه دا آيت واوريده.چه تلاوت كولو يې.نو ماته داسې محسوسه شوه.چه زه هلاك شوم.تردې چه زما پښو ماله

---

۱) فتح البارى(۱۴۶/۸)_
۲) لامع الدرارى (۴۱۴/۸)_

اوچتول پریخودل.او زه په زمکه راپریوتم.او زما یقین اوشو.چه واقعی د رسول اللهﷺ وفات شوې دې،،

دا حضرت فاروق اعظمؓ فرمائی.هغه د رسول اللهﷺ د وفات نه پس په هوش کښې نه وو. او مغلوب الحال شوې وو.فرمائیل یې:که چا اووئیل.چه نبیﷺ وفات شوې دې. زه به دهغه خټ والوخوم.کله چه حضرت عمرؓ د قرآن آیت ﴿وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ﴾ ﴿وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ﴾ وغیره آیاتونه واوریدل.نو دغه وخت هغه ته یقین اوشو.چه واقعی د نبیﷺ وفات شوې دې.

په یو روایت کښې دی.چه کله هغه د صدیق اکبرؓ نه دا آیاتونه واوریدل .نو وې وئیل. ((ما شعرت انها فی کتاب الله،، یعنی ددې نه وړاندې خو ماته احساس هم نه وو.چه دا آیاتونه هم په کتاب الله کښې شته.[1]

فعُقرت (د عین ضمې او د قاف کسرې سره) ای هلکتُ، په بعضې روایاتو کښې ،،فعقرتُ،، (دعین فتحې او د قاف کسرې سره) دې.ددې معنی متحیر او حیرانیدل دی.د حضرت عمرؓ مطلب دادې.چه ما د حضرت صدیق اکبرؓ نه دا آیاتونه واوریدل.او ماته معلومه شوه.چه واقعی د نبیﷺ وفات شوې دې.نو په ما باندې دومره غم سور شو.چه زه نه شوم اودریدلې.تردې چه زه په زمکه راپریوتم.

[۴۱۸۹] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا يَحْيَى وَزَادَ قَالَتْ عَائِشَةُ لَدَدْنَاهُ فِي مَرَضِهِ فَجَعَلَ يُشِيرُ إِلَيْنَا أَنْ لَا تَلُدُّونِي فَقُلْنَا كَرَاهِيَةُ الْمَرِيضِ لِلدَّوَاءِ فَلَمَّا أَفَاقَ قَالَ أَلَمْ أَنْهَكُمْ أَنْ تَلُدُّونِي قُلْنَا كَرَاهِيَةَ الْمَرِيضِ لِلدَّوَاءِ فَقَالَ لَا يَبْقَى أَحَدٌ فِي الْبَيْتِ إِلَّا لُدَّ وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَّا الْعَبَّاسَ فَإِنَّهُ لَمْ يَشْهَدْكُمْ رَوَاهُ ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۶۵۰۱،۶۳۹۴،۵۳۸۲]

**قوله**: لَا يَبْقَى أَحَدٌ فِي الْبَيْتِ إِلَّا لُدَّ وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَّا الْعَبَّاسَ فَإِنَّهُ لَمْ يَشْهَدْكُمْ:

**واقعهٔ لدود**: دلته دا اشکال کیږی.چه رسول اللهﷺ به دخپل ذات دپاره دهیڅ چا نه بدله نه اخستله.بیا دلته زبردستئ سره دوائی ورکونکو نه اجتهادی غلطی شوې وه. هغوی دا گڼړل. چه په نبیﷺ باندې ذات الجنب مرض حمله کړې ده.او دوائی ورکول ضروری دی.او د نبیﷺ انکار طبعی کراهت باندې مبنی دې.لکه څنګه چه عام طور باندې کیږی.نو بیا دغه حضراتو سره د عفو اوکرم او دحلم او برداشت معامله ولې اونکړې شوه؟

① حضرت شاه صاحبؒ فرمائی.چه ددې وجه په پوهه کښې نه راتله.یو حکایت زما د نظر نه تیرشو.دهغې نه پس ددې وجه په پوهه کښې راغله.حکایت ئې بیان کړو.چه یو نیک بزرګ وو.ټولو خلقو به دهغه ډیر زیات احترام او اکرام کولو.خو یو ځوان به راتلو.اودهغه په

---
[1] فتح الباری(۱۴۶/۸)_

شان کښې به ئې ګستاخی کوله.دغه بزرګ به دهغه ټولې ګستاخئ برداشت کولې.اوهیڅ جواب به ئې نه ورکولو.یوه ورځ هغه راغې.اوهغه دا بزرګ په مخ باندې یوګزار اووهلو.د همیشه عادت مطابق خیال هم دا وو.چه نن به هم هغه تحمل او برداشت اوکړی.خو دغه بزرګ فوراً بې قراره شو.خلقو ته ئې اوونیل.چه تاسو هم هغه یو ګزار اووهئ.خو دهیڅ چا جراءت اونه شو.نتیجه دا شوه.چه لږ وخت تیرشوې وو.چه ددغه ځوان وفات اوشو.دې بزرګ اوفرمائیل.کله چه ده زما سره ګستاخیانې کولې.هغه وخت د الله حلم او دهغه تحمل ده لره معاف کولو.خوکله چه نن ده د حد نه تجاوز اوکړو.او زه ئې په مخ اووهلم.نو ماته دا کشف اوشو.چه د الله غضب ته جوش راغلې دې.په دې وجه ما اوغوښتل.چه مونږ د الله د بدلې اخستلو نه وړاندې دده نه بدله واخلو.چه دې د الله د انتقام نه بچ شی.که مونږ انتقام اخستې وې.نو د الله د طرفه ده ته معافی ملاویدې شوه.مونږ په انتقام کښې د خپل طرفه تاخیر اوکړو.نو د الله د انتقام په ګرفت کښې دې راغې.

شاه صاحب ددې قصې بیانولو نه پس فرمائی.چه دلته رسول الله ﷺ ته په دې لدود (دوائی) سره تکلیف رسیدلې وو.او د نبی تکلیف موجب د انتقام او قصاص دې، رسول الله ﷺ د الله دانتقام د ګرفت نه هغوی لره د بچ کولودپاره پخپله د انتقام فیصله اوکړله.(۱)

② دویمه وجه دا بیان کړې شوې ده.چه په اصل کښې د نبی کریم ﷺ حکم د الله حکم دې. کوم کس چه د رسول الله ﷺ حکم مات کړو.هغه د الله حکم هم مات کړو.اوس هرکله چه دغه خلقو د نبی علیه السلام دحکم مخالفت اوکړو.نو یواځې د نبی علیه السلام دحکم مخالفت ئې اونکړو. بلکه د الله دحکم مخالفت ئې هم اوکړو.په دې وجه نبی علیه السلام دخپل طرفه معافی ورکولې شوه.خو د الله د طرفه د معافئ ورکولو خو نبی علیه السلام ته اختیار نه وو.په دې وجه نبی علیه السلام بدله واخستله.چه دلته معامله برابره برابره شی.او د الله دغضب نه داخلق بچ شی.(۲)

③ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلی دی.چه نبی علیه السلام داحکم د انتقام په طور نه وو ورکړې.بلکه ادب دپاره ئې ورکړې وو.په دې سره د نبی علیه السلام مقصود انتقام اخستل نه وو.بلکه دهغوی تادیب مقصود وو.چه چرته هغوی بیا داسې اونکړی.(۳)

بعضې حضراتو وئیلی دی.چه داحکم ئې د خوش طبیعتئ د ظرافت په طور باندې ورکړې وو.(۴) والله اعلم.

---

(۱) فیض الباری(۱۴۴/۴)_

(۲) اخرج ابن جریر من طریق بکر بن الاسود عن الحسن قال: قال قوم علی عهد النبی ﷺ یا محمد. انا نحب ربنا. فانزل الله ﴿ قل ان کنتم تحبون.....ذنوبکم ﴾ فجعل اتباع نبیه محمد ﷺ علماً لحبه وعذاب من خالفه (وانظر: الدرالمنثور فی التفسیربالماثور(۱۷/۲)_

(۳) فتح الباری(۱۴۷/۸)_

(۴) سیرة النبی(۱۱۲/۲)_

[۴۱۹۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا أَزْهَرُ أَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ ذُكِرَ عِنْدَ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْصَى إِلَى عَلِيٍّ فَقَالَتْ مَنْ قَالَهُ لَقَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنِّي لَمُسْنِدَتُهُ إِلَى صَدْرِي فَدَعَا بِالطَّسْتِ فَانْخَنَثَ فَمَاتَ فَمَا شَعَرْتُ فَكَيْفَ أَوْصَى إِلَى عَلِيٍّ؟ [ر: ۲۵۹۰]

[۴۱۹۱] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ عَنْ طَلْحَةَ قَالَ سَأَلْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَوْصَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا فَقُلْتُ كَيْفَ كُتِبَ عَلَى النَّاسِ الْوَصِيَّةُ أَوْ أُمِرُوا بِهَا قَالَ أَوْصَى بِكِتَابِ اللَّهِ

[۴۱۹۲] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ قَالَ مَا تَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِينَارًا وَلَا دِرْهَمًا وَلَا عَبْدًا وَلَا أَمَةً إِلَّا بَغْلَتَهُ الْبَيْضَاءَ الَّتِي كَانَ يَرْكَبُهَا وَسِلَاحَهُ وَأَرْضًا جَعَلَهَا لِابْنِ السَّبِيلِ صَدَقَةً [ر: ۲۵۸۸]

[۴۱۹۳] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَعَلَ يَتَغَشَّاهُ فَقَالَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ وَاكَرْبَ أَبَاهُ فَقَالَ لَهَا لَيْسَ عَلَى أَبِيكِ كَرْبٌ بَعْدَ الْيَوْمِ فَلَمَّا مَاتَ قَالَتْ يَا أَبَتَاهُ أَجَابَ رَبًّا دَعَاهُ يَا أَبَتَاهْ مَنْ جَنَّةُ الْفِرْدَوْسِ مَأْوَاهُ يَا أَبَتَاهْ إِلَى جِبْرِيلَ نَنْعَاهْ فَلَمَّا دُفِنَ قَالَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ يَا أَنَسُ أَطَابَتْ أَنْفُسُكُمْ أَنْ تَحْثُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التُّرَابَ

د نبی کریم ﷺ چه کله وفات اوشو.نو حضرت فاطمې رضي الله عنها اووئیل.

**قوله**: يَا أَبَتَاهُ أَجَابَ رَبًّا دَعَاهُ يَا أَبَتَاهُ مَنْ جَنَّةُ الْفِرْدَوْسِ مَأْوَاهُ يَا أَبَتَاهُ إِلَى جِبْرِيلَ نَنْعَاهُ: ،،اې زما باباجانه! تا دخپل رب دعوت قبول کړو.اې باباجانه! دچا ځائې چه جنت الفردوس دې.اې باباجانه! مونږ جبرئیل ته ستا د مرګ خبر ورکوو،،

بیا کله چه صحابوﷺ رسول اللهﷺ دفن کړو.نو حضرت فاطمه رضي الله عنها حضرت انس رضي الله عنه ته مخاطبه شوه.وې وئیل.

**قوله**: يَا أَنَسُ أَطَابَتْ أَنْفُسُكُمْ أَنْ تَحْثُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التُّرَابَ: ،،اې انس آيا تاسو ته دا خوښه ده؟ چه تاسو په رسول اللهﷺ باندې خاورې واړوئ ددې درد نه ډکې اواثرناکې جملې نه دحضرت فاطمې رضي الله عنها د غم اوجذباتو اندازه لګیدې شی.مطلب دهغې دا وو.چه په کوم زړه تاسو په رسول اللهﷺ باندې خاورې واړولې.

## بَابُ آخِرِ مَا تَكَلَّمَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[۴۱۹۴] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ قَالَ يُونُسُ قَالَ الزُّهْرِيُّ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ فِي رِجَالٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ وَهُوَ صَحِيحٌ إِنَّهُ لَمْ يُقْبَضْ نَبِيٌّ حَتَّى يَرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُخَيَّرَ فَلَمَّا نَزَلَ بِهِ وَرَأْسُهُ عَلَى

فَخَذِي غُشِيَ عَلَيْهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَأَشْخَصَ بَصَرَهُ إِلَى سَقْفِ الْبَيْتِ ثُمَّ قَالَ اللَّهُمَّ الرَّفِيقَ الْأَعْلَى فَقُلْتُ إِذًا لَا يَخْتَارُنَا وَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَدِيثُ الَّذِي كَانَ يُحَدِّثُنَا وَهُوَ صَحِيحٌ قَالَتْ فَكَانَتْ آخِرَ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا اللَّهُمَّ الرَّفِيقَ الْأَعْلَى [ر: ۴۱۷۱]

بعضې عالمانو نقل کړې دی.چه کله نبی کريم ﷺ پيدا شوې وو.نو هغه ،،الله اکبر،، فرمائيلی وو.او اوس کله چه نبی علیه السلام وفات کيږی.نو هغه ،،اللهم فی الرفيق اعلی،، فرمائی.په شروع کښې ئې هم الله ياد کړو.او دهغه لوئې ئې بيان کړله.او بيائې ټول ژوند دهغه لوئی بيانول خپل مشن جوړکړو.او اوس کله چه رخصتيږی .نو په دغه وخت هم الله يادوی.(۱)

## بَابُ وَفَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اشکال دا کيږی.چه امام بخاری رحمه الله ددې عنوان يو باب په ،،کتاب المناقب،، کښې قائم کړې دې.(۱) د کوم ځائې نه چه امام بخاری رحمه الله د سيرت نبوی آغاز کړې وو.او اوس ئې دلته هم دا باب قائم کړو.په ښکاره دواړو کښې تکرار دې.دلته خو دا مناسب دې.خو هلته دهغې څه جوړ په پوه کښې نه راځی؟

حضرت شيخ الحديث رحمه الله ډير ښائسته جواب ورکړې دې.اوهغه داچه اصل کښې امام بخاری رحمه الله هلته ولادت بيانول غواړی.خو چونکه د ولادت په سلسله کښې د امام بخاری رحمه الله دشرط مطابق هيڅ يو روايت نه وو.په دې وجه هلته هغوی ،،باب وفاة النبی ﷺ،، قائم کړو.او روايت ئې ذکرکړو.چه په هغې کښې ئې اوخودل.چه د نبی کريم ﷺ وفات د درې شپيتو۶۳ کالو په عمرکښې شوې دې.او دا سن۱۱ھ وو.اوس د سن ولادت معلومولو آسانه طريقه داده.چه د تاريخ وفات نه درې شپيته کاله شاته لاړشئ.نو د نبی علیه السلام د ولادت سن به معلوم شی.(۲)

[۴۱۹۵] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَبِثَ بِمَكَّةَ عَشْرَ سِنِينَ يُنْزَلُ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ وَبِالْمَدِينَةِ عَشْرًا [۳۶۹۳]

دلته کسر حذف کړې شو.ګينی د مکې د قيام موده ديارلس کاله ده.بعضې حضراتو فرمائيلی دی.چه په مکه کښې د نبوت ملاويدو نه پس تقريباً درې کاله موده د ،فترة الوحی،،وه.په دې وجه په ديارلسو کالوکښې درې کاله د فترة الوحی شمار نکړې شو.(۳)

په دې روايت کښې صراحت نشته.چه د نبی علیه السلام وفات کله شوې دې.البته دا شته.چه نبی علیه السلام په مدينه منوره کښې لس کاله پاتې شوې دې.چه ددې نه دا خبره پخپله معلوميږی.

۱) فيض الباری(۱۴۳/۴)_ ..... [بقيه حواشی په راروانه صفحه اوګورئ!....

چه ددې لسو كالونه پس بيا نبى عليه السلام وفات شو.په دې مناسبت سره امام بخارى رحمه الله دا روايت دلته ذكر كړو.(١)

[٤١٩٦] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَأَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ مِثْلَهُ [ر: ٣٣٤٣]

هم دا مشهوراو راجح روايت دې.چه د وفات په وخت د نبى عليه السلام عمر درى شپيته كاله وو.په بعضې رواياتو كښې شپيته كاله راغلى دى.خوپه هغې كښې كسر حذف كړې شوې دې.په بعضې رواياتوكښې د پنځه شپيتو كالو ذكرهم راغلې دې.خو په هغې كښې راوى د ولادت او وفات كالونه مستقل شمار كړى دى.په دې وجه ئې پنځه شپيته كاله وئيلى دى.(٣) والله اعلم.

## باب

[٤١٩٧] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدِرْعُهُ مَرْهُونَةٌ عِنْدَ يَهُودِيٍّ بِثَلَاثِينَ يَعْنِي صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ [ر: ١٩٦٢]

ددې باب تعلق هم وفات سره دې.د تيرشوى باب نه په منزله د فصل دې.په روايت كښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى.چه كله د نبى عليه السلام وفات اوشو.نو د نبى عليه السلام زغره يويهودى سره دريو صاعو په عوض كښې رهن پرته وه.هغه يهودى ته ،، ابو الشحم،،وئيلې شو.(٤) رسول الله ﷺ دخپل اهل وعيال دپاره دهغه نه ديرش صاع اوربشې اخستې وې.او خپله زغره ئې هغه سره گانړه ايخودې وه.يوكاله پورې هغه سره وه.بيا حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه دهغه يهودى قرض اداكړو.هغه زغره ئې ترې واپس واخستله.(٢)

د نبى عليه السلام دنيا سره د بې رغبتۍ دا شان دې.چه نبى عليه السلام به دخپل خان دپاره مالونه څه جمع كړى وو.چه دهغه زغره كومه چه هغه دپاره ډيره ضرورى وه.هغه هم د وفات په وخت يو يهودى سره گانړه پرته وه.

---

١) صحيح بخارى، كتاب المناقب، باب وفاة النبى ﷺ (٥٠١١)_
٢) الابواب والتراجم لصحيح البخارى(٢٢٠)_
٣) فيض البارى(١٤٥١٤)_
٤) عمدة القارى(٧٥١١٨)_
٥) فتح البارى(١٥١١٨)_
١) عمدة القارى(٦٨١١٣) كتاب الرهن)_
٢) فتح البارى(١٤٣١٥)_

# بَاب بَعْثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فِي مَرَضِهِ الَّذِي تُوُفِّيَ فِيهِ

[٣١٩٨\٣١٩٩] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ عَنْ الْفُضَيْلِ بْنِ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ اسْتَعْمَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُسَامَةَ فَقَالُوا فِيهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ بَلَغَنِي أَنَّكُمْ قُلْتُمْ فِي أُسَامَةَ وَإِنَّهُ أَحَبُّ النَّاسِ إِلَيَّ

[٣١٩٩] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بَعْثًا وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ فَطَعَنَ النَّاسُ فِي إِمَارَتِهِ فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنْ تَطْعُنُوا فِي إِمَارَتِهِ فَقَدْ كُنْتُمْ تَطْعُنُونَ فِي إِمَارَةِ أَبِيهِ مِنْ قَبْلُ وَايْمُ اللَّهِ إِنْ كَانَ لَخَلِيقًا لِلْإِمَارَةِ وَإِنْ كَانَ لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ وَإِنَّ هَذَا لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ بَعْدَهُ [ر: ٣٥٢٣]

امام بخاری رحمه الله دا واقعه دلته ذکر کړله.اګرچه د حضرت اسامه بن زید په مشرئ کښې دا لښکر نبی علیه السلام د مرض الوفات نه مخکښې د روانولو دپاره مقرر کړې وو.البته دا لښکر اوس لا په تیارئ کښې وو.چه د نبی علیه السلام د مرض الوفات سلسله شروع شوه.او دا (لښکر) روان نه شو.بیا د نبی علیه السلام د وفات غمناکه حادثه پیښه شوه.دهغې روانګی پاتې شوه. د وفات نه پس حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه بیا هغه اولیګه.په دې وجه امام بخاری رحمه الله دا ترجمه د ..باب وفاة النبی صلی الله علیه وسلم.. نه پس قائم کړو

## باب

[٣٢٠٠] حَدَّثَنَا أَصْبَغُ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ عَنْ ابْنِ أَبِي حَبِيبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ الصُّنَابِحِيِّ أَنَّهُ قَالَ لَهُ مَتَى هَاجَرْتَ قَالَ خَرَجْنَا مِنْ الْيَمَنِ مُهَاجِرِينَ فَقَدِمْنَا الْجُحْفَةَ فَأَقْبَلَ رَاكِبٌ فَقُلْتُ لَهُ الْخَبَرَ فَقَالَ دَفَنَّا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنْذُ خَمْسٍ قُلْتُ هَلْ سَمِعْتَ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ شَيْئًا قَالَ نَعَمْ أَخْبَرَنِي بِلَالٌ مُؤَذِّنُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ فِي السَّبْعِ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ

صنابحی تابعی دې.دهغه نوم عبدالرحمن بن عسیله دې.(١) ددوی حدیث امام بخاری رحمه الله د ..باب وفاة النبی صلی الله علیه وسلم.. نه پس ذکرکړې دې.ځکه چه دا واقعه د نبی علیه السلام د وفات نه پس پیښه شوې ده.

---

(١) علامه عینی دهغه نوم ..عبدالله بن عسیله.. لیکلې دې.(عمدة القاری١٨\٧٨) خو دا دهغه نه غلطی شوې ده.دهغه نوم عبدالرحمن او دهغه کنیت ..ابوعبدالله..دې.په اصل کښې صنابحی درې دی.یو صنابح بن الاعسر الحمسی، دا بالاتفاق صحابی دې.دویم عبدالله صنابحی دې.دده په صحابی کیدو اونه کیدو کښې شُبه ده.دریم عبدالرحمن بن عسیله[بقیه حاشیه په راروانه صفحه]

## بَاب كَمْ غَزَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[۴۲۰۱] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَأَلْتُ زَيْدَ بْنَ أَرْقَمَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كَمْ غَزَوْتَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَبْعَ عَشْرَةَ قُلْتُ كَمْ غَزَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تِسْعَ عَشْرَةَ [۳۷۳۳]

[۴۲۰۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ حَدَّثَنَا الْبَرَاءُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسَ عَشْرَةَ

[۴۲۰۳] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ الْحَسَنِ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلِ بْنِ هِلَالٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ كَهْمَسٍ عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ غَزَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّ عَشْرَةَ غَزْوَةً

## باب كم غزا النبي صلى الله عليه وسلم؟

رسول اللهﷺ خومره غزوات اوکړل؟ امام بخاری دخلاصې په طوردکتاب المغازی په اختتام باندې د نبیﷺ د غزواتو تعداد بیانوی.د کتاب المغازی په شروع کښې ددې تفصیل تیرشوې دې.

**قوله**: حدثني احمد بن الحسن قال: حدثنا احمد بن محمد بن حنبل: دا احمد بن الحسن د ترمذ دې.او په ،،ترمذی کبیر،، سره مشهور دې.(۱) دا روایت امام بخاری رحمه الله د،،احمد بن الحسن،، په واسطې سره د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه نقل کړې دې.امام مسلم رحمه الله دا روایت بغیر د واسطې نه براه راست دامام احمد بن حنبل رحمه الله نه نقل کړې دې.(۲)

فائده: د امام بخاری اومسلم عالی سند روايات: ټول څلور روایتونه داسې دی.چه په هغې کښې امام مسلم رحمه الله ته د امام بخاری په مقابله کښې فوقیت حاصل دې.چه امام مسلم رحمه الله هغه بغیر د واسطې نه نقل کړی دی.او امام بخاری رحمه الله ئې واسطې سره ذکرکوي. او دوؤ سوو نه زیات روایتونه داسې دی.چه په هغې کښې امام مسلم رحمه الله باندې امام

...د تیرمخ بقیه] صنابحی دې.دا تابعی دې.عام طور باندې دې دریو واړو کښې اشتباه کیږی.د عربو مشهور محقق شعیب ارنووط په دې دریو واړو باندې په ..الطریقة الواضحة فی تبیین الصنابحة.. نوم سره مستقل رساله لیکلې ده.د عبدالرحمن بن عسیلة صنابحی دحالاتو دپاره اوګورئ! تهذیب الکمال (۱۷\۲۸۲_۲۸٤) وسیر أعلام النبلاء (۳\۵۰۵-۵۰۷) وطبقات ابن سعد(۷\٤۳۷ ٤) والجرح والتعدیل (۵\۲۶۲)

(۱) حالاتو دپاره اوګورئ! سیراعلام النبلاء (۱۲\۱۵۶-۱۵۷)_

(۲) صحیح مسلم، کتاب الحج، کتاب الجهاد والسیر، باب عدد غزوات النبیﷺ رقم الحدیث (٤٤۶)_

بخاری رحمه الله فوقیت اورلي دي. امام بخاری رحمه الله نې بغیر د واسطې نه نقل کوی.او امام مسلم رحمه الله نې د بخاری رحمه الله د هغه شیخ نه یوې واسطې سره نقل کوی.(١)

**فائده: په بخاری کښې د امام احمد بن حنبل رحمه الله روایات:** دا روایت امام بخاری رحمه الله د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه د احمد بن الحسن په واسطې سره نقل کړې دې.په کتاب النکاح کښې امام بخاری رحمه الله د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه یو روایت بغیر د واسطې نه نقل کړې دې.(٢) او په کتاب اللباس کښې ئې د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه یو استشهاد نقل کړې دې.(٣) امام بخاری رحمه الله اګرچه د امام احمد بن حنبل رحمه الله زمانه موندلې ده.اوهغه سره ئې ملاقات کړې دې.خو په صحیح بخاری کښې دهغه ذکر صرف په دې دریو مقاتو کښې دې.(٤)

«وهٰذا آخر ما اردنا ایراده من شرح احادیث کتاب المغازی من صحیح الامام ابی عبدالله البخاری رحمه الله للشیخ المحدث الجلیل سلیم الله خان حفظه الله و رعاه ومتعنا الله بطول حیاته..... وقد وقع الفراغ من تسویده و اعادة النظرفیه، ثم تصحیح ملازم الطبع بیوم الخمیس ١٠\ من شعبان ١٤١٥هـ الموافق ١٢\من ینایر١٩٩٥م، والحمدلله الذی بنعمته تتم الصالحات، وصلی الله علی النبی الامی وآله وصحبه وتابعیهم وسلم علیه وعلیهم مادامت الارض والسماوات، رتبه وراجع نصوصه وعلق علیه ابن الحسن العباسی عضو قسم التحقیق والتصنیف والاستاذ بالجامعة الفاروقیة وفقه الله تعالی لاتمام باقی الکتب کما یحبه و یرضاه، وهو علی کل شئ قدیر، ولاحول ولاقوة الا بالله العلی العظیم، ویلیه ان شاءالله شرح کتاب التفسیر».

---

١) فتح الباری(١٥٣\٨) وعمدة القاری(٧٩\١٨)_

٢) صحیح بخاری، کتاب النکاح، باب ما یحل من النساء وما یحرم(٧٦٥\٢)_

٣) صحیح بخاری، کتاب اللباس، باب هل یجعل نقش الخاتم ثلاثة اسطر(٨٧٣\٢)_

٤) علامه زاهد الکوثری د علامه حازمی مشهورکتاب ،،شروط الائمه،، حاشیه کښې لیکلی دی.چه امام بخاری رحمه الله پخپل صحیح کښې د امام احمد صرف دوه روایات نقل کړی دی.چه په هغې کښې یو په واسطې سره دې.او یو تعلیقاً دې.(اوګورئ:لامع الدراری:٥١) خو صحیح خبره داده.چه امام بخاری رحمه الله نور روایت کوم چه په کتاب النکاح کښې دی. تعلیقاً نه دی ذکرشوی.بلکه ،،وقال لنا احمد بن حنبل....،، الفاظو سره ئې بغیر د واسطې نه نقل کړی دی._

# غزاګانې لنډې لنډې

(د مرتب دقلم نه)

**غزوه بدر:** د شام نه واپس كيدونكې د قريشو د تجارتي قافلې را لاندې كولو دپاره په ورځ د اتوار (يكشنبه) دولسم ۱۲ رمضان سنه ۲ هجري ۳۱۳ يا ۳۱۴ يا ۳۱۵ صحابه كرام ئې د ځان سره كړه او نبی كريم صلى الله عليه وسلم روان شو. په لښكركښې صرف دوه اسونه او اويا اوښان وو. مدينې منورې نه ديو ميل فاصلې باندې واقع بئر ابي عنبه ته په رسيدو سره نبي كريم صلى الله عليه وسلم د لښكر جائزه واخسته اوماشومان كم عمره ئې ترې واپس كړل.مقام صفراء ته چه اورسيدل نو معلومه شوه چه د تجارت دقافلې دحفاظت دپاره د مكې نه دقريشو لښكر بدر ته نزدې رارسيدلې دې. داسې اوشو چه د تجارت دقافلې مشر ابو سفيان ته چه كله پته او لګيدله چه د محمد صلى الله عليه وسلم ملګري دوي پسې شوي دي نو هغه ضمضم غفاري له په مزدوري باندې قريشو ته دخبر رسولو دپاره اوليګلو او په خپله ابو سفيان لاره بدله كړه او د درياب د غاړې لاره ئې غوره كړه او روان شو.قريشو ته خبر رسيدو سره د ابو جهل په مشرئ كښې د جنګيدونكو ځوانانواو منلې شوي شهسوارانو د زرو ۱۰۰۰ كسانو ډله سره د سلو ۱۰۰ اسونو اوه سوه ۷۰۰ اوښانو او ګډيدونكو ښځو ډير په شان شوكت روان شو. كله چه دتجارت قافله په حفاظت سره او وتله نو ابو سفيان د قريشو لښكر ته جواب او ليګلو چه قافله بچ شوه لهذا تاسوهم واپس شي بنو زهره واپس شول ليكن ابو جهل انكار او كړو وې وئيل: چه د بدر ميدان كښې به درې ورځې خوشحالي كولو نه پس واپس كيږو.۱۷ درمضان سنه ۲ د جمعې په سحر ميدان بدر كښے دكفر او اسلام صفونه يو بل ته مخامخ وو. يواځې يواځې مقابله اوشوه. دقريشو نه عتبه، شيبه او وليد ميدان ته را ووتل او د مسلمانانو نه حضرت حمزه رضي الله عنه حضرت علي رضي الله عنه او عبيده ابن الحارث رضي الله عنه ميدان جنګ ته رابهر شو. او دوي دغه درې واړه كافران مردار كړل د عتبه په ګذار باندے د حضرت عبيده پښه كټ شوه. څه وخت روستو هغوي ته شهادت نصيب شو. بيا عام جنګ شروع شو. د توحيد فرزندانو دايمان او دغيرت او بهادري هغه مرانه اوښوده چه نن هم دتاريخ په پاڼړو كښې دهغوی نومونه په غټوټكو ليكلى شوي دي. د قريشو اويا ۷۰ كسان مړه كړې شو او اويا كسان قيد كړې شو څوارلس ۱۴ مسلمانان شهيدان شو. دجنګ قيديانو نه ئې فديه واخستله او آزاد ئې كړل.مدينې منورې ته دروانيدو نه وړاندې ئې د خوشحالئ زيرې رسولو دپاره قاصد اوليګلو. د مسلمانانو زړونه دشكر دجذباتو نه ډك او په ژبه باندې د الله تعالى ثنا او صفت وئيلو او خوشحالئ سره واپس شو.

**غزوه احد:** د جنګ بدردبدل اغستلو دپاره د قريشو په سينو كښې دانتقام اور بليدلو. دقريشو مشران دار الندوه كښې راجمع شول او د شام نه واپس شوې تجارتي قافلې ټوله ګټه ئې دمسلمانانو خلاف جنګ كښې استعمالولو فيصله او كړه. خوا اوشا قبائل ئې هم په جنګ كښې دشريكولو دپاره رضا كړل. د دريو زرو ۳۰۰۰ لښكر په ۵ د شوال سنه ۳ه

دمکې نه روان شو چه په هغې کښې اوه سوه ۷۰۰ زغرې اغستونکې، درې زره ۳۰۰۰ اوښان او دوه سوه ۲۰۰ آسونه وو. دقریشو دعزتمند خاندان پنځلس ۱۵ ښځې هم ورسره شریکې شوې. حضرت عباس رضی الله عنه دمکې نه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دقریشو دلښکر خبر ورکړو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم د حالاتو معلومولو دپاره حضرت انس او حضرت مونس اولیګل. هغوی چه واپس راغلل نو ووئې ویل چه لښکر نزدې راغلې دې. نبی کریم صلی الله علیه وسلم دعام عادت مطابق د صحابو نه مشوره واغستله بعض صحابوو او عبد الله ابن ابي منافق او وئیل چه مدینه منوره کښې پاتې کیدل او دفاعی جنګ پکار دې. دنبی کریم صلی الله علیه وسلم خپله مشوره هم دا وه. خو د نورو ډیرو صحابو مشوره بلکه خواهش وو چه د مدینې منورې نه بهر مقابله کول پکار دی. دمشورې نه پس په ۱۱ دشوال سنه ۳ هـ په ورځ دجمعې دمازدیګر مانځه نه پس نبی کریم صلی الله علیه وسلم زرو کسانو باندې مشتمل ډله برابره کړه او اُحد طرف ته روان شو. شپه ئې په شیخین مقام کښې تیره کړه. کم عمره صحابه رضی الله عنهم یې واپس کړل. دخالي په ورځ چه غر طرف ته روان شو.نو عبدالله بن ابي بهانه جوړه کړه.چه زما مشوره نه ده منلې شوې.او دخان سره ئې درې سوه کسان د اسلامی لښکر نه واپس کړل. په اسلامی لښکر کښې اووه سوه کسان وو.په دوی کښې سلو کسانو زغرې اغوستې وې.او په لښکر کښې صرف دوه اسونه وو. د اُحد غر ئې خان نه شاته پرینوده او صفونه یې جوړ کړل. اود یو غنډې په کنډاو کښې ئې پنځوس ۵۰ تیرانداز صحابه د حضرت عبد الله بن جبیر په مشرئ کښې کینول. چه د دغې طرف نه د حملې امکان ختم شي او ورته یې په تاکید سره او وئیل .که مسلمانانو شکست اوخوړلو.اوکه فتح ورته حاصله شوه. تاسو به په هیڅ صورت کښې دغه ځائې نه پریږدئ. په انفرادی مقابله کښې کافرانو ته د مکمل شکست ملاویدو نه پس عام جنګ شروع شو. حضرت حمزه علي او ابو دجانه په دښمن داسې حملې اوکړې چه د کافرانو صفونه ئې مات کړل.د کافرانو قدمونه اوخویدل.اود کنډاو نه ئې منډه کړه.مسلمانانو په غنیمت راجمع کولو شروع اوکړه. په کنډاو باندې مقرر شوې د پنځوسوکسانو دسته هم غنیمت طرف ته راکوزه شوه.امیر منع کړل.خوهغوی ورته اووئیل.میدان خالی دی. اوکافران شکست اوخوړلو.دلته کښې د پاتې کیدو اوس څه ضرورت دې.صرف لس کسان د عبدالله جبیر رضی الله سره پاتې شو.خالد بن ولید چه کنډاو خالی اولیدلو.نود څلور سوه کسانو سره کنډاو ته وراندې شو.اوهلته کښې موجود یوولس صحابه کرام ئې شهیدان کړل.او په مسلمانانو ئې د شا د طرف نه حمله اوکړه.دې ناګهانه حملې د جنګ نقشه بالکل بدله کړه.کوم کافران چه تختیدلی وو.هغوی هم واپس راغلل.مسلمانان د دواړو طرف نه راګیر شو.د جنګ په توره وریځه کښې ئې د خپل او پردی تمیز نشو کولې.په بې خبرئ کښې د مسلمان توره د مسلمان په وینه باندې هم رنګینه شوه.کافرانو د آفتاب رسالت د مرګ افواه خوره کړه.په دې سره د مسلمانو حوصلې بنکته شوې.څه کسانو وسله اوغورځوله.چا میدان جنګ پریخودلو.څه صحابه کرامو په کافرانو باندې لکه د باز حملې اوکړې.او دا به ئې وئیل.دنبی علیه السلام د وفات نه پس په دنیا کښې د ژوند تیرولو به څه مزه وی.د افراتفرۍ په دې حالت کښې هم څه صحابه کرام د نبی علیه السلام د حفاظت دپاره د هغوی

نه گیرچاپیره راجمع شوی وو.حضرات ابودجانه،علی،طلحه، ابوطلحه، سعد بن ابي وقاص هم په دې بهادروکسانو کښې وو.دکافرانو په حمله کښې دنبی علیه السلام دوه غابښونه مبارك شهیدان شوی وو.شونډې مبارکې ئې زخمی شوې وې.اوپه مخ مبارك کښې ئې د وسپنې کړې ننوتې او تندې مبارك ئې په وینو ککړ شوې وو. تقریباً اویا ۷۰ صحابه رضي الله عنهم شهیدان شول او دکفارو۲۳ درویشت کسان مړه کړې شو.په دې باندې خو روایات متفق دي.چه غزوه احد د شوال په میاشت کښې دګل (دوشنبه) په ورځ ۳ه کښې واقع شوه البته تاریخ وقوع کښې اختلاف دې.د ۷،۸، ۹، ۱۱ ، ۱۵ ، پورې روایات راغلی دی.

**غزوه خندق اوبنی قریظه:** دمسلمانانو خلاف دیهودیانو سازشونه جوړول څه نوې خبره نه ده.کله چه د مدینې یهود دخپلوکړو په سزا کښې دمدینې منورې نه اوشړلی شو.نوخیبر ته لاړل .اوداسلام خلاف یې سازشونه شروع کړل.په احد کښې مسلمانانو شکست خوړلې وو.نو دوی ته څه حوصله ملاوء شوه.اوقریشو ته ئې اووئیل. دا وخت دې.چه اسلام د مخ د زمکې نه ختم کړې شي.کافرانودا خبره ډیره په خوشحالئ اومنله.او د اخوا دیخوا قبیلې ،بنو اسد ،بنو غطفان ،بنو سعد ،ئې هم تیار کړل.لس زره کسان د اسلام د ختمولو دپاره مدینې ته راروان شو.صرف د قریشو تعداد په کښې څلور زره وو.دوی سره درې سوه اسونه اوینځلس اوښان وو.نبی علیه السلام ته ددوی دحملې خبر اوشو.صحابه کرامو سره ئې مشوره اوکړه.حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه ددفاعي جنګ طریقه اوښودله چه د مدینې منورې دکوم طرف نه چه دحملې خطره وی. هلته دې ژور کنده اوکنستې شی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خپله دخندق حدود متعین کړل. د دې خندق ژور والې تقریباً پنځه نیم ګزه او اوږدوالې درې نیم میله وو. دلسو لسو کسانو ډلې یې جوړې کړې. او لس لس ګزه زمکه ئې هر یو سري ته اوسپارله. دا د قحط زمانه وه د یخنې ورځې وې. یخې شپې وې. او یخې هواګانې الوتلې دریو زرو(۳۰۰۰ ) د اسلام فدایانو د غه لښکر دحق او باطل کندد کنستله او روان وو، کومې ډلې چه به خپله حصه مکمله کړه نو ده بلې ډلې سره به شریك شو دایمان یوه جذبه وه د اسلام یو جوش وو.دې جذبې ورته دجهاد په لاره کښې دفانی دنیا هر مشقت د موم نه هم زیات نرم کړې وو. په شاګانو باندې به یې خاوره راوړله. ټولو به دا ترانه وئیله:

نحن الذين بايعوا محمداً على الجهاد ما بقينا ابداً

د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په لاس کښې ګرز راواخستلو.اود خندق نه به ئې خپله خاوره وړله. په خیټه مبارکه باندې یې کانړی تړلی وو. او په ژبه باندې ئې د خدائې حمد او ثنا وه او دا اشعار به ئې لوستل:

والله لولا الله ما اهتدينا ولا تصدقنا ولا صلينا

فانزلن سكينة علينا وثبت الاقدام ان لاقينا

په شپږو ورځو کښې خندق پوره کولو نه پس دغه اسلامی قافلې د سلع غر سره نزدې صفونه جوړ کړل. دکفارو لښکر ډیر په جوش وخروش کښې راورسیدو نو خندق ددوی اول استقبال او کړو دا استقبال ددوی دپاره نوې هم وو او حیرانونکې هم. چه دخندق نه به څنګه

تيريږي؟ د دواړو طرفونه غشي ورول شروع شو. شلو ورځويا يوے مياشت پورې دا سلسله جاري وه. دالله تعالى امداد داسې راورسيدو چه د بنو غطفان نه نعيم بن مسعود اسلام راوړو او داسي چل ئې جوړ كړو چه په هغې سره د كفارو په لښكر كښې اختلاف پيدا شو بل طرف ته داسې تيزه سيلئ راغله چه ددوى دخيمو تنابونه ئې اوشلول دا نغرونه ديگچى پريوتل سامانونه يې خواره واره شو. د هغې وجې ئې زړونه اوبيلل.او د صبا كيدو نه وړاندې په تيښته مكې ته واپس شول. دا ده ٢٣ ذي القعده ٥ھ دچهارشنبي دورځې واقعه وه.په دې غزا كښې شپږ مسلمانان شهيدان شول درې ٣ يا ٨ كافران مردار كړې شول چونكه يهود بنى قريظه په دے جنگ كښې د معاهدې خلاف ورزى اوكړه. او كافرانو سره يې امداد اوكړلو. نو ددې غزا نه پس مسلمانانو چه مدينې منورې ته را واپس شو.لا وسله ئې ايښې نه وه. چه حضرت جبريل امين راغې. او وې وئيل. عجيبه ده چه وسله مو كيښودله؟ نبي كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل آو. وسله مو كيخودله. حضرت جبريل اووئيل. فرښتو لا وسله نه ده ايخې. په بنو قريظه باندې د هغوى د عهد شكنئ د وجے حمله كول دى. نبي كريم صلى الله عليه وسلم اعلان وكړو چه دمازيگر مونځ به په بنى قريظه كښے كوئ. د دريو زرو ٣٠٠٠ لښكر دبنى قريظه نه چاپيره شو. په لښكر كښې ٣٦ اسونه وو. پنځويشتو ورځو پورې محاصره جارى پاتې كيدونه پس بنو قريظه دحضرت سعد بن معاذ په فيصله باندې راضى شو او دخپل قلعگانو نه را كوز شول د حضرت سعد فيصله دا وه چه ددوى سړى دې قتل كړې شى. او ښځے اوماشومان دې غلامان جوړ كړې شى.اود دوى مالونه دې په مسلمانانو تقسيم كړې شي. دغه شاند ځلورو سوو يهوديانو سرونه قلم كړې شو.

**غزوه ذات الرقاع**: د ابن اسحاق د بيان مطابق دا غزا په جمادى الاولى سنه ۴ كښې د ابن سعد په نزد په ۵ هجري او د امام بخاري درايت مطابق دخيبر دغزا نه روستو په ۷ كال شوې وه.د امام بخارى رائې ځكه غوره ده چه دې غزوه كښې ابو موسى رضي الله عنه اوحضرت ابو هريره رضي الله عنه شريك وو.او دا دواړه دخيبر د غزا نه روستو مسلمانان شوے وو. نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته خبر ملاو شو چه دغطفان دوه قبيلے مجارب او ثعلبه د مسلمانانو خلاف د جنگ دپاره جمع كيږي. د دې دپاره نبي كريم صلى الله عليه وسلم ځلور سوه (۴۰۰) يا اووه سوه (۷۰۰) يا آته سوه(۸۰۰) صحابه كرام ځان سره كړل او ددوې مخې ته ورغلل. يو بل ته مخامخ شو ليكن جنگ او نشو. نبي كريم صلى الله عليه وسلم دغلته صلوه الخوف ادا كړو ځكه چه ذدشمن نه خطره وه.

**غزوه بنى المصطلق**: بعضي مورخينو سنه ۴ ھ ابن سعد دويم شعبان سنه ۵ھ او ابن اسحاق په ۶ھ كښې ددې واقعي كيدل ليكلې دى. حافظ ابن حجر د پنځمې هجري قول غوره كړې دې.د بنو المصطلق رئيس حارث ابن ضرار په مسلمانانو دحملې تيارې شروع كړو. نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته اطلاع اوشوه نو حضرت بريده ابن خصيب ئې د حال معلومولو دپاره اوليگلو. بريده واپس راغلو. او تصديق ئې اوكړو . نبي كريم صلى الله عليه وسلم زيد بن حارثه خپل قائم مقام جوړ كړو او گل ( دوشمبه) په ورځ د مدينې منورې نه.د مريسيع

(دا یوخاني دې) طرف ته روان شو.اوه سوه ۷۰۰ صحابه وو په لښکر کښې دیرش ۳۰ آسونه وو. ام المومنین حضرت عائشه صدیقه او ام سلمه هم ورسره وې. دشمنانو خپل څارو ته اُبه ورکولې. چه ناڅاپه په ئې پرې حمله اوکړه او شکست ئې ورکړلو. لس ۱۰ کسان يې ترینه هم مردار کړه. دوه سوه خاندانه يي قیدیان کړل دوه زره ۲۰۰۰ اُښان پنځه زره چیلي په مال غنیمت کښې ملاو شوې. روستو بیا چونکه دبني المصطلق درئیس حارث لور ام المومنین حضرت جویریه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په نکاح کښې راغله نو ځکه ئې ټول آزاد کړل هم د دې سفر په واپسۍ کښې واقعه د إفك پیښه شوه.

**صلح حدیبیه:** د ذو القعدې په اول تاریخ د دوشنبې (ګل) په ورځ نبی کریم صلی الله علیه وسلم د عمرې په نیت مکې ته روان شو. دې سفر کښې دصحابه کرامو تعداد په مختلف روایاتو کښې ۱۳سوه ۱۴سوه ۱۵سوه او ۱۸ سوه راغلې دې.مشهور په کښ د څلوارلسوه روایت دې د اسلام دې لښکر دذوالحلیفې نه دعمرې دپاره احرام اُتړلو. او بشر بن سفیان ئې په طور د جاسوس وړاندې اولیګلو. د اسلام دا لښکر چه کله عسفان ته نزدې غدیر اشطاط مقام ته اورسیدلو نو بشر خبر راوړلو چه دقریشو او د هغوی ملګری قبائل اته زره ۸۰۰۰ کسان په مقام "بلدح" کښې راجمع شوی دی. او دوه سوه ۲۰۰ کسانو سورو سره خالد بن ولید د "کراع الغمیم" په لاره کښې د حملې دپاره ناست دی. نبی اکرم صلی الله علیه وسلم لاره بدله کړه او حدیبیه مقام ته ئې تشریف یوړلو. هرکله چه خالد بن ولید ته پته اولګیده چه مسلمانانو لاره بدله کړه. نو قریش ئې د نوې صورتحال نه خبر کړل. د حدیبیې نه حضرت عثمان رضی الله عنه خبرو اترو دپاره قریشو ته اولیګلو. بل خو دا خبره خوره شوه چه حضرت عثمان او هغه سره تلی لس ملګری شهیدان کړې شو.ددې نه پس د بیعت الرضوان تاریخی واقعه پیښه شوه.د بیعت ا لرضوان خبر قریش مرعوبه کړل.او صلحې کولو ته ئې غاړه کیخودله.دصلح د خبرو اترو دپاره قریشو سهیل بن عمرو راولیږلو.په څو شرطونو باندې د لسو کالو دپاره صلح اوشوه. په مقام حدیبیه کښې شل یا د یوې میاشتې پورې پاتې کیدو نه پس نبی کریم صلی الله علیه وسلم دخپلو ملګرو سره واپس مدینې منورې ته روان شو.ددې سفر په واپسۍ سورت "فتح" نازل شو.او قرآن کریم صلح حدیبیې ته د فتح مبین لقب ورکړو.

**غزوه خیبر:** دمدینې منورې نه شړلې شوي یهودیان خیبرته لاړل. اوهلته آباد شو.اود مسلمانانو خلاف ئې د مدینې منورې منافقان او دمکې مشرکان را بیدار کړل. چه اوس د مسلمانانو د طاقت ختمولو موقع ده. د ابن هشام په نزد باندې په محرم کال۷ کښې نبي کریم صلي الله علیه وسلم د شپاړس سوه ۱۶۰۰ صحابه کرامو چه په کښې دوه سوه ۲۰۰ سواره او څوارلس سوه پیاده وو د مدینې منورې نه ۹۶ میله لرې د شام په لار خیبر ته روان شو. د نبي کریم صلی الله علیه وسلم بیبیانو کښې ام سلمه رضي الله عنها دوی سره وه. او نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مدینه منوره کي حضرت سباع بن عرفطه رضی الله عنه خپل نائب پریخولو.د شپې په وخت کښې خیبر ته اورسیدل. د حملې دپاره د سحر انتظار وو. یهودیان چه سحرکارونو پسې راووتل.نوصحابه ئې اولیدل چغې ئې کړې چه "محمد والخمیس" د اسلام

د ا لښکر د خیبر دقلعګانو نه ګیر چاپیره شو او ترتیب وار اول قلعه ناعم بیا قموص وریسې قلعه صعب بن معاذ او د قله قلعې فتح کړې. ددے نه پس د قلعه ،وطیح ،، او. سلالم ،،ته د څوارلسو ورځو پورې محاصره جاری وه. یهود صلحې ته مجبوره شو.نبي کریم ﷺ په صلح کښے دا شرط کیخودلو .چه یهود به سره زرسپین زراو ټول د جنګ سامان په خیبر کښې پریږدی. اودخیبر نه به څی یهودو دا شرط قبول کړلو.روستو ئې درخواست او کړو. چه مونږ دې هم په خیبر کښې پریخودلی شو. اود خیبر د باغونو نیم آمدن به مونږ تاسو مسلمانانو ته درکوو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم اجازت ورکړو.په دې غزا کښې تقریباً څوارلس صحابه کرام شهیدان او درې نوی (۹۳) یهودیان مردارشو.

**فتح مکه مکرمه:** د صلح حدیبیې په شرطونو کښې یوشرط دا هم وو.چه دکومې قبیلې سره د مشرکانو معاهده وی.مسلمانان به د دهغوی سره جنګ نه کوی.او نه به دهغوی خلاف چا سره مدد کوی.اودکومو قبیلو سره چه دمسلمانانو معاهده وی. مشرکان به د هغوی سره جنګ نه کوی.او نه به د هغوی خلاف چا سره مدد کوی.دصلح حدیبې نه پس قبیله بنو خزاعه د مسلمانانو او قبیله بنو بکر دقریشو ملګری شو. دې دواړو قبیلو کښې د پخوا نه د شمنې را روانه وه. د دې وجې بنو بکر په بنو خزاعه باندې حمله اوکړه. قریشو د وعدې خلاف ورزی اوکړه او بنو بکر سره امداد اوکړو. د بنو خزاعه مشر عمرو بن سالم مدینې منورې ته لاړلو. او نبي کریم صلی الله علیه وسلم ئې د قریشو د خلاف ورزئ نه خبر کړو.چه قریشو تاسو سره اومعاهده کړې وه.چه مونږ به دهغه چا خلاف د هغوی د دشمن سره مدد نه کوو .دچا سره چه ستاسو معاهده وی.او اوس بنوبکر په مونږحمله اوکړه.اومشرکانو ورسره مدد اوکړلو.او تاسو سره چه ئې کومه معاهده کړې وه.دهغې خلاف ورزی ئې اوکړه. نبی کریم صلی الله علیه وسلم قریشو ته خبر او لیګلو چه د بنو خزاعه د قتل شوو کسانو دیت (تاوان) ورکړئ. یا د بنو بکر د معاهدې نه لاس واخلئ. او که داسې نه کوئ. نو بیا د صلح حدیبے ماتولو اعلان اوکړئ. قریشو د صلح حدیبې د ماتولو اعلان اوکړو. بیا روستو په خپلو کړو پښیمانه شو. او د معاهدې نوې کول ئې اوغوښتل. خو نبی علیه السلام ترې انکار اوکړو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم په لسم د رمضان المبارك سنه ۸ هـ (جنوری ۶۳۰عیسوی) په ورځ د چهار شنبې (بدهه) لس زره اسلامی لښکرځان سره روان کړلو. او مکې طرف ته روان شو. ازواج مطهراتو کښې ورسره حضرت میمونه او ام سلمه وه. د شپې مکې ته نزدې ئې ابو سفیان، بدیل او حکم بن خرام اونیولی شو.دوی دحالاتو معلومولو دپاره راوتلی وو. د راروانې ورځې پورې درې واړو اسلام راوړلو.چه سحر شو نو اسلامې لښکر مکې طرف ته روان شو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم دمکې د بره طرف نه مکې ته بغیر د جنګ نه داخل شو .او حضرت خالد بن ولید د مکې د کوز طرف نه مکې ته بغیر د جنګ نه داخل شو. ده سره د قریشو بعضو کسانو جنګ اوکړلو. چه پکښې درې صحابه کرام حضرت کرز بن جابر حضرت حبیش بن اشعر او مسله بن المیلاد شهیدان او دولس یا خلیرویشت کفار قتل کړې شو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ټولو نه رومبې دحضرت ام هانې کورته ورغلو. اته ۸ رکعته مونځ ئې اوکړل. پیا مسجدحرام ته لاړلو. او په حرم کښې چه کوم درې سوه شپیته ۳۶۰ بُتان وو. هغه ئې مات کړل. او بیت الله ئې د تصویرونو نه

صفا كړلو. حضرت بلال رضي الله عنه او اسامه ئې خان سره كړل. او دوه ركعته ئې په خانه كعبه كښې دننه اوكړل. د الله اكبر په اواز ئې هغه ځائې روښانه كړلو. بيا نبي كريم صلى الله عليه وسلم د كعبې نه را بهر او خطبه ئې او فرمائله. او قريشو سره ئې د رحم او كرم معامله اوكړله. او ټول ئې معاف كړل. د دې هر څه باوجود چه دوى مسلمانانو ته سخت تكليفونه رسولي وو.

۲۰ رمضان المبارك د جمعې ورځ وه. لګ ساعت بعد دكعبې نه د حضرت بلال رضي د آذان ښكلې او زړه رابښكونكې اواز پورته شو. د ماسپخين د مانځه نه پس عام بيعت (لاس نيوه) شروع شوه. د پنځم شوال د شنبې (خيالى) د ورځې پورې نبى كريم صلى الله عليه وسلم مكه كښې حصار وو. او په شپږم شوال باندې حنين طرف ته روان شو.

**غزوه حنين:** دمكې مكرمې د فتح كولو خبر چه كله د هوازن اوثقيف قبيلو واوريدو كوم چه په طائف كښې آباد وو. نو يو بل سره يې مشوره اوكړه چه په مسلمانانو باندې حمله اوكړي. د دواړو قبيلو شل زره ۲۰۰۰۰ كسان د مالك بن عوف په مشرئ كښې حنين مقام ته راورسيدل. نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته چه كله دامعلومه شوه. نو حضرت عبد الله بن ابي حدرد ئې د حالاتو معلومولو دپاره اوليګلو. هغوى واپس راغلل او د هغې دواړو قبيلو د آرادې خبرې يې وركړلو. په شپږم شوال شنبه (خيالى) په ورځ په اتم كال د هجرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم د دولسو زرو ۱۲۰۰۰ فدايانو سره حنين مقام طرف ته روان شول. كله چه دا اسلامي لښكر د چهار شنبې په شپه د وادي حنين نه تيريدو نو په غرونو كښې پټ د دغې دوو قبيلو په زرګونو ځوانانو ناڅاپه حمله اوكړه. د دې ناڅاپې حملې د وجې مسلمانان اول روستو شو. خو نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خپل ځاې كلك ولاړ وو. او د ژبې مباركې نه ئې دا جلالى كلمات په چغه راوتل

انا النبي لا كذب انا ابن عبد المطلب

حضرت عباس او يو څو صحابه كرام نور هم ورسره ولاړ وو. حضرت عباس رضي الله عنه ته ئې حكم اوكړلو چه انصار او مهاجرينو ته آواز اوكړه. چه صحابه كرامو د حضرت عباس آواز واوريدلو. نو د سترګې په رپ كښې دغه اسلامي لښكر لكه د ليونو په دشمن را پريوتل او لګ وخت تيرنه وو. چه ميدان بالكل خالي پاتې شو. او دشمن اوتښتيدو. د دشمن او يا كسان قتل شو. تقريباً شپږ زره كسان ئې بنديان شو. څلورويشت زره اوښان څلويښت زره چيلي او څلور زره اوقيې سپين زر په مال غنيمت كښې د مسلمانانو لاس ته راغلل. صرف څلور مسلمانان شهيدان شول. د حنين په دې مقام كښې چه كوم لښكر شكست اوخوړلو. د هغوى يوه حصه اوطاس او بله طائف ته لاړه. نبى كريم صلى الله عليه وسلم د حضرت ابو عامر په مشرئ كښې يو لښكر اوطاس طرف ته اوليګلو هلته دوى فتحه حاصله كړه. او بل طرف ته د طائف نه مسلمانانو تر پنځلسو، اوولسو ۱۷، اتلسو ۱۸، يا شلو ۲۰ ورځو پورې ګيره اچولې وه. دولس مسلمانان شهيدان شو. خو بيا هم قلعه فتحه نه شوه. د قبيله ثقيف دپاره نبي كريم صلى الله عليه وسلم د هدايت دعا اوكړه. او محاصره ئې ترې ختمه كړه. په پنځمه ذو القعده نبي كريم صلى الله

عليه وسلم مقام جعرانه ته اورسيدو. نو هلته د غزوه حنين بنديان او مال غنيمت جمع وو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دیارلسو ورځو پورې انتظار اوکړو. چه کیدې شی. قبیله هوازن او ثقیف راشي .او خپل بنديان آزاد کړي.چه څوك هم رانغلل. نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم مال غنیمت سره سره دغه بندیان هم تقسیم کړل. دمال غنیمت تقسیمولو نه پس د قبیله هوازن جرګه راغله.او توبه ګار شو. دې نه پس نبی کریم صلی الله علیه وسلم ټولو صحابه وو ته بندیانو آزادلو سفارش وړاند کړو. چه د چا په حصه کښې کوم بندیان راغلی دی.نو زما دا سفارش دې. چه هغه آزاد کړئ. ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم دا سفارش قبول کړلو. او په یو وار یي شپږ زره بندیان آزاد کړل. په اتلسم ۱۸ رمضان اتم کال دهجرت نبي کريم صلی الله عليه وسلم دفتحې مكې په اراده وتلې وو. او دوه ۲ میاشتې او شپاړس ۱۶ ورځو کښې بیا واپس مدینې ته لاړلو.

**غزوه موته**: نبي كريم صلى الله عليه وسلم حضرت حارث بن عمير ته د اسلام ددعوت خط ورکړو.او قیصر روم ته ئې او لیګلو. د قیصر د بادشاهئ لاندې د مقام بلقاء رئیس شرحبیل بن عمرو دغه سفیر شهید کړو. ددې شهید دبدلې اخستلو دپاره نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دریو زرو صحابه کرامو یوه ډله د حضرت زید بن حارثه ﷺ په مشرئ کښې او لیګلو.او ورته یې او فرمائیل. چه که چرته زید شهید شي نو جعفر بن ابي طالب به امیر وی. اوکه جعفر شهید شي نو عبد الله بن رواحه به امیر وي. او که عبدالله بن رواحه هم شهید شي. نو بیا چه مسلمانان په چا متفق شي هغه به امیر وی.شرحبیل چه کله خبر شو نو یو لاکھ فوج یې د مقابلې دپاره را روان کړل. بل طرف ته هرقل نور یو لاکھ کسانو سره په خپله د شرحبیل د امداد دپاره راوسیدلو. د موته په میدان کښې دوه عظیم طاقتونه یو بل ته مخامخ شو. د حق او باطل دکفر او اسلام جنګ شروع شو. یو طرف ته دوه لاکھه کافران او بل طرف ته صرف درې زره د ایمان په دولت مست مسلمانان وو. حضرت زید جعفر او عبد الله بن رواحه درې واړه پرله پسې شهیدان شو. مسلمانانو حضرت خالد بن ولید خپل امیر جوړ کړلو. حضرت خالد بن ولید په بله ورځ د لښکر ترتیب بدل کړو چه په هغې سره دشمن ته خیال راغې. چه ګني نور لښکرد امداد دپاره راو رسیده. د دې وجې په دشمن رعب پریوته. او میدان یې پریښودلو. حضرت خالد هم د ښمن پسې تګ مناسب ونه ګڼړلو او مدینې طرف ته روان شو. دې غزا کښې دولس مسلمانان شهیدان شو.ابن اسحاق او موسی بن عقبه دا واقعه په جمادی الاولی اتم کال د هجرت او خلیفه بن خیاط اووم کال خودلې دی.

**غزوه تبوك**: د مدینې منورې نه د دمشق په طرف اووه سوه ۷۰۰ کلومتره لرې فاصلې باندې د تبوك مقام واقع دی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته خبر ملاو شو چه هرقل د تبوك مقام كښې يو لوې لښکر راجمع کړې دې. او په مدینه منوره باندې دحملې په اراده یې د لښکر اوله حصه مقام بلقاء ته رارسولې ده. خبر رارسیدو سره نبي کریم صلی الله علیه وسلم د مقابلې دپاره د وړاندې کیدو اعلان اوکړو. موسم دګرمي وو. د فصلونو د ریبلو وخت وو. لوګه او قحط عام وو. سفر ډیر لرې وو. او مقابله هم ډیره سخته وه .ځکه چه د هغه وخت د یو لوې سلطنت روم سره مقابله وه. لیکن الله تبارك وتعالى هم دخپل پیغمبر

صلى الله عليه وسلم دملګرتيا دپاره داسې خلق غوره کړې وو. چې دوی دخپل محبوب پيغمبر صلى الله عليه وسلم د ملګرتيا قدر پيژندلو.ځکه يې په چنده جمع کولو کښې هم د يوبل نه د وړاندې کيدو جذبه ښکاره کړه. ډير مخلص صحابه غزا ته د تللو دپاره ليواله وو. خو د سفر خرچه ورسره نه وه. نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته راغلل. او دخرچې درخواست يې اوکړو. خو نبى کريم صلى الله عليه وسلم هم د سفر خرچه نشوه برداشت کولې.نبى عليه السلام به ورته معذرت اوکړو. دا صحابه به په ژړا واپس شو. او دومره په درد سره به ئې ژړل. چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم زړه به يې هم راډک کړلو. او آفتاب رسالت به هم په ژړا شولو. كمال قال تعالى "تولوا واعينهم تفيض من الدمع حزناً ان لا يجدوا ما ينفقون" (التوبه/٩٢).د رجب سنه ۹ هـ (نومبر ۶۳۵هـ) د زيارت په ورځ نبي کريم صلى الله عليه وسلم ديرش ځلويښت يا اويا زره صحابه ځان سره کړل. ورسره لس زره اسونه دولس زره اوښان وو. تبوك ته په پنځلسو ورځو کښې اورسيدل. د مقابلې دپاره څوک هم رانغلل. تبوك کښې د قيام په ورځو کښې نبي کريم صلى الله عليه وسلم خواوشا رياستو نو ته صحابه اوليګل. هغوى كامياب واپس شو. د دومه الجندل، ايله، اجربا، ازرح سردارانو جزيه قبوله کړه. د تبوك دقيام په موده کښې اختلاف دې. واقدى دوه مياشتې، ابن سعد شل ورځې ابن اثير نورلس ورځې، طبري دولس ورځې ابن هشام لس ورځې ليکلې دي. ليکن معلوميږي .چه د تلو پنځلس ورځې او دراتلو هم پنځلس ورځې او هلته دقيام شل ورځې وې. ټولې پنځوس ورځې وې.کله چه داسلام دا عظيم لښکر مدينې ته نزدې شو. نو خواو شا ډير خلق استقبال دپاره ولاړ وو. دمدينې منورې ماشومانو جينکو نن هم هغه ترانه په ژبه باندې جاري وه. کومه چه د نن نه نهه کاله وړاندې وه"

طلع البدر علينا من ثنيات الوداع — وجب الشكر علينا ما دعا لله داع

ليکن دومره فرق ضرور ووچه هغه وخت يو نا اشنا وطن نه د مسافرو مهاجرينو استقبال وو. اونن دلته دنبوې محبت نه لاندې د اويا زرو صحابه وو لښکر او د مجاهدينو د سردار صلى الله عليه وسلم استقبال او هرکلې وو.

# مصادر ومراجع کشف الباری دریم جلد


الابواب والتراجم لصحیح البخاری شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب (متوفی ۱۴۰۲ھ مطابق ۱۹۸۲ء) ایچ ایم سعید کمپنی پاکستان چوک کراچی

اتحاف السادۃ المتقین بشرح أسرار إحیاء علوم الدین: علامہ سید محمد بن محمد الحسینی الزبیدی المشہور بمرتضی رحمہ اللہ (متوفی ۱۲۰۵ھ) دار احیاء التراث العربی

احسن الفتاوی مفتی رشید احمد صاحب لدھیانوی ایچ ایم سعید کمپنی

الإحسان بترتیب صحیح ابن حبان امام ابوحاتم محمد بن حبان بستی رحمہ اللہ متوفی ۳۵۴ھ موسسۃ الرسالۃ بیروت۔

احکام القرآن \ مولانا ظفر احمد عثمانی \ ادارۃ القرآن کراچی

أسد الغابۃ عزالدین أبوالحسن علی بن محمد الجزری المعروف بابن الأثیر المتوفی ۶۳۰ھ دار الکتب العلمیۃ بیروت

الإصابۃ فی تمیز الصحابۃ: شہاب الدین ابوالفضل أحمد بن علی القسطلانی المصری المعروف بابن حجر رحمہ اللہ (متوفی ۸۵۲ھ) دار الفکر۔ بیروت

الإستیعاب فی اسماء الأصحاب بہامش الإصابۃ: ابوعمر یوسف بن عبداللہ بن محمد بن عبدالبر رحمہ اللہ (متوفی ۴۶۳ھ) دار الفکر للطباعۃ والنشر والتوزیع \ بیروت

إعلاء السنن علامہ ظفر احمد عثمانی رحمہ اللہ متوفی ۱۳۹۴ھ ادارۃ القرآن کراچی

الاستیعاب فی اسماء الأصحاب بہامش الإصابۃ ابوعمر یوسف بن عبداللہ بن محمد بن عبدالبر رحمہ اللہ متوفی ۴۶۳ھ) دار الفکر بیروت۔

الإکمال فی أسماء الرجال \ محمد بن عبداللہ تبریزی \ ادارۃ القرآن کراچی

امداد الفتاوی \ مولانا اشرف علی تھانوی رحمہ اللہ (۱۳۶۲ھجری)

الارشاد فی أصول الإعتقاد \ عبدالملک بن عبداللہ (۴۷۸ھجری)

البحر الرائق علامۃ زین العابدین بن ابراھیم بن نجیم رحمہ اللہ المتوفی ۹۶۹ھ أو المتوفی یا المتوفی ۹۷۰ھ مکتبہ رشیدیہ کوئٹہ

البدایۃ والنہایۃ: حافظ عمادالدین أبوالفداء إسماعیل بن عمر المعروف بابن کثیر رحمہ اللہ (متوفی ۷۷۴ھ) مکتبۃ المعارف۔ بیروت۔ طبع ثانی ۱۹۷۷ء

بذل المجہود: حضرت العلامہ خلیل أحمد سہارنپوری رحمہ اللہ (متوفی ۱۳۴۶ھ) مطبع ندوۃ العلماء لکنھو۔ ۱۳۹۳ھ مطابق ۱۹۷۳ء

بیان القرآن: حکیم الأمت حضرت مولانا أشرف علی صاحب تھانوی نور اللہ مرقدہ (متوفی ۱۳۶۲ھ) شیخ غلام علی اینڈ سنز لاہور

تاریخ المدینۃ المنورۃ \ ابوزید عمر بن شبہ البصری (۲۶۲ھجری)

تاریخ الطبری ابوجعفر محمد بن جریر الطبری \ مؤسسۃ الرسالۃ

تاریخ الخمیس فی احوال أنفس نفیس: شیخ حسین بن محمد بن الحسن الدیار بکری المالکی رحمہ اللہ (متوفی ۹۶۶ھ) \ مؤسسۃ شعبان بیروت،

تاریخ دعوت وعزیمت \ مولانا ابوالحسن علی ندوی رحمہ اللہ مجلس نشریات اسلام کراچی
تالیفات رشیدیہ \ مولانا رشید احمد گنگوهی \ ادارۂ اسلامیات لاهور،
تحفہ اثناء عشریہ \ شاہ عبدالعزیز دهلوی رحمہ اللہ \ سهیل اکیڈمی لاهور،
تفسیر کبیر (مفاتیح الغیب): إمام أبو عبد الله فخر الدین محمد بن عمر الحسین رازی رحمہ اللہ (متوفی ٦٠٦ھ). مکتب الاعلام الإسلامی إیران،
تفسیر ابن کثیر: حافظ أبو الفداء عماد الدین إسماعیل بن عمر ابن کثیر دمشقی رحمہ اللہ (متوفی ٧٧٤ھ) دار الفکر بیروت،
تعلیقات علی لامع الدراری \ شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمہ اللہ المتوفی ١٤٠٢ هجری الموافق ١٩٨٢ م \ مکتبة إمدادیة مکة المکرمة
التعلیق الصبیح: حضرت مولانا محمد ادریس صاحب کاندهلوی رحمہ اللہ متوفی ١٣٩٤ھ مکتبة عثمانیة لاهور.
تعلیق تهذیب الریاسة وترتیب السیاسیة ابراهیم یوسف مصطفی عجو رحمہ اللہ
تقریب التهذیب: حافظ ابن حجر عسقلانی رحمہ اللہ (متوفی ٨٥٢ھ) دار الرشید حلب ١٤٠٦ھ
تهذیب الکمال: حافظ جمال الدین أبو الحجاج یوسف بن عبد الرحمن مزی رحمہ اللہ (متوفی ٧٤٢ھ). مؤسسة الرسالة
جامع الأصول \ مبارک بن احمد بن الاثیر الجزری \ دار الفکر
الجامع لأحکام القرآن: (تفسیر قرطبی) إمام أبو عبد الله محمد بن أحمد الأنصاری القرطبی رحمہ اللہ (متوفی ٦٧١ھ) دار الفکر بیروت،
الجرح والتعدیل \ عبد الرحمن بن ابی حاتم رازی \ دار الفکر
حلیة الأولیاء: حافظ أبو نعیم أحمد بن عبد الله بن أحمد أصبهانی رحمہ اللہ (متوفی ٤٣٠ھ) دار الفکر بیروت
الحاشیة علی صحیح البخاری \ احمد علی سهارنپوری رحمہ اللہ \ قدیمی کتب خانہ
حاشیة السندی علی البخاری (مطبوعہ مع صحیح بخاری): إمام أبو الحسن نور الدین محمد بن عبد الهادی سندهی رحمہ اللہ (متوفی ١١٣٨ھ). قدیمی کتب خانہ کراچی،
در المختار للعلامة علاء الدین محمد بن علی بن محمد الحصکفی رحمہ اللہ المتوفی ١٠٨٨ھ \ مکتبة رشیدیة کوئٹہ،
در المنثور فی التفسیر بالمأثور للحافظ جلال الدین عبد الرحمن السیوطی رحمہ اللہ المتوفی ٩١١ھ \ مؤسسة الرسالة،
دلائل النبوة: حافظ أبو نعیم أحمد بن عبد الله بن أحمد أصبهانی رحمہ اللہ (متوفی ٤٣٠ھ). دار النفائس،
دلائل النبوة: حافظ أبو بکر أحمد بن الحسین بن علی البیهقی رحمہ اللہ (متوفی ٤٥٨ھ). مکتبہ أثریہ لاهور،
رحماء بینهم مولانا محمد نافع صاحب مکہ بکس لاهور
الروض الأنف: إمام أبو القاسم عبد الرحمن بن عبد الله السهیلی رحمہ اللہ (متوفی ٥٨١ھ) مکتبہ فاروقیہ ملتان ١٣٩٧،
روح المعانی فی تفسیر القرآن العظیم والسبع المثانی: أبو الفضل شهاب الدین سید محمود آلوسی بغدادی رحمہ اللہ (متوفی ١٢٧٠ھ) مکتبہ إمدادیہ ملتان،
الریاض النضرة \ ابو جعفر احمد محب الطبری دار التالیف مصر (١٩٥٣ عیسوی)

زاد المعاد من هدى خير الأنام: حافظ شمس الدين ابوعبدالله محمد بن ابى بكر المعروف بابن القيم رحمه الله متوفى ٧٥١ھ مؤسسة الرسالة.
زهر الربى: (مع سنن النسائى) حافظ جلال الدين عبدالرحمن سيوطى رحمه الله متوفى (٩١١ھ) قديمى كتب خانه كراچى.
سنن ترمذى \ إمام أبوعيسىٰ محمد بن عيسىٰ بن سورة ترمذى رحمه الله
سنن ابى داؤد: إمام أبوداؤد سليمان بن الأشعث السجستانى رحمه الله (متوفى ٢٧٥ھ) ايچ ايم سعيد كمپنى كراچى \ دار إحياء السنة النبوية،
سنن إبن ماجه: إمام أبوعبدالله محمد بن يزيد بن ماجه رحمه الله (متوفى ٢٧٣ھ). قديمى كتب خانه كراچى \ دار الكتب المصرى قاهره
السنن الصغرى للنسائى: إمام أبوعبدالرحمن أحمد بن شعيب النسائى رحمه الله (٣٠٣ھ) قديمى كتب خانه كراچى،
سنن دار قطنى: حافظ أبوالحسن على بن عمر دار قطنى رحمه الله (متوفى ٣٨٥ھ) دار نشر الكتب الإسلامية لاهور،
سنن كبرى للبيهقى: إمام حافظ أبوبكر أحمد بن الحسين بن على البيهقى رحمه الله (متوفى ٤٥٨ھ) نشر السنة ملتان،
سيرت النبى ﷺ: علامه شبلى نعمانى رحمه الله (متوفى ١٣٣٢ھ) و مولانا سيد سليمان ندوى (متوفى ١٩٥٣ء) دار الإشاعت كراچى،
سيرة المصطفى: حضرت مولانا محمد إدريس كاندهلوى رحمه الله (متوفى ١٣٩٤ھ مطابق ١٩٧٤ء) مكتبه عثمانيه لاهور،
سيرة إبن هشام: إمام أبومحمد عبدالملك بن هشام المعافرى المصرى رحمه الله (متوفى ٢١٣ھ) مكتبه عثمانيه لاهور
سيرة حلبية (انسان العيون فى سيرة الأمين المأمون): علامه على بن برهان الدين الحلبى رحمه الله (متوفى ١٠٤٤ھ) المكتبة الإسلاميه بيروت،
سير أعلام النبلاء: حافظ أبوعبدالله شمس الدين محمد بن أحمد بن عثمان ذهبى رحمه الله (متوفى ٧٤٨ھ) مؤسسة الرسالة،
السيرة النبوية والآثار المحمدية \ احمد زينى دحلان \ المكتبة الإسلامية بيروت ولبنان.
شرح السنة حدى السنة حسين بن مسعود البغوى (٥١٦)ھ
شرح نهج البلاغة \ عبدالحميد بن هبة الله ابن ابى الحديد \ بيروت دار الأندلس.
شرح نهج البلاغة ميثم بن على بن ميثم البحرانى (٦٧٩) ھ انتشارات، قم ايران.
شرح معانى الآثار إمام أبوجعفر احمد بن محمد بن سلامة بن سلمه طحاوى رحمه الله (متوفى ٣٢١ھ) مير محمد آرام باغ كراچى، \ مير محمد آرام باغ كراچى،
شرح طيبى \ إمام شرف الدين حسين بن محمد بن عبدالله الطيبى رحمه الله (متوفى ٧٤٣ھ) إدارة القرآن كراچى.
. الكواكب الدرارى (شرح الكرمانى): علامه شمس الدين محمد بن يوسف بن على الكرمانى رحمه الله (متوفى ٧٨٦ھ) دار إحياء التراث العربى،
شرح ديوان حسان بن ثابت رضى الله عنه \ عبدالرحمن البرقوقى \ مير محمد كتب خانه
شمائل ترمذى \ محمد بن عيسى الترمذى \ ايم ايم سعيد كمپنى
شعبيت كا اصلى روپ \ غلام محمد \ غلام محمد حيدر آباد سنده

شرح مسلم\إمام أبوزكريا يحيى بن شرف النووى رحمه الله (٦٧٦ھ)، قديمى كتب خانه كراچى،
صحيح بخارى شريف: إمام أبوعبدالله محمد بن إسماعيل البخارى رحمه الله (متوفى ٢٥٦ھ) قديمى كتب خانه كراچى،
صحيح مسلم إمام أبوالحسين مسلم بن الحجاج القشيرى رحمه الله (متوفى ٢٦١ھ) قديمى كتب خانه كراچى،
طبقات الكبرى: إمام أبوعبدالله محمد بن سعد رحمه الله (متوفى ٢٣٠ھ) دار صادر بيروت،
عبقرية الإسلام فى أصول الحكم \ ڈاكٹر منير عجلانى \ دار نفائيس بيروت
عمدة القارى شرح صحيح البخارى: إمام بدر الدين أبومحمد محمود بن أحمد العينى رحمه الله (متوفى ٨٥٥ھ). إدارة الطباعة المنيرية،
عورت كى حكمرانى \ مولانا يوسف لدھيانوى \ مكتبه بينات كراچى
عين الهدايه \ مولانا امير على \ مير محمد كتب خانه كراچى.
غنية المستملى \ الشيخ ابراهيم بن منصور فرغانى (٥٩٢ھ) \ مكتبه فاحديه كوئٹه
فتح البارى شرح صحيح البخارى: احمد بن على المعروف بابن حجر عسقلانى رحمه الله (متوفى ٨٥٢ ھ). دار الفكر بيروت،
فتاوى قاضيخان \ حسن بن منصور فرغانى (٥٩٢) ھ مكتبه قاحديه كوئٹه
فيض البارى: إمام العصر علامه أنور شاه كشميرى رحمه الله (متوفى ١٣٥٢ھ). ربانى بك ڈپو دھلى،
موطا مالك بن انس المتوفى ١٧٩ ھ دار احياء التراث العربى
مسند أحمد: إمام أحمد بن حنبل رحمه الله (متوفى ٢٤١ھ)
المصنف لعبد الرزاق: إمام عبد الرزاق بن همام بن نافع الصنعانى رحمه الله (متوفى ٢١١ھ) مجلس علمى،
مصنف ابن أبى شيبة للحافظ عبد الله بن محمد بن أبى شيبة المعروف بأبى بكر ابن أبى شيبة رحمه الله المتوفى ٢٣٥ھ الدار السلفية بمبئ الهند الطبعة الثانية ١٣٩٩ھ، ١٩٧٩م،
المجموع شرح المهذب \ محى الدين بن شرف النووى (٦٧٦) ھ شركة علماء الازهر
مشكاة المصابيح \ محمد بن عبد الله الخطيب التبريزى (٧٣٧) ھ دار الفكر بيروت.
مرأة الجنان \ عبد الله بن اسد بن سليمان (٧٥٨) ھ مؤسسة الأعلمى للمطبوعات بيروت،
المرتضى \ مولانا ابوالحسن على ندوى \ مجلس نشريات اسلام كراچى
مجمع بحار الأنوار فى غرائب التنزيل ولطائف الأخبار: محدث محمد طاهر پٹنى (متوفى ٩٨٦ھ) دائرة المعارف العثمانيه حيدر آباد ١٣٩٥ھ
مقدمة كتاب مولانا الياس رحمه الله اور ان كى دينى دعوت \ مولانا سيد سليمان ندوى (١٩٣٩) عيسوى مجلس نشريات اسلام كراچى
المعجم الوسيط: دكتور إبراهيم أنيس \ دكتور عبد الحليم منتصر عطية الصوالحى \ محمد خلف الله احمد \ مجمع اللغة العربية دمشق،
معجم البلدان: علامه أبوعبدالله ياقوت حموى رومى رحمه الله (متوفى ٦٢٦ھ). دار احياء التراث العربى بيروت،

التنجد\لوئیس بن نقولا\معارج ایران،

مختار الصحاح: إمام محمد بن أبی بکر بن عبد القادر الرازی رحمہ اللہ (متوفی ۶۶۶ھ)، لہ روستو، دار المعارف مصر،

میزان الإعتدال فی نقد الرجال: حافظ شمس الدین أبوعبداللہ محمد بن احمد بن عثمان، ذہبی رحمہ اللہ (متوفی ۷۴۸ھ) دار إحیاء الکتب العربیة مصر ۱۳۸۲ھ،

المنتقی لابن جارود،

مجمع الزوائد ومنبع الفوائد: إمام نور الدین علی بن أبی بکر الهیثمی رحمہ اللہ (متوفی ۸۰۷ھ).

مرقاة المفاتیح شرح مشکوة المصابیح: علامہ نور الدین علی بن سلطان القاری رحمہ اللہ (متوفی ۱۰۱۴ھ). مکتبہ امدادیہ ملتان،

معالم السنن للإمام أبی سلیمان أحمد بن محمد الخطابی رحمہ اللہ المتوفی ۳۸۸ھ مطبعة أنصار السنة المحمدیة ۱۳۶۷ھ ۱۹۴۸م،

المستدرک علی الصحیحین: حافظ أبوعبداللہ محمد بن عبداللہ حاکم نیشاپوری (متوفی ۴۰۵ھ) دار الفکر بیروت،

مقدمة ابن الصلاح (علوم الحدیث) لحافظ تقی الدین أبوعمرو عثمان بن عبد الرحمن المعروف بابن الصلاح رحمہ اللہ المتوفی ۶۴۳ھ، دار الکتب العلمیة بیروت

معارف القرآن\مولانا مفتی محمد شفیع رحمہ اللہ\ادارة المعارف کراچی

المفند علی المهند\مولانا خلیل احمد سہارنپوری رحمہ اللہ ادارہ اسلامیات لاہور

منہاج السنة\احمد بن عبد الحلیم (ابن تیمیہ رحمہ اللہ)

الأمانة العظمی عند أهل السنة\عبداللہ بن عمر سلیمان دمیجی\دار الطیب الریاض (۱۴۰۷)ھ.

النهایة فی غریب الحدیث والأثر: علامہ مجد الدین أبوالسعادات المبارک بن محمد بن الأثیر رحمہ اللہ (متوفی ۶۰۶). دار إحیاء التراث العربی بیروت،

نزهة النظر فی توضیح نخبة الفکر حافظ ابن حجر العسقلانی المتوفی ۸۵۲ھ الرحیم اکیڈمی

النکت علی کتاب ابن الصلاح: حافظ ابن حجر عسقلانی رحمہ اللہ (متوفی ۸۵۲ھ).

کشف الأسرار علی أصول فخر الإسلام بزدوی\عبد العزیز بخاری\صدف پبلشرز کراچی.

الکشاف\محمد بن عمر الزمخشری (۵۳۸ھ)\دار الکتب العربی بیروت

الکافی الشاف فی تخریج أحادیث الکشاف\حافظ ابن حجر عسقلانی\دار الکتب العربی بیروت

الکامل\علی بن محمد بن الأثیر (۶۳۰)ھ دار الکتب العربی بیروت

کنز العمال فی سنن الأقوال والأفعال: علامہ علاء الدین علی متقی بن حسام الدین ہندی برہان پوری رحمہ اللہ (متوفی ۹۷۵ھ). مکتبة التراث الإسلامی حلب،

الهدایة للعلامة برهان الدین أبوالحسن علی بن أبی بکر المرغینانی رحمہ اللہ المتوفی ۵۹۳ھ کتب خانہ رشیدیہ دہلی \إدارة القرآن کراتشی،